7




# سینوهه

## د فرعون د ځانګړي طبیب یادښتونه

له میلاد څخه ۱۳۵۰ کاله وړاندې

تاریخ

سیاست

فلسفه

دینپوهنه

ارواپوهنه

ناول

میکاولتاري

ژباړن: ډاکتر محمد عیسی ستانکزی

# سینوهه

## د فرعون د ځانګړي طبیب یادښتونه

ژباړن: ډاکټر محمد عیسی ستانکزی






# کتاب پېژندنه


لیکوال :Waltari, Mika Tommy (۱۹۷۹-۱۹۰۸)

د کتاب اصلي نوم : Waltari Mika Tomy

فارسي ژباړن : ذبیح الله منصوري

فارسي چاپ کال : ۱۳۶۲ هجري شمسي

پښتو ژباړن : ډاکټر محمد عیسی ستانکزی

چاپ نېټه :۱۳۹۱ل

د چاپ نوبت : اول

چاپ شمېر :۱۰۰۰ټوکه

## چاپځی

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانگه

www.danishpress.com



د بیا چاپ ټول حقوق له خپرندویې ټولنې سره خوندي دي

# ډالۍ

عصمت الله څاروان ته چې له ژباړې سره يې آشنا کړم او زما ميرمنې ته چې د کتاب ژباړې ته يې وهڅولم.

ډاکټر محمد عيسى ستانکزى

# د خپرندويې ټولنې يادښت

دا کتاب د فراعنه و د نولسمې لړۍ کيسې کوي، خو دا کيسې ماضي او مستقبل دواړه په خپله غيږ کې رانغاړي. سينوهه د فرعون ځانګړی طبيب دی او د خپل مهال پيښې يې په داسې هنر ليکلې دي. چې سړی ترې د خپلې زمانې د ټولنيزو ناخوالو د تحليل لپاره ګټه اخيستلی شي. ځينې خلک د کتاب د ليکوال په اړه پوښتنې راپورته کوي. خو موږ يې له ليکوال سره څه کار نلرو. هغه خبرې چې پدې کتاب کې يې لولی. د فکر د ژورتيا او حقايقو ته د رسيدا لامل کيږي او دا تر هر څه لوی دليل دی. چې موږ يې ددې کتاب خپراوي ته وهڅولو.

سره له دې، چې د کتاب حجم به زموږ د زړه تنګو لوستونکيو وار خطا کړي، خو موږ په ډاډ سره وايو. چې که يو ځل دا جالب اثر تر شلو صفحو ولولئ، نو تر پايه به ځان دريانډې لولې.

ددې کتاب په اړه د ايران په څير په يو هيواد کې، چې مطالعه او فرهنګي هڅې پکې د خلکو عادت ګرځيدلي. ويل کيږي، چې ددې کتاب له لوستلو محروم سړی د مطالعې دعوه نشي کولی. دا کتاب پخپل ځان کې څو کتابونه لري او ځکه نو د تاريخ. ناول. فلسفې. دينپوهنې. ټولنپوهنې... ټولو مينه والو ته يو په زړه پورې اثر دی.

دانش خپرندويه ټولنه دا کتاب د خپل خپرنيز بهير د لا ځلا او ښکلا په نمط پدې هيله خپروي، چې زموږ د خپلې ټولنې د مصر، ځپلی انسان به ترې خوند او پند دواړه واخلي.

موږ له ګران او خواږه ملګري ډاکټر عيسی ستانکزي نه يوه نړۍ مننه کوو. چې دا کتاب يې په مينه او ډېره بيړه وژباړه او پر ښتنو لوستونکيو يې د يوه لوی اثر د پيرزوينې نيکي هيڅکله نه هيروو.

له خپل ګران او خواخوږي دوست امين الله دريځ نه هم مننه کوو، چې موږ يې ددې کتاب پر ارزښت خبر کړو او د هغه خپراوي ته يې وهڅولو.

له ګرانو يارانو هر يوه. حفيظ هميم جلالزي، احسان الله درمل، نبي جان ساحل، حاجي محمد عمرخيل او محمد يار يار نه هم د زړه له تله مننه کوو، چې هر يوه د کتاب په پروف لوستنه کې زيار ايستی اود کتاب د چاپيدو تلوسې يې موږ ګړندي کړې يو.

او په پای کې له تاسو ټولو نه مننه، چې دا مهم اثر لولی.

درنښت

دانش خپرندويه ټولنه

# یوه لنډه څرګندونه

لرغوني مصري تمدن ته د پاملرنې په ترڅ کې مې نېږدې درې کاله وړاندې د «مصري سېنوهه» جرمني ژباړه وموندله او بې ځنډه مې پرلپسې تر پایه ولوسته. دغه اثر د فېنلندي لیکوال (میکا والتاري) د هڅو پایله ده چې لومړی ځل پر ۱۹۴۵ کال خپور شوی او تر اوسه څه له پاسه څلوېښتو ژبو ته اړول شوی دی.

میکا والتاري د ۱۹۰۸ کال د سپټامبر پر نولسمه په هېلسینکي کې زېږېدلی. پلار یې په پروتېستانت کلیسا کې د پاستور دنده درلوده او تر څنګ یې لیکوال هم وو. والتاري د خپلې مور په غوښتنه لومړی دینپوهنه ولوسته او ورپسې یې په فلسفه، ښکلاپوهنه او اقتصاد کې نورې زده کړې بشپړې کړې(۱) داسې ښکاري چې د پلار لیکنو به یې د میکا والتاري پام لیکوالۍ ته وراړولای وي. دی لا اووه لس کلن وو چې مذهبي لیکنې یې پیل کړې او وروسته یې د ژوند تر پایه هنري لیکوالي کوله.

د نړۍ په ادبیاتو کې د میکا والتاري نوم د «مصري سېنوهه» له خپرېدلو سره وپېژندل شو او وځلېد. د دغه اثر نوم (سېنوهه) په هغو پاپیروس لیکنو کې راغلی چې له ننه نېږدې ۳۹۰۰ کاله وړاندې د منځنۍ فرعوني امپراتورۍ د دوولسمې واکمنۍ په پیل کې په هېروګلیف بڼه لیکل شوي. د دغو لیکنو ناڅرګند لیکوال د یوه سلطنتي کارمن کیسه لیکلې چې نوم یې سېنوهه دی. سېنوهه د فرعون (لومړي امېنېمېت) تر وژل کېدو وروسته د دې وژنې د تور له وېرې سره مخامخېږي او د خورا لانجمنې تېښتې په پای کې په پلستین کې مېشتېږي. د جلاوطنۍ تر اوږده ځور وروسته فرعون (لومړی سېنوسټریس) پوهېږي چې سېنوهه یې د پلار په وژنه کې ګرم نه دی او له دې سره جوخت مصر ته د بېرته ورستنېدلو بلنه ورلېږي

سېنوهه د بلنې له تر لاسه کولو سره سم، بېرته خپل ټاټوبي ته ور ستنېږي او هلته یې په ډېر درناوي سلطنتي هرکلی کېږي.
د سینوهه کېسه د لومړۍ سېسوستریس د ارګ سیاسي پروپاګند دی او د فرعون پروراندې د رعیت منندويي څرګندوي.(۲) د پورتنۍ کیسې پاپیروس پاڼې د برلین په لرغوني مصري موزیم کې ساتل شوي دي. میکا والتاري د همدې کیسې د منځني کرکتر (سېنوهه) نوم او ورسره اړوند توکي اخیستي او د هغه د اوتوبیوګرافۍ په په بڼه یې دغه تاریخي اثر لیکلای دی.
«سېنوهه» چې د خپلې ژورې پوهې او پلار ملګري په مرسته سلطنتي کورنۍ ته لار مومي؛ له فرعون(اېخناتون) سره ملګری کېږي او پخپل ژوند کې له راز، راز پېښو او لوړو، ژورو سره مخامخېږي.
سره له دې چې والتاري اکاډیمیک اېګیپتولوګ (مصرپوه) ندی، خو د لرغوني مصر او په ځانګړې توګه د څوارلسمې مخزېږدې سلیزې په اړه یې اېګیپتولوژي دومره ژوره لوستې چې ګردې پېښې، کرکترونه او د منځني ختیځ او سهیلي یونان اقتصادي، ټولنیزې، سیاسي، جغرافیایي،فکري او کلتوري ځانګړتیاوې یې پر تاریخي بنسټ خورا کره انځور کړې دي. همدا لامل دی چې د والتاري سېنوهه نومی اثر، تاریخي ناول ګڼل کېږي، ځکه چې ګردې پېښې یې په یوه تاریخي پړاو کې رامنځته شوي او ګڼشمېر کرکترونه یې رېښتیا په همدغه پړاو کې اوسېدلي دي.
په کتاب کې سیاسي واک، اقتصادي ګټو او ایروتیک ته د لاسرسي د هڅو بېلابېلې بڼې انځور شوي چې ګڼشمېر یې په خورا تراژیدي ډولو پای ته رسېږي. د پاملرنې تر ټولو مهم ټکی یې دا دی چې سیاسي او روحاني کړۍ په ګډه د خپلو ګټو او غوښتنو په لار کې پرلپسې دین د یوې وسیلې په توګه کاروي.
له هغې مودې را وروسته چې په مصري ټولنه کې «امون» د خدای په نامه ومنل شو، فرعوني دربار د اموني روحانیونو په مرسته په مصري ټولنه کې دا باور هم خپور کړ چې د دوی واکمني د ځمکې پر مخ د امون خدای واکمني ده او دوی یې مخامخ استازي دي. دوی د امون له احکامو سره سم واک چلوي او د هغه خدایي قانون پلی کوي. له دغه باور سره، فرعوني دولت اموني دولت بڼو دل کېده او له سپارښتنو څخه یې هر ډول سر غړونه د دولتي جرم تر څنګ دیني ګناه هم ګڼل کېده. پخوانیو

مصریو دا هر څه په پټو سترګو منل. دوی تر مرګ وروسته ژوند ته ژوره هیله او تلوسه درلوده او پرلپسې دا ورته ویل کېدل چې بلې نړۍ ته یوازې هغه څوک ورتلای شي چې د امون له احکامو سره سم ژوند یې کړی وي او دا چې د دغو احکامو ساتونکي او پلي کوونکي روحانیون او فرعونان ول، نو هر چا به هرومرو د دې کړۍ هر رنګه لارښوونو او سپارښتنو ته بې «ولې؟» او «څنګه؟» غاړه اېښوده. کنه، هم به دیني دولت سزا ورکوله او هم به د امون له کرکې سره مخامخېده او په بله نړۍ کې به له هوسا ژوندانه بې برخې پاتې کېده.

فراعنه پوهېدل چې د مصري ټولنې دیني باور ډېر کلک دی او د امون روحاني ډله او چت پرستیژ پکې لري. همدا لامل وو چې دغو روحانیونو ته یې پراخ مالي او هر رنګه نور امتیازات منلي ول او د هغوی په مرسته یې خپله سیاسي واکمني ټولنې ته د اوچت دیني ارزښت په نامه وروپېژندلې وه. پر بله وینا، په لرغوني مصر کې دین داسې سیاسي او سیاست دومره دیني شوی وو چې یو تر بله نه بېلېدونکي ګڼل کېدل. دغه راز دیني سیاسي سیستم یوازې د مصري ټولنې ځانګړتیا نه وه. د منځنې ختیځ او یونان په سیمو کې «که څه هم چې نور خدایان یې نمانځل» دین و سیاست سره تړلي ول او په هره سیمه کې له دین څخه د سیاسي او اقتصادي ګټو د ساتلو لپاره کار اخیستل کېده. دغه ټکی «کریتا» ټاپو ته چې د یونان په سهیلي ټاپو کې پروت دی؛ د سېنوهه له ورتګه ښه ترا څرګندېږي.

د میکا والتاري سینوهه پر خدایانو باور نلري دا ځکه چې ده څو، څو ځله د روحانیونو او فراعنه وو ټګي او درواغ پخپلو سترګو لیدلي او پوه شوی چې دوی د خپلو غوښتنو د ترسره کولو لپاره د خلکو له ناپوهۍ ناوړه ګټه پورته کوي او دیوه منظم پروګرام په چوکاټ کې یې د فکري ودې او نوښت مخه نیسي.

د کتاب ستره برخه د استثنایي فرعون(اېخناتون) د واکمنۍ پېښې څرګندوي. اېخناتون یوازېنی فرعون دی چې له روانو ټولنیزو ناخوالو، تېریو، ځانغوښتنو او جګړو کرکه کوي او دا هر څه د اموني دین د روحاني کړۍ د ناوړه چار، چلن پایله ګڼي. دی د یوه پرمختللي ټولنیز سمون د رامنځته کولو لپاره د یوه نوي دین بنسټ ږدي؛ د امون خدایي رنګوي او پر ځای یې ټولنې ته «اتون» د خدای په نامه وروپېژني. له دې سره د اموني روحانیونو په ولکه کې ځمکې بېوزلو کروندګرو ته

ورکوي؛ مرییتوب له منځه وړي او د جګړو او وینې بهولو مخه نیسي.
سېنوهه د اېخناتون د انقلاب کلک پلوي دی. خو، اموني روحانیون چې په دغه انقلاب کې یې ګټې له لاسه وتلې؛ خپل ټول هنر کاروي او له بېلابېلو لارو او امکاناتو په تراژیدي بڼه د اېخناتون پلان شنډوي او د خپل نېژدې ملګري(سېنوهه) په لاس یې وژني.
دکتاب هره برخه دومره پر زړه پورې ده چې لوستونکی تر پایه ځان ترې وزګارولای نشي. زما د خپل احساس له مخې د میکا والتاري دغه اثردنړۍ د ریالیستي ادبیاتو په لومړي پوړ کې ځای لري او یو له هغو اوچتو کتابونو دی چې ما تر اوسه لوستلي دي تر دې اخوا، د دغه تاریخي اثر پر منځپانګه ډېر غږېدل بېځایه راته ښکاري ځکه چې همدا اوس به یې لوستونکی پر لوستلو پیل وکړي او په پای کې به یې تاریخي او ادبي ارزښت پخپله وارزولای شي.
څه موده وړاندې د دانش خپرندویې ټولنې له درانه مشر ښاغلي اسدالله دانش سره د دغه کتاب په اړه ټېلیفوني غږېدلای وم. دا دی اوس مې ترې واورېدل چې دغه ناول ښاغلي ډاکټر عیسی ستانکزي پښتو ته وژباړه او دوی به یې ډېر ژر چاپ کړي له دې سره یو لوی کار چې اووه شپېته کاله ځنډېدلای وو؛ پای ته ورسېد او د ډاکټر صاحب ستانکزي په متره دا ځنډ لنډ کړای شو.
دانش خپرندویې ټولنې د سېنوهه د کتاب په اړه د څه لیکلو را ته ویلي ول. لکه په پیل کې چې یادونه وشوه، ما د هغه جرمني ژباړه لوستلې وه او دا کرښې هم د هماغه ویژن پایله ده. پښتو مې یې لا تر اوسه لیدلې ندی. خو، ډاډه یم چې ډېر زیار به پرې ګالل شوی وي.

په درناوي
امین الله. دریځ
02.04.2012

(1)Mika Waltari – Verein www.mikawaltariseura.fi/mwaltaride.html
(2) Die Geschichte von Sinohe, Wikipedia – Die freie Enzyklopädie

## راځه دواړه د ښکلا په سفر ووځو....

ستاسو په لاس کې دا لوی کتاب تاریخ ندی، ناول ندی، سیاسي کتاب ندی، فلسفه نده، اروا پوهنه نده، دینپوهنه نده... خو عجیبه ده، چې دا هر څه دی. په دې کتاب کې تاسو له یوه مفکر (ډاکټرسینوهه) سره تر میلاد ۱۳۵۰ کاله وړاندې مصر ته سفر کوئ او دا ډاکټر د سفر خورا مهربان لارښود دی. تر میلاد ۱۳۵۰ کاله پخوانی مصر عجیب مصر دی، د فرعونیانو د نولسمې لړۍ د پیل کلونه دي. فرعون او دربار یې د ټولو دنیوي او اخروي ګټو سرچینې دي. د فرعون پر وړاندې وړه خبره هم کفر او د مرګ په بیه ده، هڅه کیږي، چې تر واک لاندې خلک ړانده وساتل شي او د ( ولې؟) کلیمه تر ټولو منفوره کلیمه ده. معبد او دربار د ژرندې دوه پلونه دي. چې د هغه وخت د خلکو د سرونو دانې یې تر منځ دل کیږي. خرافات د دین او مقدساتو په نامه پر خلکو ورتپل شویدي، فرعون چې مري، له سره یې خوشبو لټیږي او له پوزې یې زرین وزری مارغه الوځي او بیا له لمر سره وصل کیږي. په ښوونځیو او پوهنځیو کې ټول علوم د فرعون د زورواکۍ امتداد ته لاره هواروي. په نصابونو کې د فکر د روزلو تومنه نشته او ټول کتاب لوستونکي د توتیانو په څیر یوازې خبرې کوونکي دي. ډاکټران تکړه دي. په هغو ناوړه شرایطو کې طبي سهولتونه برابرولی شي، خو د خپل علم په ژورو نه پوهیږي او همدا سرسریتوب دی، چې دوی هم د تیارو په ماتولو کې ناکام دي. هر خواته د زورواکۍ، ناپوهۍ، ظلم، خرافاتو، فساد او بې عدالتۍ تیاره خوره ده، خو د خلکو د شعور له طوره د نور تمه نه کیږي او رود ینیل آرام روان دی. خدای یوازې له فرعون سره نیک اړیکي لري او نورو ټولو خلکو ته په غوسه دی، که خلک د فرعون پر وړاندې وړه ګستاخي هم وکړي. په عذاب به اخته شي. خدای او د هغه ویروونکی تصور د فرعونیانو او د معبد د کاهنانو لویه وسله ده. چې خلک پرې رام کړي او د پورتنیو منابعو له مرستې پرته څوک خدای ته د رسیدو تصور هم نشي کولی.

سینوهه تاسو تر لاس نیسي، پر معبدونو مو ګرځوي، دارالعلوم او دارالطب ته مو بیایي، د فرعون دربار ته مو رسوي. د هغوی کړه وړه، خبرې، عقاید، سیاست، عدل او ظلم درته ښیي. د کاهنانو له رویې مو خبروي. له عامو خلکو سره مو کینوي. د مستۍ محفلونو ته مو بیایي، نورو هیوادونو ته سفرونه درسره کوي او غواړي تاسو ته وښیي چې:

انسان ځومره بدرنګه دی انسان څومره ښایسته دی

سینوهه عجیب کمالونه لري، دی یوازې د فرعون د دربار ډاکټر ندی، بلکې د هغو ټولو ټولنیزو ناروغیو یو ډېر ځیرک طبیب دی، چې د مصر د هغه مهال ټولنیز ارګانیزم پرې اخته و. ده یوازې د شاهي کورنۍ د فرعانانو کوپړۍ ندي پورته کړي، بلکې پر هغو دوه و خبرې کوي. چې له امله یې انسان ته فزیکي یا معنوي زیان رسیږي.

ددې کتاب لوست ته ستاسې له رابلنې موخه یوازې دا نده. چې تاسو ته د پخواني مصر په اړه یو د تاریخ، فلسفې، ټولنپوهنې، اروا پوهنې، دینپوهنې او... یو معجون په داستاني بڼه ولولئ. بلکې موخه دا ده، چې وګورو، د مصر د هغه مهال له انسانه زموږ د پیړۍ تر انسانه پورې د معنویت څومره لارې کږ شویدي؟

سینوهه د هغه مهال د انسان په اړه بدبین دی او دعوه کوي، چې د دې موجود فطرت به یو لک کاله وروسته هم عین شی وي. موږ یې له سینوهه سره منو که نه منو، خو ددې کتاب تر لوستو وروسته به تاسو پوی شئ، چې موږ اوس هم ټول یوازې د زمان او مکان په تغیر په هغه مصر کې اوسو، چې تر میلاد ۱۳۵۰ کاله وړاندې اباد و. فرعونان، کاهنان او عوام یې مهمې طبقې وې. خو لومړۍ دوې یې د دریمې هغې د مرګ، استثمار او استعمار په بیه ژوندۍ وې.

موږ غوښتل، چې ددې کتاب په اړه له ګرانو لوستونکیو سره ډېر وغږیږو، خو د کتاب په اړه تر خبرو د کتاب متن ډېر ارزښتمن دی، ځکه نو موږ له تاسو سره یو ځای د دې کتاب د لوست موزې په پښو کوو. په سینوهه پسې رڼانیږو او تر میلاد دیارلس نیم سوه کاله وړاندې مصر ته د سفر بسم الله کوو. خو د تلو پر مهال یوه وروستۍ هیله:

له پخواني مصر نه د راګرځیدو پر مهال له سینوهه نه هغه هنر ضرور له ځان سره راوړئ، چې د هرې زمانې د فرعونانو ټول طلسمونه ماتولی شي...

فکر!

ښه سفر ولرئ!

په مینه او درنښت

ا- درمل

د سلواغې پینځمه ۱۳۹۰ لمریز

# دا کتاب، د یو لوی انسان ژوند

که د ماشومتوب اووه کلونه تر ې وباسم د پاتې ژوند تو له برخه مې له کتاب سره تېره کړې ده. په دې موده کې مې ګڼ کتابونه ولوستل. ددې کتابونو یوه برخه هغه ده، چې د امتحان لپاره او د اصولو له مخې مې لوستي او د مدرسې، ښوونځي او پوهنتون په نصابونو کې راځي او نور هغه کتابونه دي. چې د ذوق لپاره مې لوستې دي.

د ذوق لپاره په لوستو ټولو کتابونو کې ماته په زړه پورې کتاب سینوهه دی. سینوهه د فرعون ډاکټر او ددغه تاریخي رومان کرکټر دی. دغه تاریخي رومان فنلنډي میکا ولټاري ژباړلی دی. چې له سینوهه څخه یې روایت شوی او د پخواني مصر، د مصر د فراعنه و او د شاوخوا ځینو نورو سیمو، د هغه وخت سیاسي، اقتصادي، پوځي، کولتوري اړخونه پکې روښانه شوي دي.

د مصر د تمدن د عظمت په اړه مې ډېر څه اورېدلي ول، خو هغه څه چې په دې کتاب کې مې ولوستل. له تېرو هغو، په زړه پورې او ډېر دي.

مصر د اهرامونو په لرلو سره اوس هم د نړۍ د کلتوري میراث پلازمېنه بلل کېږي. د مصري تمدن عظمت د لیک لوست په برخه کې هم د پام وړ دی، چې د لومړي ځل لپاره یې سمبولیک، لیک پر حروفي هغه واړاوه.

مصر له دې کبله هم د ستاینې وړ دی، چې د اوسنۍ متمدنې نړۍ د ژوند په ډېرو برخو کې یې د بدلونونو بنسټ ایښی دی.

د مصر د تمدن د راټوکېدو پر مهال، په نړۍ کې دوه ډوله خلکو ژوند کاوه چې یوې ډلې به د کرنې له لارې د ژوند اړتیاوې پوره کولې او بلې ډلې د کبانو ښکار کاوه او له دې لارې یې ډوډۍ پیدا کوله. خو د مصریانو نوښتګر فکر ددې لامل شو، چې درېیمه ډله خلک هم رامنځ ته شول چې تر ننه پورې هماغه دود ژوندی دی.

درېیمه ډله خلک په نننۍ اصطلاح مامورین ول، دوی دنده درلوده چې د نیل سیند اوبه منظمې. په وار او د خلکو له اړتیا و سره برابرې پر هغوی ووېشي. نننیو میراوانو ته ورته، چې د اوبو ټولې چارې سبمالوي او یا هم د اوبولګولو دولتي اداري غوندې د اوبو د تنظیم چارې یې پر غاړه وې.

دغو کسانو ته د کار په بدل کې معاش ورکول کېده او د وخت په تېرېدو یې هغوی ته یوه مېنه هم جوړه کړه. چې پکې واوسي. کټ مټ داسې مېنه لکه اوس چې په نړۍ کې د مامورینو لپاره جوړېږي.

د مصر تمدن خورا ډېرې ځانګړتیاوې لري، چې له سیاسي نظامه نیولې، تر مذهبي اړخه پورې ټول یې د یادونې وړ دي.

مصر له دې کبله هم د نړۍ سرلاری هېواد بلل کېږي. چې په لومړي ځل پکې د سیاست بنسټ ایښودل شوی او په لومړي ځل پکې د نشنلیزم یا ملت پالنې روحیه رامنځته شوې او د همدغې روحې پر بنسټ یې مصر له هغو یرغلګرو خلاص کړی. چې له سوېل ختیزه یې، دغه هېواد لاندې کړ او څو سوه کلونه یې پرې واک وچلاوه.

د مصر عقاید هم د ځانګړې پاملرنې وړ دي، چې اصلي محور به یې د وخت فرعون و. د همدې ټولو اړخونو په اړه د مطالعې یوه ښه سرچینه دا کتاب دی.

سینوهه په سیند کې موندل شوی او پردی جوړې (خاوند او ښځې) د زوی په توګه لوی کړی دی.

د مصر د وخت تر ټولو ښه ښوونځی او پوهنتون یې ویلی دی، په عامیانه اصطلاح لوفري یې کړې ده، د مصر په پوځ کې یې د ډاکټر په توګه خدمت کړی، د مصر لپاره یې په نورو هېوادونو کې جاسوسي کړې. کرونده او سوداګري یې کړې، د فرعون ځانګړی ډاکټر پاتې شوی او بالاخره په مصر کې د بدلون یوه سرچینه ترې جوړه شوې ده.

په دغه کتاب کې به تاسې له ډېرو نادرو خبرو او معلوماتو سره مخ شئ، څکه د مصر د تمدن په اړه زه فکر کوم تر ټولو غوره تاریخي روایت دی.

کېدای شي د افسانې یوه برخه هم ورسره ګډه شوې وي، خو افسانوي اړخ یې، تاریخي او واقعي اړخ نه دی پیکه کړی.

په کتاب کې تر ټولو هېښوونکې خبرې د هغه مهال د هېوادونو د مذهبي عقیدو او د مصري تمدن او خلکو د ژوند په اړه دي.

ډېر داسې څه به پکې ومومئ، چې تر سینوهه پېنځه څلوېښت پېړۍ وروسته نړۍ ورته د مدنیت د یوې برخې او یا یوې اړتیا په سترګه ګوري، خو د سینوهه د ژوند په زمانه کې په مصر کې عادي خبره وه.

په دغه کتاب کې له میلاد څخه ۱۳۵۰ کاله وړاندې پېښې را اخیستل شوې او که هره پېښه یې ولولئ، داسې فکر به وکړئ، چې د نن ورځې تاریخ لولئ.

دا په دې مانا نه دی چې نړۍ پرمختګ نه دی کړی، بلکې نړۍ اوس ایله هغه ځای ته ور

رسېږي چې مصر تر مېلاد ۱۳۵۰ کاله وړاندې و، توپير دا دى چې هلته امکانات لږ او وسايل دوديز و او اوس امکانات او ټيکنالوجي ډېره شوې او د ژوند رنګ يې يو څه بدل کړى دى.

د تاريخ بېلابېلو پېښو او حوادثو د بشري نړۍ پرمختګونه له خاورو سره خاورې کړي. کنه هغسې پرمختګ چې مصر تر ميلاد ۱۳۵۰ کاله مخکې درلود که نړۍ پر هماغه حال پاتې شوې واى خداى خبر چې اوس به څنګه وه؟

## تمدن او کلتوري ارزښتونه

په يويشتمه پېړۍ کې پر روغتيا ډېر زيات ټينګار کېږي، ملتونه او هېوادونه هڅه کوي، چې په بېلابېلو لارو د ناروغيو مخه ونيسي.

ډېر پام نظافت ته کېږي، چې په هغه د ځان، چاپېريال او کارېدونکو توکو پاکوالى راځي.

نن‌نړۍ د خوراک پاکوالي ته ډېر پام کوي او له همدې امله ډاکټر سپارښتنه کوي، چې تر ډوډۍ مخکې بايد لاسونه پرېمنځل شي. مصر چې تر ميلاد سوونه کاله مخکې په طب کې ډېر پرمختګ کړى و. نو نظافت ته يې هم ډېر پام کاوه او د لاسونو پرېمنځل يې د نظافت له پلوه پر يوه کلتور بدل شوي ول.

تر ډوډۍ وړاندې دلاسونو پرېمنځل او بيا په کتاني ټوکر باندې وچول، د نن زمانې خبره بلل کېږي او له هغه څه سره ټړل کېږي، چې دنن عصري نړۍ پاکوالى ورته وايي خو په دغه کتاب کې دا ټکي تاسې زرګونه کاله مخکې لېداى شئ.

## درملنه او معالجه

په دغه کتاب کې د سينوهه له خولې ځينې طبي سپارښتنې هم شته. د بېلګې په ډول دى وايي :((موږ بايد په دې پوه شو، چې د ناروغ کومې خبرې سمې دي او کومې هغه د تخيل او تصور له امله کوي. ځکه چې ناروغ د هغه موجود په شان وي، چې سپېره روح بنديوان کړى وي او وحشتناکه خيالونه او تصورات لري. دناروغ په بدن کې چتي او خيالي دردونه هم پيدا کېږي چې د غه دردونه له اصلي دردونو سره نه شي تشخيص کيداى په دې وخت کې د ناروغ خبرې ډاکټر په غلطه لار بيولاى شي او په غلط ډول يې معالجه کوي چې له امله يې ښايي ناروغ ومري.))

## ولې

سينوهه ټول عمر د ((ولې)) په ځواب پسې تېر کړى دى، خو په مصر کې هغه مهال د يوه شي په اړه د ولې په ټکي پوښتنه کول جرم و. هلته بايد هر څه په پټو سترګو ومنل شي. سينوهه وايي، د هر څه په اړه چې به مې پوښتنه کوله نو وروستى ځواب دا وه چې (امون) د مصريانو خداى

همداسې غواړي.

اوس ساینسي او اوروايي تجربې ښيي چې د شيانو په اړه پوښتنې کول له زده کوونکي سره مرسته کوي ، خو له بده مرغه زموږ په ټولنه کې هم باید ، د مصري ټولنې په څېر د ډېرو شیانو په تړاو باید سړي پوښتنه و نه کړي.

## د مصر ذهنیت

ددې کتاب له لوستو سره به ، د مصري ټولنې ذهنیت داسې درته ښکاره شي لکه د افغانستان په اړه چې کومه کیسه لولی.

د مصر د فراعنه و په دربار یوازې یو فرعون و ، چې له کوچنيوالي يې له وينو کرکه کوله او ويل کېږي چې د توحيد لپاره يې کار کاوه.

په همدغه کتاب هم د همدغه شهزاده، چې وروسته بیا فرعون شو ، همدغه شخصیت لیدلای شی.

تاسې د يوه سپاهي او د مصر د شهزاده دا مکالمه ولولی: (( راغلی یم چې هغه (خپله نیزه) د فرعون د دښمنانو په وينو سره کړم. وليعهد وويل، زه له وينې بهېدنې کرکه کوم، ځکه د وينې بهول تر ټولو بد عمل دی. نیزه لرونکي ځوان وويل، زه ستا په شان فکر نه کوم او باوري يم، چې د وينې بهېدل د ملتونو د پاکۍ سبب کېږي او هغوی ځواکمنوي خدايان وينه خوښوي. ځکه چې د وينې په خوړلو سره کلکېږي او تر هغې ورځې چې جنګ ممکن وي د وينې بهېدل به دوام لري .وليعهد وويل زه به داسې کار وکړم چې نور جنګ رامنځته نه شي.نیزه لرونکي ځوان ماته وکتل او ويې ويل داسې ښکاري چې دغه سړی لیوني شوی دی، ځکه چې جنګ پخوا هم و او تل به وي او هر کار چې ملتونه يې د جنګ د مخنيوي لپاره وکړي، جنګ به نور هم زيات شي، ځکه چې .جنګ هم لکه ساه اخيستل د ژوند لپاره اساسي توکی وي.))

زموږ په ټولنه یا که ووایو په نړۍ کې اوس هم داسې ذهنیت چورلټ له منځه نه دی تللی چې د جنګ پلوي وي اوس هم تاړاکونه شته، يرغلونه شته، وژنې شته او وينه روانه ده. ددغه مصري ځوان منطق پر شخصي ګټه نه دی ولاړ، خو د نننیو جګړو یوه بله بدي داده چې تر شاېې موجود منطق پر شخصي ګټو ولاړ وي

## پانګونه

دا مهال په نړۍ کې اقتصاد د بلې هرې برخې بنسټ جوړوي ، د هېوادونو اقتصادي وده له نورو سره د سيالی اصلي محور دی او د اقتصاد ځواکمنتيا د سیاست بنسټ ګڼل کيږي.

دا مهال د نړۍ په ډېرو هېوادونو کې سهامي يا د ونډو سيستم(join-stock System) روان دی

سهامي شرکتونه د نړۍ د پانګونې لوی ځایونه دي او همدغه شرکتونه د کار ستري سرچینې دي.
جالبه دا ده چې د سینوهه په روایت کې د سهامي شرکتونو د قدامت څرک هم لګېږي.
سینوهه سوریې ته د خپل سفر پر مهال خپل شته په همدغو شرکتونو کې ساتلي وو: ((ما ډېر سره او سپین تر لاسه کړل او اضافي سره او سپین به مې د سوریې د بېړۍ چلونې په شرکتونو کې په کار اچول. په سوریه کې داسې شرکتونه شته چې پانګې یې په ورو برخو ویشل شوې او دغه وړې برخې خلکو اخیستې وې، دغه وړې برخې بیا هم په نورو ورو برخو ویشل شوې وې او پر هغو یې لسمه برخه، سلمه برخه، او زرمه برخه نومونه ایښي وو.))
په دغه کتاب کې د پخواني مصر له عقیدو او باورنو څخه هم ځینې روایتونه راغلي دي، چې مطالعه یې له سړي سره ښه مرسته کولای شي.
دغه راز د هغه وخت پر سیاست او نظامي حالاتو باندې هم په دغه کتاب کې پوره رڼا اچول شوې او هر څه پکې ښه روښانه شوي دي. نور نو تاسې د کتاب لوستو ته رابولم

د خدای ښه
همیم جلالزی
د سلواغې شپږمه، ۱۳۹۰المریخ کال
خوشحال مېنه - کابل

# دفارسي ژبارن سريزه او د سينوهه دکتاب دانشا په هکله لنډه توضيح

اوس د ۱۳۶۴ کال ځوارلسمه سپيځلي اسلامي پيړۍ ده او خيال نه کوم چې ددې پيړۍ ترپايه پورې دې دنړۍ په ادبياتو کې داسې کتاب چاپ شي چې دمنځني ختيځ دهيوادونو دلرغوني تاريخ او دهغه وخت دټولنيز او اروا پيژندې دتحليل له پلوه دې وکړای شي له دغه کتاب سره چې له ميلاده ۱۳۵۰ کاله پخوا ليکل شوی دی سيالي وکړي.

دغه تاريخ مونږ دمصر دفرعونيانو د نولسمې لړۍ دبستګر دباچاهۍ له پيليدا څخه استخراج کړی دی اولکه چې ددې کتاب ليکوال سينوهه وايي په مصر کې ددې سړي له باچاهۍ شپږ کاله وروسته جلاوطن شوی دی او ددغه کتاب ليکل يې پيل کړل او ددې لپاره چې مونږ تيروتنه ونه کړو ددې کتاب دليکولو نيټه مو ۱۳۵۰ مخ زيږدېز کال چې دباچاهۍ پر ګدۍ دمصر دفرعونيانو دنولسمې لړۍ دبنسټګر دکنبيناستو کال دی وباله او څرګنده خبره ده چې ددې کتاب دليکلو ددقيقې نيټې دترلاسه کولو لپاره بايد شپږ کاله پر تخت ددغه سړي دکنبيناستو له وخته کم کړو.

ددغه کتاب لوستونکي به که ځوانان دي يا بوډاګان ددغه لرغوني تاريخي کتاب له لوستلو ګټه پورته کړي په ريښتيا چې دغه کتاب پر تاريخي اهميت سربيره دټولنيزو او روانشناسۍ يو ښه معجون دی.

خو که ځوانان يې لولي هغوته سپارښتنه کوم چې کتاب له لوستو وروسته ورک نه کړي او هغه دې وساتي چې کله شپېته کلن او ياله هغه واوښتل بيادې ولولي په هغه وخت کې به دکتاب دليکونکي سينوهه هنر نورهم ورته ښکاره او څرګند شي او داروايوهنې او اجتماعي شننې له پلوه به دکتاب په ارزښت نور هم پوه شي.

ددغه کتاب يوه ګټه دمنځني ختيځ دځينو هيوادونو لرغوني تاريخ ته توجه ده چې په ځينو تاريخي کتابونو کې يې حتي نوم هم نه دی اخيستل شوی دی که په ځينو کې يې نوم اخيستل شوی تاريخي بحث پرې نه دی شوی.

خو په دې کتاب کې د(هاتي ) ،(میتاني ) او(کوش ) دملتونو په شان دملتونو له لرغوني تاریخه نسبتاً ډیر معلومات ترلاسه کوو.

ژباړن ضروري ګڼي لوستونکو ته ووایي چې د سینوهه په لاس دد غه لیکل شوي کتاب دانشا روده دآباءالاولین انشاء روده ده او په دې سبک کې ځینې لنډې جملې تکراریږي او له دې پرته چې حاشیو (اضافي شیان ) بده ښکاره شي. بله خبره دا چې له میلاده په مخکینیو پیړیو کې دمنځني ختیځ جاهلو قومونو شراب څښل او دهغوي له لوري دشرابو څښل په دې معنی نه دی چې ژباړن او یا خپرندویه ټولنه دشرابو له جسمي او بدني تاوانه کرکه نه کوي.

دکتاب یوه حیرانوونکې برخه هغه ده چې په لرغوني مصر کې فرعونیان دخپلوډاکټران له لوري وژل کیدل او په دې کتاب کې بله ګټوره خبره دا ده چې په منځي ختیځ او مصرکې په هغه وخت کې دطب دعلم پرمختګ ښيي.

له مبالغې پرته ددې کتاب داسې څېرکی به نه وي چې دتاریخي معلوماتو له پلوه ګټورنه وي اوبیا هم له مبالغې پرته دغه کتاب له میلاده په مخکې پیړیو کې دمنځني ختیځ دهیوادونو دتاریخي مطالعې لپاره یو بشپړ دایرة المعارف دی او دکتاب ځینې تاریخي مطالب باید سړی پشپړ حفظ کړي.

زما په شان دیوه میرزا لپاره غوره نه ده چې کله دغه کتاب ژباړم کوم په خپله دهغه ستاینه وکړم خو له مبالغې پرته باید ووایم چې دفرعون دډاکټر سینوهه کتاب چې اوس ستاسو په لاس کې دی هغه کتاب دی چې له دې وروسته چې تاسو ولوست پوهیږئ چې دمطالعې ارزښت یې درلود

ذبیح الله حکیم الهي دشتي

دلیکوالی نوم ذبیح الله منصوري

# له مصري خطه په یوه نړیوال خط
# دژباړې په هکله لنډې خبرې

کله چې دفرعون دځانګړي ډاکټرسینوهه کتاب دلومړي ځل لپاره چاپ شو دکتاب ځوتنه لوستونکي دیوه لیک په وسیله له ژباړنه غوښتي ؤ چې وواییي سینوهه کتاب چې په مصري خط لیکل شوی ؤ څه وخت په یوه نړیوال خط ترجمه شو او ژباړن یې څوک ؤ؟

*لکه چې ټول پوهیږي اصلي مصري خط (هیه روګلیف) یعنې تصویري خط ؤ او پخوانیو مصریانو دانسانانو، حیواناتو، نباتاتو، اوجماداتو شکلونه او ښې انځورولې او خپل مقصد یې ددغه انځورونو په وسیله رساوه.*

مصري ښوونکي چې مصري خط به یې زده کوونکوته وربښود یوازې یې خطونه انځورول او دشکلونو سیورو او روښنایي ته یې توجه نه کوله او دغه راز هغه څه چې دزده کوونکوله لوري ایستل کیدل رسم ؤ نه انځورګري. دهیه روګلیف دخط (دمصر دتصویري خط) دپیدا کیدا تاریخ مورخانو ته معلوم نه دی او وایي چې کله چې دفرعونیانولومړنی لړۍ پردغه هیوادکې حکومت کاوه تصویري خط موجود ؤ اودمورخانو په وینا تصویري خط دمصریانو دمذهبي عقیدو زیږنده ده. سره له دې چې مورخان دمصري فرعونیانو دلړۍ دشمیرې په هکله اختلاف لري خوټولو دمصر دفرعونیانو تاریخ په دریو پړاونو ویشلی دی او دغه درې پړاونه (پخوانی، منځنی، او نوی) دي

په پخوانۍ دوره کې چې له ۳۴۰۰ تر ۲۴۷۵ مخ زیږدیزه پورې دوام کوي د مصر هیه روګلیف (تصویري خط) بدل نه شو خو په منځۍ دوره کې (له ۲۴۷۵ څخه تر ۱۷۸۸ مخ زیږدیزه پورې) او په نوې دوره کې له ۱۷۸۸ تر ۱۰۹۰ مخ زیږدیزه پورې د مصر د تصویري خط بڼه ډېره بدله شوه.

دخط په بڼه کې بدلون داسې رامنځته شو چې خطاطانو (پارسامانو) د زوایو پراخوالی کم کړ او منفرجه زاوې په قایمه او بیا په حاده زاویو بدلې کړې او خطونه یې لنډ کړل او د خطونو په لنډولو کې داسې پرمخ لاړل چې ځینې خطونه یې د ټکي په بڼه راوستل او که کوم کاتب به غوښتل دیوه مرغه رسم وباسي د خپلو نیکونو په شان یې یو بشپړه مرغه نه ایسته بلکه په دولنډو افقي خطونو یې د مرغه وزرونه او په دوه لنډو عمودي خطونو به یې دهغه دوه پښې رسم کړې.

مصري کاتبانو د خطونو زاویې او قوسونو او د خطونو بڼې راکمې کړې چې د(دیموتیک) په نامه خط رامنځته شو.

په هغو وختونو کې چې سینوهه همغه ډول چې په دې کتاب کې وایي د ختیځ سمندر په سواحلو کې میشت شو او د خپلو خاطراتو لیکل یې پیل کړل مصري خط پخوانی مصري خط نه ؤ او مصریانو په ډیموتیک خط چې تقریباً الفبایي خط ګڼل کیده کتابت کاوه او سینوهه خپلې خاطرې په همدې خط ولیکلې او د دغه کتاب تدوین کوونکي میکاوالتاري د سینوهه کتاب له ډیموتیک ژبې په فنلانډې ژبې وژباړه.

هغه خبرې چې د مصري خط د بدلون په هکله تاسو ولوستلې له کولمبیا دایرة المعارف او د سینوهه د فرانسوي متن له ژباړې څخه اخیستل شوي دي.

دغه کتاب د مصر د لرغونو اثارو په کیندلو کې پیدا شوی او د نړۍ په بیلابیلو ژبو ژباړل شوی دی سینوهه هغه ډاکټر دی چې د نړۍ ګوټ ګوټ ته یې سفر کړی او دهغه لپاره نړۍ یوزاې مصر نه ؤ په هغه وخت کې دغه مشهور ډاکټر له خپلې ټولنې مخکې روان ؤ او ډیر روڼ اندی ؤ ځکه خو د زور خاوندانو نه شو زغملی او له خپل ټاټوبی یې جلا وطن کړی ؤ.

فکر کوم د افغانستان په اوسنیو حالاتو کې د دغه کتاب لوستل ډیر ګټور وي ځکه چې داسې ښکاري لا هم موږ د جهالت په تورتمونو کې ژوند کو او سیاسي دلالان پر موږ لوبې کو همغه ډول چې زرګونو کاله مخکې یې د مصر په خلکو لوبې کولې او له مذهب

او نورو اوزارو او قوانینو بې ناوړه استفاده کوله.

دغه کتاب تاریخي ناول دی چې ډیر له ځمکنیو واقعیتونو سره اړخ لګوي او ډیرې خبرې پکې داسې دي چې دلرغون پوهانو له لوري ثابتې شوي هم دي ددغه کتاب لوستل له لو ستونکي سره مرسته کوي چې د مصر لرغوني ټولنه ښه وپیژني.

کیدای شي په ترجمه کې دنثر خوند ته زیان اوښتی وي خو سره له دې چې په نثر کې بې خوند شته له سیاسي ، ټولنیز او پوځي پلوه ډیر څه ترې زده کیدای شي غوره ده په دقت سره یې ولولئ او زه هیله کوم د کتاب اهمیت ته پا م سره مې دژباړې څه نا څه حق ادا کړی وي.

ښایي ځینې کسان فکر وکړي چې دکتاب په ځینو برخو کې غیر اخلاقي خبرې شوي خو له دې او دغسې دکتاب له نورو برخو په تیره بیا ځوانان ډیر څه زده کولای شي.

درنښت

ډاکټر محمد عیسی ستانکزی

۲۰۱۰/۰۸/۲۳

اسلو ـ ناروې

stanickzy۲۰۰۳@gamail.com

# فهرست

## اته ویشتم څپرکی



## نهه ویشتم څپرکی



## دېرشم څپرکی



## یو دېرشم څپرکی



## دوه دېرشم څپرکی



## دري دېرشم څپرکی



## څلور دېشم څپرکی



## پېنځه دېرشم څپرکی



## شپږ دېرشم څپرکی



## اوه دېرشم څپرکی



## اته دیرشم څپرکی



## نهه دېرشم څپرکی



## څلوېښتم څپرکی



## یو څلوېښتم څپرکی



## دوه څلوېښتم څپرکی

## درې څلورپښتم څپرکی



## څلور څلوېښتم څپرکی



## پينځه څلوېښتم څپرکی



## شپږ څلوېښتم څپرکی



## اوه څلوېښتم څپرکی



## اته څلوېښتم څپرکی



## نهه څلوېښتم څپرکی



## پنځوسم څپرکی



## یو پنځسم څپرکی



## دوه پنځسم څپرکی



## دري پنځوسم څپرکی



## څلور پنځوسم څپرکی



## پينځه پنځوسم څپرکی



## شپږ پنځوسم څپرکی

زما نوم (ددغه کتاب لیکوال) سینوهه دی او زه دغه کتاب دخدایانو دستاینې لپاره نه لیکم؛ ځکه له خدایانو ستړی شوی یم. زه دغه کتاب د فرعونیانو دمدحې لپاره نه لیکم؛ ځکه له فرعونیانو څخه تنګ شوی یم. زه دغه کتاب یوازې دځان لپاره لیکم، بې له دې چې د انعام او بدلې فکر وکړم اویا دا چې په نړۍ کې دنوم ګټلو لپاره وي.

په ژوند کې له فرعونیانو او خلکو دومره کړېدلی یم چې له ټولو شیانو حتی دتلپاتې نوم له ترلاسه کولو هم موړ شوی یم.

زه دغه کتاب یوازې ددې لپاره لیکم چې ځان راضي او خوشحاله کړم او فکر کوم چې یوازېنی لیکوال به یم چې له مادي اومعنوي موخې پرته کتاب لیکم.

هر څه چې تراوسه لیکل شوي دي یا ددې لپاره وو چې خدایان خوشحاله کړي اویا ددې لپاره ؤ چې انسان خوښ کړي. زه فرعونیان هم دانسانانو په کتار کې بولم ځکه چې هغوی هم له موږ سره توپیر نه لري اوزه دغه خبره په ایمانداري کوم.

زه د مصر دفرعونیانو ډاکټر وم ځکه خو له نژدې، شپه او ورځ له هغوی سره وم او پر دې پوهېږم چې فرعونیان هم داحساساتو، کمزورتیاوو او وېرې له پلوه زموږ په شان دي حتی که یو فرعون زر ځله لوی کړو او هغه دخدایانو په کتار کې راولو بیا هم انسان اوزموږ په شان دی.

هغه څه چې تر اوسه لیکل شوي؛ د هغو کاتبانو په لاس لیکل شوي چې د پاچایانو امرونو ته یې غاړه اېښې ده او ددې لپاره یې لیکل کول چې واقیعتونه بدل کړي.

ما تراوسه پورې هېڅ داسې کتاب نه دی لیدلی چې واقیعتونه پکې لیکل شوي وي.

په کتابونو کې یا دخدایانو لپاره چاپلوسي شوې اویا د خلکو یانې فرعونیانو لپاره ،او په دې دنیا کې تر اوسه پورې په هېڅ کتاب او لیکنه کې حقیقت نه دی موجود؛ او ګومان چې له دې وروسته به هم په کتابونو کې حقیقت ونه لیکل شي.

شونې ده د خلکو جامې ،ژبه،عادتونه او ګروهې بدلې شي خو د هغوی حماقت به بدل

نه شي او په ټولو پېړونو کې به د ليکنو او ويناوو له لارې انسان دوکه شي. خکه هماغه ډول چې خواږه د مچانو خوښېږي: انسان هم په دروغو او چټي ژمنو مين دی چې هېڅکله نه پوره کېږي. آيا نه ګورئ چې خلک په ځلورلارې کې ديوه فالبين شاوخوا راغونډ شوي وي او هغه په خاورو ناست او خلکو ته د خزانو او سپنو او سرو وعدې ورکوي خو خلک يې خبرو ته غوږ نيسي.

خو زه چې نوم مې سينوهه دی په دې آخري عمر کې له دروغو کرکه کوم: له همدې امله دغه کتاب د نورو لپاره نه بلکې د ځان لپاره ليکم.

زه نه غواړم چې بل څوک دې دغه کتاب ولولي او ما دې وستايي: زه نه غواړم چې ماشومان دې په ښوونځيو کې پر خپلو دړو باندې زما د کتاب عبارتونه وليکي او هغه دې ياد کړي. زه نه غواړم چې هوښياران دې زما له کتابه متالونه راوړي او په دې ډول خپل علم او پوهه ثابته کړي. هرڅوک چې کوم شی ليکي هيله کوي چې له هغه وروسته نورکسان د هغه کتاب ولولي. ويې ستايي او څوک يې نوم هېر نه کړي له همدې امله خپل ايمان تر پښو لاندې کوي. له ټولنې سره يو شان کېږي او يوازې ددې لپاره چې نور يې وستايي هغه شيان ليکي چې پخپله پرې باور نه لري. خو زه نه غواړم چې څوک دې زما کتاب ولولي او له ټولنې سره هم نه يو شان کېږم او د هغې د خرافاتو او خيالونو ستاينه نه کوم.

زه باوري يم چې انسان نه بدلېږي: که څه هم يو لک کلونه پرې تېر شي. که يو انسان په سيند کې ډوب کړی، او بيا يې راوباسې: نو چې جامې يې وچې شي هماغه مخکېنی سړی به وي. که يو سړی له غمونو سره مخ کړئ پر خپلو کړو به پښېمان شي خو کله چې له غمونو خلاص شو، بېرته لومړني حالت ته ورګرځي او د پخوا په شان به کبرجن او بېرحمه وي.

څرنګه چې د ځينو شيانو رنګ او بڼه بدلېږي. د ځينو قومونو ژبې بدلېږي او نوې جامې او خواړه چې پرون نه ول دود ېږي. نو خلک فکر کوي چې نن له پرون سره توپير کوي. خو زه پوهېږم چې داسې نه ده او په راتلونکي کې هم د نن په شان څوک رښتيا نه خوښوي: له دې امله نه غواړم چې څوک زما کتاب ولولي او د زړه له کومې هيله کوم چې په راتلونکي کې مې نوم ورک پاتې شي.

زه دغه کتاب له دې امله ليکم چې پوهه راسره ده او پوهه د تېزاب په څېر د انسانانو زړه خوري او که انسان خپله پوهه نورو ته ونه لېږدوي نو خپل زړه يې له منځه ځي.

زه خپله پوهه بل چا ته نه شم بيانولای. ځکه خو هغه د ځان لپاره ليکم : او دا کار د ځان د ارامتيا لپاره.

ما په خپل عمر کې ډېر شيان وليدل ما وکتل چې زوی خپل پلار وواژه.

ومې ليدل چې بې وزلو د شتمنو پر ضد او ان د خدايانو پر خلاف پاځون وکړ.

داسې کسان مې وليدل چې يو مهال يې په زرينو لوښو کې شراب څښل خو داسې وخت هم راغی چې د سيند په څنډه کې يې او به څښلې.

ومې ليدل چې خپل زر يې په تلو کې تلل . خو يوه ورځ يې خپله ښځه ديوه مسي بنګړي لپاره په تور پوستو وپلورله او دا کار يې هم ددې لپاره وکړ. چې د خپلې همغې ښځې ماشومانو ته ډوډۍ واخلي.

پخوا زما ځای د فرعون په ماڼۍ کې ؤ او د هغه په ښي اړخ کې به ناست وم . ډېرو مخورو چې سلګونه مريان به يې درلودل . ما ته غوره مالي کوله او ما ته به يې ډالۍ را استولې.

نن سبا په دغه ځای کې چې د ختيز سمندر څنډې دي . ژوند کوم . شتمني مې راسره ده او هماغه ډول بډای يم او مريان مې لاس پر نامه راته ولاړ وي.

داچې زه يې له مصر او طبس ښاره تبعيد کړم او دلته يې راواستولم. ټول ددې لپاره وو چې زه په ژوند کې هرڅه لرم . خو غواړم داسې شی ترلاسه کړم چې د ترلاسه کولو لپاره يې بايد انسان هرڅه له لاسه ورکړي.

ما غوښتل چې حقيقت واکمن وي او درواغ . ريا او چل ول له منځه لاړ شي. خو په دې نه پوهېدم چې. د انسان په ژوند کې د حقيقت واکمنول ناشونی کار دی او هرڅوک چې رينښتيا وايي او غواړي په رينښتنولۍ ژوند وکړي. بايد هرڅه له لاسه ورکړي او زه بايد ډېر نيکمرغه سړی و اوسم چې تر اوسه مې خپله شتمني ساتلې ده.

# لومړی څپرکی

## د ماشومتوب وختونه

هغه سړی چې ما پلار وباله د طبس په ښار يانې د نړۍ په ستر ښار کې د بې وزلو طبيب و او هغه ښځه چې ما خپله مور بلله د هغه مېرمن وه.

دغې جوړې تر زړبوړۍ پورې اولاد نه درلود. نو زه يې په زوی ولې ونيوم.

له دې امله چې دوی ساده ګان ول، نو ويل يې چې زه خدايانو ور استولی يم. خو په دې نه پوهېدل چې د خدايانو دغه ډالۍ به دوی ته څومره بد مرغي ورپه برخه کړي ؟

مور سينوهه بللم : هغې له کيسو سره ډېره مينه درلوده او د سينوهه نوم يې هم په يوه کيسه کې اوريدلی و. د مصر يوه مشهوره کيسه ده چې وايي : سينوهه يوه ورځ نابېره د فرغون په خيمه کې يو خطرناک راز واورېد ؛ کله چې خبر شو فرعون پرې پوهېدلی .نو د مرګ له وېرې وتښتېد . يو څه وخت په کوڅو کې له ډول ډول ګواښونو سره مخامخ و خو ورسته بريالی شو.

زما مور هم فکر کاوه چې زه له ګواښونو او مرګونو را تېرشوی او دې ته رسېدلی يم اوله دې وروسته به هم له هره ګواښه ژغورل کېږم.

د مصر د معبدونو ملايان وايي چې د هر چا نوم د هغه د برخليک استازيتوب کوي او له نوم څخه پوهېدای شو چې پر خلکو څه راځي. ښايي له همدې کبله وي چې پخپل ژوند کې له ډېرو ګواښونو سره مخامخ شوی يم. پردېو ملکونو او هېوادونو ته لاړم او د فرعونيانو په رازونو (هغه رازونه چې د مرګ سبب کېږي ) پوه شوم.

خو زه فکر کوم که ما بل نوم هم درلودای بيا به هم له دغو ستونزو او کړاونو سره مخامخ شوی وای او په ټوله کې زما په باور نوم د انسان په ژوند کومه اغېز نه لري.

خو کله چې چاته نيکمرغي يا بد مرغي ورمخه کړي، نو د دغه ډول ګروهې په مرسته خپل دردونه کموي ، او په نيکمرغۍ کې بيا ځان د هغه سعادت وړ بولي چې ورسېدلی دی.

زه په هغه کال وزېږدم چې د فرعون زوی پکې پيدا شوی و. د فرعون مېرمنې چې دوه

ویشت کاله یې فرعون ته زوی نه و زېږولی پر همدغه کال زوی وزېږاوه، خو د فرعون زوی په پسرلي یانې د وچکالی په موسم کې وزېږېد او زه په مني کې چې د اوبو د پریمانی وخت دی پیدا شوم. ۱

*(نیل سیند چې مصر خړوبوي د اروپا او اسیا د شمال د سیندونو پر خلاف په مني کې راخېژي او مستېږي او د مصر خلکو د نیل سیند د مستېدا لپاره خوشحالی کوله ځکه چې کرنیزې ځمکې به یې خړوبولې او دطبیعي سرې په شان خړه به یې پر ځمکې کښېښوله چې ورسره به دځمکې حاصل ډېرزیات شول نن سبا هم مصرله همدې نیل سیند څخه خړوبېږي خو کله چې د مصر په سوېل کې دالعالي ډیم یابند جوړ شو د نیل اوبه په مني کې کرنیزو ځمکې ته نه ورخېژي او پر دغه مهال ځمکو ته مصنوعي سرې ورکوي) ژباړن.*

زه نه پوهېږم چې کله او څنګه مې دې نړۍ ته سترګې رڼې کړې ،ځکه کله چې مور مې د نیل سیند پر غاړه وموندلم چې د لرګیو په یوې کجاوې کې پروت وم، د کجاوې سوري یې د ونو په کنډو یا سرېښو بند کړي ول. چې اوبه کجاوې ته ور ننوزي. زما د مور کور د سیند پر غاړه و او په مني کې چې به اوبه راختلې مور مې اړه نه وه چې د اوبو د راوړلو لپاره له خپله کوره لېرې ولاړه شي. یوه ورځ چې هغه د کور مخې ته ولاړه وه .هغه کجاوه یې ولیدله چې زه پکې پروت وم. وروسته یې راته وویل چې مرغان دې پر سر الوتل او سندرې یې ویلې.

مور مې کور ته بوتلم او نغري ته یې نژدې کړم چې تود شم، خپله خوله یې زما پر خوله کېښوده او په زوره یې خپله ساه زما په خوله کې پوه کړه چې هوا زما سږو ته ور سېږي او بیرته ساه واخلم. په هغه وخت کې ما کړیکه کړې وه خو ډېره کمزورې وه. پلار مې د بې وزلو سیمې ته تللی ؤ چې طبابت وکړي او دناروغانو د معالجې په بدل کې یې دوه هیلی او یوه پیمانه اوړه له خان سره راوړي ول. کله چې یې زما غږ واورېد فکر یې وکړ چې مور مې پیشینګوری کورته رواستی دی خو مور مې وویل دا پیشینګوری نه دی یو هلک دی او ته باید خوشحاله شې چې مونږ زوی پیدا کړی دی.

په سر کې مې پلار خپه او غوسه شو. په غوسه کې یې مور ته کونګ خطاب وکړ خو وروسته یې چې زه ولیدم موسکی شو او موافقه یې وکړه چې ما د خپل زوی په توګه ومني.

بله ورځ مې پلار و مور ګاونډیانو ته وویل چې خدایانو زوی ورکړی خو زه فکر نه کوم

چې هغوی به دغه خبره منلې وي ځکه چې هېڅکله یې نه و لیدلي چې زما مور دې امېندواره وي.

مور مې هغه کجاوه چې زه یې پکې موندلی وم زما د زانګو پر سر وځړوله او پلار مې یو مسي لوښی د معبد لپاره ډالۍ کړ چې زما نوم په عبادتځي کې د هغوی د زوی په توګه ولیکي.۱

(۱ په افغانستان کې هم له ډېرپخوا دا دود و چې د نویو زېږدلو ماشومانو نوم په قران مجید کې ولیکي چې د زېږېدو نېټه یې هېره نه شي خو دلومړي ځل لپاره په مصر کې په رسمي توګه د بچیانو د نومونو ثبتول پیل شول او بیا دغه چاره اروپا ته هم ورسېده او په اروپا کې مور و پلار د نده درلوده چې د ماشوم د زېږېدو نېټه او د هغه نوم د کلیسا په کتاب کې ولیکي او په همدې ډول د نوم لیکلو دود رامنځته شو. همغه ډول چې په دغه کتاب کې لولو د لومړي ځل لپاره دغه دود په مصر کې پیل شو او له هغه وروسته همغه ډول چې په دغه کتاب کې به یې ولولئ د هلکانو د سنتولو دود هم د لومړي ځل لپاره په مصر کې پیل شوی دی) ژباړن.

له هغه وروسته مې پلار چې طبیب ؤ سنت کړم ځکه وېرېده چې که مې د مصر د معبد ملایانو ته د سنتولو لپاره وسپاري نو د معبد د ملایانو چړو زخم عفوني کاوه. خو پلار مې یوازې ددې لپاره سنت نه کړم چې زما تپ چرک اوزوې ونه کړي. بلکه معبد ته یې ددې لپاره ونه لېږلم چې له مسي لوښي پرته یې باید د سنتېدلپاره معبد ته نورې ډالۍ هم ورکړې وای. پلار مې بې وسه ؤ او مسي لوښی هم ورته ډېر ګران بیه شی ښکارېد.

ځرګنده ده کله چې دغه پېښې کېدې زه پرې نه وم خبر او وروسته مې له پلاره په دې اړه پوښتنې کړې دي.

ترهغه وخته چې ماشوم وم، هغوی ته مې د پلار و مور په سترګه کتل. خو له ماشومتوبه وروسته او د ځوانۍ پړاو ته د ننوتلو پر مهال یې زما وهښتان را لنډ کړل او پلار و مور مې واقیعت راته بیان کړ. دوی له خدایانو وېرېدل او نه یې غوښتل چې همېشه له دغو سترو دروغو سره ژوند وکړي

زه هېڅکله پوه نه شوم چې زما اصلي مور و پلار څوک دي خو په دې باور لرم چې زما مور و پلار د بې وزلو له پرګنې څخه ول. یا ښایي شتمن کسان وو خو زه لومړنی یا وروستنی ماشوم نه وم چې په دغه برخلیک اخته شوی وي او نیل سین ته یې اچولی وي.

په هغه وخت کې طبس د مصر لومړی درجه او د نړۍ ستر ښار و او هلته د ډېرو شتمنو مانۍ ودانې وې.

د طبس شهرت او اوازې ددې سبب شوې چې ډېر شمېر بهرنیان له نورو هېوادونو راشي او په طبس کې ژوند وکړي. ډېر نور پکې بې وزله ول. خو دغه ښار ته ددې لپاره راتلل چې شته ترلاسه کړي.

د سترو معبدنو او د شتمنو د مانیو په څنګ کې د نیل پر دواړو غاړو باندې تر هغه پورې چې سترګو کار کاوه د بې وزلو جونګړې ودانې وې او په دغو جونګړو کې هم مصري او هم نورو بېوزلو خلکو ژوند کاوه.

ډېر خله به بېوزلو مېرمنو خپل بچیان په ځنبیلونو یا کجاوو کې کېښول او نیل ته به یې سپارل چې د سین پر لوري لاړ شي. یا هم شتمنو مېرمنو خپل نامشروع بچیان په کجاوو کې کېښول او نیل ته یې سپارل. خوله دې سره سره چې مصریانو به خپل ماشومان له زېږېدو وروسته سنتول خو زه سنت شوی نه وم نو فکر کوم چې زما مور و پلار بهرنیان ول.

کله چې له ماشومتوبه د هلکتوب او تاندې ځوانۍ پړاو ته ورسېدم زما زلفې یې غوڅې کړې او مورمې زما ويښتان او د ماشومتوب بوټان دلرګیو په یو صندوق کې کېښودل او هغه کجاوه یې هم راوښودله چې زه یې پکې پیدا کړی وم او له نیله پکې تېر شوی وم.

و مې کتل چې د کجاوې لرګي زېړ شوي او ځیني لرګي په پړي ترل شوي ول. مورمې ویل کله مې. چې دغه کجاوه پیدا کړه همدغه پړي هم ورسره ول.

د ځنبېل یا کجاوې ظاهري بڼې دا ښوده چې زما مور و پلار شتمن نه ول ځکه که شتمن وای نو په یوې ښې کجاوې کې به یې کېښولی او د نیل څپو ته به یې سپارلی وم.

او س چې بوډا شوی یم د ماشومتوت پړاو د یوې رڼا په شان زما له سترګو تېرېږي او په دې برخه کې د یوه شتمن او بېوزله ترمنځ توپیر نه ګورم ځکه چې یو بېوزله بوډا هم د شتمن په شان خپل ماشومتوب رنګین ګوري او ټولو ته داسې ښکاري چې د ماشومتوب پړاو تر اوسني حالته ډېر ښه و.

زمونږ کور د نیل پر غاړه . معبد ته نژدې په یوې بېوزلې سیمې کې و او کورته څېرمه یو بندر و . چې د نیل کښتیو به پکې بارونه اوچتول یا به یې خپل بارونه ښکته کول.

ددې سیمې په تنګو کوڅو کې سلګونه شرابخانې وې چې د نیل ماڼوګانو به پکې

شراب څښل او هغه راز په دغو کوڅو کې د عياشۍ لپاره کورونه جوړ شوي ول چې د ښار شتمن به په روانو تختونو کې د عياشۍ او سات تېرۍ لپاره ورتلل. په دې ښوزله سيمې کې اوچت اولوی کسان د ماليـاتو د ترلاسه کولو مامورين، افسران او د کښتيو څوتنه مانوګان او د معبدونو څو تنه ټيټ پوړي ملايان ول. زما پلار هم د سيمې په لويو کسانو کې شمېرل کېده او زموږ کور هم د ښوزلو د کورنو په پرتله چې له ختو جوړ شوي ول د مانۍ په شان ښکارېده.

موږ په سرای کې يو وړوکی بڼ درلود چې پلار مې پکې د ناروغانو نه اپښې وه. دغه وړوکی بڼ د ونو په يوه کتار کې له کوڅې بېلېده او د بڼ په منځ کې يو حوض و چې د منې په موسم کې يانې د نيل د سين د مستېدا پر مهال مو اوبه پکې اچولې.

زموږ کور څلور کوټې درلودې چې په يوې کې به موږ پخلی کاوه او يوه هم د پلار د ناروغانو کتنځی و.

په اونۍ کې به يوځل يوه نوکره زموږ کورته راتله او زما له مور سره يې د کور په کارونو کې مرسته کوله او په اونۍ کې به يوځل يوه مېرمنه راتله چې زموږ جامې د نيل غاړې ته يوسي او و يې وينځي ((*تول هغه معلومات چې په دغه کتاب کې د طبس د ښار د يوې متوسطې کورنۍ په هکله لولئ د تاريخي اسنادو او مدارکو په اساس سم دي او د مصر په پاپيروسونو يانې د مصر په مکتوبو اثارو کې شته او داسې تصور ونه کړئ چې ليکوال د ننې ژوند په تقليد کې دغه خبرې له ځانه ليکلي دي ))ژباړن*

زه به کرۍ ورځ تر يادې شوې ونې لاندې څملاستم او کله چې به کوڅې ته تلم يو لرګينه تمساح به مې په پړي تړله او له ځان سره مې د کوڅې په ډبرو کې کشوله. دا زما لوبتکه وه او ټولو ماشومانو به دغې سورخولې تمساح ته په ډېر حسرت سره کتل او زړه به يې کېده چې زما په شان دلوبو يو شی ولري. زه په دې پوهېدم چې يوازې د اشرافو زامن دغسې لوبتکه لرلای شي، نو نور هلکان مې هم پرېښودل چې پرې لوبې وکړي. دغه دلوبو شی د شاهي دربار ترکاڼ زما پلار ته جوړه کړی و، ځکه چې زما پلار د ترکاڼ د هغې دانې درملنه کړې وه چې هغه به يې د ناستې پر مهال ځوراوه. د سهار لخوا به مور بازار ته بيولم او که څه هم ډېر شيان به يې نه اخيستل خو عادت يې درلود د هر شي د اخيستو لپاره د اوبو د يوه ساعت په اندازه چنې ووهي.

*((د اوبو ساعت هغه کاسه وه چې لاندې به يې کوچنی سوری ورکړی و او په يوه بل*

لونښي کې به یې ایښې وه. د پورتنی کاسې له سوري څخه به او به لاندې کاسې ته ورڅڅېدې او هغه به یې ډکوله. هر ځل چې به کاسه ډکه شوه دا به یو ساعت و. بیا به یې کاسه خالي کوله بېرته به یې او بو ته کېښودله او په دې ډول دغه ساعت تر ۲۵ کاله مخکې هم په ځینو سیموکې دود و.)

د مورله خبرو داسې ښکارېده چې هغه فکر کوي پیسې لري خو ددې لپاره چنې وهي چې د پیسو بچت کول ماته راوښیي. ویل به یې شتمن هغه نه دی چې سره او سپین لري بلکه هغه دی چې په لږو ګوزاره وکړي.

له دې سره سره چې هغې دغه ډول خبرې کولې خو زه به د هغې له سترګو څخه چې دبازار تهٔ کرانو ته به یې کتل پو هېدم چې رنګین پشمي ټوکر، د عاج غاړکۍ او د شترمرغ بڼکې یې خوښېږي.

زه تر هغه چې لوی شوی نه وم په دې نه پو هېدم چې په مور مې شته، ګران دي او ټول عمر یې هیله کوله چې شتمني ولري، خو له دې چې دبېوزلو د سیمې د یوه طبیب مېرمن وه په لږو یې ګوزراه کوله.

د شپې مهال به مور راته کیسې کولې، هېڅکله مې نه هېرېږي چې د دوبي په ګرمې هوا کې به مونږ په برنډې کې ویده کېدو او مور مې کیسې پیلولې، پلار به مې اعتراض کاوه چې ولې ددغه ماشوم فکر په چټی شیانو ډکوې؟

مور به مې د پلار د اعتراض له امله غلې شوه خو کله چې به مې د پلار خرهار پیل شو مور به مې پاتې کیسه هم وکړه.

کله به یې د سینوهه او کله به یې د دیوانو او ګوډګرو کیسې کولې. زه اوس پوهېږم چې هغې به له دغو کیسو څخه خوند اخیست.

کله چې به ما دغه کښې اورېدلې له دې امله مې خوښېدې چې فکر مې کاوه همدا شېبه په دغو چټلو او له مچانو ډکو کوڅو کې ژوند نه کوم.

کله به یاد د هغو شنو او زرینو لرګیو بوی چې له کښتیو به کښته کېدل زما پوزې ته را رساوه او کله به مې د هغه مېرمنو د عطرو بوی احساساوه چې په روان تخت کې به تېرېدلې.

ما ښام چې به کله زمونږ د خدای آمون( مقصد یې لمر دی ژباړن) زرینه کښتی له نیله او د لوېدیځ له جلګو څخه په تېرېدا د غونډیو په لمنو کې ورک کېده په ساحل کې له

جوړو کورنو د تازه ډوډۍ او سره کړیو کبانو بوي لټیده دغه وږم په ماشومتوب کې زما ډیر خوښیده او نن چې بوډا شوی یم بیا مې هم خوښیږي

لومړنی ښوونځی چې ما پکې د ژوند درس زده کړ زمونږ د کور برنډه وه. د شپې مهال به د ډوډۍ پر وخت مور د خپل کور په برنډه کې په کټونو کېناستو. مور به مې خواړه وېشل او زمونږ په مخکې کې به یې کېښودل. تردې مخکې چې پلار مې د ډوډۍ خوراک پیل کړي د هغه په لاسونو به یې او به ور اچولې.

کله به مې د ماښوګانو یوه مسته ډله لیدله چې شراب به یې څښلي ول. زمونږ په کوڅه کې به تېریدل او زمونږ د کور ترونې لاندې به یې خپل احتیاجات پوره کول

*۱) په طبس کې د بې وزلو کورونه له کوڅو د دیوالونو په وسیله نه بلکه د بانسونو او لرګیو په وسیله بېلېدل ژباړن)*

پلار مې احتیاطي کاری سړی و. په هغه وخت کې به یې څه نه ویل خو کله چې به هغوی لاړل. نو ده به ویل یوازې تورپوستي او سریانان په کوڅه کې خپل احتیاجات پوره کوي او یو مصری هېڅکله داسې کار نه کوي. دغه راز به یې ویل کله چې یو منګی شراب وخوري په لښتي کې لوېږي او کله چې په ځان پوهېږي ګوري چې جامې یې چا لوټلې وي.

کله چې به د عطر و تېزه وږمه په برنډې کې احساس شوه او داسې ښځې چې رنګا رنګ جامې به یې اغوستې وې. مخونه. بانه او شونډې به یې رنګ کړې وې او په کوڅه کې به تېرېدې نو زه به پوهېدم چې دغه ډول ښځې له عادي ښځو سره توپیر لري. دوی به له هغو کورونو راوتلې چې د عیاشی لپاره جوړ شوي ول.

پلار به مې ویل له هغو ښځو ډډه کوه چې تا ته وایي ښومره ښکلی هلک یې! هېڅکله د هغوی بلنه مه منه او کورنو ته یې مه ورځه خکه چې د هغوی زړونه لومې دي او د دغو ښځو په ګوګل کې داسې اور دی چې تا به وسوځوي. ددغو خبرو له امله زه له ماشوموالي له ښکلو ښځو څخه چې له عادي ښځو سره توپیر لري او دغه راز د شرابو له منګیو وېرېدم

له ماشوموالي څخه پلار خپل کتنځي ته بیوم چې د هغه د معالجې رودې او لارې چارې وګورم. زه ډېر ژر د خپل پلار له ټولو کارونو. پټیو او ملهمونو سره بلد شوم. کله چې به هغه دیوه ناروغ د رملنه کوله ما به هغه ته درمل. پټۍ. شراب او او به ورکولې. مور مې د نور ښځو په شان له وینو او زوې لرونکو دانو ډارېدله او هېڅکله زما د پلار کتنځي ته نه تله. یوازې هغه وخت به راغله چې پلار به مې ورته ناري کړې.

زه به ځير وم چې پلار به مې ناورغانو ته درې خبرې کولې. ځينو ته به يې ويل ستاسې درملنه لږ وخت ته اړتيا لري. ځينو ته به يې ويل ستاسې د ناورغۍ درملنه کېداى شي او ځينو ته به يې يوه ټوټه پاپيروس (د مصر معروف کاغذ) ورکړ او ورته ويل به يې دا بيت الحيات ته يوسه چې هلته ستاسې درملنه وکړي. بيت الحيات هغه ځاى و، چې د سختو ناورغانو درملنه به هلته کېده او کله چې به يې کوم يو هلته واستاوه نو ويل به (اې خوارکيه!).

له دې سره سره چې پلار مې د بېوزلو طبيب و، کله کله به ورته شتمن ناروغان هم راتلل او کله خو به د ساعت تېرې او عياشيو له کورنو څخه هم ځينې کسان زما پلار ته راتلل چې ګران بيه کتان کالي به يې اغوستي ول.

کله چې اووه کلن شوم مور مې د ماشومتوب لنګ را واغوست او د آمون معبد ته يې بوتلم چې د مصري خدايانو تر ټولو ښکلى او ستر معبد و، هلته يې د دې لپاره بوتلم چې يوه قرباني ووينم.

يو اوږد واټ چې په دواړو غاړو کې يې په مشخصه اندازه ابوالهول ناست و، تر معبده غځېدلى و او کله چې معبد ته ورسېدم ومې کتل چې د معبد د پوال دومره اوچت و، چې مايې پورتنۍ برخه په سختۍ سره ليداى شوه.

کله چې د معبد انګړ ته ننوتو نو پلورونکو هر يوه د مړو کتاب (په نړۍ کې تر ټولو پخوانى ليکل شوى کتاب همدا مصرى کتاب دى چې د مړو کتاب نومېږي) زما مورته وړاندې کاوه خو مور په کور کې د مړو يو کتاب درلود بل ته مو اړتيا نه وه.

مور مې له خپله لاسه د مسو يو بنګړى را وايست او د قربانۍ په مراسمو کې د ګډون د حق لپاره يې معبد ته ورکړ. د معبد ملايانو سپينې جامې اغوستې وې او سرونه يې خرېيلي او بيا داسې غوړ کړي ول چې پرک يې واهه.

دوى پر يوه غوايي راټول ول او حلالاوه يې. د غوايي د دواړو ښکرانو په منځ کې يې يو مهر خوړند کړى و چې داسې يې ښوولې، ددې سخوندر په بدن کې يو تور وېښته هم نشته.

کله چې يې غويى حلال کړ د مور له ستر ګو مې اوښکې وبهېدې. خو ما د غوايي حلالوو ته پام و نه کړ بلکې د معبد ستنو او د جنګونو انځورونو ته مې کتل چې پر د پوالونو کښل شوي ول.

کله چې له معبده را ووتو . مور مې زما له ښځو ځخه زاړه بوټان و ايستل او نوي هغه يې را پر پښو کړل کله چې کور ته ورسېدو دغرمې له ډوډۍ وروسته مې پلار پر سرلاس راکښښود او راته يې وويل ته اوس اووه کلن شوې او بايد ځانته يو کسب غوره کړې نو غواړې څه کاره شې ؟ ما وويل نيت مې دا دی چې سرتېری شم ، ځکه تر ټولو غوره لوبه چې ما به په کوڅه کې له ماشومانو سره کوله . د سرتېرو لوبه وه. ما به ليدل چې سرتېرو ځلانده توري درلودې او په واټونو کې به يې ګاډۍ په ډېر زوره تېرېدلې او په ارابو يا تيرونو کې به يې رنګارنګ رپې رپېدل.

له دې پرته پر دې هم پوهېدم چې سرتېري ليک و لوست ته اړتيا نه لري او ما له هغو ماشومانو ځخه چې ښوونځيو ته به تلل دليک و لوست پر مهال د وهلو او ځورونو ډېرې خبرې اورېدلې وې.

دوی به ويل ښوونکی د هغه ماشوم وهښتان دانه دانه شکوي چې له بې پروايۍ خپله ليکدړه ماتوي.

پلار مې زما له ځواب سره په سوچونو کې ډوب او اغېزمن شو. بيايې زما مورته وويل چې ختين ګړی ورکړې مورمې ګړی ورکړ پلار مې په يوه لاس زه ونيوم او په بل کې يې ګړی ونيو او د نيل غاړې ته يې بوتلم. د نيل پر غاړه مې وليدل چې ځينې پنډيان له ډېرو ځخه بارونه را کوزوي. يو ځارونکی يې پر ملا - ملا باندې په متروکې وهي . پنډيان چې خولې پرې راماتې وې ستړي ستومانه يې بارونه راکوزول او بېړۍ يې تشولې.

پلار مې وويل. وګوره د غه کسان پنډيان او جواليان دي. د هغوی پوستکی دومره سوځوليدلی چې د تمساح تر پوستکي هم پنډ شوی دی . خواړ دي تر ښکا پورې تر همداسې متروکې لاندې زيار ګالي او کله چې د شپې کورته ستانه شي نو خواړه يې پياز او ډوډۍ وي.

د کروندګرو ژوند هم همداسې دی او ټول هغه کسان چې پخپلو دواړو لاسونو کار کوي همداسې ژوند کوي.

ومې ويل ، پلاره نه غواړم چې پنډی يا کروندګر شم نيت مې دی چې سپاهي شم ، سپاهيان برېښنده توري لري، دځينو په غاړو کې د سرو زرو غاړه کۍ وي، له جنګونو ځخه سره و سپين زر ، وينځې، مريونه راولي او خلک يو بل ته دهغوی د جنګونو او مېړانې کيسې کوي.

پلار مې څه ونه ويل زه يې له ځانه سره له هغه ځايه رهي کړم ، د شرابو يوه پلورنځي ته ورغی او په منګي کې يې شراب را واخيستل او رهي شو.

وروسته بيا د نيل پر غاړه يوې ختيځې جونګړې ته ورسېدو پلار مې سر وردننه کړ او ناري يې کړې( اين تب ).... (اين تب ).....

يو خيرن بوډا چې يو لاس يې درلود او داسې لنګ يې اغوستی و، چې له خيرو يې اصلي رنګ نه معلومېده له جونګړې راووت. ما پلار ته په حيرانتيا وويل پلاره آيا زړه ور او مشهور سپاهي اين تب همدا دی؟

پلار مې بوډا ته سلام وکړ. هغه سرې خپل لاس د سپاهيانو په دود پورته کړ او عسکري سلام يې وکړ. د هغه د کوټې په مخکې اوړده څوکۍ ياهغې ته ورته کوم شی نه و. نو اړ شوو. چې پر ځمکه کېنو.

پلار مې د شرابو منګی د هغه مخې ته کېښود. هغه هم په يوه لاس منګی خولې ته نږدې کړ او په حرص سره يې وڅښل.

پلار مې وويل اين تبه! زما زوی سينوهه هم غواړي سپاهي شي. ما تا ته راوست چې زموږ د سترو جنګونو يوازېنی پاتې اتل وګوري او د دغو جنګونو کيسې ستا له خولې واوري.

اين تب چې ګنې سپينې وروځې يې درلودې. خوله يې کنډاسه او څېره يې قهرجنه وه وويل په امون قسم درکوم. ايا ته ليونی شوی يې؟ بيا يې په کنډاسه خوله مرګونې خندا وکړه او ويې ويل: که ما دهرې ښېرې او ښکنځلې په بدل کې چې ځانته مې کړې دي، يو غوړپ شراب تر لاسه کړي وای نو هغه حوض به مې ډک کړی و. چې فرعون د خپلې ښځې د لمبېدا لپاره جوړ کړی دی. ان د يوه کال لپاره به مې د طبس ټولو او سېدنکو ته شراب ورکولای شوای.

ما ورته وويل. داسې مې اورېدلي چې عسکري د نړۍ له وياړمنو دندو څخه ده.

اين تب وويل په دغه هېواد کې شهرت او عسکري د حيواناتو خوشايي دي. چې مچان پرې راټولېږي. ماچې له خپل شهرت څخه کومه استفاده کړې هغه داده. چې نن سبا يې نورو ته کيسې کوم چې يوه ګوله ډوډۍ او يو غوړپ شراب راکړي او هغه هم په سلو کې يو کس راکوي. نو تا ته وايم چې د نړۍ په دندو او کسبونو کې هېڅ يو د عسکرۍ په شان بد نه دی او ديوه سپاهي د ټول ژوند وياړونه دغه ژوند دی چې ته يې ګورې.

له هغه وروسته این تب د منګي ټول شراب پر سر واړول او د شرابو تودوخې د هغه مخ سور کړ . سر یې اوچت کړ او ویې ویل . ایا زما د غه ډنګر او له ګونځو ډک ورمېږ ګورې؟ دا هغه ورمېږ دی چې یوه ورځ پېنځه امیلونه پکې ځوړند ول او پخپله فرعون هغه زما غاړې ته اچولي ول. کله به چې د جګړې له ډګره راستنېدم دومره غوځ شوي لاسونه به مې راوړل چې زما د کېږدۍ په مخ کې به د هغو یو ځلی جوړ شو . خو نن سبا له دغو ټولو ویاړونو او سروزرو ما ته هېڅ هم پاتې نه شول.

سره زر مې له منځه لاړل. مریان. وینځې مې مړه شوي. یا هم وتښتېدل او زما ښی لاس هم په جنګ کې غوځ شو .

تر هغه چې ځوان وم شپه و ورځ به مې په دښتو کې په لوږه او تنده کې مبارزه کوله. اوس چې بوډا شوی یم بیا هم وږی او تږی یم. که دې له پلاره پوښتنه وکړې چې کله دیوه عسکر لاس پرې کوي او بیا هغه تېپي لاس په سرو کړو غوړو کې ننباسي په دغه کس څه تېرېږي؟ هغه یو ډاکټر دی او دغه پوښتنه به ډېره ښه درته ځواب کړي.

زما د بدن د هر غړي غوښه او ټوټې د جنګ په یوه ډګر کې پاتې دي خپل غاښونه او وېښتان مې توی شول . که نن سبا ستا د پلار په شان کسان له ما سره مرسته ونه کړي . باید د امون د معبد پر وړاندې سوال وکړم.

له دغو خبرو وروسته این تب د شرابو منګي ته وکتل او ویې ویل له بده مرغه خلاص شول.

پلار مې له لاسه د مسو یوه کړۍ وایستله او هغه ته یې ورکړه چې د شرابو بل منګی وپېري. هغه یو ماشوم را وغوښت او ویې ویل دغه مسي بنګړې یو سه او شراب پرې واخله . پلورنکي ته ووایه چې ښه شراب نه غواړم. بلکې په منځنیو او مناسبو شرابو باندې دې. ټول منګی را ډک کړي او پاتې مس دې بېرته راولېږي

ماشوم ولاړ او ما له ځان سره وویل . د عسکرۍ ګټه دا ده چې یو سپاهي دې لیک لوست ته اړتیا ونه لري او باید ښونځي ته د تګ زیار و نه ګالي.

این تب وویل سمه خبره دې وکړه. یو عسکر لیک لوست ته اړتیا نه لري او باید یوازې وجنګېږي . خو که سواد ولري پر نورو عسکرو به قوماندانې وکړي او نورو ته به حکمونه کوي چې وجنګېږي.

ناشونې ده چې یو نالوستی سړی صاحب منصب شي ان یوه سل کسیزه ډله هغه کس ته

نه سپاري چې لیک لوست نه شي کولای. تل همداسې وو او همداسې به وي.

*(میکاوالتاري دغه کتاب د تاریخي اسنادو له مخې چې د پاپیروس په کاغذ لیکل شوي ول لیکلی دی او هغه اسناد چې فنلنډي لیکوال تري استفاده کړې ده. تر لږه له مېلاده یو زرو پنځه سوه کاله مخکې لیکل شوي دي او درې زره پنځه سوه کاله مخکې په مصر کې هغه څوک د پوځ افسر یا صاحب منصب نه شوای جوړېدای چې لیک لوست به یې نه وزده. خو په یویشتمه پېړۍ کې په ډېرو هېوادونو او افغانستان کې ډېر نالوستي کسان جنرالان او مارشالان شول. ژباړن)*

نو اې هلکه! که ته هم غواړې په راتلونکي کې په عسکرو حکمونه وچلوې. باید لیک لوست زده کړې او بیا به هغه کس هم درته سر ټیټ کړي چې په غاړه کې یې د سرو زرو امیل وي. پر روان تخت به سپور وې او غلامان به دې د جنګ ډګر ته بیایي.

په شرابو پسې تللي ماشوم له شرابو ډک منګی را اخیستی و او بېرته راستون شو چې ور سره د بوډا سترګې له خوشحالۍ بربښېدې او ویې وویل:

ستا پلار هېڅ وخت جنګ نه دی کړی. ان د یوې لیندۍ مزی نه شي کشولای او یوه توره له پوښه نه شي ایستلای خو له دې امله چې لیک لوست کولای شي. نن سبا ډېر ښه ژوند لري او له دې امله چې نیک خویه انسان دی زه ورسره بخیلي نه کوم.

کله چې ما ولیدل بوډا منګی په لاس کې پورته کړ او له دې وېرې چې د هغه نشه پر موږ اغېزه ونه کړي او موږ هم د اوبو په لښتي کې ونه لوېږو چې نور خلک مو جامې ولوټي. نو د پلار لستوڼي مې راکاږه چې له هغه ځایه لېرې شو. کله چې موږ لېرې شوو این تب د جنګ یوه سندره ویله او هغه ماشوم ورته خندل چې ده ته یې شراب راوړي ول.

زه چې سینوهه نومېږم له خپلې دې پرېکړې تېر شوم چې په راتلونکي کې به سپاهي کېږم. او په دې توګه بله ورځ ښوونځي ته روان شوم.

# دویم څپرکی

## ښوونځي ته تګ

زما پلار دومره توان نه درلود چې ما په معبد کې جوړ شوي ښوونځي ته واستوي، ځکه چې هلته د اشرافونو او د معبد د ملایانو یا دلومړۍ لیکې د کاهنانو زامنو او لوړو سبق وایه او د لیک لوست د زده کولو لګښت یې ډېر زیات ؤ.

زما ښوونکی د دریمې درجې ملا ګڼل کېده چې د خپل کور په برنډه کې یې ښوونځی جوړ کړی و. موږ به پسرلي او اوړي کې په برنډه کې درس وایه او په ژمي کې به کوټې ته تللو.

د هغه په شاګردانو کې د افسرانو، سوداګرو، او کوچنیو ملایانو زامن ول. چې پلرونو یې هیله کوله زامن یې د کانونو حساب کتاب وکړای شي او یا، دا حساب وکړای شي چې د پوخ خره او اسان په غوجله کې څومره واښه خوري او د جنګ په ډګر کې د اسونو د وښو خرڅ څومره دی.

د نړۍ په ستر ښار طبس کې په کورونو کې جوړ شوي دغه ډول ښوونځي ډېر زیات ول او په دغو ښوونځیو کې د محصلینو د زده کړې لګښت ډېر نه و، ځکه چې شاګردانو خپلو استادانو ته د مسو بنګړي نه ورکول، بلکې هغوی ته یې خواړه او تهو کران ورکول.

د مثال په توګه د سکرو پلورونکي زوی به ښوونکي ته په ژمي کې سکاره او لرګي ورکول، د تهو کر او بدونکي بچیانو به ورته تهو کر راوړ او کروندګرو به واښه او غنم ورکول.

خو زما پلار به د تعلیم لګښت په درملو پوره کاوه او کله به ما خپل ښوونکي ته د درملیزو بوټو جوشانده ورکوله چې په شرابو کې به خیشته شوې وه.

له دې امله چې موږ ښوونکو ته د هغه د ورځني ژوند توکي برابرول هغه به راسره سختي نه کوله او که به کوم ماشوم پر خپلې تختې ویده شو، سزا یې دا وه چې پر بله ورځ به یې خپل معلم ته لږ شات او باقلي ورکول.

کله چې به کوم ماشوم ښوونکي ته یو منګی بیر (داوربشو اوبه) ور وړلې نو هغه به

زموږ لپاره د جشن ورځ وه . ځکه چې کله به ښوونکي بیر وڅښل نو تعلیم او لیکنه به یې هېر شول او په کندا سه خوله به یې موږ ته د خدایانو په هکله ډوخندونکې کیسې کولې. موږ به دومره وخندل چې په کوڅه کې تېریدونکي خلک به ودرېدل او غوږ به یې ونیو چې موږ ولې خاندو .

خو کله چې زه لوی شوم. پوه شوم چې زموږ ښوونکي یو ستر هدف درلود او غوښتل یې په دغو خندونکو کیسو موږ په ژوند کې له اصلي دندو سره بلد کړي او په دې مو پوه کړي چې په ټولو خدایانو کې یو خدای شته چې سر یې د شغال په شان دی. دغه خدای تل د انسانانو اعمال څاري او که څوک بد کار وکړي دغه خدای. انسان هغه ځناور ته اچوي چې نیم بدن یې د تمساح او نیم نور یې د سمندري اس په شان دی او دغه ځناور به یې وخوري.

هغه به ویل یو بل خدای هم شته چې د سیندونو له پاسه کشتۍ چلوي او له مړینې وروسته انسان هغه ځای ته بیایي چې باید هلته نیکمرغه شي.

په دغه ښوونځي کې له یوې مودې تعلیم وروسته یوه معجزه وشوه او هغه دا چې کله مې دوه شیان سره یوځای کړل نو په مانا یې پوه شوم.

کله چې دغه تصویر پر تختې وایستل شي ، نو تر ټولو کم عقله کسان هم پرې پوهېږي چې څه مانا لري.

خو کله چې دوه یا څو انځورونه سره یوځای وکښل شي یوازې لوستی کس پرې پوهېږي چې دغه تصویرونه څه مانا لري.

کله چې تاسې پر تختې باندې د یوه سړي انځور وکاږئ او یوه نالوستي کس ته یې ورکړئ ، هغه پوهېږي چې دا یو سړی دی او که د یوه تمساح انځور رسم کړئ او هغه یوه نالوستي کس ته ورکړئ . هغه پوهېږي چې دا یو تمساح دی.

خو کله چې یو څوک په دې پوه شول چې یو سړی .له یوه تمساح او یوې ونې سره یوځای څه مانا ورکوي او د دغو انځورونو له یوځای کولو ستاسو موخه څه ده ؟نو دغه کس لوستی دی .( په مصر کې هغه وخت انځوریز خط دود وو .ژباړن)

له هغې ورځې چې زه په دې پوه شوم چې دوه یوځای شوي انځورونه څه مانا لري ؟نور مې دې ته اړتیا نه درلوده چې بوډا معلم مې د درس زده کولو ته وهڅوي.

دومره شوق راسره پیدا شوی و ، چې کله به کور ته راغلم له پلاره به مې غوښتل چې څو

انځورونه سره ونښلوي چې زه یې مانا پیدا کړم. د زده کړو پر وخت متوجه شوم چې له نورو سره یوځه توپیرلرم. مخ مې ګردی او لاسونه او پښې مې ښکلي او ظریف ول. ځکه خو هلکانو ځورولم او د کروندګر زوی به مې ستوني ونیوه او ویل به یې ته د نجونو په شان یې. زه به مجبوره شوم چې په خپل قلم د هغه لاس ټینګ کړم چې خوشې مې کړي.

خو د دې اپوټه یوه هلک چې پلار یې افسر و. له ما سره مینه کوله. د غه هلک به هره ورځ ټولګي ته یو موټی خاوره راوړله او هلته به یې د حیواناتو مجسمې جوړولې.

یوه ورځ یې زما مجسمه جوړه کړه او ماته یې راکړه او کله چې ما مجسمه کورته راوړه. د مور مې خوا بده شوه او وې ویل. دا د کوډګرو کار دی. خو پلار مې پوه کړه چې که د مجسمې جوړول کوډې وي. نو د فرعون په کور کې به یې دومره ډېرې مجسمې نه اېښودې.

په ښوونځي کې زما د زده کړې یوه موده تېره شوه. تر دې چې یوه ورځ زما پلار نوې جامې واغوستې او زه یې له لاسه ونیولم او د آمون معبد ته یې بوتلم. ویل یې نیت لرم چې تا په دارالحیات کې داخل کړم چې هلته د طبابت تعلیم وکړې.

د دارالحیات ښوونځي کې د داخلېدا لپاره د معبد د ملایانو هو کړه پکار وه. او پلار مې له دې امله چې ټول عمر یې د سوالګرو درملنه کړې وه له ملایانو سره راشه درشه نه درلوده او دې چارې په ژوند کې ډېر تاوان ور اړولی و. ځکه چې په مصر کې هرځه او ټول کارونه د ملایانو په لاس کې دي. دوی د دارالحیات د ښوونځي لپاره شاګردان انتخابول. مالیه دوی ټولوله او د نیل سیند د راختو او مستېدو پر وخت به هم د سیند د راختو اندازه دوی معلوموله.

دوی دومره قدرت لري چې کله که فرعون څوک محاکمه کړي او دغه محکوم سړی په ملایانو کې څوک پېژندوی ولري نو د فرعون حکم هم لغوه کوي.

پلار مې په دغه معبد کې څوک نه پېژندل او مجبور شو په انګړ کې پر ځمکه کېني چې د نورو په شان نوبت واخلي او بیایې له یوه ملا سره خبرې وکړي.

مونږ چې سهار معبد ته تللي وو. تر مازیګره پورې هلته کېناستو خو نوبت را نه غی.

په دې وخت کې یو کس معبد ته ننوت چې پلار مې ولید نو ویې پېژاند او ویې ویل دا پاتور دی. ما چې په دارالحیات کې درس وایه. دی زما ټولګیوال و. خو اوس د فرعون د کوپړۍ سوری کونکی دی.

زه په هغه وخت کې نه پوهېدم چې د کوپړۍ سوری کونکی څه کوي او څه ورتیاوې لري

چې نور ترې بې برخې دي. وروسته چې طبیب شوم، پوه شوم چې د جمجمې سوري کونکی هغه څوک وي چې د فرعون او نورو کسانو د سر کوپړۍ سوری کوي او هغه غدې او تومورونه ترې راباسي چې په سر کې پیدا کېږي .

له دې پرته کوپړۍ سوری کونکی هغه کس دی چې کوپړۍ سوری کوي له سر څخه خطرناک او زهرجن بخارونه راباسي چې په سر کې تولېږي او انسان ته ستونزې پیدا کوي.

پلار چې مې پاتور ولید، له ځایه پاڅېد او سلام یې ورته وکړ. پاتور هغه وپېژاند، لاس یې په اوږه ورکېښود او ویې ویل دلته څه کوې؟

پلار مې ځواب ورکړ . ددې لپاره راغلی یم چې له ملایانو اجازه واخلم او خپل زوی په دارالحیات ښونځي کې داخل کړم.

پاتور وویل ستاسې هڅه ګټه نه لري او ستاسې غوښتنه به ونه منل شي. خو زه به ستاسې کور ته درشم او په دې اړه به له تاسې سره مشوره وکړم.

پر بله ورځ مې پلار سهار و ختي بازار ته لاړ او د خپل میلمه پاتور لپاره یې یو غاز، لږ شات او څو دانې کبان راوړل او هغه یې زما مور ته ورکړل، چې غاز پوخ کړي، کبان سره کړي او په شاتو سره پتیرې پخې کړي.

کله چې د خوړو په زړه پورې بوی په کور کې خپور شو سوالګر او رانده د کور مخې ته راټول شول مور مې چې هرڅو مره ورته وویل چې ولاړ شيء دوی نه تلل او بالاخره مې مور اړه شوه چې یوه اندازه وچه ډوډۍ د غاز په غوړو کې دننه کړي او پر هغوی یې ووېشي چې لاړ شي.

پلار مې په یومنګي کې خوش بویه اوبه واچولې. ماته یې راکړ او ویې ویل کله چې پاتور راشي د هغه پر لاسونو یې ور واچوم.

مور مې دکتان یو ټوکر زما په څنګ کې راکېښود، او ویې ویل کله چې دې د هغه پر لاسونو اوبه ور واچولې نو پر دغه کتان د هغه لاسونه وروچ کړه.

دغه کتان هغې د خپلې جنازې د پردې لپاره برابر کړی ؤ.

مور مې فکر کاوه چې پاتور به له معمول سره سم مازدیګر زموږ کور ته راشي خو مازدیګر تېر شو، شپه راخوره شوه پاتور رانغی.

زه چې وږی وم د پاتو ر په نه راتګ خپه شوم ځکه پوهېدم چې که پاتور رانه شي ماته

هم خواړه نه راکوي.

پلار مې دومره خپه و چې له تیارۍ وروسته یې څراغونه روښانه نه کړل او زه او پلار په برنده کې په یوه کټ ناست وو او جرئت مو نه شو کولای چې یوبل ته وګورو.

زه پر هغې ورځ پوه شوم چې غفلت یاد وړو کسانو پر وړاندې د لویو کسانو بې پروایي دبېوزلو او هغو کسانو لپاره چې کمزوري دي څومره کړوونکې خبره وي.

بالاخره په کوڅه کې مشالونه ښکاره شول او د مشالونو ترشا یو روان تخت تر سترګو شو چې دوه تور پوستي یې لېږدوي. خو د مشالونو لېږدونکي مصریان ول.

کله چې پاتور پر ځمکه ګام کېښود. پلار مې لاس په نامه ورته ودرېد. پاتور یا له ډېرې مینې او یا هم ددې لپاره چې لاس چېرته تکیه کړي. زما د پلار پر اوږه لاس کېښود.

پلار او پاتور دبرندې پر لور رهي شول او مور مې په بیړه د پخلنځي له نغري یو لګیدلی لرګی راوړ او زمونږ دوه ډېوې یې بلې کړې.

پلار مې پاتور په چوکۍ کېناوه. ما یې پر لاسونو اوبه ور واچولې او په کتاني تو کر مې وروچ کړل.

هېڅا خبرې نه کولې. پاتور ماته وکتل او زما پلار ته یې وویل زوی دې ښکلی دی.

بیا یې وویل تږی یم او شراب یې وغوښتل.

پلار مې شراب ورکړل. پاتور لومړی شراب بوی کړل. چې ډاډه شو. ښه شراب دي نو بیې وڅښل.

هغه چې د شرابو په ازمویلو او څښلو بوخت و. ما ورته ځیر ځیر وکتل. بوډا سړی و. لنډ وښتان یې درلودل. لنډې پښې. ننوتلې تتې او غتې خیټه یې وه. په غاړه کې یې د سرو زرو امیل اچولی و او په کالو کې یې ډېرې تاپې لیدل کېدې

د شرابو تر څښلو وروسته مې. پلار د هغه مخې ته خوږه ډوډۍ سره کړي کبان. خواړه او میوه کېښودل.

له دې سره سره چې له ورایه معلومېدل پاتور له کومې میلمستیا راستون شوی خو دحیا او نزاکت له مخې یې خواړه وخوړل او د خوندونو صفت یې وکړ. زه متوجه شوم چې مور مې د پاتور له صفتونو خوشحاله شوه.

پاتور وویل چې زما مشال وړونکو دومره ډوډۍ خوړلې چې شرابو او نورو شیانو ته اړتیا نه لري. خو ښه به وي چې دغو تورپوستو ته لږ خواړه او د اوربشو اوبه ورو وړي.

ماډوډۍ او داوربشو او به وروړې خوهغوی ددې پر ځای چې خوشحاله شي ښکنځلې یې کولې او ویې ویل نه پوهیږې دغه بوډا کله روانیږي چې له دې ځایه لاړ شو؟
ما ورته وویل. زه نه پوهیږم او بیرته ستون شوم. ومې کتل چې د پاتور مشال وړونکي ترونې لاندې ویده دي.
پر دې شپه زما پلار ددې لپاره چې خپل میلمه د شرابو څښلو ته وهڅوي د شرابو په څښلو کې افراط وکړاو له دې وروسته چې اخیستل شوي شراب خلاص شول زما د پلار طبي شراب یې هم وڅښل. بیا یې د اوربشو د اوبو هغه منګی هم تش کړ چې په کور کې ایښی و. دواړه مست شول. په دارالحیات کې یې د خپلو زده کړو د وختونو په هکله خبرې وکړې او تیرې خاطرې یې بیان کړې.
پاتور به ویل زما دنده یانې د فرعون د کوپړۍ سوري کول د یوه تنبل کس لپاره ډیره ښه دنده ده. پدې چې په طب کې له غاښونو. غوږونو او ستونې پرته هیڅ یوه څانګه د کوپړیو له سوري کولو اسانه. نه ده. ځکه چې د غاښونو. ستوني او غوږونو څانګې هره یوه بېل متخصص غواړي.
پاتور به ویل چې که زه تنبل نه وای او کومه بېله څانګه مې خوښه کړې وای اوس به معمولي طبیب وای. ستا په شان به وای. د خلکو د معالجې وس به مې درلود او هغوی ته به مې ژوند وربښلی وای. خو زه اوس له خلکو ژوند اخلم.
کله چې خلک له بوډاګانو او سپینن سرو او لاعلاجه ناروغانو په تنګ شي ما ته یې راولي. چې زه یې کوپړۍ سوری کړم. زه هم کوپړۍ سوری کوم چې تاواني بخارونه یې له سرونو وباسم او بیا بوډاګان او ناروغان ومري.
بیا پاتور پلار ته مخ واړاوه او ویې ویل. که زه ستا په شان د بېوزلو ډاکټر وای خېټه به مې دومره نه وای ستره شوې.
دغه خېټه چې د ګرځېدا مخه یې نیولې ده. له دې امله دومره غټه شوه چې د فرعون ډاکټر یم او تل خوندور او قوي خواړه راکوي.
خو ته چې بېوزله یې هومره ډوډۍ خورې چې ستا بدن ورته اړتیا لري ځکه خو خیټه نه کوې او زما دوه برابره عمر به وکړې. ځکه چې د عمر دکمولو لپاره تر ټولو ښه لاره دا ده چې پاخه کړي خواړه وخوړل شي.
پاتور زما د پلار خوله خلاصه کړه او دهغه غاښونه یې وکتل. بیا یې خپله خوله

خلاصه کړه او ویې ویل وګوره زه په خوله کې ایله دیارلس غاښونه لرم، په داسې حال کې چې ته نهه ویشت غاښونه لرې. زما غاښونه هغو خوړو خراب کړي چې پخېږي، خو ته ښېوسه یې او هغه خواړه خورې چې ساده او طبیعي دي، نو خپل غاښونه دې ساتلي دي. بیا یې سر په ډېر حسرت وښوراوه او ویې ویل، زه ډېر تنبل او بې استعداده یم او ډېرو سرو او مسو په یوه حیوان بدل کړی یم.

پلار ماته وویل سینوهه ! په دغو خبرو باور مه کوه، ځکه پاتور نن سبا د نړۍ تر ټولو تکړه مجسمه سوري کونکی دی او سلګونه کاهنیان او اشرافو د ده په لاس له مرګه ژغورل شوي دي.

دغه سړی پخپل کار کې دومره تکړه دی چې د هګۍ هومره یوه غده له مازغو وباسي او هغو ملایانو او خانانو چې ده له مرګه ژغورلي، ده ته سره زر، د طلا غاړکۍ او مس ورکړي دي.

خو پاتور هماغه راز په حسرت سر ښوراوه او ویل یې د هر هغه کس په بدل کې چې د کوپړۍ له سوري کولو وروسته ژوندي پاتې دي لس بلکې سل تنه مې وژلي دي.

ایا تراوسه پورې تا اورېدلي چې یو فرعون د سر له سوري کولو وروسته درې ورځې ژوندی پاتې وي؟

هغه کسان چې وايي زما د جراحۍ چاړه له چخماق کانو څخه جوړه ده او نیکمرغي راولي ریښتیا وايي، ځکه چې له کاڼي جوړه دغه چاړه یو کاهن، اشرافو، او یو شهزاده په څو ورځو کې وژني او د هغه سره سپین، پسونه او غواګانې او دغه راز دغلو دانو زېرمې یې وارثانو ته پاتې کېږي او هغوي ورسره نیکمرغه کېږي.

کله چې فرعون له خپلې یوې ښځې تنګ شي ماته راځي، چې د کاڼي پر دې چاړې هغه اسوده کړم او کله خو پخپله له فرعون سره هم همدالوبه کېږي....

پاتور په دې وخت کې متوجه شو چې له خولې یې کوم شی راوځي چې بیا به وروسته پرې سخت پښېمانه شي، نو غلی شو او یوه شېبه وروسته یې وویل زه په ډېرو شیانو پوهېږم..... او ډېر رازونه زما په کوګل کې شته.

هغه څوک چې په دې خبرو پوه دي له ما وېرېږي، خوزه ډېر بدبخته یم ځکه چې په ډېرو شیانو پوهېږم او کله چې انسان په ډېرو شیانو پوه وي ډېر د خوا بدۍ احساس کوي.

پاتور په ژړا شو، خپلې اوښکې یې زما د مور په کتاني ټوکر پاکې کړې او زما پلار

ته يې وويل ته بېوزله خو شريف سړی يې خو زه بدای او فاسد يم. زه د حيواناتو له هغو خوشيو هم بيکاره او پست يم چې په لارو او کوڅو کې پراته وي.
په همدې وخت کې يې له خپلې غاړې د سرو زرو اميل خلاص کړ او زما د پلار غاړې ته يې واچاوه.
خو پلار مې هغه اميل ونه مانه ځکه چې پوهېده د مستۍ په وخت ډالۍ حقيقي او له زړه نه وي او ممکنه ده هغه کس چې ډالۍ ورکوي پښېمانه شي او په بله ورځ يې بيرته وغواړي.
پلار مې او پاتور په کوټه کې د يو بل ترڅنګ، څملاستل او زه لاړم په برنډه کې ويده شوم.
سهار چې له خوبه پاڅېدم پاتور ته مې پام شو چې ويښ دی. پخپل ځای کې ناست و او په داوړو لاسونو يې سر کلک نيولی و. ويل يې داکوم ځای دی او زه دلته څه کوم.
زه د هغه خواته ورغلم او دواړه لاسونه مې پر زنګنو کېښودل، په ملا ټيټ شوم او ومې ويل پاتور دا ديوه ډاکټر کور دی. چې د ښار د بېوزلو معالجه کوي. ته بيګا په دې کور کې ميلمه وې او اوس له خوبه پاڅېدې.
له پاتور سره زما د خبرو له امله پلار هم له خوبه پاڅېد او مور مې چې له مخکې پورته شوې وه د ميلمه لپاره يو منګی تروې او تروه کبان راوړل.
بيامې د پاتور په لاسونو اوبه واچولې. هغه خپل سر ټيټ کړ او ويې ويل. پر سر اوبه رواړوه د هغه سر او لاسونه مې په کتان ټوکر وچ کړل.
پاتور تر دې وړاندې چې تروې او کب وخوري د باغچې پر لوري ولاړ او مشال وړونکي ته يې لغته ورکړه. چيغه يې وکړه اې غوباړيه! ايا د خپل بادار ساتنه همداسې کوې؟ زما تور پوستي چېرته دي؟ روان تخت مې چېرته دی؟
مشال وړونکی پاڅېد او پاتور ورته وويل. ولاړ شه. زما تورپوستي او روان تخت را پيدا کړه.
وروسته معلومه شوه چې د پاتور، تور پوستي تېره شپه د خپل بادار له ويدېدا وروسته د عياشۍ يوه کور ته تللي او روان تخت يې هلته ګرو کړی. د بيې پر پيسو يې عياشي کړې او لا تر اوسه ويده دي.
پاتور خپل مشال وړونکي ته چې دغه خبر يې راوړی و. د مس يوه حلقه وکړه چې ولاړ شي. روان تخت او تورپوستي له ګروه خلاص کړي

بیا یې لږ شرومبې وڅښنه ، له تروش کب څخه یې نمری وکړه او ویې ویل ښکا مونږ د دغه هلک په هکله خبرې ونه کړای شوې، په داسې حال کې چې زه د همدغه کار لپاره راغلی وم..... وه هکله نوم دې څه شی دی.....؟

ومې ویل زمانوم سینوهه دی.

پاتور وویل ایا لیکل اولوستل کولای شې ؟ومې ویل هو.

ویې ویل: لاړ شه د مړو کتاب رواړه.

زه لاړم او د پاپیروس یوه بسته مې چې د اموات کتاب پرې لیکل شوی و راوړه. هغه یې یوه برخه خوښه کړه او ما ورته ولوست.

بیا یې څو جملې وویلې چې ما ولیکلې،هغه ځینې انځورونه وکتل چې ما کښلي ول او خوښ یې کړل. ورپسې یې وویل ته ښه لیکل او لوستل کولای شې، خو دا راته ووایه چې څه شی غواړې چې درڅخه جوړ شي؟

ومې ویل زه غواړم لکه خپل پلار طبیب شم اوله همدې امله د دارالحیات ښوونځي ته ځم

پاتور وویل: سینوهه هغه څه چې درته ووایم یې ښه واوره او په یاد یې لره، خو دا هېره کړه چې دا خبرې چا درته کړې دي او هېڅکله دا خبره ونه کړې چې د مصر له سلطنتي جمجه سوري کونکي څخه دې اورېدلې دي.

هغه ځای چې ته د زده کړې لپاره ورځې د کاهنانو تابوبی دی او ستا ژوند او پرمختګ د هغوی په نظر او رایې پورې اړه لري

هلته باید خاکساره ، فرمانبرداره ، او غلی واوسې.

هېڅکله په کوم شي نیوکه مه کوه او هېڅکله خپلې باطني عقېدې مه څرګندوه. هرڅه چې تا ته وایي ویې منه او په دې پوه شه چې پخپل ژوند کې په تېره بیا په دارالحیات کې د ګیدړې غوندې چالاکه او د مار په شان غلی اوسه، خو په ظاهر کې ځان د کوترې په شان مظلوم او د مېږي غوندې بې خبره وښیه.

دا هېره نه کړې چې انسان یوازې یو وخت ځان هغه شان ښودلی شي لکه چې دی او دا هغه وخت وي چې پیاوړی او مذبوت شي او تر هغه وخته چې کلک او پیاوړی شوی نه یې سرټیټ او خاکساره پاتې شه. زه به همدا نن سپارښتنه وکړم چې تا دآمون په ښوونځي کې ومنې اوله دې کلنې دورې وروسته د دارالحیات ښوونځي ته لاره پیدا کوې. له دې وروسته پاتور له مور وپلاره رخصت واخیست. په روان تخت کښیناست او ولاړ.

# دریم څپرکی

## د طب لومړنی ښوونځی

په هغه وخت کې په طبس کې لوړې زده کړې دآمون دکاهنانو(ملایانو )په لاس کې وې او د دارالحیات ښونځی او روغتون د معبد ترسیوري لاندې کارکاوه.

ټول لوړ ښونځي د ملایانو په وسیله اداره کېدل او هغوی به د هغو کسانو په ټاکنو کې ډېر پام کاوه چې په دغو ښونځیو کې یې درس وایه. دوی به هڅه کوله هغه کسان چې له دوی سره مخالف ول له لوړو ښونځیو لېرې وساتي.

پر طب سربېره د حقوقو ،سوداګرۍ ،هندسې، ریاضیاتو ،او ستور پېژندنې ښونځي هم د آمون په ښونځي کې ول. ملایانو له دې امله د محصلینو په انتخا ب کې دقت کاوه چې د مصر نیمایي خاوره له روحانیونو سره وه، یانې ظاهراً له خدایانو سره او هغوی به دا اجازه نه ورکوله چې د دوی له پلویانو پرته نور کسان ډاکټران ،حقوق پوهان ،سوداګر، انجینران . او ستورپوهاند شي. د پوځ افسرانو هم تر دې وراندې چې پوځ ته لاړ شي د حقوقو په ښونځي کې یې یو پړاو درس وایه، نو د آمون د معبد ملایانو به د مصر په ټول پوځي او اداري سیستم حکومت کاوه.

په دغو ټولو ښونځیو کې دوو ځانګو ډېر اهمیت درلود یو دطب او بل د حقوقو مدرسه وه.

ددغو دواړو ښونځیو لومړی پړاو درې کاله و او زده کوونکی باید درې کاله پټې پاتې شوی وای چې له امتحانه وروسته که د آمون خدای پرې څرګند شوی وای نو دا اجازه به ور کول کېده چې د آمون د طب یاحقوقو ښونځي ته ولاړ شي.

دابه په راتلونکو څپرکو کې درته و وایم چې د آمون خدای به څرنګه محصلینو ته څرګندېده؟ خو اوس وایم چې په پخواني مصر کې شاګرد ددې لپاره درې کاله په مقدماتي پړاو کې تېرول چې هر ډول خپلواکه فکر او نظر چې له پخوا ورسره وي د دوی په وجود کې له منځه یوسي.

په دغه درې کلن لومړني پړاو کې شاګردانو په معبد کې له عبادت کولو پرته بل هېڅ کار نه کاوه او یوازې مذهبي روایتونه به یې زده کول.

روحانیون په دې ښه پوهېدل، هغه شاګرد چې لومړنی او مقدماتي دوره یې ته راځي هغه ماشوم ته ورته دی چې نوی د ځواني پړاو ته ور ننوزي. تر هغه وخته یې لوبې کړې وي او خپلواک فکر او عقیده نه لري او دآمون د معبد ښونځي ته د هغه د ورتګ پړاو هغه پړاو دی چې دی پکې نظر او عقیده پیدا کوي نو په همدغه پړاو کې باید دزده کوونکي د فکر ازادي له منځه یوسي او هغه په داسې یوه موجود بدل کړي چې له جنجاله پرته هغه څه ومني چې اوري یې یا یې لولي.

کله چې له دغه درې کلن پړاوه تېر شي. د طب او یا حقوقو ښونځي ته ولاړ شي او د دغو دوو ښونځیو په اړه د درسونو دورې تېرې کړي نو بیا پر یوه کامل ځوان بدلېږي.

ښو هغه ځوان چې د مصر د کاهنانو له تعلیماتو پرته یې نه څه اوریدلي او نه لوستي وي. د هغه فکر داسې د مصري ملایانو د تعلیماتو په چمبر کې حبس وي چې له لوړو زده کړو وروسته بل ډول فکر نه شي کولای.

موږ یوه پېنځه کسیزه ډله وو چې د طب په لومړني ښونځي کې مو درس پیل کړ.

زه چې به هر سهار ښونځي ته تلم د غرمې ډوډۍ به مې له ځانه سره وړله او ترلمر لوېدو مخکې به خپل کور ته ستنېدم.

له دې وروسته چې زه د آمون د معبد لومړني ښونځي ته ولاړم ډېر ژر په دې پوه شوم چې درباري کوچنی سوری کونکی ملامت نه و، چې ویل یې، ته باید فرمانبردار و اوسې، سرټیټ و نیسې. هېڅکله نیوکه مه کوه او خپله باطني عقیده مه څرګندوه.

ځکه چې ډېر ژر په دې پوه شوم چې ملایان په محصلینو کې جاسوسان لري. کله چې یو محصل پر یوې خبرې شک کوي او یوه خبره یا مسله ردوي نو هغه له ښونځي باسي او بیا امکان نه لري چې دغه محصل بېرته د طبس یوه لوړ ښونځي ته ولاړ شي.

دا نو د محصل د ایستلو لپاره هم اغیزناکه پلمه وه او ویل به یې چې آمون وایي دغه محصل استعداد نه لري.

پر کومه ورځ چې ښونځي ته لاړم دیارلس کلن وم او له دې سره سره چې د ښونځي تر ټولو کوچنی محصل وم او تر نورو زده کوونکو مخې ډېرې پکې د سترو روحانیونو او اشرافانو زامن ول ډېر پوه او بااستعداده وم او ویلای شم. که یې زه په هماغه وخت کې د

طب ښونځي ته داخل کړی وای ،هم زده کړې مې کولای شوې او په هرڅه پوهېدای شوم ځکه چې له لیک لوست پرته مې علمي معلومات هم درلودل.

له دې کبله چې مخکې مې وویل زما پلار ډاکټر و ، ما له هغه څخه د ډېرو درملو نومونه زده کړي ول او په دې پوهېدم چې څه ډول په تېلو د یو غیر میکروبي تپ معالجه کېږي او څه ډول انتاني تپ له دې وروسته چې زوې بې وایستل شي په اور سوځل کېږي چې بیا چرک ونه کړي.

ما دا لیدلي ول چې څه ډول زما پلار دیوې داینې مرستې ته ورځي او له یو کلک لرګي څخه په ګټنې سره د مور په خېټه کې ماشوم توته کوي او د هغه تو تې له نسه راباسي چې مور له مرګه وژغورل شي.

له دې سره سره چې ما د نورو شاګردانو په پرتله دارالحیات ته د تګ لپاره ښه استعداد درلود ، خو درې کاله یې په لومړني ښونځي وځنډولم.

مګر ددې پر خلاف هغه هلکان چې پلرونه یې له اشرافانو یا لویو کسانو ول له څو اونیو یا ورځو وروسته دارالحیات ته لېږدول کېدل او ملایانو به ویل ، آمون امر کړی دی، چې دغه کسان دارالحیات ته واستوئ.

که څه هم زموږ ډېر وخت په عبادت او د مذهبي روایتونو په زده کولو تېرېده، خو بیا هم دومره وخت پاتې کېده چې روحانیونو به راته امر کاوه چې د مړو کتاب ولیکو او بیا یې هغه کتابونه د معبد په انګړ کې خرڅول.

له دریو کلونو وروسته چې ما د وخت له ضایع کولو پرته بل اغېزناک کار. ونه کړ ، هغو هلکانو ته چې زه هم پکې وم او د اشرافانو له ډلې څخه نه و، خبر راکړل شو چې دارالحیات ته د تګ لپاره چمتو شو.

دارالحیات ته تر تګ مخکې موږ باید یوه اونۍ روژه نیولې وای ،خپل ټول وخت مو په معبد کې تېر کړی وای او له هغه ځایه نه وای وتلي.

په وروستۍ شپه باید آمون خدای موږ ته ځان څرګند کړی وای او له موږ سره یې خبرې کړې وای. له هغه وروسته دا معلومېده چې موږ دارالحیات ته د تګ جوګه یو کنه؟

لکه چې ومې ویل تر درې کلن بهیر وروسته چې د شاګردانو ماغزه یې د امون په اړه له افکارو ډک کړي وو نو دا ناشونې وه چې پر هغې شپه دې له آمون سره خبرې ونه شي.

په شاګردانو کې زه ځانګړی وم. ځکه له پلار سره به د ناروغانو په بسترې درېدم او د

هغوی مړینه به مې پخپلو سترګو لیده .

ما له ماشوموالي تر شپاړس کلنۍ پورې څه باندې پينځوس ناروغان کتلي چې زما په مخ کې مړه شوي ول.

له دې سره سره چې په هغه وخت کې ماشوم وم خو په دې پوهېدم چې له مرګ پرته هیڅ شی انسان د ملایانو د ځینو مطالبو چټي ماهیت ته نه متوجه کوي. ځکه انسان پخپلو سترګو ګوري چې د یوه انسان او یوه ځناور د مرګ ترمنځ توپیر نشته او په دې پوهېږي چې انسان پر ځمکه د آمون استازی او کفیل دی. د مرګ مخه نه نیسي بلکې پخپله هم مري.

انسان چې کله مرګ ویني په دې پوهېږي چې ټول مطالب او عقیدې چټي دي او هر څه چټي ورته ښکاري.

نورو شاګرادانو زما په شان په وارو وارو د خلکو مرګ نه و لیدلی . ځکه خو يې زما په شان د ملایانو د روایتونو په اړه فکر نه شو کولای .

له دې وروسته چې یوه اونۍ مو په معبد کې تېره کړه او روژه مو ونیوله، پر اوومه ورځ يې زمونږ سرونه را و خرییل او د معبد په لوی حوض کې يې وو ینځلو . بیا يې ډېر ځیرو کالي چې د دارالحیات رسمي جامې وې را واغوستلې.

د لمر لوېدو پر وخت چې آمون د لوېدیځو غونډیو ترشا پټېده ( دلته له آمون څخه مقصد لمر دی چې په عین حال کې د مصر لوی خدای هم و. ژباړن ) ساتونکو نغارې ووهلې. د معبد دروازې وتړل شوې او په همدې وخت کې یوه روحاني . چې د شرابو د څښلو له امله کوږ ووږ روان و . مونږ ته وویل راشئ !

مونږ د دغه روحاني په لارښونه له یوه اوږده دالانه تېر شو . هغه یوه دروازه پرانستله . مونږ يې یوې پراخې کوټې ته دننه کړو . چې فرش شوې وه. ما و لیدل چې دغه کوټه تیاره وه خو په پورتنۍ برخه کې يې یوه پرده راځوړنده وه چې د هغې له شا څخه کوټې ته لړه رڼا رالوېده.

تر دې مهاله زه کله هم دې کوټې ته نه وم ننوتلی، خو په دې پوهېدم چې دا د آمون کوټه ده.

روحاني پرده پورته کړه او د لومړي ځل لپاره زما سترګې په آمو ن ولګېدلې چې د انسان په شان و . له دې امله چې خو ان وم او په آمون خدای مې عقېده درلوده، نو بدن مې

وربه‌ږدېد.

ماوليدل چې آمون جامې اغوستې وې، هغو ځراغونه چې د امون ګېرچاپېره لګېدلي ول او هغو سرو زرو او ګران بيه کاڼو چې دامون پر غاړه ځوړندول هغه ته ځلا وربښلې وه.

روحاني وويل تاسې بايد دلته ترسهاره ويښ واوسئ او عبادت وکړئ چې ښايي آمون خداى درسره خبرې وکړي.

که يې خبرې وکړې په دې مانا دي چې تاسې ددې وړ بولي چې دارالحيات ته داخل شئ. کله چې ددې وړ شوئ چې دارالحيات ته لاړشئ نو سبا به له ماسره يوځاى آمون ولمبوئ، د هغه جامې به بدلې کړئ او بيا به دارالحيات ته ولاړشئ.

د ملا له دې خبرو وروسته هغه د آمون په مخکې پرده بيرته کش کړه اوله دې پرته چې لاسونه په زنګنو کېږدي او سرتيټ کړي له کوټې بهرشو او دروازه يې بنده کړه.

ملا چې له کوټې ووتنو دغو شاګردانو چې تر مالوى ول خبرې اوخنداوې پيل کړې، له خپلو جيبونو يې غوښه او ډوډۍ راوايستله او په خوراک لګيا شول.

يو زده کوونکي دباندې ولاړ او بيا يې نورو ته وويل، راځئ د روحاني کوټې ته ولاړ شو، هلته به ډوډۍ هم وخورو او هورې به ويده هم شو، ځکه دلته پرکاڼو نه شي ويدېداى

خو زما روژه وه او دې ته چمتو نه شوم چې د نورو ډوډۍ وخورم.

ما په داسې حال کې چې امون د پردې شاته وي د ډوډۍ خوراک کفر باله.

نورو ځوانانو له ډوډۍ وروسته پر هډوکو لوبې پيل کړې (ښايي هدف يې دبېډيو لوبه وي ژباړن) بيا هر يو د کوټې په ښويو او ځلېدونکو کاڼو پرېوتل او ويده شول.

خو ماته خوب نه راته، د آمون په فکر کې وم، خپلې مذهبي دعاګانې مې لوستلې او غوږ غوږ وم چې څه وخت به د آمون غږ اورم. په دې توګه سهار شو خو ما د آمون غږ وانه وريده او د لمر ختو په وخت کې مې په مبهم ډول وليدل چې د آمون په مخکې پرده لږه وښوريده.

سهار د معبد ساتونکو نغارې ووهلې، دروازې پرانستل شوې، خلک معبد ته ننوتل او ما دهغوى غږ چې د سمندر د څپو په شان چې له لېرې ترغوږو کېږي اورېد.

کله چې لمر راوخوت ملا له هماغه ځوان سره جوړه کوټې ته راننوت چې د شپې تللى و چې په ارمه بستره کې ځملي او زه د دواړو له څېرو پوه شوم چې شراب يې څښلي ول.

ملا موږ ته وويل: اې هغو کسانو چې هيله لرئ دارالحيات ته ولاړ شئ، ايا بېګا

ویښ واست او عبادت مو وکړ؟

موږ ټولو وویل هو!

ملا وویل ایا آمون درسره خبرې وکړې او د هغه غږ مو واورېد؟

یوه شېبه ټول غلي وو او بیا د موسی په نوم یوه شاګرد وویل هو. هغه له موږ سره خبرې وکړې.

نورو شاګردانو هم دغه خبرې تکرار کړې. خو ما څه ونه ویل.

ددې لپاره چې آمون له موږ سره خبرې نه وې کړې او حیران دې ته وم چې څه ډول نور کسان دا زړه کوي چې درواغ ووايي.

هغه ځوان چې بېګا د ملا کوټې ته تللی و. هغه هم په ډېرې بې شرمۍ وویل چې آمون ما ته هم ځان څرګند کړ. خو ځینې رازونه یې راته وویل او ټینګار یې وکړ چې هېچا ته به یې نه وایم. ما د هغه له ارام او مینه ناک غږ څخه خوند واخیست.

موسی وویل کله چې ما آمون ولید. هغه مې پر سر لاس کېښود او ویې ویل اې موسی! زه تا او ستا کورنۍ ته برکت درکوم او ته به یوه ورځ د مصر مشهور طبیب شې.

له موسی ورسته هر شاګرد پر خپل وار له آمون سره د کتلو او د هغه د څرګندېدا په هکله د درواغو کیسې وکړې. تر دې چې ما ته نوبت راغی او کاهن راته وویل سینوهه! ایا تا آمون ولید او هغه له تا سره خبرې وکړې؟

ومې ویل. نه.... ما هغه ونه لید او د هغه غږ مې هم وانهورید. یوازې سهار مې احساس وکړ چې پرده وښورېده.

ملا برګ برګ راته وکتل او ټول غلي شول.

یوه ځوان چې ښوونځي ته له تګ راهیسې له ما سره ملګری شوی و. د ملا لاس ونیوه او ځنګ ته یې کړ. بیا ورسره وبونګیده او کله چې راستانه شول. ملا په کاوږ راته وویل سینوهه! له دې امله چې ستا د عقېدې په پاکي او صمیمت کې هېڅ شک نشته. نو ممکنه ده آمون له تا سره خبرې وکړي.

بیا د ملا په اشارې همغه ځوان پرده لېرې کړه. زه یې د آمون د مجسمې مخ ته بوتلم او ار یې کړم چې له معمول سره سم پر ځمکه سر کېږدم. وروسته یې همداسې پرېښودم.

ناڅاپه په کوټه کې یوه غږ انګازې وکړې او ما ته یې وویل. سینوهه!..... سینوهه!...

مابېګاه هم غوښتل چې له تا سره خبرې وکړم خو ته ډېر تنبل یې ویده شوی وې.

ماسر راپورته کړ او ومې لیدل چې غړ د آمون له خولې راوخي بیا هماغه غږ وویل.
سینوهه! زه آمون یم او په دې جرم چې بېګا دې غفلت کړی باید تا د خوړونکي خدای په
خولې کې واچوم. خو زه پوهېږم چې ته پر ما عقیده لرې او له همدې امله دې داخل ښیم او

.....................

له دې ورسته زه پوه نه شوم چې دغه غږ څه وویل. ځکه چې پوه شوم. دغه غږ چې د
آمون له خولې را ووت دهغه نه بلکې د هماغه ملا دی چې هلته موجود و.

له دې وروسته د کرکې، غوسې او عبرت یو حالت راته پیدا شو. تر دې چې ملا راغی
او زه یې له ځمکې پورته کړم او ویې ویل راشه او د آمون په وینځلو او د جامو په بدلولو
کې راسره مرسته وکړه.

زه سم نه پوهېدم چې څه ډول مې د آمون په وینځلو او د هغه د جامو په بدلولو کې له
نورو سره مرسته وکړه. ځکه چې فکر مې پرېشانه و او داسې احساس مې کاوه. چې زما
عقیدې یو لوی او نه جبرانېدونکی ګوزار خوړلی دی.

پر هغې ورځ یې زما پر سر سپېڅلي غوړي ومونېل او یو پاپیروس (مصري کاغذ.
ژباړن) یې راکړ چې دارالحیات ته زما د ننوتو حکم و.

کله چې دارالحیات ته زما د ننوتو تشریفات پای ته ورسېدل او زه له معبده بهر شوم
چې کور ته ولاړ شم نو له ډېرې کرکې او خپګانه کانګې راغلې او زړه مې بد شو.

## ځلوم ځېرکی

# په دارالحيات کې تحصيل

د دارالحيات د طبي ښوونځي استادان سلطنتي ډاکټران ول او ډېر لږ به دارالحيات ته راتلل . لامل يې دا و چې دوی ته به شتمن ناروغان ورتلل او دوی به د هغوی له درملنې ځخه ډېر لږ وخت پيدا کاوه چې دارالحيات ته راشي.

خو ځينې وخت چې عادي ډاکټران به د ناروغانو په درملنه کې پاتې راغلل له دغو طبيبانو به غوښتنه وشوه. چې دارالحيات ته راشي او د ناروغانو درملنه وکړي.

په دې ډول به په طبس کې يو بېوزله کس هم هغه مهال چې نورو ډاکټرانو به يې درملنه و نه کړای شوه. د دربار ديوه ډاکټر له علم او تجربې ځخه ګټه پورته کوله .

له دې سره سره چې په طبس کې ډېر بېوزلي کسان هم دارالحيات ته راتلای شول او دلته يې درملنه کېدای شوه خو مانه غوښتل چې د هغوی پر ځای واوسم او د ځان وړيا درملنه وکړم.

په دارالحيات کې به ځوانو او بې تجربې ډاکټرانو پر دغو بېوزلو ناروغانو نوي درمل ازمويل او اغيز به يې معلوماوه.

دغه راز کله چې به دوی غوښتل يو ټپي عمليات کړي، يا د يوه کس کوپړۍ وسپړي اويا د کوم ناورغ ځېټه ځيرې کړي نو د بېهوشۍ له درملو پرته به يې عمليات کول.

د بې حسۍ درمل به ګران ول. بېوزلو خلکو نه شوای رانيولای او بله خبره دا وه چې داراحيات هم دغه درمل ناروغانو ته نه ورکول.

له همدې امله چې به ځينې وخت ځوک دارالحيات ته ننوتل د ناورغانو او هغو ټپيانو دردوونکي غړونه به يې اوريدل چې جراحي عمليات پرې کېدل.

د درالحيات د ښونځي دزده کړې موده ډېره اوږده وه ځکه چې محصل بايد دطب په علم، دکوپړۍ او ځېټې په سپړلو ، د سږو ، پښتورګو ،مثانې او د ښځو دناورغيو د درملنې دلارو چارو پر زده کول و سربېره بايد د ټولو درملو په اغېزه هم پوه شوی وای او

دا یې هم باید زده وای چې له بوټو څخه دغه درمل څنګه ترلاسه کېږي او کله باید بوټي راټول او وچ کړای شي.

د دارالحیات د ښوونځي محصل باید پوه شي چې کوم درملیز بوټي چیرته راټوکېږي او په کوم فصل کې باید وچ کړای شي او باید په لومړني نظر پخپله بوټي او د هغه وچه شوې بڼه وپېژني.

مثلاً د ېرشو ډولونو درملیزو بوټو ریښې به یې یوځای کولې او د محصل په مخکې به یې کېښودې. ورته ویل به یې دغه ریښې سره بېلې کړی!

کله کله به درباري ډاکټرانو هم د بوټو د ریښو پېژندلو په هکله تېروتنه کوله. ځکه چې د ځینو بوټو رېښې دومره سره ورته وې چې په اسانه یې توپیر نه کېده.

په دغسې حالاتو کې د درملیزو بوټو د ریښو د پېژندلو طریقه دا وه چې طبیب به د بوټي ریښه خولې ته واچوله. ژووله به یې او د هغې له خوندبه یې معلوموله چې دا د کوم بوټي ریښه ده.

د دربار ځینو ډاکټرانو غاښونه نه درلودل او اړول. چې د بوټي ریښه وټکوي. کله چې به ښه نرمه شوه خولې ته به یې واچوله او د ریښې مزه به یې کتله بیا به ویل چې دا کوم بوټی دی.

په دارالحیات کې تر ټولو سخته موضوع دا وه چې موږ باید د ګوتو او سترګو په وسیله د ناروغۍ تشخیص وکړو بیا و وایو چې د ناورغ کوم ځای درد کوي او دغه درد د کومې ناروغۍ له امله دی.

زه باور یم چې یو طبیب تر هغه پورې سم ډاکټر نه دی چې له ناورغ سره سترګې پر سترګو شي او د هغه له سترګو او څېرې څخه د هغه ناروغي کشف نه کړي او یو طبیب چې د ناروغ پر بدن ګوتې تېروي باید د هغه درد احساس کړي.

له همدې لامله په هغو محصلینو کې چې دارالحیات ته به راغلل له څو تنو پرته به نور حقیقي ډاکټران نه شول. ان که به سلطنتي ډاکټران هم شول بیا به یې هم د ناروغۍ د تشخیص حس نه درلود.

په دارالحیات کې د دوه ډوله ناورغیو درملنه کېده. یو جسمي یا بدني ناورغۍ وې چې د پخو شویو خوړو او بوډاتوب له امله پیدا کېږي او دویم ډول یې اروایي ناروغۍ وې. ځکه چې اروا پخپله د ناروغۍ د رامنځته کېدا عامل وي.

ددې لپاره چې اروا . ناروغي رامنځته کړي، دغه دنده ورو روحونو ته سپاري او دغه روحونه دومره واړه وي چې د نوک په اندازه یوه ځای کې په لکونه ځایېدای شي خو هر یو یکې په یوازې سر یوه ناروغي رامنځته کولای شي.

موږ باید په دارالحیات کې پوه شو چې څه ډول په مسکنو او درد ضد درملو باندې د ناروغانو دردونه ارام کړو او څنګه له درده پرته د یو کس خېټه یا سر وسپړو.

موږ باید دا هم زده کړو وای چې څنګه یو درد زیاتولای شو. ځکه چې ځینې ناروغی د درد له زیاتولو پرته نه شو معالجه کولای د زده کړې یوه ځانګه دا وه چې څنګه موږ د یوې ناروغی په مرسته د بلې هغې درملنه کولای شو. په دې ډول چې یوه خطرناکه ناروغي به مو د یوې بې خطره ناروغی په وسیله معالجه کړه.

موږ باید په دې پوه شو چې د ناروغ کومې خبرې سمې دي او کومې هغه د تخیل او تصور له امله کوي. ځکه چې ناروغ د هغه موجود په شان وي چې سپېره روح بندیوان کړی وي او وحشتناکه خیالونه او تصورات لري.

د ناروغ په بدن کې چېمې او خیالي دردونه هم پیدا کېږي چې د غه دردونه له اصلي دردونو سره نه شي تشخیصېدای.

په دې وخت کې د ناروغ خبرې داکټر په غلطه لار بیولای شي او په غلط ډول یې معالجه کوي چې له امله یې بنایي ناروغ ومري.

کله چې زه په درالحیات کې وم نو پوه شوم چې د استعداد مسله د ډاکټر په روزلو کې اهمیت لري او ورسره په څنګ کې دا هم راته معلومه شوه .څومره چې استعداد د طبیب په روزلو کې اهمیت لري تحصیلات یې نه لري.

ځکه کله چې څوک استعداد ونه لري نو دارالحیات چې د نړۍ ستر طبي ښوونځی دی. هغه نه شي روزلای او له هغه څخه تکړه ډاکټر نه شي جوړولای.

څوک چې دارالحیات ته ځي باید له طب سره مینه ولري او دې ته چمتو شي چې د دغه علم په لاره کې خپل هر څه ځار کړي او تر ټولو مخکې باید سړی خپل استراحت او ارام قرباني کړي.

زه په دارالحیات کې پوه شوم چې یوه طبیب ته د درملنې پر مهال د ناروغ اعتماد ډېر ارزښت لري. ناروغ باید باور ولري چې د هغه معالج ډاکټر تکړه او پوه دی او تېروتنه نه کوي.

. له همدې امله باید ډاکټر تېروتنه ونه کړي. ځکه چې که تېروتنه وکړي ناروغ بیا پرې اعتماد نه کوي او په دې ډول هر راز درمل چې ناروغ ته ورکړي اغېز به ونه لري.

زه په دارالحیات کې پوه شوم چې ددې جملې مانا څه ده؟ چې وایي ډاکټران په ډله ییز ډول خپل ناروغان ښخوي.

کله چې د شتمنو په کور کې کوم ناروغ پیدا کېږي نو د درملنې لپاره یې څو ډاکټران راځي. کله چې دویم او درېیم ډاکټر راشي او ګوري چې لومړني ډاکټر تېروتنه کړې ده نو دوی یې له دې امله چې پر ډاکټرانو د خلکو باور کمزوری او زیانمن نه شي نه افشا کوي او په دې توګه ناروغ د مرګ کندې ته پرېباسي.

هغه ډاکټران چې د شتمنو کورونو ته ورځي درباري طبیبان دي او کله چې خلک پوه شي، یوه درباري ډاکټر هم تېروتنه کړې نو بیا پر ټولو ډاکټرانو بې باوره کېږي.

غوره دا ده چې خلک هېڅکله د یوه ډاکټر په تېروتنه پوه نه شي. ځکه که پوه شي. بیا نو فکر کوي چې شونې ده هر ډاکټر تېروتنه وکړي. له همدې امله ډاکټران پام کوي چې د بل ډاکټر تېروتنه پټه کړي. ځکه چې بیا پر ده هم څوک اعتبار نه کوي. له همدې امله وایي چې ډاکټران په ګډه او ډله ییزه توګه خپل ناروغان ښخوي.

که څه هم په دارالحیات کې چېړاسیان شته خو دغه نوکران کار نه کوي. ځکه چې هلته ټول کارونه د نویو محصلینو پر غاړه وي.

هغه ځوانان چې نوي دارالحیات ته ورځي له ډېرو بې کاره او ګنده چېړاسیانو هم ټیټ او ګنده وي او تر ټولو چټل او ګنده کارونه هغه ته ورسپاري.

د معبد د سترو ملایانو او د شتمنو کسانو زامن له دغه کاره مستثنی دي. هغوی هم خپل کارونه بې وزله محصلینو ته ورسپاري چې په پایله کې یو بېوزله محصل هم د دارلحیات چېړاسي وي او هم د شتمنو نوکر.

تردې وړاندې چې په دارالحیات کې طبي څېړنې پیل شي باید محصل د پاکۍ او نظافت له تخنیک سره بلد شي او له دې حقیقت سره اشنا شي چې هېڅکله باید د وسپنې یا کاني چاقو و نه کاروي. یوازې هغه وخت دا کار کولای شي چې مخکې له مخکې یې په اور کې ایښی وي. دغه راز هېڅکله باید له یوه ټوکره څخه استفاده ونه شي مګر دا چې مخکې له مخکې په هغو اوبو کې ایشول شوی وي چې ښوره (پوتاشیم نایټریټ) پکې اچول شوي وي.

ټول هغه لرګین وسایل چې په اورکې د اېښودو نه وي باید تر کارولو مخکې ښه وایشول شي.

په اورکې د او سپنیزو او د برینو چاقوګانو اېښودلو او پر ښوره باندې د کارېدونکیو ټوکرانو د وینځلو موضوع مې ذهن دومره بوخت کړی و، چې نیمه شپه به ناڅاپه او وارخطا، له خوبه راویښ شوم. ما به خوب لیده، چې چاقو مې په اورکې له اېښودلو پرته کارولی دی.

زه د دغو مسلو په هکله چې په نورو طبي کتابونوکې هم لیکل شوي دي ډېرې خبرې نه کوم. ځکه چې که هرڅوک یو طبي کتاب ولولي په دې خبرو پوهېدای شي.

زه به د هغه څه په هکله خبرې وکړم چې لا تراوسه په هېڅ یوه طبي کتاب کې نه دي لیکل شوي او ممکنه ده په راتلونکې کې هم ونه لیکل شي.

دارالحیات ځانګړې جامې درلودې چې کله مو، هلته ولاړو دغه جامې مو واغوستلې دغه جامې هم په دارالحیات کې د نورو کارېدونکو وسایلو په شان د ښورې په اوبو کې ایشول شوې وې.

هلته ټولو محصلینو یو ډول جامې اغوستلې خو په غاړه کیو کې یې توپیر و. هرڅومره چې به محصل په خپلو زده کړوکې پر مخ ته، نو یوه نوې غاړه کی به یې په غاړه کې وراچوله.

زه هغه ځای ته رسېدلی وم چې د تکړه او کلکو کسانو غاښونه به مې ایستلای شول، مردار دانې به مې سوری کولې او زوې به مې ترې را ایستلې.

مات شوي هډوکې به مې داسې سره ښنګ پر ښنګ پټري کړل چې له روغو هډوکو سره به یې توپیر نه کېده.

په لومړنیو ډولونو مې مړي هم مومیایي کول. ځکه چې د مړو مومیایي کول یو طبي عمل نه دی. بلکې عادي کسان، چې سواد هم ونه لري دیوه ډاکټر په حکم مړي مومیایي کولای شي.

ما ډېر زیار وایست او هرډول سخت کارونه به مې کول. ځکه چې له طب سره مې مینه درلوده. له دې امله به مې د لاعلاجه ناروغانو د جراحی په وخت پخپله خوښه تر ټولو چټل کارونه هم کول چې وګورم درباري ډاکټران څه ډول د لاعلاجه ناروغانو درملنه کوي؟ خو په دغو هرو لسو ناروغانو کې به نهه تنه مړه کېدل.

سلطنتي ډاکټرانو د لاعلاجه ناروغانو د معالجې لپاره له داسې لارو چارو کار اخیست چې تمساح هم په دې ډول نه معالجه کېږي.

زه ډېر ښه پوهېدم چې خلک بې ځایه له مرګه ډارېږي، ځکه چې پخپله مرګ ډار نه لري، بلکې د ډېرو کسانو لپاره خو د(آمون) خدای د لیدلو په څېر ستر نعمت هم دی.

دغه لاعلاجه ناروغان به ترهغې ورځې کړېدل چې ژوندي به وو. خو کله چې به ومړل دهغوی په څېره کې به ارامتیا او هوساینه ښکاره شوه، په دې ډول چې هرچا به ورته کتل پوهېدل ،چې اسوده شوي دي.

په داسې حال کې چې ما دطبي تخنیکونو د زده کولو لپاره د درباري ډاکټرانو تر لاس لاندې لاعلاجه ناروغان معالجه کول. ناڅاپه له یوې معجزې سره مخامخ شوم. چې تر دې مخکې په ښوونځي کې هم ورسره مخامخ شوی وم او زما په روح کې دا فکر پیدا شو چې: (ولې؟)

زه تر دغه مهاله د (ولې ؟) په فکر کې نه وم، خو په همدې وخت کې پوه شوم، چې د(ولې ) ټکی د ټولو رازونو اصلي کیلي ده او که څوک وکړای شي چې ځانته ووایي، د (څه لپاره یا ولې؟) او له ډېر صمیمیت څخه ددې پوښتنې ځواب پیدا کړي نو په ټولو رازونو پوهېدای شي . ددې لامل چې پوهېدلی وم د(ولې )کلمه شته په دې ډول دی:

یوه ورځ یوه ځلو ښت کلنه ښځه چې تر هغه وخته یې اولاد نه ؤ شوی دارالحیات ته راغله او په وحشتناک او ترهېدلي ډول یې وویل چې میاشتنی عاذت یې بند شوی دی.

دې ویل چې اوس ځلو ښت کلنه شوې . نور به ماشوم رانه وړي او پوښتنه یې وکړه چې ایا د ناروغۍ یا میاشتني عادت بندېدل یې د بوډاتوب له امله دي، که یو پلیت روح یې بدن ته ننوتی دی او هلته یې ځای نیولی دی.

ما ښځې ته وویل چې د کتاب له مخې به هڅه وکړم چې پوه شم ستا د میاشتني عادت بندېدل د امیندواری له امله دي، که د بوډاتوب؟

خو ته باید هره ورځ دلته راشې او کله چې دارالحیات ته راځې خپلې متیازې یا بولې به هم مور ته راکوې.

ښځې وپوښتل چې زما په بولو به څه کوئ؟ما ورته وویل ستا په بولو به غنم شنه کړو.

له هغه وروسته هماغه ډول چې په کتاب کې لیکل شوي ول، ما دوه پیمانې غنم لمر ته په ځمکه کې وکرل ، پر یوه مې معمولي اوبه وشیندلې او پر بل مې د هغې ښځې بولې.

ښبې مې ورته کېښودلې چې دغه دواړه فصلونه سره غلط نه شي.
له هغه وروسته مې دغه دوه کوچني پتېي یو په معمولي اوبو او بل د هغې ښځې پر
بولو خړبول.
له څو ورځو وروسته هغه پتېي چې د ښځې په بولو مې خړوب کړې و، ښه زرغون او
مست شو او د غنمو وړیو یې وده وکړه، خو د هغه بل پتېي غنم ډېر کمزوري ول.
ما هغې ښځې ته وویل چې خوشحاله اوسه ځکه چې ستا د میاشتني عادت بندېدل د
ډېر عمر له امله نه دي بلکې (امون) تا ته پام کړی او ته امیندواره یې.
ښځه په دې زېري دومره خوشحاله شوه چې ویې ژړل او د دوو «دنیو» په وزن یې د
سپینو زرو یوه کړۍ راکړه. *(دنیه. یا دین. تریوه ګرام لږ. کابو نهه سوه ملي ګرامه وي*
*اونبایي همدغه کلمه په وروسته پیرونوکې په دینار بدله شوې وي).*
ځکه چې بدبختې ښځې دا هیله نه درلوده چې امیندواره کېږي به. فکر یې کاوه چې زړه
شوې او د امیندوارۍ وخت یې تېر شوی دی.
له هغه وروسته یې له ما پوښتنه وکړه چې زما اولاد به هلک وي که نجلۍ؟
زه پوهېدم چې میندې ډېرې د زوی ارمان لري؟ نو ورته مې وویل ستا ماشوم به هلک
وي.
خو دغه خبره مې له خیاله وکړه. ځکه چې په کتاب کې په دې هکله څه نه و لیکل
شوي، خو فکر مې کاوه. کله چې یوه ښځه امیندواره وي دغه چانس چې ماشوم یې هلک
وي که نجلۍ مساوي دی.
له دې وروسته چې دغه ښځه په خوشحالۍ له دارالحیات څخه ووتله ماله ځان سره
وویل ولې باید دغنمو یوه دانه په یو شي پوه شي. خو یو ډاکټر پرې پوه نه شي.
ځکه چې هېڅ ډاکټر په لومړیو دوو میاشتو کې تر هغه دیوې ښځې په امیندوارۍ نه
شي پوهېدای چې خېټه یې لویه شوې نه وي.
یوازې یخپله ښځه د میاشتني عادت د بندېدو په مرسته په دې موضوع پوهېدای شي.
پر دې ورځ د لومړي ځل لپاره د( ولې ) کلیمه زما ذهن ته راغله، یوه استاد ته ورغلم او
هغه ته مې وویل ولې دغنمو یوه دانه په دې پوهېدای شي چې یوه ښځه امیندواره ده کنه؟
خو موږ پرې نه شو پوهېدای.
استاد هک پک راته وکتل او ویې ویل دغه موضوع په کتاب کې لیکل شوې ده.

خو دغه ځواب قانع نه کړم او بل استاد ته ورغلم چې هغه د دربار ښځې لنګولې. له هغه مې پوښتنه وکړه ولې یو موټی غنم چې په ځمکه کې کرل شوي وي مور ته دا راښیي چې یوه ښځه امیندواره ده که نه؟

د سلطنتي مېرمنو د لنګون ډاکټر راته وویل ددې لپاره چې د ټولو خدایانو خدای (آمون) همداسې مقرره کړې چې که د امیندارې مېرمنې په متیازو غنم خړوب شي ښه وده کوي.

کله چې هغه دغه ځواب راکړ پوه شوم چې ماته د یوه کلیوال په سترګه ګوري او زه په دې پوښتنې سره د هغه په نظر ډېر وړوکی شوم.

خو د هغه ځواب هم قانع نه کړای شوم او په دې هم پوه شوم چې هغه او نور سلطنتي ډاکټران یوازې د کتابونو په متن او د درملو د کارولو پر علتونو پوهېږي او هېڅ یو هم په دې لټه کې نه دی چې له ځانه پوښتنه وکړي ولې او دځه لپاره باید وسپنیزې او ډبرینې چړې تر کارولو مخکې په اور کې کېښودل شي.

یوه ورځ مې له یوه سلطنتي ډاکټر څخه پوښتنه وکړه کله چې د غنمې تارونه او فنګوسونه (کفک یا فنګس چې عام ډول یې پوپنک هم دی او د ډوډۍ او نورو خوړو په سر کله کله پیدا کېږي. یو ډول یې درملیز خواص هم لري) په تپ کېښودل کېږي، ولې ورسره تپ ښه کېږي؟ هغه په ځواب کې وویل ددې لپاره چې په کتاب کې همداسې لیکل شوي او دود همداسې دی.

په کتاب کې لیکل شوي ول. هغه کس چې ډبرینه یا وسپنیزه چاړه کاروي د انسان په بدن کې یوسل و دوه اتیا جراحي عملیات کولای شي.

ددغو ۱۸۲ جراحي عملیاتو ډول او څرنګوالی په کتاب کې لیکل شوی دی. کله چې ما پوښتنه وکړه ولې ۱۸۳ ډوله عملیات نه شو کولای ځواب راکړل شو چې کتاب همداسې لیکلي دي. دود همداسې دی او باید له دودونو او هغه څه څخه چې په کتاب کې لیکل شوي دي سرغړونه ونه کړو.

ځینې کسان به ډنګر شول او خېړې به یې سپینې شوې خو ډاکټرانو به ناورغي نه شوای موندلی، مګر په کتاب کې لیکل شوي ول چې دغه ډول کسان له هېڅ ډول ناروغۍ پرته ډنګرېږي او د خېړې رنګ یې سپین شي، دغه کسان باید د غاروېو ځیګر خام وخوري.

کله چې ما له سلطنتي ډاکټرانو پوښتنه وکړه چې ولې د غه کسان چې د ښارو یو خام ځیګر خوري چاغېږي او د مخ سپینوالی یې له منځه ځي. هغوی به ویل د دې لپاره چې په کتاب کې همداسې لیکل شوي دي او یا دا چې دود همداسې و.

زه پوه شوم چې زما پوښتنې د دې سبب شوې چې شاګردان او استادان ماته په بله سترګه وګوري او داسې ګمان یې کاوه چې زه لیوني شوی یم. یا دا چې فکر کوي زه یو ساده او احمق یم او د څرګندو مسلو په هکله پوښتنې کوم.

موږ هېڅکله له دارالحیات څخه بهر نه وتلو. ځکه دومره ډېر کار مو درلود چې بهر ته د تلو وخت را سره نه پاتې کېده.

پر دې سربېره پر لومړي او دویم کال له دارالحیات څخه بهر وتل بند ول او ساتونکو به محصلینو ته اجازه نه ورکوله چې له دارالحیات څخه بهر شي. خو له درېیم کاله وروسته یې اجازه درلوده چې له دارالحیات څخه بهر لاړ شي په دې شرط چې د هغوی زده کړې ته تاوان ونه رسېږي.

لومړی او دویم کال پر ما هم تېر شول او درېیم کال را ورسېد. پر همدې کال چې هغې ښځې د سپینو زرو کړی راکړه د ولې فکر راته پیدا شو.

پر درېیم کال د دارالحیات په ټولو محصلینو کې د شتمنۍ له پلوه زه تر ټولو کمزوری وم له همدې امله د مړو د لېږد کار ما ته سپارل شوی و.

کله چې به یې کومه کوډۍ سوری کړه، یا به یې کومه خېټه وڅیرله او بیا به هغه کس مړ شو، ما باید د هغه مړی له دارالحیاته بهر وړی وای. خود درالحیات له کارکونکو پرته بل څوک نه پوهېدل چې زه مړی له دې ځایه باسم.

ځکه چې مړي به مې د دار الحیات له شاتنۍ دروازې څخه ایستل او د هغوی تر ایستلو وروسته به مې د درالحیات په بهرني حوض کې چې د نیل او به پکې تېرېدلې خپل ځان وو ینځه.

یوه ورځ مې د مړي تر ایستلو او د ځان تر وینځلو وروسته د حوض په څنډه کې کالي اغوستل چې یوې ښځې راباندې غږ وکړ: اې ځوانه نوم دې څه دی؟

ومې کتل چې زما د نوم پوښتونکې مېرمنې نري کتاني کالي اغوستي دي او کمیس یې دومره نری و، چې سینې یې ښکارېدې. داسې برېښېده چې دغه مېرمنه ډېره بډایه ده ځکه د سرو او سپینو زرو لس بنګړي یې په لاسونو کې ول، سرې شونډې او تورې سترګې یې وې.

د سر له غوړ و وېښتو يې خوندور بوی راته.

ما په دارالحیات کې تل ډېرې ناورغې ښځې لیدلې وې، خو کله چې مې دغه ښځه ولیده وشرمېدم. په داسې حال کې چې له نورو هغو ښځو نه شرمېدم چې خپله ډېرینه چاره به مې پرې ګرځوله او عملیات به مې يې کاوه.

ښځه راته موسکۍ شوه او ویې ویل: ولې ځواب نه راکوې؟ بیا يې وپوښتل نوم دې څه دی؟

ما ځواب ورکړ: سینوهه.

ښځې وویل ځومره ښکلی نوم دی. ته چې په دې خریل شوي سر دومره ښکلی يې که وېښتان ولرې څومره به ښکلی شې.

فکر کوم له دې خبرې ورسته ډېر سور شوم ځکه دا لومړی ځل و، چې یوه ښځه له ما سره داسې خبرې کوي.

ددې لپاره چې له شرمه ځان پټ کړم او کومه خبره مې کړې وي ومې ویل ایا ته ناروغه يې او راغلې يې چې دلته د ځان درملنه وکړې؟ .

ښځې په خندا وویل: هو زه ناروغه یم خو معمولي نارغي نه لرم، له دې امله چې څوک نه لرم چې سات ورسره تېر کړم. نو نن دلته راغلم چې وګورم ددې ځای کوم ځوان مې خوښېږي.

کله چې ښځې دا خبره وکړه زه له شرمه، ووېرېدم او غوښتل مې چې ولاړ شم. خو هغې وپوښتل سینوهه! چیرته ځې؟

ومې ویل کار لرم او باید لاړ شم. ښځې وپوښتل (سینوهه) د کوم ځای يې؟

ومې ویل: دهمدې ځای یم.

ښځې وویل دروغ وایې ځکه چې دبدن او څېرې رنګ دې سپین دی. واړه ښکلي لاسونه، غوږونه او پوزه لرې او کله چې ما له لیرې ولیدې. خیال مې وکړ، یوې نجلۍ د دارالحیات د محصلینو کالي اغوستي دي.

کله چې مې داخبرې واورېدې، نه پوهېږم ولې مې زړه په درزېدا شو او په ځان کې مې غیر عادي او حیر انوونکی حالت احساس کړ. ښځې وویل سینوهه! ایا تا کله خپلې شونډې د یوې پېغلې پر شونډو ایښې دي او پوهېږې چې څومره خوند لري؟

.ما ویل: نه ..... ما هېڅکله خپلې شونډې د یوې پیغلې پر شونډو نه دي ایښې.

..... ښځې وویل: زما نوم (نفر )دی او له دې امله چې ټول وایي ډېره ښکلې یم، ما ته (نفر

*،نفر ، نفر ) وايي (دنفر کلمه دلرغوني مصر په ژبه کې دښکلې معنی ورکوله او (نفر ،نفر ،نفر) چې دښکلې کلمې درې ځلي تکرار دی د ښکلا د صفت مبالغه ده او د غه ډول مبالغه په پښتو کې هم لرو لکه چې څوک وايي ډير ، ډير ښکلی خو په ليکنې ارخ کې څکه ډېره نه کارېږي چې له فصاحته لېرې ده . ژباړونکی )*

او کله چې زه دلته ننوتم ستا ښکلې څېره مې خوښه شوه. تا ته بلنه درکوم چې زما کور ته راشې. چې په ګډه وڅښو او زه به تا ته درزده کړم چې څنګه له يوې ځوانې ښځې سره لوبې وکړې؟

په ياد مې شول چې پلار مې راته ويلي ول، که کومې ښځې درته وويل چې ته ښکلی يې بايد له هغې څخه ډډه وکړې، ځکه چې د دغه ډول ښځو په سينو کې اور بلېږي چې تا به وسوځوي.

ما ورته وويل :نفر ،نفر ،نفر ( د دغه نوم له تکراره مې خوند اخيست ) ستا په سينه کې داسې اور دی چې ما به وسوځوي.

ښځې وخندل او ويې ويل: چا درته ويلي چې زما په سينه کې اور دی چې تا به وسوځوي؟

ځواب مې ورکړ: پلار مې دغه خبره راته کړې ده.

زما لاس يې ونيو او په خپل تې يانې پر کميس بر سېره يې پر خپلې سينې کېښود او ويې ويل ايا ته دلته د اور احساس کوې او ستا لاس سوځي؟

ومې ويل .. نه ښځې خپل کتا ن کميس لېرې کړ او ويې ويل ښايي زما کميس د اور د لمبو مخه نيسي... خپل لاس دلته کېږده او وګوره چې ايا زما په سينه کې اور شته؟

ما نه يوازې د اور احساس ونه کړ بلکې کله چې مې د هغې پر سينو لاس کېښود د بېساري خوند احساس مې وکړ او کله چې ښځه متوجه شوه زما مقاومت يې مات کړی دی، نو ويې ويل: سينوهه! راځه چې لاړ شو او وڅښو او ديوې کنيزې په شان چې ځان د خپل خاوند په واک کې ورکوي زه به هم خپل وجود تا ته وسپارم.

زه دځوانې ښځې له دغه وړانديزه وېرېدلی وم ومې ويل (نفر ،نفر ،نفر ) له ما تېره شه ځکه چې زه وېرېږم.

ښځې وويل له څه شي وېرېږې؟ ومې ويل له تا وېرېږم او ستا کور ته له تګه ډارېږم.

ښځې په خندا وويل د فرعون زوی زما د درلودلو هيله کوي شتمن ځوانان ما ته د سر او سپينو کړې راکوي چې يوه ورځ يا شپه ورسره تېره کړم. خو زه د هغوی غوښتنه نه منم.

له دې کبله ستا غوښتونکې شوم چې ته د مصر تر ټولو ښکلې ځوان یې او ما هېڅکله ستا په شان ښکلی ځوان نه دی لیدلی.

ومې ویل: ( نفرنفرنفر ) پر ما رحم وکړه، په دې مه خوشحالېږه چې زه هم د نورو نارینه و په شان شم او خپله سپېڅلتیا له لاسه ورکړم، ځکه که یو نارینه له هغې ښځې سره ځملي چې آمون خدای ورته په نظر کې نه وي نیولې، خپله پاکي له لاسه ورکوي.

ښځې وخندل او ویې ویل: سینوهه! ته ډېر ساده یې زه حیرانه یم چې د طبس ښځو ځنګه تر اوسه پرې ایښی یې. ځکه امکان نه لري چې ستا په شان یو ښکلی هلک د دغه ښار په کوڅو کې وګرځي او ځوانې یې تعقیب نه کړي، مګر دا چې تل له مورو پلار سره وي.

بیا یې وویل: سینوهه اوس چې نه غواړې زما کور ته لاړ شي او نه پرېږدې چې زه خپل ساعت درسره تېر کړم نو یوه ډالۍ راکړه.

ما غوښتل هغه د سپینو بنګړی ورکړم چې مخکې امیندا ورې ښځې راکړی و. خو دې وویل دغه بنګړی زما لیاقت نه لري، باید داسې ډالۍ راکړې چې زما وړ وي.

ما ورته وویل چې زه یو بې وزله ځوان یم او تا ته ګران بیه ډالۍ نه شم درکولای.

ښځې وویل که داسې وي نو زما ډالۍ ومنه او هغې خپله یوه ګوتمۍ له ګوتې را وایسته او ما وکتل چې شین رنګه غمی لري او هغه یې ماته ډالۍ کړه.

ما غوښتل د ګوتمۍ له اخیستلو ډډه وکړم خو ویې ویل زه یوه بډایه ښځه یم، تا ته ددې ګوتمۍ درکول پر ما کوم اغېز نه کوي، خو ددې سبب به شي چې ته ما هېره نه کړې، ښایي یوه ورځ راشي او ته له دې شرمه ورتېر شي او پر دغې ورځ به ددې ګوتمۍ په بدل کې ماته ډېرې ډالۍ راکړې. ګوتمۍ مې ترې واخیسته، پیغله په موسکا رانه روانه شوه، ما احساس وکړ چې له معبده تر وتلو وروسته به پخپل روان تخت ناسته وي او خپل کور ته به تللې وي.

# پینځم څپرکی

## د مجسمه جوړوونکي هنرمن نصیحت

سلطنتي ډاکټر (پاتور) چې رسمي نوم او درجه یې کوپړۍ سپړونکی و، یوه ورځ زموږ کور ته راغلی و، ډوډۍ یې وخوړه او د پلار په مخ کې یې راته وویل: په دارالحیات کې مطیع او فرمانبردار او سه هېڅکله نیوکه مه کوه، هرڅه چې وایي ویې منه. خو ما خپل حقیقت پلټونکی حس نشوای ارامولای او د (ولې) ځواب مې لټاوه.
سلطنتي ډاکټرانو د دارالحیات معلمینو او محصلینو له دې کنجکاوۍ کرکه کوله
زه د دارالحیات پر درېیم کال پر دې پوه شوم چې پاتور ولې ویلي ول چې باید نیوکه ونه کړم او هرڅه چې راته وویل شي له جنجال پرته یې باید ومنم.
خو ومې ویل چې پوهه د تېزاب په شان ده. دانسان زړه خوري او پوه سړی د نورو په شان ناپوهه کېدای نه شي چې ځان په ساده توب او حماقت ورته واړوي.
هغه څوک چې له سره احمق وي له دې ناپوهۍ څخه کړېږي خو هغه کس چې حقیقت یې موندلی وي، ځان د احمقانو په شان نه شي ښودلای.
مالیدل هغه ډاکټران چې په ټولنه کې مشهوره شوي او له نینوا او بابل څخه ناروغان ورته د درملنې لپاره راځي، دومره شعور نه لري چې پوه شي د څه لپاره دغه درمل ناورغ ته ورکول کېږي؟
دوی یوازې دا وایي چې په کتاب کې همدا لیکل شوي دي، خو زه په دغسې حالت کې غلی نه شوای کېناستلی.
زما د نیوکو او کنجکاوۍ پایله دا شوه چې په دارالحیات کې یې زما د پرمختګ مخه ونیوله او اجازه یې رانه کړه چې دخپلو زده کړو بل پړاو پیل کړم.
هغه محصلین چې له ما سره په یوه ټولګي کې ول له ما مخکې شول او تر ما څو پړاوه مخته ولاړل. خو زه د دارالحیات په درېیم کال کې همدا سې پاتې وم.
په داسې حال کې چې ویلای شم په دغو محصلینو کې هېڅ یوه زما په شان استعداد نه

درلود او هیڅ یوه زما په شان له طبابت سره مینه نه درلوده.

له نیکه مرغه په ټولې دغې مودې کې چې د سلطنتي ډاکټرانو په امر له پرمختګه منع شوم د (آمون) نوم مې وانه خیست او له نورو به مې یوازې دا پوښتنه کوله چې ((ولې ؟))

ځکه چې که مې د آمون نوم اخیستلی او یا مې ویلي وای چې آمون نه پوهېږي او له دې امله چې پخپله بې خبره و. نور یې هم تېر ایستي دي. نو زه یې له دارالحیات څخه ایستلم او ما په دې ډول په طبس کې تحصیل نه شوای کولای. بیا به اړ وم چې سوریې یا بابل ته لاړ شم او هلته د مرګ تر وخته پورې د یوه ډاکټر تر لاس لاندې کار وکړم.

خو درباري ډاکټرانو له ښوونځي څخه زما د ایستلو لپاره لاسوند نه درلود له همدې امله یې په دې بسنه کوله چې د تحصیل په پړاوونو کې زما د پرمختګ مخه ونیسي.

په دارالحیات کې له څو کلونو ژوند کولو وروسته مې یوه ورځ د ښوونځي کالي وایستل او غسل مې وکړ په عادي کالیو کې له ښوونځي څخه ووتم او غوښتل مې خپل مور و پلار ته ورشم.

کله چې د طبس له سړکونو تېریدم و مې لیدل چې د ښار ښه بدله شوې ده او د سوریې ډېر او سپېدونکي او تورپوستي په ښکلو جامو کې په ښار کې ګرځي. پخوا به د دغو کسانو شمېر ډېرلږ و.

پر دې سربېره له هرې خوا د سریاني موسیقۍ (د سوریې موسیقي. ژباړونکی) غږونه اورېدل کېدل او دغه غږونه د عیاشۍ له ځانګړو کورونو راتلل.

له دې سره سره چې په ښار کې د عیش و عشرت نښې نښانې زیاتې شوې وې. خو خلک اندېښمن ښکارېدل. داسې برېښېده چې ټول د یوې بدبختۍ انتظار کوي او له اوسني حالته ګټه نه شي کولای چې خوشحاله وي.

زه هم د نورو په شان اندېښمن او غمجن وم. ځکه چې پوهېدم زما عمر په دارالحیات کې ضایع کېږي او څوک مې ترقۍ ته نه پرېږدي.

کله چې کور ته ورسېدم د مور و پلار په لیدو ډېر خپه شوم.

دواړه ډېر زاړه شوي ول. پلار مې دومره زوړ شوی و. چې د لیک د لیدو لپاره مجبوره و کاغذ تر خپلې پوزې پورې ستر ګو ته ورنژدې کړي او مور مې یوازې د خپل مرګ په هکله خبرې کولې.

زه په دې پوه شوم چې دواړه بریالي شوي چې په ډېرې سپما سره د نیل سین په لوډېځ

کې د هغې هدیرې ترڅنګ چې کاهنینو یې ځمکه په ډېره لوړه بیه خرڅوله د خان لپاره یو قبر واخلي.

پلار و مور زه بوتلم چې د مور دغه قبر چې پلار به مې هم پکې خاورو ته سپارل کېده راوښیي.

ومې لیدل چې دغه قبر له خښتو جوړ شوی او یوه کوچنۍ ودانۍ ده چې دیوالونه یې معمولي تصویرونه او کلیمې لري.

پلار و مور دګډ ژوند له پیله هیله درلوده ،د ډېرو یو قبر ولري چې په راتلونکي کې باران او لمر او د نیل سین غیر معمولي سیلابونه هغه وران نه کړي.خو خپلې دغې هیلې ته ونه رسېدل او اړ شول د خښتو دغه قبر جوړ کړي.

په هغه ځای کې چې زما د پلار و مور قبر یې جوړ کړی و، د مصر د فرعونانو قبرونه د هرم په بڼه له لېرې ښکارېدل او هرڅل چې زما مور و پلار اهرامونه کتل اسویلی به یې وایست. ځکه چې پوهېدل اهرامونه هېڅکله نه ورانېږي او باران ،لمر او دنیل سیند غیر عادي سېلابونه او نیزونه د هغو اډانې نه شي ورانولای.

ما د مور و پلار لپاره د مړو (اموات )یو کتاب له غلطۍ پرته لیکلی و ،چې له مړینې وروسته یې په قبر کې له ځان سره کېږدي او زما مور و پلار په بلې نړۍ کې د مړو د کتاب د تېروتنو له امله ورک نه شي.

له دې وروسته چې د قبر له لیدو خلاص شوو کورته ستانه شوو او مور مې خواړه راکړل.

پلار راڅخه د تحصیلاتو پوښتنه وکړه او ویې ویل زویه د مرګ لپاره دې څه فکر کړی دی؟

ومې ویل پلاره زه لا کوم عاید نه لرم چې د مرګ فکر وکړم او کله چې مې تنخوا او عاید پیدا کړل د بلې دنیا فکر به هم وکړم.

*(قدرمن لوستونکي باید توجه وکړي هرڅه چې په دغه کتاب کې لولي یو تاریخي حقیقت دی، د دغه کتاب ارزښت دا دی چې دنړۍ په تولو ژبو ژباړل شوی دی او داچاره دهمدې تاریخي ټکو له امله ده مثلاً په دغه ځای کې د مرګ په حال کې یو بوډا پلار له خپل ځوان زویه پوښتنه کوي: د خپل مرګ لپاره دې څه فکر کړی دی؟ ځکه چې په لرغوني مصر کې له هغه وخته چې یو کس به ځوان شو د ژوند تر وروستۍ شېبې پورې له*

*مرګه د وروسته پړاو لپاره د وسایلو د برابرولو فکر کوي او هغه اهرامونه چې په مصر کې ودان شوي دي د همدې لپاره وو. ژباړونکی)*

تر لمر لوېدو وروسته له مور و پلاره جلا شوم او کله چې له کوره راووتم د ښکلو هنرونو ښوونځي ته ور روان شوم چې په یوه معبد کې و. ځکه پوهېدم چې یو پخوانی ملګر ی مې هلته دی.

د دغه ځوان نوم توتمس و او د ښکلو هنرونو په برخه کې یې ښه استعداد درلود، ډېره موده موسره نه وو لیدلي.

کله چې د ښکلو هنرونو مدرسې ته ننوتم شاګردان د خپلو معلمانو په مرسته په کار بوخت ول او چې کله یې د توتمس نوم واورېد، نو له کرکې یې ناړې پر ځمکه تو کړې.

یوه وویل چې هغه یې له دې ښوونځي وشاړه.

بل وویل که غواړې هغه پیدا کړې باید داسې ځای ته لاړ شې چې هلته خدایانو ته ښکنځلې کېږي. ځکه چې توتمس خدایانو ته ښکنځلې کولې.

درېیم وویل هر چیرته چې لانجه او جنګ وي توتمس هم هلته دی او له هر جنګه وروسته ژوبلېږي.

خو کله چې ښوونکی لاړ او شاګردان پوه شول چې هغه نشته، ما ته یې وویل هغه (د سوریې صراحی )په نوم په یوې ساقي خانه کې پیدا کولای شې، دغه ساقي خانه دبېوزلو د محلې په وروستۍ برخې او د شتمنو د محلې په سر کې ده.

هورې بېوزله هنرمندان او هغه کسان چې د ښکلو هنرونو له ښوونځي شړل شوي دي راټولېږي او دا یې دېره ده.

ما له زحمت پرته دغه ساقي خانه پیدا کړه، ومې لیدل چې توتمس په زړو جامو کې په یوه څنډه کې ناست دی او داسې ښکاري چې همدا اوس له یوې لانجې خلاص شوی دی، ځکه چې تنده یې پړسېدلې وه.

توتمس چې کله زه ولیدم لاس یې پورته کړ او ویې ویل: سینوهه ته او دا ځای ؟ څنګه دلته راغلې ؟ ما فکر کاوه چې ته به یو ستر ډاکټر شوی یې.

ما ورته وویل زړه مې له غمونو ډک دی، یو ملګري ته مې اړتیا درلوده چې له هغه سره یو څه وخښم ځکه چې پلار مې ویلي لږ څښل د غمونو د لېرې کولو او ځان خوشحالو لپاره ښه وي.

زه په دې خپه یم چې څوک نه شي کولای د (ولې) ځواب راکړي او هغه کسان چې د غه ځواب نه شي راکولای ماته د لیوني په سترګه ګوري.

توتمس خپل لاسونه راوښودل چې وښيي د شرابو د اخيستلو لپاره سره یا سپین نه لري.

خو زما په لاس کې دوه کړې سپين زر ول. هغه ته مې ور وښودل او یوه کړې پکې هغه وه چې امينداري ښځې ماته راکړې وه.

ورپسې مې د ساقي خانې خاوند را وباله. هغه راغی او خپل دواړه لاسونه يې پر زنګنو کېښودل ټيټ شو. ما ترې وپوښتل څه ډول شراب لرې؟

هغه وويل دلته چې هر ډول شراب غواړې شته او زه به خپل شراب په رنګارنګ جامونو کې درکړم. تردې چې د هغو په لیدو سره به ستاسې د زړونو جامونه هم ډېر ژر خوشحاله شي.

توتمس وويل موږ ته د نرګس له عطر و سره ګډ شوي شراب راوړه.

غلام راغی او زموږ پر لاسونو يې اوبه راواچولې.

بيايې د هندوانې زنې پر مېز کېښودل او ورپسې يې شراب راوړل. هغه جامونه چې شراب پکې اچول شوي ول. ړنه او رنګين ول.

توتمس شراب په دې هیلې وڅښل چې د ښکلو هنرونو ښونځي او د هغه ښوونکي له نه غړېدونکي خدای سره مخامخ شي.

ماهم په دې هیله خپل شراب وڅښل چې د آمون ټول ملایان له همدغه خدای سره مخامخ شي.

په کراره مې خبرې وکړې او توتمس وويل مه ډارېږه. ددې ساقي خانې ټول ګاکان زما او ستا په شان ازاد فکر لري.

له دوو جامونو وروسته د شرابو رڼا زموږ زړونه روښانه کړل. ما وويل په دارالحیات کې زه له تور پوستو غلامانو هم پست او رالوېدلی یم او له ما سره داسې چلند کېږي چې ته وا ورانکاری یم.

توتمس وپوښتل ولې در سره داسې چلند کېږي؟

ومې ويل ددې لپاره چې وايم (ولې).

توتمس وويل ته د ډېرې سختې سزا وړ يې ځکه کله چې وايې (ولې یا د څه لپاره؟) د

هغو کسانو پر دین اعتقاداتو او شتمنۍ یرغل کوي چې په مصر حکومت کوي. ... او هغوی پوهېږي چې ستا دغه پوښتنه د هغوی قدرت، شتمنۍ او نیکمرغۍ ته تاوان رسوي، نو مجبور دي چې تا وشړي.

زه خو حیران یم چې څنګه تر او سه پورې په دارالحیات کې پاتې یې. ولې دې نه شړي او زما پر برخلیک چې د ښکلو هنرونو له ښونځي شړل شوی یم نه اخته کېږې.

دغه کسان چې ته یې ګورې ښایي د رنګ، جسم، او د بدن د پوستکي اوان د مذهبي عقیدو له پلوه تو پیرونه ولري خو له یوه پلوه ګډه عقیده لري او هغه دا چې څنګه دغه موهومات او ناسمې عقیدې او دغه تشکیلات پخپل حال وساتي، ځکه چې دغه تشکیلات د هغوی او د هغوی د بچیانو په ګټه دي. دوی له دغو تشکیلاتو مخکې هم حکومت کاوه او قدرت لري. بل دا چې د دوی شتمني به هم ورځ تربلې زیاته شي.

خو ته وایې(دڅه لپاره؟) غواړې د دغو تشکیلاتو بنسټ وران کړې او د هغوی ناپوهي ثابته کړې.

که هغوی پخپلو کې اختلافات هم ولري خو ستا پر خلاف به یو ځای شي چې تا له منځه یوسي. ځکه چې ستا خطر د هغوی ترمنځ له اختلافاتو ډېر زیات دی او تر هغه چې مصر وي او په دغه هېواد کې اهرامونه شته هغوی به که ستا په شان لکونه کسان قربان هم کړي دغه تشکیلات به وساتي. ځکه چې د دوی دقدرت ضمانت کوي او هرڅوک چې مخالفت وکړي هغوی به د آمون یا فرعون په نامه له منځه یوسي.

بیا تو تمس راته وویل کله چې زه د ښکلو هنرونو ښوونځي ته ولاړم ډا سې خوشحاله وم چې له مرګه وروسته به مې په اهرامونو کې ښخوي.

کله چې ما کارپیل کړ لومړی مې په قلم پر تختوانځورونه کاږل وروسته مې بیا نرمه خاوره د مجسمو د جوړولو لپاره وکاروله او په پیل کې به مې د موم په مرسته د هرې مجسمې قالبونه جوړ ل کړل، وروسته به مې د هغو له مخې ډبرینې مجسمې جوړولې.

دغه مهال زه د هغه ترې په شان وم چې اوبو ته رسېدلی وي او هر کار به مې په شوق سره کاوه. تر دې پورې چې یوه ورځ مې لټه وکړه چې دخپلې خوښې او سلیقې په اساس مجسمې جوړې کړم او هغو ته بڼه او رنګ ورکړم.

خو پر دې ورځ ناڅاپه د ښکلو هنرونو استادانو اعتراضونه پیل کړل او ویې ویل دغه مجسمې چې ته یې جوړول غواړې له قانون سره سمې نه دي. ځکه همغه ډول چې د خط هر

توری خپله خاصه ښه لري او له هغه پرته لیکل نه شي کېدای. په ښکلو هنرونو کې هم هره څېره او مجسمه خپله خاصه ښه لري داسې نه شي کېدای شي چې له هغه پرته بل ډول مجسمه جوړه کړې او یا نوی رنګ پکې وکاروې.

د ښکلو هنرونو د رامنځته کېدا په وخت کې د هغه سړي انځور چې ناست او یا ولاړ دی رانبودل شوی دی او موږ هم همغه ډول چې زموږ پلرونو انځور کړي دغه تصویرونه باسو.

د پنځون له پیله. هنرمندانو د حرکت په وخت کې د خره د لاسونو د پورته کېدو، یا ښکته کېدو ډولونه په انځورونو کې معلوم کړي دي.

که موږ د هغوی پر خلاف انځور وباسو کفر به مو کړی وي او په دې ډول به موږ هنرمندان ونه بولي چې هرڅوک دې پخپله خوښه او سلیقه تابلو ګانې وباسي او یا دې مجسمې جوړې کړي.

هرڅوک چې زموږ د قانون او دود پر بنسټ انځور وباسي یا مجسمه جوړه کړي موږ هغه په ښوونځي کې منو. هغه ته د کار لپاره پاپي روس کاغذ او نرمه خاوره، کاني او دنجارۍ او حجارۍ وسایل ورکوو او هرڅوک چې زموږ د قوانینو پر بنسټ عمل ونه کړي هغه به د ښکلو هنرونو له ښوونځي وباسو.

ای سینوهه زه هم ستا په شان وم او په ښوونځي کې مې خپلو استادانو ته وویل ولې باید داسې وي او ولې باید داسې نه وي؟ ولې دیوې مجسمې سینه تل په شنه رنګ رنګېږي او ولې یې تل سترګې سرې جوړېږي؟ ایا غوره نه ده چې دیوې مجسمې سترګې تورې کړو او جامې یې په هغه ډول رنګ کړو چې پخپله یې غوښتې دي.

خو د معبد کاهنین هرچیر ته ښوونکي او استادان دي، هغوی زه له ښوونځي وایستلم او له همدې امله مې اوس په همدې ساقي خانه کې په پړسېدلي مخ ګورې.

خو ای سینوهه! له دې سره سره چې کاهنین په معبد او هغو ښوونځیو کې چې په دغو معبدونو کې یې جوړ کړي دي کلک نښتي دي او خپل دودونه او رواجونه نه پرېږدي، هڅه کوي هر نوی فکر په همغه لومړي سر کې له منځه یوسي او نه پرېږدي چې د تحول او بدلون لپاره کوم ګام پورته شي خو زه ذا احساس لرم چې دنیا داسې بدله شوې چې حیرانوونکې ده.

دغه کسان چې اوس د طبس په ښارکې ګرځي که څه هم په آمون او نورو مصري

خدايانو عقيده لري خو له هغوی څخه نه وېرېږي او د جامو په اغوستلو کې هم بې پروا دي
دغه بې پروايي لوړې درجې ته رسېدلې شي ، ځکه چې خلک په ډېرې بې شرمۍ خپلې
سينې او خېټې په رنګارنګ جامو کې پټوي، په داسې حال کې چې پاک خدای انسان لوڅ
لپړ پنځولی دی . ددې لپاره چې انسان تل لوڅ وي او هېڅکله خپل بدن پټ نه کړي ان
ښځې د نارينه و په شان بې شرمه شوې دي او داسې جامې اغوندي چې سينې او خېټې يې
پټوي.

*(لوستونکي دې توجه وکړي، هغه څه چې په دغه کتاب کې ليکل شوي تاريخي واقيعتونه دي. په قديم مصر کې خلکو داسې جامې اغوستلې چې د هغوی سينه او خېټه به يې نه پټوله او لوڅې سينې ويار و. ژباړونکی )*

زه چې په دغو حالاتو فکر کوم ګمان مې دی، چې په وروستۍ زمانه کې يو او ډېر ژر
به دنيا پای ته ورسېږي.

که پېنځوس کاله مخکې يوې ښځې يا يوه نارينه داسې جامې اغوستلې چې سينه يا
خېټه به يې پټوله خدايانو ته د سپکاوي په تور به يې سنګسار کړل. خو اوس همدا ډول
ښځې او نارينه د طبس په واټونو کې ازاد ګرځي.

اوه ! دغه دنيا څومره زړه شوې ده، سخ دې وي په هغه کسانو چې ذوه زره کاله مخکې
يې دغه ستر هرم . زر کاله مخکې يې دغه وړوکی هرم جوړ کړی دی. لاړل او اوس ژوندي
نه دي چې دغه حالات وګوري.

د شرابو جام پر دې سربېره چې زموږ زړونه يې ښاد کړل، زموږ اروا يې هم داسې سپکه
کړه لکه چې توتکی په منې کې الوت کوي *(په مصر کې د نيل سيند په منې کې مستېږي او سيلابونه راځي نو توتکی هم په منې کې راڅرګندېږي )*

توتمس وويل: ښه به داوي چې پاڅو، دعياشۍ يوه کور ته لاړ شو او د نڅا ننداره وکړو
چې تېوله شپه د( ولې ) په هکله فکر ونه کړو.

ما د ساقي خانې خاوند ته نارې کړې، هغه رانژدې شو ، دواړه لاسونه يې پر زنګونو
کېښودل او ټيټ شو ، ما له دوو سپينو کړيو څخه يوه هغه ته ورکړه چې د شرابو او زېو بيه
وروګرځوي. دساقي خانې خاوند د شرابو او زېو د بيې له ګرځولو وروسته د مسو څو
کړۍ بېرته ماته راکړې، ما د مسو يوه کړۍ هغه مريي ته ورکړه، چې موږ ته يې شراب
راوړي ول او زموږ پر لاسونو يې اوبه راچولې وې.

کله چې مو غوښتل له ساقي خانې ووځو. نو شراب پلورنکي رانژدې شو او د درناوي په دود تیټ شو. ویې ویل که مو زړه غواړي چې له سریاني نجونو سره ساعت تېر کړئ، ره پکې ځینې پېژنم. چمتو یم چې تاسې ته لارښوونه وکړم او د دغو نجونو کور در وښیم.

د هغوی کور ته د ننوتو شرط دا دی چې تاسې به له ماخخه یومنګی شراب واخلئ او د هغوی کور ته ورشئ. کله چې هغوی شراب وګوري تاسې ته به لاره درکړي چې کور ته ورننوځئ.

توتمس وویل زه له سریاني نجونو څخه چې زیاتره یې زما د مور په شان زړې دي کرکه کوم. فکر کوم هغوی هغه نجونې دي چې کله زما پلار ځوان و، ورسره یې ساعت تېراوه.

د ساقي خانې خاوند وویل زه به د داسې نجونو کور در وښیم چې کله د هغوی څېرې وګورئ زړونه به مو له خوشحالۍ ښاد شي او هغوی به په ډېرې خوشحالۍ سره دې ته چمتو شي چې ستاسې خوښندې شي.

خو توتمس ونه منله او زه یې له ساقي خانې بهر کړم موږ د ښار په واټونو کې وګرځېدو.

د طبس ښار شپه او ورځ نه لري. شپه یې هم د ورځې په شان وي او خلک د ښار په کوڅو او واټونو کې ګرځي.

بډای عیاشان پر روان تخت سپاره له واټونو تېرېدل او د ساعت تېریو د کورونو په دروازو او په څلور لاروکې مشالونه سوځېدل.

له ځینو دغو کورنو د سریاني موسیقۍ (د سوریې موسیقي) غږونه اورېدل کېدل. له ځینو کورنو څخه د تورپوستو د ډول غږونه راتلل او موږ به پوهېدو چې د دغو کورونو ښځې تورپوستې دي.

توتمس باور درلود چې ځینې تورپوستې ښځې ښکلې وي او کله چې انسان هغوی د خپلې خور په توګه غوره کړي نیکمرغه به شي *(څلورزره کاله مخکې په مصرکې خوراو ورور د واده اجازه درلوده له همدې امله نارینه و. به خپلې ښځې د خور په نامه یادولې. ژباړن)*

زه په څوڅو خله له خپل پلار سره یو ځای د ناروغانو کورونو ته د تګ لپاره د طبس له واټونو تېر شوی وم.

خو تر دې شپې پورې نه پوهېدم چې د عیاشۍ د کورنو داخلي حالت به څنګه وي؟

توتمس یوه کوچني کور ته بوتلم چې د انګوروپیشۍ په نامه یادېده. هلته پر غولي

نرم فرش خپور و . څراغونو زېړ پوښونه درلودل.

د دې کور ښځې د څراغونو د زېړې رڼا له امله ښکلې ښکارېدې او ومې کتل چې خینې پکې شپیلې او ځینې بربط غږوي.

یوې نجلۍ له هغه وروسته چې زه یې ولیدم شپیلۍ پر ځمکه کېښوده راپاڅېده او ماته راغله لاسونه یې زما پر لاس کېښودل او بله نجلۍ تو تمس ته نژدې شوه او خپل لاس یې د هغه په لاس کې کښود . هغې چې زما پر لاس یې لاس ایښی و . زما لاس یې پورته کړ او ویې کوت. بیا یې زما پر خړېیل شوي سر نظر تېر کړ او ویې پوښتل :ته د طب په ښوونځي کې درس وایې که د حقوقو یا سوداګرۍ او که د ستورپېژندنې؟

له دې امله چې د توتمس لاسونه ځیږه ول. هغې نجلۍ ورته وویل چې هغه به د ښکلیو هنرونو په ښوونځي کې درس وایي ځکه چې د حجارانو او مجسمه جوړونکو لاسونه هم د طبیبانو او محصلینو په پرتله ځیږه وي.

له هغه وروسته مې د ډېرو شرابو له امله په یاد نه دي چې څه وشول خو په مبهم ډول مې احساس وکړ چې په هغه کور کې له یوې تورپوستې سره وښتم. یو وخت مې ځان له کوره بهر په ناولي لښتي کې ولید او ومې کتل چې له مایې د سپینو زرو او مسو کړۍ هم اخیستې دي.

د پلار خبره رایاده شوه چې ویل به یې کله چې انسان ډېر وځښي نتېجه یې داشي چې کله سترګې پرانیزي نو په لښتي کې به پروت وي. توتمس د نیل سیند څنډې ته بوتلم چې هلته خپل په ختو ککړ مخ او لاسونه ووینځم.

کله چې دارالحیات ته ستون شوم سهار شوی و . له دې سره سره چې د ډېرو شرابو د څښلو له امله مې حالت ښه نه و . خو ځان مې د غوږونو برخې ته ورساوه ځکه چې پر دې ورځ مې باید په دې برخه کې کار کړی وای.

په دهلیز کې معلم ولیدم. دغه سړی د غوږونو د ناورغیو متخصص او درباري ډاکټر و . زما شلېدلو جامو او پړسېدلي سرته یې وکتل او ویې ویل :سینوهه ! ته بېګا د عیاشۍ په کورونو کې وې؟ ماخپل سر ټیټ نیولی و . ښوونکي وویل سترګې دې راوښیه ! ما مې سترګې ور وښودلې او له هغه وروسته یې زما ژبه هم ولیده او نبض یې وکوت ویې ویل: بېګا دې ډېر څښلي دي. په دارالحیات کې د یوه محصل لپاره په شرابو کې افراط ښه نه وي. ځکه چې هغه له کاره غورځوي. که ته ځان معالجه نه کړې ترسبا به

پر کاله وې او له زړه کار نه شې کولای، راځه چې مسهل درکړم چې کولمې دې پاکې کړي او د شرابو اغېز له منځه یوسي، خو په دې شرط چې نور به نه وايې چې(ولې)ځکه چې په دارالحیات کې د عیاشۍ کورنو ته تګ او شراب څښل عیب نه دی خو( ولې ) پوښتنه ستر عیب ګڼل کېږي.

ما ترهغې شپې پورې له ښځې سره وېډ ېدل نه وو حس کړي او ګمان مې نه کاوه چې د یوې ښځې شتون به سړی دومره خوشحالوي.

له هغه وروسته به مې له هر فرصته استفاده کوله چې سپین او مس به مې درلودل د عیاشۍ کورونو ته به تلم.

له دې امله چې په دارالحیات کې به ناروغانو سپین زر راکول نو د فلزاتو ترلاسه کول به راته سخت نه و.

له هغه وروسته په دې پوه شوم چې د ښوونځي معلمین چې پخوا په ما بدبینه ول د عیاشۍ کورونو ته ترنګ وروسته یې ماته په ښه سترګه کتل، ځکه پوه شوي ول چې زه په عیاشۍ کې دومره بوخت یم چې د نیوکو فکر راسره نشته.

په دغو حالاتو کې فرعون چې (امن هوتپ) نومېده سخت ناورغ و او درباري ډاکټرانو یې علاج نه شو کولای.

له دې سره سره چې هره ورځ به یې د فرعون له خوا په معبد کې قرباني کوله خو هغه ورسره نه ښه کېده.

داسې اوازه ګډه شوه چې پاچا پر آمون خدای غوصه شوی چې د هغه علاج نه کوي او په بین النهرین کې یې نینوا ته یو پلاوی استولی چې د نینوا له خدایه څخه چې (ایشتار ) نومېږي مرسته وغواړي.

خو دغه موضوع له ملي پلوه دومره لوی شرم و، چې چا جرات نه شو کولای دغه خبره په لوړ اوزا وکړي چې فرعون دځان د درملنې لپاره د نینوا له خدایه مرسته غوښتې ده، خلکو به په کراره دغه خبره کوله.

یوه ورځ د نینوا د خدای مجسمه طبس ته ننوته، ما ولیدل چې یو شمېر روحانیون چې اوږدې ږیرې یې درلودې، د دغې مجسمې شا وخواته راغونډ شوي ول.

له دې سرهله دې، چې ما فکر کاوه زه یو روڼاندی محصل یم خو له دې امله چې پردی خدای راغلی او زموږ د فرعون درملنه کوي کرېدم او کتل مې چې تول محصلین او د

دارالحیات ښوونکي هم خپه ول.

پردې خدای د نیل له مستېدا تر یوې اونۍ مخکې پورې په مصر کې و، خو هېڅ ګټه یې ونه کړه چې د فرعون درملنه وکړي او موږ ټول د پردي خدای له ناکامۍ خوشحاله شوو.

سلطنتي کوپړۍ سوري کوونکی د دربار د نورو ډاکټرانو په شان دارالحیات ته راته، خو هغه هم د نورو په شان اند ښمن و او تر یوه وخته یې ما ته توجه نه کوله.

کله چې پوه شو چې نورې پوښتنې نه کوم، جنجال نه جوړوم او نه وایم چې د(ولې) ځواب راکړیء، نو له ما سره نرم شو او یوه ورځ یې راته وویل سینوهه! ستا پلار ستر سړی دی، خو د ټولو حقیقي مشرانو په شان ښوزله دی، زه ستا له پلار سره د ملګرتیا له مخې او د هغه درناوي پر بنسټ چې د هغه شرافت او ستر توب ته یې لرم غواړم له تا سره مرسته وکړم.

زه نه پوهېدم چې پاتور به څه مرسته راسره وکړي

خو یوه ورځ یې خبر راکړ چې پاتور د فرعون د سر د کوپړۍ د سپړلو لپاره سلطنتي ماڼۍ ته ځي.

# شپږم څپرکی

## لاړو چې د فرعون کوپړۍ سوری کړو

ټول ډاکټران د فرعون له معالجې نهيلي شوي ول او يوازې د درملنې يوه لاره پاتې وه، هغه داوه چې د هغه د کوپړۍ وسپړي او وګوري چې ايا د هغه ماغزه کومه ستونزه لري کنه؟

دغه کار په هر حالت کې ګټه درلوده. ځکه چې که د هغه ماغزو کوم عيب درلودای، نو د ماغزو عيب يې لېرې کاوه او که يې عيب نه درلودای په کوپړۍ کې موجود زهرجن بخارونه يې را ايستل او د فرعون سر سپکېده.

پر هغې ورځ چې پاتور د فرعون ماڼۍ ته ورته چې سريې سوری کړي سهار وختي دارالحيات ته راغی او زه يې ورو بللم هغه يو صندوق راکړ او ويې ويل په دغه صندوق کې زما د جراحۍ وسايل وي چې په اور کې اېښودل شوي يا اېشول شوي دي. غواړم ترد ې مخکې چې نن سلطنتي ماڼۍ ته لاړ شم دلته د دوو کسانو کوپړۍ سوری او وسپړم. دد ې لپاره چې تمرين وکړې نو غواړم چې د کار په وخت کې ته د جراحۍ وسايل راکړې.

پوه شوم هغه مرسته چې پاتور غوښتل له ما سره يې وکړي همدا ده ځکه کله چې يو شاګرد د سلطنتي ډاکټر له لوري غوره کېږي چې د جراحۍ وسايل د عملياتو په وخت کې ور کړي هغه غوره شاګرد وي . دغه شاګرد د هغه نږدې کس وي او دد ې لياقت لري چې د هغه طبي مرستيال شي.

له هغه وروسته پاتور مخکې او زه ورپسې هغې برخې ته ننوتو چې لاعلاجه ناروغان . مفلوجين او هغه کسان پکې پراته ول چې په سر کې زخميان شوي ول.

پاتور چې هلته ورسېد د څېنو سرونه يې معاينه کړل او دوه تنه يې د جمجمې د سپړلو لپاره غوره کړل.

يو هغه لاعلاجه بوډا وو، چې مرګ ورته لويه نيکمرغي وه او بل يو کلک او

تورپوستی غلام چې په سر ته په ډبرې وهل شوی و ، نه یې خبرې کولای شوې او نه یې د بدن غړي ښوورولای شول.

دواړه یې د جراحی هال ته بوتلل او بې له ځنډه یې د اپیمو شیره د هغوی رګونو ته ننه ایستله چې د درد احساس ونه کړي.

په چالاکی سره مې د هغوی سر ونه وخریل او بیا مې د فنګس (کفک ) او شنجرف (VERMILION ) محلول پرې وموښل ځکه چې په کتاب کې لیکل شوي ول. چې له جراحي عملیاتو مخکې باید د عملیات ځای په دغه ډول محلول پاک شي.

پاتور خپله چاړه واخیسته. د سرپوستکی یې پرې کړ. پوستکی یې دواړو لورو ته واړو. په دې وخت کې د سر د پوستکي له دواړو غاړو وینه بهیدله خو پاتور وینې ته توجه نه کوله.

تر دې وروسته پاتور د کوپړۍ د سوري کولو وسیله واخیسته او په سر کې یې دننه کړه . کله چې د دې الې څوکه په سر کې ننوتله هغه یې وڅرخوله په دې ډول چې یو ګرد هډوکی د سر له کوپړۍ بېل شو او مازغه ښکاره شول.

پاتور ماغزو ته ځیر شو او ویې ویل زه د دغه کس په مازغو کې هېڅ نقص نه وینم. بیرته یې هډوکی پر خپل ځای کېښود او پوستکی یې چې سره بېل کړی یې وبیرته سره یو ځای کړ او ویې تاړه.

خو کله چې هغه د سر د تړلو په حال کې و د ناروغ رنګ تک شین واوښت او مړ شو .

کله چې د هغه سړي مړی یې بهر کړ د دارالحیات مشر هم له یو شمېر محصلینو سره هلته موجود و.

پاتور یوه محصل ته وویل په تاسې کې یو تن چې لړ ځوان وي لاړ شئ او ماته لږ شراب راوړي، چې لاسونه مې ریږدي.

یو محصل لاړ او یوه پیاله شراب یې راوړل هغه چې یې وڅښل د لاسونو رېږدېدل یې ودرېدل بیا یې امر وکړ چې مریی د عملیاتو لپاره وتړي او وروو یې زیاته کړه: د سر د هډوکي د قالب نیونې وسایل چمتو کړئ.

یو ځل بیا ما هغه ته د جراحی وسایل ورکړل، هغه لومړی د سر پوستکی لېرې کړ ،خو دا ځل دوه تنه د هغه په امر په ښي او کیڼ لوري کې ولاړ وو، چې د وینې بهېدا مخه ونیسي. ځکه چې پاتور نه غوښتل پخپله په وړو کارونو باندې وخت ضایع کړي چې له

اصلي کاره پاتې نه شي.

په دارالحیات کې یو بې سواده کس و، چې کله به د ناروغ په بستر حاضر شو د زخم خونریزي به و دریدله، خو پاتور په دې وخت کې نه غوښتل له هغه کار واخلي او هغه یې د فرعون د سر سپړلو ته ساتلی و.

له دې ورسته چې پوستکی لیرې شو پاتور د مریي د سر هډوکی ما او نورو کسانو ته وروښود، مور ولیدل چې د هډوکي یوه برخه د ګوزار له امله ننوتې ده.

له هغه وروسته یې په خاصې چړې او ارې سره د هډوکي دغه برخه له جمجې بېله کړه. چې اندازه یې د لاس د ورغوي هومره، او پاتور د تورپوستي مازغه چې سپین رنګه وو او ښورېدل تولو ته وروښودل. مور ولیدل چې پر مازغو لړه وینه هم پرته ده او هلته لخته یا کلکه شوې ده.

پاتور وویل دا چې دغه سړی خبرې نه شي کولای او د بدن غړي نه شي ښورولای لامل یې د هغه پر مازغو همدغه لخته یا کلکه شوې وینه ده.

بیا یې په ډېرې ځیرتیا سره دغه وینه له مازغو پورته کړه او یو وړوکی هډوکی یې هم چې پر مازغو پروت و له هغه ځایه په احتیاط سره لیرې کړ.

په داسې حال کې چې هغه پخپل کار بوخت و، نورو په بیړه له کوپړۍ د جلا شوي هډوکي له مخې د هغه قالب اخیست، قالب واخیستل شو او په دې ډول یې په لرګین ځټک هډوکی وټکاوه چې ننوتلی ځای یې بیرته سم شي او بیا یې د هغه قالب واخیسته او په قالب کې یې ویلې شوي سپین زر واچول.

سپین زر یې په اېښیدلو اوبو کې ساړه کړل او پاتور ته یې ورکړل پاتور هغه د سپینو زرو ټوټه چې د ناروغ د سر د جلا شوي هډوکي په اندازه وه، د سر په ستر سوري کېښوده او د سپینو زرو په کوچنیو بستونو سره یې د سر له هډوکي سره ونښلوله ورپسې یې د سر پوستکی بیرته د سپنیو زرو په قالب راکاږه او له ګنډلو وروسته یې تپ وتاړه.

پاتور وویل دغه سړی راویښ کړئ، خو باید تر دریو ورځو پورې حرکت ونه کړي.

سړی یې راویښ کړ.

هغه چې د کوپړۍ له دې عملیاتو مخکې خبرې نه شوای کولای او لاس او پښې یې نه شوای ښورولای تر عملیاتو وروسته یې هم اندامونه خوځولای شوای او هم یې خبرې وکړې.

پاتور هغه ته وویل تر دریو ورځو پورې باید سر، ونه ښوروي.

کله چې یې مریې بلې کوټې ته د ځملاستو لپاره بوت پاتور وویل که دغه کس تر دریو ورځو پورې مړ نه شي معالجه به شي، له دارالحیاته وتلای او له هغه چا ځخه خپل کسات اخیستلای شي چې سر یې ورمات کړی و.

له دې وروسته یې محصلین رخصت کړل او ماته یې وویل لاړ شه. زما وسایل په اور کې کېږده، ویې اېشوه چې فرعون ته ورشو او ته به هم له ما سره ځې.

ما په بیړه د پاتور د جراحۍ وسایل پریمنځل، په اور کې مې کېښودل، ځینې مې واېشول او له دارالحیاته ووتو.

دهغه د جراحۍ صندوق ما اخیستی و او په سلطنتي راون تخت کې چې د دارالحیات پر وړاندې یې زموږ انتظار کاوه سپاره شوو.

دهغه کس په ملګرتیا چې دهغه حضور د وینې دبهېدا مخه نیوله د سلطنتي ماڼۍ پر لور راون شو.

مریانو روان تخت داسې لېږداوه چې بیخي نه خوځېده او ما یو ډول ویاړ کاوه ځکه چې پوهېدم ډېر ژر به سلطنتي ماڼۍ ته ننوځم او فرعون به له نژدې وګورم.

له دې وروسته چې لږ مزل مو په روان تخت وکړ د نیل څنډو ته ورسېدو، په سلطنتي ماکو کې کېښناستو او د (طلایي کور) یانې سلطنتي ماڼۍ پر لوري روان شو.

کله چې هلته نژدې شو دومره ماکوګان او ګران بیه بېړۍ چې له ګرانو لرګیو جوړې شوې وې، ترسترګو کېدلې چې د نیل او به بیخي نه ښکارېدې.

د خلکو په خوله دا خبره وه چې درباري کوپړۍ سوری کوونکی ډاکټر راغلی دی، ټولو به د ویر په ښه لاسونه پورته کول او ژړل به یې. ځکه چې پوهېدل داسې نه دي شوي چې کوم فرعون دې د کوپړۍ له سپړلو وروسته ژوندی پاتې وي.

موږ د ماڼۍ په مخکې له ماکو ښکته شوو او د زنبق په نامه له دروازې یې موږ ماڼۍ ته دننه کړو.

د دربار مشرانو او سترو شخصیتونو زموږ په مخکې خپل لاسونه په زنګنو کېښودل او سرونه به یې د درناوي په دو د ټیټ کړل، ځکه چې پوهېدل موږ هغه کسان یو چې مرګ موله ځان سره راوړی دی.

موږ یې د فرعون د خوب د کوټې پر لوري بوتلو، ومې لیدل چې فرعون پر یوه کټ

پروت دی چې زري بخمل پرې غوړېدلی و او د کټ پښې د خدایانو له مجسمو جوړې شوې وې.

په هغه وخت کې فرعون سلطنتي نښې نه درلودې مخ یې پړسېدلی او اندامونه یې لوځ ول. سر یې یوه لورته کوږ شوی او له خولې یې ناړې روانې وې.

ما چې کله فرعون په دې حالت کې ولید متوجه شوم چې ددې نړۍ قدرت دومره ناپایداره دی. چې فرعون د ناروغۍ او مرګ په بستر کې له هغو بېوزلو سره کوم توپیر نه لري چې په دارلحیات کې معالجه کېدل او یا به مړه شول.

خو د کوټې سینګار ډېر ښکلی و. په دیوالونو د سلطنتي ګاډیو عکسونه جوړ شوي وو او فرعون په هغو ګاډیو کې د زمریانو پر لور دغشي ویشتو پر وخت انځور شوی و.

پر دیوالونو باندې سره. لاجوردي او طلایي رنګونه ځلېدل او د کوټې غولی یې د یو ستر حوض په بڼه ښکلی جوړ کړی و. چې کبان پکې لامبو وهي او هیلۍ او مارغان پکې الوتنه کوي. موږ لاسونه په زنګونو کېښودل او پر ملا ټيټ شوو.

زه او پاتور پوهېدو چې د فرعون د سر سپړل به ګټه ونه کړي او د هغه حالت ښيي چې مړ به شي.

بله دا چې دود داوي چې له مړينې مخکې باید د فرعون سر سوری شي چې له سره یې بخارونه بهر شي او دا وویل شي چې شاوخوا کسانو د علاج په برخه کې له وروستیو هلو ځلو هم ډډه ونه کړه.

ما د پاتور. تور بخونه صندوق چې له ښکلي ابنوس(EBONY) لرګي جوړ شوی و. پرانست چې وسایل یې ورکړم.

زموږ تر ورتګ مخکې سلطنتي ډاکټرانو دفرعون سر خرېیلی و او د کوپړۍ د سوري کولو لپاره یې چمتو کړی و.

پاتور هغه سړي ته چې شتون به یې دوینې د بهېدا مخه نیوله امر وکړ چې د فرعون د سر خوا ته ودرېږي او د هغه سر دې په دواړو لاسونو کې کلک ونیسي.

خو په دې وخت کې د مصر ملکه چې( تي تي ) نومېده را مخکې شوه او ویې ویل نه!

ما تر هغه وخته د هغه ځای دعظمت له امله د مصر ملکه. ولیعهد او د هغه خور نه وو لیدلي او تولو دغم له امله لاسونه پورته نیولي ول.

د مصر ولیعهد همغه ډول چې د دغه کتاب په پیل کې مې هم وویل په هغه کال وزېږېد

چې زه پکې زېږدلی وم خو ترما دنګ و، ژامه يې درلوده خو تشر يې ننوتی و. هغه هم دخپلې مور او خور په شان لاسونه پورته نيولي ول.

خور يې د مصر يوه ښکلې نجلۍ ګڼل کېده او له دې امله چې د هغې عکس مې د آمون په معبد کې ليدلی و، نو پر دې خبره له مخکې پوهېدم.

دمصر دچاغې غنمرنګې ملکې (تي تي) په هکله په هغه وخت کې ډېرې خبرې کېدلې. ټولو به ويل چې هغه يوه معمولي ښځه وه اوله همدې امله دهغې دنيکونو نوم په رسمي اسنادو کې نه راځي.

هغه کس چې شتون به يې دتېپ وينه درولهٔ کله چې وليدل چې ملکې د((مه کوئ)) حکم وکړ دوه ګامه په شا شو.

دغه سړی يو ساده کليوال اوبې سواده و. چې د طب له علمه هم بې خبره و. خو له دې چې شتون به يې د زخمونو وينه دروله هغه يې په دارالحيات کې ددې لپاره ګمارلی و چې کله به يې څوک عمليات کول هغه به يې په سر ولاړ و.

زه فکر کوم ددې علت چې ددغه سړي شتون به وينه ودروله دا و چې د هغه بدن به ډېر کړوونکی او بد بوی کاوه.

دغه بوی دومره سخت و چې هر څومره به يې دغه کس ووينځه نو بوی به يې بيا هم نه ورکېده او دغه بوی هغه ميخ ته ورته و، چې د انسان په مازغو کې ننوځي.

دا چې مازغه او اعصاب پر ټول بدن واکمن وي نو د وينې د بهېدا مخه به يې ونيوله.

زه په پرېکنده توګه نه وايم چې دغه سخت او کړونکی بوی به د وينې د بندېدا سبب کېده خو له دې امله چې ددغه کار لپاره د منلو وړ بل دليل نه شو موندلی نو زه تصورکو م چې دهغه بوی وينه درو له.

ملکې وويل زه اجازه نه ورکوم چې دغه کس دخدای سر په خپل لاس کې ونيسي. بلکې زه په خپله دهغه سر نيسم.

پاتور وويل مېرمنې! کله چې د سرپوستکی ليرې کړو وينه بهېږي او ستاسې لپاره د خونريزۍ کتل ښه نه دي.

خو ملکې وويل زه دخدايانو د وينې له کتلو نه وېرېږم او پخپله يې سر کلک نيسم.

له دې چې سلطنتي ډاکټرانو زموږ له راتګه مخکې فرعون بېهوشه کړی و. پاتور پوهېده چې هغه به زموږ غږ وانه وري او که يې واوري هم نو دغبرګون ښودلو وس نه لري

، نو خبرې یې پیل کړې. په همدې حال کې یې پر خپلې ډېرینې چړې د فرعون د سر پوستکی سوری کړ او په همدې وخت کې یې وېل:

فرعون چې له خدایانو دی د آسمانونو پر لور ځي او د خپل پلار آمون په زرین ماکو کې به وي.

فرعون له لمره پیدا شوی دی او د لمر لور ته به جاروځي او د هغه نوم به تر قیامته پورې پاتې وي..... ای بوین سړیه..... ته چیرې یې ؟. ولې نه راځې چې وینه ودروې.

وروستی جملې د پاتور له لوري هغه کس ته وې چې باید پخپل شتون سره یې وینه درولې وای. ځکه چې پاتور کتل د فرعون د سر له پوستکي وینه بهېږي او پوه شو چې بوین سړی نشته.

معلومه شوه چې هغه سړی د ملکې له ویرې شاته تللی دی او په دیوال یې تکیه وهلې وه . کله چې پوه شو له هغه سره خبرې کېږي د کټ او د فرعون د سر لور ته نژدې شو لاس یې پورته کړ او کله چې یې لاس پورته کړ د فرعون د سر وینه چې د ملکې په بدن تویه شوې وه بنده شوه. خو د دغه سړي د بدن خوسا او بد بوی په ټوله کوټه کې تیت شو. کله چې وینه ودردیده پاتور د جمجمې د هډوکي پر سپړلو لګیا شو او په همدې وخت کې په خبرو بوخت شو . خو هغه یوازې ددې لپاره خبرې کولې چې یو څه یې ویلي وای . ځکه پوهېده چې یو ډاکټر د سر د سوري کولو په وخت باید د ناروغ له خپلوانو سره خبرې وکړي چې د هغوی پام پر بله خوا واړوي او په دې توګه هغوی له وېرې او اغېزمنتیا وساتي.

پاتور وویل مېرمنې ! له دې وروسته چې خدای اسمانونو ته وخوت د آمون له لوري به پرې برکتونه واوري. په دې وخت کې ولیعهد پاتور ته ورنژدې شو او ویې ویل تاسې تېروتي یاست، آمون به پر هغه برکت ونه اوروي بلکې هغه به د آتون له ملاتړه برخمن شي.

پاتور وویل ستا خبره سمه ده ما تېروتنه وکړه او ویې ویل هغه به د آتون له ملاتړه برخمن شي.

زه پاتور نه ملامتوم چې پوه نه شو . فرعون له کوم خدای سره ډېره علاقه لري ځکه انسان نه شي پوهېدلی چې د هر چا پامور خدای کوم یو دی ؟

په مصر کې تر سلو ډېر خدایان شته او ان کاهنان او ملایان چې د خدایانو د نومونو یادول یې دنده او کار دی دا ادعا نه شي کولای چې د ټولو خدایانو په نومونو پوهېږي.

ولیعهد ژړل او پاتور د خبرو په وخت هغه ته ډاډ ګېرنه ورکوله تر دې چې د فرعون د سر

هډوکی یې غوڅ کړ او له کوپړۍ څخه یې یو کوچنی هډوکی چې د ګوتو د دوو بندونو په اندازه و له جمجمې رابېل شو .

ما او پاتور په ځیرتیا سره د فرعون مازغه کتل . ما چې ورته کتل مازغه یې ایرن رنګه ول چې ښو رېدل.

پاتور وویل سینوهه ځراغ دې لور ته ونیسه چې زه د سر داخلي برخه ښه وګورم ما څراغ داسې ونیو چې رڼا یې د سر منځنۍ برخې ته رسېدله او پاتور وویل ډېر ښه ، ډېر ښه ! ماخپل کار وکړ او نور مې له وسه وتلې خبره ده. بلکې آتون باید فیصله وکړي ځکه چې له دې وروسته مونږ خپله دنده خدایانو ته سپارو .

له هغه وروسته یې د جمجمې هډوکی بیرته پر خپل ځای کېښود مګر له دې وروسته چې د سرهډوکی بېرته کېښودل شو ، د فرعون حالت که څه هم بېهوشه و خو لږ ښه شو .

کله چې پاتور ټپ وتاړه ملکې ته یې وویل: که خدایان اجازه ورکړي او هغه تر لمرختو ژوندی وساتي ، نو ژوندی به پاتې شي ګني مړ به شي .

*(لکه چې ګورئ پاتور کله چې غواړي د مصر ملکې ته ووایي چې فرعون به مړ شي . دهېڅ شي پروا نه کوي او دا فکر نه کوي چې هغوی به خپه شي. له مقدمې پرته دا خبره ورته کوي ځکه چې په مصر کې خلک شپه او ورځ د مرګ له فکر سره آشنا و . ځوک له دې خبرې نه وېرېده او نه اغېزمن کېده چې د خپلو نژدې کسانو د مرګ خبره واوري).*

له هغه وروسته پاتور لاس د ویر په دود پورته کړ او مونږ هم همداسې وکړل. ما دجراحۍ وسایل ټول کړل. په اور کې مې کېښودل او له پاکولو وروسته مې پخپل صندوق کې کېښودل. ملکې مونږ ته وویل: زه به پامونږ ډالۍ درکړم . بیا یې رخصت کړو.

مونږ له هغې کوټې را ووتو چې فرعون پکې پروت و او یوې بلې کوټې ته ولاړو . هلته یې مونږ ته خواړه راوړل او مریانو زمونږ پر لاسونو اوبه را واچولې . ما له پاتور څخه پوښتنه وکړه: ولیعهد ولې وویل چې پلار یې د آتون د خدای پلوی دی نه د آمون.

پاتور وویل دغه موضوع اوږده کیسه لري که یې اوس پیل کړم ډېر وخت به واخلي، همدومره به درته ووایم ، دغه آمون هوتپ چې مونږ یې د کوپړۍ ور وسپړله .یوه ورځ یې سوچ کړی و چې د آتون خدای ځان ورښکاره کړی دی او ددې لپاره خدای په ښار کې یو معبد جوړ کړ چې له سلطنتي کورنۍ پرته بل ځوک نه ورځي . ددغه معبد کاهن آمي نومېږي چې دغه کس او دهغه مېرمن د مصر د ولیعهد روزونکي ول. ولیعهد چې تا اوس

ولید د دغې مېرمنې شیدې پې رودلې دي او آمې یوه لور لري چې (نفرتي تي ) نومېږي. له دې چې ولیعهد له دې نجلۍ سره یو ځای شېدې خوړلې له ناچارۍ باید یوه ورځ د ولیعهد خور شي. (دغه نومونه چې تاسو یې دلته لولئ تاریخي نومونه دي. نفرتي تي همغه مېرمنه ده چې وروسته د مصر ملکه شوه او دا چې پاتور وویل هغه به یوه ورځ د ولیعهد خور شي مقصد یې دا وچې یوه ورځ به له هغه سره واده وکړي، ځکه چې په مصر کې د خور او ورور ودونه روا ول ژباړونکی).

پاتور د شرابو پیمانه پر سر واړوله او ویې ویل اې سینوهه ! زما په شان دیوه بوډا لپاره تر دې بل شی خوندور نه دی چې وخوري او وڅښي او په هغو مسلو خبرې وکړي چې په ده پورې اړوندې نه وي. بوډاګان د ډېرو خبرو شوقیان وي.

که زه خپل تندی و سپړم ډېر رازونه پکې شته دي آیا تا کله دا فکر کړی دی چې ولې د فرعون ښځې تل لونې زېږوي او زوی یې نه کېږي. ومې ویل نه ! ما په دې هکله فکر نه دی کړی.

پاتور وویل دغه فرعون چې موږ یې اوس سر سوری کړ، په ځوانۍ کې د سوډان د سوېل په ځنګلونو کې څه د پاسه پېنځه سوه زمریان او ځنګلي غوایي ښکار کړي دي

هغه ډېر کلک او پیاوړی و او هره ورځ به له یوې نجلۍ سره وید بده. خو له دغو ټولو ښځو څخه یوازې نجونې پیدا شوې دي او یوازې یې له ملکې څخه یو زوی پیدا شو چې اوس ولیعهد دی.

ایا ته دا یوه عادي چاره بولې ؟

ددې چارې علت چې هېڅکله د فرعون زوی نه دی پیدا شوی دا دی چې ملکې د دربارې ډاکټرانو په وسیله زېږېدلي هلکان ژوندي نه پرېښودل او کله چې به هلک وزېږېد سمدستي به یې وواژه.

بیا پاتور سترګه ووهله او ویې ویل اې سینوهه ! ته باید په دغو اوازو باور ونه کړې، ځکه چې ملکه په مصر کې تر ټولو مهربانه او غوره مېرمن ده.

موږ په خوراک او څښاک بوخت شوو او ما د سلطنتي ډوډۍ له خوړلو خوند اخیست، ځکه ذایقې به مې راته امر کاوه چې دغه ډوډۍ د دارالحیات له خوړو خوندوره ده.

یو وخت مو پام شو چې شپه شوې ده.

پاتور وویل زما لاس ونیسه او له دې مانۍ مې بهر کړه. ځکه چې که څه هم شراب

زړونه ښادوي. خو موږ مستوي او زه به ستا له مرستې پرته ولوېږم.

ما دهغه لاس ونيوه او له مانۍ بهر شوو . ومې کتل چې د ښار رڼا په ختيځ لوري کې اسمان روښانه کړی دی.

ما هم له حده ډېر ځښلي ول او د خوشحالۍ احساس مې کاوه. زړه مې د يوې ښځې هوس کړی و. پاتور ته مې وويل زه بايد ولاړ شم او دعياشۍ په يوه کورکې يوه ښځه وموم چې خپله خور يې کړم.

پاتور وويل هر نارينه د شپې مهال چې خپل ورځني کارونه خلاص کړي. دعشق فکر کوي . ګنې مينه نه شته . ما ورته وويل ايا ته پر عشق باور نه لرې؟ نو داڅه شی دی چې ما د عياشۍ د کور لوري ته کاږي ؟ پاتور وويل داچې تا اوس د عياشۍ د کورونو پر لور کشوي هغه اړتياده چې ته يې ښځې ته لرې، ځکه چې که يو نارينه ونه کړای شي ځوانه ښځه ترلاسه کړي او هغه پخپل څنګ کې ويده نه کړي غمجن کېږي. خو له دې وروسته چې ښځه دهغه خور شوه نو تر مخکيني حالت ډېر پسې غمجن کېږي.

ومې ويل ولې داسې کېږي ؟ولې کله چې يونارينه يوه ښځه خپله خور کړي غمجن کېږي. پاتور وويل دغه پوښتنه چې ته يې له ماکوې خدايان هم ورته ځواب نه لري.

له هغه وخته چې دغه دنيا شته همداسې ده، له دې ورسته به هم همداسې وي. هر ځل چې يو نارينه له يوې ښځې سره څملي او هغه خپله خور کړي، ترڅملاستو د مخکې حالت په پرتله وروسته ډېر غمجن کېږي. ومې ويل پاتوره ايا ته تراوسه پورې مين شوی يې ؟

پاتور وويل که وغواړې د مينې په هکله له ما سره خبرې وکړې ما به اړ کړې، چې ستا سر هم د فرعون په شان وسپړم چې سوزنده بړاس ترې بهرشي، ځکه هغه څه چې تا د مينې په هکله فکر کولو ته اړ کوي همدا بړاس دی چې ستا په کوپړۍ کې راټول شوی دی. ځکه چې مينه نشته او هغه څه چې مينه بلل کېږي. هغه اړتيا ده چې نارينه او ښځه يې يو بل ته لري چې په دې توګه له يو بل سره خور او ورور شي.

بيا پاتور د ستړيا احساس وکړ او ويې ويل ما هغې کوټې ته بوځه چې په سلطنتي مانۍ کې ماته په نظر کې نيول شوې ده هلته مې څملوه او ته هم په هماغې کوټې کې ويده شه، ځکه چې موږ نن شپه بايد په دې مانۍ کې پاتې شو چې د فرعون د مرګ په وخت کې دهغه له پوزې څخه ديوه مرغه وتل وګورو.

ما وويل پاتوره ! ستاپه شان يوه کس ته نه ښايي چې چټي خبرې وکړې.

پاتور وویل: زه څه یات وایم؟

ومې ویل هو! ځکه چې د مرګ په وخت کې د انسان له پوزې کوم مرغه نه راوځي.

ما پخپله دارالحیات ته تر تګ مخکې او له هغه وروسته ډېر کسان ولیدل چې مړه شول خو د هېڅ یوه له پوزې څخه مرغه الوتی نه دی او پر دې سربېره د طب علم لا دا وایي چې د انسان په وجود کې یوازې یو ځای شته چې یو ژوی پکې ژوندی پاتې کېدای شي او هغه هم د امیندوارۍ په وخت کې د ښځې خېټه ده. له دې پرته بل داسې ځای نشته چې یو ژوی پکې ژوند وکړای شي په دې ډول څنګه یو الوتونکی د انسان په بدن کې پاتې کېدای شي او بیا د پوزې له لارې د باندې وتلای شي.

پاتور وویل: اې سینوهه! له دې سره سره چې په دارالحیات کې ستا د نیوکو له امله ستا د پرمختګ مخه ونیول شوه. خو بیا هم دغه نیوکې کوې او سزا شوی نه یې.

پوه شه چې فرعون د خدای زوی دی. له نورو سره توپیر لري. د مرګ په وخت کې د هغه له پوزې یو مرغه راوځي او دغه مرغه روح دی چې د فرعون له مړینې وروسته ژوندی پاتې کېږي.

یو ځل بیا پاتور راته سترګک وواهه او ویې ویل که غواړې چې ډاکټر شې. خلک معالجه کړای شې. خپل ډېر ناروغان ووژنې. له دغې لارې څخه ډېرې پیسې، مریان او وینځې ترلاسه کړې. په طبس کې د ښه نوم خاوند شې او هره شپه پخپل کور کې میلمستیا وکړې نو باید عقیده ولرې چې د مرګ په وخت کې د فرعون له پوزې مرغه الوځي.

نور هم ستا په شان دي او ښه پوهېږي چې د فرعون او د ښار د ټیټ سوالګر د مرګ ترمنځ د جسمي ځانګړتیاوو له پلوه هېڅ توپیر نشته خو هغوی سره، سپین، مریان او وینځې غواړي. نو داسې ښیي چې په رښتیا دا خبره مني. خو که ته سبا په دارالحیات کې ووایې چې دغه خبرې ما درته کړې زه به منکر شم او وبه وایم چې ته په ما تهمت پورې کوې. ډاډه اوسه چې زما خبره به ومنل شي او تا به د سلطنتي ډاکټر او د درالحیات د معلم د تورنولو له امله له ښونځي وباسي، ځکه ټول درباریان چې په دارالحیات کې کارکوي زما په شان له ښځو، خوړو، سرو او سپینو سره مینه لري.

ای سینوهه! راځه ما په غېږ کې ونیسه او خپلې کوټې ته مې بوځه چې هلته ویده شم. ته هم څمله ځکه چې سبا سهار باید د فرعون له پوزې د مرغه الوت وګورو او پخپل

خط به ولیکو چې مرغه مو ولید چې د هغه له پوزې ووت او اسمانونو ته والوت.

ما د يوه مريي په شان چې خپل بادار په غېږ کې نيسي او له يوه ځايه يې بل ته بيايي، دغه په وزن سپک بوډا په غېږ کې واخيست. سلطنتي ماڼۍ ته مې بوت او په هغې کوټې کې مې ځملاوه چې ده ته ځانګړې شوې وه.

خو ماته خوب نه راته، ځکه ځلميتوب خوب ته نه پرېښودم. له ماڼۍ څخه را ووتم. د سلطنتي ماڼۍ په مخکې ګلانو کې ودرېدم او د طبس ښار د رڼا او د ستورو تماشا مې کوله.

په داسې حال کې چې ګلان مې بويول هغه ښځه را ياده شوه چې يوه ورځ دارلحيات ته راغلې وه. خپل ځان يې (نفر نفر نفر) معرفي کړی و او له مايې غوښتنه کړې وه چې کور ته يې ورشم. خوزه ورسره نه وم تللی، ځکه چې وېرېدم دغه ښځه به له ما سره داسې کار وکړي چې خوينده يې له ورونو سره کوي.

خو په دې شپه مې ددې ښځې ارمان کاوه او له ځان سره مې ويل څومره به ښه وای چې هغه ماته راغلې وای يا داچې د هغې کور رامعلوم وای چې ورغلی وای.

# اووم ځپرکی

## د مصر ولیعهد او د هغه مېرګي

ناڅاپه مې له ګلانو یو غږ واورید. ګورم چې یو کس ماته را نژدې کېږي چې ما وپېژني. ما هم وپېژاند او پوه شوم چې ولیعهد دی.

په دغه ځای کې د دغه ځوان له لیدو حیران شوم او ووېرېدم. دواړه لاسونه مې پر زنګنو کېښودل او په ملاتیټ شوم.

ولیعهد وویل سر دې پورته کړه. ځکه چې دلته مور څوک نه ګوري او ضروري نه ده چې ته زما په مخکې رکوع وکړې.

ایا ته هماغه نه یې چې نن دې زما د پلار په کوټه کې له دغه زوړ بیزو سره کار کاوه او هغه ته دې ستهک ورکاوه؟

زه د بوډا بیزو له نومه حیران شوم. سر مې پورته کړ او ولیعهد وویل له زاړه بیزو څخه زما مقصد پاتور دی. چې نن یې زما د پلار سر وسپړه. دغه نوم زما مور پر هغه ایښی دی او که زما پلار مړ شو ته به له هغه سره یو ځای ووژل شې.

زه د دې خبرې په اورېدو ډېر ووېرېدم. ځکه چې نه پوهېدم که څوک د یوه فرعون سر سوری کړي او هغه معالجه نه شي باید سر، سوری کوونکی ووژني.

پاتور دغه خبره ماته نه وه کړې او زه حیران هم وم، ځکه چې زه خو ګنهګار نه وم چې ما دې ووژني.

هغه کس چې د جراحۍ په وخت ډاکټر ته چاړه او ستهک ورکوي بېګناه وي او باید هغه ونه وژل شي. د دې لپاره چې هغه د ناروغ په معالجه کې اغېزه نه لري.

ولیعهد ماته وویل زه پوهېږم چې نن به خدای ځان را ښکاره کړي خو په سلطنتي ماڼۍ کې خدای ماته نه راځي. بلکې له ماڼۍ د باندې ماته څرګند به شي. زه پر دې هم پوهېږم چې د خدای د ظهور پر وخت زما بدن رېږدي او غږ به بند شي خو باید یو څوک وي چې له ما سره مرسته وکړي.

له دې امله چې ته مې په لاره کې وموندلې او په دې هم خبر یم چې ډاکټر یې نو تا به له ځان سره بوځم.

ما نه غوښتل چې له دغه ځوان سره لاړ شم ځکه پاتور راته ویلي ول چې د فرعون د مړینې پر وخت باید په ماڼۍ کې پاتې شو. خو د ولیعهد له امره مې هم سرنه شو غړولای او مجبوره شوم له هغه سره لاړ شم.

ولیعهد یولنډ لنګ اغوستی و. چې ورنونه یې هم ترې ښکاریدل. هغه زما په پرتله جګ دی او اوچت ګامونه یې اخیستل.

کله چې د نیل څنډې ته ورسېدو ولیعهد وویل باید له سینده واوړو او ځان د هغه ختیزې څنډې ته ورسوو.

دیوه ماکو پړی یې خلاص کړ او زه ورسره په ماکو کې کېناستم او پارو مې واهه. کله چې د سیند بلې څنډې ته ورسېدو ولیعهد له دې پرته چې ماکو وتړي هغه یې په سیند کې خوشې کړ او بو ماکو لاهو کړ.

مونږ د ختیځ په لور وخوځیدو او له دې امله چې ولیعهد چټک روان و، نو زه مجبور وم چې د هغه ترشا ورپسې وځغلم او بدن مې خولې وکړې.

په دې توګه مونږ هغه ځای ته ورسېدو چې د طبس ښار او د هغه باغونه زمونږ شا ته پاتې شول او د طبس په ختیځ کې هغه درې غرونه راڅرګند شول چې د دغه ښار ساتونکي بلل کېږي.

کله چې داسې ځای ته ورسېدو چې نور څوک نه وو او کوم غږ هم نه اورېدل کېده. نو ځوان پر ځمکه کېناست او ویې ویل دلته به خدای ماته راڅرګند ېږي.

زه حیران شوم چې څه ډول به هغه ته خدای ورڅرګند شي، ایا زه به هم هغه وګورم کنه؟

په دې توګه سهار شو او تر لمر ختو وروسته ولیعهد ناري کړې (سینوهه) خدای راغی او زما لاس ونیسه ځکه چې لاس مې ریږدي.

ما د هغه لاس ونیو او هر څومره چې لمر راپورته کېده د ولیعهد هیجان نور هم زیاتېده، پر خاورو پرېوت او پر ځان راتاو شو.

زه چې د هغه له دغه حالته وېرېدلی وم. په دې وخت کې اسوده شوم ځکه پوه شوم چې ولیعهد په میرګي اخته دی او ممکنه ده چې خپله ژبه هم پر خپلو غاښونو غوڅه کړي.

دود داسې دی چې د دغه ډول ناروغانو د غاښونو په منځ کې یو لرګی ورږدي خو ما

هلته لرګی پیدا نه کړ، مجبوره شوم د خپل لنګ یوه ټوټه پرې کړم او د هغه د غاښونو ترمنځ یې ورکېږدم، چې ژبه یې غوڅه نه شي.

بیا هغه ډول چې په کتاب کې لیکل شوي دي، د هغه د درملنې لپاره مې د ولیعهد د بدن مالش پیل کړ. ما د ولیعهد بدن مالش کاوه، چې یو باز لکه چې له لمره راوتلی وي زموږ پر سر وګرځېد او داسې ښکارېده چې غواړي د ولیعهد پر سر کېني.

له ځان سره مې وویل ښایي هغه خدای چې ولیعهد یې په تمه و همدا باز وي. خو ژوشېبې وروسته یو ښکلی ځوان، چې نیزه یې په لاس کې وه او د سوریې د غرونو او سیدونکی ښکارېده راڅرګند شو.. دغه هلک دومره ښکلی و، چې ما ورته رکوع وکړه. ځکه فکر مې وکړ هغه د ولیعهد خدای دی.

ځوان د مصر په ولایتي لهجې له ما پوښتنه وکړه دا څوک دی؟ ایا ناروغه دی؟

ما ورته وویل که ته خدای یې، د دغه ځوان معالجه وکړه او که غل یې په دې پوه شه چې موږ هېڅ نه لرو چې در یې کړو.

هغه باز چې په اسمان کې الوت راښکته شو او د ځوان پر اوږه کېناست.

ځوان وویل زه خدای نه یم او دیوې پنیر جوړونکې ښځې او میړه زوی یم خو لیک لوست مې زده کړي.

اتکل مې کړی چې زه به ډېر ژر د نورو قوماندان شم او اوس طبس ښار ته ځم چې د فرعون خدمت وکړم، ځکه چې اورېدلي مې دي. فرعون ناروغ دی او یو ناروغ پاچا زما په شان کسانو ته اړتیا لري چې د هغه ملاتړ وکړي.

بیا یې په ولیعهد نظر تېر کړ او ویې ویل ایا هغه به له دې ناروغۍ مړ شي؟

ومې ویل نه... د هغه ستونزه مرګونې نه ده خو انسان بېخوده کوي او انسان په بېخودۍ کې خپل اختیار له لاسه ورکوي.

ولیعهد بیدار شو خو د سهار د یخنۍ له امله رېږدېده، نیزه لرونکي ځوان خپل واسکټ و ایست پر ولیعهد یې واچاوه بیا یې وویل اوس څه کوې؟

ما ورته وویل که له ما سره مرسته وکړې هغه به ښار ته یوسو او هلته به یو روان تخت پیدا کړو چې هغه پکې کېنوو او کور ته یې ورسوو.

ځوان وویل سمه ده زه چمتو یم چې له تاسره مرسته وکړم او هغه ښار ته بوځم.

ولیعهد کېناست خو رېږدېده. نیزه لرونکي ځوان مرسته وکړه. هغه واسکټ مو

ورواغوست او ماته يې وويل دغه ځوان د شتمنو له کورنۍ دی. ځکه چې د بدن پوستکی يې سپين دی او نرم او سپين لاسونه لري.

بيا يې زما لاسونه ونيول او ويې ويل ته هم نرم لاسونه لرې دنده دې څه ده؟

ومې ويل زه ډاکټر يم او په طبس کې دامون د معبد په دارالحيات کې مې درس ويلی دی.

ښايي دغه ځوان دې راوستی دی. چې دلته يې درملنه وکړې. خو ښه شوه چې جامې دې ورواغوستې. ځکه چې په بيديا کې سهار مهال هوا سړه وي.

د لمر له راختلو او د جامو له اغوستلو وروسته د وليعهد رېړ ډېر ډېر د ورد پېده. ناڅاپه يې دغه ځوان وليد او ويې ويل دغه هلک ډېر ښکلی دی. له هغه يې پوښتنه وکړه ايا د آتون خدای راستولی يې؟

نيزه لروونکي ځوان وويل .... نه

وليعهد وويل نن ما وکړای شول چې آتون خدای ووينم او همدا چې لمر راوخوت او هغه مې وليد. فکر مې وکړ چې ښايي هغه ماته راستولی يې.

ځوان وويل. زه د خدای له لوري نه يم راغلی. بلکې بېګا وخوځېدم چې نن سهار طبس ته ننوځم او د فرعون خدمت ته ملاوتړم.

د لمر له ختو وروسته زما باز دلته الوت کاوه. زه پوه شوم چې ښايي دلته يو څه وي چې د هغه پام يې جلب کړی دی او چې دلته راغلم تاسې مې وليداست.

وليعهد وويل په دې نيزې څه کوې؟

ځوان وويل د دې نيزې څوکه له مس او قلعي څخه جوړه شوې ده او راغلی يم چې هغه د فرعون د دښمنانو په وينو سره کړم. (لومړنی دوه او سپنې چې انسانانو سره يو ځای کړې مس او قلعي وه. چې ډېر خله په معدنونو کې دواړه يو ځای وي او د غسې ترکيب ته په عربي کې مفرغ وايي.)

وليعهد وويل زه له وينې بهيدنې کرکه کوم. ځکه د وينې بهول تر ټولو بد عمل دی.

نيزه لرونکي ځوان وويل زه ستا په شان فکر نه کوم او باوري يم چې د وينې بهېدل د ملتونو د پاکۍ سبب کېږي او هغوی ځواکمنوي خدايان وينه خوښوي، ځکه چې د وينې په خوړلو سره کلکېږي او تر هغې ورځې چې جنګ ممکن وي د وينې بهېدل به دوام لري.

وليعهد وويل زه به داسې کار وکړم چې نور جنګ رامنځته نه شي.

نيزه لرونکي ځوان ماته وکتل او ويې ويل داسې ښکاري چې دغه سړی ليونی شوی

دی، ځکه چې جنګ پخوا هم وا و تل به وي او هر کار چې ملتونه يې د جنګ د مخنيوي لپاره وکړي جنګ به نور هم زيات شي ځکه چې جنګ هم لکه د ساه اخيستلو د ژوند لپاره اساسي توکی وي.

وليعهد لمر ته وکتل او ويې ويل. ټول ملتونه د هغه زامن دي، ځکه چې هغه آتون دی. بيايې ګوته د لمر خواته ونيوله او زياته يې کړه، ټول مکان او زمان له هغه سره تړاو لري. زه به په طبس کې د هغه لپاره يو معبد جوړ کړم او د هغه انځور به ټولو باچاهانو ته ولېږم. زه له هغه پيدا شوی يم او هغه ته به ستنېږم.

نيزه لرونکي ځوان د دې خبرو له اوريدو وروسته وويل شک نشته چې هغه ليونی دی او تاسو حق درلود چې هغه مو بيد ياته راوستی دی چې معالجه يې کړئ.

ما وويل هغه ليونی نه دی، بلکې د ميرګي پر وخت يې خپل خدای وليد. خو موږ دا حق نه لرو. د هغه څه په اړه نيوکه وکړو چې هغه ليدلی دی. ځکه چې هرڅوک کولای شي د هغه خدای عبادت وکړي او پر خبرو يې عمل وکړي چې ورته ګروهمن وي.

موږ وليعهد پورته کړ او د ښار پر لور مو بوته د ميرګي د حملې له امله ډېر کمزوری شوی و، نو تر دواړو متو مو ونيو او باز هم زموږ په مخکې الوت کاوه. ښار ته چې ورنژدې شوو ګورم چې د معبد يو کاهن يا ملا له يوه روان تخت او يو شمير ملايانو سره د وليعهد په تمه دی او موږ له حدس او ګمانه پوه شوو، چې دغه کاهن به هماغه آمي وي.

لومړنی خبر چې آمي وليعهد ته ورکړ همدا و، چې د هغه پلار او درهيم آمون هوتپ، له دې نړۍ سترګې پټې کړې دي. هغه ته يې د کتان جامې وراغوستې او خولۍ يې ور پر سر کړه *(خولۍ دلته خاص نوم دی او د تاج په مانا ده. پخوانيو ډېرو شاعرانو چې د تخت او خولۍ خبره يې کړې هدف يې همدا تاج و. ژباړن)*.

آمي ماته وويل سينوهه! ايا هغه وتوانيد چې خپل خدای وګوري.

ومې ويل: هغه وايي چې خپل خدای يې ليدلی دی. خو زما پام ده ته و، چې کوم تاوان ورونه رسېږي او د هغه علاج مې کاوه، پوه نه شوم چې د هغه خدای کله څرګند شو. خو ته زما نوم څنګه پېژنې؟ ما خو کله هم نه يې ليدلی. آمي وويل زما دنده دا ده چې ستا په نوم پوه شم او پر هغو پېښو خبر شم چې په سلطنتي سانې کې تېرېږي

بېګا چې کله زه پوه شوم چې وليعهد چې اوس فرعون دی، له ميرګي سره مخامخېږي ، نو پرې مې ښود چې يوازې پاتې شي، ځکه هر وخت وليعهد احساس کوي چې د غه

مرض پرې حمله کوي ګوشه نشین شي او که ونه غواړي چې یو ازې پاتې شي، هوړ هڅه کوو، چې هغه یوازې پرېږدو، ځکه چې هېڅوک باید د ولیعهد میرګي او د هغه له خولې وتلې ځګونه ونه ګوري.

بېګا چې کله ما ولیدل چې ولیعهد له مانۍ څخه دوتلو پر وخت له تاسره مخا مخ شو، نو ډاډه شوم. ځکه چې ته ډاکټر یې او له دې سره سره چې طبیب یې د آمون د معبد کاهن هم ګڼل کېږې، ځکه تر هغه مهاله چې یو څوک کاهن یا ملانه شي هغه د درالحیات په ښوونځي کې نه پرېږدي.

او زه د آتون د معبد کاهن یم.

هغه وویل له دې سره سره چې زه او ته د دوو بېلو خدایانو پیروي کوو، خو اجازه مې ورکړه چې تېره شپه ولیعهد له تاسره یو ځای بهر لاړ شي، ددې لپاره چې یو ډاکټر د هغه پالنه وکړي او زما یقین و، چې میرګي پرې راځي.

بیا یې نیزه لرونکي ځوان ته اشاره وکړه او ویې ویل داڅوک دی؟ ومې ویل: یو ځوان دی چې نن سهار په بیدیا کې ورسره مخامخ شوو، یو باز یې هم پر سر الوت او اوس دغه مرغه د هغه پر ولي ناست دی.

آمي وویل کله چې پر ولیعهد د میرګي حمله راغله، دغه ځوان هلته موجود و او د هغه د ناروغۍ منظره یې ولیدله؟

ماورته وویل: هو

ویې ویل: که داسې وي باید دغه ځوان ووژنو.

پوښتنه مې وکړه ولې؟ ویې ویل ددې لپاره چې ولیعهد اوس فرعون دی او که خلک پوه شي چې زموږ فرعون په میرګي اخته دی او کله ناکله پرې حمله راځي. بېخوده کېږي نو پر هغه به عقیده ونه کړي.

ومې ویل دغه ځوان چې تاسې یې ګورئ، نن یې په بیدیاکې خپل واسکټ، وایست او ولیعهد یې پرې پټ کړ، چې له یخنۍ ونه رېږدي او پخپله هم وایي ددې لپاره راغلی چې د فرعون له دښمنانو سره وجنګېږي او له دې پرته ډېر ساده ځوان دی او په دې خبرې نه پوهېږي چې ولیعهد په دې مرض اخته دی.

آمي هغه ځوان ته ناري کړې او ویې ویل او ریدلي مې دي چې تا نن د ولیعهد خدمت کړی دی، دغه د سرو زرو کړۍ ستا انعام دی.

له هغه ورسته آمي د سرو زرو یوه کړۍ هغه ته ور وغورځوله. خو ځوان دغه کړۍ وانخیسته او طلا پر ځمکه ولوېده.

آمي ورته وویل ولې دې سره زر وانه خیستل؟

ځوان ورته وویل. د دې لپاره چې زه یوازې له فرعون څخه امر ترلاسه کوم او د نورو دستور نه منم. داسې ښکاري چې فرعون همدا ځوان دی چې اوس یې خولۍ پر سر کړې ده او نن دغه باز. زه د هغه لورته هدایت کړم. له هغه وروسته ځوان د نوي فرعون پر لور لاړ او یې ویل زه راغلی یم چې د فرعون چوپړ وکړم.

ته چې نن فرعون یې نو زه دې ته چمتو یم چې خدمت دې وکړم. فرعو ن خواب ورکړ، هو زه به تا پخپلو خدمتګارانو کې شامل کړم. خو خپله نیزه زما یوه غلام ته ورکړه. زه له نیزې څخه د ېره کرکه لرم ځکه چې د وینې د بهېدا وسیله ده.

زه ټول ملتونه یو شان ګڼم او ټول د آتون زامن دي. نو هېڅ یو پکې باید بل ونه وژني.

ځوان خپله نیزه یوه مریي ته ور کړه او بیا فرعون پر روان تخت کېناست. مونږ ټول پلي ور پسې روان شو او په دې توګه سلطنتي ماڼۍ ته ننوتو.

سلطنتي ماڼۍ له خلکو ډکه وه او کله چې فرعون ماڼۍ ته ورسېد. له مونږ څخه جلا شو او ملکې یانې خپلې مور ته ورغی.

نیزه لرونکي ځوان له ما پوښتنه وکړه، اوس به زه څه کوم او باید چیرته لاړ شم؟ ورته مې وویل همدلته اوسه او له دې ځایه مه ښوره. ته دلته اوسه چې فرعون په راتلونکو ورځو کې تا وګوري او ستا دنده وټاکي. ځکه فرعون خدای دی او خدایان هیرجن وي. تر هغه چې هغه تا ونه ویني هېڅکله به یې په یاد نه شي. چې ته یې پخپلو خدمتګارانو کې شامل کړی یې.

نیزه لرونکي ځوان وویل: زه د مصر راتلونکي ته ډېر اند ېښمن یم. ومې پوښته ولې؟ ویې ویل. د دې لپاره چې زمونږ نوی فرعون له وینو وېرېږي او وایي چې ټول ملتونه سره مساوي دي زه چې یو جنګیالی یم په دې عقیدې باور نه شم کولای. د دې لپاره چې زه پوهېږم دغه عقیده د یوه سرتېري په تاوان ده.

په هرحال زه ځم او خپله نیزه له مریي څخه بیرته اخلم.

ورته مې وویل: زما نوم سینوهه دی او په دارالحیات کې د ننه د آمون په معبد کې اوسېږم که له ما سره دې کار و ماته راتلی شې.

زه له څوانه بېل شوم او د هغې کوټې پر لوري لاړم چې تېره شپه پکې پاتور ويده شوی و.
پاتور چې وليدم اعتراضونه يې پيل کړل او ويې ويل: سينوهه ! تا سخته غلطي کړې ده چې دېښلو نه ده.
پوښتنه مې وکړه، زما غلطي څه ده ؟پاتور وويل په داسې شپه چې فرعون مړ کېده ته له مانۍ وتلی وې او ټوله شپه دې د عياشۍ په مرکزونو کې تېره کړه.
له دې کبله چې ته دلته نه وې نو زه چا راوېښ نه کړم، زه د فرعون د مرګ پر وخت موجود نه وم. نو د هغه له پوزې څخه مې د مرغه الوتل هم ونه ليدل.
ما ورته وويل په قصدي توګه مې دغه کور نه و پرې ايښی، بلکې وليعهد امر وکړ چې له هغه سره لاړ شم، بيا مې ټوله کيسه له پيله تر پايه ورته وکړه.
پاتور چې زما خبرې واورېدې ويې ويل آمون دې مونږ وساتي ځکه چې زمونږ نوی فرعون ليونی دی ومې ويل هغه ليونی نه دی بلکې په ميرګي اخته دی او کله نا کله دغه مرض پرې حمله کوي.
پاتور وويل څوک چې ميرګي لري له ليوني سره يې توپير نه کېږي، ځکه چې څوک د ميرګي له حملې سره مخا مخېږي عقل له لاسه ورکوي، ډېر ژر د نورو ګوډاګي ترې جوړېږي او زه د مصر ملت ته چې بايد په ميرګي د اخته فرعون د باچاهۍ تر سيوري لاندې شپې ورځې تېرې کړي خوابدی يم.
په دې وخت کې د لوی قاضي له لوري خبر راکړل شو چې بايد هغه ته ورشو چې په مونږ قانون پلی کړي. ځکه قانون وايي چې کله فرعون د کوپړۍ له سپړلو وروسته مړ کېږي بايد هغه کسان ووژل شي چې په دغه کار کې لاس لري.
د دغه خبر په اورېدو سره ورېږدېدم، خو پاتور سترګک راته وواهه چې ونه وېرېږم او ورو يې وويل دغه قانون هېڅکله هم اجرا شوی نه دی.
يو شمېر سرتېري راغلل او مونږ يې د دربار ستر قاضي ته بوتلو. د هغه په مخکې مې ځلوېښت تاو شوې څرمنې وليدې چې د مصر ځلوېښت ګوني قوانين پکې ليکل شوي و او هره تاو شوې څرمنه د طومار په بڼه وه چې يو قانون پرې ليکل شوی و.
کله چې پاتور د قاضي حضور ته ورغی له هغه سره يې خبرې وکړې مونږ درې کسان وو، چې د قانون له مخې بايد وژل شوي وای.
يو زه . بل پاتور او درېيم هغه سړی و چې شتون يې د وينې د بند ېدا سبب کېده.

له دې وروسته چې مونږ د قاضي دربار ته ورغلو عسکرو بیرته د وتلو لاره بنده کړه چې مونږ ونه تښتو او له هغه وروسته جلاد راغی.

ستر قاضي وویل: له دې امله چې فرعون مو معالجه نه کړای شو پر تاسې د مرګ حکم کیږي او اوس باید ووژل شئ.

کمبخته ځوان چې په خپل شتون سره یې د ویني د بهیدا مخه نیوله سخت رېږدېده او پاتور په کندا سه خوله وپوښتل: مور دې ژوندی ده کنه؟

سړي وویل زما مور ځلوېښت کاله مخکې مړه شوې ده.

پاتور قاضي ته وویل: نو لومړی دغه سړی ووژنئ. چې مور یې په بله دنیا کې ورته د نخود او لوبیا شوروا پخه کړې ده او د هغه په تمه ده. سړی چې نه پوهېده ورسره تو کې کوي د جلاد مخته په ګونډو شو او جلاد خپله ستره، تیره توره چې سور رنګ یې درلود وخوځوله او ورو یې د هغه سړي پر ورمېږ کېښووله.

سره له دې چې د هغه توري هېڅ تاوان ور ونه رساوه خو سړی بېخوده شو. جلاد عسکرو ته وویل دغه سړی مې له مخې لرې کړئ. له هغه وروسته ما ګونډه ووهله او جلاد په خندا خپله توره زما پر ورمېږ کېښووله او زه له کوم تاوان یا ټپ پرته پورته شوم.

کله چې د پاتور نوبت ورسېد نو جلاد په دې بسنه وکړه چې خپله توره د هغه پر سر وښوروي.

له دې وروسته مونږ ته وویل شول، چې فرعون غواړي زمونږ مزد راکړي او مونږ یې د قاضي له کوټې بهر کړو، خو هرڅه یې چې وکړل بېخوده سړی یې ویښ نه کړای شو او په حیرانتیا سره مې ولیدل چې هغه مړ شوی دی.

زه نه شم ویلای چې د دغه سړي د مړینې علت څه و، ځکه چې هېڅ ډول ناروغي یې نه درلوده خو داسې ښکاري، د مرګ له ویرې مړ شوی وي.

سره له دې چې ډېر ناپوه سړی و، خو په مړینې یې ډېر خپه شوم ځکه چې ساری یې نه درلود او له هغه وروسته په ټوله موده کې چې ماطبابت کاوه داسې څوک مې ونه لیدل چې پخپل شتون سره د وینې د بهېدا مخه ونیسي.

نوې فرعون پاتور ته د سرو زرو یو ځنځیر او ماته د سپینو زرو یو ځنځیر راکړ چې زمونږ په غاړې کې یې واچول.

دواړو ته یې کتان جامې را واغوستلې او کله چې زه له سلطنتي ماڼۍ دارالحیات ته

راغلم ټولو محصلينو راته رکوع وکړه او استادانو راته غوږه مالي کوله.
د پاتور له لوري د فرعون د سر د عملياتو د راپور د ليکلو دنده ماته وسپارل شوه.
هغه وويل سينوهه! ته بايد په دغه راپور کې څو شيان وليکې، لومړی دا چې کله موږ د فرعون سر خلاص کړ د هغه له مازغو خوږ وږم پورته شو او دويمه دا چې د مړينې پر وخت مووليدل چې د هغه له پوزې يو مرغه والوت او نيغ په نيغه د لمر پر لوري لاړ.
ما وويل پاتوره! که تېروتنه ونه کړم، نو کله چې فرعون مړ شو لا لمر نه و راختلی.
پاتور وويل اې کم عقله لمر تل شته، خو کله تر افق لاندې او کله هم پر افق له پاسه وي.
ومې ويل ښه ده، دا به هم وليکم. پاتور وويل بل دا وليکه، چې فرعون تردې څو شپې وړاندې چې مړ شي، سترګې پرانيستلې او خدايانو ته يې وويل چې اوس به زه ستاسو پر لوري درشم.
ما د فرعون له مرګه مفصل او په زړه پورې راپور برابر کړ، چې کله پاتور ولوست ويې خندل او ويې ويل: ښه دې ليکلی دی.
بيا دغه راپور د اويا ورځو لپاره هره ورځ د آمون په معبد او د طبس ښار په نورو معبدونو کې ولوستل شو.
په دغو اويا ورځو کې چې د فرعون مړی په دارالممات کې بلې په دنيا کې د ژوند کولو لپاره چمتو کېده او هغه يې موميايي کاوه، په طبس کې د عياشۍ ټول مرکزونه او ساقي خانې بندې وې.
خو داخل هم د ډاکټرانو د اعدام په شان يوازې په نمايشي ډول قانون اجرا کېده، ځکه چې ټولو ساقي خانو او د عياشۍ مرکزونو دوه دروازې درلودې او خلک له شاتنۍ دروازې دغو ځايونو ته ورتلل او هلته يې شراب څښل يا يې عياشۍ کولې.
په همدې ورځو کې چې په درالممات کې د فرعون د مړي په موميايي کولو بوخت وو، ماته يې زيری راکړ، چې په دارالحيات کې زما د زده کړې دوره پای ته رسېدلې ده او زه د ښار په هرې سيمې کې چې وغواړم طبابت کولای شم.
دارالحيات څوارلس تخصصي څانګې درلودې، چې هر محصل په خپل خوښه يوه رشته انتخابوله. ما په خوشالۍ سره دغه ښوونځی پای ته ورساوه او د سپينو زرو په هغه زنځير مې چې نوي فرعون راکړی و، يو کوچنی کور او د(کاپتا ) په نوم يو مريی چې په يوه سترګه ړوند و، راونيول. له دې وروسته چې زما مريی پوه شو زه ډاکټر يم ويې ويل: په ټولو ځايونو

کې به وو وایم چې زما دواړه سترګې ړندې وې او بادار مې یوه بیرته معالجه کړه.

له خپل هنر من ملګري تو تمس نه مې غوښتنه وکړه چې زما کور د انځورونو په وسیله ښکلی کړي او د طب د خدای انځور یې زما د کوټې په دیوال انځور کړ. زما څېره یې هم انځور کړه.

د طب خدای ویل چې سینوهه! زما تر ټولو ښه شاګرد او د طبس تر ټولو نیک او ښه ډاکټر دی.

خو څوور ځې په کور کېناستم او هېڅ ناروغ رانه غی چې معالجه یې کړم.

# اتم څپرکی

## زه د بېوزلو ډاکټر شوم

یوه ورځ چې پخپل کتنځي کې د ناروغانو په تمه وم. ګورم چې د دربار یو ساتونکی راننوت او ویې پوښتل سینوهه څوک دی؟

ورته مې وویل: زه یم.

هغه وویل: پاتور احضار کړی یې.

ومې پوښتل پاتور چېرته دی؟

ځواب یې راکړ چې هغه په سلطنتي ماڼۍ کې ستا په تمه دی. پوښتنه مې ترې وکړه: ایا نه پوهېږې له ما سره څه کار لري؟

ویې ویل: فکر کوم د پخواني فرعون د جنازې په هکله به وي.

زه پاڅېدم. دربار ته لاړم او پاتور مې پیدا کړ.

هغه وویل سینوهه! ته پوهېږې موږ دوستي کسان وو چې فرعون مو معالجه کړ. له همدې امله باید د هغه د جنازې مومیايي کول زموږ تر څارنې لاندې وشي.

ما ورته وویل ولې اوس د غه امر موږ ته کوي. ځکه چې که تېروتنه ونه کړم نو له یوې مودې راهیسې نور کسان په دې کار بوخت دي.

پاتور وویل. د مومیايي کولو په دستورو کې زموږ شتون تشریفاتي اړخ لري او له دې امله چې زه په دې کار کې برخه نه شم اخیستلای د غه چاره تاته سپارم.

ومې ویل. اوس باید څه وکړم.

پاتور وویل: ته باید اوس دارالممات ته ولاړ شې او غوره دا ده چې خپل خواړه او جامې له ځان سره یوسې. ځکه چې هلته به پېنځلس ورځې ایسار شې او په دې موده کې به ته د فرعون د مومیايي کولو د دوستي پراو څارونکی وې.

ومې ویل خپل مریې هم له ځانه سره بوځم کنه؟ ویې ویل غوره ده چې د مریي له بېولو

ډېره وکړې. ځکه چې هغه ستا په شان ډاکټر نه دی او په دارالممات کې د ځینو شیانو د کتلو له امله به حیران شي.

زه چې ډاکټر یم تر هغه وخته مې فکر کاوه چې د مرګ په هکله چې کوم شی د کتلو وي هغه مې لیدلي دي.

فکر مې کاوه چې داسې شی به نه وي چې له مرګ سره تړاو ولري او ما له نږدې نه وي لیدلي.

د دغه کتاب په سریزه کې مې وویل چې موږ مصري ډاکټران د جنازو مومیایي کول د طبي علومو برخه نه بولو، ځکه چې دغه کار هغه عمل دی چې تخصص نه درلودونکي یې هم کولای شي.

خو کله چې دارالممات ته لاړم، پوه شوم چې سخته تېروتنه مې کوله او زما تېروتنه له دې امله وه چې د ټولو مصري طبیبانو په شان ما هم تخصص په هغو کسانو پورې اړوند باله چې د دارالحیات له پوهنځي خلاص شوي وي.

موږ طبیبان له ډېرې ځان خوښونې څخه فکر کوو چې د متخصص کېدا یوازېنۍ لاره دا ده چې انسان د طب ښوونځي ټول پړاونه په دارالحیات کې بشپړ کړي او که څوک دغه ښوونځی بشپړ نه کړي متخصص نه شي جوړېدای. خو کله چې زه دارالممات ته ولاړم و مې لیدل چې هلته داسې کارګران هم شته چې کله هم دارالحیات ته تللي نه و، خو د بدن د غړیو د اناټومۍ په برخه کې د هغوی تخصص له ما څخه چې یو ډاکټر یم ډېر دی.

*(له دې امله چې د دغه کتاب لیکوال سینوهه په یوه راتلونکي فصل کې په دارالممات کې په تفصیل سره د خپلو دوو تنو خپلوانو د مومیایي کولو په هکله توضیحات ورکړي دلته نه وایي چې د فرعون مړی یې څنګه مومیایي کړ، په کلي توګه د (لومړۍ درجې) مومیایي کول د فرعون، د سترو معبدونو د مشرانو او بډایو کسانو لپاره ځانګړي شوي ول او په دې ډول تر سره کېدل چې لومړی به یې د مړي په خېټه، ټټر، او جمجمې کې چې هرڅه ول. هغه به یې را ایستل او د سترګو کاتې به یې هم رایستل، ځکه چې خرابېدل، مړی به یې له څلو ښت ترشپېتو ورځو پورې د مالګې په غلیظو اوبو کې اېښود، له دې وروسته چې مړی به یې له مالګو بهر کړ د سترګو او بدن سوري به یې له ډای سوډیم هایډرو کاربنات څخه چې په یوناني ژبه کې یې نطرون بولي ډکول د اوسنی زماني مومیایي کوونکي لکه چې د کتاب اصلي ژباړونکي پخوا د فرانسې چاپ کړیر (معالجه کولو )*

*مجلې کې لوستي دي باوري دي چې مصري مومیایي کارانو په نطرون د کونځلې او کرچک تیل (چې لاتین نوم یې (communis Ricinus) دی او ترکان یې خروع بولي) ورګډول، بیا به یې مړی په یوې ګرمې کوټې کې ایښود چې رطوبت یې کم شي او له هغه وروسته یې په پلنو پټیو چې قیر به پرې اچول شوي ول، د مړي ټول بدن ونغښته.*

*دغه پټۍ به څو ځله پر مړي راتاو شوله او د فرعون، شتمنو او ملایانو پر مړیو به یې اووه ځله دغه پټۍ تاوولې. بیا به یې مړی له دارالممات څخه بهر کړ او د ښخولو لپاره به یې هدېرې ته انتقال کړ. ژباړونکی).*

خپل کتنځي ته له ستنېدا وروسته مې څو ورځې ځان پاکاوه چې د دارالممات بویونه له ځانه پاک کړم.

داخل ناروغانو هم ماته مراجعه کوله او د بېلابېلو دردونو د معالجې لپاره یې د درملو غوښتنه کوله.

زه ډېر ژر په طبس کې د بوډاګانو او خوارانو په منځ کې مشهور شوم. دا هم له دې امله و، چې هرڅه به دوی د فیس په توګه راکول منل به مې او د سلطنتي ډاکټرانو په شان کبرجن نه وم چې ووایم زما فیس سپین او سره دي.

د شپې مهال به له دې امله چې زړه مې د ځوانۍ تود وخه درلوده ساقي خانې ته تلم، هلته مې له خپل ملګري توتمس سره شراب څښل او هغه به بیا د روانو حالاتو په هکله راسره خبرې کولې.

د مصر فرعون دریم آمون هوتپ چې مایې د مړي په مومیایي کولو ټارنه کوله، هرم نه درلود چې هغه پکې ښخ کړي او فرعون یې په یوه عادي قبر کې ښخ کړ.

له هغه وروسته چې فرعون ښخ شو، زوی یې ولیعهد په ګدۍ کېناست او ویې ویل، نیت لري چې لومړی خپلو خدایانو ته ځان پاک او سوچه کړي او له هغه وروسته په رسمي بڼه د مصر فرعون شي.

تر هغه وخته چې ولیعهد پاک او سوچه شي مور یې پر زنې ډېره کېښوده او د زمري لکۍ یې په شا وتړله چې په لاره به تلله هغه به یې تر ملا تاو کړه.

د باچاهۍ په ګدۍ به کېناسته او د زوی په ځای یې د هېواد اداره کول پیل کړل.

د ولیعهد مور چې لومړنی کار وکړ، دا و چې لوی قاضي یې له خپلې دندې لېرې کړ او د هغه پر ځای یې آمي چې مخکې مې وویل د آتون د معبد کاهن و. د قاضي په توګه

وګماره. آمي د قاضي په ځای او د مصر د قوانینو د ټولګې یانې د څلو ښتو چرمي طومارونو پر وړاندې کېناست او په قضاوت بوخت شو.

ددې پېښې له امله خلکو عجیب او غریب خوبونه وکتل او غیر عادي بادونه راوالوتل. دوه ورځې په طبس کې باران ووریده او دغه باران د هغو غنمو یوه برخه ورسته کړه چې د نیل پر غاړه ډېرۍ شوي ول.

خو چا ددغو پېښو له امله تعجب ونه کړ. خکه چې تل داسي کېدل او کله چې به د معبد کاهنین په قهر شول. دغه ډول پېښې به وشوې. داخل هم دامون دمعبد کاهنین له دې امله په قهر شوي ول. چې یو نوم ورکی سړی یعنې آمي د ستر قاضي په توګه ټاکل شوی و.

له دې سره سره چې د آمون د معبد کاهنین غوسه ول. خو عسکرو د خوراک او څښاک له پلوه کومه ستونزه نه درلوده او تنخواګانې پخپل وخت ورکول کېدې. کومه خاصه ستونزه پېښه نه شوه.

ټول پاچاهان د مصر د فرعون له مرګه خواشیني شول او له ګاونډیو هېوادونو. څخه د پخې شوې ختې لیکل شوې لوحې چې د خواشینی کلیمې پرې لیکل شوې وې. مصر ته راواستول شوې او د میتاني پاچا خپله شپږ کلنه لور راولېږله چې د مصر د ولیعهد یانې د نوي فرعون خورشي.

*(د میتاني هېواد په منځني ختیځ کې د پخواني نړۍ تر ټولو لرغوني هېوادو. لرغونپوهان وایي د میتاني هېواد د دجلې او فرات سیندونو په سرچینې کې په برنۍ برخه کې پروت و. د میتاني پاچاهانو ځینې وخت خپل هېواد له لودیځ پلوه د مدیترانې سمندرګي تر سواحلو پورې پراخاوه او د دوآب هېواد چې په متن کې یې لولئ بین النهرین دی چې د فرات او دجلې دوه سیندونه هلته روان ول او دي)*

د میتاني هېواد په سوریې کې دی او له سمندر سره نږدې پروت دی. سوریه او شمالي هېوادونه سره بېلوي.

هغه کاروانونه چې د دوآب په نوم هېواد څخه راځي له میتاني تېرېږي او سمندر ته رسېږي.

هر شپه به ما او توتمس په ساقي خانه کې همدا خبرې کولې. کله به د توتمس په بلنه د عیاشی مرکزونو ته تللو او ما به هلته د نجونو د نڅا سیل کاوه. خو د هغوی له نڅا مې خوند نه اخیست. له هغې ورځې چې ما (نفر، نفر، نفر) په دارالحیات کې کتلې وه. بلې

هېڅ يوې ښځې زما پام ځانته نه شو جلبولای.

ښايسته ښځه هم د خوندورو خوړو په شان ده. کله چې انسان خوندور خواړه وخوري بې مزې خواړه خوند نه ورکوي

که څه هم نفرنفر زما خور نه شوه خو دا چې زما خور شوې نه وه ډېر مې د هغې ارمان کاوه.

د شپې به چې کله کورته راغلم د شرابو په څښاک کې د افراط له امله به ډېر ژر ويده شوم او سهار به چې له خوبه راپاڅېدم مستي به مې له اروا څخه کډه کړې وه. په يوې سترګې روند مريي (کاپتا) به مې په لاس او به اچولې او تروه کبان به يې راباندې وخوړل.

له دې وروسته چې د تروو کبانو او ډوډۍ ځو نمړۍ به مې وکړې د خوب له کوټې به خپل کتنځي ته تلم او بېوزلو به د خپلو دردونو د معالجې لپاره ما ته مراجعه کوله

د ځينو ښځو زامن به دومره کمزوري ول . چې ما به خپل مريي واستاوه چې د هغو لپاره ميوه او غوښه واخلي.

که مې دغه بې ځايه لګښتونه نه وای کړي. شتمن شوی به وای. خو چې هر څه به مې ترلاسه کړل يا به مې پر شرابو او د عياشۍ په کورونو کې لګول او يا به مې له بېوزلو سره مرسته کوله.

يوه ورځ تو تمس زما کتنځي ته راغی او ويې ويل سينوهه !نن د يوه شتمن سړي په کور کې جشن دی. ځو تنو هنرمندانو ته يې بلنه ورکړې چې هلته ولاړ شي او کله چې يې ما ته بلنه راکړه ما ورته وويل. زه به له سينوهه سره يو ځای په دغه جشن کې ګډون کوم.

پوښتنه مې ترې وکړه چې دغه کس چې مېلمستيا ورکوي ځوک دی؟

ځواب يې راکړ . هغه يوه ښځه ده خو ډېره شتمنه ښځه ده. چې د سرو کړيو د مسو کړيو په شان خرڅوي.

(د طلا او مسو کړۍ د او سنيو پيسو په شان د راکړې ورکړې وسايل ول .)

دواړو ځانونه پاک کړل .ما او هغه په ځان عطرونه ووهل او د هغه کور په لور روان شوو. چې تو تمس ويلي وو.

لا کورته نه وو رسېدلي چې د موسيقۍ غږ اورېدل کېده او د عطرو بوی پوزه وتخنوله.

کله چې کور ته ورسېدو . يوه پراخ هال ته ننوتو او ومې ليدل چې هلته د طبس تر ټولو ښکلې ښځې راټولې شوې وې. ځينې پکې له مېړونو سره وې او ځينې کونډې وې.

ځوانان او بوډګان هم ول او د هال پر سر د مراد ورکولو خدای انځور شوی و، چې سر یې د پیشو په شان دی.

ځینو ښځو چې هیله یې کوله بډای خاوندان ورپه برخه شي، د شرابو جام به یې پورته کړ، د نوموړي خدای په لور به یې اشاره وکړه او څښل به یې.

په هال کې مریان د شرابو له ډکو صراحیانو سره ګرځېدل او شراب به یې په جامونو کې اچول.

پر ځمکه دومره ګلان اچول شوي ول چې د کوټې غولی نه لیدل کېده، توتمس وویل وګوره، ایا چېرته او په یوه وخت کې دې دومره ښکلې کتلې وې؟

ومې ویل نه.

توتمس وویل ته سره او سپین ترلاسه کولای شې او خور هم نه لرې نو په دغو کې یوه ښځه خپله خور کړه.

ناڅاپه د هال له منځه یوه ښځه راتېره شوه او زما پر لور راغله. ځنګه چې یې سترګې پر ما ولګېدې، زړه مې په درزا شو، ومې ویل توتمس، زه فکر کوم چې خدایان هم پردې ښځې مینان دي.... وګوره ځنګه په لاره ځي او وګوره څومره ښکلې سترګې او خوله لري.

زه حیران په دې شوم چې له دې سره سره چې دغه ښځه تر ټولو ښکلې ده خو نارینه پرې چاپېر شوي نه دي.

توتمس وویل، دغه ښځه د دې کور مېرمنه ده او دغه جشن یې د هغه خدای په ویاړ برابر کړی، چې مراد ورکوي. چې په دې توګه هغه ښځې چې مېړونه نه لري وکړای شي په دې جشن کې له خدایه وغواړي چې هغوی ته مېړونه ورکړي او هغه چې مېړونه لري هیله وکړي چې شتمن مېړونه ورپه برخه کړي.

ومې ویل، ما دغه ښځه لیدلې ده او هغه پېژنم. ایا دا نفر نفر نه ده؟

توتمس وویل هو. ومې ویل کله چې په دارالحیات کې وم یو ځل دغه ښځه هلته راغله او له ما سره یې خبرې وکړې.

نفرنفر ما ته نږدې شوه او دواړو ته موسکۍ شوه.

ما په حیرانۍ سره کتل چې ځنګه د هغې خوله موسکه ده، خو سترګې یې نه خاندي، نفر نفر خپل لاس د توتمس په لاس کېښود او د کوټې یوه دېوال ته یې اشاره وکړه او ویې ویل، زه له تا څخه ډېره خوشحاله یم چې دغه انځور دې ایستلی دی، ایا ستا اجوره یې درکړه؟

توتمس وویل هو ! ماځپل مزد ترلاسه کړ، بیایې ماته وکتل او زه پوه شوم، چې ما نه پېژني.

ځان مې ور وپېژاند او ومې ویل زه سینوهه طبیب یم.

ښځې وویل زه د سینوهه په نوم یو کس پېژنم چې په دارالحیات کې یې سبق وایه.

ومې ویل زه همغه سینوهه یم.

ښځې سترګې ماته ونیولې او ویې ویل دروغ وایې، ته سینوهه نه یې ځکه چې سینوهه ځوان و او د هغه په مخکې ګونځې نه وې، خو زه ګورم چې ستا د وروځو په منځ کې ګونځې شته. سینوهه ښکلې څېره درلوده، خو ستا قیافه مړاوې ښکاري.

ومې ویل نفرنفرنفر. زه هماغه سینوهه یم، که باور نه کوې، زه به درته یو دلیل وړاندې کړم. چې زما په هویت کې شک نه پیدا کوي او هغه دلیل هغه ګوتمۍ ده چې په دارالحیات کې دې ماته راکړه.

بیا مې هغه ګوتمۍ ور وښودله چې په ګوته مې وه او ومې ویل له دې چې له ما کړکه کوې خپله ګوتمۍ بېرته واخله چې ستا یادګار له ما سره نه وي، زه ځم او هېڅکله به ستا کورته رانه شم.

نفرنفرنفر وویل زما ګوتمۍ درسره وساته، ځکه چې دغه ګوتمۍ ستا لپاره ارزښت لري، لږ داسې کېږي چې زه چاته ډالۍ ورکړم، او له دې ځایه هم مه ځه، کله چې زما میلمانه لاړل زه به له تا سره خبرې وکړم.

په دې وخت کې ما یوه مریي ته اشاره وکړه چې زما په جام کې شراب واچوي او هغه څه چې هغه ماته راکړل تر ټولو خوندور شراب ول. داسې شراب چې تر اوسه مې نه وو خوړلي، ځکه چې پوهېدم پر نفرنفرنفر ګران یم.

که یې له ما کرکه کولای بیا یې ماته نه ویل چې د جشن تر پایه د هغې په کور کې پاتې شم.

څېنو میلمنو به په شرابو کې د ډېر افراط له امله کانګې کولې او بې اختیاره به شول. خو په دغه جشن کې دوو تنو ډېر شراب ونه خوړل یو کوربه میرمنې او بل ما چې غوښتل مې له هغې سره خبرې وکړم.

کله چې د کوټې غولی له ماتو جامونو او صراحیانو ډک شو، نارینه او ښځې داسې بېخوده شول چې نور چا خبرې هم نه کولې او نه یې څه اورېدل او سازیانو هم ساز بند کړ،

مریان راغلل چې هر یو خپل نشه باد ار خپلو کورونو ته بوځي.

په دې وخت کې نفر نفر ماته راغله او زه یې د جشن له هاله بلې کوټې ته بوتلم او په خپل ځنګ کې یې کېنولم.

ما ترې پوښتنه وکړه چې دغه کور ستا دی؟

هغې ووېل: هو زما دی.

ما ووېل. نو بیا خو ته ډېره شتمنه یې.

ښځې ووېل په طبس کې په هغو ښځو کې چې له نارینه وو سره ساعت تیري کوي تر ما شتمنې نشته.

بیا یې زما لاسونه ومونښل او ویې ویل. ولې پر هغې ورځ چې ما بلنه درکړه زما کور ته رانه غلې؟

ومې ویل: پر هغې ورځ زه له تا وېر بدلی وم. ځکه چې ماشوم وم. نفر نفر ووېل نو کله چې نارینه شوې له ډېرو ښځو سره څملاستې او هره شپه د عیاشۍ کورونو ته تللې؟

ومې ویل هو! هره شپه د عیاشۍ کورنو ته تلم. خو تر دې شپې چې له تا سره ناست یم. یوه ښځه هم زما خوږ نه شوه. نفر نفر ووېل دروغ وایې. څنګه نا ممکنه ده یو سړی هره شپه د عیاشۍ کورونو ته ولاړ شي او د هغو کورنو ښځې یې خوښې نه شي.

ومې ویل. هر ځل چې د دغه ډول کورنو کومه ښځه زما پر لور راتلله ته به رایاده شوې او کله چې به ستا څېره راپه یاده شوه. پوه به شوم چې نور هغه ښځه راته ارزښت نه لري.

نفر نفر ووېل ته دروغ وایې او کله چې زه ستا خوږ شم په دې مسلې به پوهه شم چې دروغ دې ویلي دي.

ومې ووېل درواغ نه وایم او هېڅکله مې درواغ نه دي ویلي.

نفر نفر وپوښتل اوس څه غواړې وکړې؟

ما ورته ووېل تر اوسه مې په خدایانو عقیده نه درلوده. په خدایانو عقیده مې وهم او خیال باله. اوس ځم او په ټولو معبدونو کې شکر کوم چې خدایانو زه له تا سره یوځای کړم.

بیا قرباني کوم. له هغه وروسته عطر اخلم او ستا د کور مخه به په عطرو سره ښکلې کړم. تر دې چې کله له کوره بهر ځې د عطرو بوی به احساس کړې او له بوټو او ونو به ګلان وشکوم چې کله له کوره وځې ستا تر قدمونو لاندې یې واچوم.

ښځې ووېل . دغه کار مه کوه ځکه چې ما ته ارزښت نه لري. زه په خپله هم عطر لرم او هم ګلان. ستا عطرو او ګلانو ته اړتیا نه لرم. که غواړې چې زه دې ښځه شم راځه باغ ته لاړ شو چې تا ته یوه کیسه وکړم.

ما ورته وویل نفرنفر زما ته پکار یې نه ستا کیسه.

ښځې وویل که ما غواړې باید زما کیسه واورې.

ښایي رضایت درکړم چې له ما سره نن شپه ساعت تېر کړې، نو غواړم له تا سره ډوډۍ وخورم.

بیا باغ ته لاړو او ما چې د اکاسي ونو د ګلانو بوی احساس کړ. داسې هیجاني شوم چې غوښتل مې ( نفر نفر نفر ) په غېږه کې ونیسم خو هغې له ځانه لیرې کړم او ویې ویل لومړی زما کیسه واوره.

د سپوږمۍ رڼا حوض روښانه کړی و. په اوبو کې ګلانو د شپې له امله خپلې خولې پټې کړې وې او د شپې مرغانو سندرې ویلې.

د ښځې له امر سره سم مریي سره کړې هیلۍ او شراب راوړل او مونږ خوراک او څښاک پیل کړ. هرځل چې ما غوښتل نفر نفر نفر په غېږ کې ونیسم هغې به ویل صبر وکړه او لومړی زما کیسه واوره . له هغه وروسته چې زما خبره دې ومنله بیا به زه ستا خور شم.

خو د ځوانۍ هیجان مجبور ولم چې هغه په غیږه کې ټینګه ونیسم او د هغې کیسه په نیمایي کې پرېږدم.

هغې ته مې وویل نفرنفر نفر ایا ممکنه ده . په دې شپې کې او د سپوږمۍ په دې رڼا کې ستا خړپیل شوی سر ووینم.

ښځې وویل. کله چې تا موافقه وکړه .چې زه به ستا خور کېږم . زه به خپل ساختګي ویښتان لیرې کړم او اجازه به درکړم چې ته زما خړپیل شوی سر لمس کړې او هغه ووینې.

*(له دې سره سره چې د توضیحاتو ورکول د ژباړن له لوري ډېر ښه نه دي او لوستونکی ستړی کوي خو باید ووایم چې څلور زره کاله پخوا په مصر کې اشرافي او شتمنو میرمنو سرونه خړپیل او ساختګي ویښتان به یې کېښودل او د یوې ښځې پرورانده د یونارینه تر ټولو ستر بریالیتوب دا و چې وکړای شي د هغې خړپیل شوی سر وګوري او هغه لمس کړي. ژباړن).*

# نهم څپرکی

## زما د ژلميتوب تر ټولو ژړوونکې پېښه

په دې وخت کې نفر نفر داسې وويل، پخوا د (سات نه) په نامه يو سړی و، يوه ورځ د يوه کم ساري کتاب د کتو لپاره معبد ته ولاړ، هلته يې يوه کاهنه وليدله او په لومړي نظر کې پر يې مَين شو. کله چې راستون شو، خپل غلام يې هغې ښځې ته واستاوه، پيغام يې ور ولېږه چې کور ته ورشي، څو شېبې يې خور شي او په بدل کې به د سرو زرو يوه کړۍ تر لاسه کړي.

ښځې غلام ته وويل، زه د سات نه کور ته نه ورځم، ځکه چې ټول خلک به ما ووينې او داسې به وانګېري، چې زه ځان ارزانه خرخوم. بادار ته دې ووايه چې زما کور ته راشي؛ ځکه زما په کور کې څوک نشته.

سات نه د کاهنې کور ته لاړ او د سرو يوه کړۍ يې هم له ځان سره يووړه چې هغې ته يې ورکړي.

ښځه چې وپوهېدله دغه سړی د څه لپاره ورغلی دی، ويې ويل ته پوهېږې چې زه يوه کاهنه يم او کاهنه ښځه ځان په ارزانه بيه نه خرخوي. سات نه وويل، ته وينځه نه يې چې وادې خلم بلکې زه له تا داسې شی غواړم چې که يوه ښځه يې يوه سړي ته ورکړي هېڅ تاوان نه کوي، ځکه خو ددې شي بيه هر چيرته ډېره ارزانه ده.

کاهنې وويل، هغه څه چې ته يې له ما غواړې، ترټولو ارزانه او بې ارزښته شی دی او ان په واټونو کې د ښارويو له خوشيو هم ارزانه دی خو په عين حال کې تر ټولو ګران بيه شی هم دی.

دغه شی د هغو کسانو لپاره ارزانه دی، چې ورته توجه نه کوي، خو کله چې يو نارينه دغه شي ته توجه وکړي، تر ټولو ګران بيه شی ترې جوړېږي او که دغه کس يې غوښتونکی وي بايد په ډېره ګرانه بيه يې تر لاسه کړي.

اوس ته راته ووايه چې څومره راکوې چې د يوه ساعت لپاره ستا خور شم؟

سات نه وويل زه چمتو یم، د دغو سرو زرو دوه برابره درکړم.

کاهنې مهرمنې وويل، دا زما په شان د يوې ښځې لياقت نه لري او که ته ما غواړې بايد هرڅه چې لرې رابې کړې.

نارينه چې د کاهنې ارمان يې درلود وويل، هرڅه چې لرم هغه به درکړم، په همغې شپې کې يې کاتب را وغوښت او سړي خپل کور پټې، مريان او ټول سره، سپين د هغې ښځې په نوم کړل او بيا يې لاس اوږد کړ چې د کاهنې ساختګي وېښتان ليرې کړي او سر يې ښکل کړي. خو ښځې يې مخه ونيوله او ويې ويل، زه ډار هېږم چې کله ته د يوه ساعت لپاره ما خپله خور کړې، او کله چې موړ شې نو خپلې ښځې ته به ستون شې، نو که ته غواړې چې زه ستا خور شم بايد همدا اوس خپله ښځه له کوره وباسې.

سړي چې نور يې مريان نه درلودل د کاهنې يو مريي يې ولېږه، خپله ښځه يې له کوره بهر کړه. بيايې وغوښتل چې د ښځې ساختګي وېښتان د هغې له سره لېرې کړي، خو کاهنې وويل، ته له دې ښځې چې له کوره دې وايستله درې زامن لرې، زه ډار هېږم چې يوه ورځ به پلرنۍ مينه، تا د هغو زامنو پر لور بوځي او ما به هېره کړې، نو که غواړې خوند واخلې بايد خپل بچيان دلته راولې چې زه يې ووژنم او د هغوی د بدن غوښه خپلو سپيانو او پيشوګانو ته واچوم.

سات نه بې له ځنډه د کاهنې د مريانو په وسيله خپل بچيان راوستل او ښځې ته يې وسپارل. کاهنې ښځې په ډېرينې چړې درې واړه ووژل او په داسې حال کې چې سړی د شرابو په ځنبلو بوخت و، ښځې د هلکانو غوښې خپلو سپيانو او پيشيانو ته ور واچولې.

بيايې وويل اوس راشه او زه به د يوه ساعت لپاره ستا خور شم. ډاډه اوسه چې د زړه له تله به ستا خور شم او هره ښځه هغه وخت دې ته چمتو کېږي، چې له مينې د يوه سړي خور شي، چې پوه شي ځان يې ارزانه نه دی خرڅ کړی.

د کوخه ډبو اوز ما په شان د عزتمنو مېرمنو ترمنځ توپير دا دی چې کوخه ډبې ځان ارزانه خرڅوي، خو باعزته او ابرومندې ښځې ځان په ډېرو شتو خرڅوي.

ما وويل نفر نفر ما دغه کيسه اورېدلې ده، پوهېږم چې ټولې دغه خبرې په خوب کې تېرې شوې دي او د کيسې په پای کې چې سات نه له خوبه راويښ شو، د خدايانو شکر يې وکړ چې د هغه ماشومان ژوندي دي

نفر نفر وويل داسې نه ده، هر سړی چې په يوې ښځې مين کېږي، د سات نه په شان

وي. ددې لپاره چې له هغې خوند واخیستلای شي چمتو دی خپل مال، ښځه او زامن ترې ځار کړي. کله چې یې ستر هرم جوړاوه همداسې وو او کله چې باد او لمر هغه وران کړي بیا به هم همداسې وي.

ایا په دې پوهېږې د هغه خدای سر یې چې په مینه کې مراد ورکوي ولې د پیشي د سر په شان جوړ کړی دی؟

ما وویل نه. نفر نفر وویل ددې لپاره چې وواییي ښځه د پیشي د پنجو په شان ده او کله چې پیشي د غواړي ښکار وکړي. هغه غولوي. خپلې نرمې پنجې پر هغه راکاږي. ښکار له نرمو پنجو خوند اخلي. خو نابېره د پیشي د پنجو تېرې څوکې د هغې له نرم پوستکي راوځي او د ښکار په بدن کې ننوځي.

زه له دې امله چې نه غواړم تا ته کوم تاوان ورسېږي نو درته وایم چې سینوهه له دې ځایه ولاړ شه او بیا دلته مه راځه.

ما وویل نفر نفر تا پخپله نن راته وویل چې درځه لاړ نه شم او دلته اوسم چې له تا سره خبرې وکړم.

ښځې وویل هو ما وویل خو اوس درته وایم چې ورځه.

ددې لپاره چې که غواړې له ما خوند واخلې ډېره به درته ګرانه شي او بیا به ماته ښېرا کوې چې تا ته مې دغه تاوان ورساوه.

ومې ویل. زه به هېڅکله له خپل تاوانه ګیله ونه کړم او که ستا مقصد سره، سپین او مس وي. زه هرڅه چې لرم تا ته به یې ددې لپاره درکړم چې پرې مې ږدې خوند درځخه واخلم.

نفر نفر وویل لکه چې تا هم وکتل ما نن دلته یو ستر جشن درلود او دغه جشن ستړې کړې یم. اوس غواړم ویده شم. ته لاړ شه او بله ورځ زما کور ته راشه. بیا چې ما هر څه درځخه وغوښتل ته به یې راکړې او زه به یې په بدل کې ستا خور شم.

ما چې څومره ټینګار وکړ، چې دغه شپه له ما سره تېره کړي هغې ونه منله. زه مجبور شوم د هغې له کوره ولاړ م خو تر سهاره د نفر نفر د مینې له هیجانه ویده نه شوم.

پر بله ورځ مې سهار وختي خپل مریي ته وویل چې ټول هغه ناروغان چې زما کتنځي ته راځي خواب کړي او ورته دې وواییي چې پر دغې ورځ د معالجې حوصله نه لرم.

بیا سلماني ته لاړم چې ځان پاک کړم. په ځان مې عطر ووهل او د نفر نفر د کور پر

لور راون شوم.

هلته یوه مریي د هغې کوټې ته بوتلم او ګورم چې ښځه په سینګار بوخته ده. زه د بېګانې دوستۍ په اساس د هغې لور ته ورغلم. خو ښځې له ځانه لېرې کړم او ویې ویل سینوهه! ولې دلته راغلې او ولې ماته مزاحمت کوې؟

ومې ویل نفر نفر له تاسره مینه لرم او نن دلته راغلی یم چې له وعدې سره سم زما خور شې.

ښځې وویل نن باید زه سینګار وکړم. ځکه چې یو سوداګر چې له سوریې راغلی دی. غواړي له ما سره خپل وخت تېر کړي او ویلي یې دي چې د یوې ورځې په بدل کې به یوه توټه جواهر راکوي.

بیا نفر نفر په کټ ځملاسته او یوې ښځې چې د هغې وینځه وه، په عطري تیلو د هغې د بدن مالش پیل کړ.

له دې امله چې ما نه غوښتل ولاړ شم ویې وېل سینوهه! ولې مې کړوې او له دې ځایه نه ځې؟

ومې ویل. ددې لپاره چې ستا ارمان لرم... ددې لپاره چې غواړم ته لومړنۍ ښځه واوسې چې زما خور شې.

نفر نفر وویل یو ځل بیا د بېګا په شان درته وایم چې زه ستا د کړولو نیت نه لرم او تاته وایم چې پخپل کار پسې دې ځه او ما پخپل حال پرېږده.

ومې ویل نفر نفر هرڅه چې وغواړې دربه یې کړم خو چې نن راسره شپه تېره کړې.

ښځې وپوښتل ته څه لرې؟ ومې ویل د سپینو او مسوڅو کړی لرم چې له ناروغانو مې د فیس په بدل کې اخیستي دي او دغه راز یو کور لرم. چې کتنځی مې هم همغلته دی. دغه کور هغه محصلین چې له دارالحیاته خلاصېږي او کتنځي ته اړتیا لري په ښه بیه اخلي.

نفر نفر په داسې حال کې چې په کټ ځملاستلې وه او وینځې یې بدن ته په عطر لرونکو تیلو مساژ ورکاوه وویل سمه ده سینوهه! ولاړ شه، یو کاتب راوله چې دغه موضوع ولیکي. سند یې له ستر قاضي سره کېږدي چې دغه انتقال قانوني اړخ پیدا کړي او ته ونه کړای شې په راتلونکې کې هغه له ما څخه واخلې.

ما چې د نفر نفر ښکلي او مرمرین اندام ته کتل پر نفس مې غلبه نه شوای کولی.

فکر مې کاوه چې د ټولې شتمنۍ ورکول، ددې په بدل کې چې يوه شپه له هغې سره ځملم اهميت نه لري. ومې ويل نفر نفر اوس ځم او کاتب راولم.

ښځې وويل په هر حال نن له تا سره نه شم پاتې کېداى، خو کاتب راوله او خپله شتمني زما په نوم کړه زه به دې په بله ورځ ومنم.

ما په بېړه يو کاتب راوست او هرڅه چې مې درلودل له سرو او سپينو رانيولې ترکور او حتی مر يي پورې ټول مې د نفرنفرنفر په نوم کړل. هغې سند په دو کاپيو کې برابر کړ او له ماپې واخيستل. يو يې له ځان سره وساته او بل يې کاتب ته ورکړ چې له ستر قاضي سره يې کېږدي.

ما وکتل چې خپل سند يې په يوه صندوق کې کېښود او ويې ويل سمه ده زه اوس ځم. ته سبا دلته راشه چې هغه څه درکړم چې ته يې غواړې.

ما غوښتل په غيږ کې يې ټينګه کړم. خو چيغه يې کړه او ويې ويل له مالېږې شه چې سينګار مې خرابوې.

بيا په يوه روان تخت سپره شوه او له خپلو مريانو سره لاړه. زه هم خپل کور ته ستون شوم. خپل خصوصي شيان مې راغونډ کړل چې کله د کور نوی خاوند راځي اوکور د ځان کړي.

کاپتا چې وليدل د خپلو شيانو په ټولولو بوخت يم، ويې ويل د سفر نيت دې کړی؟

ومې ويل نه ما خپل ټول شيان او ته بل چاته ورکړل، ډېر ژر به يو څوک راشي او دغه کور به راڅخه تسليم کړي.

ته هڅه وکړه چې له هغه سره کار کوې لږه غلا وکړې، ځکه چې ممکنه ده، هغه تر ما بې رحمه وي او په لرګي به دې ووهي. کاپتا زما په مخکې سجده وکړه او ويې ويل: اې زما باداره، زما په بوډا زړه ګران يې، ما له ځانه مه شړه ځکه چې زه له بل بادار سره کار نه شم کولای.

سمه ده چې ما له تا ځينې شيان غلا کړي دي. خو هېڅکله مې د انصاف له حده ډېره غلا نه ده کړې او د ورځې په تودو ساعتونو کې چې تا په کور کې استراحت کاوه ما د طبس په کوڅو کې ستا ستاينه کوله او ټولو ته مې ويل سينوهه زما بادار د مصر تر ټولو ستر طبيب دی. په داسې حال کې چې نورو غلامانو به خپلو بادارانو ته ښېراوې کولې او له خدايانو به يې د هغو مرګ غوښت.

د غلام په دې خبره مې زړه خپه شو او د هغه پر اوږه مې لاس کېښود. ومې ویل کاپتا پاڅېږه.

لږ داسې پېښ شوي چې زه خپل مریي ته د هغه نوم واخلم. ځکه چې وېرېدم هغه به خیال وکړي، چې ورسره برابر یم او ډېر ځله مې تمساح باله یا به مې ورته د غل او احمق خطاب کاوه.

کله چې مریي خپل نوم واورېد، ویې ژړل او زما پښې یې پخپل سر کېښودې. ویې ویل. زما ځوانمرده باداره! ما مه شړه او مه پرېږده چې نور کسان ستا بوډا مریی په لرګیو ووهي. پر سریې په کاني وولي او خوسا شوې ډوډۍ ورکړي. هغه ډوډۍ چې باید سین ته یې واچوي.

سره له دې چې زړه مې پرې وسوځید. خو پخپلې لکړې مې په شا وواهه (خو ډېر سخت نه) او ومې ویل اې تمساح! پورته شه. دومره زارۍ مه کوه او که ګوري چې زه دې له ځانه لیرې کوم. ددې لپاره دي چې تا ته ډوډۍ نه شم درکولای ځکه چې خپل ټول شیان مې بل چاته ورکړي او ستا ژړاګانې ګټه نه لري.

کاپتا پورته شو او د ویر په نښه یې خپل لاس پورته کړ او ویې ویل نن د مصر یو سپېره ورځ ده.

له هغه وروسته یې لږ فکر وکړ او ویې ویل سینوهه! له دې سره سره چې ځوان یې خو یو ستر ډاکټر یې. زه تاته وړاندیز کوم چې هر څومره سپین زر او مس چې لرې وایې خله. نن شپه به په یوه ماکو کې کښېنو او له دې ځایه به لاړ شو.

ته به د مصر په یوه ښار کې چې د سین په ښکتنۍ برخه کې دی خپل کتنځی پرانیزې او که یې موږ ته مزاحمت کاوه نو سره هېواد ته به ولاړ شو او په سره هېوادکې د مصري ډاکټرانو ډېر درناوی کېږي

*(له سره هېواده مقصد ننی عربستان دی چې د سره سمندر په ختیځ کې پروت دی)*

که په سره هېوادکې نه غواړې ژوند وکړې موږ دمیتاني یا دوآب هېواد ته تللی شو. ما اورېدلي چې په دوآب کې دوه سیندونه شته چې په اپوټه بهیر بهېږي او د شمال پر خای سوېل ته روان دي.

ومې ویل کاپتا! زه له طبسه نه شم تښتېدلای، ځکه هغه مزی چې زه یې له دې ځای سره تړلی یم تر مسي زولنو هم مضبوط او کلک دی.

زما مریې پر ځمکه کېناست او سر یې د ویرجنو په شان وښوراوه ، ویې ویل امون خدای موږ پرې ایښي یو او نور موږ پرې ګران نه یو ، ځکه چې یوه موده کېږي تا د امون معبد ته ډالۍ نه دي وړې.... زه خو وایم چې همدا نن د نورو خدایانو لپاره یوه ډالۍ یوسو . چې د نوي خدای له مرستو برخمن شو.

ومې ویل کاپتا ! تا هېر کړي چې زه نور څه نه لرم چې بل خدای ته یې ورکړم او ان ته چې زما مریې وې اوس په ماپورې اړوند نه یې.

کاپتا ! پوښتنه وکړه دغه کس څوک دی، نارینه دی که ښځه ؟ ومې ویل هغه یوه ښځه ده.

کله چې کاپتا پوه شو چې نوی خاوند یې یوه ښځه ده داسې ویر ماتم یې پیل کړ ، چې زه مجبور شوم هغه پخپلې لکړې وګواښم چې غلی شي.

بیا یې وویل اې مورې ! ولې دې زه پر هغې ورځ چې پیدا شوی وم د خپل نوم په بند خفه نه کړم . چې ژوندی پاتې نه شم او دغه ناخوالې ونه زغمم ؟.. ولې زه یو مریی پیدا شوی یم . چې له دې وروسته به دیوې ښځې په بند کې وم.

ددې لپاره چې ښځې تل له نارینه وو ، بې رحمه وي هغه هم ددې ښځې په شان ښځه چې له تا یې ټول شیان واخیستل . دغه ښځه به له سهاره ترماښامه ما وځغلوي او اجازه به رانه کړي . چې یو شېبه هم استراحت وکړم او دا به په هغه حالت کې وي چې دا ما خپل چوپړ ته پرېږدي ، ګني په یوه معدنچي به مې خرڅ کړي چې په کانونوکې په کار بوخت شم او له څو ورځو وروسته به په کان کې له ډېرې سختۍ مړ شم.

زما مړی څوک مومیایي نه کړي او د ځملاستو لپاره به هدېره ونه لرم. *(په پخوانیو وختونوکې کارګران په کانونوکې د کار لپاره نه چمتو کېدل او د فلزاتو د استخراج لپاره یې مریان په کانونوکې د کار لپاره اړکول او له هغو به یې استفاده کوله )*

زه پوهېدم چې کاپتا سمه خبره کوي او د نفر نفر په کور کې د یو بوډا د ارام لپاره چې یوه سترګه هم نه لري . ځای نشته.

هغه به په بل چا خرڅ کړي . له کاپتا سره به بد چلند وکړي او په لنډه موده کې به له سختو عذابونو وروسته مړ شي.

د مریي د ژړا له امله زه هم په ژړا شوم . خو په دې نه پوهېدم چې پر هغه ژاړم که پر خان چې ټول شیان مې له لاسه ورکړي دي.

کله چې کاپتا ولیدل زه هم ژاړم کرار شو او له خپل ځایه پاڅېد. خپل لاس یې زما پر سر کېښود او ویې ویل. ټوله زما ګناه ده چې نه پوهېدم زما بادار د هغه ټوکر په شان ساده دی چې او به نه وي ورسېدلې.

د ژوند له حالاتو خبر نه دی او نه پوهېږي چې یو ځوان کله چې د شپې مهال پخپل کور کې وید ېږي باید یوه ښځه له ځان سره څملوي.

ما ستا په شان یو ځوان نه دی لیدلی چې د ښځو په اړه داسې بې پروا وي

هېڅکله داسې و نه شول چې ته له ما وغواړې چې لاړ شم او یوه ځوانه ښځه چې د عیاشۍ په کورنو کې پریمانه دي دلته راولم.

یو ځوان سړی چې د ښځو په اړه تجربه نه لري. د یو موتي وښو په شان وي او لومړنۍ ښځه چې ورسره مخامخېږي د تنور په شان وي چې کله وابنه په تنور کې واچول شي سوځي.

بې تجربې ځوان هم چې کله له یوې ښځې سره مخامخ شي او ر اخلي او ددې لپاره چې له هغې ښځې خوند واخلي. خپل هر څه ترې ځاروي او نه پوهېږي چې ځانته یې څومره تاوان پېښ کړی دی.

زه په دې خواشینی یم چې ولې دې د ښځو په اړه له ما څخه پوښتنه ونه کړه چې لارښوونه درته وکړم او تاته وو ایم چې په دنیا کې یو ښځه هغه وخت له یوه سړي سره مینه کوي چې هغه سړی ډوډۍ او غوښه لري او کله چې یو سړی سوالګر شي نو بیا یې خوشې کوي او په بل سړي پسې ځي چې غوښه او ډوډۍ ولري.

ولې دې له ما سره مشوره ونه کړه چې تا ته وو ایم. کله چې یو سړی یوې ښځې ته ورځي باید له ځان سره یو لرګی هم یوسي او د ښځې کور ته له ننوتو سره سم هغه پر سر په لرګي ووهي؟

که دغه احتیاط ونه کړي پر همغې ورځ به ښځه د سړي لاس او پښې وتړي او بیا به سړی د هغې ښځې له منګولو خلاص نه شي، مګر هغه وخت چې سوالګر شي او دا هغه وخت دی چې ښځه یې پرېږدي.

هر څومره چې سړی شرم وکړي تر نورو ژر د ښځو په منګولو کې لوېږي او ډېر ترې کړاوویني.

که تا ددې پر ځای چې د دغې ښځې کور ته ورشې هره شپه دې یوه ښځه دلته راوستلې

وای او سهار دې یوه کړی مس ور ببښلي وای او بیا دې رخصت کړې وای نو موږ به نن له دغې بدبختۍ سره نه وای مخامخ شوي.

زما غلام یو شېبه وغړېد خو مایې خبرو ته غوږ نه نیو، ځکه د نفر نفر فکر مې له ځانه نه شو لېرې کولای. هرڅه چې مریي راته ویل په یوه غوږ به مې ننوتل او له بله به وتل.

په دې شپه تر سهاره لس ځله ویښ شوم او هرځل چې به راویښ شوم نفر نفر به رایاده شوه، په دې ډېر خوشاله وم چې سبا به هغه وګورم.

ددې ښځې د لیدو لپاره دومره بېقراره وم چې په بله ورځ کله د ښځې کور ته لاړم دا لا ویده وه. زه د سوالګرو په شان د هغې د کور په دروازه کې کېناستم تر هغه چې دا له خوبه راویښه شي.

کله چې د هغې کوټې ته ننوتم ګورم، چې یوه وینځه د هغې د بدن په مالش لګیا ده او چې زه یې ولیدم ویې ویل سینوهه! ولې زما د پرکالۍ او کسالت سبب کېږې؟ ما وویل زه نن راغلی یم چې له تا سره خواړه وخورم او خپل ساعت درسره تېر کړم. تا پرون له ما سره ژمنه وکړه چې نن ورځ به له ما سره تېروې.

نفر نفر خوله خلاصه کړه او اسویلی یې وایست ویې ویل: تا پرون ماته درواغ ویلي ول. ومې ویل څنګه مې درته درواغ ویلي ول؟ ښځې وویل، پرون تا وویل چې له کور او مریي پرته بل څه نه لرې په داسې حال کې چې ما تحقیق وکړ او پوه شوم، چې ستا پلار چې اوس ړوند شوی دی او لیکنه نه شي کولای خپل مهر تا ته درکړی او ویلي یې دي چې ته باید د هغه کور خرڅ کړې.

نفر نفر رښتیا ویل، پلار مې ړوند شوی و او لیکنه یې نه شوای کولای خپل مهر یې ماته راکړی و، چې کور یې ورته خرڅ کړم، ځکه چې پلار او مور مې غوښتل د طبس له ښاره ووځي، یوه کرونده واخلي، همغلته خپل پاتې عمر تېر کړي، مور به مې په کرونده کې کرنیز کارونه کوي او همغلته به د مرګ تر وخته پاتې وي.

ما ورته وویل موخه دې څه ده؟ ښځې وویل ته د خپل پلار یوازېنی زوی یې او پلار دې لور نه لري چې له مړینې وروسته د میراث ډېره برخه هغې ته ورسېږي، نو ټول میراث به تا ته درسېږي، ته دهغوی په ژوند کې دا حق لرې چې دهغه کور ماته منتقل کړې، هغه هم خپل مهر تا ته درکړی او ته یې د کور په پلورلو کې ازاد پرې اینښی یې.

کله چې مې د هغې له خولې دغه خبره واورېده بدن مې ولړزېد، ځکه چې ما د خپل کور

اختیار درلود او د پلار او مور کور مې نفر نفر ته نه شو ورکولای. ومې ویل دغه غوښتنه دې ډېره عجیبه ده، ځکه چې که دغه کور تا ته درکړم پلار او مور به مې نوره کرونده ونه لري چې خپل پاتې عمر پکې تېر کړي.

نفر نفر خپلې وینځې ته وویل چې له کوټې بهر شي او ماته یې وویل چې ورنژدې شم. وروسته یې راته وویل سینوهه! راشه او زما پر سر لاس تېر کړه، زه په ډېر شوق ولاړ شوم او د هغې پر بې وېښتو سر مې لاس تېر کړ او ومې موښه.

ښځې وویل سینوهه! باید پوه شې چې زه داسې ښځه یم چې ځان ارزانه نه خرڅوم. ستا کور چې پرون دې راکړ زما ورنه دی او که غواړې له ما استفاده وکړې، باید د خپل پلار کور هم زما په نوم کړې تر دې چې زه پوه شم، ماځان ډېر ارزانه نه دی خرڅ کړی.

ومې ویل، نفر نفر پرون خو دې له ما سره ژمنه وکړه، چې نن ورځ به له ما سره تېروې، د پلار د کور خبره دې نه وه کړې.

ښځې وویل، ددې لپاره چې پرون لا زه خبره نه وم، چې ته د خپل پلار د کور د خرڅولو یا بل چا ته د دغه کور د انتقال واک هم لرې او بله دا چې پرون، پرون و او نن یوه نوې ورځ ده، او که ته د خپل پلار کور زما په نوم کړې نن به تر ماښامه پورې له ما سره ساعت تېر کړې په دې شرط چې لومړی ولاړ شې، یو کاتب راولې او د کور د انتقال سند ماته راکړې، له هغه وروسته به له ما سره ساعت تېر کړې، ځکه چې زه د نارینه وو په قول او وعدو ډاډ نه لرم، زه چې څومره پوهېږم نارینه دروغجن دي.

و مې ویل، نفر نفر، هر څه چې ته وو ایې همغسې به وکړم.

ښځې زه له ځانه لېرې کړم او ویې ویل نو ورځه! لومړی کاتب راوله او د کور د انتقال کار خلاص کړه، له هغه وروسته به زه تر شپې پورې ستا شم.

زه له کوره راووتم، یو ځل بیا مې کاتب راوست او دا ځل مې پلرنی کور چې پوهېدم له قبره، وروسته زما د مور او پلار یوازېنی شتمني ده، د نفر نفر په نوم کړ.

کله چې کاتب غوښتل ولاړ شي ما سپین زر نه درلودل چې هغه ته یې ورکړم، خو ښځې د سپینو زرو یوه نری کړی، کاتب ته ورکړه او ویې ویل دا ستا اجوره ده او له دې سره کاتب له دروازې ووت.

بیا نفر نفر امر وکړ چې مریان ورته سبا ناری راوړي، هغوی مړو ته ډوډۍ، تروه کبان او د اوربشو اوبه راوړې.

نفر نفر ووېل. نن تر ماښامه ستا په خدمت کې یم، په دې کور کې به وښبې او وخورې او له ماسره به ساعت تېر کړې.

له هغه وخته. بیا د لمر تر لوېدو لږ مخکې چې زه د نفر نفر په کور کې وم هغې له ماسره په مینه چلند وکړ. ماته یې اجازه راکړه چې سر یې وموښم او ویل یې چې زه به نن تاته داسې شیان در زده کړم چې لا دې نه دي زده کړي، خو زده کول یې د یوې خور د درلودلو لپاره ضروري دي. ځکه چې له دې پرته به ستا خور ستا له لمس کولو خوند وانه خلي.

کله چې لمر داسې ځای ته ورسېد چې ښکارېده نوره نو شپه رانژدې کېږي ښځې راته وویل سینوهه اوس مایوازې پرېږده ځکه چې ستړې شوې یم. باید استراحت وکړم او د سبا لپاره دځان د سینګارولو فکر وکړم.

زما د سر وېښتان هم راشنه شوي دي باید نن شپه هغه وخریم چې سبا ته مې سر وځلېږي او که ستا په شان یوه بل سړي وغوښتل له ماسره ساعت تېر کړي نو زما له ځلیدونکي سره خوند واخلي.

زه د دغه ځای د پرېښودلو له امله ډېر خپه وم، په خواشینۍ سره د خپل هغه کور پر لور روان شوم چې زه پوهېدم نور زما نه دی او کله چې کورته ورسېدم شپه شوې وه.

کله چې پښېماني او شرم له حده ډېر شي د اپیمو په شان په سړي خوب راولي او زه په دې شپه له ډېرې پښیمانۍ یا له دې شرمه چې د پلار کور مې خرځ کړی و. ویده شوم او له دې امله چې د ورځې مې د هغې ښځې په کور کې ډېر شراب څښلي وو تر سهاره را ویښ نه شوم.

سهار چې کله له خوبه راویښ شوم د نفر نفر ښکلی اندام او خریل شوی سر رایاد شو او پوه شوم چې په کور کې نه شم پاتې کېدای. هغه هم په داسې کور کې چې پوهیدم زما نه دی.

له کوره ووتم او د هغې ښځې دکور پر لوري روان شوم.

ما سوچ کاوه چې هغه به ویده وي. خو چې ورغلم معلومه شوه چې وېښه وه او په باغ کې ده.

کله چې یې زه ولیدم ویې پوښتل د څه لپاره راغلی یې او له ماڅه غواړې؟

ومې ویل راغلی یم چې ستا په خواکې و اوسم. د پرون په شان ستا سر وموښم او له تا

غواړم چې له ماسره ساعت تېرې وکړې.

ښځې وویل ، ایا ته څه لرې چې ماته یې راکړې چې زه له تاسره خپل وخت تېر کړم.

ومې ویل خپل او د پلار کورونه مې تاته درکړل. نور کوم شی نه لرم خو له دې امله چې زه ډاکټر یم او له دارالحیاته فارغ شوی یم ، په راتلونکې کې چې بډای شم هغه ډالۍ به درکړم چې نن یې باید درکړم.

نفر نفر وخندل او ویې ویل د نارینه وو په ژمنو باور نه دی پکار ، ځکه تر هغه وخته پورې پر خپلې ژمنې ولاړ وي چې هیله کوي یوه ښځه خوړ کړي.

کله چې یې هغه څوځله خپله خوړ کړه او له وربانديې موړ شو ، نو ښځه داسې هېروي چې د عمر تر پایه پورې یې نه یادوي.

خو لهٔ دې امله چې تا وکړای شو ، پرون زما د لاربنوونو پیروي وکړې او له یوې ښځې د استفادې چل دې زده کړ ، ښایي نن هم ګروهه ولرم چې له تاسره ساعت تېري وکړم او د خپلې ډالۍ لپاره یوه حل لاره پیدا کړم.

زه دهغې په څنګ کې کېناستم. سر مې د هغې په سینو کېښود. ښځې وویل چې زموږ لپاره خواړه او شراب راوړئ او ویې ویل له دې امله چې ښایي نن له ماسره پاتې شې نو له همدا اوسه به خوراک او څښاک پیل کړو.

له دې وروسته چې لږ مو وڅښل نفر نفر وویل سینوهه ! ما اورېدلي چې ستا مور و پلار یو قبر لري چې هغه یې جوړ او سینګار کړی او له دې امله چې ته د خپل پلار د شتمنیو اختیارات لرې دغه قبر زما په نوم کولای شې.

ومې ویل دغه خبره چې ته یې کوې ما به د آمون له عذاب سره مخامخ کړي. څنګه د خپل پلار و مور قبر ستا په نوم کړم او ددې سبب شم چې دغه دواړه مېړه او ښځه په بلې دنیاکې کور ونه لري او د هغوی مړی د مریانو او ورانکارو په شان په نیل کې واچوي.

ویې ویل: ته څنګه دا خبره نه منې چې مور و پلار دې قبر ونه لري خو په دې راضي کېږې چې زه ځان ارزانه خرخ کړم ؟

ماوویل پرون او هابله ورځ مې دوه ډالۍ درکړې او ایا ددغه دوه ډالۍ ددې ارزښت نه لري، چې ته نن له ډالۍ پرته زما په څنګ کې پاتې شې؟

ښځې وویل دغه دوه ډالۍ زما د ښکلا د نیمې ورځې ارزښت نه لري، اوس له دوآبه یو سړی راغلی او چمتو دی چې دیوې ورځې په بدل کې سل دینه سوچه طلا راکړي (دین

د مصري وزن واحد و او کابو یو ګرام کېده).

بیا یې د شرابو بل جام راکړ او زیاته یې کړه که غواړې له ما سره اوسې او هر څومره چې غواړې ما خپله خور کړې، باید د مور و پلار قبر دې زما په نوم کړې

کله چې ښځه پوه شوه زه د قبر ورکولو ته تیار یم نو سمدستي یې کاتب راوغوښت او د قبر د انتقال سند یې برابر کړ.

بیا یې ماته وویل چې له باغه کوټې ته ولاړ شو، ځکه په باغ کې مریان او وینځې دي او ساعت نه شو تېرولای.

کله چې کوټې ته ولاړو نفر نفر وویل. زه هغه ښځه یم چې پر خپله خبره درېږم او بیا چې ونه وایې ما تېرایستی یې.

زه به نن تر لمر لوېدو له تا سره یم او ته به نن بیا هغه چلونه زده کړې چې پرون مې در زده کړي ول، زه به هم په دې کور کې ستا له شتونه خوند واخلم او ساعت به مې تېر شي.

مریانو مور ته پېنځه ډوله غوښه، اووه ډوله شریني او درې ډوله شراب راوړل خو ما داسې احساس کاوه چې هر ځل زموږ تر شا درېږي پر ما ملنډې وهي، ځکه ټول پوهېدل چې ما ان د خپل مور و پلار قبر هم نفر نفر ته ورکړ چې یوه ورځ ور سره تېره کړم.

نه پوهېدم چې هغه ورځ څومره ژر تېره شوه؟ او ولې هغه خوښي چې انسان یې په ډېرو فلزاتو ترلاسه کوي په څو شېبو کې ختمېږي خو د بد بختۍ ورځې پای نه لري.

ناڅاپه متوجه شوم چې ورځ پای ته رسېدلې او شپه شوه.

نفر نفر وویل اوس هغه وخت دی چې ته باید زما له کوره ولاړ شې، ځکه چې شپه شوه، زه هم ډېره ستړې یم او باید د بلې ورځې لپاره سینګار وکړم.

ومې ویل نفر نفر! زه غواړم نن شپه هم له تا سره تېره کړم او سبا به له دې ځایه لاړ شم.

ښځې وویل د دې لپاره چې نن شپه له ما سره پاتې شې ماته څه راکوې؟

ومې ویل زه نور څه نه لرم چې تا ته یې درکړم.

ستا لپاره مې حتی مور و پلار هم په بلې دنیا کې بې کوره کړم او اوس د آمون له قهر سره مخامخ یم.

ښځې وویل: دلته به نه راتلې، ایا ما درته ویلي ول، چې دلته راشه او له ما سره ساعت تېر کړه؟

ما تېنګار وکړ چې نن شپه پاتې شم خو نفر نفر وویل: نه شي کېدای، ځکه چې نن شپه له دوآب هېواده راغلی سوداګر دلته راځي او هغه به ماته سل دینه سره زر راکړي

زه له دومره سرو زرو نه شم تېرېدلای، بیاهم که تا کوم شی درلودای او ماته دې ر اکړي وای ممکنه وه چې ما د خپل تاوان یوه برخه جبران کړې وای، خو له دې امله چې څه نه لرې باید ولاړ شې.

بیا زما له څنګه پورته شوه چې بلې کوټې ته لاړه شي، خو ما دهغې لاسونه ونیول چې مخه یې ونیسم.

په دې وخت کې د هغو شرابو له امله چې نفر نفر راکړي ول ، نه پوهېدم چې څه وایم. ښځې چې ولیدل مایې لاسونه کلک نیولي او نه یې پرېږدم چې لاړه شي، نو ناري یې کړې او خپل مریان یې را وبلل ورته یې وویل: چا تاسې ته اجازه درکړې چې دغه سړی زما کورته راپرېږدئ.

ژر یې له دې کوره وباسیء او که مقاومت وکړي دومره ووهئ یې چې له هر څه ولوېږي.

مریانو پر ماحمله وکړه، زه سره له دې چې نشه وم ، غوښتل مې مقاومت وکړم او له کوره ونه وځم . خو هغوی پر مابرید وکړ او په لرګیو یې دومره ووهلم چې زما له مخ ،سر ،سینې او خیټې څخه وینې رواني شوې . وروسته یې له کوره د باندې وغورځولم.

کله چې خلک راټول شول او ویې پوښتل چې ولې مو دغه سړی وواهه؟ نو دوی ورته وویل . ده زموږ مالکې ته سپکاوی کړی دی.

موږ چې ورته هر څومره وویل زموږ مالکه داسې ښځه نه ده چې ځان ارزانه خرڅ کړي خو ده نه منله او غوښتل یې چې په زور زموږ مالکه خپله خور کړي . نو موږ هم اړ شوو چې دی له کوره را وباسو.

ما دغه خبرې په داسې حال کې واورېدې چې تقریباً بیخوده وم.

دومره یې وهلی وم چې له هغه ځایه نه شوای تللی، شپه مې هملته په خپلو وینو کې تېره کړه او ویده شوم.

سهار دپلیو خلکو د پښو او د ګاډیو د اربو په غږ راویښ شوم . ټول بدن مې سخت درد کاوه او د شرابو مستي هم رانه تللې وه.

خودومره چې له شرمه او پښېماني څخه کړېدم هومره د بدن له خوږو نه ځورېدم.

روان شوم او ځان مې د نیل سیند څنډې ته ورساوه ، هلته مې خپلې وېنې ووینځلې او

بیا مې له ښاره د وتلو لاره ونیوله، ځکه چې دوه مره له ځانه شرمیدم چې کورته نشوای تللی.

درې ورځې او درې شپې مې دنیل پر غاړه، بانګسونو او نیوونو کې تېره کړه او په دې موده کې مې له اوبو او وښو پرته بل څه ونه خوړل.

درې ورځې وروسته ښار ته را ستون شوم او خپل کور ته لاړم.

کله چې کور ته ورسېدم نو ومې لیدل چې زما پر کور د یوه بل ډاکټر نوم لیکل شوی و، او دې خبرې ثابته کړه چې زما کور یې ضبط کړی دی.

زما مریی کاپتا له کوره راووت، چې زه یې ولیدم ویې ژړل او راته یې وویل، زما کم بختـه بـاداره ستا کـور یـوه ځـوان طبیب ونیوه زه اوس زه د هغـه مریـی یـم او دهغـه لپـاره کارکوم.

بیا یې وویل که ما کولای شوای چې تا له بدمرغیو وژغورم نو خپله دغـه یـوه سترګه بـه مې درکړې وای. ځکه چې ستا مور و پلار هم مړه شوي دي.

ومې ویل آمون ته پناه ورم، بیا مې خپل لاسونه پورته کړل او ومې پوښتل زما مور و پلار څنګه مړه شول ؟

کاپتا وویل: لـه دې امله چې تـا د هغـوی کـور خرڅ کـړی و، نو نـن سهار وختي د ستر قاضي له لوري د هغه کور ته مامورین ورغلل چې هغوی له کوره وباسي او کور د هغه نوي مالک ته ورکړي، خو ستا مور و پلار پر ځمکه پراته ول او نه ښوریدل.

لا هم نه ده معلومه چې هغوی پخپله مړه شول او که تر دې وروسته چې خبر شول له کوره یې باسي نو یې زهر خوړلي دي او خپل ژوند یې پای ته رسولی دی.

خو ته کولای شې د هغوی جنازې او مړي، چې لا هم په هغـه کـورکې دي د مـرګ کورتـه یوسې.

ماورته وویل زما مور و پلار دې ونه لیدل ؟ کاپتا وویل پرون چې زما نوی بادار زما دکتولپاره راغلی و. او موریې کار کولو ته اړ کولم نو ما ولیدل چې ستا پـلار دلتـه راغلی دی.

له دې امله چې پلار دې ړوند و. پر لاره نه شوای تللی او مور دې له لاسه نیولی و، دواړو غوښتل چې تا وګوري.

زه ورته متوجه شوم چې مور دې هم دومره کمزورې شوې وه چې پر لاره نه شوای تللی.

هغوی ويل چې د ستر قاضي مامورين کور ته ورغلي ول او ټول شيان يې مهر کړي او ويلي يې وو. چې هغوی بايد د هر ژر دغه کور خوشې کړي، ګنې دواړه به په زور له کوره وايستل شي.

پلار دې له مامورينو پوښتنه کړې وه چې د څه لپاره دوی له کوره باسي نو هغوی ځواب ورکړی و چې ستاسو زوی سينوهه دغه کور يوې بدنامې ښځې ته ورکړی چې له هغې څخه خوند واخلي.

پلار دې له ما وغوښتل چې تا ته خبر درکړم چې ته ورشې. خو زه نه پوهېدم چې ته چيرته يې؟

د پلار سترګو دې ځېر نه کاوه خو غوښتل يې چې يو شی وليکي او ماته يې وويل کاپتا يوه ټوټه نري مس راکړه چې د کاتب په وسيله پرې ليک وليکم او که مړ شوم دغه ليک مې زوی ته ور سپړي.

ما يوه ټوټه نري مس له خپلې زېرمې څخه ورکړل او هغه ستا له مور سره ولاړ.

ومې ويل کاپتا ! ايا پلار مې ستا په وسيله کوم پيغام ما ته نه دی را استولی.

مريي مې وويل نه.

زړه مې په کوګل کې تر ډېرې هم دروند شوی و، تر دې حده چې پر خپلو پښو نه شوای درېدلی. پر ځمکه کېناستم او ومې ويل کاپتا ! هرڅومره سپين زر او مس چې دې زېرمه کړي وي رايې وړه او ماته يې راکړه ځکه چې مور و پلار مې مړه شوي دي. زه د هغوی د موميايي کولو لپاره هېڅ فلز هم نه لرم. که ژوندی پاتې شوم ستا مس او سپين زر به بيرته درکړم او که مړ شم آمون به يې بدله درکړي.

کاپتا وژړل او ويې ويل که ته زما يوه سترګه هم وغواړې چمتو يم چې در يې کړم. خو سپين زر او مس نه لرم.

ما دومره ټينګار وکړ چې هغه لاړ او له دې وروسته چې شا وخوايې وکتل چې څوک يې نه ځاري په باغچه کې يې يوه ډبره ليرې کړه او تر لاندې يې يوه زړه کڅوړه راپورته کړه چې پکې څو ټوټې مس او سپين زر وو. هغه يې ماته راکړل او ويې ويل: اې زما باداره ! دغه مس او سپين زر چې تا ته يې درکوم زما د ټول عمر بسپنه ده او له دې پرته په نړۍ کې بل څه نه لرم.

ومې ويل کاپتا ! زه ډاکټر يم او که ژوندی پاتې شم د دې لس برابره به درکړم.

ما غوښتل په هغه وخت کې له سلطنتي ډاکټر پاتور او خپل دوست تو تمس څخه قرض واخلم، خو له دې امله چې ځوان او بې تجربې وم فکر مې کاوه چې که له هغوی څخه قرض واخلم، نو د هغوی پر وړاندې به مې خپل حیثیت ترپښو لاندې کړی وي.

کله چې د خپل مور و پلار کور ته ولاړم ومې لیدل چې ټول ګاونډیان راټول شوي دي او زما د مور و پلار څیرې تورې شوې وې، او د کوټې په منځ کې په یوه غټ خټین منقل کې لاهم اور بلېږي.

پوه شوم چې مور وپلار مې په ذغال سره ځانونه وژلي دي. ستر منقل یې له ذغالو ډک کړی او اور یې ورکړی دی، ځکه چې د کوټې دروازې او کړکۍ هم بندې وې او هغوی مړه شوي ول.

یو ټوکر مې را واخیست. مور و پلار مې پکې تاو کړل، یو خرکار مې را وغوښت یوه ټوټه مس مې ورکړل او هغه ته مې وویل چې زما مور و پلار دارالممات ته ورسوي.

هلته کارګران زما د مور و پلار منلو ته حاضرنه ول او ویل یې چې لومړی باید ددغو دوو کسانو د مومیایي کولو پیسې ورکړم.

ما ورته وویل هغه وخت چې دوی مومیایي شي د کار اجوره به ورکړم خو د دارالممات کارګرانو نه منله.

تر دې چې بوډا کارګر چې د فرعون د جنازې د مومیایي کولو پر مهال راسره اشنا شوی و، او هلته یې ډېر نفوذ درلود، ضمانت وکړ چې زه د مومیایي کولو اجوره د مومیایي کولو په بهیر کې یو ځای او یا یې وروسته ورکړم.

بیا مې یو پړی د مور او یو د پلار په پښو کې وتاړه چې له نورو مړیو سره یې تو پیر وشي او هغوی مې د مالګې په حوض کې چې د بېوزلو جنازو لپاره ځانګړی شوی و، واچول.

کله چې ډاډه شوم، جنازې د مالګو په اوبو کې ځای پر ځای شوې نو کور ته را ستون شوم. هغه ټوکرونه مې بېرته ټول راوړل چې له دغه ځایه مې وړي ول او د مور و پلار مړي مې پکې تاو کړي ول، ځکه دغه ټوکرنه نور زما نه بلکې د کور د نوي مالک مال بلل کېدل او که ما اخیستي وای نو غلا حسابېده.

کله چې مې غوښتل له کوره راووځم او دارالممات ته لاړ شم، نو یو کس چې د کوڅې په څنډه کې به د نانوایي دوکان ته نږدې ناست و، او لیکنې به یې کولې راولاړ شو او ناري

يې کړې سينوهه .... سينوهه ... !

زه ورننوتلی شوم او هغه یو پاپیروس (مصري کاغذ ژباړن) راکړ او ويې ويل: دغه لیک دې پلار تا ته ولیکه او سپارښتنه یې وکړه چې کله راغلې در ويې سپارم.

مالیک پرانیست او داسې مې ولوست: ((سینوهه ! زمونږ ګرانه زویه ! له دې امله چې زمونږ قبر و کور دې خرڅ کړل مه خواشینی کېږه، ځکه غوره داده چې مونږ قبر و نه لرو او بیخي له منځه لاړشو. په دې توګه به په بلې دنیاکې د اوږدو سفرونو ډېر زیار نه ګالو.

ته چې کله په لومړي ځل زمونږ کور ته راغلې مونږ دواړه بوډاګان وو او زمونږ کور ته ستا راتګ زمونږ د عمر وروستی پېر له خوښیو ډک کړ. ستا زامن دې ستا د نیکمرغی او خوشالی سبب شي، مونږ په اسوده زړه دغه نړۍ پرېږدو او له قبر پرته د مطلقې نیستی پر لور ځو. خو پوهېږو چې تاپخپله دا نه غوښتل چې ګنې مونږ دې قبر و نه لرو، بلکې دغه چاره د هغو پېښو له امله وه چې ستا په واک کې نه وې.))

کله چې ما دغه لیک ولوست یوه شېبه وژړېدم، که څه هم د لیک لیکونکي ډاډ ګېرنه راکوله، خو زه نه غلی کېدم.

کله چې مې د سترګو اوښکې خلاصې شوې، دلیک لیکوونکي ته مې وویل زه فلز نه لرم چې د لیک د رسولو په بدل کې تاته انعام درکړم، خو چمتو یم په بدل کې یې خپل کمیس تاته درکړم.

خپل کیمس مې وکیښ او لیکونکي ته مې ورکړ، هغه په حیرانی سره دغه کمیس واخیست او لږه شېبه یې ورته وکتل چې پوه شي ګران بیه دی کنه ؟ سړی نابېره خوشاله شو او ويې ويل: سینوهه له دې سره سره چې خلک په تاپسې خبرې کوي او وايي چې تا د خپل مور و پلار کور، ان د هغوی قبر خرڅ کړی دی او هغوی دې په بلې دنیا کې بې کوره پرېښودل، خو ستا سخاوت ډېر زیات دی، له دې وروسته هرڅوک چې وغواړي په تا پسې بدې خبرې وکړي زه به ستا ننګه کوم.

خو اوس چې تا خپل کمپس ماته راکړ، ته به کمیس و نه لرې او لمر به دې ولي وسوځوي، ستا له بدنه به وینې او زوې وبهېږي.

ومې ويل ته نه پوهېږې چې ددې لیک په را رسولو سره دې ماته څومره لوی خدمت کړی دی او څومره دې خوشحاله کړی یم.

زما کمیس واخله او زما فکر مه کوه.

کله چې هغه ولاړ، نو ما له یوه لنګ څخه پرته نورې جامې نه درلودې او د دارالممات پر لوري روان شوم.

زه اړ شوم چې هلته د یوه عادي کارګر په توګه کار وکړم او د مور و پلار د جنازو د مومیایي کولو کار پای ته ورسوم.

بوډا استاد چې پخوا یې هم ما ته توجه کوله (راموز) نومېده. هغه ته مې وویل. غواړم چې شاګرد دې شم او کار درسره وکړم.

هغه وویل زه په ډېرې مینې چمتو یم چې تا د شاګرد په توګه ومنم خو ته د دارالحیات فارغ التحصیل او ډاکټر یې، څه ډول راضي شوې چې دلته راشې او زما شاګرد شې.

ومې ویل. د یوې ښځې مینې زه بیچاره کړم. هغې ښځې هر څه را څخه واخیستل او نن ان کتنځی هم نه لرم چې هلته طبابت وکړای شم.

بله دا چې داسې څوک نشته چې سپین او سره ترې پور کړم او کور پرې واخلم.

(راموز) په ژور فکر سره خپل سر وښوراوه او ویې ویل. هرځل چې زه اورم یو سړی بدبخته شوی دی، پوهېږم چې یوې ښځې بدبخته کړی دی.

ما څلوېښت ورځې او څلوېښت شپې په دارالممات کې تېرې کړې او په دې وخت کې ددې ځای د یوه ټیټ کارګر په توګه د مړیو پر مومیایي کولو بوخت وم.

کارګران چې پوهېدل زه د دوی له ډلې څخه نه یم او بدبختۍ د مرګ کور ته راوستی یم نو تر ټولو خراب او ګنده کارونه یې ما ته سپارل چې په دې ډول له ما څخه چې لوستی او تر دوی لوړ وم غچ واخلي.

ما له مجبوریته د هغوی حکمونه پخپل وخت کې عملي کول چې د مور و پلار مړي مومیایي کړم.

زما یوازېنی نیکمرغي هم دا وه چې د خپل مور و پلار مړي د یوه شتمن کس په توګه مومیایي کوم.

پخپل لاس مې د خپلې ناسکه مور او پلار خېټه او سینه وڅیرله او د هغوی معده، کولمې، سږي، زړه، ځیګر او د بدن نور داخلي غړي مې را وایستل، د هغوی خېټه او سینه مې له غوړو او نورو توکو څخه ورډکه کړه.

دغه کارونه مې په دارالممات کې د فرعون د مړي د مومیایي کولو په وخت کې زده کړي ول.

بيا مې د راموز د رودې په اساس چې په مخکني ځل مې په دار المماتکې ليدلی و ، د مور و پلار مازغه د پوزې د سوريو له لارې را وايستل او د هغوی د جمجې منځ مې د موميايي له تېلو ورډک کړ (د موميايي تېل همغه دي چې موږ يې نن سبا قير بولو ژباړن ) پلار او مور مې مصنوعي غاښونه نه درلودل او تر هغه وخته پورې ما هم مصنوعي غاښونه نه وو جوړ کړي.

*که مې ژر د غه اختراع کړې وای د مور و پلار لپاره مې دوه جوړې مصنوعي غاښونه جوړول چې په بله دنيا کې اسوده ډوډۍ وخوري (مصری ډاکټر او ددې پيښې راوي سينوهه لکه چې پخپله په دې کتاب کې وايي د مصنوعي غاښونو اختراع کوونکی دی. تر يوه حده چې ښکاره هم ده . لومړنی کس چې مصنوعي غاښونه يې دفيل له عاجه پرته له بلې مادې جوړ کړل همدی و او تر هغه مخکې که مصنوعي غاښ موجود هم و نو يوازې دفيل له عاجه جوړېدل ځکه خو يې وزلو په بوډاتوب کې غاښونه نه درلودل ، لامل يې دا و چې دفيل د عاج بيه يې نه شوای ورکولای ژباړونکی )*

اې خدايانو شاهد اوسئ چې ما دخپلې ناسکه مور او پلار د جنازو د موميايي کولو لپاره د مرګ د کور تيل ، درمل او ټوکر ، نه دي غلا کړي بلکې ديوه ټيټ کارګر ... او ديوه مريي .... په شان مې هلته کار وکړ ، خوندور خواړه مې ونه خوړل ، شراب مې ونه څښل او د مسو په هغو ټوټو د اجورې په توګه يې ماته راکول ما تېل ، درمل او ټوکر واخيستل تر دې چې د مور و پلار د جنازې موميايي کول پای ته ورسېدل.

په ګرمو کوټو کې ټول موجود تيل زما د مور و پلار په جمجمې ، سينې او خيټې کې او د هغوی په غوښه کې دننه کړای شول . بيا د هغوی غوښه وچه شوه او چې هرڅو مره او به د غوښې په منځ کې وې تبخير شوې.

کله چې وروستی پړاو هم پای ته ورسېد او ما وليدل چې بايد جنازې له دارلممات څخه د باندې يوسم نو ومې ليدل چې د مور و پلار د بدن وزن د مرګ کور ته د راوستلو د وخت په پرتله په دريو کې يوې برخې ته کم شوی دی.

په هغو خلو ښنتو شپو ورځو کې چې زه د مرګ په کور کې وم د بې تربيته کارګرانو چلند زما په نسبت بدل شوی و او د پخوا په پرتله ښه شوی و ، که څه هم دوی همغه راز سپکې سپورې ويلې او زه يې سپکولم خو په ما نور په قهر نه ول ، او سپکاوی خو د هغوی په طبيعت کې و ځان يې نه شو بدلولای.

کله چې زما په نیت پوه شول چې غواړم د خپل مور و پلار جنازه له دارالممات څخه وباسم نو له ما سره یې مرسته وکړه او زما په فلزاتو یې راته د غوا یو ښکلی او کمیابه پوستکی واخیست، ما هم د خپل مور و پلار جنازې د غوا په پوستکي کې کېښودلې او د څرمنې په تسمو مې وګنډله.

پر هغې ورځ چې د مرګ له کوره وتلم راموز راته وویل له دې ځایه مه ځه او د عمر تر پایه پورې دلته پاتې شه. ځکه چې د دارالممات دیوه کارګر عاید د دربار د ډاکټر له عایده کم نه دی او که ته یوازې د خپل عاید نیمایي برخه ذخیره کړې نو په بوډاتوب کې به دیوه کاهن په توګه ژوند وکړې او کنیزې او غلامان به لرې.

خلک دلته له کارکولو کرکه کوي ځکه خو له مور سره سیالي هم نه کوي.

خو زه هلته نه شوای پاتې کېدای ځکه چې فکر مې کاوه هغه کس چې لوی کارونه کولای شي باید واړه کارونه د ځان لپاره خوښ نه کړي.

د کارګرانو د سپکو سپورو ، ملنډو او خنداګانو په منځ کې مې له راموزه خدای پاماني واخیسته، د غوا په پوستکي کې مې د مور و پلار تاو کړای شوې جنازې په اوږه کړې او له دارالمماته بهر شوم. خلک په کوڅو کې له ما څخه لیرې کېدل او خپلې پوزې به یې بندې کړې چې زما له بویه ځان وساتي، ځکه د دارالممات داسې بوی راځخه لتېده چې ټول خلک به یې کرکجن او وېرول.

طبس دوه ستر ښارونه لري، یو د ژوندیو ښار دی او بل د مړیو ښار.

د مړیو ښار د نیل په بله څنډه پروت دی او د شپې مهال د ژوندیو په پرتله د مړیو د ښار ډېره ساتنه کېده.

زه پوهېدم چې د مړیو ښار ته ننوتل ناشوني دي، ځکه چې ساتونکي به مې سمدستي ووژني خو وادی السلاطین ته ورتګ ممکن و.

د شاهانو کلي یا سیمه هم د نیل په بلې غاړې کې وه. خو د مړیو له ښاره پورته لور ته او په سوېل کې دی او د مصر ټول فرعونیان د نړۍ له پیله تراوسه په وادی السلاطین کې ښخ شوي دي.

د شپې د مړیو د ښار ساتونکي دوه مره څارل کېږي چې د شاهانو سیمه هومره نه ساتل کېږي، لامل یې دا دی چې ساتونکي او خلک پر دې پوهېږي چې کله کاهنین یو فرعون په هدیره کې ږدي د هغه پر قبر داسې طلسم کوي چې هرڅوک وغواړي د یوه فرعون هدیرې

ته ولاړ شي وبه مري.

زه په طلسم عقیده نه لرم او فکر نه کوم چې طلسم دې وکړای شي انسان ووژني خو خیال کوم چې مصري کاهنین له دې وروسته چې یو فرعون ښخ کړي د قبر دیوالونو او دروازې او حتي د قبر لوښي او شیان او د فرعون تابوت په یو ډول قوي زهرو ککړوي چې د وخت په تېرېدا سره له منځه نه ځي او که څوک د غلا لپاره قبر ته ننوځي او وغواړي ګران بیه شیان غلا کړي د هغو زهرو په وسیله مړ کېږي.

خو زه د مرګ غوښتونکی وم. د هغه هر کلي کوم او له ځان سره مې ویل که زه وکړای شم د مور و پلار لپاره یو قبر ترلاسه کړم مرګ راته اهمیت نه لري.

غته خبره داده چې زما مور و پلار تلپاتې شي او په بله دنیا کې چې ژوندي شي. خپل اوږده مسافرتونه پیل کړي نو ددې لپاره چې له منځه ولاړ نه شي باید د هغوی جسدونه په یوه قبر کې ښخ کړم. ګني که په مومیایي شو یو جنازو هوا ولګېږي له منځه ځي.

د ورځې له پلوه مې د مور و پلار جنازې اوچتې کړې او بیدیا ته ولاړم چې د خلکو له سترګو لرې یم. کله چې شپه شوه صبر مې وکړ چې نوره هم تیاره شي او د شغالانو او لېوانو غړونه پورته شي.

بیا ښار ته ستون شوم او د ځمکې د کیندلو لپاره مې یو کلنګ را واخیست او کله چې وادی السلاطین ته ورسېدم نیمه شپه وه.

له دې سره سره چې کتل مې ماران د بوټو له منځه راوځي، خو له هغوی څخه نه وېرېدم. څو ځایه مې ستر لړمان له مخې تېر شول. خو زه ونه ډار شوم. ځکه چې له خدایانو مې د مرګ هیله کوله او کلي قاعده دا ده چې کله انسان د مرګ غوښتونکی وي مرګ ورپسې نه راځي.

زه د قراول له پوستو خبر نه وم او مجبوره هم وم چې ترې تېر شم. خو چا ونه لیدم او زما مخه یې ونه نیوله. ښایي زه یې لیدلی هم یم خو خیال به یې کړی وي چې زه یو مړی یم چې خپله روزي مې په شاکړې او د فرعونیانو په قبرونو کې ګرځم.

څه موده د فرعونیانو په قبرونو کې وګرځېدم او د داسې مقبرې په لټه کې وم چې وکړای شم دروازه یې خلاصه کړم او د مور و پلار جنازه هلته کېږدم. خو متوجه شوم چې ټولې دروازې بندې دي او که مې کومه دروازه پرانیستې وای نو شک پرې کېده او سمدستي ساتونکي متوجه کېدل چې کوم مړی یې د فرعون په هدېره کې ښخ کړی دی.

زه له مرګه نه وېرېدم او هغه څه چې د فرعون د طلسم په نوم بلل کېدل له هغه هم نه ډار ېدم ځکه که مې مور و پلار ته کوم قبر برابر کړی وای دې کار به ارام راکړی وو . ان که په دې هم پوهېدای چې سمد ستي مړ کېږم.

کله چې متوجه شوم چې د هېڅ يوه قبر دروازه نه شم پرانیستلای، نو د یوې هډېرې له دروازې د باندې چې د کلنګ په وسیله په شګو کې يو قبر وکيند ما د خاورو د لیرې کولو لپاره له خپلو لاسونو پرته بل څه نه درلودل او لاسونه مې هم په شګو د سولیدو له امله ژوبل شول خو ما ارزښت نه ورکاوه.

ځمکه مې دومره وکینده چې يوه داسې کنده پکې جوړه شوه چې زما د مور و پلار قبرونه پکې ځايېدل . بیا مې په کنده کې د غوا څرمنه اواره کړه او خاورې مې پرې وارولې.

له دې کبله چې د فرعون د قبر ستنې له شګو جوړې وې نو هلته د ځمکې د کيندلو د ښو ښانو د ختمولو کار دومره سخت نه و.

بیا مې ارامه ساه واخيسته ځکه چې ډاډمن وم ، زما مور و پلار له دې چې د فرعون په څنګ کې دي نو په بلې دنيا کې به له خوراکي پلوه په سختۍ کې نه وي.

ځکه، چې تل به له فرعون سره وي او د هغه له ډوډۍ ، غوښې او شرابو به استفاده وکړي.

کله چې مې د مور و پلار په مړيو خاورې اچولې، لاس مې په يوه سخت شي ولګېد چې راپورته مې کړ و مې کتل چې يو وړوکی غونډوسکی دی ، چې قیمتي کاڼي پرې لګېدلي ول. زه پوه شوم چې دا له هغو شيانو څخه دی چې د فرعون د ښخېدا په وخت يې قبر ته راوړي او هلته لوېدلی دی او بيا د فرعون د قبر د جوړېدا پر وخت تر خاورې لاندې شوی دی.

غونډوسکی مې پورته کړ او د لاس په پورته کولو سره مې له مور و پلار ره خدای پاماني راواخيسته و مې ويل هيله کوم چې ستاسې مړي د تل لپاره پاتې شي.

کله چې زه له وادي السلاطين څخه راووتم او ځان مې د سيند غاړې ته رساوه نو لمر هم راختلی و. هلته مې کلنګ په اوبو کې واچاوه او بو تر څنګ وغځېدم خو د بدن سخت درد خوب ته نه پرېښودم تر دې چې له ډېرې ستومانۍ بې خوده شوم او خيال مې کاوه ويده شوی يم.

کله چې د هیلیو غرږ پورته شو له خوبه راپاڅېدم او ومې لیدل چې لمر لوړ شوی دی، دنیل په اوبو کې ماکوګان او بېړۍ حرکت کوي او کالي وینځونکې ښځې د نیل پر څنډو د کار په وخت کې خبرې هم کوي

سهار روښانه او هیلمن کوونکی و، خو زما زړه له غمونو ډک واو دومره خپه وم چې پخپل ځان نه پوهېدم.

زما جامې یوازې یو لنګ و او د لمر وړانګو مې شا سوځوله، ان یوه ټوټه مس مې نه درلودل چې ډوډۍ او د وربشو اوبه (بییر) پرې واخلم

له بدنه مې د دارالممات ناولې بوی پورته کېده، ځکه چې لا مې په نیل کې ځان نه و وینځلی.

په دغسې ناسم حالت کې مې خپلو ملګرو ته ځان نه شو ښکاره کولای چې پور یا مرسته ترې وغواړم. ځکه که هغوی لیدلی وای نو پوهېدل چې زه د خدایانو له لعنت سره مخامخ شوی یم، بله دا چې ټول پوهېدل چې ما خپل او دخپل پلار کورونه او ان د هغوی قبر په یوې ښځې خرڅ کړي دي او زه له دې بدنامۍ سره ځان هغوی ته نه شم ورښولای

په دې فکر کې وم چې څه وکړم او څه ډول خپله ګېډه مړه کړم، یو وخت مې پام شو یو کس زما تر څنګ ښوري

ددغه سړي څېره دومره خرابه وه چې په لومړي سر کې ما فکر وکړ چې انسان نه دی، ځکه چې د پوزې پر ځاي یې د مخ په منځ کې یو سوری درلود او دواړه غوږونه یې نه ول، وروسته معلومه شوه چې غوږونه یې ورپرې کړي دي.

هغه ډنګر نري او سره تاو شوي لاسونه درلودل او کله چې پوه شو زه ورته ځیر یم نو ویې ویل په موټي کې دې څه نیولي دي؟

خپل موټی مې پرانیسته هغه سړي د فرعون غونډوسکی ولید او ویې پېژاند.

ویې ویل دغه شی ماته راکړه چې بخت راسره ملګری شي، ځکه چې چانس ته ډېره اړتیا لرم او اوریدلي مې دي چې که څوک دغسې غونډوسکی ولري نیکمرغه کېږي.

ومې ویل زه ډېر بې وزله یم، له دې پرته بل څه نه لرم او غواړم هغه وساتم چې مانیکمرغه کړي.

هغه سړي وویل له دې سره سره چې زه بې وزله یم او ګورم چې ته هم بې وزله یې نو چمتو یم چې ددغه غونډوسکي په بدل کې د سپینو زرو یوه کړۍ درکړم.

بیا یې له خپل کمربند ده د سپینو زرو یوه کړی را وایستله او ماته یې ونیوله.

ما ورته وویل زه خپل غوندوسکی نه خرځوم.

هغه سړي وویل تا دا هېره کړې چې که ما غوښتلي نو په وړیا توګه مې هم درڅخه اخیستلای شو ځکه چې کله ته ویده وې. ما ته وژلای شوې او ستا غوندوسکی مې اخیستلای شو.

ما ورته وویل ستا له پرې شویو غوږونو او پوزې داسې ښکاري چې غل او ورانکاره یې. له دې وروسته چې دواړه غوږونه او پوزه یې درپرې کړي. بیا یې د کار کولو لپاره معدن ته استولی یې او اوس له کانه تښتېدلی یې.

نو دا به درته ښه وي چې ژر له دې ځایه وتښتې ځکه که ګزمه راشي او تا دلته ووینې وبه دې نیسي. بیرته به دې کان ته ستون کړي او که ما ووژنې له پیسو به دې څوړند کړي چې مړشې.

سړي وویل دکوم ځای یې او له کوم ځایه راغلی یې چې لا نه یې خبر؟

ټول هغه کارګران یې خوشې کړل چې په کانونو کې یې کارکاوه.

ومې ویل ولې داسې وشول څنګه ممکنه ده ټول مریان له کانونو خوشې کړي؟.

سړي وویل نوي فرعون چې اوس په ګدۍ ناست دی او مخکې ولیعهد و له دې وروسته چې د باچاهۍ په ګدۍ کېناست له کانونو یې ټول مریان خوشې کړل او له دې وروسته به د پیسو په بدل کې ازاد خلک په کانونو کې کار کوي.

ګمان مې وکړ چې دغه سړی رښتیا وایي. ځکه چې ما څلویښت شپې او ورځې په دارالممات کې تېرې کړې او له هېڅ شي خبر نه وم. نه پوهېدم چې ځوان او نوي فرعون دکانونو کارګران خوشې کړي دي.

سړي وویل زه له دې سره سره چې یو مریی وم او په کان کې مې کارکاوه له خدایانو وېرېدم او له همدې امله. کله چې ته ویده وې ومې نه وژلې. ته کولای شې خپل دغه غوندوسکی له ځان سره وساتې او دنیکمرغۍ د جذبولو لپاره ترې استفاده وکړې.

خو زه حیران وم چې نوي فرعون یانې څلورم آمون هوتب څنګه ټول مریان له کانه خوشې کړي دي. ایا هغه متوجه نه دی چې ممکنه نه ده. یو ازاد سړی ولاړ شي او په کان کې کار وکړي.

ترڅو چې انسان لیونی نه وي هغه مریان نه خوشې کوي چې په کان کې کار کوي. ځکه

چې د کان کار به نا ببره بند شي او بله دا چې اکثریت غلامان چې په کانونو کې کار کوي ورانکار او غله دي او د هغوی ازادي به د سترې فتنې سبب شي.

ته وا غوږ او پوزه پرې کړی کس زما له فکره خبر شوی وي. ویې ویل زه فکر کوم زموږ د نوي فرعون خدای یو لیونی خدای دی.

ومې پوښتل ولې؟ ویې ویل ځکه چې خدای نوی فرعون مجبور کړی دی هغه ټول ورانکاري چې په کانونو کې کار کوي خوشې کړي او س هغوی د مصر په ښارونو او بیدیاوو کې ازاد ګرځي. له دې وروسته به یو دین سپین او سره زر او مس استخراج نه شي او مصر به له بې وزلۍ سره مخامخ شي.

که څه هم زه یوه بېګناه انسان وم او په ناحقه یې په جېل کې اچولی وم او په کان کې یې کار کولو ته اړ کړی وم. خو د یوه بېګناه کس په بدل کې په زرګونو ورانکارو په کانونو کې کار کاوه چې هغوی هم او س را خوشې شول او ازاد ګرځي.

په داسې حال کې چې سرې خبرې کولې زما د بدن غړیو ته یې هم کتل او زه پوهېدم چې د مرګ د کور د بوی له امله چې له ما څخه پورته کېده په تنګ شوی نه دی. ویې ویل. ستا د بدن پوستکی یې سوځولی دی خو زه تیل لرم او هغه ستا په بدن موږلی شم.

کله چې یې زما بدن په تیلو غوړاوه ویل یې زه حیران یم چې ولې ستا پالنه کوم. ځکه چې کله یې وهلم او بدن به مې ژوبل شو ما به خدایانو ته ښېرې کولې. چې ولې یې پیدا کړی یم او د نورو له ظلمونو سره یې مخامخ کړی یم خو هېڅ زما پالنه نه کوله.

زه پوهېدم چې ټول محکومین او مریان ځان بېګناه معرفي کوي او دغه سړی هم د نورو په شان ګنم خو له دې کبله چې له ما سره یې نیکي کړې وه. بدن یې په تیلو راته غوړ کړی و پر دې ټولو سربېره هغه وخت زه یوازې وم نو له هغه مې وپوښتل چې په تا یې څه کړي؟ او دغه ظلم ماته هم بیان کړه چې پر تامې زړه وخوږېږي.

هغه سړي وویل زه چې او س ستا په مخکې پر ځمکه ناست یم. غوږونه او پوزه نه لرم یوه ورځ مې کور. پټي او غوا درلودل او په کورکې مې ډوډۍ او په منګي کې مې د وربشو اوبه پیدا کېدلې. خو له بده شامته زما له کور سره څېرمه د آنو کیس په نوم یو کس اوسېده او دغه سړي دومره پټي درلودل چې سر و پای یې نه معلومېده.

دومره غواګانې یې درلودې چې د غواګانو شمېر یې د بیدیا تر شګو هم زیات و. خو زه له خدایانو غواړم چې د هغه بدن خوسا کړي او هېڅکله یې له مرګه وروسته مسافرت پیل

نه شي.

هغه سړي په دوه مره پټیو او غواګانو کې زما کروندې ته سترګې نیولې وې او ددې لپاره چې زما پټي له ما څخه واخلي تل به یې پلمې کولې او هر کال به یې په منې کې د نیل له راختو وروسته کله چې جریب کښان راتلل او ځمکې یې اندزه کولې نو ما به په حیرانۍ ورته کتل چې زما کرونده هر ځل کمېږي او جریب کښانو چې له انوکیس څخه یې ډالۍ اخیستلې زما د ځمکې یوه برخه به یې د هغه له ځمکو سره یو ځای کړه.

ما مقاومت کاوه او چمتو نه وم چې خپله کرونده د څو کړیو سرو او سپینو په بدل کې هغه ته ورکړم. په دې وخت کې خدایانو ماته پنځه زامن او یوه لور راکړې. زما لور ډېره ښکلې وه، کله چې انوکیس زما لور ولیده پر هغې مین شو او خپل یو مریی یې ماته را واستاوه. ویل یې چې خپله وړه لور ورکړم نور به راسره کار نه لري.

ما غوښتل خپله ښکلې لور داسې کس ته ورکړم چې په بوډاتوب کې له ما سره مرسته وکړي نو هغه ته مې د لور له ورکولو ډډه وکړه ان تردې چې یوه ورځ انوکیس ادعا وکړه چې ما په هغه کال چې د ځمکې محصولات کم و له هغه څخه غله دانه پور کړې وه او لا مې خپل پور نه دی ورکړی.

ما په خدایانو قسم وخوړ چې داسې نه ده. خو هغه خپل ټول مریان شاهدي ته را وستل چې ماته یې غله پور راکړې ده او پر همدې ورځ د هغه مریانو په کرونده کې پر ما حمله وکړه چې ما وژني.

ما له ځانه د دفاع لپاره یوازې یو لرګی درلود. زما لرګی د هغه د یوه مریي پر سرولګېد او مړ شو.

بیا یې زه ونیولم او زما پوزه او غوږونه یې پرې کړل او کان ته یې واستولم. هغه کس زما کور او کرونده د خپل خیالي پور په بدل کې واخیستل. زما ښځه او ماشومان یې خر څ کړل، خو وړه لور مې انوکیس واخیستله او له دې وروسته چې یوه موده یې له هغې سره لکه د وینځې داسې چلند وکړ بیا یې هغه خپل مریي ته ورکړه.

زه لس کاله په کان کې په کار بوخت وم ترڅو د ځوان فرعون فرمان راخوشې کړم او کله چې خپل کور او کروندې ته ستون شوم ګورم چې نښه یې هم نه شته او زما کوچنۍ لور چې دانوکیس لور وه هغه هم ورکه شوې وه وایي چې په طبس کې په یوه کور کې دنوکرۍ په توګه کار کوي.

ما چې په کان کې کار کاوه انوکیس مړ شو او هغه یې د مړیو په ښار کې ښخ کړی دی.
اوس مې زړه ډېر کېږي چې ولاړ شم او په دې پوه شم چې د هغه پر قبر یې څه لیکلي
ځکه چې حتماً یې د دغه کس جنایتونه د هغه پر قبر لیکلي دي.
خو له دې امله چې لیک لوست نه شم کولای د هغه د قبر لیکنې هم نه شم لوستلای.
ما ورته وویل زه لیک لوست کولای شم او د قبر لیکنه لوستلای شم. که غواړې له تا سره
د مړیو ښار ته تللی شم او هر څه چې د هغه پر قبر لیکل شوي وي هغه به درته ووایم.
سړي وویل خدای دې ستا جنازه تل وساتي، که له ما سره دغه مرسته وکړې ډېر به
خوښ شم.
ما وویل له زړه غواړم چې له تا سره د مړیو ښار ته ولاړ شم او د انوکیس د قبر ډبر لیک
ولولم خو ایا خبر نه یې چې موږ په دې ډول د مړیو ښار ته نه پرېږدي
بېزه پرې کړي وویل زه پوه شوم چې ته له هېڅ شي خبر نه یې ځکه که خبر وای اوس به
پوهېدې چې نوي فرعون له دې وروسته چې مړیان له کانونو ازاد کړل ویې ویل دغو
مړییانو له ډېرې مودې راهیسې خپل مړي نه دي لیدلي حق لري چې د مړیو ښار ته ولاړ
شي او له خپلو مړیو سره وګوري
ما او پوزه پرې کړي سړي د تګ تکل وکړ، د مړیو ښار ته ورسېدو وروسته هغه سړي
چې د انوکیس د قبر پته یې اخیستې وه، زه یې د هغه قبر ته ورسولم.
ومې لیدل چې د قبر مخته پخه شوې غوښه، او مېوه او یو منګی شراب ایښي ول.
پوزه پرې کړي سړي لږ شراب وڅښل، پر ما یې هم وڅښل او بیا یې وغوښتل چې زه د
قبر ډبر لیک ورته ولولم، ما هم داسې ولوست:
((زه انوکیس یم، غنم مې وکرل او ونې مې کېښودلې، زما د باغونو او کروندې
محصولات زیات ول، ځکه چې له خدایه وېرېدم او د خپلو محصولاتو خمس یا پینځمه
مې خدایانو ته ورکاوه او نیل سین له ما سره ډېره مرسته وکړه، تل یې زما کروندو ته اوبه
ورسولې، هېڅ څوک زما په کروندې کې وږي نه ول. زما کروندو ته څېرمه هېڅ څوک له
لوږې سره مخامخ نه شول. ځکه په هغو کلونو کې چې حاصلات لږ ول ما له هغوی سره
مرسته کوله او هغوی ته مې غله ورکوله.
ما د یتیمانو د سترګو اوښکې پاکې کړې او داسې لټه مې نه کوله چې له هغو کوندو
خپل پور وغواړم چې خاوندانو ته مې یې ورکړی و.

هر ځل چې به کوم سړی مړ کېده ددې لپاره چې د هغه کونډه مې نه وي کړولې له خپلو پورنو به ورتېر شوم.

ځکه خو په ټول هېواد کې زما نوم په نیکۍ سره یادېږي او خلک له ما خوشحاله ول که د چا غوا به ورکه شوه د هغه د ورکې غوا په بدل کې به مې هغه ته یوه چاغه غوا ورکړه.

ما په ژوند کې د دې مخه نیوله چې جریب کښو د کوم کروندګر ځمکه په ناسمه توګه اندازه کړې وي او یا یې د یوه ځمکه بل ته ورکړې وي. هېڅکله داسې ونه شول دا هغه کارونه دي چې ما (انوکیس) ترسره کړي. چې خدایان را څخه خوشاله وي او په یوه اوږد سفر کې چې له مرګ وروسته یې په مخکې لرم له ما سره مرسته وکړي.))

کله چې ما د ډبر لیک لوستل پیل کړل پوزه پرې کړي سړي وژړل.

له هغه مې پوښتنه وکړه ولې ژاړې؟ ویې ویل د دې لپاره چې پوهېږم د انوکیس په هکله مې تېروتنه کړې وه. ځکه که دغه سړی نیک نه وای دغه خبرې به یې د هغه پر قبر نه وای لیکلې.

هره لیکل شوې خبره سمه وي او ترهغه چې دغه نړۍ وي خلک به دغه ډبر لیک د هغه پر قبر لولي.

له دې امله چې د یوه نیک سړي جنازه له منځه نه ځي. هغه به ژوندی پاتې وي خو زه له مرګه وروسته ژوندی نه پاتې کېږم ځکه چې له مړینې وروسته د ورانکارو مړي نیل ته غورځوي. او بیا یې سمندر ته رسوي او زما مړی به هم د سمندري ژویو خوراک شي.

زه دده خبرو ته هک پک شوم او بیا متوجه شوم څه ډول د انسانانو حماقت له منځه نه ځي او په هر پړاو کې د خلکو له ناپوهۍ او خرافاتو استفاده کېدای شي.

دا زرکاله کېږي چې مصري کاهنین د مړیو د کتاب پر بنسټ چې دوی پخپله لیکلی وایي چې د خدایانو له لوري نازل شوی دی او په دې ډول یې خلک مریان کړي دي او د مصر ټولې ګټې د دوی دي.

ددې لپاره چې پرې نه ږدي د خلکو حماقت له منځه ولاړ شي. وایي د مړیو د کتاب هره کلمه پردې سربېره چې په ځمکه کې لیکل شوې وي په اسمانونو کې له خدایانو سره هم لیکل شوې او ساتل شوې دي او هېڅکله له منځه نه ځي.

دغه راز ددې لپاره چې د خلکو عقیده ددغه کتاب په اړه کمزورې او بدله نه شي داسې

ښيي چې هره کلیمه څکه سمه ده چې لیکل شوې ده. او دغه عقیده په خلکو کې همدغسې منل شوې ده.

ددغه بدبخته سړي په شان چې غوړونه او پوزه یې پرې شوي دي او یادا چې د انو کیس د ناسم نیت او دښمنۍ له امله بندي شوی و او لس کاله یې په کانونو کې تېر کړي دي. خو کله چې ګوري د انو کیس په قبر دغه خبرې لیکل شوې دي نو تصور کوي چې سمې دي.

او س ګورو چې ده پخپله تېروتنه کړې چې انو کیس یو بې رحمه او ظالم کس بولي.

پوزه پرې شوي کس د خپلو سترګو اوښکې پاکې کړې. هلته چې کومه میوه او شراب اېښي ول را مخکې یې کړل او ماته یې وویل وخوره او خپله ګېډه مړه کړه. څکه چې نن له کانونو د مړییانو د خلاصون ورځ ده. موږ د مړیو ښار ته پرېږدي او دغه خواړه خوړلای شو.

له دې وروسته چې د غوښې. مېوې او شرابو ډ څښلو له امله مست او خوښ و. قبر ته یې په خطاب کې وویل: ای انو کیس کله چې ستا پر قبر لیکل شوي چې ته ډېر ښه سړی وې نو غوره دا ده د هغو طلایي او مسي لوښو یوه برخه چې ستا په قبر کې دي ماته راکړې او زه به نن شپه راشم او دغه لوښي به یوسم.

ما یو وحشي غږ پرې وکړ سړیه څه وایې داڅه کوې؟ غواړې نن شپه راشې او دغه قبر لوټ کړې. ته نه پوهېږې چې له یوه قبره غلا کول ستره ګناه ده، تر دې بله ستره ګناه نشته او خدایان یې نه بښي. غوږ پرې کړي سړي وویل ولې چټیات وایې؟

مګر تا د هغه په قبر ونه لوستل چې انو کیس څومره نیک سړی دی او دغه سړی چې تل یې د خدایانو په امر کار کړی هېڅکله نه غواړي چې زما پوروړی وي او که هغه ژوندی وای پخپله به یې زما پور راکړی وای.

په دې کې خو شک نشته چې هغه زما کور او کرونده او بچیان د ځان کړي ول او زما کور یې له خپل جایداد سره یو ځای کړی و. زما ښځه او بچیان یې خرخ کړل. هغه زما کوچنۍ لور د وینځې په شان د ځان نوکره کړه.

له دې کبله چې انو کیس زما پوروړی دی. په ډېرې خوشالۍ به زما پور راکړي. زه نن شپه دخپل پور د ترلاسه کولو لپاره راځم. ته هم له ما سره راتلای شې او خپله ونډه اخیستی شې.

له دې امله چې هغه باید زما ونډه راکړي نو هر هغه شی چې له هغه یې تر لاسه کړم حلال دی او د خپلو شیانو یوه برخه چې له هغه یې ترلاسه کوم تا ته درکولای شم چې ته یې پخپله له قبره را وباسې.

د هغو مریانو ازادي چې په کان کې یې کارکاوه او دې چارې چې مریيان ازاد وي د مړیو ښار ته ولاړ شي د مړیو د ښار نظم او ترتیب له منځه وړی و او هغه ښار چې مخکې یې د ژوند تر ښاره ښه ساتنه کېدله په دې شپه د لوټماری په ډګر بدل شوی و.

زه او پوزه پرې کړی مریی د انوکیس قبر ته ننوتو او چې څو مره مو وس درلود د سرو ،سپینو او مسو لوښي مو یوړل، ازاد شوي مریي ویل هغه څه چې زه یې وړم زما برخه ده او دا غلا نه حسابېږي.

کله چې مو سره ،سپین او مس د مړیو له ښاره ولېږدول و موکتل چې د مړیو د ښار ټول ساتونکي چې دنده یې د غلا مخنیوی و اوس یې دازادو شویو مر یانو په شان په لوټمار پیل وکړ او تر هغه چې موږ د نیل ساحل ته نژدې کېدو لا د مړیو په ښار کې غلا اوچور تالان روان و.

ساحل ته چې راورسېدو ورځ شوه، په دې وخت کې د سوریې سوداګر د سین په بله غاړه په تمه ول چې له غلو څخه لوټ کړي توکي وپېري

هغه څه چې موږ راوړي ول پر یوه سوریايي سوداګر مو په څلورسوه (دین) وپلورل.

له دغو څلور زرو څخه دوه سوه ماته او دوه سوه نور پوز پرې شوي مریی ته ورسېدل.

هغه وویل د سرو او سپینو د ترلاسه کولو لپاره مو ښه اسانه لاره پیدا کړه، ځکه که پنځه کاله مو د نیل په بندرونو کې بارونه وړلای بیا مو هم دومره سره او سپین نه شوای ترلاسه کولای.

له دې وروسته چې سره او سپین مو تقسیم کړل له یوه بله بېل شوو، مریی پر یوې او زه پر بله لاره لاړم.

ددې لپاره چې د بدن بوی مې ورک شي لږ کافور او بیخک (دیوه بوټي ریښه ده چې کله له هغه یوه کلاوه جوړه شي لکه صابون ځګ کوي او انسان پاکوي) مې واخیستل او د نیل په څنډه کې مې ځان ووینځه چې له بدنه مې د مړګ دکور بوی بیخي لرې شي او خلک نور رانه کرکه و نه کړي.

له هغه وروسته مې نوې جامې واغوستې او یوې ساقي خانې ته ولاړم چې څه وخورم.

زه په خوراک اخته وم چې د مړیو له ښاره مې شور ماشور تر غوږ شو او ومې لیدل چې نغاره وهي او جنګي ګاډي هم په حرکت کې ده.

په کیسې له خبرو کسانو مې پوښتنه وکړه څه خبره ده؟ هغوی وویل ځانګړي نیزه لرونکي چې د فرعون ګارډ دی په دنده ګمارل شوي چې ازاد شوي مړیان وځپي چې نور د مړیو ښار ونه لوټي.

پر همدې ورځ تر دې وړاندې چې لمر ولوېږي څه د پاسه سل غلامان په طبس کې پر دار ځړول شوي ول.

دا هغه غلامان ول چې پخوايې په کانونو کې کار کاوه.

له دې سره فتنه او د مړیو د ښار لوټمار هم پای ته ورسېد.

دغه شپه مې په یوه عمومي کور کې تېره کړه او هدف مې داو چې لږ ساعت تېر کړم، خو د دغه عمومي کور یوه ښځه مې هم خور نه کړه.

له دې عمومي کوره چې ووتم یوه میلمستون ته ولاړم او ویده شوم.

سهار د خپل پخواني کور پر لوري روان شوم چې د خپل پخواني مریي کاپتا پور ورکړم او له هغه مننه وکړم. ځکه که هغه خپله لږه بسپنه نه وای راکړې ما د خپل مور و پلار جنازې دارالممات ته نه شوای رسولای.

کله چې کاپتا ولیدم په ژړا شو او ویې ویل ما خیال کاوه چې ته مړ شوی یې ځکه مې له ځان سره ویل که ژوندی وای حتماً راته چې بیا له ما څخه سره او سپین پور کړي. ځکه چې هغه یو ځل له ما پور اخیستی او ځوک چې یو ځل بل چاته فلز ورکړي. نو بیا باید د ژوند تر پایه هغه ته پور ورکړي.

له دې سره سره چې ما فکر کاوه ته به مړ شوی یې، خو احتیاط مې کاوه او له تا سره د مرستې لپاره مې له خپل نوي بادار څخه (خدای دې مړی ورته دړې وړې کړي) غلا کوله او د هغه مور هم تل په لرګي وهلم.

په دې وروستیو کې وایي چې خرخوم دې له همدې امله چې اوس ته راغلی یې غوره به داوي چې دواړه له دې ځایه وتښتو او داسې ځای ته ولاړ شو چې له دې تمساحه لیرې وي.

زه لږ شکمن شوم خو هغه وویل که د ژوند د خرڅې لپاره اند ښمن یې زه لږ فلز لرم او هغه به مصرف کړو. کله چې فلزات خلاص شول زه به کار وکړم او تا به وږی پرې نه ږدم، خو په دې شرط چې ما ددې ښځې له منګولو چې یوه تمساح ته ورته ده او د هغې له احمق

زویه وژغورې.

ومې ویل کاپتا زه نن ددې لپاره دلته راغلی یم چې خپل پور ادا کړم. ځکه چې پوهېږم هغه څه چې تا ماته راکړل په پینځو کلونو کې ستا زېرمه وه.

بیا مې کاپتا ته تر هغو فلزاتو څو چنده ډېر ورکړل چې ده راکړي ول او هغه چې دغه فلزات ولیدل له ډېرې خوشحالۍ په نڅا شو خو وروسته متوجه شو چې د هغه په شان د یوه بوډا لپاره نڅا ښه نه ده.

چې نڅا یې بنده کړه ویې ویل زما باداره! له دې وروسته چې ما خپل فلزات تا ته درکړل ومې ژړل. ځکه چې فکر مې کاوه، ته به زما فلزات بیرته رانه کړې.

خو له ما ګیله مه کوه ځکه کله چې څوک ټول عمر مریی وي. زړه یې مضبوط نه وي او که خپل فلزات بل چاته حتی که یې بادار ته هم ورکړي نو زړه به یې ډاډه نه وي.

ومې ویل کاپتا پر دې سربېره چې تاته مې ستا پور درکړ. زه به دې له باداره واخلم او ازاد به دې کړم.

کاپتا وویل که ما واخلې او ازاد مې کړې زه هېڅ ځای نه لرم. چې هلته لاړ شم. څوک چې ټول عمر غلام پاتې شوی وی ازاد ژوند نه شي کولای.

زه په یوه سترګه ړوند غلام یم چې تل مې بادار درلودلی دی او له بادار پرته یوه پسه ته ورته یم. چې شپون نه لري. زه درته نصیحت کوم چې خپل زر بې ځایه مه لګوه. ځکه چې زه ستا یم او ته ما له ځان سره بېولی شې.

بیا یې په یوې سترګې سترګک وواهه او ویې ویل سخي باداره! ما تل احتیاط کړی. هره ورځ مې له د ې ځایه دبېړیو د تګ په هکله معلومات اخیستي دي او پوهېږم. چې په دې وخت کې یوه بېړۍ له دې ځایه د ازمیر پر لوري ځي.

موږ کولای شو په دې بېړۍ کې سپاره شو او ځان ازمیر ته ورسوو خو یوازېنۍ ستونزه دا ده چې له حرکته مخکې باید خدایانو ته ډالۍ ورکړو چې روغ خپل مقصد ته ورسېږو.

خو له هغه وروسته چې زه پر امون خدای بې باوره شوم تر اوسه مې بل خدای نه دی موندلی چې ډالۍ ورکړم.

ما له ډېرو کسانو و پوښتل چې ایا امکان شته چې لاربښوونه وکړي او داسې خدای راوښیي چې زه یې عبادت وکړای شم او هغه ته ډالۍ ورکړم.

هغوی وویل چې د اتون په نامه د فرعون د خدای عبادت وکړه.

پوښتنه مې وکړه دغه خدای په څه ژوند کوي؟

ځواب یې راکړ چې د اتون خدای د حقیقت پر بنسټ ژوند او خدایي کوي.

زه پوه شوم چې دغه خدای زما په درد نه خوري، ځکه هغه خدای چې وغواړي په حقیقت سره ژوند وکړي حتماً یو ساده او بې خبره خدای دی. نو اې باداره! ایا اوس ماته ویلای شې چې دکوم خدای عبادت وکړم.

ما خپل هغه غونډوسکی چې د فرعون په قبرکې مې دمور و پلار د ښخولو په وخت کې پیدا کړی و هغه ته ورکړ او ومې ویل د دغه خدای عبادت وکړه.

کاپتا پوښتنه وکړه دا څه شی دی؟

ومې ویل فرعون په دې خدای عقیده درلوده او تصور یې کاوه چې نیکمرغي راولي.

ما هم له هغې شېبې څخه چې دا ترلاسه کړی دی احساس کوم، چې د نیکمرغۍ پر لوري روان یم او سره او سپین مې پیدا کړل.

که ته هم دغه غونډوسکی وساتې فکر کوم چې نیکمرغه به شې او زه به هم ستا له نیکمرغۍ استفاده وکړم.

له دې کبله په داسې حال کې چې دغه غونډوسکی لرې، خپلې جامې هم بدلې کړه او د سوریې د خلکو په شان جامې واغونده چې په دې کښتۍ کې چې ته وایې حرکت ته چمتو ده ولاړ شو.

زه فکر کوم ستا دغه خبره سمه ده. چې زه باید ستا د اخیستو لپاره پیسې ونه لګوم. ځکه چې له دې ځایه تر ازمیر پورې ډېره خرچه لرو او کله چې ازمیر ته ولاړو باید لږ فلزات ولرو چې خرڅ یې کړو او زه پرې طبابت پیل کړم.

باید تا ته ووایم چې زه هم بیږه لرم چې ژر له طبس څخه ولاړ شو. زه چې کله د طبس په کوڅو کې ګرځم نو داسې را ته ښکاري چې ټول مې ګوري ماته ښکنځلې کوي او زه له دې وروسته چې له دغه ښاره ولاړم هیڅکله به بیا طبس ته راستون نه شم.

کاپتا وویل باداره هېڅکله د راتلونکې په هکله پرېکنده فیصله مه کوه، ځکه ته نه پوهېږې چې په راتلونکې کې څه کېږي. نو له همدا اوسه طبس ته د نه راتګ په هکله فیصله مه کوه. ځکه ښایي داسې ورځ راشي چې ستنېدا ډېره ګټه ولري.

پردې سر بېره کله چې څوک د نیل په اوبو څپله تنده ماته کړي هغه به تل د ځان پر لور راکاږي.

زه نه پوهېږم چې تا دلته څه کړي دي، چې له طبسه دومره کرکه کوې، خو له طبسه ستا د تګ فیصله سمه او معقوله ګڼم.

سینوهه! زه تا ته داد درکوم چې دغه کار چې تا کړی، که هرڅه وي هېر به یې کړې دذې لپاره چې ته ځوان یې، ځوان له څو کلونو وروسته پخوانۍ پېښې هېروي او بوډاګانو به هم د عمر په تېرېدو سره پخوانۍ خبرې هېرې کړې وې، خو له دې امله چې د دوی عمر لنډ وي د تېرو پېښو د هېرولو فرصت نه ور په برخه کېږي.

انسان چې کوم عمل کوي هغې ډبرې ته ورته دی چې سمندر ته یې اچوي، دغه ډبره چې کله سمندر ته واچول شوه لوړ غږ کوي او اوبه داسې خوځوي چې انسان فکر کوي دغه هیجان او څپې به له منځه لاړې نه شي، خو څو شېبې وروسته اوبه بیرته ارامېږي او انسان له ځان سره بېرته داسې فکر کوي چې ګنې په دغو اوبو کې کومه ډبره نه ده لوېدلې.

ته به هم له څو کلونو وروسته دغه پېښه چې ته ور سره مخامخ شوی یې هېره کړې، له قدرت او شتمنۍ سره به طبس ته ستون شې او که تر هغه وخته هم زما نوم د فراري مریانو په لیست کې وي ته به وکړای شې زما ملاتړ وکړې او پرې نه ږدې چې څوک ما وکړوي.

ومې ویل زه چې هر وخت شتمني او قدرت ولرم چمتو یم چې ستا ملاتړ وکړم.

په دې وخت کې د کاپتا د بادار مور هغه ته نارې کړې او هغه ولاړ خو ماته یې ویل د کوڅې په پای کې راته په تمه اوسه زه ډېر ژر راځم.

زه د کور له دروازې لیرې شوم او د کوڅې په پای کې هغه ته په تمه ودرېدم.

لنډه شېبه وروسته کاپتا چې توکری یې په لاس او څادر یې پر سر اچولی و، راغی.

په بل لاس کې یې څو توتې مس ول، ماته یې راوښودل او ویې ویل دې ښځې چې د ټولو تمساح ګانو مور ده بازار ته واستولم چې سودا وکړم، خو زه به ورته هېڅ هم وانخلم ځکه خپل د کارشیان مې را اخیستي او په توکرۍ کې مې ایښي دي.

چې له دې ځایه ولاړ شو، دمسو دغه کړۍ زموږ پانګه نوره هم زیاتوي چې د سفر خرچه ورسره زیاته شي.

ما ولیدل چې کاپتا په توکرۍ کې خپلې جامې او ساختګي وېښتان هم اچولي ول او کله چې له کوره لیرې شو د نیل څنډې ته ورسېدو هلته یې خپلې جامې بدلې کړې او ساختګي وېښتان یې پر سر کېښودل.

ما هغه ته یوه تراش شوې لکړه هم واخیسته، ځکه ما لیدلي ول، چې د سترو کسانو

نوکران لګړې لري، بیا د سورېې د بېړیو د لنګرځای پر لور لاړو او ما ولیدل چې یوه بېړۍ د حرکت په حال کې ده.

ددې بېړۍ ماکو هم د سورېې و او کله چې پوه شو زه یو ډاکټر یم او ازمیر ته ځم په ډېرې خوشحالۍ یې زه او کاپتا ومنلو او ددې لپاره چې دهغه په بېړۍ کې یو شمېر ماکوګان ناروغان و او هیله یې کوله چې زه به یې په لاره کې درملنه وکړم.

داسې ښکاریده چې پیداکړي غونډوسکي نیکمرغي را په برخه کوله. ځکه چې کارونه مو اسانه شول او موږ په اسانه سفر کولای شو.

کاپتاچې د غونډوسکي اغېز ولید د یوه رښتني خدای په توګه یې ورته عبادت پیل کړ

# لسم څپرکی

## يوه ناپېژندل شوې ساري ناروغي

کشتۍ حرکت وکړ او موږ څلرويشت ورځې په نيل کې سفر وکړ. په دې ۲۴ ورځو کې له ډېرو ښارونو ،معبدونو . کروندو . او پادو تېرشوو. خو ما د مصر د منظرو له ليدو خوند وانه خيست ځکه بيړه مې وه چې ژر له دغه هېواده ولاړ شم او ځان داسې ځای ته ورسوم چې هېڅوک مې ونه پېژني.

کله چې له نيله وو تلو کشتۍ سمندرګي ته ننوته او په دې وخت کې کاپتا چې د نيل دواړه څنډې يې نه شوای ليدلای ورخطا او مضطرب شو. ماته يې وويل غوره نه ده چې له بېړۍ پلي شو او د وچې پر لاره ځان ازمير ته ورسوو؟.

ما ورته وويل د وچې پر لاره غله دي. هرڅه چې لرو رانه اخلي يې او ممکنه ده ومو وژني.

کله چې د بېړۍ مانوګانو پراخ سمندر وليد د خپل عادت له مخې يې خپل مخونه په تېرو کانو پرې کړل چې خدايان له ځان سره ملګري کړي او په سلامتيا بيرته مقصد ته ستانه شي.

د کشتۍ مسافر چې زياتره يې د سوريې ول، د دې منظرې په کتو وو پرېدل.

هغه مصريان هم وارخطا شول چې په دغه بېړۍ کې سپاره ول.

مصريانو د آمون له خدايه مرسته غوښته او سريانيانو د (بعل) له خدايه مرسته وغوښته. کاپتا هم خپل خدای را وايسته او ورته ويې ژړل.

د دې لپاره چې سمندر له ځان سره ملګری کړي يوه کړۍ مس يې سمندر ته وغورځول خو وروسته بيا له دې امله ډېر خپه و.

دغه پېښې همداسې روانې وې. ان هغو کسانو چې تر دې وخته يې په نيل سپن او سمندر کې پاروګان وهل له پارو وهلو ولوېدل او بېړۍ د حرکت د دوام لپاره بادبانونه پورته کړل.

له دې سره هرڅه ارام شول، نور نه ماښو ګانو خپل مخونه ژوبلول او نه مساپرو مصري خدایان یادول. خو له دې وروسته چې بادبانونه پورته شول او کشتۍ ګړندۍ شوه د سمندر د څپو له حرکتونو سره مخامخ شوه.

کاپتا چې ولیدل بېړۍ ټکانونه خوري وراخطا شو او دبېړۍ یو پړي یې کلک ونیو.
له څو شېبو وروسته یې په زګیروي کې ماته وویل زړه یې داسې بد بد کېږي او کانګې ورځي چې فکر کوي معده یې خولې ته راغله او حتماً به مړ شي.

کاپتا چې تصور یې کاوه حتماً به مړ شي ما ته یې وویل باداره له تا خپه نه یم ځکه چې تا زه دلته نه یم راوستی بلکې زه وم چې تا ته مې وویل باید له طبس ولاړ شو.

کله چې زه مړ شوم ما د سمندر اوبو ته واچوه، ددې لپاره چې د سمندر اوبه تروې دي او د درالممات د حوض په شان د جنازې د ورستېدا مخه نیسي.

د کشتۍ ماښو ګان په مصري ژبه پوهېدل، چې کله یې دغه خبرې واورېدې نو ویې خندل او هغه ته یې وویل یو سترګیه! په دې سمندر کې داسې حیوانات شته چې غاښونه یې تر تمساح هم تېره او لوی دي، تردې وړاندې چې ستا جنازه د سمندر تل ته ورسېږي تا به ټوټې ټوټې کړي او وبه دې خوري.

کاپتا چې پوه شو جنازه به یې د سمندر په تروو اوبو کې پاتې نه شي او ځناور به یې وخوري نو په ژړا شو.

څو شېبې وروسته زما پخواني مریي کانګې پیل کړې او له هغه وروسته ټولو مساپرو که مصریان وله که سریانیان. کانګې پیل کړې او معدې یې خالي کړې.

زه دهغوی د ډله یېزې ناروغۍ له کبله حیران شوم ځکه چې په دارالحیات کې زموږ استادانو ددې ناورغۍ په هکله موږ ته څه نه و ویلي.

زه نه پوهېدم چې دا څه ډول ناروغي ده؟ ساري ناروغۍ چې په یو وار ټول ناروغه کوي مشهورې دي او د طبس ټول ډاکټران پرې پوهېږي.

زرګونه کاله کېږي چې دغه ناروغۍ پېژندل شوې او د معالجې وسیلې یې هم برابرې دي، خو اوس دغه ناروغي له هېڅ یوې بلې ناروغۍ سره ورته نه وه او ما فکر کاوه چې که د مصر ټول سلطنتي ډاکټران هم راټول شي دغه ساري ناروغي به چې ناڅاپه ټول پرې اخته شول ونه پېژني.

دغه ناروغي نه وبا وه، نه طاعون و او نه کوی، یا چیچک و.

ددې لپاره چې په دغو دریو واړو ناروغیو کې مریضان تبه کوي. خو دغو کسانو چې کانګې يې کولې تبه نه درلوده او د سر له خوږ و هم په تکليف نه ول.

ما دهغوی خوله بوی کړه چې پوه شم ايا د وبا يا کولرا په شان يې خوله بوی کوي کنه؟ خو خراب بوی يې نه کاوه.

دهغوی د ورنو منځ مې معاينه کړ چې پوه شم په طاعون خو به نه وي اخته شوي چې د ورنو له منځه يې رانې سوری کړی وي خو کومه غده مې ونه ليده او پر پوستکي يې هم کومه تپاکه يا دانه. نه تر ستر ګو کېده په دغو ټولو کسانو کې چې خوا يې راګرځېده هيڅا هم تبه نه درلوده.

حيران پاتې وم چې داڅه ډول مرموزه ناروغي ده چې نښې يې په هيڅ يوه کتاب کې نه دي ذکر شوې.

په وارخطايي د بېړۍ مشر ماهو ته ورغلم او هغه ته مې وويل ستا په بېړۍ کې يو ډول خطرناکه ناروغي ګډه شوې چې تر ننه پورې يې ما ساری نه دی ليدلی.

زه مصری ډاکټر يم اوله دارالحيات ښوونځي څخه فارغ التحصيل يم. خو له دې مرض خبر نه وم. زه درته وايم چې ډېر ژر ساحل ته ولاړ شه چې ناروغان وچې ته ولېږدوو.

دکشتۍ ماهو وويل: تر اوسه پورې دې په سمندر کې سفر نه دی کړی؟.... ومې ويل نه.

ماهو وويل دغه ناروغي چې ستا په شان يو مصري ډاکټر ترې بې خبره دی د سمندر ناورغي ده او ددې ناروغۍ علت هم ډېر خوراک دی. په دې بيړۍ کې هغه کسان چې غواړي د سرياني شرکت په خرچې چې دبېړۍ مالک دی، ډوډۍ وخوري تر نورو ډېره ډوډۍ خوري، ځکه چې ډوډۍ يې په کرايه کې حساب شوې وي.

خو ته اې سينوهه کله چې په کشتۍ کې سپرېدې. و دې ويل چې پخپل خرڅ به ډوډۍ خورې. ځکه تر نورو روغ يې علت يې هم دا دی چې په خوړو کې احتياط کوې.

خو دوی چې پوهېږي ډوډۍ د کشتۍ ده، نو ډېره خوري او ګمان کوي چې ګټه يې کړې.

تر هغه وخته پورې چې په نيل سين کې مو حرکت کاوه ډېرې ډوډۍ هغو ته تاوان نه پېښاوه ځکه چې نيل سيند دی او څپې نه لري خو اوس چې سمندر ته ننوتو دوی له هرځل خوړو وروسته په همدې مرض اخته کېږي. دغه کانګې دکشتۍ د ټکان له امله دي او کشتۍ هم د سمندر د څپو له امله ټکانو نه خوري.

ومې ويل ولې په دې توپاني هوا کې بېړۍ ځغلوې چې مسافر دې له دې ناروغۍ سره

مخامخ کړي دي؟

مانو وويل دغه هوا توپاني نه ده. بلکې د بېړۍ د حرکت لپاره تر ټولو ښه هوا ده. ځکه تر هغه چې باد نه وي له بادبانه استفاده نه شي کېدای.

بيا يې زياته کړه سينوهه! سره له دې چې ته يو مصري ډاکټر يې د طب د غه علم له ما زده کړه.

د سمندر د ناروغۍ معالجه يوازې داده چې ډوډۍ لږه وخوړل شي او که د کشتۍ مسافر کمه ډوډۍ وخوري يا يې ونه خوري په دې مرض به اخته نه شي.

ما وويل دغه کسان چې ناروغه شوي دي وبه مري؟

مانو وويل کله چې بېړۍ ساحل ته ورسېږي او دغه کسان ترې پلي شي تر ټولو هغو کسانو به سالم او روغ وي چې په ساحل کې ګرځي ځکه چې د بيابيا کانګو له امله به د هغوی د معدې درونډ والی له منځه ولاړ شي.

د سمندر ناروغي تر هغه وخته دوام کوي چې بېړۍ په سمندر کې روانه وي. څنګه چې ساحل ته ور سېده نو دغه مرض هم ښه کېږي.

موږ په دې خبرو لګيا وو چې شپه شوه. يو لوري ته هم ساحل نه ښکارېده. ما د کشتۍ مشر مانو ته وويل په دې توره شپه کې لاره درڅخه نه ورکېږي؟ هسې نه د ازمير پر ځای د سړي خورو ټاټوبي ته ولاړ شې. (*څلوزره کاله مخکې د مديترانې د شمال او سېدونکي تر يوه حده وحشي ول او مصريانو فکرکاوه چې هغوی سړي خواره دي*)

مانو وويل زه له خدايانو مرسته غواړم او خپله لاره نه ورکوم.

تر هغه چې ورځ وي، د لمر خدای را سره مرسته کوي او چې شپه شي د ستورو او سپوږمۍ خدای مې مرستې ته راځي او نه پرېږدي چې زه د سړي خورو د ټاټوبي پر لور ولاړ شم.

له دې وروسته له مانو څخه راون شوم او په يوې څنډې کې پرېوتم. چې ويده شم. خو تر سهاره د کشتۍ د حرکتونو، د بادبانونو او څپو د غږ له امله خوب رانغی.

پر بله ورځ مې کاپتا ته لږ خواړه ور کړل. خو هغه نه خوړل. په دې وخت کې زه پوه شوم چې هغه به مړ شي ځکه چې تر اوسه پورې داسې نه وو شوي چې، کاپتا د خوړو فرصت ولري خو هغه له لاسه ورکړی وي.

اووه شپې او ورځې موږ په سمندر کې وو او اتمه ورځ ازمير ښکاره شو.

کله چې بندر ته ورسېدو بادبانونه راښکته شول او د کشتۍ ماڼوګانو پاروګان په لاسونو کې ونيول چې کشتۍ ساحل ته ورسوي ما په حيرانۍ سره وليدل. زما مريي او ټول هغه مسافر چې ناروغه ول کله چې په بندر کې له بېړۍ کوز او رهي شول. ټولو ويل چې وږي دي او ډوډۍ يې غوښته.

ما هېڅکله نه وو ليدلي هغه ناروغان چې ته خيال کوې مړه کېږي خو دوی ناڅاپه داسې روغ شي . روان شي . خبرې وکړي او وخاندي.

په دې وخت کې پوه شوم چې علم پای نه لري او انسان چې څو مره تعليم وکړي بيا هم د علم ترلاسه کولو ته اړتيا لري. ځکه موږ مصري ډاکټران چې د نړۍ تر ټولو ستر طبيبان يو خو د يوه بې سواده ماڼو په اندازه معلومات نه لرو او په طبس کې زما ملګري د دې ناروغۍ له شتونه خبر لا نه وو.

سوريې ته سور هېواد او مصر ته تور ملک وايي( د هغو د خاورو د رنګ له امله ) او هماغه ډول چې د دغو دواړو هېوادونو خاورې له يو بل سره توپير لري. د سريانيانو او مصرياتو ټول شيان هم سره توپير لري.

مصر هوار هېواد دی. چې غر نه لري خو سوريه غرونه لري. د دواړو هېوادونو ترمنځ يوه دره يا جلګه ده. چې په هرې جلګې کې يو ملت ژوند کوي. يو پاچا نه لري او دغه ټول پاچاهان فرعون ته باج ورکوي.

د سوريې په سواحلو کې خلک د کبانو د ښکار او سمندر کچ کونې له لارې ژوند کوي او په وچه کې خلک کرنه او لوټماري کوي د فرعون پوځ هېڅکله د سوريې غله او ډاکوان له منځه يو نه وړل.

په مصر کې خلک لوڅ دي. خو په سوريه کې له سر تر پښو پټ دي او جامې اغوندي دوی خپلې جامې له وړيو جوړوي.

همدغه خلک چې له سره تر پښو جامې اغوندي. کله چې غواړي خپل طبيعي احتياجات رفع کړي. له دې پرته چې کوم خاص ځای ته ولاړ شي په هر ځای چې د دوی زړه وغواړي رفع حاجت کوي او دا نه ده ورته مهمه چې خلک يې ګوري.

د سوريې نارينه اوږده ږيره او ويښتان لري. هر ښار خپل خدای لري او د خدايانو لپاره انسانان قرباني کوي.

ځينې کارونه چې په مصر کې ناروا دي. په سوريې کې جواز لري لکه د نارينه وو

او ښځو معاشرت په ځینو اخترونو کې نارینه او ښځې په ځرګنده له یو بل سره معاشرت کوي.

هر ځل چې فرعون یو صاحب منصب رالېږي چې د سوریې له پاچاهانو باج واخلي. د هغه لپاره دا یو ډول تبعید وي. ځکه چې له محدود شمېر مصریانو پرته ډېری مصریان د سوریې د خلکو له ژوند سره نه جوړېږي.

په ازمیر کې د آمون د معبد په نوم یو معبد هم شته او هغه مصریان چې په دغه ښار کې ژوند کوي دغه معبد ته ډالۍ ورکوي.

ما په ازمیر کې دوه کاله تېر کړل او په دې موده کې مې د بابل لیک او ژبه زده کړل. ځکه چې ماته ویل شوي دي، که څوک بابلي ژبه او لیک زده کړي د نړۍ ټولو مشهورو هېوادونو ته سفر کولای شي او هر چیرته له تعلیم یافته نارینه وو سره خبرې کولای شي.

بابلي خط پر هغو لوحو لیکي چې له متینې ختې جوړې شوې دي او بیا دغه لوحې، چې په نی لیکل کېږي په اور کې ږدي چې د خښتې په شان وچې شي.

په سر کې به زه حیران شوم چې ولې بابلي خط د مصري خط په شان په پاپیروس (مصري کاغذ) نه لیکي؟

وروسته پوه شوم چې کاغذ له منځه ځي، خو پخه شوې خته پاتې کېږي او دا ددې ښودنه کوي چې پاچاهان او واکمنان څومره زر خپلې وعدې او ژمنې هېروي.

یو شی چې په سوریې کې شته خو په مصر کې یې نه ګورو، هغه دا دی چې په سوریه کې باید ډاکټر د ناروغ کورته ورشي او هېڅکله ناروغ یو طبیب نه احضاروي.

کله چې طبیب د یوه ناروغ کور ته ورځي، نو ناروغ خیال کوي چې خدایانو هغه ور استولی دی او د ډاکټر فیس له درملنې مخکې ورکوي چې دغه چاره د ډاکټر په ګټه ده، ځکه کله چې ناروغ معالجه شو بیا د ډاکټر اجوره هېروي.

د سوریې هر شتمن خپل خاص ډاکټر لري او تر هغه چې روغ وي، هغه ته ډالۍ ورکوي، خو کله چې ناروغ شو، نو بیا طبیب ته هغسې ډالۍ نه ورکول کېږي لکه د روغتیا پر مهال خو دغه چاره بېرته هغه مهال پیل کېږي چې ناروغ ورغېږي.

زما مړي له هغې ورځې چې ازمیر ته ننوتو زه اړ کړم، چې د خپل کار د عاید یوه برخه هغو کسانو ته ورکړم، چې د ښار بېلابېلو سیمو ته ولاړ شي او په طب کې زما معجزې خلکو ته ووایي.

زما مري کاپتا به ویل که ته په دې ښار کې مشهور شوې. نو بیا به مجبور نه یې چې د ناروغانو د درملنې لپاره د هغوی کورنو ته ولاړ شې. بلکې هغوی به ستا کورو ته راځي.

ما چې هر څومره ورته وویل په سوریه کې ناروغ د ډاکټر کور ته نه ځي. بلکه بالعکس وي خو هغه نه منله او ویل یې په پیل کې همداسې ده. خوله دې وروسته چې خلکو عادت وکړ ستا کور ته به راشي. ځکه چې خلک احمقان دي او ډېر ژر ورځني موږ ته تسلیمېږي په تېره بیا که هغه موږ له یوه بهرني هېواده راغلی وي.

نو کله چې هغوی پوه شي. د ډاکټر کور ته تګ موږ دی. بیا خپل دود - دستور پرېږدي او د مصر د خلکو دود به غوره کړي.

یو کار چې کاپتا د هغه کولو ته اړ کړم داو. چې په کوڅه او سړک کې د سوریې ډاکټرانو ته ورشم (له دې امله چې هغوی د خلکو کورو ته تلل. نو تل به په کوڅو او سړکونو کې لیدل کېدل) او هغوی ته ووایم چې: زه سینوهه د مصر مشهور ډاکټر یم. چې خپلې زده کړې مې په دارالحیات کې کړې. د ټولې نړۍ خلک مې پېژني او دومره علم لرم چې که خدایان راسره موافقه وکړي. مړي به ژوندي کړم او ړندې سترګې به ورغوم. خو عمل په هرځای کې په یوه بڼه نه دی او ناروغۍ په هر هېواد کې خپل خاص ډول لري.

زه ددې لپاره ستاسې ښار ته راغلی یم چې ستاسې د ښار ناروغۍ وپېژنم. درملنه یې وکړم او ستاسې له علومو خبر شم.

زه نه غواړم چې له تاسې سره سیالي وکړم. ځکه چې د سرو او سپینو د ټولولو لپاره نه یم راغلی او زما لپاره سره او سپین زما تر پښو لاندې خارو سره څه توپیر نه لري.

کله چې تاسې ولیدل. ستاسې خدایانو یو کس په قهر او غضب اخته کړی او ناروغي یې نه معالجه کېږي. ماته یې را واستوئ چې ښایي زه یې په خپلې چړې معالجه کړم.

ځکه چې پوهېږم تاسې هېڅکله د خپلو ناروغانو د معالجې لپاره چړه نه کاروۍ او تل د درملنې لپاره درمل کاروئ.

که ما هغه ناروغان چې تاسې ماته رالېږلي پخپلې چړې سره معالجه کړل. هر څومره سره او سپین یې چې راکړل شول له تاسې سره به یې نیم کړم او که مې علاج ونه کړای شو هغه به بیرته تاسې ته در ولېږم.

دغه راز که کومه ډالۍ یې هم راکړه هغه به هم تاسې ته درکړم.

کله چې به ما له یوه سوریایي ډاکټر سره دغسې خبرې وکړې. هغه به خپله ږیره وګروله

او ويل به يې بې له شکه چې خدايانو تاته علم درکړی دی. ځکه چې ستا کلام په تېره بیا هغه برخه چې وايې سره او سپين به سره نیمايي کوو ډېره په زړه پورې ده.

له دې امله چې ته د چړې په مرسته درملنه کوې. نو که وغواړې له موږ سره چې په درملو معالجه کوو سيالي وکړې نه يې شې کولای. موږ عقيده لرو چې يو ناروغ په چړې نه معالجه کېږي. بلکې هغه به مړ شي موږ تا ته يوه سپارښتنه کوو. هغه دا چې هېڅکله په جادوګرۍ د چا معالجه ونه کړې ځکه که ته دغه هڅه وکړې نو له هغو خلکو به وروسته پاتې شې چې تر تا چالاک دي.

ما په دې خبرو باور کاوه. ځکه پوهېدم چې په سوريه کې کوډګر په واټونو او کوڅو کې د ډاکټرانو په شان سرګردانه دي او د کوډو په وسيله د ساده کسانو درملنه کوي.

هغوی هم يا مري او يا د وخت په تېرېدا سره معالجه کېږي.

زموږ په مصر کې هم کوډې شته خو جادوګري. هلته د کاهنينو مسلک او حرفه ده. يوازې کاهنين او هغه هم په معبدونو کې کوډې کوي.

که څوک له معبده بهر په واټونو کې کوډې وکړي سخته سزا ورکول کېږي.

هغه نتيجه چې ما په ازمير کې له خپلې معالجې واخيسته ډېره پاموړ شوه او ډېره موده تېره نه وه چې په ښار کې مشهور شوم.

ما به له هغو ډاکټرانو سره ډېر ښه چلند کاوه چې خپل ناروغان به يې ماته د علاج لپاره لېږل او چې له ناروغه به مې څومره فيس اخيستی و. هغه به مې ورسره نيمايي کاوه.

ناروغ ته به مې ويل چې همغه ډاکټر ته ورشې او ورته ووايې چې ماته يې ښه راکړي دي.

زما د معالجې وسيله چاړه وه. هر خل تر دې وړاندې چې چاړه وکاروم هغه به مې په اور کې پاکه کړه او ځان به مې هم د دارالحيات په دود پاکاوه.

يوه ورځ يو ړوند راغی او څرګنده شوه چې څه موده د سوريې ډاکټرانو ته د معالجې لپاره ورغلی دی. خو ناروغي يې نوره هم زياته شوې ده.

د سوريې ډاکټرانو چې د دغه ړانده د معالجې لپاره کومه وسيله کارولې وه. هغه دا وه چې دخولې ناړې به يې له خاورو سره يوځای کولې او د هغه پر ناروغې سترګې به يې ور موښلې

خو ما ددغه سړي د معالجې لپاره له ستنې کار واخيست. لومړی مې ستنه په اور کې

کېښوده. چې پاکه به شوه نو د هغې په وسیله به مې د هغه سرې سترګه معالجه کړه او په دې توګه د هغه سرې روغ شو.

دې موضوع زما له شهرت سره دومره مرسته وکړه چې په ټول ازمیر کې یې زه د خدایانو استازی بللم او ویل به یې، همغه ډول چې خدایان انسان ته سترګې ورکوي سینوهه هم ړندې سترګې رغوي.

د سوریې شتمن او سوداګر زموږ تر شتمنو او سوداګرو ډېره ډوډۍ خوري، هر ورځ څو ځله پخه شوې ډوډۍ خوري، دغه خوړ د هغوی بدن چاغ کړی وي او د معدې او ساه لنډۍ ستونزې لري.

کله چې زه مشهور شوم دغه کسان ماته راتلل او ما به د همغې چړې په وسیله معالجه کول. د هغوی وینه به مې داسې تویوله لکه چې د خنځیر سر پرې کړې.

ما به ناروغ ته د هغه له وس سره سم درمل ورکول. که مې کتل چې ناروغ پیسې لري، نو ګرانه مې پرې خرڅوله. خو بې وزلو ته مې ارزانه ورکوله او باوري وم، چې باید له بډایه یې واخلم او بې وزلي ته یې ورکړم، په تېره بیا که بېوزله ناروغ به د نوکرانو یا مریيانو له پرګنې و.

زما مریي کاپتابه هم له ناروغانو ډالۍ اخیستلې او زیاتره ناروغان به تردې وړاندې چې ماته راشي زما مریي ته به ورتلل چې دهغه په وسیله زما ډېر دقت او مرسته جلب کړي.

کاپتابه هره ورځ یو شمېر سوالګر زما کورته راوستل او ډوډۍ به یې ورکوله چې هغوی بیا دښاپه شاوخواکې زما د معالجو د معجزې په هکله خبرې وکړي او ووایي چې دغه مصری ډاکټر په ټولې نړۍ کې ساری نه لري.

ما ډېر سره او سپین تر لاسه کړل او اضافي سره او سپین به مې د سوریې د بېړۍ چلونې په شرکتونو کې په کاراچول.

په سوریې کې داسې شرکتونه شته چې پانګې یې په وړو برخو وېشل شوې بیا دغه وړې برخې خلکو اخیستې وي، دغه وړې برخې بیا هم په نورو وړو برخو وېشل شوې وي او پر هغو یې لسمه برخه، سلمه برخه، او زرمه برخه نومونه ایښي وي. د ازمیر ټولو او سیدونکو حتی سوالګرو دغه وړې برخې او ونډې اخیستلې او په نتیجه کې به د کشتیو په شرکتونو کې شریکان شول.

ځینې وختونه داسې کېږي چې بېړۍ سمندر ته ولاړې شي، ډوبېږي او بیرته نه

راستنېږي.

خو کله چې ښېړي راستنې شي نو بیا پانګوالو ته پرېمانه ګټه رسوي. ما هم تر خپله وسه پورې دغه ونډې اخیستې وې چې دبېړیو د شرکتونو په ګټه کې شریک شم.

په مصر کې دغه دود نشته او له همدې امله هلته د سوریې دبېړیو په شان سترې بېړۍ نشته.

زمونږ په هېواد کې چې کله د بېړۍ خاوند مړ شي، نو د هغه بېړۍ هم له منځه ځي، خو په سوریه کې له دې کبله چې بېړۍ په شرکت پورې اړونده ده او ټول خلک د شرکت ونډه وال دي. نو د یوه یا څو تنو مړینه د بېړۍ چلونې په کار و بار اغېزه نه کوي.

ما په ازمیر کې د کشتیو داسې شرکتونه هم ولیدل چې پېنځه سوه کاله یې عمر کړی دی.

د بېړیو په شرکت کې له پانګونې زما یوه ګټه دا وه چې هېڅکله به مې په کور کې ډېر سره او سپین نه ول. چې غله یې یوسي او د هغو له لامله مې مړ کړي.

زه چې څو مره بډای کېدم کاپتا هو مره چاغېده او ښکلې جامې به یې اغوستلې، خپل بدن به یې په عطري تېلو غوړاوه.

له دې سره سره چې کاپتا بوډا شوی و، خو ځوانې ښځې به یې په خپله غېږه کې ځملولې او کله خو به داسې مغرور شو، چې له سره به یې سپین سترګې کوله بیا به ما خپله لکړه را واخیسته او څو کلک ګوزارونه به مې په ولیو او ملا ورکول.

دو مره سره او سپین مې پیدا کړل چې کله خو به نه پوهېدم څه پرې وکړم؟

زما بریالیتوب دوه علتونه لرل لومړی دا چې د سوریې له ډاکټرانو سره مې سیالي نه کوله. ځکه چې په عمومي توګه مې هغه ناروغان معالجه کول چې هغوی به ځواب کړي ول.

دویمه دا چې د چړې په کارولو کې مې ډېره تجربه درلوده.

کله چې به یوه سریاني ډاکټر کوم ناروغ ته ځواب ورکړ، چې نور نه رغېږي او ورته و به یې ویل چې مري، نو خلکو به هم همداسې فکر کاوه چې دغه کس به مړ شي.

کله چې به ما په چړې سره هغه ورغاوه، ټولو به ستایلم او که به ناروغ مړ شو هېچا به نه رټلم ځکه چې پوهیدل ناورغ نه رغېده.

له همدې لامله ما په ارام زړه، له وېرې پرته خپله چاره د هغو لپاره کاروله.

کله به مې د سوریې د ډاکټرانو له علمونو استفاده کوله، ځکه چې د هغوی ځینې

علمونه په تېره بیا د زخمونو لپاره له ګرمو و سپنو استفاده ډېره ښه وه.

کله چې مې ډېره شتمني ترلاسه کړه او پوی شوم چې نورو سرو او سپینو ته اړتیا نه لرم. او زما پر وړاندې یې ارزښت هم کم شو. له هغه وروسته مې ببوزله ناروغان یوازې ددې لپاره معالجه کول چې خپل معلومات پرې زیات کړم.

په دغو دوو کلونو کې چې په ازمیر کې وم له یوازیتوبه کړېدم ځکه چې پخپله خوښه به مې ښځه نه پیدا کوله او له هر جایي ښځو مې نفرت کاوه.

دا ددې لپاره و چې نفر نفر له هغو ښځو بېزاره کړی وم چې د سرو او سپینو لپاره د نارینه وو غېږې ته ورځي. ان کله چې به د سوریې معبد ته ولاړم چې له کومې ښځې سره ساعت تېر کړم بیا به مې هم له هغو کرکه کوله.

په ازمیر کې که یو سړی وغواړي چې له یوې ښځې سره ځملي معبد ته ځي او د یوه ساعت یا یوې ورځې لپاره هلته یوه ښځه خپله خور کوي.

سوریه ډېر خدایان لري چې تر ټولو مشهور یې بعل نومېږي.

بعل خونخوار خدای دی چې قربانۍ ته اړتیا لري. دغه خدای عادي غلا هم منع کړې او په بدل کې یې له چل ول سره غلا ازاده پرې ایښې ده.

که په ازمیر کې یو څوک دخپلو بچیانو دخېتو د مړولو لپاره یو کب غلا کړي او بیا ونیول شي غل دبعل معبد ته بیایي او ددغه خدای په مخ کې یې ټو ټه ټوټه کوي.

خو که څوک سپین زر له سرو . سره ګډ کړي او بیا یې د سرو په نامه خرخ کړي څوک ورته ګوته نه نیسي، ځکه چې چل یې کړی او په سوریه کې له چل ول ځخه استفاده دستایلو وړ تخنیک ګڼل کېږي.

له همدې لامله په دغه هېواد کې خلک د سرو او سپینو په پېژندولو کې استادان دي او کله چې د سرو یا سپینو کړی تر لاسه کړي پوهېږي چې سو چه دي کنه؟

د ازمیر د اوسېدونکو ښځینه خدای د ایشتار په نامه یوه الهه ده چې هره ورځ یې جامې بدلوي او دغه الهه په یوه ستر معبد کې ده.

په دې معبد کې سلګونه. ظاهراً باکرې نجونې دهغې خدمت کوي خو دوی یوازې په رسمي توګه باکرې دي.

خو دوی ته په معبد کې د خپل لقب اپوته د دلربایي او زړه وړلو چلونه ورزده کوي چې معبد ته له راتلونکو سره ځملي.

په ازمير کې د ايشتار معبد په طبس کې د عياشۍ کورونو ته ورته دی . دلته ښځې د نارينه وو مېلمه پالنه کوي او هرڅه چې نارينه ورکوي د ايشتار په ساتلو يې لګوي.

په مصر کې که يوه ښځه له يوه نارينه سره په معبد کې ځملي نو سړی د کار کولو لپاره کان ته استول کېږي او ښځه له معبده باسي. خو په ازمير کې د ايشتار په معبد کې دغه ډول اړيکي ازاد وي او سريانيان وايي ايشتار له دې امله دغه عمل په معبد کې ازاد پرې ايښی دی چې له دغې لارې ډېرې پيسې ګټي.

که يو سړی ونه غواړي د ايشتار معبد ته لاړ شي او د هغه ځای له ښځو سره ساعت تېري ونه کړي بايد ښځه وکړي او يا يوه وينځه واخلي.

ښايي د نړۍ په هېڅ يوه ځای کې د سوريې په شان مرييان او وينځې د خرڅلاو لپاره نه وي. ځکه چې هره ورځ له ليرې سيمو کشتۍ راځي او مرييان او وينځي چې له ځان سره يې راوړي وي د خرڅلاو لپاره يې بازار ته استوي.

په وينځو کې د هر نارينه لپاره د هغه په سليقې او خوښه برابره ښځه پيدا کېږي او بيه يې هم ګرانه نه وي.

هرڅوک د خپلې خوښې وينځه لرلای شي چې کور ته يې بوځي او خپل ساعت ورسره تېر کړي.

معيوب مرييان او وينځې د ازمير حکومت اخلي. دغه مرييان په ډېره ارزانه بيه پيرودل کېږي او حکومت له هغوی څخه ښکلا نه غواړي بلکې هدف يې دا وي چې هغوی بعل معبد ته بوځي او هلته يې د نومورې خدای په مخکې قرباني کړي.

حکومت باوري دی چې بعل په دې نه پوهېږي چې غوليدلی دی او معيوب نارينه او يا ښځه يې د قربانۍ لپاره وروړي دي.

کله چې زړې وينځې او بوډا مرييان چې په خولې کې غاښونه نه لري. د قربانۍ لپاره د بعل معبد ته وړي او قرباني کوي يې نو پر دغه مهال د بعل څېره په يوه ټوکر کې پټوي چې خپل قرباني ونه ګوري. د دې لپاره چې زه هم د ازمير د خلکو له قدرونې سره مخامخ شم. د بعل خدای لپاره مې قرباني کوله. خو د مريي او وينځې پر ځای مې د هغوی بيه ورکوله. دغه سره او سپين تر هغه ډېر څرګند ول. چې يو غلام او وينځه مې قرباني کړې وای.

هغه ښځې چې د ايشتار په معبد کې وې ډېرې ښکلې وې. ځکه چې د دود له مخې د

سوريې تر ټولو ښکلې نجونې په ايشتار معبد کې د خدمت لپاره ګمارل کېدې.

دغه نجونې چې به کله پېغلې شوې، نو د نارينه وو د زړه راکښلو چلونه به ورښوول کېدل چې څنګه يو سړی په ځان مين کړي چې ډېر سره او سپين زر واخلي.

هره شپه چې زه به د ايشتار معبد ته تلم( ددې لپاره چې نارينه له کارونو د خلاصېدا په وخت ياني د شپې له پلوه هلته ځي. ) د معبد له يوې ښځې سره به ځملاستم چې باکرې به يادېدلې.

زه نوز هغه ساده او شرمناک سينوهه نه وم، چې د شپې مهال به په طبس کې د عياشۍ کورونو ته ولاړم، بلکې له ښځو د خوند اخيستلو په برخه کې مې ډېره تجربه پيدا کړې وه او په دې پوهيدم چې کله يو سړی غواړي له يوې ښځې سره ځملي، څه ډول بايد له هغې څخه استفاده وکړي.

له دې وروسته چې څو ځله د ايشتار معبد ته ولاړم، نو هلته مې وليدل چې هره يوه د مينې کولو او دلبرۍ په ځانګړو چلونو پوهېږي او دا د دغه معبد د دود يوه بله ګټه ده چې ډېر سره او سپين زر ترلاسه کړي.

له دې کبله چې معبد ته تلونکي نارينه هر ځل له ښځو سره په مينې کولو کې نوي شيان زده کوي، دغه تنوع ددې سبب کېږي چې ايشتار معبد ته له تلو سترې نه شي.

ما د هغه ځای له ښځو څخه ډېر څه زده کړل او ورو- ورو په عشق کې استاد شوم. خو سره له دې چې هر ځل مې معبد ته د تللو په وخت کې خوښي احساسوله ، په زړه کې مې د هغه ځای له ښځو کرکه کوله. ځکه پوهېدم چې د طبس د عياشۍ د کورونو له ښځو سره هېڅ توپير نه لري.

يوه ورځ کاپتا په خير راته وکتل او ويې ويل، زما باداره! سره له دې چې ته ځوان يې خو بيا هم ستا په مخ کې ګونځې ليدل کېږي.

ورته مې وويل داسې نه ده.

هغه وويل همداسې ده او ددې چارې لامل دادی ، هغه ښځې چې ته يې په غېږه کې ځملوې. ته له هغوی سره د زړه مينه نه لرې، که يو څوک له يوې ښځې سره له زړه مينه ولري او له هغې سره ځملي هېڅکله به زوړ نه شي.

هغه وويل زه له دوو شيانو وېرېږم ، يو دا چې له هغو ښځو سره چې ته مينه نه لرې او پوهېږې چې موقتي دي، ستا ځملاستل به د دې سبب شي چې ته ژر زوړ شې او دويم شی

دا چې د نفر نفرنفر پیښه تکرار نه شي او یوه بې رحمه ښځه به تا د ځان لیواله کړي او بیا به موږ سپیره شو.

ما وویل دا ده او سه چې زه به نور د نفرنفرنفر او هغې ته د ورته ښځو په لومه کې ګیر نه شم.

کاپتا وویل تر اخرې ورځې پورې چې یو سړی د ناړینتوب ځواک لري دا احتمال شته چې د یوې حریصې او بې رحمه ښځې په لومه کې راشي او خپل ټول شیان له لاسه ورکړي

زه لټه کوم تا ته یوه کنیزه پیدا کړم چې تا په سرو او سپینو زرو باندې له مینو ښځو وساتم او د شپې مهال به له دې کنیزې سره ساعت تېري کوې.

پېنځه ورځې وروسته چې کله خپلې کوټې ته ننوتم و مې کتل چې کاپتا له یوې ځوانې وینځې سره کوټې ته را ننوت.

دغه ښځه نه د مصر او نه د سوریې او سېدونکې وه ، بلکې د سرې خورو قبایلو ته ورته وه، ځکه چې وېښتان یې طلایي، مخ یې سپین او سترګې یې شنې ښکارېدې

ښځه نه دنګه وه او نه ډنګره ،سینې او لاسونه یې واړه ول. ما فکر وکړ چې که د سرې خورو د قبیلې ټولې نجونې داسې وي، نو د سرې خورو ټاټوبی د خدایانو تر کور هم ښه دی.

کاپتا چې کله هغه زما کوټې ته راننه ایستله، نو د هغې جامې یې و ایستلې چې زموږ (مصریانو ) په شان شي او بیایې د هغې د ښکلا ستاینه وکړه ،ویې ویل دا هغه وینځه ده، چې زموږ سمندر کچ کوونکو د سرې خورو له ساحله را تښتولې او ما نن د مرییانو د خرڅلاو په بازار کې تر دې بله ښکلې وینځه ونه لیده.

په ښځې کې د وحشت نښې نه ښکارېدې او خندل یې، خپل سپین او بربښنده غابښونه به یې رابښودل او د خپل بدن ځینو غړو ته به یې اشاره وکړه.

غړو ته داسې اشاره کول ښه کار نه دی او زه پوه شوم چې کومه ښځه که له وحشي ملتونو څخه نه وي، نو بل څوک داسې بې تربیتي نه کوي.

دغه ښځه ډېر ژر له ما سره صمیمي شوه، خو ددې ښځې شتون زما لپاره دایمي عذاب شو، ځکه چې دې ښځې غوښتل تل له ما سره ساعت تېري وکړي، خو زه د هغې له بیا بیا غوښتنو په تنګ شوی وم او کاپتا ته مې وښله.

ښځه له هغه سره نه جوړېده، کاپتا به وهله او له هغه به تښتېده ما ته به راتله خو کله چې

به ما وهله خوشحاله به شوه او ویل به یې له تاسره ځکه خوشحاله یم چې ته خواکمن یې او له ما سره ښه مستي کولای شې.

له دې ښځې سره زموږ اړیکي په همدې ډول روان ول، خو یوه ورځ د سوریې یو پاچا (لکه چې مخکې مې ویلي ول، د هغو شمېر ډېر زیات دی) د معالجې لپاره ماته راغی او چې کله یې دغه ښځه ولیده حیران شو.

زه پوه شوم چې زما د وینځې اندام یې ډېر خوښ شوی دی. ځکه چې زما وینځې زموږ له دود سره سم په کور کې کالي نه اغوستل او دغه پاچا هېڅکله پردۍ ښځه لوڅه نه وه لیدلې.

ما چې ولیدل هغه زما له وینځې مخ نه اړوي، نو ورمعرفي مې کړه او وینځې ته مې وویل چې پاچا ته شراب راوړي.

کله چې پاچا پوه شو چې دا زما وینځه ده نو ویې ویل: سینوهه! زه غواړم دغه وینځه له تا څخه واخلم، هر څومره سره او سپین چې وغواړې د هغې په بدل کې به یې درکړم.

تر دې ورځې پورې د خپلې وینځې د بیابیا غوښتنې له کبله چې باید مستي ورسره وکړم په تنګ شوی وم. خو کله چې مې ولیدل پاچایې غواړي نو زړه مې ونه شو چې پرې خرڅه یې کړم.

ځکه زه پوهېدم هرڅه چې وي خو بیا هم ځینې شپې ورته اړتیا لرم او که خپله وینځه و نه لرم مجبور به یم چې د ایشتار د الهې معبد ته ولاړ شم او د هغه ځای له ښځو سره څملم.

کله چې پاچا زما وینځه وغوښتله نو د هغې په قدر او قیمت پوه شوم. ځکه تر هغه وخته چې زموږ شیان پېرودونکی نه لري زموږ په نظر کې هم بې ارزښته راځي او کله چې د شیانو لپاره پېریدونکی پیدا شي زموږ نظر هم ځانته جلبوي.

اوس هغه وخت راغلی چې باید د خپلې اختراع په هکله یو څو خبرې وکړم.

کله چې ما په دارالممات کې کار کاوه متوجه شوم چې که وکړای شو غاښونه په یوه پوښ کې وساتو نو له خرابېدو به یې وژغورو.

په دارالممات کې چې به کله شتمن مړي مومیایي کېدل د هغو په غاښونو به یې یوه پاڼه زر راکاږل. دغه زر به د وریو په غوښه کې ننوتل او کلک به شول. پایله به دا شوه چې کله به وروسته په مومیایي کې د ورستېدا نښې ښکارندې شوې نو غاښونه به له وریو څخه جلا کېدل او له زرو کلونو وروسته به د غاښونو لیکه په خپل حال پاتې وه.

د مړیو غابښونه له مومیايي کولو وروسته نه خرابېږي، ځکه چې له مړینې وروسته غابښ نه ورستېږي، خو له وریو جلا کېږي او د زړو په وسیله به یې هغه له وریو سره یوځای کول چې جلا نه شي.

ما فکر وکړ چې که د ژوندیو کسانو په غابښونو د طلا یو پوښ راکاږل شي ممکنه ده د غابښونو د خرابېدا مخه ونیول شي. تر هغه وخته چې په طبس کې وم زما بېوزلي اجازه نه راکوله چې دغه ډول سینګار برابر کړم.

خو کله چې ازمیر ته ولاړم او سره او سپین راته بې ارزښته شول. نو په دې لټه کې شوم چې دغه موضوع تجربه کړم او پوه شوم چې په غابښونو د سرو زرو د یوه پوښ په راکاږلو سره هغوی له ورستېدا ساتلای شو. نوموړي پاچا چې د نور بدن د درملنې ترځنګ یې غوښتل د خپلو غابښونو درملنه هم وکړي. له ما سره موافقه وکړه، چې زه په طلایي پاڼې سره د هغه غابښونو ته پوښ جوړ کړم چې له خرابېدا وژغورل شي.

کله چې مې د هغه پورتني او ښکتني غابښونه په جلا جلا پوښونو سره ورښکلي کړل. نو ما ته یې وویل سینوهه! تا زما لپاره ډېر زحمت و ایست او زما غابښونه دې له خرابېدا وساتل، هغه اجوره چې تا ته مې درکړه. که څه هم زیاته ده خو ستا د پوهې په اندازه نه ده.

سره له دې چې زه دې د احسان پوروړی یم. له دې کبله چې زه یو رېښتونی سړی یم. نو تا ته وایم چې ستا وینځه غواړم. که دغه وینځه پر ما خرڅه کړې ښه بیه به یې درکړم. مګر که یې خرڅه نه کړې نو هغه به درڅخه وتښتوم او که مقاومت وکړې نو بیا به تا ووژنم.

ما تر اوسه پورې د سړي خورو د سیمې له کومې ښځې سره مستي نه ده کړې. باید ته خپله وینځه پر ما خرڅه کړې. چې له هغې سره ساعت تېری وکړم او پوه شم چې زموږ له تور سترګو ښځو سره تفریح ډېر خوند لري او که له یوې سړي خورې. شنې سترګې سره چې طلایي وېښتان لري.

کله چې پاچا دغه خبرې کولې زما مریي کاپتا چې سوریې ته له راتګه وروسته یې د سوریې له سوداګرو سره د بازار د ګرمېدا چل زده کړی و. هلته موجود و او ددې لپاره چې د معاملې بازار ګرم کړي او پاچا اړ کړي چې د وینځې په بدل کې ډېر څه راکړي، نو په نارو سورو یې پیل وکړ او ویې ویل. نن زما د بادار تر ټولو سپیره ورځ ده. کاشکې زه د مور له خېټې نه وای را وتلای او دغه ورځ مې نه وای لیدلې، ځکه چې پر دغې ورځ ته غواړې زما بادار د ساعت تېري له یوازېنۍ وسیلې څخه هم محروم کړې او هغه وینځه چې

هره شپه ورسره څملي له هغه واخلې.

زه پوهېږم چې بله هېڅ یوه ښځه به ددې وینځې په شان زما دبادار زړه خوشحاله نه کړي، ځکه چې ددې په شان بله ښایسته ښځه نشته. وګوره چې د هغې مخ د څوارلسم تر سپوږمۍ ښکلی دی او دوه سینې یې د ازمیر له سنترو ورې دي.

ایا د هغې ښوی نس چې هېڅ لوړوالی نه لري ګورې او د هغې د نوم نتوتلی ځای ګورې؟!

خیر شه! د دې ښځې پر بدن یو تار ویښته نشته، بدن یې د غوا تر شېدو سپین دی، تر باقلیو نرم دی، زه باور لرم چې خدایانو ټول ښایسته رنګونه راټول کړي او د دغې ښځې په اندام او څېرې کې یې کارولي دي، ځکه خو د هغې د سر ویښتان طلایي، سترګې یې شنې، شونډې یې سرې، نوکان یې د نکریزو رنګ لري، اندام یې سپین او د سینو دوه څوکې یې ګلابي دي.

کله چې زما مریي داسې بازار ګرماوه، نو پاچا داسې هیجاني شوی و، چې له ډېرې لېوالتیا یې ساه بنده بنده کېده او و یې ویل: سینوهه! زه پوهېږم چې ستا وینځه ډېره ښکلې ده. خو هرڅه چې وغواړې دربه یې کړم، که خرڅه یې نه کړې تا به ووژنم او دا به درڅخه واخلم.

ما خپل لاس پورته کړ چې، خپل مریي غلی کړم. هغه هم خپلې نارې سورې بندې کړې او دغه سرې ته یې چې په سوریه کې د (آمورو) سیمې باچا و وویل:

دغه ښځه پر ما ډېره ګرانه ده، که زه یې خرڅه کړم. له ځان سره به مې خیانت کړی وي، ځکه خو نه غواړم چې پر تا یې خرڅه کړم، خو چمتو یم چې خپله وینځه وړیا درکړم.

ددې لپاره چې زموږ دغه دوستي ستا په یاد وي. ددې دوستۍ په یاد یې خپله خور کړې او له هغې سره له ساعت تېرې خوند واخلې.

کله چې د آمورو باچا پوه شو چې زه خپله وینځه هغه ته وړیا ورکوم، نو ډېر خوشحال شو او نارې یې کړې، سینوهه! ما ګمان نه کاوه چې یوه مصري دې دومره سخاوت ولري.

له ماشوموالي تر ننه پورې چې ما څومره مصریان لیدلي، د فرعون مامورین ول، چې له موږ قلنګ اخلي او تل یې لاس د اخیستو لپاره اوږد شوی وي، دوی هېڅکله نورو ته د یوه شي د ورکولو لپاره لاس نه اوږدوي.

ته لومړنی مصري یې چې ماته دې ثابته کړه، شونې ده په مصر کې هم داسې کسان

وموندل شي، چې لاس یې خلاص لوسخیان وي او که یوه ورځ زما هېواد امورو ته راشې، نو ژمنه‌ در سره کوم چې تا به خپل ښي لوري ته کېنوم.

زما مریي وینځې ته جامې راوړې، هغې واغوستلې، د آمورو له باچا سره چې غښتلی ځوان و، او اوږده توره رېره یې درلوده، له کوره ووته.

کله چې وتله زه پوه شوم چې زما وینځه د دغه پیاوړي سړي له لیدلو څخه چې د هغې نوی بادار و خوشحاله ښکارېده.

له دې وروسته چې باچا ولاړ کاپتا زه ملامت کړم او ویې ویل ولې دې د امورو له پاچا څه وانه خیستل؟ په داسې حال کې چې هغه چمتو و هر څه چې ته وغواړې درکړي

ماوویل له دې امله مې دغه وینځه وربا ورکړه چې په راتلونکې څوک خبر نه دي او نه پوهېږي چې په دنیاکې به څه تېرېږي او د یو ستر دوست درلودل د سختو ورځو لپاره ښه وي.

ښایي یوه ورځ اړ شم، د دغه سړي هېواد ته ولاړ شم او هلته د دښمن له ګوابښونو خوندي پاتې شم.

که څه هم دغه سړی وړوکی هېوادلري او د هغه په تاتوبي کې له پسونو او خرو پرته بل څه نه پیدا کېږي، خو د هغه دوستي او ملګرتیا زما لپاره د خطر په وخت کې ډېره غنیمت ده.

دآمورو پاچا درې ورځې په ازمیر کې و او کله چې له دې ځایه روانېده نو د خدای پاماني لپاره ماته راغی او ویې ویل. سینوهه ! که تا د مصر ټول سره او سپین راکړي وای نو دومره به نه وم خوشحال شوی لکه چې دغه وینځه دې راکړه.

ځکه دغه وینځه تر ټولو هغو ښځو ښکلې او په زړه پورې ښځه ده چې تراوسه پورې ما لیدلې دي، زه باوري یم چې هېڅکله به له هغې څخه موړ نه شم.

که ته یوه ورځ زما هېواد ته راشې نوله دوشیانو پرته چې بل هرشی ته وغواړې دربه یې کړم او هغه دوه شیان یوه همدا وینځه او بل زما اس دي، ځکه چې زما په هېواد کې اسان ډېر کم دي او د ګوتو په شمار اسان لرو چې هغه زما د جنګي ګاډیو لپاره ضروري دي.

له دغو دوشیانو پرته چې ته هرڅه وغواړې درکوم یې او که هر څوک غواړې زه یې درته وژلای شم.

که په ازمیر کې هم څوک له تاسره دښمني لري وو ایه چې د خپلو کسانو په وسیله یې

په همدې ښار کې درته ووژنم. داړه او سه چې ستا نوم به وانه خیستل شي.

له دغو خبرو وروسته د آمورو باچا زه ښکل کړم او ولاړ.

له څو شپو وروسته چې له وینځې لیرې وم، دستومانۍ احساس مې وکړ، ځکه چې له هغې سره اموخته شوی وم او ځینې شپې به د ساعت تېرې او د هغې په یاد د ایشتار د الهې معبد ته تلم. خو د هغه ځای ښځو د یادې وینځې په شان زما ساعت نه شوای راتېرولای.

هوا ګرمه شوه او د پسرلي نیمایي فصل تېرشو. ګلان وغوړېدل، توتکیو الوته پیل کړ او کشتۍ د ازمیر په بندر کې حرکت ته چمتو شوې چې نورو هېوادونو ته ولاړې شي او له هغه ځایه شیان وینځې او مریيان راولي.

د پسرلي په نیمایي کې د ازمیر ښار له هیجانه ډک شو، ځکه چې له خاورو څخه د تموز د خدای د ایستلو وخت راورسېد.

د سورېې روحانیون هر کال د تموز خدای په مني کې خاورو ته سپاري او د پسرلي په نیمایي کې یې له خاورو راباسي.

پر هغې ورځ چې د تموز د خدای مجسمه یې له خاورو را ایستله په ازمیر کې عمومي جشن و او پر دغه ورځ نارینه او ښځې له ښاره وځي او بیدیا ته ځي.

ټولې ښځې او نارینه په دې ورځ په بیدیا کې په ښکاره ډول له یو بل سره څملي.

زه هم پر دغه ورځ بیدیا ته ولاړم چې پوه شم خلک څه کوي؟

ما ولیدل چې روحانیونو د تموز مجسمه له خاورو را وایستله، خلکو خوشحالۍ وکړې. نڅاګانې یې پیل کړې او ویل به یې د تموز خدای ژوندی شو ی دی او هغه د ګرمۍ خدای دی.

همغه ډول چې ځمکه او هوا ګرموي د انسان بدن ته هم تودوخه ورکوي او نارینه او ښځې یو بل ته اړتیا پیدا کوي.

کله چې یې د تموز خدای له ځمکې را وایست ما ولیدل چې یو شمېر ښځو یوه ګاډۍ راکشوله، په ګاډۍ کې له لرګي جوړه شوې د نارینه د بدن د یوه غړي مجسمه وه چې زه یې د نوم له ویلو شرمېږم.

زه حیران شوم چې د دغه کار هدف څه دی؟ خو وروسته مې و لیدل چې ناڅاپه نارینه او ښځې سره ګډې شوې او له دې پرته چې شرم وکړي له یو بل سره یو ځای شول چې دغه

حیواني عمل تر ماښامه روان و.

د ځینو قومونو د څارویتوب پته باید د دغو کارونو له لیدو ولګوو، ځکه چې په مصر کې چې یو متمدن ملت دی هېڅکله دغسې کار نه و شوی.

ځینو سپین سرو ښځو چې د ځان لپاره یې کوم کس نه و پیدا کړی له نارینه وو هیله کوله چې هغوی هم محرومې نه کړي او له دې کبله چې زه په هغه جشن کې یوازنی سیلاني وم، ډېرو به یې له ما هیله کوله چې ورسره مباشرت وکړم، خو ما به په کرکې سره له خانه شړلې او هغوی ته به مې ویل: خدایانو د ښځو لپاره یو وخت ټاکلی دی، کله چې د ښځې عمر له دې مرحلې تېر شي باید له هغه وروسته په دې فکر کې نه وي، چې له چاسره څملي، ځکه که خدای غوښتي وای چې ښځې دې د عمر تر پایه پورې له نارینه وو سره معاشرت وکړي نو د هغوی د شهوت لپاره یې حد نه ټاکه.

# یوولسم څپرکی

## (هورم هب)پخوانی اشنا

له دې جشنه وروسته د سوریې له سرحدونو خبر راغی چې خبیري قبایلو بیا حمله کړې ده.

د خبیري قبیلو برید نوې خبره نه وه ځکه د غو قبایلو به په هر پسرلي کې بریدونه کول خو په دې کال یې جرائت ډېر شوی و او هرځای ته چې رسېدل د مصر د پوځي چونیو عسکر یې وژل.

دوی به په ځینو سیمو کې حتی ځایي مشران هم وژل او په یوه واړه ښار کې یې باچا او د ښار ټول اوسېدونکي ان ښځې او ماشومان ووژل.

کله چې دغه خبر فرعون ته ورسېد له خبیري قبایلو سره د مبارزې لپاره یې یو لښکر له مصره سوریې ته واستاوه او زه پوه شوم چې د مصر د پوځ او د خبیري قبایلو ترمنځ به چې د سوریې خاورې ته ننوتي دي سخت جنګ وشي.

ما هېڅکله د جنګ میدان نه و لیدلی او د جنګ د ټپیانو له حالته خبر نه وم. زه په دې نه پوهېدم چې ګرز، توره، او نیزه په بدن کې څه ډول ټپ پیداکوي.

د جنګ په میدان کې د ټپیانو د حالت د مطالعې ضرورت اړ ایستلم چې دغه میدان وګورم او له همدې امله مې له ازمیر څخه حرکت وکړ او د سوېل پر لور ولاړم.

د اورشلیم په نوم په یوه واړه ښار کې د مصر له پوځیانو سره یو ځای شوم چې د نیل له ساحله راغلي ول.

. دغه پوځ دومره قوي نه و لکه چې مشهور شوی و، دوی یو درزن جنګي ګاډۍ او دوه زره غشي ویشتونکي او نیزه لرونکي درلودل.

کله چې زه هغه کمپ ته ننوتم ومې غوښتل چې قوماندان وګورم، پوښتنه مې وکړه چې د پوځ قوماندان څوک دی. ما غوښتل له هغه اجازه واخلم چې د جنګ په میدان کې طبابت او جراحي وکړم.

دوی راته وویل چې د پوځ قوماندان د هورم هب په نامه یو ښکلی ځوان دی.

ماغوښتنه وکړه چې د هغه قوماندانی او دفتر ته مې ورولي. کله چې مې هغه له لیرې ولید نو متوجه شوم چې هغه راته اشنا دی او کله چې رانژدې شو نو را یاد شو چې هورم هب څوک دی؟

دی هماغه ځوان و چې په کومه ورځ زه د مصر له ځوان ولیعهد سره د مصر بېدیا ته تللی وم، دی سهار وختي له خپل باز سره راښکاره شو او بیا د ولیعهد یانې د مصر د نوي فرعون په چوپړ کې ودرېد.

هورم هب زه وپېژندم او ویې ویل اوو...... سینوهه! ته دلته څه کوې؟ په مصر کې ټول وايي چې ته مړشوی یې او داسې اوازه خپره شوې ده چې د مور و پلار ښېرا چې تا یې قبر خرڅ کړی و نابود کړی یې.

بیا یې زما د برخلیک پوښتنه وکړه، ما د هغه وخت له اړتیا سره سم د خپل برخلیک په هکله ورته توضیحات ورکړل او ومې ویل، زه د نفر نفر په نوم دیوې ښځې قرباني شوم.

هورم هب وویل زه هم له دې ښځې سره ځملاستلای یم. هغې غوښتل زما شتمني هم ترلاسه کړي، خو ماستا اپوته خپل کور او د مور و پلار قبر خرڅ نه کړل. بلکې په دې متروکې سره مې چې زما په لاس کې ده هغه سمه کړه.

سینوهه! زه باید درته ووایم چې ښځه تر هغه وخته د درناوي وړ وي چې په یوې تمساح بدله نه شي او کله چې لکه یوه تمساح حریصه شوه باید له هغې سره د یوه ټیټ مریي په شان چلند وشي.

بیا ما د مصر او طبس د حالاتو په هکله پوښتنه وکړه او هورم هب وویل نه پوهېږم چې د مصر ملت څه ګناه کړې چې خدایانو دغه فرعون د هغوی باچا کړی دی؟ ځکه چې دغه فرعون عقل نه لري او لیونی دی. ددغه فرعون خدای چې هغه ترې دنده او امر ترلاسه کوي، دده په شان لیونی دی او داسې شیان وايي چې لیونو هم نه وي ویلي.

په یاد به دې وي چې کله دغه فرعون باچا شو ټول هغه مریيان یې خوشې کړل چې په کانونو کې یې کار کاوه.

او ایا اورېدلي او یا دې لیدلي چې د مریيانو ازادي کومه بلا رامنځته کړه او څه ډول مونږ ددې لپاره چې په طبس کې امنیت راولو مجبوره شوو چې هغوی ووژنو.

ومې ویل هو! کله چې مریيان له کانونو را ووتل زه هم په طبس کې وم او ومې لیدل چې څه ډول یې د مړیو په ښار برید وکړ او ټول شیان یې لوټ کړل

هورم هب وویل سره له دې چې فرعون ولیدل، له کانونو څخه د مریيانو ازادي څومره لویه بلا او فتنه رامنځته کړه. خو بیا هم له خپلو خبرو او کارونو نه اوړي او وایي چې د یوه مریي او شهزاده ترمنځ توپیر نه شته او مریيان او اشرافان د هغه د خدای په نزد یو شان دي.

ددې مانا دا ده چې څوک وایي اوربشې او شات یو شان دي او توپیر نه لري.

ددغه فرعون یوه نوې خبره دا ده چې ماته وایي خبیري قبایل داسې رام کړه چې وینه تویه نه شي.

ایا دا ممکنه ده چې له ویني بهېدا پرته وحشیان رام کړو؟ سینوهه! زه تا ته وایم، ته یو ډاکټر یې، ایا له ویني بهېدا پرته د ناروغ خېټه څېرلی او اضافي کولمه یې رااېستلای شې چې سړی مړ نه کړي؟

فرعون ددغو قومونو جنګي غړونه چې د وحشي حیواناتو له غړونو بد دي، نه دي اورېدلي چې پوه شي له دوی سره نرم چلند نه شي کېدای.

له دې خبرې وروسته هورم هب وخندل او ویې ویل. خو زه د فرعون خبرو ته غوږ نه ږدم او د دوی وینه به داسې وبهوم چې ټول به پښېمانه شي چې ولې له موره پیدا شوي دي؟

ما فیصله کړې چې ددې قبیلې ریښه داسې وسوځوم چې په راتلونکې کې هېڅکله خبیري قبیله ونه کړای شي چې په مصرلي کې یرغل وکړي.

خو سینوهه! زه ستا د احسان پوروړی یم، ځکه چې زه هېڅکله هغه ورځ نه هېروم چې مونږ له ولیعهد سره له بیدیا ستنېدو نو هغوی نیت کړی و چې ما ووژني. خو تا پخپلو خبرو سره زما د وژنې مخه ونیوله، په دې ورځ تا په خپلې هوښیارۍ سره زما ژوند وژغوره.

له همدې امله زه تا ته هرکلی وایم چې زما پوځ ته راغلې او ته کولای شي په جګړه کې راسره ګډون او د عسکرو علاج وکړې.

ستا تنخوا به د فرعون له جیبه درکړم. هرکله، چې زه وزګار وم ته به له ما سره یې او له ماسره به ډوډۍ خورې.

بیا هورم هب د شرابو جام پر سر واړاوه او زیاته یې کړه، کله چې طبس ته د خبیري قبیلو د حملې خبر ورسېد او فرعون وغوښتل سوریې ته لښکرې واستوي، نو په طبس کې موجود یو قوماندان او لښکر مشر چمتو نه شو چې ددې لښکر مشري پر غاړه واخلي.

ددې لپاره چې پوهېدل خبیري قبیله خونړۍ او جنګي خلک دي نو هر یو لښکر مشر په

یوې پلمې د لښکر له مشرۍ ډډه وکړه.

ځکه چې دوی نه یوازې له خپله مرګه وېرېدل بلکې پر دې هم پوهېدل چې له سرو او سپینو به لېرې شي.

ددې لپاره چې د سوریې په دښتو کې سره او سپین نه پیدا کېږي او ددې اپوټه د فرعون په شاوخوا کې سره او سپین ډېر وي.

سره له دې چې زه د فرعون له ټولو قوماندانانو ځوان یم، خو دغه ماموریت او دنده مې ومنله. لامل یې دا و چې د خبیریانو خطر ختم کړم او داسې کار وکړم چې نور ونه کړای شي په سوریې حمله وکړي.

د فرعون لښکر مشران ډېر شتمن دي او د امون له کاهنینو سره شریکان دي. دوی هڅه کوي چې د امون د خدای نفوذ له منځه ولاړ نه شي.

نن سبا په مصر کې د فرعون د خدای یانې آتون او د مصر د پخواني خدای (آمون) ترمنځ ستره مبارزه پیل شوې او لا معلومه نه ده چې په دې مبارزه کې به څوک بریالی شي؟

فکر کوم د مصر ستر قاضي او د آتون د خدای کاهن (آمي) لټه کوي چې په دې کار کې د فرعون ملاتړ وکړي.

فرعون پوهېده چې په مصر کې د آمون خدای دومره پیاوړی شوی دی چې د امون کاهنین د فرعون حکم ته غاړه نه ږدي او که د فرعون کوم امر د خپلو ګټو په خلاف وبولي نو د آمون له لوري یو حکم صادروي چې د فرعون حکم پرې لغوه کړي.

فرعون او ستر قاضي چې له دې زیات د امون د خدای او د هغه د کاهنینو باچاهي نه شي زغملای اوس په دې لټه کې دي چې د آتون خدای دومره لوی کړي چې آمون له منځه لاړ شي.

له همدې امله یې ماته امر کړی چې په دغه سفر کې چې هر ښار ته ننوځم د آتون د خدای لپاره یو معبد جوړ کړم او ما لومړنی معبد دلته په اورشلیم کې جوړ کړ.

زه نه د آمون او نه د آتون په خدای عقیده لرم، خو فکر کوم چې فرعون دلته تېروتنه نه کوي او د هغه سیاست سم دی. ځکه دا د منلو نه ده چې مصر دې فرعون هم ولري خو د آمون کاهین دې د هغه پر ځای حکومت وکړي.

مقصد مې دادی چې د مصر سرلښکریان او قوماندانان له دې امله چې د آمون نه کاهینو سره یو لاس شوي دي او اوس خپلې ګټې په خطر کېویني نو نه غواړي چې په دې حساس وخت کې له مصره لیرې وي او له خپلو ګټو دفاع ونه شي کړای او که په مصر کې له

سیاسي بدلونونو څخه نه ډارېدلې ښايي يوه پکې د دغه لښکر مشري کړې وای او له مصره به وتلي وای او سوريې ته به راغلي وای.

ما وويل چې د فرعون له سياست سره مخالفت نه لرم، بلکې هغه ته حق ورکوم چې لټه وکړي د آمون د کاهنينو قدرت کم کاندي او هغه شی چې ما ته د منلو نه دی دا دی چې فرعون وايي. زه غواړم له حقيقت سره باچاهي وکړم او زه دغه موضوع خطرناکه بولم.

ددې لپاره چې حقيقت د يوې تېرې تورې په شان دی، چې هېڅکله يې بايد يوه ماشوم ته ورنه کړو دا خو لا پرېږده چې د فرعون په شان يوه ليوني ته يې ورکوو.

کله چې شپه شوه ما د هورم هب کېږدۍ ته نژدې په يوې کېږدۍ کې استراحت وکړ او کله چې سرتېري پوه شول، چې زه ډاکټر يم هڅه يې کوله چې له ما سره ملګري شي. ځکه چې هر عسکر هڅه کوي د يو ډاکټر ملګرتيا خپله کړي، چې د جنګ په ميدان کې هغه معالجه کړي

بله ورځ سهار نغارې ووهل شوې، عسکر يې له خوبه پاڅول او هر قوماندان د خپلو عسکرو په مخکې ودرېده.

کله چې د عسکرو کتارونه منظم شول هورم هب چې يوه متروکه يې په لاس کې وه، له خپلې کېږدۍ بهر شو. يوه مريي يې پر سر چترۍ نيولې وه او بل مريي ورته پکې واهه چې مچان ترې وشړي

هورم هب د عسکرو پر وړاندې داسې وينا وکړه:

((اې د مصر سرتېرو، چې په تاسو کې چټل تورپوستي او د سوريې تنبل نيزه لرونکي هم شته او ټول د مصر د پوځ غړي دي او دغوايانو د يوې پادې په شان نارې وهي.

زه نن نيت لرم چې تاسې د جنګ ډګر ته بوځم او وګورم چې ايا له خبيريانو سره جنګېدلای شئ او کنه؟ که له هغوی سره د جنګ وس ونه لرئ هيله کوم چې تر وروستي کس پورې ووژل شئ چې مجبور نه شم ستاسې منحوس بدنونه له ځان سره مصر ته يوسم او زه به تنها او يا هم له يوه ټولي رينښتونو سرتېرو سره مصر ته ولاړ شم.

اې.... ټولی مشره چې پوزه دې سورې ده، خپل هغه ناپوه عسکر ته يوه لغته ورکړه چې خپله شاګروي چې پوه شي کله چې زه خبرې کوم دی دې خپله شا نه ګروي.

نن کله چې موږ پر خبيريانو بريد کوو زه به تر ټولو مخکې راون يم، ستاسې په مخکې به له خبيريانو سره جنګېږم او زه به ستاسې هر يوه ته پام کوم، چې وګورم کوم يو د جنګ

له ډګره شاتګ کوئ او یا سم نه جنګېږئ.

تاسې ته ډاډ درکوم چې نن شپه به زما له دې متروکې وینه څاڅي، دغه وینه به د هغو کسانو له بدنه وباسم چې د جنګ په ډګر کې ښه ونه جنګېږي او ښه پوه شئ چې زما متروکه د خبیریانو له نیزې خطرناکه ده، ځکه چې د هغو نیزې مسي څوکې لري او څوکې یې ژر ماتېږي.

خبیریان ددې غره ترشا دي چې تاسې یې ګورئ او بېګاه زما د کشف مامورین تللي ول چې معلومه کړي د دوی شمېر څو دی؟ خو ډارېدلي ول او تښتېدلي دي، دوی بریالي نه شول چې د هغوی شمېر معلوم کړي.

خبیریان یوازې یو ویروونکی شی لري او هغه د دوی غږ دی، خو که د هغوی له غږه وېرېږئ نو پخپلو غوږونو کې د مټ ختېه کېږدئ چې غږ یې وانهورئ.

البته دغه ختېه ددې سبب هم کېږي چې د خپلو قوماندانانو غږ وانهورئ نو غوره ده چې له دغه کاره تېر شئ!

هغه کس به سخت پښېمانه شي چې له ښې پرته غشی وولي او هغه کس به هم پښېمانه شي چې د خپل مشر له امر سره سم غشي ونه ولي.

په جنګ کې بریالیتوب یوازې په مېړانه کې نه دی، بلکې په دې کې هم دی چې عسکر د خپل مشر امر ته غاړه کېږدي.

که تاسې نن بریالي شوئ، نو د خبیریانو ټول شیان، پسونه او غواګانې به ستاسې شي زه به پخپله نه یوه کړۍ مس، نه هم سپین زر او چت کړم او نه به یو پسه واخلم.

نن سبا خبیریان ډېر شتمن شوي ځکه چې هغوی ډېر کلي او باندې لوټ کړي او د هغوی ټوله شتمني به د بریالیتوب په وخت کې ستاسې شي.

که بریالي شئ د هغوی ښځې به هم نن شپه ستاسې شي، خو که ماتې وخورئ، زما خونړۍ متروکه به نن شپه ستاسې هر کلی وکړي))

کله چې سرتېرو دغه خبرې واورېدې خپلې تورې او نیزې یې له زغرو سره وجنګولې، خپلې لیندۍ یې وښورولې او خپل هیجان یې ننداري ته وړاندې کړ.

هورم هب وویل داسې ښکاري چې تاسې غواړئ ډېر ژر له خبیري قبیلو سره وجنګېږئ، خو له دې مخکې چې موږ د جنګ ډګر ته ولاړ شو، باید په دې ځای کې د فرعون د خدای لپاره یو معبد جوړ کړو.

د آتون په نوم د فرعون خدای جنګي خدای نه دی او ستاسې په کار نه راځي، ځکه خو له تاسې سره مرسته هم نه شي کولای.

نو ضروري نه ده چې ټول د معبد د جوړولو لپاره دلته پاتې شئ. یوازې د پوځ شاتني کسان کفایت کوي او پاتې همدا اوس روانېدای شئ.

تاسې باید نن مزل وکړئ چې خیبري قبیلو ته ورسېږئ، خو پوه شئ چې کله هغوی راوسېدل زه به تاسې ته د استراحت اجازه درنه کړم او که ستړي هم یاست باید له هغوی سره جنګ وکړئ چې ونه تښتي.

له هغه وروسته هورم هب خپله متروکه وښوروله، سرتېرو حرکت وکړ او د خپلو بیرغونو او نخښنو ترشا روان شول.

د ځینو عسکرو د ټولیو نښه د زمري لکۍ وه او ځینې ټولي د تمساح د سر په نښې پسې روان ول.

د پوځي ټولیو په مخ او شاکې جنګي ګاډۍ روانې وې چې د هغوی ملاتړې وي او پرې نه ږدي چې پر هغوی ناڅاپه حمله وکړي.

کله چې عسکر روان شول هورم هب او د پوځ شاتني کسان له یو شمېر صاحب منصبانو سره د هغه ځای پر لور ولاړل چې هلته د آتون معبد جوړېده. زه هم له هغوی سره ولاړم.

د تګ پر مهال مې واورېدل چې افسران له یوه بل سره غږېږي او وایي دغه بدعت چې نن هورم هب وکړ هېڅ د منلو نه دی.

تر هغه ځایه چې موږ لیدلي دي د جنګ په وخت کې پوځي قوماندانان د لښکر ترشا ځي او په تختونو کې له شا ګوري چې کوم عسکر ونه تښتي او اوس هورم هب وایي چې هغه به له لښکرو او سرتېرو سره یو ځای د دښمن پر ضد جنګېږي.

نو موږ هم مجبوره یو چې د هغه پیروي وکړو او د عسکرو په مخکې لاړ شو.

په دې بڼه کې به د تښتېدنکو عسکرو مخه څوک نیسي او څوک به د هغوی عملونه لیکي؟

ځکه چې عسکر خو پخپله سواد نه لري چې د خپلو ملګرو کارونه ولیکي. یوازې صاحب منصبان لیکل کولای شي، چې کوم عسکر مېړانه کړې او کوم یو ډارن و یا تښتېدلی دی.

هورم هب چې مخکې و دغه خبرې یې اورېدلې او کله خو به یې خپله متروکه ښوروله، تر دې چې معبد ته ورسېدو.

# دولسم څپرکی

## (د مصریانو لپاره) یوغیر عادي خدای

معبد وړوکی و او د وخت د کمي له امله یې ونه کړای شول چې د هغه چت جوړ کړي یوازې لرګي او مټه خټه یې وکارولـه او یوه ودانۍ یې جوړه کړه.

کله چې موږ د معبد مخې ته ورسېدو ومو لیدل چې په منځ کې یې د خدای مجسمه نشته د پوځ شاتني سرتېري د خدای د نه شتون له امله حیران شوي ول او یوبل ته یې ویل دا څه ډول معبد دی چې خدای نه لري.

زه هم د سرتېرو په څېر هک پک پاتې وم. ځکه چې تر هغه وخته پورې مې له خدایه پرته معبد نه و لیدلی او هر ځل چې هر معبد ته ننوتم کتل مې چې د یوه خدای مجسمه هلته شته.

هورم هب چې ولیدل ټول حیران شوي یو، نو ویې ویل هغه خدای چې زموږ فرعون یې عبادت کوي یو عجیبه خدای دی چې زه هغه تاسې ته نه شم معرفي کولای ځکه زه پخپله هم نه پوهېږم چې دغه خدای څه ډول دی.

دغه حیرانوونکی خدای نه سترګې لري، نه خوله او نه خېټه ،لاس او پښې لري خواړه نه خوري ، شراب او د اوربشو اوبه نه څښي او فرعون وايي چې د هغه خدای د انسان په شان نه دی او نه لیدل کېږي. خو که تاسې غواړئ هغه وپېژنئ ممکنه ده دلمر په شان یو ګرد شی له ځان سره مجسم کړئ (*مقصد نالیدلی او واحد خدای دی او تاریخ د دې نبودنه کوي چې دغه فرعون دلومړي ځل لپاره د توحید پرستی تبلیغ کړی دی ژباړن* ) سرتېري ستانه شول او لمر ته یې وکتل. د دوی رضایت نه و حاصل شوی او له ځانونو سره بونګېدل.

زما پام و چې ویل یې فرعون لیونی شوی ځکه تر هغه چې یو کس لیونی نه شي د هغه خدای عبادت نه کوي چې لاس ،پښې ، خېټه، خوله او سترګې نه لري.

هورم هب هم د خپلو سرتېرو په شان فکر کاوه او فرعون یې لیونی باله.

بیایو ځوان کاهن چې د سر وېښتان یې نه وو خریلي او د کتان کمیس یې اغوستی و

راغی، په معبد کې یې یو ګړی شراب ، په یوه لوښي کې د زیتون تیل او یوه کوده پسرلني بوټي کېښودل او بیا یې یوه سندره پیل کړه چې ویل یې فرعون دغه سندره د خپل خدای لپاره ویلې ده.

موږ ددې سندرې په هکله په څه پوی نه شوو او سرتېري چې بې سواده وو هغوی هم په څه پوی نه شول.

په دې سندره کې دا خبره کېدله چې آتون داسې خدای دی چې نه لیدل کېږي، خو په هرځای کې دی.

پخپلې رڼا او تودوخې سره ځمکه روښانه کوي، هغې ته تودوخه ورکوي او ټولې ځمکې، د نیل سیند ټول نعمتونه او خوښي د هغه له امله دي.

دغه راز یې وویل، که آتون نه وي، زمری د شپې مهال ښکار نه شي کولای، مار له خپلې سوړې او دغه راز چرګوړی له هګۍ نه شي راوتلای.

هغه زیاته کړه که آتون نه وي مینه نه رامنځته کېږي، هېڅ یو نارینه نه شي کولای کومه ښځه خپله خوږ کړي او هېڅ یو ماشوم به د مور له نسه پر ځمکې پښه کېښږدي.

ځوان کاهن له دغو خبرو وروسته وویل، د مصر باچا د خدای زوی دی او د خپل پلار په شان په مصر او پر هغو هېوادونو پاچاهي کوي چې د مصر تر واکمنۍ لاندې دي.

کله چې سرتېرو دغه خبرې واورېدې خپلې تورې او نیزې یې په خپلو زغرو ووهلې او په دې ډول یې خپله خوښي وښودله، ځکه هغوی یوازې په دې برخې ښه پوی شول.

دوی پوهېدل، په دې کې شک نشته چې فرعون د خدای زوی دی چې تل همداسې ول او په راتلونکې کې به تل د مصر فرعون د خدای زوی وي.

په دې ډول د آتون د معبد د پرانستلو کارپای ته ورسېد او بیا موږ روان شوو.

له موږ څخه زما مقصد د پوځ شاتني سرتېري ، او د هورم هب په مشرۍ صاحب منصبان دي.

هورم هب پخپلې جنګي ګاډۍ کې ناست تر پوځ مخکې روان و او له هغه وروسته یو شمېر افسران روان ول، ورپسې سرتېري او ترشا یې یو شمېر نور افسران روان ول.

ځینې افسران په جنګي ګاډیو او ځینې پر راوانو تختونو سپاره ول، خو زه پر یوه خره سپور شوم او د جراحۍ د وسایلو او درملو صندوق هم راسره و.

موږ تر هغه وخته روان وو، چې سیوري لوړ شول او یوازې د ورځې په نیمایي کې د

دوی لپاره ودرېدو.

پخه شوې باقلې او پر سر یې اچول شوي د زیتون تېل مو وخوړل. کله چې خو به ستومانه او معیوبه سرتېري چې له لارې به پاتې شول د لارې په څنډو کې کېناستل خو هغو افسرانو به چې له شاروانول په متر کو ووهل.

یوځل مې ولیدل چې د یو افسر جنګي ګاډی د یوه سرتېري په مخکې چې له ستومانۍ د لارې په څنډه کې ناست و، ودرېده، دغه افسر له خپلې ګاډۍ ورټوپ کړه او په دواړو پښو د سرتېري په خېټه کې ودرید.

دغه سرتېری د افسر د دغه ګوزار له امله ځای پر ځای مړ شو، خو هېڅا اعتراض ونه کړ. ددې لپاره چې د جنګ ذکر ته د تللو لپاره اجیر شوي سرتېري تنبلي ونه کړي.

کله چې سیوري لوړ شول موږ هغو غونډیو ته ورسېدو چې د یوې غرنۍ سیمې پیل ګڼل کېدې. ناڅاپه په سرتېرو د غشو باران جوړ شو او معلومه شوه چې یو شمېر خبیریانو په دغو غونډیو کې زموږ په سرتېرو غلچکی برید کړی.

د غشو د باران له امله هغه سرتېري چې سندرې یې ویلې غلي شول خو هورم هب دغو غشو ته اهمیت نه ورکاوه، له دې امله چې موږ د پوځ له مهمې برخې سره یوځای شوي وو او د لښکر مخکیني او شاتني ځواکونه او د هغه زړه سره یوځای و، نو هورم هب امر وکړ چې سرتېري دې ګړندي شي او له دې ځایه دې لیرې شي. ددې کار موخه دا وه چې د خبیري ځواکونو پر اصلي برخې حمله وکړي او د لارې په دواړو غاړو کې له خبیري غشي ویشتونکو سره په مبارزې خپل وخت تېر نه کړي.

زمونږ جنګي ګاډیو په یوه برید کې غشي ویشتونکي له لارې لیرې کړل او موږ خپله لاره ووهله.

زما په څنګ کې یو افسر چې د پوځ د خوړو او د حیواناتو د وښو مسول و پر یوه خره سپور و. له دې امله چې له سهاره تر بېګا له یو بل سره وو نو له ما سره ملګری شو، له ما یې غوښتنه وکړه چې که ووژل شو داسې یو کار وکړم چې جنازه یې له منځه ولاړه نه شي او دهغه خپلوانو ته یې ورسوم چې مومیایي یې کړي.

هغه به ویل خبیریان ډېر زړه ور او بې رحمه دي او د شپې تر را رسېدا پورې به موږ ټول ووژني.

د ورځې ځلورمه برخه لا پاتې وه چې د غونډیو په منځ کې یوه پراخه دښته راښکاره

شوه او معلومه شوه چې خبیریانو هلته پنډغالی جوړ کړی دی.

تر کومه ځایه چې سترګو کار کاوه هومره توري کېږدۍ یوه په بلې پسې ولاړې وې، دکېږدیو په مخکې خبیریانو له زغرو او ځلانده نیزو سره چیغې وهلې او د دوی غږ په بیدیا کې داسې انګازه کوله چې په زړونو کې یې وېره ګډوله.

هورم هب خپل سرتېري منظم کړل نیزه لرونکي یې په منځ، غاښه لرونکي یې په دواړو غاړو کې ودرول او بیایې ټولو جنګي ګاډیو ته وویل کله چې ما امر وکړ نو حمله وکړئ او موږ به ستاسې ترشا حرکت وکړو.

څوغتې ګاډۍ یې له ځان سره وساتلې او امر یې وکړ چې تل به له ده سره وي او له هغه به نه لیرې کېږي.

هورم هب چې پوه شو د هغه سرتېري د خبیریانو له نارو او چیغو او د هغوی د نیزو او زغرو له برېښنا وېرېدلي دي. نو ناري یې کړې: اې د مصر او سوریې نارینه وو! او اې تورپوستو چې د مصر د لښکر یوه برخه یاست له دغو نارو سورو مه وېرېږئ.

دغه نارې تاسې ته زیان نه شي رسولای او پوه شئ چې د خبیري سپاهیانو شمېر هم ډېر نه دی.

دغـه کېـږدۍ چـې ګـورۍ د دوی د ښـځو او ماشـومانو ځـای دی او د هغـه لـوګي ددې ثرګندونه کوي چې. خواړه پخوي.

که تاسې مېړانه وکړئ نن شپه به د هغوی خواړه وخورئ او د خبیریانو ښځې به ستاسې وي.

زه هم لکه یو وږی تمساح داسې شوی یم او غواړم جنګ ډېر ژر زموږ په ګټه پای ته ورسېږي چې وکړای شم د هغوی خواړه وخورم.

تر دې وروسته چې هورم هب د حملې امر وکړي خبیري سپاهیانو چې سختې چیغې یې وهلې پر موږ حمله وکړه او مالیدل چې د هغوی سرتېري تر موږ ډېر دي.

کله چې زموږ نیزه لرونکو ولیدل چې هغه وېرونکي سرتېري را نژدې کېږي. نو شاته یې وکتل او ما هم د هغوی په شان شاته وکتل چې پوه شم له کومې لارې تېښتېدلای شم.

خو زموږ ترشا یـوازې افسـران ول چې پخپلو مترکو یې ډېرې تړلې وې او هغه یې ښورولې.

د دوی تورې هم برېښېدلې او زموږ سرتېري پوهېدل چې د تېښتې لاره نشته. پردې

سرببره ټول وړي او تړي وو او فکر یې کاوه چې که وتښتي خبیري سرتېري به په بیړه ور ورسېږي او هغوی به قتل عام کړي.

له دې امله یې تېښتې ته زړه ښه نه کړ او دومره سره نژدې شول چې ترمنځ یې واټن نه و او ان یوخس یې هم په منځ کې نه شو تېرېدای.

کله چې موږ ته نژدې شول خبیري غشي ویشتونکو خپل غشي وویشتل، له دې امله چې دغشو ووززز ...... ووززز ... اوازونه ډېر وېرونکي ول او مرګ هره شېبه انسان ګواښي، زه د هغوی له غړونو وویرېدم. ځکه چې داسې منظره مې لیدله او داسې غړونه مې اورېدل چې تر او سه پورې مې نه لیدلي ول او نه اورېدلي.

په دې وخت کې هورم هب خپله متروکه وایستله او ویې ښوروله. نغارې ووهل شوې، شېبه وروسته ګړندۍ ګاډۍ، وخوځېدې! او د هغو ترشا زموږ ټولو سرتېرو حرکت وکړ ،داسې نارې یې وهلې چې ما کتل د دوی غږ د خبیري سرتېرو تر غړونو اوچت و.

زه پوهېدم چې زموږ سرتېرو د دې لپاره چې وېره له ځانه لیرې کړي نارې وهلې او ما هم د هغوی په شان چیغې وهلې او د نارو په وخت کې مې احساس وکړ چې نه وېرېږم.

سره له دې چې خبیري سرتېري زړه ور ول خو جنګي ګاډۍ یې نه درلودې او زموږ ګاډیو د هغوی ترمنځ یوه لیکه او درز جوړ کړ چې د نیزه لرونکو لپاره یې لاره خلاصه کړه.

کله چې زموږ نیزه لرونکي دغه درز ته ننوتل د هورم هب د امر له مخې زموږ غشي ویشتونکو د دښمن لښکر په غشو وویشت.

له دې وروسته د دواړو لورو سرتېري سره یوځای شول، خو له لېرې د شتر مرغ له لوړې بڼکې سره د هورم هب وسپنیزه خولۍ ښکارېده او همغه راز د ټولو سرتېرو په مخکې جنګېده.

زما خر د جنګ د ډګر له شور ماشوره وېرېدلی واو ځان یې د جنګ د ډګر منځ ته واچاو. ما هڅه وکړه چې مخه یې ونیسم خو بریالی نه شوم. ومې لیدل چې خبیر ي سرتېري په زړورتیا سره جنګېدل او چې پر ځمکه به ولوېدل هڅه به یې کوله چې په تورې یا نیزې سره زموږ سرتېري او اسونه له منځه یوسي.

هرلور ته مې چې کتل وینې مې ترسترګو کېدلې او پر ځمکه دومره مړي او ټپیان پراته وو ، چې شمېرلای مې نه شول.

نابېره خبیري سرتېرو چیغې ووهلې او شاتګ یې وکړ، علت یې دا و چې زموږ جنګي

ګاډیو د هغو لیکې ماتې کړې وې، ځانونه یې د هغوی خیمو ته رسولي ول او هغو ته یې اور ورته کړی و. کله چې خبیریانو کتل چې ښځې، ماشومان، پسونه او غواګانې یې په خطر کې دي نو د هغوی د ژغورنې لپاره د کېږدیو پر لور ولاړل او همدا موضوع د هغوی د تباهي سبب شوه، ځکه چې زموږ ګاډي د هغوی لور ته ستنې شوې، زموږ سرتېري هم له شا را ورسېدل او خبیریان د دوو حملو کوونکو ډلو له لوري قتل عام شول.

وروسته له ټول شجاعت سره سره ژوندي پاتې کسان وتښتېدل چې روغ ووځي.

هر خبیري سرتېری به چې ووژل شو پلټل کېده او زموږ سرتېرو به هر هغه شی ترې اخیست چې د استفادې وړ به و.

دوی به د مړو یو-یو لاس هم ترې غوڅاوه چې له جنګه وروسته یې د مصریانو په کمپ کې د لښکر د مشر د مقام پر وړاندې یو پر بل واچوي.

له دې وروسته چې پوه شول خبیریانو ماته خوړلې ده او نور مقاومت نه شي کولای نو زموږ په سرتېرو د سړي وژنې غوصه برلاسې شوه او هر ژوی به یې واژه، ان د کوچنیانو مازغه یې په ګورز، باد باد کړل.

زموږ له سرتېرو څخه ان غواګانې، اسونه او پسونه هم خوندي نه ول.

تردې پورې چې هورم هب د جګړې د بندولو امر وکړ او ویې ویل هغه کسان دې نور نه وژل کېږي چې له جګړې څخه ژوندي پاتې دي. نوموړي وویل ژوندي پاتې کسان دې اسیران او خرڅ کړای شي.

زما خره د جنګ تر پایه پورې آخوا دېخوا منډې وهلې او ترپیده.

ما په ډېرې سختۍ سره ځان پرې ټینګ کړی و چې پر ځمکه ونه لوېږم.

بالاخره زموږ یوه سرتېري د خپلې نېزې په لاستي د خره وربوز ته ګوزار ورکړ، هغه یې کرار کړ او زه ترې کوز شوم.

سرتېرو چې پر دغې ورځ ولیدم چې خره زه کړولی یم، نو له هغه وروسته یې پر ما ابن الحمار نوم کېښود.

په داسې حال کې چې زموږ سرتېرو د پسونو، آسانو او غواګانو د ټولولو او خبیري قبایلو د شیانو د لوټولو او د هغوی د ښځو د ضبطولو په حال کې ول.

ما د جنګ په میدان کې له یو شمېر سرتېرو سره د ټپیانو معالجه کوله او کله چې شپه راغله ما د لارې یوې او بلې خوا ته د بلو اورونو په رڼا کې د ټپیانو درملنې ته دوام ورکړ.

د خبیري سرتېرو ګرزونو ،نېزو او تورو زموږ یو شمېر سرتېري سخت ژوبل کړي ول او ما باید دهغوی د معالجې لپاره هڅه او بېړه کړې وای.

په داسې حال کې چې زموږ ټپیان د سختو دردونو له لامله څورېدل د کمپ له شاوخوا ساندې تر غوږ کېدلې، دا د هغو ښځو ساندې او نارې وې چې زموږ سرتېرو هغه پخپلو کې سره وېشلې او له هغو یې استفاده کوله.

کله کله به اړ شوم د یوه ټپي د سر او ښتې پوستکی بېرته د هغه پر سر ور وګنډم. کله به مې د بل سرتېري کولمې د هغه په خېټه کې ځایولې او خېټه به مې ور ګنډله.

کله چې به مې کتل د یوه ټپي د رغېدا هیله نشته، نو په رګونو کې به مې ډېر اپیم ور ننه ایستل. د اوربشو ډېرې اوبه (بیبر) به مې پرې وڅښل چې د درد له احساسه پرته مړ شي.

ما یوازې د مصري سرتېرو معالجه نه کوله بلکې د زړه سوي له امله مې خبیري سرتېري هم معالجه کول.

ما چې کله د څو خبیري سرتېرو ټپونه ور وتړل په دې وخت کې د هغوی د ښځو چیغې پورته شوې او دوی یې غږونه اورېدل.

پر دغو ښځو باندې زموږ سرتېرو تېری کړی و ، دغو ټپیانو هغه پټې بېرته لېرې کړې چې ما پر زخمونو ور تړلې وې نو ځکه وینې ترې ولاړې او ډېرې وینې له بهېدا څو شېبې وروسته ومړل.

ما له دې امله پر خبیري سرتېرو زړه خوږاوه چې پوهېدم د مصر سپاهیانو پرې یرغل کړی او دا د فرعون او د مصر د پوځ لپاره ویاړ نه دی ځکه چې خبیریان پوځي کسان نه وو، بلکې کوچیان قبایل، لوږې هغوی لوټمار او چور ته اړ کول او د سوریې د نورو اوسېدونکو په شان د مصر د فرعون تر حمایت لاندې ګڼل کېدل.

د خواشینۍ یوه خبره دا وه چې کتل مې ټول خبیري سرتېري په سترګو معیوب، او ما پکې یو کس و نه موند چې روغې سترګې ولري، وروسته راته جوته شوه چې د هغوی په منځ کې د سترګو ساري ناروغي خپره شوې وه او ټول پرې اخته ول.

پر دغې شپه ټولو سرتېرو استراحت وکړ او یوازې ساتونکي ویښ ول ځکه چې دا ویره وه چې کېدای شي تښتېدلي خبیریان ، بیا پر موږ حمله وکړي.

خو خاصه پېښه ونه شوه، زه تر سهاره پورې د ټپیانو په درملنه بوخت وم او سهار چې کله هورم هب له خوبه راویښ شو، پوه شو چې تر سهاره ویښ وم ، وروسته یې ور

وغوښتلم او ویې ویل پرون مې ولیدل چې ته له وسلې پرته په ډېرې زړورتیا د جنګ ډګر ته ننوتې خو باید درته ووایم چې د جنګ په ډګر کې د یوه ډاکټر دنده له جنګه وروسته پیلېږي او ضروري نه ده چې هغه ځان له کړکېچ سره مخامخ کړي.

له دې وروسته هرځل چې جنګ ته ځو ته استراحت وکړه تر دې چې جنګ پای ته ورسېږي او له هغه وروسته د ټپيانو معالجه پیل کړه.

له دې امله چې ډېر ستړی وم هورم هب د زړو یو امیل راکړ او ویې ویل دا ستا د پرونی زړورتیا او بېګانی ښېخوبی انعام دی خو اوس ولاړشه او ویده شه.

سره له دې چې ستړی وم احساس مې نه کاوه چې ویده به شم. کله چې د سهار لمر را وخېژي د سړي له ستړګو خوب کډه کوي.

کله چې مې له هورم هب سره ولیدل نو مې ورته وویل. پرون مې ولیدې چې د سرتېرو په مخکې پر له پسې جنګېږې سره له دې چې تول ځواکونه تاته متوجه ول او ټول پوهېدل چې ته د مصري پوځ قوماندان یې بیا هم په تا یو غشی ونه لګېد.

هورم هب وویل د دې لپاره چې زما باز تل زما پر سر الوت کوي او تل مې له خطره ساتي نو هېڅکله به غشی پر ما ونه لګېږي او د دښمن هېڅ سرتېري به ونه کړای شي چې ما په غشي یانېزې ووهي.

له همدې کبله کله چې زه د نورو له نظره یو زړه ور کس ګڼل کېږم د غرور او خوښی احساس نه کوم دا د دې لپاره چې زه پوهېږم هومره زړور نه یم چې نور یې تصور کوي.

که زما پر ځای بل هرڅوک وي همدا سې مېړانه کولای شي او زه د دې لپاره د سرتېري پر وړاندې حرکت کوم او جنګېږم چې مصري سرتېري له جنګ سره عادت وکړي.

دا څلوېښت کاله کېږي چې مصریان نه دي جنګېدلي او پر له پسې سولې په هغوی کې د جنګ غوښتنې او عادتونه له منځه وړي دي.

خو کله چې زما سرتېري وروزل شول او عادت یې وکړ چې نور به له دښمنه نه وېرېږي، نو زه به هم د مصر د نورو لښکر مشرانو په شان په روان تخت کې کښېنم او د جبهې په وروستی برخه کې به پاتې کېږم او جګړه به کنټرولوم.

ومې ویل هورم هب دا څنګه کېدای شي چې ستا په سر الوتونکی باز وکړای شي چې تا د غشو، تورو، نیزو او ګرزونو له تاوانه وساتي؟

هورم هب وویل زه تصور نه کوم چې زما ساتونکی دې همدا باز وي، بلکې دغه باز

هغه ننبه ده چې ماته ښيي، تر هغه چې زما وخت نه وي راغلی زه به ونه وژل شم، نو ځکه خو داسې دليل نشته چې زه و ډار شم.

زه پوهېږم چې انسان يو ځل مري او داسې څوک به نه وي چې دوه ځله ووژل شي. نو بايد د داسې پېښې په اړه چې يو ځل پېښېږي تول عمر و نه ډارشو.

له همدې امله وېره نه پر ېږدم چې زړه ته مې لاره وکړي

زه چې نه ډارېږم، مرګ هم زما لوري ته نه راځي. تر هغې ورځې چې زما وار نه وي راغلی او پر دغه ورځ که زړور وم يا وډارشم بيا به هم مړ شم.

پوه شوم چې هورم هب څنګه خبره کوي او د دې چارې علت چې مرګ د هغه لوري ته نه ورځي دا دی چې دی جرئت لري او بختور سرتېري هغه وي چې جرئت لري او د هغو طالع هم د دوی همدا جرئت دی.

هغه سرتېري چې جرئت نه لري طالع هم نه لري او په جنګ کې به لومړنی کس وي چې وژل کېږي.

د لوتمار او د ښکلو اميلونو او مېرمنو د ترلاسه کولو ارمان به بلې دنيا ته يوسي.

له هغه وروسته زه له هورم هب څخه جلاشوم او لاړم چې لږ ويده شم. ورځ نه وه نيمايي شوې چې له خوبه پاڅيدم ومې کتل چې زموږ سرتېري ساعت تېري کوي او د ننبو په ويشتلو بوخت دي.

د دوی ننبې د خبيريانو هغه سرتېري ول چې علاج يې نه کېده، او دوی پوهېدل چې دغه سرتېري د مرييتوب لپاره هم نه په کارېږي نو هغه خرڅولای هم نه شو.

پر دغه ورځ او په بله شپه زموږ سرتېرو له خبيري ښځو سره ساعت تېري کول او څو مېرمنو ددې لپاره چې زموږ د سرتېرو لاس ته ورنه شي پخپلو اوږدو څنو يې ځانونه ووژل.

پر درېيمه شپه د هغو مصري او خبيري سرتېرو د مړيو بويونه چې په بيديا کې پراته ول د زغملو نه ول او تر سهاره مو د شغالانو او ګيدړانو له شور ماشوره خوب و نه کړ چې د مړيو په خوړولو لګيا ول.

هورم هب ته مې وويل که په دې بيديا کې وځنډېږو تول به د مړيو د بويونو له امله ناروغان شو.

هورم هب موافقه وکړه چې لښکر له هغې بيديا وخوځوي او سخت ټپيان د ګاډيو په وسيله اورشليم ته واستوي

هغه ویل له دې امله چې خبیریانو د تېښتې پر وخت خپل خدای له ځان سره وړی دی او زموږ د کشف مامورین وایي چې هغوی همدلته نژدې دي نو باید زه ولاړ شم او د هغوی خدای ترې واخلم.

پر بله ورځ له دې ورسته چې سخت تېپیان مو اورشلیم ته وخوځول هورم هب له یو شمیر ګړندیو ګاډیو سره حرکت وکړ او زه یې هم له ځان سره کېنولم او ویل یې چې غواړم تا پخپل جنګ کې شریک کړم چې پوه شې څنګه د پاتې خبیریانو پوزه په خاورو وموښم.

کله چې موږ خبیري پاتې شونې راګیر کړل هغوی سندرې ویلې او هغه څه چې دوی د سوریې له خلکو او کروندګرو اخیستي دي مخته کړي او دوی ورپسې روان دي.

موږ لکه توپان پرې نازل شوو او تر دې وړاندې چې دوی د ځان دفاع وکړي زموږ ګاډیو ځوانان او بوډاګان لاندې کړل او د هغوی هډوکي یې ورمات کړل.

مصري سرتېرو ته چې به هر څوک ګوتو ته ورغلل وژل به یې ان تر دې چې نورو د ځان له ویرې خپل څاروي او خواړه پرېښودل او وتښتېدل.

هورم هب امر وکړ چې په بېدیا کې خواره شوي پسونه او غواګانې راټولې کړي، بیا یې د خبیریانو خدای له څمکې پورته کړ او بیرته ستانه شوو او له ټول لښکر سره د اورشلیم پر لور روان شو.

هورم هب په لومړني تم ځای کې د خبیریانو خدای د سرتېرو پر وړاندې ټوټه ټوټه کړ او سرتېرو خوشالي کولې، ځکه چې پوهېدل نور خبیریان خدای نه لري او تر بل هر وخت ډېر بې وزلي شوي دي. تر هغه ځایه چې زما یاد دی خبیریانو خپل خدای چې له لرګي جوړ شوی و (یهود) یا (یهوه) باله.

کله چې زه اورشلیم ته ننوتم حیران شوم چې ولې ډېر شمېر هغه سرتېري چې مایې درملنه کړې وه مړه شوي دي، په داسې حال کې، چې پوهېدم د هغوی ټپونه خطرناک نه دي او روغ به شي.

ددې موضوع راز وروسته ماته څرګند شو او هغه داسې و چې د هورم هب د امر پر بنسټ ټول لوټ شوي شیان یې اورشلیم ته راوړل او له غلامانو او وینځو سره یو ځای یې وپلورل هر څو مره سره، سپین او نور شیان چې ددغو کسانو له خرڅلاوه تر لاسه شول پر سرتېرو یې ووېشل.

له دې کبله چې یو شمېر سرتېري مړه شوي ول نو د ژوندیو سرتېرو ونډه ډېره شوې وه.

د لښکر د څارویو د وښو او خوړو مشر ( د لوجستیک مشر ) چې له ما سره ملګری شوی و، وویل په هر جنګ کې داسې کېږي، سرتېري د دې لپاره خپلو ژوبلو ملګرو ته اوبه او خواړه نه ورکوي او غواړي چې مړه شي.

هرخومره چې د سرتېرو شمېر کم شي نو له جنګي غنیمتونو څخه د برخه ترلاسه کولای شي.

د سوریې ډېر شمېر سوداګر په اورشلیم کې غونډ شوي ول او د جنګ غنیمتونه یې واخیستل.

هر سوداګر یو شمېر داسې ښځې له ځانونو سره راوستې وې چې ځانونه یې ارزانه خرڅول او زموږ سرتېرو به سره او سپین ورکول چې خوشیبې له یوې ښځې سره تیرې کړي.

له سهاره تر بېګاه او له بېګاه تر سهاره په اورشلیم کې د تنبور، دایرې، سورني، او تبلې غږونه اورېدل کېدل او شراب څښل کېدل. مصري سرتېرو شراب څښل او له هغو ښځو سره په ساعت تېرې بوخت ول چې ځانونه یې ارزانه خرڅول.

کله خو به د نشه سپاهیانو تر منځ سخت جنګ ونښت، یو د بل په سینو او خېټو کې به یې چړې ومنډلې او پر ګرزونو به یې یو د بل ککرۍ ورماتې.

په دې وخت کې د مصر د لښکرو مشر هورم هب څو تنه اپوته په دار وځړول خو سره له دې به هره ورځ شخړې کېدلې او هره ورځ به یو شمېر سرتېري په دار کېدل. سره له دې چې سرتېرو به په دار شوي خپل ورانکاره ملګري لیدل خو عبرت به یې نه اخیست.

ترهغه چې په دنیاکې شراب، سره، سپین او ښځه وي او ځینې نشه کسان په سرو او سپینو یا د ښځو پر سر له یو بل سره اختلافات پیدا کوي حتماً جنګ کېږي، یو شمیر پکې وژل کیږي او یو شمیر هم د قاتلینو په توګه باید په دار وځړول شي.

سپاهیانو چې په لوټ مار کې څه ترلاسه کړي ول ټول یې په شرابو او ښځو وښندل او بایلودل.

مصري افسرانو هم د سرتېرو په شان خپلې ونډې په شرابو او ښځو ولګولې خو په دې توپیر چې افسرانو به له هغو ښځو سره لېوالتیا نه درلوده چې ځانونه ارزانه خرڅوي

دوی به هغه ښځې خوښولې چې ځانونه به یې ګران خرڅول ځکه هر څومره چې ښځه ښایسته وي نو بیه به یې ډېره وي.

د پوځ په افسرانو کې یوازې هورم هب و چې ښځو ته یې توجه نه کوله

زه د هغه دې کلک هوډ او پاک لمنۍ ته حيران شوم.

په داسې حال کې چې هورم هب ځوان او ښکلی و او هره ښځه که ګران بيه او يا ارزان بيه وه په ډېرې خوښی، دده خور کېدله.

هورم هب له لوټل شويو شيانو او مريانو استفاده ونه کړه او په بدل کې يې له سوداګرو څخه خپله ونډه واخيستله.

دده استفاده په دې ډول وه چې کله معاملې ختمې شوې او سوداګرو مرييان او نور توکي وړل نو هورم هب ورته وويل، هر سوداګر بايد د پېردلو توکو لسمه برخه د امنيت د ساتلو د بيې په توګه ده ته ورکړي.

هورم هب سوداګرو ته وويل په ټول هغه وخت کې چې تاسو معاملې کولې يوه سرتېري يا د ښار او سېدونکي جرئت ونه کړ چې ستاسې شيانو يا مالونو ته لاس وروړي، ځکه چې زه شپه او ورځ ځير وم چې څوک ستاسې سره او سپين او مرييان غلا نه کړي

که زه نه وای تا سې له دې ځايه خپله شتمني او مرييان نه شوای لېږدولای بلکې مستو او خونړيو سرتېرو تاسې هم وژلاست.

دغه خبره سمه وه او هورم هب داسې امنيت ټينګ کړی و چې د يوه سوداګر يوه کړه مس هم ورک نه شول.

سوداګر پوه شول که پخپله خوښه لس سلنه برخه ورنه کړي ممکنه ده ټول شيان يې له منځه لاړ شي نو له همدې امله يې هورم هب ته خپله برخه ورکړه او خپل شيان او ځانونه يې روغ رمټ له اورشليم څخه وايستل.

د جګړې له پای ته رسېدو سره زما دنده هم پای ته ورسېده نو هورم هب ته ورغلم چې له هغه سره خدای پاماني وکړم او ازمير ته ستون شم.

هورم هب د خدای پاماني په وخت کې ماته وويل چې پرون له يوه پاپيروس (مصري کاغذ ژباړن) سره د فرعون له لوري يو قاصد راغی او فرعون په دې ليک کې ملامت کړی يم چې ولې مې وينه بهولې او خبيريان مې وژلي دي.

زه غواړم فرعون ته ووايم، ده چې خپل خدای ته سندرې ويلې او تصور کوي چې مصر او سوريه په مينې ،سوله غوښتنې او له خپلو همنوعانو سره په محبت اداره کولای شي پر يوه کلي او باندې يې د خبيريانو حمله نه ده ليدلې.

که وګوري دغه قبايل څه ډول پر کليو او باندو حملې کوي ، نارينه او ماشومان وژني،

له ښځو يې د ارزان بيو ښځو په خبر ګټه اخلي او بيايې د وينځو په توګه پلوري، نو ما به نه ملامتوي.

پوهېږې! چې ځمکه په مينې، محبت او سوله غوښتنې سره نه شي اداره کېدای ځکه شونې نه ده يو څوک وس ولري او يا وژنې او لوټمارۍ ته اړتيا ولري او دې دا کار و نه کړي.

يو پياوړی سړی چې د نورو د وژلو او د هغوی د سرو، سپينو او ښځو د اخيستو توان لري، يو ازې يو وخت دغه کار نه کوي او دا هغه وخت دی چې دی شتمنۍ او ښځو ته اړتيا ونه لري.

او س به زه خپل سرتېري مصر ته لېږدوم او باوري يم چې فرعون به راته ووايي خپل سرتېري رخصت کړه.

خو زه به يې رخصت نه کړم ځکه چې په ټول مصر کې يو زوړل شوی او د جنګونو تجربه کار پوځ دی چې هغه هم زما پوځ دی.

ما ورته وويل ايا تصور کوې چې مصر به يوه لښکر ته اړتيا ولري. ځکه چې مصر دومره پياوړی او بډای دی چې هېڅ دښمن نه لري او له همدې کبله اړ نه دی چې کوم تکړه پوځ ولري.

هورم هب وويل د مصر په شان هېواد چې د سوريې لسګونه پاچاهان يې تر ولکې لاندې دي. يوه پياوړي پوځ ته اړتيا لري چې د پاچاهانو ترمنځ سوله وکړي. ما په دې وروستيو کې اورېدلي چې په سوريې کې د آمورو پاچا د سورليو او اسونو په راټولولو او د جنګي ګاډيو په جوړولو بوخت دی او داسې ښکاري چې د بغاوت نيت لري ما وويل زه دغه پاچا پېژنم او مخکې مې ورته غاښونه معالجه کړي ول. هغه زما ښکلې وينځه وليده او هغه يې خوښه شوه. ما بيا دغه وينځه هغه ته ورکړه او بې ښځې پاتې شوم.

هورم هب وويل سينوهه! ايا ته چمتو يې چې له ما سره مرسته وکړې ياني زما لپاره يو ستر سفر وکړې؟ زه به يې په بدل کې چې څومره زر وغواړې درکړم.

ومې پوښتل ولې غواړې زه مسافرت وکړم؟

هورم هب وويل ته يو ډاکټر او ازدا سړی يې. هر چيرته تللی شې او له دې کبله چې طبيب يې ټول په تا اعتماد کوي او زه په دې هم پوهېږم چې په بابل او هاتي کې مصري ډاکټرانو تاته ډېر درناوی کوي. زه چې د مصر د لښکر قوماندان يم بايد په دې پوه شم چې د نورو ملتونو په تېره بيا د هاتيانو او بابليانو جنګي وسله څه ډول ده.

د هاتیانو او بابلیانو د وسلو په هکله وحشتناک خبرونه را رسېږي ما اورېدلي چې هاتیان خپلې تورې او نېزې له یوه توربخون فلز څخه چې او سپنه یې بولي جوړوي او څوک نه پوهېږي چې دوی دغه فلز له کوم ځایه راوړي دي.

د هغوی له تورو او نېزو څخه د هغوی جنګي ګاډي خطرناکې دي، اورېدلي مې دي چې هغوی خپلې جنګي ګاډي له همدې او سپنې جوړوي او دغه ګاډي دومره کلکې دي چې کله زموږ په مسي ګاډیو لګېږي نو دلړګیو په شان یې ماتوي.

ددغې او سپنې او د نورو ملتونو د وسلو او ګاډیو په اړه د معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره تر تا بل وړ کس نشته.

له دې کبله چې ته ډاکټر یې او هر چېرته تلای شې، بابلي نړیواله ژبه دې هم زده ده، له هر چا سره خبرې کولای شې او هېڅوک دا خیال نه شي کولای چې ته یو پوځي جاسوس یې.

ځکه، څوک دا تمه نه کوي چې یو ډاکټر دې په پوځي مسلو هم پوه شي.

له دې پرته ته ډېر هوښیار او ځیرک یې او پوهېږې چې زما څه ډول معلومات پکار دي.

په داسې حال کې چې نور عقل او شعور نه لري او کله چې فرعون هغوی د معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره لېږي یوازې د بابل د پاچا د ډېرې او د هغه د ښځو په هکله فرعون ته معلومات راوړي.

خو ته په نورو هېوادونو کې دا معلومات راټولولای شې چې څومره سرتېري لري او د سپاهیانو وسله یې څه ډول ده.

دغه راز ته معلومولای شې چې او سپنه څه ده او څه ډول ترلاسه کېږي ؟ ایا جوړېږي، که د مس په شان له ځمکې څخه ترلاسه کېږي؟

ته په دې هم پوهېدای شې چې د نورو ملتونو جنګي قدرت څومره دی او ددغو معلوماتو له ترلاسه کولو وروسته به په مصر کې له ما سره یو ځای شې او هغه څه چې ترلاسه کړي دې دي ماته به یې وایې.

ما وویل، هورم هب ! زه به بیا مصر ته ستون نه شم.

هورم هب وویل تېروتنه کوې، هغه څوک چې د نیل اوبه وڅښي له مصره زړه نه شي شکولی، ستا دغه خبره ماته د مچانو د بنګېدا په شان ښکاري او راته مهمه نه ده، ځکه چې پوهېږم حتماً به یوه ورځ مصر ته ستون شې.

که ته موافقه وکړې چې د نورو ملتونو د پاچاهانو ، پوځ ، وسلو او پوځي زده کړو په

هکله ماته معلومات راوړې، زه به ستا له دې معلوماتو ډېره استفاده وکړم. ځکه چې زه هيله کوم ستا له دغو معلوماتو څخه د مصر د ترقۍ او د نورو پاچاهانو د مهارولو لپاره استفاده وکړم. نن سبا هغه ځای ځايګی چې مصر بايد درلودای نه يې لري.

په داسې حال چې د مصر ملت تر ټولو غوره ملت دی. خدايانو د مصر ملت ته د دې لپاره تر نورو ملتونو لوړ والی ورکړی چې د هغوی مشري وکړي خو پخپله مصريان د تنبلۍ له کبله نه غواړي چې له دغو ګټو استفاده وکړي.

زمونږ فرعون د دې لپاره چې نورو هېوادونو ته لښکرې ولېږي ديوه خيالي خدای د وسوسو له امله له انسانانو سره د مينې او سولې خبرې کوي.

کله چې هورم هب دغه خبرې کولې ما ورته ځير ځير وکتل او احساس مې وکړ چې هغه زما په نظر ډېر ستر شوی دی.

ځکه تر هغه چې يو څوک لوړ استعداد، ونه لري داسې افکار نه شي درلودلای.

زموږ هر شی زموږ د افکارو زېږنده وي، هغه کسان چې لوړ فکرونه لري او چمتو وي چې خپل افکار پخپل وخت عملي کړي يو ستر انسان دی.

له همدې امله مې هغه ته وويل هورم هب تر اوسه پورې ما يوازې يو تکړه جنګي کس بللې او خيال مې نه کاوه چې د هېواد د اداره کولو توان هم لرې، خو نن په تا کې دغه استعداد ګورم چې ښايي فرعون يې هم ونه لري.

هورم هب وويل، ايا حاضر يې ما خپل مشر وبولې؟ اوخپل مقدرات زما له مقدراتو سره اړوند کړې؟

ومې ويل، هو چمتو يم.

هور هب وويل سينوهه! ته به له ننه وروسته په نورو هېوادونو کې زما غوږ او سترګې يې او زه به ستا په وسيله د پرديو ملکونو له حالته خبرېږم.

که ما ترقي وکړه او سترو مقامونو ته ورسېدم تا به په دې ترقۍ او نيکمرغۍ کې له ځان سره شريک کړم او که مې ترقي ونه کړه او اپوته مې موقف ټيټ شو، بيا به هم ته تاوان ونه کړې ځکه چې د پخوا په شان به يو ډاکتر يې او د طبابت په وسيلې به، سره او سپين تر لاسه کولای شې.

زما باداري او ستا نوکري شونې ده ستا لپاره ډېرې ګټې ولري، خو تاوان به ونه کړې.

بيا هورم هب زما له تمې ډېر سره زر راکړل او يو سرتېري ته يې دنده وسپارله چې ما

ازمیر ته ورسوي چې په لاره کې څوک زما شته لوټ نه کړي.

کله چې ازمیر ته ورسېدم خپل سره زر مې څو شرکتونو ته ورکړل او په بدل کې مې د متې خاورې څو لوحې واخیستې چې په اوریخې شوې وې او په دغو لوحو هغه طلاګانې لیکل شوې وې چې ما شرکتونو ته ورکړې وې.

له ما پرته بل څوک نه شي کولای دغه سره زر په بابل یا هاتي هېواد کې ترلاسه کړي او که غلو دغه لوحې هم غلا کړې وای د هغو لپاره یې ارزښت نه درلود، بلهدا چې ما هم تاوان نه کاوه ځکه چې بیرته به ستون شم او هلته به له شرکته نورې لوحې واخلم.

زه تصور کوم چې د پخوانیو او وحشي پېرونو په پرتله زموږ د وخت یوه ګټه دا ده چې موږ د ډېره طلا د دغو لوحو په بڼه لېږدولای شو او مجبور نه یو چې خپله ټوله طلا ولېږدوو، چې د غلو تمه ورته پیدا شي او هغه څه چې لرو یې او یا د ټول عمر ګټه رانه یوسي.

# دیارلسم څپرکی

## زما اوږد سفر

اوس تر دې وړاندې چې ووایم په نورو هېوادونو کې مې څه ولیدل، غواړم یا دونه وکړم، چې زما اوږد سفر زما د ټول عمر تر ټولو ښې شپې ورځې وې او پوهېږم چې نور به دغه ورځې را و نه ګرځي.

زه په هغه وخت کې ځوان او قوي وم، لمر به راته ډېر روښانه ښکارېده، د ګل وږمې به مې ښکلې او په زړه پورې محسوسولې او ښځې راته ښکلې برېښېدلې.

لمر، وږمې، ښځې توپیر نه کوي خو په بوډاتوب کې یې انسانان بل ډولویني.

کله چې ما سفر پیل کړ په نړۍ کې د سولې د ټینګښت ځلو ښت کاله پوره شوي ول، هر چېرته کاروانونه ازاد ګرځېدل او بېړیو په سیندونو او سمندرونو کې دغلو له وېرې پرته سفرونه کول.

ګروندګرو د دوامداره سولې له امله له خپلو کرندو ډېر محصولات اخیستل خپلو مالکینو ته به یې ورکول او هر چېرته اسماني نیل د مصر د نیل پر ځای کروندې خړوبولې.

پسونه او غواګانې به په ورشوګانو کې څرېدل او شپنو به په اوږدو لرګیو تکیه کوله چې د خپلو رمو لپاره شپېلۍ ووهي.

د انګورو له تاکونو ډېر محصولات ترلاسه کېدل او د مېوې ونې ترې لاندې کړېدلې.

له ټولو معبدونو د لوګیو ستنې اسمانونو ته ختلې، ځکه چې په ټولو معبدونو کې پسونه او غوایان قرباني کېدل.

هر شي خپل عادي بهیر کچ کاوه، شتمن کال په کال شتمن کېدل او بېوزلي نور هم بېوزله کېدل ځکه چې خدایانو همداسې ټاکلې وه چې هر کال دې د شتمنو شتمني زیاته شي او بېوزله دې هر کال تر تېر کال بېوزله شي.

زه تصور کوم چې په هغو کلونو کې خدایان هم د کاهنینو په شان چاغ او روغ رمټ ول

او ښې شپې ورځې یې تېرولې، ځکه چې کله په ځمکه کې سوله واکمنه وي نو د خدایانو کار هم کمېږي او خپل ډېر وخت په استراحت او خوښیو کې تېروي.

زه نن د دغو ورځو ارمان نه کوم ځکه چې ارمان کول د یوه هوښیار او ګرځنده سړي کار نه وي او په ارمان او افسوس سره تېر وخت بېرته راګرځولای نه شو، په تېره بیا که د ستنېدلو نه وي لکه څوک چې نه شي کولای ځواني بیرته راستنه کړي.

تر دې وړاندې چې سفر پیل کړم لکه چې ومې ویل ازمیر ته ستون شوم. زما مریي کاپتا چې زه ولیدم زما پر لور یې رامنډه کړه، له یوې سترګې یې د خوشحالۍ اوښکې وبهېدلې او ویې ویل، نن زما د عمر تر ټولو مبارکه ورځ ده ځکه چې ته کورته راستون شوی یې.

ما خیال کاوه چې ته په جنګ کې وژل شوی یې او زه به دې نور ونه وینم. خواشینی په دې وم چې ستا مړی به چیرته وي او څوک به یې مومیایي کړي؟

خو له ځان سره مې ویل، له دې کبله چې ته مړ شوی یې نو د ډېرېو په شرکتونو کې ستا ټوله شتمني به ماته ور سپېږي.

نن چې راستون شوې ډېر خوشحال یم، ځکه چې له تا پرته که شتمن شوی هم وای د هغه پسه په شان به وم چې خپل خاوند یې ورک کړی وي، حال دا چې نن د یوه خاوند لرونکي پسه په شان یم.

ستا په غیاب کې ما تر هغه څه ډېر نه دي غلا کړي چې ستا په شتون کې مې غلا کول، ډېره هڅه مې کوله چې ستا کور بې عیبه پاتې شي او شیان دې کم نه شي، نو له همدې کبله د همغې ورځې په شان چې له دې ځایه تللی وې اوس هم د یوه منظم کور خاوند یې.

بیا یې اوبه راوړې، زما پښې یې را ووینځلې، په مخ یې اوبه را واچولې او همغسې یې خبرې کولې.

ما ورته وویل دومره خبرې مه کوه، ددې پر ځای ولاړ شه او د مسافرت لپاره خپل وسایل برابر کړه، ځکه چې زه نیت لرم یو اوږد سفر وکړم.

کله چې مې کاپتا ته وویل زه د سفر نیت لرم نو په ژړا شو او خدایان یې ملامت کړل چې هغه یې ولې پیدا کړی دی.

کاپتا وویل نه پوهېږم ولې دې دنیا ته راغلی یم، چې باید د یوې اوږدې مودې لپاره نیکمرغه پاتې نه شم.

ده وویل، ما ډېر زیار وایست چې چاغ شم، اوس چې ته غواړې د غه اسوده ژوند پر
ېږدې، نو زه هم اړ یم له تا سره ولاړ شم او چې څم نو بېرته به د نګر شم.

ما ورته وویل ته مجبور نه یې چې له ما سره ولاړ شې، ته همدلته پاتې کېدای شې.

کاپتا وویل که ستا سفر یو یا دوه میاشتې وای، زه به دلته پاتې شوی وای، خو له دې
کبله چې ته غواړې په یوه اوږده سفر لاړ شې، نو زه مجبور یم چې له تا سره ولاړ شم، ځکه
چې که زه درسره ولاړ نه شم او ستا لارښونه ونه کړم ته به د هغه خوسکي په شان یې چې
غلو یې پښې ورتړلې، او پر خپلو اوږو یې بار کړی وي او څوسکی هېڅ مقاومت نه شي
کولای.

اویا به د هغه چاپه شان یې چې سترګې یې ور تړلې وي لاره نه شي موندلی او په هر ګام
کې پر ځمکه لوېږي.

که زه درسره نه یم نو هرڅوک به له خپل وس سره سم ستا سره او سپین اونوره شتمني
لوټ کړي.

خو که زه له تا سره ولاړ شم یوازې زه به درڅخه غلا کوم او زما غلا د نورو له لوټولو ښه
ده ځکه، چې نور ستا د شتمنۍ د لوټولو پر وخت هېڅ شي ته پام نه کوي او نو زه به ستا د
شتمنۍ په اندازه له تا څخه غلا کوم او تل به ستا د شتمنۍ ډېره برخه ستا لپاره ساتم.

ایا غوره نه ده چې همدلته په ازمیر کې په خپل کور کې پاتې شو، خپل خوندور خواړه
وخورو، له خپلو سرو سپینو استفاده وکړو او د سفر له خطرو او زحمتونو تېر شو.

کاپتا د وخت په تېریدا سره ډېر بې شرمه شوی و، داسې خیال یې کاوه چې ګنې له
ماسره شریک شوی او تل به یې زموږ د خوړو، زموږ د کور او زموږ د سرو - سپینو خبره
کوله.

ددې لپاره چې هغه ته یې ور په زړه کړم چې هغه زما مریی دی، زما د شتمنۍ شریک نه
دی او ددې لپاره چې ویې ژړوم او د هغه ژړا ښکاره او ریښتوني وي خپله لکړه مې
واخیسته، پر ملا او د ولیو په منځ کې مې څوګوزارونه ورکړل او ومې ویل، کاپتا ته چې
په غلا دومره عادت شوی یې یوه ورځ به په دار وځړول شې اوزه به دې وګورم چې ته یې له
پښو راځوړند کړی یې.

کاپتا بالاخره راضي شو چې سفر ته غاړه کېږدي، د سفر وسایل مو تیار کړل او
وخوځېدو.

که کاپتا راسره نه وای نو ما د سمندر له لارې له ازمیره، ځان لبنان ته رساوه، خو کاپتا ویل چې که هغه وو ژنم نو تر دې به غوره وي چې په بېړۍ کې سفر وکړم.

زه پر یوه روان تخت سپور شوم، خو د کاپتا لپاره مې یو خر واخیست.

له دې کبله چې کاپتا د بدن په شاتنۍ برخه کې تپ درلود نو پر خره د سپرېدا په وخت کې یې ژګیروي کول او یوه برخه مزل یې پلی کاوه، ویل یې چې پلی تګ د خره تر مزله ښه دی.

کله چې لبنان ته ورسېدو ما هلته د سدر لوړې ونې ولیدې او دغه ونې دومره لوړې وې چې که یې ځانګړتیاوې بیان کړم په مصر کې به څوک پرې باور ونه کړي، نو څکه ترې تېرېږم.

د سدر ونو له ځنګلونو ډېر ښه بوی پورته کېده او په ځنګل کې رنې او به روانې وې.

ما له ځان سره وویل په هغه ټاټوبي کې چې دومره ښکلې او خوشبویه ونې وي، هېڅوک بدبخته نه دي.

تر هغه ځایه ورسېدم چې هلته مریيان د سدر ونو د غوڅولو په کار بوخت ول، دغه ونې به یې پر اوږو لېږدولې، له غرنۍ لارې یې ښکته کولې چې د سمندر څنډې ته ور سپېږي او له هغه ځایه په کشتیو کې ولېږدول شي.

کله چې ما د دغو مریيانو ژوبل شوي اندامونه ولیدل چې مچان پرې ناست ول، نو متوجه شوم چې په دغه ښکلي او معطر ځای کې هم کم بختان پریمانه دي.

بیا له لبنانه ووتم او د میتاني هېواد په لور رهي شوم.

په میتاني کې کاپتا ډېر خوشاله و، څکه دغه هېواد ته د نورو پر ورځ خلکو زموږ ډېر ښه هرکلی وکړ او له دې کبله چې دوی پوهېدل کاپتا زما مریی دی، نو خوندور خواړه به یې ور کول.

کاپتا به ویل، ښه به داوي چې هېڅکله له دغه هېواده ولاړ نه شو او تل همدلته پاتې شو.

خو زه چې د پوځي معلوماتو د ټولولو لپاره راغلی وم دلته نه شوای پاتې کېدای او د پوځي معلوماتو له ترلاسه کولو وروسته باید بابل ته لاړ شم.

په میتاني کې هغه څه چې زموږ پام یې ډېر ځانته جلب کړ، د ښځو ښکلا وه، ټولې ښځې ښکلې، دنګې او مضبوطې وې او چې پوه به شوې زه مصري ډاکتر یم، ما ته به راغلې او د خپلو مېړونو له ساړه مزاجه به یې شکایت کاوه.

دوی به ویل، زموږ مېړونه هره شپه له موږ سره ساعت تېری نه شي کولای، له دې امله خپه یو.

مابه کتل چې د ښځو د بدن پوستکی دومره سپین دی، چې تر پوستکي لاندې یې په رګونو کې د وینې شین رنګ ښکارېده.

مصري ډاکټران له ډېر پخوا د مېړونو د مزاج د سوړوالي په معالجه کې ډېر مشهور دي او په هېڅ یوه هېواد کې هم د دوی په شان چا د جنسي کمزورۍ درملنه کولای نه شوه.

ماچې به کله یوې ښځې ته ددې ستونزې لپاره درمل ورکول چې خپلو مېړونو ته یې ورکړي، نو پوهېدم چې ښه نتیجه یې اخیستې، ښځه به له ځو ورځو وروسته راغله او له ما به یې مننه کوله.

دوی به ویل اوس یې مېړه هره شپه له هغې سره ساعت تېری کولای شي.

خوزه نه شم ویلای چې دغو ښځو، چې له ماڅخه یې درمل اخیستل، خپلو مېړونو ته یې ورکول او که پخپلو مینانو یې خوړل، ځکه چې په میتاني کې د ښځو عادت و، چې پر خپلو مېړونو سربېره له نورو سړیو سره هم ځملي.

ما به لیدل، چې که څه هم چې ښځې لوړې او ښکلې دي، خو لږ و به بچیان راوړل او پوه شوم چې خدایانو د میتاني پر ملت غضب نازل کړی، ځکه کله چې ماشومان و نه زېږي نو ډېر ژر به د ملت زیاتره برخه بوډاګان او سپین سري وي او دغه ملت به ختم شي.

سره له دې چې د مېړونو د سوړ مزاج معالجې ښه مشهور کړم خو د میتاني د یوه بوډا شتمن معالجې زما شهرت بشپړ کړ.

دغه شتمن بوډا د سر له خوږو کړېده او ویل یې چې تل پخپلو غوږونو کې د تندر په شان غږونه اوري.

ده ویل د میتاني ټولو ډاکټرانو ته ورغلی خو یوه یې هم درملنه نه ده کړې.

یوه ورځ ما ورته وویل چې زما کور ته راشي چې سر یې معاینه کړم. کله چې کور ته راغی هغه مې کېناوه او په ګوتې مې د هغه د سر بېلابېلې برخې ووهلې خو ویل یې د سر یوه برخه یې هم درد نه کوي بیا مې څټک راواخیست او د هغه د سر بېلابېلې برخې مې پرې ووهلې.

ده ویل هېڅ نوی درد نه احساسوي، خو د پخوا په شان یې په سر کې دننه درد شته

په داسې حال کې چې په څټک مې د هغه د سر بېلابېل ځایونه وهل، ناڅاپه هغه سړي چیغه کړه او بېخوده شو.

زه پوه شوم چې د هغه سر په همدې ځای کې ستونزه لري، چې ځتک پرې لګېدلی دی. ما هغه ځای په نښه کړ او بیا مې د میتاني ډاکټرانو ته وویل غواړم د دغه سړي د کوپړۍ سوری کړم.

ډاکټرانو وویل که د هغه سر سوری کړې به مړ شي.

ما وویل، زه ژمنه نه کوم چې هغه به معالجه کړم خو ویلی شم، چې که د دغه سړي تومور (دانه) د هغه له سره وباسم، نو ممکنه ده چې ژوندی پاتې شي، خو که یې سر سوری نه شي او دانه ترې ونه ایستل شي نو ارو مرو مري.

خو طبیبانو نه منله چې د هغه په سرکې به تومور وي.

بیا مې پخپله له ناروغ سره مشوره وکړه، هغه وویل په دغه سخت او دوامداره سرخوږي سره زه هره ورځ لس ځله مرم، که مې سر سوری کړې او زه یو ځل مړ شم نو وبه ژغورل شم.

د هغه د سر د سوري کولو لپاره مې یوه ورځ معلومه کړه، وټاکل شوه چې څو تنه ځایي ډاکټران هم راشي او زما معالجه وګوري، په دې شرط چې په درملنه کې به هېڅ لاسوهنه نه کوي.

پر ټاکلې ورځ ما د طبس د دارالحیات له دود سره سم خپل ټول جراحي وسایل او په خپله ناروغ تطهیر او پاک کړ، لږ سپین زر مې هم برابر کړل چې د سر د هډوکي له جلا کولو وروسته یې په هغه ځای کېږدم.

بیا مې د ناروغ په رګونو کې اپیم ننه ایستل چې د درد احساس و نه کړي، له همغه ځایه چې پوهېدم تومور همغلته دی د جمجې د هډوکو یوه برخه پوستکی مې له بېلا بېلو لورو غوڅ کړ او د ناروغ مازغه رابښکاره شول.

ناروغ درد نه احساساوه او حتی سترګې یې خلاصې وې، کله چې یې مازغه رابښکاره شول طبیبانو ته مې وویل وړاندې راشيء او ټولو ولیدل چې د ناروغ په مازغو کې د یوې مرغۍ د هګۍ په اندازه یو تومور موجود دی.

ورته و مې ویل، همدا تومور دی، چې دغه سر درد یې رامنځته کړی دی، زه به اوس دغه تومور له مازغو جلا کړم او وروسته مې هغه جلا کړ.

په هغه وخت کې چې زه له مازغو د تومور د جلا کولو په حال کې وم کاپتا چې د جراحۍ ځینې کارونه او قالب نیول یې له مازده کړي ول، د جلا شوي هډوکي قالب یې

راواخیست او په هغه کې یې سپین زر واچول چې د هډوکي په بڼه یوه ټوټه سپین زر له دې قالبه راووتل.

له دې وروسته چې دغه قالب سوړ شو د جمجمې په سوري مې کېښود، د سر پوستکی مې له یو بل سره نژدې کړ او ومې ګانډه.

بیا مې پر سر ملهم او پټۍ کېښوده او له ناروغه مې پوښتنه وکړه چې اوس یې طبیعت څنګه دی؟

ناروغ ولاړ شو او ماته یې وویل بېخي سر خوږ نه لري او له څو کلونو وروسته دا لومړی ځل دی، چې ځان اسوده او روغ احساسوي.

ما ورته وویل تر هغه وخته چې ستا د سر ټپ نه وي معالجه شوی باید هغه ونه ښوروې، تر ټولو ښه خبره دا ده چې ستوني ستغ څملې او څو ورځې استراحت وکړې.

د هغه سړي زخم ښه شو او هغه بالکل معالجه شو. له دې وروسته چې علاج یې وشو په دې لټه کې شو، چې تېر وخت جبران کړي چې د سرخوږي له کبله یې ساعت تېری او عیاشي کولای نه شوه.

اوس چې یې سر جوړ شوی و نو عیاشي یې پیل کړه.

یوه شپه چې د هوا د ګرمۍ له امله یې د بام پر سر شراب څښل د ډېرې مستۍ له امله له بامه پر ځمکه ولوېد، سر یې مات شو او مړ شو.

خو ټولو په تېره بیا د هېواد ډاکټرانو دا خبره ومنله چې د هغه مړینه د نشې له امله وه او زه پکې ملامت نه یم، ځکه چې ما معالجه کړی و او د درد او مرګ له منګولو مې ژغورلی و.

دغه معالجه په میتاني هېواد کې دومره مشهوره شوه چې اوازې یې تر بابله هم ور سېدې.

دغه هېواد چې د بابل تر سلطې لاندې دی، څو نومونه لري، کله هغه کلده او کله خوسه بلل کېږي، خو زه یې بابل بولم، ځکه کله چې د بابل نوم اخیستل کېږي نو ټول پوهېږي چې هدف څه شی دی؟

بابل هغه هېواد دی چې ډېر ښېرازه او اوار دی، چې سترګې کار کوي اواره ځمکه لیدل کېږي، غر پکې نشته.

په مصر کې مصري ښځې غنم داسې اوړه کوي، چې پر ځمکه ګونډې وهي او د

ژرندې(ميچنې) يوه ډبره ګرځوي، خو په بابل کې بابلي ښځې د غنمو داوړو کولو په وخت پر دوو پښو دربېږي او د ژرندې دواړه ډبرې د يو بل په مقابل لوري کې ګرځوي چې دغه کار د مصري ښځو تر کار سخت دی.

په بابل کې ونې دومره کمې دي چې که څوک يې ووهي د خدايانو له غضب سره مخامخېږي.

د بابل ټول او سپدونکي چاغ دي، غوړه ډوډۍ او اوره ډېر خوري ما په بابل کې يو ډول عجيب مرغه وليد چې الوت کولای نه شي او دغه مرغه په ډېرو کورنو کې موجود وچې نوم يې چرګه و.

که څه هم چې د چرګې جثه غټه نه ده، داسې هګۍ اچوي چې اندازه يې د تمساح د هګيو په شان ده او د بابل او سپدونکي د چرګې هګۍ خوري

عجيبه خبره داده چې چرګه هره ورځ هګۍ اچوي خو تمساح او نور مرغان په يوه خاص وخت کې هګۍ اچوي

د بابل او سپدونکي د چرګې په هګۍ کې بېلابېل خواړه پخوي، خو زه دغه خواړه نه خورم، بلکې په هغو ډوډيو اکتفا کوم چې پخپله يې پېژنم.

بابليان وايي چې د هغوی ښار د نړۍ تر ټولو پخوانی او لوی ښار دی، خو زه په دې خبرو باور نه کوم، ځکه چې طبس له بابله لوی او پخوانی دی.

زه دومره ويلای شم چې د بابل پرتم تر طبس ډېر دی او د بابل ودانۍ او ديوالونه په طبس کې نشته.

په بابل کې دېوالونه دومره لوړ دي چې غره ته ورته وي او کورونه څلور يا پنځه پوړيز وي.

ما په هېڅ ځای، ان په طبس کې د بابل د تجارتخانې په شان سترې تجارتخانې نه دي ليدلې.

د بابل د خلکو خدای(مردوک) نومېږي خو د(ايشتار) عبادت هم کوي، د هغه لپاره يې يوه دروازه جوړه کړې، چې د ايشتار دروازه يا ارګ بلل کېږي او دغه دروازه په طبس کې دامون تر دروازې لوړه ده.

له دغه ارګ يا دروازې څخه د مردوک برج ته يو واټ غځېدلی او دغه برج يې داسې جوړ کړی، چې شاوخوا واټ يې تاو راتاو وي

په همدې ډول د برج څوکې ته رسېږي او دغه واټ دومره پلن دی چې څو ګاډي، څنګ په څنګ پکې تېرېدای شي.

ددغه برج په برنۍ برخه کې ستور پېژاند او سېږي او هغوی د ستورو حرکتونه اندازه کوي، بدمرغۍ او نیکمرغۍ ورځې معلوموي او ټول خلک د هغوی د قوانینو پر بنسټ عمل کوي.

ويل کېږي چې دغه منجمین د کواکبو او ستورو له مخې د راتلونکو پېښو اټکل هم کوي، خو په دې شرط چې دغه سړي ته چې غواړي له خپلې راتلونکې خبر شي باید د خپلې زوکړې ورځ او ساعت معلوم وي.

ما ته د خپلې زوکړې ورځ او ساعت معلوم نه و، نو ځکه هغوی ته ورنه غلم

کله چې بابل ته ورسېدم له متې ختې د چوړو، لو حو په وسيله مې د بابل له تجارتخانو هغومره سره زر را وايستل چې په کار مې ول او بيا د ايشتار دروازې ته نژدې په يو څو پوړيز مېلمستون کې ايسار شوم.

دامېلمستون د هغو شتمنو د اوسېدو ځای وي، چې بابل ته راځي، خو په دغه ښار کې کور نه لري، لکه ايلچي خانان چې کله بابل ته راځي په دغو مېلمستونو کې اوسېږي او د مېلمستون په ستر روان تخت سره چې څلو ښتو مریيانو لېږداوه د بابل باچا ته ورځي.

ددغه مېلمستون ټولې کوټې داسې ديوالونه لري چې خښتې يې نقاشي شوې او د هېنداري په شان دي.

کله چې يې څوک پر دېوالونو لاس راکاږي هېڅ ډول خيږوالی او لوړې ژوري نه احساسوي.

ددې ودانۍ په چت کې چې له ځمکې ډېر لوړ دی ګلان کرل شوي او تر څو چې څوک يې ونه ګوري باور نه کوي او خيال کوي چې زه افسانه وايم.

دغه څو پوړيز مېلمستون چې( کوشک ايشتار )نومېږي له خپلې خدمې او مسافرو سره دومره ګڼه ګونه لري چې د طبس د يوې محلې په اندازه نفوس پکې راغونډ شوی ښکاري.

کله چې موږ په طبس کې و، نو خلکو به ويل چې بابل د دنيا په څنډه کې پروت دی او ترې ها خوا نړۍ نشته.

له دې وروسته چې زه بابل ته ننوتم او د هغه ځای له خلکو سره مې خبرې وکړې نو ډېر

څه مې واورېدل.

هغوی به ویل بابل د دنیا مرکز دی او د بابل ختیځ لور ته دومره ټاټوبي او ملتونه دي چې که څوک شپږ میاشتې شپه او ورځ سفر وکړي د دغو ځمکو پای ته به ونه رسېږي.

ما په دغو خبرو باور وکړ، ځکه چې په بابل کې مې داسې ملتونه ولیدل چې هېڅ یو یې په مصر کې نه دی لیدل شوی او حتی داسې کسان مې هم ولیدل چې پوستکی یې زېړ و.

دوی ټول سوداګر ول خپل شیان یې چې یو ډول نازک ټوکرونه ول په بابل کې خرڅول او ما له بابلیانو اورېدلي چې دغه ټوکرونه د پسونو له ورېیو جوړ شوي.

دغه راز دوی ویل چې ځینې ټوکرونه یو مخصوص چینجی جوړوي، زه دې خبرې ته ډېر حیران شوم، ځکه چې تر هغه وخته مې نه و اورېدلي، چې چینجی دې ټوکر جوړ کړي.

بابلیان سوداګر ملت دی او ټول په سوداګرۍ اخته دي حتی خدایان یې هم تجارت کوي.

هغوی له دې کبله له جګړې کرکه کوي چې جګړه د تجارت لارې بندوي او د شیانو د لېږدولو کاروانونه له لارو بېرته ستنوي.

بابلیان وایي باید تل ټولې لارې د نړۍ ټولو سیمو ته د تجارت لپاره پرانستلې پاتې وي سوداګران باید له هره ځایه په ازاده توګه راشي او هر چېرته لاړ شي.

خو له بابله د دفاع لپاره یې اجیر عسکر ګمارلي ول او دغو عسکرو د بابل برجونه او ډېوالونه ساتل.

د دغو عسکرو د پرېړ د ستوري چې د سرو او سپینو خولۍ لري په زړه پورې دي.

ما په سر کې خیال کاوه چې د هغوی خولۍ له زرې ټوکرو جوړې شوي، خو وروسته معلومه شوه چې خولۍ له برونزو جوړې شوي دي او پر مخ یې د سرو یا سپینو زرو یو پوښ ورکوي.

عسکرو به د خپلو تورو لاستي له سرو یا سپینو جوړول چې وښیي شتمن دي.

ډېرې ښکلې جنګي ګاډۍ لري، چې ما یې ساری په نورو هېوادنو، ان په مصر کې نه دی لیدلی.

بابلیانو به ماته ویل اې مصریه! په کوم ځای کې دې دغسې ښکلې ګاډۍ لیدلې دي؟

ما به ځواب ورکړ نه؟

د بابل پاچا یو خلمی دی چې لا یې پر مخ ږېره نه وه راشنه شوې.

هغه چې کله پاچا شو نو پر زنې یې یوه ساختګي ږېره کېښوده چې وښیي ځوان شوی دی.

زه کله چې بابل ته ننوتم وامې ورېدل چې د لوبو سامان او توکې یا لطیفې یې خونښېږي په مصر کې د طبابت مدرسه دارالحیات دی او دغه موسسه علمي مرکز حسابېږي.

خو په بابل کې دښار علمي مرکز د مردوک علمي برج دی او ټول طبیبان او لوړ مقامه ستور پېژاندي هلته اوسي.

ما ډېر ژر د مردوک د برج له یو شمېر ستور پېژاندو او ډاکټرانو سره خبرې وکړې او معلومه شوه چې په بابل کې هومره چې نجوم ته توجه کېږي د طب علم ته دومره توجه نه کېږي.

بلهٔ داچې په بابل کې د طب علم نظري و .نه عملي او زه کله چې د مردوک برج ته ننوتم ومې لیدل چې ډاکټران د ناروغیو د معالجې لپاره بحث کوي. له دې پرته چې پر مریو کار او مطالعه وکړي.

په داسې حال کې چې په دارالحیات کې داناټومی علم ته ډېره توجه کېدله او ډاکټر تر هغه وخته پورې چې په خپل لاس جنازه تشریح نه کړي عملي معلومات نه شي ترلاسه کولای.

ما غوښتل چې دلته د مردوک د برج ډاکټرانو ته یو لړ یادونې وکړم، خو له دې کبله چې بابل ته نوی راغلی وم. فکر مې وکړ چې هغوی به خوابدي شي او تصور به وکړي چې زه ځان پرسوم او یا راغلی یم چې هغوی سپک کړم.

# څوارلسم څپرکی

## د بابل له پاچا سره کتنه

کله چې په (میتاني) کې وم تر بابل پورې مشهور شوم او زما د شهرت اوازې د بابل تر پاچا ورسېدې.

له دې وروسته چې ما په بابل کې په مېلمستون کې واوړل او د مردوک برج له ډاکټرانو او متخصصینو سره مې خبرې وکړې، یوه ورځ د بابل د پاچا له لوري یوه کس ما ته راغی او ویې ویل پاچا احضار کړی یې.

کله چې زما مریي کاپتا واورېدل چې د بابل پاچا غوښتی یم وډار شو او ویې ویل مه ځه .... ځکه چې سلطان ته تګ خطرناک دی.

ومې پوښتل د څه لپاره؟

کاپتا وویل دغه پاچا فرعون نه دی او موږ یې نه پېژنو.

موږ نه پوهېږو چې د هغه خدای څه ډول فکر کوي او هغه ته څه شی تلقین کوي، ممکنه ده له دې وروسته چې تا ووینې ستا د وژلو حکم وکړي.

ومې ویل کاپتا! زه یو ډاکټر یم، داسې کار مې نه دی کړی چې باید پرې ووژل شم او د بابل پاچا به مې ولې وژني؟

کاپتا وویل که غواړې هغه ته ورشې ما هم له ځان سره بوځه، ځکه که ووژل شې زه به هم درسره ووژل شم .ځکه چې ستا له وژنې وروسته زما په شان یو بوډا مریی هم ژوندی نه شي پاتې کېدای.

بلهٔ دا چې که غواړې پاچا ته ورشې وو ایه چې تا ته یو روان تخت راوړي، چې په درناوي د پاچا دربار ته ولاړ شې. ځکه چې د مصر یو تکړه ډاکټر چې په دارالحیات کې یې زده کړې وي یو ستر سړی وي او ددې ورتیا لري چې په درناوي سره یې هرکلی وشي او در هیمه خبره داده چې نن پاچا ته مه ورځه.

پوښتنه مې وکړه د څه لپاره نن ورنه شم ؟

کاپتا وويل ځکه چې د بابل ټولو تجارتخانو ، دکانونو او کارګرو نن رخصتي کړې ده ، ددې لپاره چې دهغوی ستورپېژاندي وايي، نن کار کول او له کوره دباندې تلل بدمرغي لري ، علت يې دا دی چې نن د اووني. اوومه ورځ ده.

ما په حيراني. وپوښتل اووني. څه شی دی ؟ مريي مې وويل: کله چې ته د مردوک برج ته ولاړې چې له ډاکټرانو سره خبرې وکړې د مېلمستون له کارکوونکو سره دخبرو په ترځ کې پوه شوم چې دلته يې يوه مياشت پر څلورو برخو وېشلې او هره برخه يوه اوني. بولي.

اوني. اووه ورځې وي. چې شپږ ورځې يې کار کوي او اوومه ورځ له کارونو رخصت اخلي. ځکه ستورپېژاندي چې له ستورو او خدايانو سره ارتباط لري د خدايانو له قوله وايي چې پر اوومه ورځ کار کول بد شګوم لري او شومه ورځ ده.

بايد پر دغې ورځې څوک له کوره ونه وځي، بازار ته ولاړ نه شي او بايد د هغوی په کورنو کې دوستان او خپلوان هم ونه ليدل شي.

ما له لږ فکر کولو وروسته کاپتا ته وويل سمه خبره کوې. له دې کبله چې دلته پر اوومه ورځ کار کول او له کوره وتل خطرناک ګڼي نو موږ هم که بهرنيان هم يو خو بايد ددغې سيمې د دودونو پيروي وکړو.

ځکه چې حتی د بابل خدايان هم د يوه علت او مصلحت له مخې دغه ورځ دکار کولو لپاره تاواني بولي او که موږ پر دغې ورځ پاچا ته ورشو له بد شوګوم سره به مخامخ شو.

وروسته مې د پاچا استازي ته وويل زه تعجب کوم چې ته ولې ما پر دغې اوومه ورځ د سلطان دربارته احضاروې. په داسې حال کې چې پوهېږې نن د کار کولو ورځ نه ده.

ولاړ شه او زما له خولې پاچاته ووايه چې سبا به هغه ته ور شم، په دې شرط چې ماته يو روان تخت راولېږې چې زه پرې سپور شم ، ځکه چې زه کوچنی سړی نه يم او غوره به داوي چې په ډېر درناوي زما هرکلی وشي.

هغه سړی ولاړ او پر بله ورځ راغی، موږ وليدل چې يو کوچنی روان تخت يې له هغو تختونو څخه راوړی و ، چې سوداګر دربار ته د خپلو شيانو د وړاندې کولو لپاره پرې سپرېږي او پاچاته ورځي.

کاپتا چې کله وليدل نو ويې ويل زه د مردوک له خدايه غواړم چې پخپلې متروکې سره چې له غټو لړمانو جوړه شوې ده تاسې ته سزا درکړي... تاسې څنګه پوه نه شوئ چې زما بادار داسې سړی نه دی چې په دغه روان تخت سپور شي، ډېر ژر يې بيرته يوسئ چې مخ

مو ونه وینم.

هغو مریيانو چې روان تخت يې راوړی و، کله چې دغه خبره واوريده حيران شول، يو شمېر کسان د مېلمستون په مخکې راټول شول او په خندايي کاپتا ته ويل، موږ غواړو ستاسې بادار وګورو او پوه شو چې ولې دغه روان تخت دهغه لپاره وړوکی دی؟

کاپتا د مېلمستون له خاونده يو روان تخت چې پينځوس مريیانو لېږداوه د پاچا مانۍ ته زما د تګ لپاره کرايه کړ او زه له مېلمستونه راکوز شوم.

کله چې خلکو زه په مصري جامو کې او د سرو سپينو له اميلونو سره وليدم غلي شول اونور يې ملنډې ونه وهلې.

ځکه چې پوه شول دا داسې يو بهرنی د بابل د پاچا مانۍ ته ورځي چې پخپل هېواد کې هم دروند او ډېر اهميت لري.

د مېلمستون يو مريی د روان تخت ترشا زما د طبابت وسايل په يوه مخصوص صندوق کې لېږدول او زما مريی د روان تخت مخې ته پر يوه خره سپور روان و.

موږ په دغو تشريفاتو د پاچا مانۍ ته ورسېدو او د ښار يو شمېر اوسېدونکي تر مانۍ پورې په موږ پسې روان ول.

هلته زه له تخته کوز شوم. د مانۍ مخې ته يو شمېر سپاهيانو خپلې زغرې په داسې ډول سره يوځای کړې وې چې د ېوال يې ترې جوړ کړی و.

کله چې يې زه وليدم خپلې زغرې يې لېرې کړې، موږ ته يې لاره راکړه. زه د هغوی په منځ کې تېر شوم او مانۍ ته ننوتم.

يو بوډا چې خريل شوې ږيرې او ګونځې څېرې يې د پوهې او علم شاهدي ويله ماته رانژدې شو او ويې ويل. زه له هغې غوغا څخه خبر شوی يم چې تا په ښارکې جوړه کړې ده.

د څلورو فصلونو خاوند (د بابل پاچا-ژباړن) پوښتنه کوي دغه سړی څوک دی چې کله يې خپل زړه وي زموږ ليدو ته راځي او کله چې يې زه احضاروم له راتلو ډډه کوي.

ما د هغه په ځواب کې وويل اې بوډا! ته څوک يې چې له ما سره دغه ډول خبرې کوې.

هغه وويل د څلورو فصلونو د خاوند ځانګړی ډاکتر يم او په بابل کې د ښه نوم او درناوي خاوند يم. خو ته څوک يې چې د سرو او سپينو تر لاسه کولو لپاره دې غوغا جوړه کړې او کله چې د څلورو فصلونو خاوند احضار کړې رانه غلې.

زه دې لاسم نه پېژنم خو په دې پوه شه چې که د بابل پاچا سره او سپين درکړل بايد

نیمایي یې ماته راکړې. ګني زه به دې پرې نه ږدم چې ته دلته طبابت وکړې
ما ورته وویل اې بوډا زه هېڅکله د سرو او سپینو په اړه له هغو کسانو سره چې پوښتنې کوي او د فلز غوښتونکي وي خبرې نه کوم.

دغه کار زما مریي پر غاړه اخلي، خو له دې کېبله چې ته یو ډاکټر یې او بوډا هم یې نو زه دې دوستي تر دښمنۍ غوره بولم او غواړم چې له تا سره دوستي وکړم.

خو ددې لپاره چې پوه شې زه د سرو او سپینو د ټولولو لپاره بابل ته نه یم راغلی بلکې د علم د زده کولو نیت لرم. نو خپل دواړه بازو بندونه چې د سرو زرو دي تا ته بښم.

له دې خبرې وروسته مې خپل دواړه بازو بندونه له متو خلاص کړل او هغه ته مې ورکړل.

هغه دومره خوشحال او حیران شو چې نور یې څه ونه ویل او موافقه یې وکړه چې زما مریی کاپتا هم له ما سره پاچا ته ولاړ شي.

د بابل پاچا (بورا بوریاش) نو مېده کله چې زه هغه ته ورغلم تصور مې کاوه چې ماشوم دی، ځکه چې ماته یې ویل شوي ول، کله چې هغه پاچا شو نو ږیره یې نه وه او مصنوعي ږیره یې کېښودله.

ما چې پاچا ولید نو اوس هغه ځوان شوی و.

وروسته داسې راته معلومه شوه هغه چا چې د هغه په هکله ماته مخکې معلومات راکړي ول، پاچا یې پخوا لیدلی و.

په عامو خلکو کې دغه خبرې ډېرې وي چې د عمر تېرېدل هېروي او دا نه په زړه کوي چې هر ماشوم لویېږي او د ځوانۍ پړاو ته رسېږي.

د(بورا بوریاش) په څنګ کې یو کوچنی زمری زما په لیدو سره وغرېد.

بوډا چې ویل یې د پاچا ډاکټر دی د ننوتو په وخت کې سجده وکړه او زما مریي هم د هغه تقلید وکړ خو یوځل بیا زمری وغرید، زما مریی داسې وډار شو چې له ځایه پاڅېد او چیغې یې کړې.

پاچا چې ورته وکتل ویې خندل.

کاپتا وویل دغه قهرجن ځناور له دغه ځایه بوځئ، ځکه چې ما په ټول عمر کې د هغه په شان وحشي ځناور نه دی لیدلی.

د دغه ځناور غږ د طبس د جنګي عسکرو د هغو ګاډیو د غږ په شان دی چې مازدیګر

خپلو چونیو ته ځي.

کاپتا دغه جملې په بابلي ژبه بیان کړې او پاچا داسې خندل چې له سترګو یې اوښکې روانې وې.

بیا یې په یاد شول چې زه یې د خپلې ناروغۍ د معالجې لپاره احضار کړی یم او په مخ یې لاس کېښود، زګیروی یې وکړ.

ما ولیدل چې په مخ کې یې پړسوب لیدل کېږي او د مخ د پړسوب له امله یې یوه سترګه نه ښکاري.

بوډا چې له ما څخه یې دوه بازو بندونه اخیستي ول، وویل دا همغه په ځان مین مصري ډاکټر دی چې تا پرون احضار کړی و، دی رانه غی

او ویې ویل چې نن راځي.

نو ښه به داوي چې خپلو عسکرو ته ووایې چې همدا اوس یې په خپلو نېزو خېټه سوری کړي.

پاچا وویل زه به یې اوس ونه وژنم ځکه ددې لپاره مې احضار کړی چې زما درد له منځه یوسي، دا څو شپې وشوې چې خوب مې نه دی کړی.

دا څو ورځې کېږي چې له اوبلنو خوړو پرته مې بل شی نه دی خوړلی..

بوډا لکه چې ځوک ژاړي وویل اې دځلورو فصلونو مالکه! موږ په دې څو ورځو کې د مردوک په معبد کې ستا لپاره قرباني وکړې او سرې جامې مو واغوستې، ډولونه مو ووهل او نڅاوې مو وکړې چې ستا په خوله کې ځای شوی درد له هغه ځایه بهر کړو.

خو تا موږ ته اجازه رانه کړه چې ستا خولې ته لاس دروړو، که دغه اجازه دې راکړې وای ستا علاج مې کولای شو، زه تصور نه کوم چې دغه بېګانه سړی دې معالجه وکړای شي.

پاچا ماته وویل ته څوک یې او په دې پوهېږې چې زما د دغه درد وجه څه ده ؟

ما وویل زه سینوهه مصري ډاکټر او ابن الحمار یم، که څه هم چې لا مې ستا خوله نه ده لیدلې خو ویلای شم چې ستا درد له دې امله دی چې ستا د اسیاب یو غاښ چرک کړی دی او دغه چرک ستا د غاښ په ریښه کې پټ شوی، پړسوب یې رامنځته کړی او ستا د مخ پړسوب هم دغاښ د چرک له امله دی.

ددغه چرک د رامنځته کېدا علت دا دی چې تا خپل غاښونه پخپل وخت نه دي پاک کړي او کله چې د غاښونو ریښه خرابه شوې هغه دې نه ده ایستلې.

کله چې د غاښ ریښه خرابه او چنجنه شي باید غاښ وایستل شي.

پاچا وویل زه هم پوهېدم چې کله د غاښ ریښه خرابه شي باید هغه وایستل شي خو د غاښ د ایستلو درد دومره سخت وي چې د زغملو نه وي.

ما وویل په مصر کې د غاښونو د ایستلو درد سخت نه وي، که ته وغواړې زه به دې غاښ له درد پرته وباسم. خو نن دغه کار نه شو کولای، ځکه چې ستا غاښ پړسېدلی، لومړی یې باید پړسوب کم شي او د غاښ په ریښه کې موجود چرک وایستل شي بیا له څو ورځو وروسته باید غاښ وایستل شي.

پاچا وویل ایا زما له غاښه دغه چرک ایستلی شې.

ما وویل هو.

زه اړیم چې ستا د غاښ چرک وباسم چې ستا د غاښونو پړسېدلی ځای سوری کړم او دا چې د طبس د ډاکټرانو له رودې کار واخلم چې د هر درد ونه زغمې.

خو دا درته وایم چې د چرک د ایستلو لپاره د پړسېدلي ځای سوری کول به لږ درد ولري ځکه خدایانو چې درد رامنځته کړی پاچاهان یې ترې نه دي خوندي کړي او هغوی هم باید د عامو کسانو په شان درد وزغمي.

ما کاپتا ته وویل چې سمد ستي اور بل او برابر کړي چې زه خپله چاړه پکې پاکه کړم.

کله چې هغه اور چمتو کاوه ما د بابل پر پاچا لږ شراب او تریاک وخوړل

کله چې هغه شراب وڅښل او لږ وخت پرې تېر شو، نو ویې ویل خیال کوم چې تا ته نوره اړتیا نه لرم ځکه چې درد مې ښه شو.

ما ورته وویل د درد دغه تسکین موقتي دی، لږه شېبه وروسته به درد بیا سخت شي.

هغه وویل ممکنه ده بیا هم دغه درمل راکړې، چې درد مې له منځه ولاړ شي.

ما وویل هغه درمل چې زه یې په شرابو کې اچوم او تا ته یې درکوم یوازې یو ځل له تاوان پرته د استفادې وړ وي، که دویم او دریم ځل وخوړل شي نو سړی پرې روږدی کېږي او بیا به له دې پرته چې درد دې ارام کړي ته د ژوندي پاتې کېدو لپاره دغو درملو ته اړتیا لرې.

نو اوس اجازه راکړه چې ستا درد کم شوی دی، زه ستا د غاښ د بېخ دانه سوری کړم او چرک ترې وباسم.

د بابل پاچا له دې وړوکي جراحي عملیاتو سره موافقه وکړه، له دې وروسته چې

ماخپله چاره په اور کې پاکه کړه او بیر ته مې سره کړه ور نژدې شوم . د هغه سر مې په غېږ کې ونیو . خوله مې یې پرانستله.

له دې سره سره چې د اپیمو د خوړولو له امله یې درد کم شوی و . خو کله چې مې د هغه د خولې دانه سوری کړه چیغې یې ووهلې . زمری یې پاڅېد .لکۍ یې وښوروله خو حمله یې ونه کړه.

له هغه وروسته د بابل پاچا زګیروی ونه کړ ځکه چې درد یې له منځه تللی و او د هغه له خولې د چرک او زوې راوتو نه پرېښود چې خبرې وکړي

کله چې ما دخولې زوې او چرک وروایستل نو ویې ویل اې مصري ډاکټره ! ته ډېر ګران بیه سړی یې ځکه چې زه اوس درد نه احساسوم. بوډا ډاکټر چې هلته ولاړ و وویل که ماته دې اجازه راکوله چې د خولې دانه دې سوری کړم . د همدغه مصري په شان مې ستا د خولې چرک او زوې راایستلې او درد به دې کم شوی و .

ما وویل دغه سړی سمه خبره کوي . که پاچا پرې اېښی وای چې دخولې دانه یې سوری کړي همدا نتېجه به یې اخیستې وای.

خو دغه بوډا جرئت نه درلود چې ټینګار وکړي ستا د خولې دانه سوری کړي . ځکه ستا له قهره وېرېده.

په داسې حال کې چې باید یو ډاکټر جرائت ولري او د ناروغان که پاچا هم وي له کاوره و نه ډار شي.

زه په طبس کې هېڅکله له ناروغانو نه ډارېږم.

د بابل پاچا چې له درده په کرار شوی و وویل: سینوهه که څه هم چې جرار سړی یې او په جرئت خبرې کوې . خو د لیاقت له کبله ستا له دې سپین سترګی تېرېږم.

دلته باید هېڅوک یو پاچا د زګیروي په حال کې ونه ګوري او ستا مریي زه د زګیروي په حال کې ولیدم خو زه له دې هم تېرېږم.

ددې لپاره چې ستا مریي زه خندولی یم او زما ساعت یې راتېر کړی او بیا یې کاپتا ته وویل یو ځل بیا هم ټوپ کړه او ماوخندوه.

کاپتا وویل زه دغه کار نه کوم . ددې لپاره چې زما عمر پوخ شوی او زما له حیثیت او عزته سره نه ښایي.

پاچا وویل زه به اوس داسې کار وکړم چې ته خپل د بوډاتوب حیثیت او وقار له لاسه

ورکړې.

پاچا خپل زمري ته اشاره وکړه، زمری پاڅېد او پاچا کاپتا خپل زمري ته وښود، ځناور خپل غټ سر د کاپتا پر لور کړ او بیا ورو د هغه پر لور روان شو.

زمری چې هر څومره کاپتا ته ورنژدې کېده زما مریی هومره په شا روان و، تر هغه چې یوې ستنې ته ورسېد.

په دې وخت کې زمري خوله خلاصه کړه او وغرید، کاپتا له ډاره ستنه کلکه ونیوله او د یوې بیزو په شان چې په مصر کې ونو ته پورته کېږي ستنې ته وخوت.

پاچا داسې خندل چې ښي لوري، کیڼ، او مخکې او شاته به کړوپ شو او کله چې له خندا موړ شو ویې ویل چې ورېیم خواړه راته راوړئ.

بوډا طبیب له دې چارې خوشحال شو، ځکه چې ډوډۍ ته د پاچا اشتها دا څرګندوله چې هغه روغ شوی او اشتهایې بېرته راګرځېدلې.

له څو شېبو وروسته یې ډوډۍ ورته راوړه.

کله چې پاچا ډوډۍ خوړل پیل کړل، نو زمامریي ته یې نوره توجه ونه کړه، زمری هم د ستنې له بېخه پاڅېد او پاچا ته ورغی.

له دې سره زما مریی هم له ستنې راکوز شو او په غولي یې پښه کېښوده.

ما پاچا ته وویل اوس ستا د غاښ درد کرار شوی دی، خو له دې کبله چې غاښ دې خراب شوی، بیا به دې غاښ درد پیدا کړي نو باید ویې باسې.

زه فکر کوم چې ته له خوږو سره علاقه لرې او ستا غاښونه ډېرې شېرینۍ خراب کړي دي، ځکه چې دلته له خرما څخه شرینۍ جوړوي او د خرما شیره غاښونو ته زیان رسوي.

په مصر کې شیریني له هغو خوږو څخه جوړوي چې یو ډول حشرې یې تولیدوي او دغه خواړه غاښونو ته تاوان نه رسوي.

پاچا وویل حشرې خواړه جوړولای شي؟

ومې ویل هو په مصر کې یو ډول حشره شته، چې هغوی مچیو ته ورته دي خو له مچیو وړې دي.

دغه حشرې پر خرما کېنې، یو ډول خواړه ترې جوړوي چې غاښونو ته هم تاوان نه پېښوي او د بدن له مضبوتیا او کلکوالي سره مرسته کوي.

پاچا وویل ته زموږ له خوش باورۍ استفاده کوې او دروغ وایې، مچۍ خواړه نه شي

جوړولای.

ومې ويل يو رښتينی سړی له سختو حالاتو سره مخامخېږي، ځکه چې که رښتيا ووايي نور پرې اعتماد نه کوي.

همغه ډول چې ته باور نه کوې په مصر کې مچې خواږه جوړوي، که زه هم مصريانو ته ووايم چې په بابل کې داسې مرغه شته چې الوت نه کوي خو له انسان سره ژوند کوي او هره ورځ د تمساح د هګۍ په شان هګۍ اچوي زما پر دې خبرې به هم هېڅوک باور ونه کړي.

که زه وکړای شم د غه هګۍ به مصر ته يو سم چې خلک يې وګوري او زما خبره ومني چې زه دروغ نه وايم.

پاچا وويل اوس راشه له ما سره ډوډۍ وخوره، ما ورته وويل په يوه شرط له تا سره ډوډۍ خورم، هغه دا چې امر وکړې د مېلمستون هغو مريیانو ته هم ډوډۍ ورکړي چې زه يې په روان تخت کې دلته راوستی يم ځکه چې هغوي هم وږي دي.

پاچا امر وکړ چې مريیانو ته هم ډوډۍ ورکړي او پر هغوی زما د خرما شراب وڅښي ځکه چې په بابل کې شراب له خرما جوړېږي

# پینځلسم څپرکی

## د راتلونکیو پیښو اټکل کول

کله چې ماغوښتل له سلطنتي ماڼۍ څخه ووځم پاچا وویل سینوهه! موږ یو جشن لرو او دا د مصنوعي پاچا جشن دی.

پر دغه ورځ باید راشې او دغه جشن وګورې ځکه چې باوري یم په مصر کې دغسې جشن نشته.

ومې ویل ډېر ښه، رابه شم.

پاچا په خندا وویل پر دغه ورځ به ستا مریی په زړه پورې وي. ومې پوښتل ولې؟ پاچا وویل ددې لپاره چې ډېر خلک به وخندوي. مېلمستون ته د ستنېدا پر وخت زما د روان تخت لېږدونکو مریيانو چې په خوړو او شرابو ښه ماړه شوي ول سندرې ویلې او زما ستاینه یې کوله هغه خلک چې په هغوی پسې روان ول هغوی هم د مریيانو په شان سندرې ویلې او زما ستاینه یې کوله.

دې موضوع زه په بابل کې مشهور کړم او خلکو به ویل مصري ډاکټر سینوهه داسې سړی دی چې د خپل روان تخت مریان هم مړوي

تر دې وړاندې چې د مصنوعي پاچا یا د دروغو د پاچا جشن (چې زه فکر کوم په بابل او یا بل کوم ښار کې به نه وي) پیل شي (او زه به یې وروسته کیسه وکړم) تاکل شوې وه د بابل د پاچا غاښ وباسم. نو(بورا بوریاش) احضار کړم. ما د غاښ تر ایستلو مخکې د هغه په رګ کې اپیم دننه کړل او له درد پرته مې د هغه غاښ وایست.

هلته موجودو بابلي ډاکټرانو خیال کاوه چې پاچا به له دې امله ما ووژني چې د غاښ د ایستلو پر وخت به ډېر درد احساس کړي، خو هغوی حیران شول او له ما یې پوښتنه وکړه چې پاچا ولې درد احساس نه کړ؟

ما وویل هغه درمل چې ما د هغه په رګونو کې ورکړي و، د درد د ختمولو خواص لري او د مصر لومړۍ درجه درمل دي.

دغه درمل د يوه بوټي له پوستکي تر لاسه کېږي.

دغه بوټی يوازې مصري کاهنين کاروي. دهغوی دنده د دغو بوټو له پوستکو د دغو درملو جوړول دي او هېڅکله د دغو درملو د جوړولو راز عامو خلکو ته نه وربښيي.

د دې لپاره چې دغه درمل هر ډول درد له منځه وړي، که د خلکو لاس ته ورشي بيا به خلک له درده نه وېرېږي او د ټولنې نظم ورسره ګډوډ ېږي ځکه چې بيا به څوک له جسمي ځورونې او شکنجې څخه نه ډارېږي.

پاچا وويل زه غواړم له دغو درملو لږ ولرم.

ومې ويل زه به لږ درکړم په دې شرط چې زما له لارښوونې پرته يې استعمال نه کړې. ځکه که دغه درمل له ضروري لارښوونې پرته استعمال شي د زهرو په شان به وژونکي شي.

پاچا وپوښتل او س چې زما غاښ دې له درد پرته راايستی دی. ووايه څه انعام درکړم؟

ومې ويل زه سرو او سپينو ته اړتيا نه لرم ځکه چې له خپل علم څخه سره او سپين تر لاسه کولای شم. خو زه غواړم ستا قدرت ووينم او وګورم چې څومره سپاهيان او لښکرې لرې. ځکه کله چې مصر ته ستون شم ستا د قدرت مدح به وکړم او ټول به ستا د صفتونو په اورېدو سره حيران شي.

زه غواړم امر وکړې چې ستا ځواکونه دې پرېډ وکړي چې ستا عسکر او جنګي ګاډۍ وګورم.

پاچا زما غوښتنه ومنله او زه له دې کبله ډېر خوشحاله شوم ځکه چې د بابل د پاچا په پوځي قدرت پوهېدای شوم.

له پرېډ مخکې مې کاپتا ته وويل چې د بابل د پاچا عسکر او جنګي ګاډۍ دې وشمېري او پوه دې شي چې د بورا بورياش په پوځ کې څومره عسکرا و ګاډۍ شته.

کاپتا وويل زه دومره عددونه له کومه کړم چې د هغو په وسيله د بابل ټول عسکر وشمېرم. ځکه چې ويل کېږي د بابل د عسکرو شمېر د دښتو د شګو په اندازه دی.

ومې ويل احمقه! اړتيا نشته چې ټول عسکر يو يو وشمېرې هر ټولی د يوې نښې ترشا حرکت کوي او که ته هره نښه وشمارې د عسکرو شمېره هم جوتېږي.

د پرېډ پر وخت پاچا مصنوعي ږيره په زنې کېښوده. ما کتل چې يوازې هغه عسکر چې په بابل کې دي نيزې لري او هغه چې په ولايتونو کې د پرېډ لپاره احضار شوي، زياتره يې نيزې نه لري او د ټولو سترګې معيوبې دي.

ما شپږته ځله د شپږتو ډلو عسکرو تېرېدل چې خاصې نښې یې درلودې وشمېرل او پوه شوم چې هر ټولی عسکر شپږته ځله شپږته عسکر دي.

ځکه چې په بابل کې شپږته مقدس عدد دی او د پاچا جنګي ګاډي هم شپږته ځله شپږته ګاډي دي.

ګاډي یې له ځانګړي فلزه چې او سپینه بلل کېږي جوړې کړې دي او تر هرې ګاډي لاندې دوه ستر غشي راوتلي چې په جنګ کې ډېر خطرناک وي.

خو دغه غشي زنګ وهلي ول او د ځینو ګاډیو ارابې هم د پرېږه پر وخت له خپل ځایه ر اوځي.

عسکرو په شپږته کسیزو لیکو کې حرکت کاوه چې پرېږه ژر پای ته ورسېږي او ټولې ګاډي د پېنځلسو ګاډیو په لیکه کې د پرېږه لپاره تېرېدلې.

د بابل د پاچا په عسکرو کې یوازې د مخصوص ګارډ عسکر ډېر په زړه پورې ول، خو ځینې پکې دومره چاغ ول چې په اسانه تللی نه شول او د هغوی پرېږه نندارچیانو ته د ساعت تېري لامل و.

کله چې شپه شوه پاچا ور وغوښتم او ویې ویل سینوهه! نن دې زما لښکر ولید ومې ویل، ستا د لښکرو ننداري نن زما سترګې توري کړې، ځکه چې ستا عسکر د سمندر د څنډې تر شګو او د اسمان تر ستورو ډېر دي او زه ستا د لښکرو له لیدو ورسته پوه شوم چې ته د ځمکې تر ټولو پیاوړی پاچا یې.

د بابل پاچا وویل سینوهه! ستا د غوښتنې منل ماته ډېر ګران ول ځکه چې ما پرېږه تیار کړ او باید ترڅو ورځو پورې چې عسکر له دې ځایه بېرته خپلو ولایتونو ته ځي باید هغوی ته خواړه ورکړم او د هغوی د خوړو لګښت به په یوه کال کې زما د یوه ولایت د مالیاتو په اندازه وي.

په دې څو ورځو کې چې عسکر د لته دي ډېرې سترې رسوایی به رامنځته شي او ددې لپاره چې په ښځو تېری کوي، څوک یې مخه هم نه شي نیولی.

له هغه وروسته چې دوی ولاړل تر یوه کاله پورې به لارې ناامنه وي، ځکه چې دغه عسکر چې ترڅو خپلو کلیو ته رسېږي په لارو کې چې هر څوک ګوري لوټوي یې.

خو له دې سره سره په دې ډېر خوشحاله یم چې خپل پوځ مې تاته دروښود او تا زما قدرت ولید.

خو اوس دا راته ووایه چې د مصر فرعون لور لري؟
ومې پوښتل چې د مصر له فرعون سره دې څه کار پاتې دی؟
د بابل پاچا ووېل، زه غواړم چې د هغه لور زما خورشي، که څه هم اوس څلور سوه ښځې لرم. خو یوه هم پکې د مصر د پاچا لور نه ده او زه ډېر غواړم دا سې یوه مېرمن ولرم چې د مصر د فرعون لور وي.
ما ووېل (بورا بوریاش) په دې پوه شه. له هغې ورځې چې دغه دنیا جوړه شوې د مصر د فرعون لور تل د خپل ورور ښځه وي او که ورور ونه لري بیا مېړه نه کوي. بلکې معبد ته ځي او کاهنه کېږي.
دغه خبره چې ته یې کوې د مصر د خدایانو له نظره کفر دی، خو زه ستا له خبرو نه خوابدی کېږم ځکه چې ته د مصر خدایان نه پېژنې.
د بابل پاچا ووېل ما فیصله کړې چې د فرعون د لور مزه وګورم او پوه شم چې له هغې سره څملاستل څه ډول خوند لري.
که فرعون خپله لور ما ته رانه کړي. زه به خپل لښکر د مصر خاورې ته دننه کړم. مصر به وران کړم او د هغه لور به په زور د ځان کړم.
ما ووېل (بورا بوریاش) د مصر فرعون لا ډېر ځوان دی او نوی واده یې کړی، لور نه لري.
که فرض کړو چې د مصر خدایانو پرېښوه ته د فرعون د لور ورکول منع کړي نه دي، خو هغه لور نه لري ځکه یې تا ته نه شي درکولای.
نو صبر وکړه چې هغه د لور خاوند شي او بیا د هغه له لور څخه د استفادې فکر وکړه.
پاچا ووېل سینوهه! زه نن د ننداري په ډګر کې ډېر ناست وم، د عسکرو پرېډ مې وکوت او اوس ډېر ستړی یم غواړم خپل حرم سرای ته ولاړ شم او له ښځو سره ساعت تېر کړم.
ته هم چې ډاکټر یې او هر څېر ته تللی شې له ما سره راشه او زه به په هغوی کې یوه موقتاً تاته درکړم چې خپل ساعت ورسره تېر کړې خو پام کوه چې هغه امېندواره نه کړې ځکه که حامله شوه ستونزه به پېښه کړي او ټول به وایي چې له ما حامله شوې.
ومې ویل (بورا بوریاش) دغه خبره مه کوه. ځکه د شرم خبره ده چې یو سړی خپله ښځه په موقته توګه بل چا ته ورکړي چې ورسره ساعت تېر کړي.

بورابوریاش وویل، ولې د شرم خبره ده که زما ښځې پوه شي چې زه حاضر یم یوه پکې بل چاته ورکړم چې تفریح ورسره وکړي ډېرې به خوشحاله شي، ځکه چې زه په یوازې سر له څلور سوه ښځو سره تفریح نه شم کولای.

بیا یې له ما پوښتنه وکړه چې ته څو ښځې لرې؟ما وویل، زه ښځه نه لرم.

بورا بوریاش په حیرانۍ وپوښتل ته ایجړا یې؟

ومې ویل نه

د بابل پاچا وپوښتل که ایجړا نه یې څنګه له ښځو پرته ژوند کولای شې او څنګه طبابت کوې. ځکه کله چې یو سړی له ښځې سره تفریح ونه کړي فکر یې پریشانه وي او خپل کار ښه نه شي کولای.

که غواړې له ژونده خوند واخلې زما په شان له بېلو بېلو ملتونو ښځې وکړه او ددې لپاره چې هره ښځه د خپلو ملي دودونو په اساس په یو ډول ساعت تېری کولای شي نو ته به هر ځل بېل بېل خوند اخلې.

سره له دې چې نه مې غوښتل حرم سرای ته ننوځم خو د بابل پاچا له ځان سره بوتلم او ما کتل چې د هغه ښځې له بېلابېلو ملتونو دي، ټولې ځوانې او ښکلې دي او هرې یوې خپلې ملي جامې اغوستي دي.

له دې کبله چې ځینې ښځې د مریبانو د پلورونکو له لوري له نورو هېوادنو راوړل شوې دي. په بابلي ژبه یې خبرې نه شوای کولای. خو ټولو خندل او هرې ښځې هڅه کوله چې د پاچا پام ځانته جلب کړي.

کله چې یې واورېدل پاچا غواړي خپله یوه ښځه موقتاً ماته راکړي چې پرې ساعت تېر کړم نو هڅه یې کوله چې زما پام هم ځانته جلب کړي.

پاچا راته وویل هرې یوې ته دې چې زړه کېږي خوښه یې کړه، خو ما ټولې غوښتلې او په هغوی کې مې یوه نه شوای غوره کولای.

پر دې سربېره د پاچا له قهر او د فیصلې له بدلونه وېرېدم، ځکه کله چې انسان له یوه هوسي پاچا سره وي باید احتیاط وکړي ځکه چې د پاچا نظر ناڅاپه بدلېږي.

له همدې امله مې وویل زه په سفر کې یم او د علم د ترلاسه کولو لپاره راغلی یم نو ښځه نه کوم، ځکه چې زموږ خدایانو ویلي که کله علم زده کوئ له ښځو کولو ډډه وکړئ.

اې د مصر خدایانو زه درڅخه بښنه غواړم چې دغه دروغ مې ستاسې له خولې وویل

خو ددې لپاره چې د بابل پاچا قانع کړم بله چاره مې نه درلوده.

کله چې ښځې پوه شوې زه یوه هم نه غواړم پر ما یې ملنډې ووهلې او ویې ویل داسې ښکاري ته هم دهغو خوجه ګانو (خواجګانو) په شان یې چې په حرم سرای کې کار کوي او له ښځو سره ساعت تېری نه شي کولای.

پاچا چې تصور کاوه ما ته د خپلې یوې ښځې په راکولو سره به ماډېر خوشحاله کړي، خپه شو او ویې ویل که تا دغابښ له درده نه وای ژغورلای اوس مې امر کاوه چې تا ووژني.

بیا یې زه رخصت کړم او تر دې وړاندې چې ولاړ شم بیا یې د دروغو د پاچا د جشن خبره وکړه او ویې ویل پسرلی راغلی دی، د دروغو د پاچا دجشن وخت نژدې شوی او ځان له دې جشنه خوند اخیستو ته چمتو کړه.

تر دې وړاندې چې دهدروغو د پاچا د جشن په هکله خبرې وکړم باید د هغې موضوع یادونه وکړم چې په ماپورې اړوند ېږي.

یوه ورځ د هغې هېنداري کتلو ته په مردوک برج کې ولاړ وم چې یو شی لوی ښکاره کوي.

دغه هېنداره چې د نړۍ په بل ښار کې نشته په بابل کې جوړېږي او یوه پنډه او ډېره رڼه هېنداره ده چې د یخ د یوې ټوټې په شان ځلېږي. کله چې انسان ددې هېنداري تر شا کوم شي ته ګوري نو هغه شی دومره لوی ښیي چې سړی ډاروي.

پر هغې ورځ چې زه ددې هېنداري کتلو ته ولاړم یو مېږی یې راوړ، ماهېنداره په لاس کې ونیوله او له شا مې هغه مېږی پکې ولید.

لږ پاتې و چې له ډاره وتښتم ځکه چې مېږی دومره لوی شوی و چې د اوبو اس ته ورته شو.

له دې وروسته چې د جسم لویوونکې هېنداره مې ولیده د برج پورتنې پوړ ته ولاړم چې ستور پېژاندي پکې دیره دي.

له هغوی مې وغوښتل چې زما طالع وګوري.

له دې کبله چې زه نه پوهېدم په کومه نېټه او چیرته پیدا شوی یم هغوی زما د راتلونکې په اړه اټکل ونه کړای شو، خو ماته یې وویل ته مصری نه یې.

ما وویل په دې کې شک نه شته چې زه په یوې ټوکرۍ کې وم چې په نیل کې یې حرکت کاوه او هغې ښځې چې په زوی ولې ومنلم ټوکرۍ یې له اوبو رااخیستې وه.

ستور پېژاندو ، وویل سره له دې چې ته یې په نیل سین کې موند لی یې ته نه د مصر یې او نه د کوم بل هېواد .د نړۍ هرګوټ ته چې ولاړ شې هلته به پردی وبلل شې.

ومې ویل ستا سې دغه خبره د منلو نه ده، ځکه په ټوله نړۍ کې به بالاخره داسې ځای وي چې هلته زېږېدلی یم. هغه ځای به زما ټاټوبی وي او زه په هغه هېواد کې پردی سړی نه بلل کېږم.

ستور پېژاندو . وویل . په نړۍ کې داسې ځای نشته چې ته پکې زېږېدلی یې.

ومې ویل بیا نو زه چیرته زېږېدلی یم ؟

یوه ستور پېژاندي وویل. ښایي ته د خدایانو زوی یې او له اسمانه ځمکې ته راغلی یې.

ومې ویل. زموږ په هېواد کې یوازې یو کس د خدایانو زوی وي او هغه هم فرعون دی.

منجمینو وویل په هر حال ستا طالع ددې ښودنه کوي چې ته په دې دنیا کې چې هر چېرته ولاړ شې هلته به پردی یې.

داسې ځای نشته چې ستا ټاټوبی وي او کله چې خبره همداسې شوه نو ته له اسمانه راغلی یې او د خدایانو زوی یې.

بیا مې په حیرانۍ ولیدل چې ستور پېژاندو زما پر وړاندې سرونه ټیټ کړل.

ما ویو ښتل ولې داسې کوئ.؟

هغوی ځواب راکړ موږ په یقیني توګه نه شو ویلای چې ته د خدای زوی یې خو پوهېږو چې په دې دنیا کې نه یې زېږېدلی نو د احتیاط لپاره تاته درناوی کوو چې که په رښتیا د خدایانو زوی یې. نو زموږ له لوري کومه تېروتنه ونه شي او د خدایانو پر وړاندې موږ مسول نه شو.

زه چې پوهېدم د خدایانو زوی نه یم نو د دوی دې خبرې ته ډېر هک پک شوم او داسې مې وانګېرله چې دغه ستور پېژاندي کم عقل او خرافاتیان دي

# شپاړسم څپرکی

## د درواغو ويلو د ورځې جشن

کله چې پسرلی پيل شي د بابل او سېدونکي دولسن ورځې جشنونه جوړوي.
پر دیارلسمه ورځ د دغه جشن دستوري يا مراسم په سترو درواغو یانې د درواغو د پاچا په جوړولو سره پای ته رسېږي.
په دغو دوولسو ورځو کې په بابل کې خلک خپلې تر ټولو ښکلې جامې اغوندي او ځوانې نجونې د ايشتار معبد ته ځي. هلته ځانونه نارينه وو ته سپاري چې ورسره تفريح وکړي.
کله چې هر سړي له يوې ښځې سره ساعت تېر کړ هغې ته ډالۍ ورکوي او ښځې دغه ډالۍ ټولوي چې کله مېره کوي. نو تيار جيز ورته لري.
هېڅوک له دغه دستور څخه تعجب نه کوي او هېڅ نارينه هم کله چې ښځه کوي دا تمه نه لري چې ښځه يې باکره وي.
په دغو دولسو ورځو کې ټول په عيش و عشرت بوخت وي او ځانونه د پسرلي د ديارلسمې ورځې جشن ته تياروي.
پر ديارلسمه ورځ زه په خپل مېلمستون کې ناست وم، ناڅاپه يو شمېر عسکر زما مېلمستون ته راننوتل. ناري يې کړې زموږ پاچا چيرته دی؟ زموږ پاچا راکړئ ګنې ټول به وو ژنو.
دغو عسکرو په قهرجنو چيغو د مېلمستون منزلونه ولټول او بالاخره هغه منزل ته را ورسيدل چې موږ پکې مېشت وو.
دوی ناري کړې زموږ پاچا راکړئ.... زموږ پاچا مه پټوئ.
عسکرو زموږ د کوټې په مخکې شور ماشور جوړ کړی و او زما مريي کاپتا له ډاره د خوب تر تخت لاندې پټ شو.
ما ته يې وويل فکر کوم په بابل کې بلوا شوې ده، پاچا تښتېدلی دی او د هغه پلويان په دې ګمان چې هغه په دې مېلمستون کې دی دلته راغلي دي
ما د کوټې دروازه خلاصه کړه او عسکرو ته مې وويل ما پېژنئ کنه؟
زه سينوهه ابن الحمار مصری ډاکټر يم. ما ستاسې د پاچا غابښ ايستلی دی، هغه زما د

خوشحالولو لپاره په همدې ښارکې خپل پوځ پرېږده تـه مجبوره کړاو کـه مـا پـه تکلیف کړئ ستاسي پاچا ته به ولاړ شم او شکایت به وکړم.

سپاهیانو وویل که ته سینوهه یې نو موږ په تا پسې ګرځو او غوښتل مو تا وموموو.

ومې پوښتل له ماسره مو څه کار دی ؟ ويې ويل چې ستا مريي مو په کار دی.

پوښتنه مې وکړه زما له مريي سره مو څه کار دی؟

عسکرو وویل نن د درواغو پاچا د جوړولو جشن دی . زموږ پاچا امر کړی چې ستا مريي ور ولو.

ومې ويل ستاسې پاچا زما له مريي سره څه کار لري؟

ويې ويل په دې نه يو خبر خو که مريي موږ ته ونه ښيې تا به لوڅ کړو او لـه جامو پرتـه بـه دې د پاچا ماڼۍ ته بوځو.

ددې لپاره چې وښيي ګواښ يې سم دی په يو حرکت يې زما جامې وايستلې او زه يې لوڅ کړم. بيا تولو په حيرانۍ ما ته کتل ځکه چې تر هغه وخته يې سنت شوی سړی نه و ليدلی.

يوه عسکر وويل د مردوک له خدايه پناه غواړم دغه سړی ولې داسې دی ؟

بل وپوښتل ايا ټول مصري سړي همداسې دي ؟

ومې ويل هو ! په مصر کې نارينه په ماشومتوب کې سنت کوي. يوه پکې وويل دغه خبره موږ ته اهميت نه لري او بل نارې کړې موږ له تا هغه څوک غواړو چې بايد را ويې سپارې ګنې....

ما ورته وويل خبره لنډه کړئ او ووايئ چې څه به وکړئ ؟ .

عسکرو وويل يا دې مريي راوښيه اويا به تا لوڅ لغړ د بابل له واټونو تېر کړو او د پاچا ماڼۍ ته به دې بوځو.

ومې ويل زه به ستاسې پاچا ته شکايت وکړم او وبه وايم چې تاسې ته سخته سزا در کړي.

عسکرو وويل پخپله پاچا موږ ته ويلي چې که موږ ته خپل غـلام ونه سپارې تـا لوڅ مـاڼۍ تـه ورولو.

کاپتا چې تر تخت لاندې له ويرې رېږدېده له هغه ځايه راووت او ويې ويـل زمـا بـادار لوڅ لغړ سلطنتي ماڼۍ ته مه وروئ، ځکه چې د يوه مشهور ډاکټر عزت ته تاوان رسېږي، زه حاضر يم له تاسې سره هر چيرته ولاړ شم.

کله چې عسکرو کاپتا وليد د خوشالۍ چيغې يې وکړې او ويې ويـل، مردوک دې تـل پـاتې وي..... زموږ پاچا پيدا شو .... موږ خپل پاچا پيدا کړ او اوس هغه د پاچاهۍ ماڼۍ ته بيايو.

کاپتا سرتېرو ته حيران حيران کتل او کله چې عسکرو د هغه حيرانتيا وليده پـه خوشالۍ يې نارې کړې ته د څلورو فصلونو پاچا يې.

ته زمونږ شهزاده یې او مونږ دې له څېرې پېژنو.
ځینو عسکرو د کاپتا پر وړاندې سرونه ټیټ کړل او ځینې نورو د شا لخوا په لغتو وواهه او پر یې کړه چې ژر ورسره روان شي.
کاپتا وویل. زما باداره خیال کوم په داسې هېواد کې ژوند کوم چې ټول او سېدونکي یې لیوني دي.
زه اوس نه پوهېږم چې پخپلو دوو پښو ځم که په سر روان یم او ښایي خوب وینم ځکه هغه څه چې ګورم د خوب منظرې دي او که زه یې په دغه هېواد کې اپوته راخوړند کړم نو ته مه پرېږده چې زما جنازه ځناور وخوري. جنازه مې مومیایي کړه او په مصر کې مې ښخ کړه.
یوه عسکر په خندا وویل دلته د مړیو جنازې ځناور نه خوري ځکه چې جنازه یې په سیند کې اچوو او اوبه یې د سمندر لوري ته بیایي.
کاپتا وویل باداره مه پرېږده چې زما جنازه په سین کې واچوي ځکه چې زه به په بلې دنیا کې ژوندی پاتې نه شم.
عسکرو وخندل او ویې ویل مونږ نن یو ښه پاچا پیدا کړای شو، ددې لپاره چې د خبرو په وخت یې ژبه نه ښلي.
کاپتا نه غوښتل له مېلمستونه ووځي خو عسکرو په لغتو او د نیزو د لرګیو په ګوزارونو هغه وخوځاوه او له ځان سره یې بوت.
له دې وروسته چې کاپتا په جبر روان شو ما په بیړه خپلې جامې واغوستې او د هغه ترشا د پاچا د ماڼۍ پر لور روان شوم. زه پوهېدم چې له پاچا سره نژدې اړیکي لرم نو چا زما مخه و نه نیوله.
کله چې ماڼۍ ته ننوتم په ماڼۍ کې ګڼ شمېر کسان راټول شوي ول ټولو نارې وهلې او عسکرو په ډېر هیجان خپلې نیزې ښورولې.
ما یقین وکړ چې په بابل کې بلوا شوې ده او که له ولایتونو عسکر و نه غوښتل شي ممکنه ده د بابل پاچا بورا بوریاش د پاچاهۍ له ګدۍ کښته شي، ځکه د خلکو له احساساتو داسې ښکارېده چې د بورا بوریاش په خلاف خپل احساسات څرګندوي.
له دې پرته چې څوک زما مخه ونیسي هغه تالار ته ننوتم چې پوهېدم د بابل پاچا هلته دی.
کله چې تالار ته ور ننوتم ومې لیدل چې د مردوک د ستر معبد کاهن او یو شمېر نور کاهنان هم هلته راټول شوي دي.
کله چې کاپتا تالار ته ننوت ناڅاپه د مردوک د معبد ستر کاهن په داسې حال کې چې د بابل پاچا ته یې اشاره کوله وویل. دغه هلک چې لا یې زیره نه ده شنه شوې له دې ځایه وباسئ.....مونږ

چمتو نه يو چې هغه خپل پاچا وبولو.

نورو ددغه کس د خبرو د تايد لپاره وويل. دغه هلک له دې ځايه وباسئ او موږ چمتو نه يو چې له دې زيات يو ماشوم پر موږ حکومت وکړي... هغه وباسئ.

د مردوک د معبد ستر کاهن زما د مريبه کاپتا لور ته اشاره وکړه او ويې ويل اوس موږ وتوانيدو يو بالغ او هوښيار پاچا پيدا کړو او هغه به خپل پاچا غوره کړو چې د عقل او د شتمنۍ په فکر پر موږ حکومت وکړي.

کله چې دغه خبرې د معبد دکاهن له خولې ووتې، هغه کسان چې هلته وو د بابل په ځوان پاچا يې حمله وکړه، په خندا او ټوکويې د شاهي ښښې د هغه له سر او ټټره لېرې کړې او جامې يې ترې وايستلې.

وروسته يې د هغه پښې او لاسونه لمس کړل او ويې ويل وګورئ دغه ځوان څومره کمزوری دی. لا يې له خولې د شېدو بوی راځي او دخپل حرم سرای د ښځو ساعت هم نه شي تېرولای.

دوی زما غلام ته په اشارې سره وويل، دی به حرم سرای ته استوو چې د حرم سرای د ښځو ساعت ورسره تېرشي.

کله چې له بورا بورياش د پاچاهۍ ښښې اخيستل کېدې هېڅ مقاومت يې هم ونه کړ او ما کتل چې له خپل زمري سره چې لکۍ يې د پښو په منځ کې نيولې وه دکوټې يوه کونج ته ولاړ.

کله چې مې وکتل زما غلام ته يې سلطنتي جامې ور واغوستې او پر ټټر او سر يې د پاچاهۍ ښښې ښباښې ور ولګولې نو زه نه پوهېدم چې پر خپلو پښو روان يم او که پر سر.

کاپتا يې په هغه تخت کښناوه چې مخکې د بابل پاچا پرې ناست و حاضرو خلکو يې پر وړاندې سجده وکړه او ځمکه يې ښکل کړه، ان پخپله بورا بورياش چې لوڅ و د کاپتا پر وړاندې سجده وکړه او ويې ويل، هغه بايد زموږ پاچا وي، ځکه چې تر هغه هوښيار او عادل سړی په دې هېواد کې نشته.

زما مريي دومره هک پک پاتې و چې خبرې يې نه شوې کولای، خو ما کتل چې د سر وېښتان يې د پاچاهۍ تر ښښو لاندې چې پر سر يې اېښودل شوې وې جګ ولاړ ول.

کله چې په کوټې کې موجودو کسانو کاپتا ته درناوی کاوه هغه نارې کړې غلي شئ، ټول غلي شول او هغه وويل:

زه فکر کوم يوه کوډګر پر ما کوډې کړې او داسې شيان رابښيي چې حقيقت نه لري، ځکه چې ناممکنه ده دا خبره ومنو چې زما په شان يو پردی کس په دغه هېواد کې پاچا شي.

حاضرينو اعتراض وکړ او په ټوکو او خندا يې وويل. داسې نه ده، ته زموږ پاچا يې، هېڅا په تا کوډې نه دي کړي او موږ په ډېر صميميت او خوشحالۍ سره ته خپل پاچا کړی يې.

کاپتا وویل سره له دې چې زه نه غواړم ستاسې پاچا شم خو ستاسې د فیصلې پر خلاف هم عمل نه شم کولای.

ددې لپاره چې ستاسې شمېر زیات دی. خو له تاسې یوه پوښتنه کوم او غواړم چې سم ځواب راکړئ..... زه ستاسو پاچا یم کنه؟

ټولو په ګډه ناري کړې هو ... هو .... ته زموږ پاچايې او بيا يې د هغه پر وړاندې سجده وکړه.

يوه کس د زمري پوستکی واغوست او د کاپتا د تخت پر وړاندې پر ځمکه کېناست او وغرېد.

کاپتا يو ځل بيا ناري کړې غلي شئ او ټول غلي شول.

زما مريبه وويل که زه ستاسې پاچا يم بايد زما حکمونه ومنئ.

ټولو ناري کړې هر څه چې ته وايې تر سره به يې کړو.

کاپتا وويل له دې کبله چې زه نن ستاسې پاچا شوی يم نن بايد جشن جوړ کړئ او ووايئ چې مريان راشي.

ځينې مريبان چې موجودل و کاپتا ته نژدې شول او هغه وويل سمد ستي شراب او خواړه راوړئ چې ويې خورم او د شرابو په وسيله ځان خوشحاله کړم او نور هم زما په شان ځانونه ماړه او سرونه ګرم کړي.

مريبانو وويل په بلې کوټه کې شراب او خواړه چمتودي، هغه يې پورته کړ او په شور ما شور او خنداګانو يې بل هال ته يووړ.

زه هم له هغو سره ولاړم او ګورم چې هلته ډول ډول خواړه او شراب اېښودل شوي او هر څوک چې څه غواړي خوړاى او څښلاى يې شي.

د بابل پخواني پاچا بورا بورياش د مريبانو په شان يو لنګ تر ملا تاو کړی و او د خلکو په ټولي کې يې هر لوري ته منډې وهلې.

د شرابو جامونه يې نسکورول، د موجودو کسانو په جامو به يې ټينګه قورمه اچوله او هغوی به يې اړكول چې ښكنځلې وكړي.

د سلطنتي مانۍ په حويلۍ كې يې حوضونه له شرابو او بيرو ډک کړي ول. چې هر چا کولای شول د حوضونو په څنګ کې په موجودو جامونو کې شراب يا بيير راواخلي او ويې څښي او په مستو او خرما او له شېدو څخه په ترلاسه کېدونکو يو ډول غوړو باندې (مقصد يې کوچ دي) خېټې مړې کړي.

کله چې خېټې مړې او سرونه ګرم شول داسې شور او ولوله په خلکو کې پيدا شوه چې مايې سارې نه وليدلی.

د پرګنو او رتبو توپير نه ؤ هرچا به له يو بل سره ټوکې کولې او چا چې تر پرونه پورې د پاچا

بورا بوریاش پر وراندې سجده کوله نن یې هډوکي د هغه لور ته ګوزارول

بورا بوریاش به هم خندل او بیرته به یې هډوکي د هغه چاپر لور ګوزار کړ چې دی به یې پرې ویشتی و.

ددې شور ماشور په منځ کې ما ځان خپل مریي ته ورساوو. هغه ته مې وویل کاپتا! اوس ټول مست او نشه دي. څوک ستا فکر نه کوي پاځه چې د نورو له خبرتیا پرته ولاړ شو ځکه چې زه اټکل کوم د دغه کار پایله به ښه نه وي.

کاپتا! چې د کباب شوي خره د غوښې په خوړولو لګیا و. وویل ستا دغه خبرې ما ته د یوه مچ د بنګېدا په شان دي.

نه زه ستا خبره منم او نه دغه نیکمرغي پرېږدم چې له دې ځایه ولاړ شم.

ته نه ګورې چې دغو خلکو په څومره مینه او شوق زه خپل پاچا ټاکلی یم؟

ایا ددغې مینې او علاقې په بدل کې له دغه ملت سره خیانت وکړم او هغوی پرېږدم.

بله دا چې ته باید له دې وروسته ما ته د کاپتا نوم وانه خلې ځکه چې زه د څلورو فصلونو پاچا یم او هر څل چې له ما سره خبرې کوې باید ووایې، اې د څلورو فصلونو پاچا او د نورو په شان زما په مخکې سجده وکړې.

ومې ویل کاپتا ... ستا دغه پاچاهي یوازې درواغ او ټوکې دي. ځکه امکان نه لري دغه ملت تاغوندې یو بهرنی مریی خپل پاچا وټاکي او زه وېرېږم هسې نه چې د دغو ټوکو نتېجه موږ ته خطرناکه وي.

له دې مخکې چې ناوخته شي پاځه چې ځانونه یو چېرته پټ کړو چې له دې ځایه ولاړ شو او که پاڅېږې او راشې زه به ستا دغه سپین سترګي وبښم او تا به په پښو لکړې نه وهم.

کاپتا خپله غوړه خوله پاکه کړه او په لاس کې یې د خره په یوه هډوکي سره وګواښلم او ناري یې کړې دغه پلیت مصری له دې ځایه لېرې کړئ ګنې مجبور به شم چې په لرګي د هغه هډوکي ورمات کړم.

کاپتا چې دغه خبره وکړه. هغه سړي چې د زمري پوستکی یې اغوستی و. پر ما حمله وکړه. پر ځمکه یې وغورځولم او پښو لو نو کانو یې شو کارې کړم.

لږ پاتې و چې ټول بدن مې زخمي کړي. خو له نیکه مرغه نغارې ووهل شوې او اعلان وشو چې نوی پاچا دې د عدالت د پلي کولو لپاره ولاړ شي او مصنوعي زمري زه خوشې کړم.

د بابل عدالت خونه (محکمه) سلطنتي ماڼۍ ته نژدې وه او کله چې یې کاپتا هلته د عدالت د پلي کولو لپاره بوتلو ددې لپاره چې له دغه مسولیته ځان خلاص کړي. ویې ویل زه د بابل د قاضیانو په عدالت ډاډه یم. غوره دا ده چې هغوی د پخوا په شان عدالت وچلوي

خو خلکو دغه خبره ونه منله او ویې ویل چې موږ د خپل نوي پاچا له لوري د عدالت پلي کول غواړو. چې پوه شو ایا هوښیار او پوه دی. او د انصاف د اصولو پر بنسټ فیصله کولای شي؟

کاپتا مجبور شو چې قضاوت ته غاړه کېږدي او خلکو هغه د قاضي پر چوکۍ کېناوه.

متروکه اوزولنې یې چې دعدالت د اجرا نښې دي د هغه په مخکې کې کېښودې

لومړی هغه سړی نژدې شو چې ظلم پرې شوی و، د دغه سړي جامې شکېدلې وې او ما وکتل چې د سر وېښتان یې هم سپین دي

وروسته پوه شوم چې د سر وېښتان یې له دې امله سپین شوي ول چې ایرې یې پر سر شیندلې وې او کالي یې هم په قصدي توګه شلولي ول چې په پریشانه حالت کې پاچا ته راشي.

ځکه کله چې څوک په بابل کې ځان مظلوم بولي. هڅه کوي له ظاهري پلوه خوار او بېوزله ښکاره شي. چې د پاچا پرې زړه وخوږېږي.

سړی زما د مریي په مخکې پر ځمکه پرېوت. ځمکه یې ښکل کړه او ویې ویل. اې د څلورو فصلونو پاچا! نن ستا په شان بل څوک عادل او هوښیار نشته. ځکه خو له تا څخه د عدالت تمه لرم

زه یوه ښځه لرم چې څلور کاله ورسره یم خو امیندواره شوې نه وه. اوس نوې جامله شوې او سره له دې چې ځینو راته ویل ستا د ښځې په خېټه کې حرامي دی. خو ما نه منله تر دې چې پرون مې له یوه عسکر سره ولیده.

زه ونه توانېدم دغه عسکر ونیسم ځکه چې هغه ډېر پیاوړی و او کله چې زه کور ته راغلم وتښتېد.

خو اوس مې توره ینه له درد او شکونو ډکه ده. زه نه پوهېږم دغه ماشوم چې زما د ښځې په خېټه کې دی. زما دی که د هغه عسکر.

له همدې کبله راغلی یم چې له تا وغواړم دغه ستونزه راته هواره کړې او ما له دې شکونو خلاص کړې چې پوه شم د دغه ماشوم په هکله زما دنده څه ده؟

کاپتا په وراخطایی شاوخوا وکتل. ځکه چې نه پوهېده څه ځواب ورکړي. ده هڅه کوله داسې ځواب ورکړي چې له عدالته لېرې نه وي. نو ناڅاپه یې مریيان را وغوښتل او ویې ویل لرګی واخلئ او دغه سړی ووهئ.

مریيانو سوټې را واخیستل او پر سړي اخته شول.

تر دې وروسته چې هغه یې وواهه سړي، خلکو ته وویل ایا زما په اړه د پاچا فیصله عادلانه وه. ظلم هم پر ما شوی و او باید وهلی شوی هم زه وای؟

خلکو چې دغه خبره واورېده له کاپتا یې توضیحات وغوښتل او ویې پوښتل. اې د څلورو فصلونو پاچا ولې دې د دغه سړي د وهلو حکم وکړ؟

کاپتا وویل یو سړی چې دومره احمق وي د وهلو وړ دی، ځکه دا د منلو وړ ده چې یو سړی خپله کرونده چې ښه فصل کوي همداسې پرېږدي او تخم پکې ونه کري؟ کله چې بل څوک د احسان او ترحم له مخې راځي او په دې پټې کې تخم کري نو بیا دی راشي او شکایت وکړي چې ولې نورو دده په ځمکه کې تخم کرلی دی.

خو که شاړه ځمکه له نورو وغواړي چې پکې تخم وکري ایا باید کرونده ملامته کړو؟ البته له دې کبله ښځه ګرمه نه ده، چې له بل سړي سره یې اړیکي نیولي دي، ځکه چې دغه سړي د ښځې غوښتنه پوره نه کړای شوه او هغه یې پر یوې شاړې ښځې بدله کړې وه.

خلکو چې دغه خبرې واورېدې د شاباس غږونه یې وکړل او د کاپتا پوهه او هوښیاري یې وستایل.

بیا یو بوډا کاپتا ته نژدې شو او ویې ویل اې د څلورو فصلونو مالکه، زه ستا او د دغې ستنې پر وړاندې چې د بابل قوانین پرې لیکل شوي د عدالت اجرا غواړم او شکایت مې دادی:

په دې وروستیو کې ما د کوڅې په څنډه کې کور جوړ کړ، خو هغه ختګر چې زما کور یې په ټیکې جوړ کړ، زه یې تېر ایستلم، خراب توکي یې د کور په ودانۍ کې وکارول او کور یې ښه مضبوط جوړ نه کړ.

کله چې دغه کور وران شو او یو لاروی هم پکې ووژل شو اوس د دغه لاروي قربانیان له ما څخه تاوان غواړي، په داسې حال کې چې ما ګناه نه ده کړې.

زما بر خلیک څه دی او د دغه مړه شوي لاروي خپلوانو ته څه ووایم؟

کاپتا فکر وکړ او ویې ویل دغه موضوع چې تا یاده کړه ډېره پېچلې ده، بیا یې د بابل له قاضیانو څخه چې هلته موجود ول وپوښتل، په دې اړه قانون څه وایي؟

قاضیانو هغه ستنه کاپتا ته وروښوده چې قانون پرې لیکل شوی و او ویې ویل که یو کور د ټیکه دار د سستۍ یا ټګۍ له امله وران شي او د کور خاوند ووژني باید ټیکه دار ووژل شي.

که کور له ورانیدا وروسته د کور د مالک زوی ووژني باید د ټیکه دار زوی د کور د خاوند د زوی د قتل په تور ووژل شي.

قانون د نورو د وژلو په هکله څه نه وایي، خو موږ یې داسې تعبیروو چې که د کور له ورانې څخه نورو ته هرډول تاوان ورسېږي باید ټیکه دار یې جبران کړي او باید همدومره تاوان نورو ته ورکړي.

کاپتا وویل زه نه پوهېدم چې په دې هېواد کې ټیکه داران دومره ټګان او چلبازان دي او د کورونو له توکو غلا کوي او یا دا چې د کورنو په جوړولو کې داسې بې پامي کوي چې کور ورانیږي، نو زه به له دې وروسته پام کوم چې له دغسې دوکه مارو ټیکه دارانو سره مخامخ نه شم.

خو ددغه سړي د شکایت په هکله او دا چې د وژل شوي لاروي خپلوانو ترې تاوان غوښتی دی زما عقیده دا ده:

د وژل شوي لاروي کورنۍ باید د تیکه دار ختګر د کور مخې ته ولاړشي او کله چې لاروی هلته تېرېږي نو دوی دې یې ووژني.

خو که ددغه لاروي خپلوانو د لومړني لاروي د خپلوانو په شان د تاوان او ګرمې غوښتنه وکړه هغه کسان باید ګرمه ورکړي چې دویم لاروی یې د تیکه دار د کور مخې ته وژلی دی.

د اصلي مجرم په هکله زما نظر دا دی چې په دغې پېښه کې هېڅوک د هغه لاروي په اندازه ګرم نه دی چې ددغه بې بنسته او سست کور له ځنګه تېریده، ځکه هېڅ هوښیار کس د هغه کور له مخې نه تېرېږي چې اډانې یې سستې وي او ممکنه ده وران شي.

له هغه وروسته اصلي تورن همدا بوډا دی چې دلته راغلی او وایي چې کور یې وران شوی دی.

دغه سړی له دې امله مجرم دی چې که له دې چې د بابل او سیدونکی دی. ټول عمر په همدغه هېواد کې اوسېدلی او بوډا شوی، خو لا هم نه پوهېده چې په بابل کې باید د کور جوړ یو تیکه دار ته ونه سپارل شي ګنې باید په تمه وي چې په لومړنۍ میاشت کې یې کور وران شي.

که خپل کور کوم تیکه دار ته ورکوي باید د هغه پر کار څارنه وکړي چې هغه درغلي ونه کړي.

له دې کبله چې د تیکه دار کار یې نه دی څارلی او هغه یې نه دی کنټرول کړی، نو هغه باید غولولی او کور یې داسې ور جوړ کړی وای چې وران شي.

ځکه تر هغه چې احمقان دوکه نه شي او هغوی تاوان ونه زغمي هوښیاران به نه شي.

یو ځل بیا خلکو د کاپتا عدالت وستایه او هغه سړی چې د عدالت د اجرا لپاره راغلی و په خواشینۍ سره لېرې شو.

بیا یو چاغ سوداګر چې ګران بیه کالي یې اغوستي ول کاپتا ته نژدې شو او و یې ویل. درې ورځې مخکې زه هم د نورو په شان د ایشتار معبد ته ولاړم چې له یوې باکرې نجلۍ سره ساعت تېری وکړم.

له دې وروسته چې سره او سپین مې ورکړل د یوه عادي حاجت لپاره مجبور شوم له هغې لیرې شم او چې بېرته راستون شوم. په حیرانۍ مې ولیدل چې هغه له یوه بل سړي سره ساعت تېری کوي.

په داسې حال کې چې له مابې سپین زر اخیستي ول او له ما سره یې وعده کړې وه چې دستنبدا په تمه مې پاتې کېږي.

کله چې مې وورته وویل زما سپین زر راکړي. ځواب یې راکړ چې تا راسره وعده کړې چې تفریح به راسره کوې او س چې هغه سړی ولاړ له ما سره ساعت تېرولای شې.

ما ورته وویل ما هغه وخت له تا سره ساعت تېری کاوه چې ته باکره وې خو اوس بکارت نه لرې.

خودې نجلۍ زما خبره ونه منله او ویې ویل زه ستا سپین زر بیرته نه درکوم. ځکه هغه څه چې تا غوښتل له ما یې واخلې اوس هم له ما سره شته او هغه ترلاسه کولای شې.

ما ورته وویل چې ما له تا څخه یو روغ ختمین لوښی اخیستی و او د هغه بیه مې هم درکړه او بیا د یوه کار لپاره له تا څخه لېرې شوم.

په هرحال کې لوښی زما شوی و ځکه تا دغه ختمین لوښی پر ماخرڅ کړی و او دا حق دې نه در لود چې پر چا یې خرڅ کړې چې هغه یې پر ځمکه وولي او مات یې کړي.

اوس چې زه راغلی یم ته د مات شوي لوښي ټوټې ماته راکوې او راته وایې دغه لوښی دې له ما اخیستی دی.

کله چې کاپتا دغه خبرې واورېدې خپله متروکه یې په زوره وښوروله او ویې ویل:

ما هېڅ چېرته داسې سړي نه دي لیدلي. چې د دغه ښار د خلکو په شان سادګان او احمقان وي او د هغو شیانو په اړه شکایت کوي چې بې اهمیته وي.

اې سوداګره! که ته د یوې تازه میوې لپاره بازار ته ولاړ شې. کله چې مېوه واخلې سمدستي یې خورې کنه څو ورځې یې پرېږدې. بیا څو شپې وروسته ورستنېږې او وایې ولې دغه میوه چې ما اخیستې ده وروسته او شیته شوې ده؟

یوه خوانه او باکره نجلۍ هم لکه تازه میوه داسې ده. کله چې چا واخیسته باید ژر یې وخوري.

خو که یې ځوانه نجلۍ پرېښوده او دی ترې ولاړ او د راستېدو پر وخت یې ولیدل چې د هغه میوه خرابه شوې یا ستا په وینا ختمین لوښی مات شوی باید شکایت ونه کړي.

ته ددې پر ځای چې له دې نجلۍ شکایت وکړې باید د هغې احسان ومنې. چې له تا سره یې مرسته کړې. ځکه چې ستا له ستېندا مخکې یې ستا لپاره خنډ لېرې کړی او که دغه خنډ پاتې وای ستا لپاره به یې ستونزه پیدا کړې وه.

خو هغې دغه زحمت بل چاته پرېښود چې ته له ستونزې پرته ورسره ساعت تېر کړې.

له دې معلومېږي چې ته کم عقل سړی یې او د تازه میوې په قدر نه پوهېږې. زه تا محکوموم چې له دې وروسته تل له ماتو شویو لوښو سره ساعت تېر کړې.

بیا هم خلکو د ستاینې نارې ووهلې او د کاپتا پوهه او عقل یې وستایه.

زما مریي قاضیانو ته په خطاب کې وویل:

نن ما په کافي اندازه عدالت اجرا کړ. اوس ستړی شوی یم. باید استراحت وکړم او که نور

شکايت کوونکي پيدا شول بايد قاضيان د هغوی شکايتونه وجاجوي.

د دغه سود اګر شکايت زه متوجه کړم، چې يو پاچا يم او په حرم سرای کې ځلور سوه ښځې لرم ،بايد ولاړ شم او ورسره ساعت تېر کړم. زه له هغوی سره د تفريح لپاره ځان وړ بولم، ځکه چې خوړو پياوړی کړی يم او پردې سر بيره، له هغه وروسته چې د ځلورو فصلونو سلطان شوم، فوق العاده ځواک راپکې پيدا شوی چې حتی په ځوانۍ کې مې داسې ځواک نه درلود.

خلکو په ډېرې خوشالۍ سره کاپتا د حرم سرای پر لور بوت خو په خلکو کې يوه سړي ساعت تېري نه کوله او نه يې خندل.

هغه بورا بورياش و، ځان يې ماته را ورساوه او ويې ويل سينوهه! ته ډاکټر يې او حرم سرای ته ننوتی شې.

ورشه او مه پرېږده چې ستا مريی زما ښځو ته لاس وروړي، ځکه که دغه کار يې وکړ نن ما ښام به د هغه پوستکی ترې وباسم او پوست به يې پر دېوال کېږدم چې وچ شي.

خو که زما د ښځو پر لور لاس اوږد نه کړي د هغه مرګ به اسانه کړم او زه وايم چې داسې يې ووژني چې شکنجه نه شي.

ما وويل، بورا بورياش هرڅه چې ته وغواړې زه به يې ترسره کړم خو زه له دې امله ډېر خپه يم چې تا د مريانو په جامو کې وينم.

زما يينه او توری، له غمونو ډک دي، ځکه دا نه شم زغملای چې خلک دې تا سپک کړي او يا درته سپکې سپورې ووايي.

بورا بورياش وويل نن د سترو درواغو يانې د درواغو د پاچا ورځ ده، پر دغې ورځ يو کس د بابل د پاچا په توګه تاکل کېږي خو د هغه پاچاهي تر يوې ورځې زياته نه وي او د بابل ټول او سيدونکي پر دې خبرې پوهېږي.

خو کله چې زه او ته خبرې کوو ستا مريی د حرم سرای پر لوري ځي ، زه وېرېږم چې هغه زما ښځو ته لاس وانه چوي، ته ورشه او ددې پېښې مخه ونيسه.

زه او بورا بورياش د حرمسرای پر لور وخوځېدو او په لاره کې ما د سترو درواغو د ورځې د دودونو په هکله ترې توضيحات وغوښتل.

هغه وويل هر کال پر دغې ورځ د بابل خلک تر ټولو بدرنګه او ساده سړی د يوې ورځې لپاره د پاچا په توګه ټاکي او ددغه سړي پاچاهي له سهاره پيلېږي او د بابل پاچا د يوه مريي په شان د هغه خدمت کوي.

پر دغې ورځ دغه موقتي پاچا هرڅه چې وغواړي ترسره کوي يې. ما چې ستا مريی وليد چې ډېر بدرنګه او احمق دی، و مې ويل چې هغه ديوه ورځنې سلطنت لپاره انتخاب کړئ.

ما وپوښتل له دې وروسته چې دغه ورځ پای ته ورسېږي له دغه موقتي او يو ورځني پاچا سره څه کوئ؟

بورا بورياش وويل، کله چې دغه ورځ پای ته ورسي، هماغه ډول چې سهار ناڅاپه هغه د بابل پاچا شو په څو شېبو کې د لمر لوېدو پر وخت هغه وژني او د هغه د وژلو فرمان د بابل پاچا يانې زه ورکوم.

که دغه سړی چې د يوې ورځې پاچا کېږي په يوې ورځې کې څوک مړه او ژوبل نه کړي يا د چا ښځه او شتمني د ځان نه کړي د لمر لوېدو په وخت کې د هغه په شرابو کې زهر اچول کېږي او هغه ته يې ورکوي چې له خوارۍ پرته مړشي.

خو که په دې يوې ورځې کې يې له خپل قدرته ناسمه استفاده وکړه په دې بڼه کې به يې زه په سختې شکنجې سره مړ کړم.

پخوا يو ځل په همدې ورځ د بابل حقيقي پاچا چې د نورو په شان په ساعت تېريو بوخت و، د يوې ترخې شوروا د خوړلو له امله چې خلکو به ويل زهر پکې اچول شوي ول له دې نړۍ سترګې پټې کړې او هغه بدرنګه او کم عقله سړی چې د يوې ورځې لپار د بابل پاچاشوی و، د حقيقي پاچا له مړينې وروسته شپږ د يرش کاله د بابل پاچا.

له همدې امله زه نن د خوړو او څښاک په وخت کې ډېر احتياط کوم چې د نوموړي پاچا په برخليک اخته نه شم.

کله چې زه او بورا بورياش د حرم سرای دروازې ته ورسېدو ما وليدل چې کاپتا په داسې حال کې چې له پوزې يې وينه څاڅي او يوازينۍ سترګه يې پړسېدلې له هغه ځايه راووت.

ما وويل کاپتا په تا څه شوي، ژوبل شوی يې؟

کاپتا وويل، وګوره په حرم سرای کې يې له ما سره څه وکړل؟

ده زياته کړه کله چې زه حرم سرای ته ننوتم پوه شوم چې دوی غواړي زړې، تورې او چاغې وينځې ماته راکړي،

ما وويل چې له هغوی کرکه کوم او د يوې ځوانې او ښکلې ښځې پر لور روان شوم، خو هغې ښځې لکه زمرۍ پر ما حمله وکړه او په خپلو بوټانو يې په سترګو او پوزې ووهلم چې سترګه مې وپړسېده او له پوزې مې وينه روانه شوه.

کله چې بورا بورياش زما د مريي خبره واورېده داسې يې وخندل چې پر ځمکه دلوېدو له ويرې يې زما په مټ تکيه وکړه.

کاپتا وويل سينوهه زه جرائت نه شم کولای چې حرم سرای ته ننوځم ځکه چې دغه ښځه ليونۍ شوې ده او که حرم سرای ته ننوځم ما به ووژني.

ته حرم سرای ته ولاړشه او د هغې جمجمه سوری کړه چې د هغې په سر کې ننوتلي ورانکاري روح ترې راووځي او زه یې په غېږه کې ونیولای شم.

ځکه که د غه ښځه لیونۍ نه وای نو پر ما به یې حمله نه کوله ځکه زه اوس د هغې پاچایم او دا حق لرم چې هغه خپله خور کړم.

بورا بوریاش ما ته وویل سینوهه! ورشه وګوره چې په حرم سرای کې څه تېرېږي او کومې ښځې پر د غه احمق حمله کړې ده؟

نن چې د درواغو د پاچا ورځ ده، زه حرم سرای ته نه شم ننوتلای، خو ته چې ډاکټر یې هر چیرته ان حرم سرای ته ننوتی شې.

زه فکر کوم هغې ښځې چې ستا پر مریي یې حمله کړې، یوه پیغله ده چې نوې یې ماته راوستې ده او ما غوښتل چې هغه د ځان کړم خو لا هم لکه د وحشیانو غوندې ده او زه په تمه یم چې هغه ارامه شي.

ما نه غوښتل چې حرم سرای ته ننوځم خو بورا بوریاش دومره ټینګار وکړ، چې د هغه غوښتنه مې ومنله او حرم سرای ته ننوتم. خواجه ګان پوهېدل چې زه ډاکټر یم . زما مخه یې ونه نیوله.

ما ولیدل چې په حرم سرای کې بې نظمي ده او یو شمېر زړو ښځو سینګارونه کړي، چې د دروغو د پاچا د جشن پر ورځ ساعت تېر کړي

زه چې یې ولیدم له ما یې د کاپتا پوښتنه کوله او ویل یې چې زموږ چاغه وزه چېرته ولاړه او ولې یې صبر ونه کړ چې له موږ سره مستي وکړي.

یوه تورپوستې ښځه چې زما د مریي په شان چاغه وه، سترې او ځوړندې سینې یې درلودې چې تر نسه پورې یې رسېدلې. زما خواته راغله او ویې پوښتل زما چاغه وزه بیرته راستنه کړه چې زه یې په خپلو سینو کښینوم او ټینګ یې کړم... زما فیل راستون کړه چې خپل خرطوم زما پر بدن راتاو کړي.

خواجګان تر ما ګیر چاپیره راتاو شول او ویې ویل د دغو زړو ښځو فکر مه کوه. ځکه چې یوه هم لیونۍ شوې نه ده . دغه حرکتونه ددې لپاره کوي چې نن یې ځانونه تفریح ته چمتو کړي ول.

خو د حرم سرای په ښځو کې یوه پیغله ده چې دلته له راتګ سره سره پر ټولو غوسه ده او نن لیونۍ شوې . د درواغو پاچا یې سخت ژوبل او تېښتې ته اړ کړ.

اوس یې هم یوه چاړه په لاس کې ده او چې موږ وغواړو ورنژدې شو پر موږ حمله کوي

ته باید ولاړ شې او ددغې ښځې د لیونتوب معالجه وکړې خواجګان مخکې شول چې لار را وښیي . زه یې د حرم انګړ ته بوتلم چې روښانه او ځلېدونکې خښتې یې درلودې

د انګړ په منځ کې یو حوض و چې له کانو جوړې د سمندري ځناورو مجسمې پکې جوړې

شوي وې، د دغو حیواناتو له خولو او به د فوارې په شان بهېدلې او بېرته حوض ته توېدلې.

د حوض پر څنډه یوې ځوانې ښځې چې شلېدلې جامې یې اغوستې وې د سمندري حیواناتو پر یوې مجسمې تکیه کړې ولاړه وه.

له ځنو او کالیو یې او به بهېدلې او داسې ښکارېده چې له حوضه را وتلې وي، یوه چاړه یې په لاس کې وه چې په لمر کې ځلېدله.

کله چې زه ورنژدې شوم هغې ځوانې نجلۍ چې له خواجګانو سره د جنګ په وخت کې یې کمیس شکېدلی و. یو څه وویل. خو خواجګانو ډېر شور ماشور جوړ کړی و او د فوارو د بهېدلو غږ هم اوچت و نو ځکه زه پوه نه شوم چې دغه ښځه څه وایي.

ما خواجګانو ته وویل له دې ځایه ولاړ شئ چې انګړ تش شي او دغه فوارې هم بندې کړئ چې زه د دغې ښځې غږ واورم.

خواجګان ولاړل او د اوبو فوارې هم بندې شوې

په دې وخت کې ما د ښځې غږ واورېد. هغې سندرې ویلې او غومبورې یې له ډېر هیجانه تک سره شوي ول.

هغې ته مې وویل اې ښځې غلې شه! او دغه چاقو لېرې وغورځوه دلته راشه زه به دې درملنه وکړم ته بې له شکه لیونۍ شوې یې.

ښځه د دې پر ځای چې زما خبره ومني ویې ویل اې بیزو! که زما مخې ته راشې زه به دغه چاقو ستا په توره ینه کې دننه کړم ځکه چې زه ډېره غوسه یم.

ما وویل اې ښځې! چاقو لېرې وغورځوه ځکه چې له تاسره دښمني نه لرم او نه غواړم تا ته تاوان ورسوم.

ښځې وویل څوتنو سړیو د غسې خبرې راته کړې دي او ویلي یې دي چې ماته بد نیت نه لري، خو زه پوه شوم چې هغوی غواړي ما دوکه کړي او استفاده راڅخه وکړي، ځکه خومې دغه چاقو را اخیستی دی. هر سړی که ماته رانژدې شي وبه یې وژنم په تېره بیا دغه یو سترګی بوډا چې د یوه خسک په شان پړسېدلی دی.

و مې ویل دا ته وې چې د بابل پاچا دې ژوبل کړ؟

ښځې و ویل زه وم او خوشحاله یم چې د هغه له پوزې مې وینه وبهوله

زه یې خپل خدای ته وقف کړې یم، زه باید د خپل خدای په مخکې ونخېږم او ان د بابل پاچا باید له ما څخه استفاده ونه کړي

ما ورته وویل که غواړې د خپل خدای په مخکې ونخېږې دغه خبره په ما پورې اړه نه لري. زه یو ډاکټر یم. زما دنده دا ده چې تا لېونتوب ته پرې نه ږدم او نه غواړم چې ته په دې چاقو ځان

ژوبل کړې
که ته ژوبله شې د بابل پاچا به تاوان وکړي، ځکه چې د هغه خواجګانو ماته وويل، ته يې په ډېره لوړه بيه د مريبانو په بازار کې اخيستې يې.
ښځې وويل زه وينځه نه يم چې څوک دا حق ولري ما د مريبانو په بازار کې خرڅه کړي
زه يوه پيغله يم چې په زور يې وتښتولم او که تا لږ شعور درلوداى په دې خبرې به پوه شوى وې.
بيا ښځې شاته وکتل او ويې ويل: خواجګان د ونې سر ته ختلي دي چې زموږ خبرې واوري ايا ته په کومه بله ژبه خبرې نه شې کولاى چې هغوى پرې پوه نه شي.
ما په مصري ژبه خبرې پيل کړې او ومې ويل زه مصري يم، نوم مې سينوهه ابن الحمار دى. زه يو ډاکټر يم او ته بايد له ما ونه وېرېږې کله چې ښځې واورېدل زه په مصري ژبه خبرې کوم زما په لور راغله او ويې ويل.زه نه پوهېدم چې ته مصرى يې ګنې ژر به درته راغلې وم.
که له دې چې پر تاباور لرم. خپل چاقو نه شم درکولاى ځکه چې دغه چاقو ته اړتيا لرم.
نن شپه د بابل پاچا راځي چې له ما ګټه واخلي خو زه نيت لرم چې د خپل ورمېږ رګونه په دغه چاقو پرې کړم او مړه شم ځکه زه نه غواړم چې د خپل خداى پر وړاندې بې عزته شم.
که ته غواړې چې زه ژوندى پاتې شم او له خدايانو وېرېږې نو ما له دغه هېواده وباسه. خو په دې پوه شه چې زه به ونه کړاى شم ستا انعام هغسې چې يوه ښځه يې يوه سړي ته ورکوي درکړم.
د دې لپاره چې زه خپلو خدايانو ته وقف شوې يم او هېڅ سړى بايد له ما سره ويده نه شي. مګر دا چې زما خداى ووايي چې دغه سړى وغواړه او له هغه سره له ځملاستو خوند واخله.
ما وويل زه هېڅ نيت نه لرم چې له تا ګټه پورته کړم يا له تا سره ويده شم نو له همدې امله هېڅ اندېښنه مه کوه.
خو د بابل له حرم سرايه ستا وتل له عقله لېرې کار دى. ځکه چې دلته ستا د ژوند وسايل چمتو دي او تا ته خواړه او نور هرشي چې وغواړې درکوي.
ښځې وويل ما په خپل هېواد کې خواړه او جامې درلودې او د دې ځاى جامې او خواړه زما لپاره اهميت نه لري.
خو داچې وايې نيت نه لرې له ما سره ځملې دا هغه موضوع ده چې کله ما له بابله وباسې پرې خبرې کولاى شو. ځکه که څه هم زه خدايانو ته وقف شوې يم. خو که زموږ خداى وغواړي چې يو سړى خوښ کړم موافقه کولاى شم چې له هغه خوند واخلم.
ومې ويل اې ښځې! زه نيت نه لرم چې تا له بابل څخه وباسم او له دې ځايه دې يوسم، ځکه چې د بابل پاچا زما ملګرى دى او که تا له حرم سرايه وتښتوم د دوستي د دودونو خلاف کار به

مې کړی وي.

پردې سربېره باید پوه شې، هغه سړی چې په یوې سترګې ړوند و او د خسک په شان پړسېدلی و، د بابل همېشنی پاچا نه دی، بلکې د دغه هېواد د دروا غو پاچادی او یوازې یوه ورځ (نن) به پاچاهي وکړي.

د بابل همېشنی پاچا چې ته یې اخیستې یې له بلې ورځ به هغه پاچاهي کوي او هغه ښایسته ځوان دی، هیله من دی چې له تاسره له څملاستو خوند واخلي او زه فکر کوم چې ته به له هغه سره له څملاستو خوند واخلې.

ځکه خو درته سپارښتنه کوم چې د ماشومانو غوندې فکر مه کوه او دغه چاقو ماته راکړه.

ښځې وویل که مې چاقو تا ته در کړ، ته به مې ملاتړ وکړې؟

ومې ویل زه به ستا ملاتړ وکړم چې تاوان در ونه رسوي.

بیا ښځې وویل، زما نوم مینا دی او له دې کبله چې تا ژمنه وکړه چې زما ملاتړ به کوې چې څوک تاوان را ونه رسوي، دغه چاقو تا ته درکوم.

ته یو مصری یې، زه پوهېږم چې درواغ به نه وایې او ما به ونه غولوې.

بیا یې په موسکا سره چاقو ماته راکړ او ما هم چاقو ترې واخیست او وخوځېدم.

کله چې روان شوم متوجه وم چې مینا د چاقو په سپارلو سره زه په یوه ستر ازموینښت کې واچولم.

ځکه چې له دې وروسته باید زه د هغې ملاتړ وکړم او د بورا بوریاش د حرم په شان په یوه ستر حرم سرای کې څه ډول د یوې ځوانې او ښکلې ښځې ملاتړ وکړم؟ غوښتل مې بیرته ستون شم او چاره بیرته هغې ښځې ته ورکړم چې تر منځ مو ژمنتیا ختمه شي، خو خواجګان را باندې راتاو شول او له دې کبله یې زه ستایلم چې له هغې ښځې څخه مې چاقو اخیستی و.

دوی ویل که دغې ښځې چاقو له ځان سره ساتلی وای یا یې بل څوک واژه او یا یې ځان واژه خو اوس ډاډه یو چې نه ځان وژني نه بل چا ته تاوان پېښولای شي.

کله چې له حرم سرای څخه ووتلم بورا بوریاش مې خواته راغی او په خندا یې پوښتنه وکړه څنګه شو؟ ایا زما خبره سمه نه وه؟ او هغې ښځې چې ستا مریی یې ژوبل کړی و، همغه ځوانه وینځه ده چې نوې یې زما لپاره اخیستې ده.

ومې ویل هو! دغه ځوانه ښځه ستا د خواجګانو د بدچلند له امله داسې غوسه شوې. چې فیصله یې کړې هېڅ یوه سړي ته به تسلیم نه شي.

غوره به داوي چې ته څو ورځې هغه په خپل حال پرېږدې چې ورو ورو یې غوسه سړه شي. رامه شي او موافقه وکړي چې ته ور سره ویده شي.

بورا بوریاش وویل ته د دې ښځې د رام کولو اند ېښنه مه کوه. ځکه چې زه ځوانې ښځې ډېرې ښې پېژنم او پوهېږم چې څه ډول یې باید رامې کړم
دا لومړی ځل نه دی چې یوه پېغله او غوسه ناکه ښځه زما حرم سرای ته راځي او کله چې هغې ته وایې چې له ما سره تفریح وکړي ډډه کوي
ځوانې نجونې چې له ما سره نه وي ویدې شوې ډارېږي او خیال کوي چې یو سخت خطر دوی ګواښي. خو کله چې ماته نژدې کېږي او زما ځواني وګوري له ما سره داسې مینه کوي چې له هغه وروسته تل شکایت کوي چې ولې زه خپل ټول وخت له هغوی سره نه تیروم.
بیا که د حرم سرای له نورو ښځو سره ساعت تېری کوم نو دوی بخیلي کوي او که زما ځواني ښکلا پر هغوی تاثیر ونه کړي. بیا زه د رام کولو لپاره یوه ډاډمنه وسیله لرم چې هغه لرګی دی.
زه امر کوم چې ځوانه او یاغي نجلۍ پر مخې څملوي او خواجګان یې په لښتو داسې ووهي چې له بدنه یې وینې وبهېږي او د شپې خوب ورنه شي.
دغه ښځه چې یو یا دوه ځله ووهل شي رام کېږي او هېڅکله به زما له امره سر غړونه ونه کړي.
بورا بوریاش له دې خبرې وروسته په خندا له مالرې شو او زه د مېلمستیا پر لور لاړم.
زما مریی کاپتا سره له دې چې د مینا له لاسه زخمي شو او له دې وروسته چې د مېلمستیا هال ته راغی د ډېرو شرابو له امله یې خپل درد هېرکړ.
ډېر کسان ترې راتاو شوي ول او هغه یې اړکاوه چې ټوکې او ټکالې وکړي
زما مریی چې د دغه کار ښه وړتیا یې درلوده داسې خبرې او حرکتونه یې کول چې نور به یې وخندول.
د مېلمستیا په هال کې خلک داسې په تفریح او ساعت تېریو بوخت ول چې چا ماته توجه نه کوله. ومې غوښتل چې ځان کاپتا ته نژدې کړم او هغه ته ووایم چې پاڅه او وتښته خو متوجه شوم چې نورو زما مریی داسې راګیر کړی چې ما له هغه سره پټې خبرې نه شوې کولای.
پر دې سربېره کاپتا باوري شوی و چې پاچا شوی او ممکنه وه امر وکړي چې نور ما ووهي.
ما نه غوښتل چې زما مریی په بابل کې ووژل شي او د هغه ژغورل مې خپله دنده بلله
که څه هم هغه له مستۍ ځان ورک کړی و خو هر بل غلام چې د کاپتا پر ځای وای همدا کار به یې کړی و ځکه چې ناڅاپه د بابل پاچا شوی و.
له کاپتا څخه چې تېر شو ما له مینا سره هم ژمنه کړې وه چې باید تر سره کړې مې وای
د بابل پاچا ویلي ول. که دغه نجلۍ زما ښایست وګوري غوسه به یې سړه شي او زما پر پښو به راولوېږي خو ما دغه خبره نه منله ځکه چې که مینا غوښتې چې ځان بورا بوریاش ته تسلیم کړي تر اوسه به تسلیم شوې وای.

ماشک نه کاوه چې بورا بوریاش به خپلو ایجرګانو ته امر کړی و، چې هغه په لښتو ووهي او ما نه غوښتل چې مینا د خواجګانو له لوري ووهل شي او بدن یې زخمي شي.

ځکه چې مینا زما پر ژمنې باور وکړ او خپل چاقو یې ماته وسپاره، پردې سربېره موږ مصر یان دا نه شو منلای چې یوه ښکلې ښځه دې ووهل شي.

ما دوه دندې درلودې، یوه دنده مې دا وه چې باید خپل مریی وژغورم او بله دنده مې دا وه چې د مینا د ژوند د ژغورلو لپاره د ملګرتیا ژمنه پوره کړم.

د لومړنۍ دندې په ترسره کولو کې مې شک نه کاوه حتی که بورا بوریاش په ماغوسه شوی هم وای. ځکه زما مریي کومه ګناه نه وه کړې چې د بابل د اوسېدونکو په لاس ووژل شي.

خو د دویمې دندې په اړه لږ شکي وم. ځکه چې بورا بوریاش ددې لپاره زه حرم سرای ته پرېښودم چې پر ما یې اعتما د درلود او که ما مینا د هغه له حرم سرایه تښتولې وای د هغه له دوستۍ او اعتماد سره به مې خیانت کړی وای.

خو مینا هم په ما اعتماد کړی و او تمه یې کوله چې زه به یې له بابل څخه وباسم. یا داچې پرې نه ږدم چې په لښتو ووهل شي.

که زه په بابل کې پاتې کېدم او له پاچا مې غوښتي وای چې مینا مه وهه نو هغه به هم زما غوښتنه منلې وای خو زه مجبور وم چې خپل مریی وژغورم او په بابل کې نه شوای پاتې کېدای. باید کاپتا مې له ځان سره تښتولی وای.

نو له دې کبله چې له کاپتا سره تښتېدم مینا یوازې پاتې کېده او پاچا به وهله.

ددې لپاره چې پر هغې ظلم ونه شي نو مجبور وم هغه مې هم تښتولې وای. ان که د بابل پاچا د مینا تښتول د دوستۍ په خلاف یو عمل هم وبولي او فکر وکړي چې ما ورسره خیانت کړی دی.

په نړۍ کې انسان تل په کارونو کې ازاد نه وي، ددې لپاره چې د انسان برخلیک ستوري ټاکي او کله چې انسان مجبور شي داسې کارونه وکړي چې پخپله یې کول نه غواړي.

له همدې لامله مې شک ځنګ ته کړ او هوډ مې وکړ چې هم کاپتا له مرګه وژغورم او هم مینا له هغه ظلمه چې ورته په تمه ده وژغورم.

# اولسم څپرکی

## د دوو کسانو د ژغورلو لپاره

له غرمې وروسته د سیند څنډې ته لاړم او یوې کشتۍ ته چې لس پارو وهونکي یې درلودل ورننژدې شوم.

پارو وهونکو ته مې وویل زه پوهېږم چې نن د درواغو د پاچا د جشن ورځ ده او تاسې د وربشو او به څښلې دي، غواړئ نن تر شپې پورې تفریح وکړئ.

خو د جشن ورځې ډېرې ژر خلاصېږي، له هغه وروسته د لوږې او زحمت شپې، ورځې راځي او هغه څوک هوښیار دی چې د جشن او تفریح د ورځو له املـه دوکـه تـه شي او د نورو ورځو فکر وکړي.

تاسې نن کار کولای شئ، ښه مزد به واخلئ او په دې اجورې به له سبا تر دوو اونیو پورې خورئ او څښئ او له ښځو سره به خپل ساعت تېروئ.

پارو وهونکو وپوښتل موږ باید څه وکړو؟

ومې ویل سره له دې چې نن د جشن ورځ ده، خو زما تره مړ شوی، ځکه چې خدایان کله وغواړي څوک مړه کړي نو بیا دا ورته مهمه نه ده چې هغه سړی په اختر کې مړکړي که د ویر په ورځو کې.

زه مجبور یم چې د خپل تره د وصیت پر بنسټ نن شپه د هغه جنازه ولېږدوم او هغه ټاټوبي ته یې یوسم چې هلته یې نیکونه ښخ شوي دي. دا د میتاني هېواد سرحد ته نژدې ځای دی او له جنازې پرته زما کنیزه به هم له ما سره وي، ځکه چې یو ځوان سړی نه شي کولای خپل کارونه سمبال کړي او باید یوه ښځه ورته خواړه او اوبه برابرې کړي.

موږ به نن شپه له دې ځایه حرکت وکړو، زه به ستاسو مزد دعادي مزد په پرتله دوه برابره درکړم.

پاروو هونکو وویل موږ چمتو یو چې تا خپل مقصد ته ور سوو خو د شپې پر مهال ددې سیند پر سر پاروو نه وهو.

ځکه چې د شپې مهال موزي او خطرناکې ارواوې د سیند پر دواړو غاړو یا منځ کې وي او ناري وهي چې موږ له دغو نارو او چیغو وېرېږو او ممکنه ده چې زموږ کشتۍ ډوبه شي.

ومې ویل زه به همدا اوس یو پسه په معبد کې قرباني کړم چې موزي ارواوې موږ ته تاوان ونه رسوي.

کله چې مقصد ته ورسېدو زه به تاسې د سپینو هومر کړۍ درکړم چې غږ به یې دومره زیات وي چې تاسې به د موزي ارواوو غږ وانه وري.

پارو وهونکو وپوښتل ته کله راځې؟ ومې ویل څه نه شم ویلای چې کله به راشم خو د شپې په لومړي ثلث کې به راور سېږم خو په هر حال تاسې له خپل ماکو سره په همدې ځای کې ماته په تمه اوسئ او له دغه ځایه مه ښورئ.

که اتفاقاً زه ناوخته راغلم همدلته په خپل ماکو کې ویده شئ خو ماکو بل ځای ته مه بیایئ، ځکه ممکنه ده زه په دویم ثلث کې یا هم سهار وختي د خپل تره له جنازې او کنیزې سره راشم او که تاسې ماکو بل ځای ته یوسئ تاسې به پیدا نه کړای شم.

بیا مې هر پارو وهونکي ته د سپینو یوه یوه کړۍ ورکړه او ومې ویل دغه سپین زر له مخکې تاسې ته درکوم چې پوه شئ زه نن شپه حتماً راځم او خپل ماکو بل چاته په کرایه مه ورکوئ.

کله چې مقصد ته ورسېدو هر یوه ته به د سپینو څلور کړۍ ورکړم او ددې لپاره چې ما په لاره کې د سرو او سپینو په تمه ونه وژني ومې ویل تاسې پوهېږئ چې په بابل کې هېڅوک له ځان سره سپین او سره زر نه وړي بلکه حواله اخلي او کله چې مقصد ته ورسېدو حواله په فلز بدلوي.

زه چې هم کله خپل مقصد ته ورسېدم، خپله حواله به په فلز بدله کړم او ستاسې پاتې مزد به درکړم.

پارو وهونکو د سپینو زرو له ترلاسه کولو وروسته ډاډه شول که ما خپل مقصد ته ورسوي هر یو به پنځه کړۍ سپین زر ترلاسه کوي او اطمینان لري چې د شپې تر سهاره زما په تمه پاتې شي.

کله چې د سیند د لهڅنډې ستون شوم یو کوچنی ژی مې واخیست او بیا معبد ته لاړم، هلته مې یو پسه حلال کړ او د پسه وینه مې په ژي کې واچوله او له هغه چاقو سره چې میناراکړی و، د بورا بوریاش د حرم سرای پر لور روان شوم.

کله چې ما غوښتل حرم سراى ته ننوځم له وينې ډک ژې مې په خپلو طبي وسايلو کې کېښود چې څوک يې ونه ګوري او کله چې خواجګانو وليدم پر ما راټول شول.

ما ورته وويل چې ددې ليونۍ ښځې د معالجې لپاره په درملو پسې تللى وم او تاسو بايد ما دهغې کور ته ورسوئ.

خواجګانو زه د هغې کوټې ته بوتلم، ما ورته وويل ما له دې ښځې سره يوازې پرېږدئ چې د درملو په وسيله هغه موزي ارواوې چې د هغې په بدن کې دي او دا يې ليونۍ کړې ده، بېرته د هغې له بدنه راوباسم.

خواجګان ولاړل او ما مينا ته وويل نن شپه نيت لرم چې تا له حرمه وباسم او له ځان سره دې بوځم.

زه دې له دې هېواده باسم خو شرط يې دا دى چې ته به زما په امر کار کوې.

مينا وپوښتل څه بايد وکړم؟

وړوکى ژى او چاقو مې وروښود او مې ويل زه دغه چاقو او ژى له تا سره پر ېږدم او ځم سپارښتنه کوم چې زما له تګه وروسته هېڅوک دې کوټې ته رانه شي. کله چې تياره شوه بايد ددغه ژي سر خلاص کړې او لږ وينه ترې وباسې او په خپلو لاسونو، پښو او سېنو يې وموښې او چاړه هم خپل څنګ ته کېږدې.

زه به د شپې په سر کې ستا کوټې ته ننوځم، وبه وايم تا په دې چړې ځان وژلى دى، ته هم ځان په مړينې واچوه چې ټول باور وکړي ته ژوندۍ نه يې.

بيا به زه خواجګان قانع کړم چې تا له دې ځايه بهر باسم او بيا به تا په يو شي کې تاو کړم او له دې ځايه به دې وباسم. بهر به ستا لاسونه، پښې او سېنې ووينځم او له ځان سره به دې بوځم.

مينا موافقه وکړه چې زما په پروګرام به عمل کوي او زه د هغې له کوټې راووتم، خواجګانو ته مې وويل چې هېڅوک حتى د حرم سراى ښځې او خواجګان بايد د مينا کوټې ته دننه نه شي.

څکه که څوک د هغې دکوټې دروازه خلاصه کړي او کوټې ته ننوځي هغه موزي ارواوې چې د درملو په وسيله د هغې ښځې له بدنه بهر شوې د دوى بدن ته به ننوځي او هغوى به ليوني کړي.

زه به په خپله د شپې په سر کې راشم او د هغې کوټې ته به ننوځم. خواجګانو په وحشت

سره وويل هېڅوک به د دې کوټې ته پرې نه ږدو . زه سلطنتي مانۍ ته لاړم او زما مريی لا هم د مېلمسيتا په هال کې و . يو شمېر کسان چې ډېر شراب يې څښلي و له ډېرې مستۍ د هال په يوې برخې کې ويده ول او نورو څه ناڅه مستي کوله، خو بورا بورياش عادي او هوښيار و .

لمر دومره ټيټ شوی و چې، زېړه وړانګه يې کوټې ته لويدلې وه.

ما له بورا بورياش څخه پوښتنه وکړه چې څه وخت د درواغو د پاچا جشن پای ته رسېږي؟

هغه وويل کله چې لمر ولوېد دغه جشن به پای ته ورسېږي او ستا غلام به په هغو زهرو چې د هغه په شرابو کې اچول کېږي مړشي.

بياد هغه مړی په يوه لوی خټين لوښي کې اېښودل کېږي او هغه د مانۍ د دروازې په سرکې د هغو کسانو له مړيو سره کېښودل کېږي چې پر همدې ورځ د درواغو پاچاهان شوي ول.

ومې ويل بورا بورياشه ! زما غلام زما په شان مصري دی، هغه يې سنت کړی دی او زمونږ خدايان وايي کله چې انسان مړ شي بايد د هغه جنازه موميايي کړئ چې په بلې دنيا کې ژوندی پاتې شي.

بورا بورياش وويل کله چې جنازه موميايي شي پر جنازې څه کوئ؟

ومې ويل له دې وروسته چې جنازه موميايي کړو هغه ښخوو. بورا بورياش وويل زه موافقه کوم چې ستا د مريي جنازه د خپلو دودونو په اساس موميايي کړئ.

خو وروسته بايد جنازه مونږ ته وسپارئ چې هغه په خټين لوښي کې واچوو او د دروازې پر سر يې کېږدو.

ومې ويل، د اشرافو د جنازې موميايي کول شپېتو يا اويا ورځو ته اړتيا لري، خو د مريانو جنازه په دېرشو ورځو کې هم موميايي کېږي. بورا بورياش وويل ډېر ښه د هغه جنازه په دېرشو ورځو کې موميايي کړه.

ما ځواب ورکړ دغه کار دلته نه شي پيلېدای، ځکه که زه په دې مانۍ کې د خپل مريي جنازه موميايي کړم. ټول کسان چې دلته دي ان تاسې به د جنازې د خطرناکو بويونو له امله مړه شئ.

او بايد ووايم چې دغه جنازه بايد سمدستي موميايي شي ځکې د بابل ګرمه هوا به

همدا نن شپه جنازه خرابه کړي او بیا یې نه شو مومیایي کولای.

له همدې لامله اجازه راکړئ، کله چې نن شپه زما مریی مړ شو زه یې مړی له ماڼۍ بهر کړم چې د سیند پر غاړه په یوې لیرې پرتې سیمه کې هغه مومیایي کړم او له نن شپې څخه چې له دې ماڼۍ څخه ووځم تر ډېر شو ورځو پورې به ما ونه ګورې.

باید ته مې و هم نه ګورې ځکه چې که په دغو ډېرشو ورځو کې زه تا ته نژدې شم نو د جنازې بوی به دې مړ کړي.

بورا بوریاش وویل زه هم تر ډېرشو ورځو پورې له تاسره کار نه لرم تر هغه پورې چې بېرته راستون شې.

ځوان لمر ته وکتل او ویې ویل، دا دی لمر ولوېد، جشن پای ته رسېدلی او تر ځوښېبو پورې به ستا مریي ته زهر ورکړي.

ورشه او څارنه یې وکړه چې ستا په شتون کې چې ډاکټر یې دغه سړي ته زهر ورکړي.

په داسې حال کې چې موږ په دغو خبرو اخته وو، زه د ماڼۍ د نوکرانو له حالته پوه شوم، چې جشن پای ته رسېدلی، ځکه چې ناڅاپه ټول د کاپتا له شاو خوا لېرې شول.

خو کاپتا چې د ډېرو شرابو له امله نشه و د نوکرانو د حالت په دغه بدلون پوه نه شو.

ما ځان د بورا بوریاش ډاکټر ته ورساوه او هغه ته مې وویل چې پاچا ما ته حکم کړی چې پخپله دغه سړي ته زهر ورکړم.

نو موړي ډاکټر زما خبره ومنله ځکه چې پردې سربېره چې فکر یې وکړ زه دروغ نه وایم د درواغو د پاچا د جشن پر ورځ یې دومره شراب څښلي ول چې په خپلو پښو نه شوای درېدای.

کله چې پوه شو د زهرو د ورکولو دنده پاچا ما ته سپارلې نو خوشحال شو او ویې ویل ایا پوهېږې چې باید مقتول ته کوم زهر ورکړې؟

ما وویل هو زه د زهرو په پېژندلو کې د بابل تر ټولو ډاکټرانو ښه پوهه لرم.

د پاچا ډاکټر چې له ډېرې مستۍ یوه او بل اړخ ته ځنګېده وویل له دې وروسته چې ستا مریی مړ شو زه باید هغه معاینه کړم چې یقین وکړم هغه مړ شوی دی کنه؟

ما ورته وویل کله چې هغه مړ شو زه به تا ته خبر درکړم چې راشې او هغه معاینه کړې.

د بابل د پاچا ډاکټر وویل زه ځم لږ ویده کېږم کله چې ستا مریی مړ شو راشه او ما خبر کړه او که ویده وم راویښ مې کړه.

ومې ویل همدا کار به وکړم، چې پوه شې زما مریی مړ شوی دی.

کله چې د پاچا له ډاکټره جدا شوم په شرابو کې مې لړ اپیم واچول اپیم مې دومره واخیستل چې زما مریی د شرابو له څښلو وروسته داسې بېخوده شي چې نور فکر وکړي هغه مړ شوی دی.

بیا له تریاکو سره ګډ شراب په لاس، او کاپتا ته ورغلم او هغه ته مې وویل ته نن د څلورو فصلونو پاچاېې او ټول دې په همدې نوم پېژني، زه هم داخبره تاییدوم چې ته د بابل پاچایې.

خو لکه څرنګه چې پوهېږې زه ته یم راغلی چې د تل لپاره په بابل کې ژوند وکړم او اوس غواړم ولاړ شم خو تر تګ وړاندې یوه هیله لرم چې باید ومنل شي.

کاپتا وپوښتل څه هیله لرې؟

ما وویل زما هیله داده چې پخپلو لاسونو یو جام شراب دربانديې وڅښم چې مصر ته له ستنیدا وروسته ټولو ته ووایم زه سینووهه ابن الحمار هغه څوک یم چې پخپلو لاسونو مې د بابل پاچا ته شراب ورکړي دي، نور به ماته په لویه سترګه ګوري او زما عظمت به وستایي.

کاپتا وویل ما نن په کافي اندازه شراب څښلي دي نورو ته مې زړه نه کېږي خو له دې چې ته وایې هیله داده چې پخپلو لاسونو پر ما شراب وڅښې او ما هم تراوسه پورې د شرابو جام نه دی رد کړی څښم یې.

سره له دې چې پوهېږم ښایي داسې مست شم چې له ځایه به نه شم پاڅېدای. بیایې زما د شرابو جام واخیست او په یوه ساه یې وڅښه او تش جام یې ایسته ګوزار کړ.

په دې وخت کې څراغونه ولګېدل او پر مانۍ چوپتیا خوره شوه ځکه چې ټول پوهېدل د تفریح او ساعت تېري وخت تېر شو او که څوک له دې و روسته ساعت تېري او مستي وکړي و به وژل شي.

څو شیبې وروسته زما مریه د پاچاهۍ تاج له خپل سره لیرې کړ او ویې ویل دغه خولۍ زما په سر کې وړه ده، پر سر مې فشار راوړي، د سر هډوکی مې درد کوي او په پښو کې هم د ستومانۍ او پړکالۍ احساس کوم، سترګې مې داسې درنې شوې چې زه فکر کوم باید ویده شم.

کاپتا همغلته چې ناست و اوږد وغځېد او شېبه وروسته ویده شو. زه پوهېدم چې دغه خوب چې د تریاکو له امله دی څو شیبې وروسته ورو ورو درنېږي او داسې کېږي چې که

ځوک کاپتا وګوري ګمان کوي چې مړ شوی دی.

د ماڼۍ نوکرانو هغه خولۍ چې کاپتا له خپله سره لېږي کړې وه بېرته د بورا بورياش پر سر کېښوده او د پاچاهۍ کالي يې واغوستل.

د بابل حقيقي پاچا بېرته په تخت کېناست او ويې ويل سره له دې چې نن د جشن او تفريح ورځ وه، خو زه ډېر ستومانه شوم، ځکه چې د جشن پر ورځ انسان تر نورو ورځو ډېر ستومانه کېږي.

له دې کبله چې ستړی يم بايد ويده شم او ډېر ژر هغه کسان چې نشه شوي او دلته ويده دي د سوټيو په زور له ماڼۍ وباسئ او دغه احمق (اشاره يې کاپتا ته وه) چې کله يې ساه ېېخي له بدنه ووته په يوه ختين لوښي کې کېږدئ.

د ماڼۍ نوکرانو ويده او مست کسان په سوټيو وهل او په ځوشېبو کې چې نشه کسان رابيدار او ويده راويښ شول ټول وتښتېدل.

زه کاپتا ته نږدې شوم او ومې کتل چې د مرګ ټولې ظاهري نښې پکې راڅرګندې شوې دي.

مريبانو ته مې وويل ورشئ د پاچا طبيب ته وواياست چې دلته راشي او دغه سړی معاينه کړي چې پوه شي مړ شوی دی.

مريبان ولاړل، د بابل د پاچا ډاکټر يې راووست هغه چې د مستۍ په وخت ويده شوی تر نيم ساعت زيات خوب يې نه و کړی او لا نشه و په نيم کښو سترګو راغی.

زه پوه شوم چې هغه په دې وخت کې د خيرې او سمې معاينې حوصله نه لري او که يې معاينه کړي هم واي بيا به يې هم تصور کاوه چې هغه مړ شوی دی.

خو د بابل د پاچا ډاکټر چې غوښتل يې ژر ستون او ويده شي زما غلام يې بر سېرن وکوت او ويې ويل بې شکه هغه مړ شوی دی، په ختين لوښي کې يې کېږدئ او د متې خاورې په ختې يې سر بند کړئ.

د بورا بورياش مريبانو زما مريی په يوه لوی ختين لوښي کې کېښود او کله چې مر يبانو غوښتل د متې ختې جوړه کړي، ما پاچا ته د هغه وعده ور په زړه کړه او ومې ويل چې بايد د کاپتا جنازه ماته راکړي چې يو يې سم او موميايي يې کړم.

بورا بورياش مريبانو ته وويل مصري ډاکټر سيند ووهه دا اجازه لري چې د دغه سړي جنازه له ماڼۍ بهر کړي او هغه موميايي کړي او بايد ځوک ورته مزاحمت ونه کړي

پاچا وویل پام کوئ چې کله هغه له دې ځایه ووت ترد پرشو ورځو پورې باید په ماڼۍ ګام کېنږدي او که یې غوښتل ماڼۍ ته راشي په سوټیو یې وشړئ، ځکه چې دغه سړی مومیایي کوي. ښایي له ځان سره خطرناکې اروا وې راوړي او ما به ووژني.

ما چې له مخکې یو روان تخت برابر کړی ؤ د کاپتا د جنازې ختین لوښی مې واخیست روان تخت ته مې منتقل کړ او په لاره کې مې د مټ ختمې په برخه کې ځوسوري جوړ کړل چې زما د مریي ساه بنده نه شي.

کله چې ډاډه شوم کاپتا دبابل د پاچا له ماڼۍ بهر شوی دی او په روان تخت کې په ختین لوښي کې دی، نو زه دبورا بوریاش حرم سرای ته ولاړم ،خواجګانو ته مې وویل ځم چې پر مینا د درملو اغېز وګورم.

کله چې دمینا کوټې ته ننوتم ګورم چې مینا زما خبره منلې او خپل مخ او لاسونه یې په وینې ککړ کړي دي او تر څنګ یې په وینو ککړه چاړه هم پرته ده.

په مصنوعي وحشت سره له کوټې راووتم او خواجګان مې راوغوښتل هغو ته مې وویل ایا لیوني شوي یاست چې بیا مو دغې ښځې ته چاړه ور کړې ده چې ځان یې وژلی دی.

کله چې خواجګانو وینې ولیدې له ډاره ورېږدېدل او چا جرائت نه کاوه چې ورانده راشي وګوري چې ایا مینا په رښتیا مړه شوې ده که لا ژوندۍ ده ځکه چې ایجرګان له وینو ډارېږي او هېڅکله چمتو نه دي چې په وینو یوې ککړې جنازې ته لاس ورنژدې کړي.

ټولو حیرانه او لړزانه ننداره کوله او د هغوی ترهېدلو سترګو پوښتنه کوله چې موږ څه باید وکړو؟

هغوی ته مې وویل په دې پېښې کې تاسې هم زما په اندازه یا تر ما زیات مسولیت لرئ، ځکه چې زه ډاکټر یم او راغلی یم چې دغه لیونۍ ښځه معالجه کړم.

یو ځل مې ستاسې په مخکې له هغې چاقو واخیست خو نه پوهېږم چې هغې څنګه بیا چاقو تر لاسه کړ او ځان یې وواژه.

اوس یوازېنی لاره دا ده چې زه دغه ښځه په یوه ګیلم کې تاو کړم او له دې ځایه یې بهر کړم.

تاسې باید همدا نن شپه یا سهار وختي یو بله وینځه واخلئ او د هغې پر ځای یې وساتئ او که بورا بوریاش پوښتنه وکړه چې ولې ددې وینځې څېره بدله شوې ده ووایئ چې ددغې ښځې په بدن کې موزي ارواوې ننوتلې وې او څېره یې ورته بدله کړې ده.

ایجرګانو یو بل ته وکتل او ویې پوښتل موږ فلز له کومه کړو چې وینځه پرې واخلو.

ومې ویل زه به د وینځې بیه درکړم او کله چې مو نوې وینځه واخیسته او حرم سرای ته مو راوسته، هغه سینګار کړئ او داور زده کړئ چې څنګه د بورا بوریاش هرکلی وکړي زه باوري یم چې کله د بابل پاچا وګوري چې وینځه رام شوې دومره به خوشحاله شي چې د هغې د څېرې د بدلون فکر به ونه کړي. بیا مې دوه ټوټې زر چې د یوې ښکلې وینځې د بیې دوه برابره کېدل ایجرا ګانو ته ورکړل هغوی یو ګیلم راوړ او مینا مې په ګیلم کې تاوکړه.

له دې پرته چې د توضیحاتو لپاره معطل شم مینا مې په اوږه کړه او له حرم سرایه ووتم، ځکه چې پوهېدم کله چې یو کار باید په بېړه ترسره شي هرڅومره چې پرې لږ خبرې وشي ښه به وي.

ځکه د ډېرو خبرو له امله ستونزې راولاړېږي چې په خلکو کې وېرې او شک ته لمن وهي او ټول ایجرا ګان ډېر ډارن او کمزوري کسان دي.

مینا مې هم روان تخت ته ولېږدوله، زه هم سپور شوم او حرکت مو وکړ چې لږ وروسته سیند ته ورسیدو.

سیند ته له رسېدا مخکې مې د روان تخت بار وړونکو ته وویل چې روان تخت پر ځمکه کېږدي او لو مړی مې هغه ختمین لوښی چې کاپټا پکې و، د هغو په وسیله کشتۍ ته ولېږداوه بیا مې د روان تخت باروړونکو ته وویل اوس له تخته کوز شئ چې د خپل غلام روح هم له دې ځایه بهر کړم.

کله چې راغلاست ما به ونه ګورئ ځکه چې زه به تللی یم او روان تخت به همدلته پاتې وي او هغه تاسو وړولای شئ.

له دې وروسته چې بار وړونکي لاړل ما مینا له روان تخته کوزه کړه، هغه مې د سیند څنډې ته یوړه او خوشې مې کړه چې خپل لاسونه او پښې ووینځي.

له هغه وروسته له مینا سره یوځای په کشتۍ کې سپور شوم او په توره تیاره کې زموږ کشتۍ حرکت وکړ او له ساحله لېرې شوو.

پارو وهونکي د مینا په لیدو حیران شول، ځکه چې مخکې مې ورته ویلي وو چې خپله وینځه هم له ځان سره سفر ته بیایم، هغوی فکر کاوه چې دا زما وینځه ده.

په دې ډول زه په یوې شپې کې له بابله ووتم، له هغه ټاټوبي چې ښایي هلته مې د طبابت له لارې ډېره شتمني ګټلې وای.

# اتلسم څپرکی

## مینا او له بېهوشۍ څخه د کاپتا ویښېدل

کله چې له ښاره دوه سمره لېرې شوو، چې د بابل د ښار روښنايي مو نه لیده له مینا، په مصري ژبه خبرې پیل کړې چې پارو وهونکي پرې نه پوهېدل. ویې ویل، زه نن ستا د کار له امله ګنده او بوینه شوم.

ومې پوښتل د څه لپاره ګنده شوې؟

مینا وویل، ددې لپاره چې تا راته وویل خپل مخ، لاسونه او پښې په وینو سره کړم. اوس چې هر څومره ځان ووینځم د وینې بوی مې له بدنه نه لېرې کېږي.

ومې پوښتل له دې خبرو ستا مقصد څه دی؟

مینا وویل، مقصد مې دادی چې تا دوکه کړم او اړه دې کړم چې د وینې له لامله پلیته او بوینه شم.

ومې ویل. اې پستې ښځې، زه دومره ستړی یم چې ستا د خبرو حوصله نه لرم او پرېږده چې ویده شم. ځکه هغه زیار چې ما ستا د ژغورلو لپاره ګاللی زما د ټول عمر ستر زحمت دی.

د مصر له دارالمماته وروسته مې دغسې زیار نه و ګاللی، ځکه هغه زحمت چې ما وګاله که یو ازې بدني وای دومره به سخت نه و، خو کله چې انسان د بدني زحمت تر څنګ له روحي پلوه هم تکلیف وکړي نو بیا ډېر ستومانه کېږي او ما نن روحي او بدني دواړه زحمتونه ګاللي دي.

پر دې سربېره ستا د ژغورنې لپاره ما ډېر مادي تاوان هم کړی دی.

ځکه که ته نه وای، له مادې نه وای غوښتي چې تا وژغورم او له حرم سرایه دې وتښتوم، زه به څو ورځې وروسته د بابل د ستر ډاکټر په توګه د دغه هېواد د پاچا په ښې اړخ کې ناست وم او دومره سره او سپین به مې تر لاسه کړي ول، چې دې ماکو ته ورته

ماکو به هم نه شوای وړلای.

خو تا مجبور کړم چې له دې ګټې تېر شم او تا له بابله وتښتوم.

هر کال به پر همدې ورځ یوه کڅوړه ایرې پر ځان اچوم چې په یاد ولرم چې نن زما د عمر یوه سپېره ورځ وه.

مینا وویل که ته ما دومره سپېره بولې چې له املهیې په تا بدې ورځې راغلې نو ښه به داوي چې زه ځان سیند ته واچوم. چې ته زما له شره خلاص شې.

له دې خبرې وروسته مینا وخوځېده چې ځان سمندر ته واچوي.

خو ما ونیوله او ومې ویل مینا سره له دې چې ما نن ډېر تکلیف کړی او لوی تاوان مې زغملی، خو د ډاډ ګېرنې لپاره دغه وسیله لرم چې ته مې ژغورلې یې.

که ته ځان اوبو ته واچوې نو زما بد بختي به ډېره شي، ځکه چې پوه به شم له دې ټولو هڅو سره مې ته ونه ژغورلای شوې زه تا ته د مصر او بابل په ټولو خدایانو قسم درکوم چې له دې فکره تېره شه او ویده شه او که خوب نه درځي په یوې څنډه کې کېنه چې زه ویده شم.

ښځه غلې شوه، د بېړۍ په یوې څنډې کې کېناسته او ما هم پر خپل سر هغه ګیلم چې مینا مې پکې تاو کړې وه راکش کړ چې ویده شم.

سره له دې چې د پسرلي د فصل څوارلسمه شپه وه او بلبلانو د سیند پر دواړو غاړو سندرې ویلې او د سیند په دواړو غاړو کې د لک لک اوازونه اورېدل کېدل خو د شپې په مهال د اوبو د سر هوا سړه وه.

له څو شېبو وروسته مینا هم تر ګیلم لاندې راسره یوځای شوه او ویې ویل له دې کبله چې پوهېږم هوا سړه ده نو زړه مې غواړي ځان درنېژدې کړم چې زما د بدن تودخه دې ګرم کړي.

زه د مینا په غېږ سره ویده شوی وم، سهار چې له خوبه پاڅېدم احساس مې وکړ چې کشتۍ ولاړه ده او حرکت نه کوي.

پاڅېدم ګورم چې پارو وهونکي پارو نه وهي، ومې وویل ولې پارو نه وهئ.

هغوی وویل موږ له شپې تر سهاره پارو وهلی او اوس مو لاسونه د پارو د لرګیو په شان وچ شوي دي، ملاوې مو خوږېږي، نور پارو نه شو وهلای او باید ډوډۍ وخورو.

دوی ویل هاغه د سین پر غاړه یو کلی لیدل کېږي ولاړ شه او له دې کلي څخه موږ ته

غوښه او مستې راوړه چې ويې خورو او ماړه شو. ومې ويل اوس د ډوډۍ خوړولو وخت نه دی، زه به غرمه‌چې کوم کلي ته ورسېږو ستاسې لپاره خواړه برابر کړم او تاسې به ماړه شئ. ما تاسې ته وويل چې بايد ډېر ژر ځان خپل پلرني ټاټوبي ته ورسوم، که تاسې دلته ډوډۍ وخورئ زموږ تګ به ټکنی شي. په دې هم پوه شئ چې که زما امر ونه منئ، نو زه چې يو پياوړی کوډګر يم ټولې موزي ارواوې به وګمارم چې پر تاسې حمله وکړي او ستاسې د بدن غوښې ټوټه کړي او وبه مو خوري.

سره له دې چې بابليان له کوډو ډارېږي خو زما له ګواښه ونه وېرېدل ځکه چې پوهېدل ورځ ده، لمر ځلېږي او په دې وخت کې له موزي ارواوو څوک نه ډارېږي.

بيا مې واورېدل چې يوه پکې ويل هغه يو کس دی او موږ لس تنه يو. هر کار چې وغواړو په هغه يې کولای شو.

کله چې بل پارو وهونکي دغه خبره واورېده خپل پارو يې پورته کړ چې ما په سر ووهي خو په دې وخت کې د ختين لوښي له منځه زما د مريي کاپتا غږ پورته شو.

پارو وهونکو فکر کاوه چې په دغه لوښي کې زما د تره جنازه ده، کله چې پوه شول جنازه ژوندۍ شوې ده، دومره وډار شول چې يو په بل پسې يې ځانونه اوبو ته واچول او ماکو نور پاروو هونکي نه درلودل خو ما وکړای شول چې ماکو د سيند څنډې ته بوځم او هلته مې لنګر واچاو چې د اوبو بهير کښتۍ يو نه سي.

ميناچې له خوبه پاڅېدله د سر وېښتان يې جوړول، زه يې په کتو ډېر خوشحال شوم ځکه چې مينا تر هغه ډېره ښکلې ده چې ما د بورا بورياش په حرم سرای کې ليدلې وه.

کاپتا د ختين لوښي له منځه ناري کړی اولاس او پښې يې وهل، زه ورننژدې شوم او د لوښي سر مې مات کړ. ځکه چې د متې ختې وچه شوې وه.

کاپتا له لوښي سر راوايست، حيران حيران يې شاوخوا کتل او ويې پوښتل دا کوم ځای دی او زه چېرته يم؟ زما د پاچاهۍ خولۍ چېرته ده؟ ولې د پاچاهۍ کالي نه لرم؟ فکر کوم چې لوڅ يم. ساړه مې کېږي او پښې مې داسې بې حسه شوې لکه چې يوه زهر لرونکي مار چيچلی يم...

سينوهه... سينوهه! پام کوه چې ما ونه کړوې او دوکه مې نه کړې ځکه چې د بابل پاچا يم او پاچا داسې څوک نه دی چې ټوکې ورسره وشي يا دوکه کړای شي.

ما هم ددې لپاره چې کاپتا ته مې سزا ورکړې وي او د هغه پرونۍ سپين سترګي جبران

شي، ومې ویل تا هېره کړې چې پرون کله له بابله وتلو تا دومره شراب وڅښل چې نشه شوی وې هغه دې وکړه چې په کښتۍ کې پارو وهونکي ژوبل کړې او تل دې همدا ویل چې د بابل پاچا یې او عدالت اجراکوې.

کله چې پارو وهونکي له تا په تنګ شول مجبور شول چې تا په دې لوښي کې بندي کړي چې هغوی ژوبل نه کړې.

کاپتا سترګې پټې کړې او په چورت کې ولاړ.

له دې وروسته چې سترګې یې خلاصې کړې ویې ویل زه به نور شراب ونه څښم ځکه چې د شرابو نشې زه له حیرانوونکي خوب سره مخامخ کړم، ما کتل چې د بابل پاچایم او په خلکو کې عدالت اجرا کوم.

بیا مې ولیدل چې د بابل د پاچا بورا بوریاش حرم سرای ته ننوتم او غوښتل مې له یوې ناپوهې ښځې سره خبرې وکړم خو هغې پر ما حمله وکړه او زه یې ژوبل کړم.

نورې پېښې هم وشوې چې اوس مې په یاد نه دي.

د دې لپاره چې سرخوږ لرم او غواړم هغه درمل راکړې چې نشه کسانو ته یې د نشې، مستي او سرخوږي د ورکېدو لپاره ورکوې.

په داسې حال کې چې زما مریي دغه خبرې کولې ناڅاپه یې د کښتۍ په منځ کې مینا ولیده، خپل سر یې چې له خټین لوښي را ایستلی و، بېرته ښکته کړ، زګیروي یې پیل کړل او ویې ویل، باداره زه لا هم خوب ګورم او هغه ښځه وینم چې د بورا بوریاش په حرم کې وه ... اې د مصر خدایانو له ما سره مرسته وکړئ، ځکه لږ پاتې ده چې لېونی شم.

کاپتا په خټین لوښي کې په ژړا شو او شېبه شېبه یې ویل زه لیونی کېږم، له دې وروسته به عقل ونه لرم او د نورو لیونیو په شان به ماهم له ښاره وباسي.

مینا لوښي ته نژدې شوه او د کاپتا د سر وېښتان یې ونیول، د هغه سر یې راپورته کړ او ویې ویل ښه ماته وګوره ما پېژنې کنه؟

کاپتا په ژړا وویل ته همغه یې چې په خوب کې دې پر ما حمله وکړه او زما شونډه او پوزه دې ژوبله کړه.... اې د مصر خدایانو! پر ما ورحمېږئ... او ماله دې وژغورئ.. اې د مصر خدایانو! زه پوهېږم چې تاسې پر ما په قهر شوي یاست او دغه ښځه مو زما خوب ته راوستې ده.

د دې لپاره چې کله زه بابل ته ننوتم ستاسې عبادت مې پرېښود او د بابل د خدایانو

عبادت مې وکړ، خو له دې وروسته به يوازې ستا سې عبادت کوم.

مينا خپل بوټ له پښې وايست، دوه ځله خو وروي يې کاپتا پر سر وواهه او ويې ويل له دې کبله چې په خوب کې دې ماته سپکاوی وکړ داستا د ناسم خوب سزا ده چې پوه شې اوس ويده نه بلکې ويښ يې.

خو کاپتا نور هم وژړل او ويې ويل اوس هم ويده يم، ځکه اوس هم هماغسې احساس کوم لکه څنګه چې دې په خوب کې په بوټانو وهلم دغسې مې دادی په ويښه هم وهې.

ما کاپتا ته وويل اوس په رښتيا ويښ شوی يې او بايد ونه ژاړې، له لوښي را ووځه چې زه دې نشه معالجه کړم.

خو کاپتا له ختين لوښي بهر نه شو راوتلای، ما ورسره مرسته وکړه چې له وړوکي ختين لوښي څخه راووځي.

د دې لپاره چې له رګونو يې شراب ووځي هغه ته مې مسهل (جولاب) ورکړل ځکه له دې وروسته چې شرابي د نشې له اوږده خوبه راويښ شي نو د نشې د ختمولو اغېزمن درمل جولاب دي.

له دې کبله چې زما مريي د شرابو له نشې پرته د اپيمو نشه هم درلوده نو د دې لپاره چې هغه د ترياکو له اغېزو خلاص کړم يو پړی مې د هغه پر ملا پورې وتاړه او په سين کې مې واچاوه.

زما مريي له دې وروسته چې د درملو اغېز ځرګند شو د شرابو له نشې خلاص شو او ويې ويل نور د سر درد نه احساسوم خو داسې ښکاري چې لا سم له خوبه نه يم راويښ شوی، ځکه چې نور خوب هم راځي.

پوه شوم چې خوب ته لېوالتيا يې د ترياکو د نشې له امله ده چې، ژر له منځه نه ځي او يوه موده پاتې وي.

ما ورته وويل بله ورځ به د نن ورځې يوه ستونزه هم ونه لرې او بېخي به معالجه شې.

له دې کبله چې ددغې ښځې د سزا له لامله او دغه راز زما د سپارښتنو د ستونزو له امله دې ښه سزا اليدلې ده زه ستا سپين سترګي ښښم.

کاپتا وويل ايا ما ستا پر وړاندې سپين سترګي کړې ده؟

ومې ويل، هو! ته پرون د ډېرو شرابو او د نورو د ملنډو له امله چې پر تا يې وهلې داسې سپين سترګی شوی وې چې دوه ځله دې زما پر وړاندې بې ادبي وکړه.

خو ددې لپاره چې پوه شې د يوه مالک او يوه غلام تر منځ څه توپير موجود وي زه تا
ببنم.

خو په دې پوه شه، که ما پرون د لمر لوېدو پر وخت له مرګه نه واى ژغورلى نو اوس به
په دې چاتې کې مړ نه نورو چاتيو سره د بابل د پاچا د مانۍ د دروازې پر سر وې ځکه چې
بورا بورياش وژلې.

بيا مې پرونۍ پېښه ورته په تفصيل سره بيان کړه ، کاپتا باور نه کاوه او تصوريې
کاوه چې زه درواغ وايم. خو د مينا شتون هغه اړ کړ چې هر څه چې زه وايم پرې باور وکړي.

له دې وروسته چې هغه مې پوه کړ، پرون کوم خطر ورته متوجه و، ومې ويل:

سره له دې چې مونږ له بابله تښتېدلي يو، خو لا له دې ښاره دومره لېرې شوي نه يو،
چې خپل ځان خوندي وبولو او که د بابل پاچا مونږ ونيسي نو د بابل له دېواله به مو سر په
څرې راځوړند کړي.

ددې کشتۍ پارو وهونکي هم تښتېدلي دي او مونږ به له هغوى پرته پارو ونه شو
وهلاى چې ځان د ميتاني تاټوبي ته ورسوو.

ته چې زما مريى يې او س بايد يوه چاره ولټوې چې مونږ ژر د بابل له ګاونده هم لېرې
شو.

خو له دې کبله چې مونږ له پرون غرمې راهيسې څه نه دي خوړلي خوړو ته اړتيا لرو. لاړ
شه او له هغه لېرې کلي څخه زمونږ لپاره خواړه راوړه. د تګ او راتګ په وخت کې خپل
عقل وکاروه چې مونږ څه ډول تښتېدلي شو او ځان د بورا بورياش له شره ژغورلاى شو.

کاپتا د مسو له دوو کړيو سره ولاړ.

دى چې کله بېرته راستنېده نو پر اوږو يې يو بار رالېږداوه، ما وليدل چې دوه منګي
شراب او يوه اندازه خواړه د هغه په پېټي کې تر سترګو کېږي.

ومې ويل کاپتا فکر دې وکړ چې څه بايد وکړو ؟

کاپتا وويل هو باداره ! کله چې زه له دې ځايه خوړو پېرودلو ته روان شوم فکر مې
وکړ او په بيرته ستنيدا کې مې هم فکر وکړ، پوه شوم چې ما پرون خوب نه ليده او هغه څه
چې ما کتل په ويښه کې تېر شوي ول.

نو شراب ګناه نه لري ځکه هغه څه چې ما کتلي د نشې له امله دي ، ما غلطي کړې او
توبه مې وکړه چې نور به شراب نه څښم.

کاپتا دغه خبره وکړه او له دې پرته چې زما اجازې ته وګوري یو منګی یې را واخیست، د شرابو څښل یې پیل کړل او شېبه په شېبه یې د ساه اخیستلو لپاره منګی له خولې لیرې کاوه او د مصر پر خدایانو ان د بابل پر خدایانو یې سلام وایه او له دې وروسته چې دومره شراب یې وڅښل چې نور یې په خېټه کې ځای نه و. منګی یې د کښتۍ تر درازې چوکۍ لاندې کېښود ځکه دغه ځای سوړ او مناسب و او پخپله د کشتۍ پر غولي اوږد وغځېد او ویده شو.

زه له دې حرکته داسې غوسه شوم چې غوښتل مې د کشتۍ په یوه پارو هغه ووهم او سزا ورکړم. خو مینا مخالفت وکړ او ویې ویل ستا مریي ډېر د هوښیارۍ کار وکړ، موږ هم باید له هغه درس واخلو او شراب وڅښو چې مست او تاند شو.

ځکه چې نن د خوشحالۍ ورځ ده، بورا بوریاش که هره رنګه وسیله ولري او څومره ژر چې اقدام وکړي موږ ته نن نه شي را رسېدای چې ومو نیسي.

موږ باید له دې پسرلنۍ ورځې استفاده وکړو چې غنم د سیند تر څنګ شنه شوي لک لکونه سندرې وایي او هیلۍ په جګو ورمېږونو الوت کوي چې لاړې شي ځانونو ته ځالې جوړې کړي او هګۍ واچوي.

ښایي بله داسې ښکلې او زړه راکښونکې ورځ زموږ په برخه نه شي.

دې خبرې پر ما ډېر اغېز وکړ او مې ویل. مینا ! کله چې زه په بابل د منجمینو د کتو لپاره د هغو برج ته تللم له هغوی مې اورېدل چې د انسانانو برخلیک د ستورو له لوري تاکل کېږي او موږ به ونه کړای شو چې خپل برخلیک بدل کړو.

ځکه خو زه ستا وړاندیز منم، نن ورځ به دلته په خوشالۍ تېره کړو او له دې امله چې هوا ګرمه شوې ده غوره ده چې اوبو ته ورګډ شو او ځانونه یخ کړو.

کالي مو و ایستل او په سیند کې مو ولامبل.

کله چې ښه یخ شو او بېرته ماکو ته ستانه شوو، ډوډۍ مو وخوړه او شراب مو وڅښل.

مینا ددې لپاره چې ماته وښیي خپلو خدایانو ته څنګه ګډېږي د کشتۍ په غولي کې ونځېده، ما ورته وویل مینا ! له دې زیاته مه ګډېږه.

ښځې پوښتنه وکړه ولې له دې زیات ونه ګډېږم؟

ما وویل ډېره ښکلې یې، کله چې ګډېږې نوره هم ښکلې کېږې او کله چې پخپل نظر سره چې د سیند په اوبو کې د سپوږمۍ د رڼا په شان ده، ماته ګورې نو زه ډېر بې تابه کېږم

( دلته د ښځې نظر د سین په اوبو کې د سپوږمۍ له رڼا سره تشبیه شوی هغه هم په رڼا ورځ نوښایي عجیبه ښکاره شوې وي، خو په دې کتاب کې تشبیهات او د مطالبو د بیان روده مصري ده، ځکه چې لیکوال خپل ټول مطالب او پېښې له تاریخه اخیستي دي، نو باید لوستونکي پر ژباړن نیوکه ونه کړي چې ولې یې په ژباړه کې هم د مینا نظر د سیند په اوبو کې د سپوږمۍ رڼا بللې ده. ژباړونکی )

خو زه نه غواړم چې یوې ښځې ته ووایم چې هغه زما خور ده، ځکه چې یو ځل مې یو ښځه خپله خور کړه او داسې یې بد مرغه کړم چې هېڅ مصري دا اکثر هومره نه دی بدبخته شوی.

مینا وویل، داسې ښکاري ستاسې په هېواد کې ښځې نارینه غلطوي او هغوی بدبخته کوي، خو زه نیت نه لرم چې تا دوکه کړم او بدبخته دې کړم.

زما خدای هم ماته ویلي چې باید ځان سړیو ته تسلیم نه کړم، مګر هغه وخت چې یو سړی مې خوښ شي.

خو ما تر اوسه پورې داسې کوم سړی نه دی موندلی چې خوښ مې شي او ورسره ساعت تېر کړم.

دا راته ووایه هغې ښځې چې بدبخته کړی وې دکوم وطن وه او څه ډول یې بدبخته کړې.

ومې ویل ددې لپاره چې هغه زما خور شي زما ټول شتمني یې رانه واخیسته، حتی مجبوره یې کړم چې د خپل مور و پلار قبر هم خرڅ کړم او ما ونه کړای شول خپل مور و پلار د هغوی په قبر کې ښخ کړم. مینا وویل ایا له خور کېدا ستا هدف دا دی چې غوښتل دې له هغې ښځې سره څملې او ګټه ترې واخلې؟

ومې ویل هو.

مینا وویل ددې لپاره چې له تا سره څملي له تا یې ټول شیان واخیستل او ته یې اړ کړې چې د خپل مور و پلار قبر هم خرڅ کړې؟

ومې ویل هو.

مینا وویل دا د هغې ښځې کړنه وه، که ستاسې په هېواد کې ټولې ښځې همداسې دي او ددې لپاره چې له یوه سړي سره ویده شي هرشی چې لري هغه ترې اخلي.

ومې ویل نورې ښځې هم ددې لپاره چې کوم سړی ورسره ویده شي او یا ترې استفاده

وکړي له سرې یو شی اخلي.

په مصر کې هېڅ یوه ښځه د یوه شي له ترلاسه کولو پرته له کوم سړي سره واده نه کوي اویا نه ورسره ځملي.

مینا وویل دا ډېر وحشتناک دود دی، که زه سمه پوه شوې یم په مصر کې هر سړی چې وغواړي واده وکړي باید شتمن وي او سره و سپین ورکړي او د کنیزې په شان ښځې واخلي ګنې له ښځې به برخمن نه شي.

ومې ویل همداسې ده خو د سرو او سپینو اندازه سره تو پیر کوي هغه کسان چې بډای دي د ښځې د اخیستو لپاره ډېر سپین او سره ورکوي.

مینا وویل په دې ډول باید حیران نه شو چې ولې ټولې ځان پلورونکې ښځې له مصره راځي.

ځکه هلته، چې د ښځې او میړه ژوند یا د هغوی یو ځای کېدل په سرو او سپینو پورې تړاو لري، ترهغه چې مېړه سره او سپین ونه لري ښځه نه شي کولای، او تر هغه چې ښځه فلز تر لاسه نه کړي نارینه نه شي پیدا کولای.

په دې حالت کې نارینه او ښځې له یو بل سره علاقه نه پیداکوي، یوازې له سرو او سپینو سره دلچسپي لري او هر څوک چې ډېر فلز ورکړي ښځه خپل زړه هغه ته ورکوي.

خوزه دهغه ټاټوبي یم چې هلته نارینه او ښځې د فلز لپاره له یو بل سره نه ځملي او هغه څه چې خدای ورپیا ورکړي وي، نه يې خرڅوي.

زموږ په هېواد کې هېڅکله داسې نه دي اورېدل شوي، چې یوه ښځه د دې لپاره چې یو سړی له ځانه راضي کړي، هغه له ژوند او هستی، وغورځوي او حتی د مور و پلار قبر یې واخلي.

هلته چې کله سړي او ښځې یو بل خوښ کړل مېړه او ماندینه شي، نه ښځه له سړي او نه سړی له ښځې څه غواړي او که ما ځان خپل خدای ته نه وای وقف کړی هرسړی چې ماغوښتی وای هغه به مې خوښ کړی و.

اوس چې ما ځان خدایانو ته وقف کړی، بیا هم کولای شم هر سړی چې خوښ کړم د خپل خاوند په توګه یې غوره کړم، په دې شرط چې خپل پېغلتوب خپل خدای ته ور کړم او بیا واده وکړم.

ومې ویل مینا! دنیا پراخه ده او په دې نړۍ کې ډېر خدایان شته، د خدایانو شمېر

دومره زیات دی چې تر او سه پورې څوک نه دي توانېدلي د هر خدای نوم په یاد ولري
خلک په هر پړاو کې له وړې ځانته نوي خدایان پیدا کوي او د هغو عبادت کوي
له همدې کبله ته هم کولای شې له خپله خدایه تېره شې، له ما سره هغه هېواد ته ولاړه شې
چې هلته ستا خدای هېڅ قدرت و نه لري، هلته نور خدایان هم شته چې تا نه مجبوروي، خپل
پېغلتوب هغوی ته ورکړې او هلته به ته زما خور شې او زما مېرمن کېږې.
میناوویل هر هېواد ته چې زه ولاړه شم زما د خدای قدرت پر ما اغېز کولای شي او نا
ممکنه ده چې داسې ځای ته ولاړه شم چې هلته زما د خدای قدرت نه وي.
بیا مینا ماته نژدې شوه او زما لاس یې ونیو او ویې ویل زما خوښ یې او چمتو یم چې
ستا ښځه شم خو خپل پېغلتوب تا ته نه شم درکولای ځکه چې زما پېغلتوب زما په خدای
پورې اړوند دی.
ومې ویل ګوره مینا! دغه خبره چې ته یې کوې د نورو ښکلو او ځوانو ښځو د خبرو په
شان ده هره یوه ددې لپاره چې هغه سړی وځوروي چې داغواړي، نو یوه پلمه کوي.
یوه وایي زه درسره مینه لرم، خو له تاسره د ډېر سپین او سره نشته، بله وایي پر ما ګران
یې خو له دې کبله چې زما د خدای عبادت نه کوې نو ستا خور کېدای نه شم.
او ته هم وایې چې راباندې ګران یې خو باید خپل پېغلتوب خپلو خدایانو ته ورکړم.
میناوویل، زه یوه ناپوهه ښځه نه یم، د خپل هېواد پر ژبې سربېره په مصري او بابلي
ژبو هم پوهېږم او خپل نوم په دریو ښو لیکلی شم.
زه پوهېږم چې خلک په بېلابېلو هېوادونو کې د بېلابېلو خدایانو عبادت کوي او په
دې هم خبره یم، هغه کسان چې بډای دي پخپلو خدایانو عقیده نه لري، خو په دوو موخو
ځان د خپل خدای معتقد بولي.
یوه دا چې عادت او دود همداسې دی او بله دا چې باید ځانو نه خدایانو ته معتقد
وښیي چې بېوزلي او مریان چې په همغه خدای عقیده لري کار کولو ته اړ کړي او د هغوی
له کارونو ډېره شتمني ترلاسه کړي.
ځکه که بې وزله او مریيان په دې پوه شي چې شتمن په خدایانو عقیده نه لري نو د
هغوی په خلاف به بلوا وکړي.
په مصر، بابل او نورو ځایونو کې پر خدایانو د بېوزلو او غلامانو عقیده د هغوی د
ساتلو تر ټولو ښه وسیله ده.

هومره چې د غه عقیده مريان او بېوزلي د شتمنو فرمانبرداري کوي د متروکې او مرګ ويره دومره اغېز نه لري .

زه په دې ټولو پوهېږم خو له دې کبله چې له ماشومتوبه يې پخپل خدای باندې له عقيدې سره لويه کړې يم او تل د خپل خدای په مخکې نڅېدلې يم.

هېڅ قدرت پر خدای زما عقیده نه شي اخيستلای او که ته هم زما په شان له ماشومتوبه د غوايانو په مخکې نڅېدلی وای او د نڅا پر وخت دې د هغوی د تېرو ښکرو له منځه تېر پو نه وهلای نو اوس به په دې پوهېدې چې زه څه وايم.

څوک چې د غسې پر خپل خدای عقيده پيدا کړي بيا خپله عقيده نه بايلي خو زه يقين لرم چې تا هېڅکله د غوسه شوي غوايي په مخکې د پېغلو او ځوانانو نڅا نه ده ليدلې.

ما وويل او رېدلي مې دي چې په ځينو هېوادونو کې له غوا او غوايي سره لوبې کوي ، د غوايي په مخکې کې نڅېږي او د هغوی غوسه تحريکوي.

ما فکر کاوه چې د غه کارونه د دې لپاره دي چې نندارچيان تفريح وکړي، خو ستا له خبرو داسې ښکاري چې د غه کار مذهبي اړخ لري او د دې لپاره د غوايي پر وړاندې نڅېږي چې په خپلې مذهبي دندې عمل وکړي او موږ هم په مصر کې د غويي عبادت کو.

خو هغه غويی چې موږ يې عبادت کوو ستا له هغو سره توپير لري ، ځکه چې موږ د يو ډول غوايي عبادت کوو او د غه غويی چې مخصوصې نښې نښانې لري په هر بشري نسل کې يانې په هرو شلو کلونو کې يو ځل پيدا کېږي.

کله چې غويی پيدا شو او ټولې ځانګړې نښې ولري بيا موږ ويلای شو ، چې د خدايی نښې لري او د هغه عبادت کوو تر هغه چې مړ شي.

خو موږ هېڅکله د غويي پر وړاندې نه ګډېږو او د مصر د پېغلو ، پېغلتوب غويو ته نه ور کوو.

په داسې حال کې چې ته غواړې خپل پېغلتوب غويو ته ورکړې او اوس چې يو ځناور بايد ستا له پېغلتوبه خوند واخلي ولې يې سپې يا اس ته نه ډالی کوې ؟

مينا په دې خبره داسې غوسه شوه چې دوه سختې څپړې يې راکړې او رنګ يې تک تور شو.

ويې ويل اې ناپوه مصري ډاکټره ! د هغه شي په هکله خبرې مه کوه چې ترې خبر نه يې، ځکه چې زما د خدای په هکله ستا معلومات د سرو او سپينو په اړه د يوه مچ د معلوماتو

په اندازه نه دي.

په داسې حال کې چې زما مخ د مينا پر څېرې تک سور شوی و، پوه شوم چې زما تېنګار ګټه نه لري او مينا به راضي نه شي چې زما خور شي مګر تر هغه خپل پېغلتوب لومړی خپل خدای او په پياوړي ګمان غويي ته ورنه کړي.

له دې امله د کښتۍ شاتنۍ برخې ته ولاړم او د بوختيا لپاره مې خپل درمل سنبال کړل.

مينا د کښتۍ په منځنۍ برخه کې نڅا پيل کړه او زه متوجه شوم چې دغه نڅا يوازې د عبادت لپاره نه ده، بلکې تمرين کوي چې عضلات يې تل په کنټرول کې وي.

مينا داسې نڅېده چې يوه عادي نڅاګره هغسې نڅېدلای نه شوه، ځکه چې کله به يې دوه لاسونه د کښتۍ په غولي کېښودل، دواړه پښې به يې داسې اوچتې کړې چې ته به وايې د هغې بدن له لرګي جوړ دی او کله به يې ملا داسې د شا لوري ته کږه کړه چې سر به يې ځمکې ته رسېده او پښې به يې هماغه راز پر ځمکه ښښتې وې.

کله چې ما خدای ته د هغې عجيبه نڅا وليده پوه شوم چې د مينا په هکله زما تېنګار بېځايه و او ځوک چې دغه سخت کار او زيار د خپل خدای لپاره ګالي نه چمتو کېږي چې زما خور شي مګر دا چې خپل پيغلتوب لومړی هغه ته ورکړي.

ځوک چې پر خپل خدای دومره عقيده لري د مذهب پر خلاف له هغې د کوم شي غوښتل ناځواني ده.

نو فيصله مې وکړه چې له دې وروسته به له هغې ونه غواړم چې زما خور شي.

له دې وروسته چې مينا ونڅېده خپل بدن ته يې مالش ورکړ او کالي يې واغوستل.

بيا د کښتۍ په مخکينۍ برخه کې کېناسته او ويې ژړل.

ما مې خپل طبي وسايل پرېښودل او د هغې خواته ورغلم، په ډېرې نرمۍ مې ورته وويل مينا! ناروغه يې؟

هغې ځواب رانه کړ، زما لاس يې راټېل واهه او په زوته يې وژړل. ومې ويل مينا! سره له دې چې تا ته ډېر لېواله يم خو ډاډه اوسه چې هېڅکله به له تا ونه غواړم چې زما خور شې، نو له دې امله مه خپه کېږه او مه راځخه وېرېږه.

مينا سر پورته کړ او په يوه حرکت سره يې خپلې اوښکې پاکې کړې، ويې ويل ته ځومره احمق يې چې خيال کوې زه له تا ډارېږم.

زه له تا هېڅ وېره نه لرم او ستا له لاسه نه ژاړم بلکې د خپل تقدير لپاره ژاړم چې زه يې

له خپل خدایه ببله کړی یم.

که زه له خپل خدایه نه وای بېله شوې دومره به نه وای کمزورې شوې چې ستا په شان یوه سړي نظر مې څپڅپانده کړي.

ما د هغې لاس ونیو، داخل یې زما لاس تیل نه واهه، مخ یې راواړاو ویې ویل، سینوهه! له دې کبله چې زه دې د بابل له پاچا وژغورلم باید ددې خدمت په بدل کې ستا د ژوند شریکه شوې وای خو که یوه شوې چې زما خدای څوک دی په دې به حیران نه شې چې زه دد غه خدمت بدله نه شم درکولای.

مور باید د خپل خدای په هکله له بهرنیانو سره ډېرې خبرې ونه کړو او په هر شي چې پوهېږو باید هغوی ته یې ونه وایو.

خو زه درته ویلای شم چې زموږ خدای د سمندرونو خدای دی او په یوه غره کې په یوه سمڅه کې اوسېږي.

هر څوک چې دغه غار ته ننوځي که څه هم له هغه ځایه راوتلای شي خو دومره د نیکمرغۍ احساس کوي چې هېڅکله به له هغه ځایه را و نه وځي.

له همدې امله تر اوسه پورې له دغه غاره څوک نه دي راوتلي.

ځینې وایي چې زموږ خدای چې اوس د سمندر خدای دی، دغوایي په شان دی او ځینې وایي چې د سړي په شان دی خو سر یې د غوایي په ډول دی.

هر کال په هغو پیغلو کې چې مخکې یې نخا زده کړې وي دولس تنه په قرعه کشۍ کې انتخابوي او په دغو دولس تنو کې هره میاشت هغه مهال چې سپوږمۍ د څوارلسو شپو شي یوه پېغله د خدای غار ته ننوځي.

زه هم له دغو دوولسو نجونو څخه یوه وم او باید د څوارلسمې سپوږمۍ پر یوې شپه دغه غار ته ننوتلې وای، خو له دې کبله چې زه یې وتښتولم او د وینځې په توګه یې د بابل په پاچا خرڅه کړم له دغه ستر نعمته بې برخې شوم.

په ټوله موده چې اسیره وم د همدې غار په هکله مې فکر کاوه او اوس هم د همدې غار په سوچونو کې یم.

له دې پر ته بله هیله نه لرم چې ولاړه شم او خپل پېغلتوب په همدې غار کې خپل خدای ته ډالۍ کړم، خو که له غاره راووتم بیا به ستا ښځه شم البته هغه کسان چې زموږ د خدای غار ته ننوځي داسې د نیکمرغۍ احساس کوي چې هېڅکله له دې غاره نه راوځي.

ومې ویل، مېنا ! اوس زه پوهېږم چې د کرت د ټاپو د کومې سیمې یې. (کرت ټاپو د مدیترانې په سمندرګي کې یو ټاپو دی چې پخوا یې لرغونی تمدن درلود. اوس د یونان برخه ده او د افریقا په تېره بیا د مصر په شمال کې موقعیت لري ژباړن).

ځکه کله چې په سوریه کې وم هغه سمندر کچ کوونکي چې له کرت څخه راتلل ویل به یې د کرت د ټاپو د اوسېدونکو خدای په یوه غار کې ژوند کوي او د غوایي په شان دی.

زه چمتو یم چې تا د کرت ټاپو ته ورسوم او چې هر ډول دې زړه غواړي له خپل خدای سره هغسې معامله وکړې.

مینا وویل سینوهه ! په ټولو هغو نارینه وو کې چې تر اوسه ما لیدلي، ته یوازېنی کس یې چې خوښ شوی مې یې.

ځکه پر دې سربېره چې زه دې وژغورلم په تاکې داسې څه شته چې ما ستا لور ته جذبوي خو نه پوهېږم چې هغه څه دي ؟

زه غواړم له اوسه تر هغه وخته چې کرت ته رسېږو زه او ته په خوشحالۍ سره ژوند وکړو او بیا هم وایم.

له دې وروسته چې خپل پېغلتوب مې خدایانو ته ډالۍ کړ که له غاره ووتلم ستا ښځه به شم.

بیا مینا په خپلو لاسونو زما مخ ونیو، خپلې مخ یې ماته نږدې کړ او خپلې شونډې یې زما په مخ وموښلې.

ما یې مخ ښکلاوه او دومره خوند یې راکاوه چې که مې خور شوې هم وای دومره خوند به یې نه و راکړی.

کله چې شپه شوه زما مریی پاڅېد سترګې یې وموښلې او خوله یې وازه وازه کوله ویې ویل، اې (آمون) د مصر ستره خدایه ! زه شکر کوم چې زما سر درد دې ختم کړ او اوس مې سر د هغو مسو په شان درد نه کوي چې د سندان او څټک ترمنځ وي.

خو خېټه مې دومره وږې ده چې ته وا څو ځوان زمریان پکې ګرځي او ډوډۍ غواړي.

بیا له دې پرته چې له مونږ اجازه واخلي ولاړ شو او له هغې ډوډۍ څخه یې لږه را واخیسته چې ده پخپله اخیستې وه، ویې خوړه او تر خوراک وروسته به یې د مرغانو هډوکي سیند ته اچول.

# نولسم څپرکی

## موږ د ري ټوکماران شوو

کله چې یې لوږه کمه شوه ومې ویل کاپتا ! تاغوښتل چې موږ ته نصیحت وکړې او وایې چې موږ څه وکړو چې ځان وژغورو.
ځکه چې ښایي د پاچا عسکر په موږ پسې راوتلي وي او زموږ د نیولو تکل یې کړی وي.
کاپتا وویل که زه سم پوه شوی یم ؟ نو تا وویل چې د بابل پاچا تر دپرشو ورځو پورې ستا لټه نه کوي او تا ته یې ویلي چې تر دپرشو ورځو پورې به د پاچاهی مانۍ ته نه ورځې.
نو هغه به ستا په فکر کې نه وي او دا خیال به کوي چې په یوې لېرې پرتې سیمې کې زما د مړي په مومیایي لګیا یې.
خو ښایي هغه پارو وهونکي چې له دې کشتۍ تښتېدلي او یا د حرم سرای خواجګان به په دې موضوع د بابل پاچا خبر کړي چې په دې بڼه کې باید وډار شو او وتښتو.
ځکه که بورا بوریاش ما ونیسي خپل زمري ته به مې واچوي او تا او دغه ښځه به د بابل له د یوالونو سر په څرې راځوړند کړي.
که تا زه په تریاکو نه وای بې هوشه کړی او ما خپل عقل او حواس نه وای بایللي تاته به مې لارښوونه کړې وای.
خو ستا دغه اپیم دومره سپېره ول چې که څه هم زما سر درد ښه شوی دی خو لا هم ګنګس یم.
له دې سره تاله دې امله چې ماته دې اپیم راکړي ول او په چاړه کې دې کېنولی وم (او دغه چاره زما له حیثیت سره سم کار نه و) بیاهم زه تابښنم.
ومې ویل دغه خبرې پرېږده او یوه چاره راوښیه چې خپل ځان وژغورو.
کاپتا وویل زه پوهېږم چې ته له ما پرته د هغه پسه په شان یې چې خپله مور یې ورکه

کړې وي او پرله پسې بغارې وهي، که زه نه وای نه به له دې امله چې ځان نه شې ژغورلای وختي مړ وې.

ومې ویل وواېه څه باید وکړو او څنګه وتښتو.

کاپتا وویل دغه کشتۍ چې لس پارو وهونکي یې درلودل ډېر لویه ده او مونږ په دوو کسانو (څکه چې دغه ښځه خو پارو نه شي وهلای) دغه کشتۍ نه شو بېولای

مونږ داوبو د بهیر خلاف حرکت نه شو کولای نو مجبوره یو چې د کشتۍ له سفره تېر شو او په بدل کې یې هڅه وکړو چې دوه خره پټ کړو او پر وچه ځمکه خپل سفر ته دوام ورکړو.

په دې سفر کې به مونږ ځانونه د ګرځنده ټوکمارانو او مداریانو په شان کړو او شکېدلې جامې به واغوندو.

د ورځې به مزل کوو او د شپې مهال به په کلیو کې فالونه نیسو، مداریتوب به کوو او په ټوکماریو به کلیوال خوشحالوو.

ته باید خپل طبابت پټ کړې او په بدل کې یې د بابل د ستور پېژاندو په شان د خلکو فالونو ګورې.

زه به په ټوکو او مسخرو خلک خندوم او مینا هم په نڅاسره خلک بوخت ساتلای شي.

بله مهمه خبره داده چې باید سمدستي له دې ځایه ولاړ شو څکه چې پارو وهونکي چې لس تنه دي ډېر ژر پر خپلې ویرې برلاسه کېږي او د خپلې کشتۍ د ترلاسه کولو لټه به کوي.

زه پوه شوم چې کاپتا رښتیا وايي او ممکنه ده پارو وهونکي پر مونږ د حملې تکل وکړي، چې خپله کشتۍ واخلي مونږ خپل کالي د سیند په څنډه او چیکړو ککړ کړل، سره او سپین مو سره وویشل او په هغو همیانیو کې مو پټ کړل چې تر جامو لاندې مو تړلې وې.

کاپتا وویل باید زه د طبابت وسایل په سین کې واچوم، خو زه د طبابت له وسایلو نه شوای تېرېدلی، هغه مې په هغه ګیلم کې تاوو کړل چې مینا مې پکې تاو کړې وه او کاپتا ته مې ور په شا کړل.

چې هوا تیاره شوه د کروندو له منځه روان شوو او ځانونه مو د کاروانونو لارې ته ورسول.

په دې شپه مو ترسهاره پورې مزل وکړ او سهار یوه کلي ته ورسېدو چې اوسېدونکو یې تر هغه وخته د فلزاتو رنګ ډېر کم لیدلی و، په جونګړو کې یې ژوند کاوه او ځمکه یې

په لرګي او کاڼي اړوله.

ماکاپتا ته وویل چې د دوو خرو پټول سم کار نه دی. ځکه چې ددې کلي او سېدونکي به له موږ سره دښمني وکړي او غوره داده چې دوه خره ترې واخلو او په بدل کې مس ورکړو. موږ د مسو په ورکولو سره دوه خره پیدا کړل او کاپتا د پیټي له وړلو خلاص شو.

له هغه وروسته مو د بابل پر لوري په لاره حرکت پیل کړ. هره ورځ له هغه وروسته چې هوا به ګرمه شوه په یوه کلي کې به مو دمه کوله او د کلي په چوک یا د سیند په څنډه به مو کلیوالو ته خپله هنرمندي کوله.

ما په هغه ډول چې د بابل په برج کې کتلي وو د کلیوالو فالونه کتل او هغوی ته مې زېری ورکاوه چې فصلونه به مو ډېر شي او د کروندو د خړوبولو لپاره به د سیند اوبه ډېرې شي.

ښځې به یې زامن وزېږوي او که به ځوانانو د فال نیولو غوښتنه کوله هغوی ته مې زېری ورکاوه چې یوه ښکلې پېغله به یې ښځه شي.

ما نه غوښتل هغوی ته حقیقتونه ووایم ځکه که مې ورته ویلي وای چې د مالیاتو د ترلاسه کولو مامورین د دوی څاروي او غلې په زور اخلي. په لرګیو یې ملاوې شنې اړوي. سین به مستېږي. د هغوی نیمایي کرونده به اوبه یوسي او نیم به ملخان وخوري نو هغوی چې ساده کسان ول نهیلي کېدل.

هرځومره چې په لاره تللو او لمر ډېر پر موږ لګېدو مره نور هم تورېدو او درې واړه لکه ګرځنده تورکمارانو غوندې وو.

کله چې به یوه کلي ته ورسېدو ما به خلکو ته فالونه نیول او کاپتا به په ټوکو او لطیفو هغوی خندول او یا به یې حیرانول.

کله چې به کاپتا ورته ویل چې په نړۍ کې داسې ملتونه شته چې کله په لاره ځي سرونه له تنو جلاکوي او تر تخرګ لاندې یې نیسي چې بدن یې پرې دروند نه شي او یا دا چې ورته ویل به یې په لېوانو او پسونو بدلېږي. نو ساده زړو خلکو به دغه خبرې منلې او دا پوښتنه به یې هم نه کوله چې که یو څوک سر له بدنه جلا کړي څنګه ژوندی پاتې کېږي.

موږ په دې سفر کې د خوړو لپاره هېڅ پیسې ورنه کړې او هر چیرته چې رسېدو زما فال نیونه. د کاپتا ټوکې ټکالې او د مینا نڅېدل به پیل شول او خلکو به دومره خواړه راکول چې زموږ له ضرورته به هم زیات شول.

په دې سفر کې که څه هم ما نه غوښتل چې طبابت وکړم. خو کله چې به یوه کلي ته ننوتو او ما د نارینه وو او ښځو له وېښتو ډک بدنونه کتل هغو ته به مې ویل چې څه ډول په چونې او زرنیخ (سلفور ارسنیک) د خپل بدن اضافي وېښتان لیرې کولای شي چې له بدرنګۍ او د بدن له خارښه خلاص وي.

کله چې به مې احساس کاوه د کلیوالو سترګې معیوبې دي او که معالجه نه شي ښایي ړانده شي. نو په وړیا توګه مې ورته علاج کاوه. کله چې به ښځو چونه او زرنیخ کارول او کتل به یې چې د لس کلنو نجونو په شان یې بدن وېښتان نه لري، دومره به خوشحاله شوې چې تر ټولو خوندور خواړه به یې مونږ ته راکول.

ما به په خپلې معالجې کلیوال خوشالول او پر دې سربېره مې په دې ډول خپله تجربه او طبي معلومات زیاتول چې مهارت مې په جراحۍ کې کم نه شي.

د بابل په ګرم ټاټوبي کې د ډېر سفر له امله زما پښې لاسونه تناکې شول او د بدن او مخ پوستکی مې تور شو.

خو تل خوشحاله وم او د زړه له تله مې ځان خوشاله احساساوه ځکه چې مینا راسره وه او هر ځل چې به مې ورته کتل نو راته موسکۍ به شوه.

هر شپه چې وېدېدم مینا مې په څنګ کې خملاستله او سهار به چې را وېښ شوم تر دې وړاندې چې د لمر طلایي ماکو په اسمان کې وګورم د مینا مخ او بدن ته مې کتل او هغه تر لمر هم راته ښکلې وه.

له مینا پرته ما خان په دغه مسافرت کې د ژوند له هر ډول قید و شرطه ازاد احساساوه ان د اوس او راتلونکې لپاره مې هېڅ اندېښنه نه درلوده او داسې کار نه ؤ چې زه یې د ترسره کولو لپاره اندېښنه وکړم.

مونږ به ډېر ځله د شپې مهال یانې نیمه شپه حرکت کاوه چې د لمر له تودوخې ځان وساتو او کله چې به ورځ شوه له دې پرته چې ځان ستړی کړو په لومړني کلي کې به مو دمه کوله او غرمه مهال به له خوبه پاڅېدو او کلیوال به مو پر ځان راټول کړل.

دغه کار زمونږ لپاره هم تفریح وه او تر هغوی ډېر به مونږ ترې خوند اخیست.

کله چې به شپه شوه او کلیوال به وېده شول مونږ هم وېدېدلو په بله ورځ به روان شوو.

دغه کار تر هغې ورخې روان وه چې مونږ د میتاني هېواد سرحد ته ورسېدو.

د دغه هېواد سرحد ته له رسېدو وروسته دوه تنه شپانه پوه شول چې مونږ بېوزله یو پر

موږ ورحمیدل او له دې پرته چې سرحد ساتونکي متوجه شي موږ ته يې لار ښوونه وکړه او د میتاني هېواد ته يې د ننه کړو. موږ د میتاني ښار ته ننوتو او هلته مو له خپل شان سره سم کالي واخيستل ځانونه مو ووينځل. کالي مو واغوستل او په يوه مېلمستون کې مو واړول.

له دې کبله چې زما سره او سپين زر کم شوي ول نو میتاني ته له تلو وروسته مې فيصله وکړه چې څه موده هلته پاتې شو او د طبابت په وسيله سره او سپين زر ټول کړو.

ډېر ژر زما مشتريان دومره ډېر شول چې زه اړ شوم ځينو ناروغانو ته ووايم چې بله ورځ راشي.

مينا د میتاني د خلکو توجه ډېره جلبوله او هر شتمن به چې وليدله غوښتل يې چې هغه له ما وپيري. خو زه چمتو نه وم چې مينا خرڅه کړم ځکه چې د هغې وجود زما لپاره لکه لمر او خواړه داسې اړين و.

زما مريی چې په مسافرت کې ډېر ډنګر شوی و، بېرته چاغ شو، يو شمېر ځوانې او ښکلې ښځې ترې راتاو شوې او کله چې به يې توکې ټکالې او رېدلې تفريح به يې کوله.

د کاپتا يوه کيسه چې د ټولو ډېره خوښېدله په بابل کې د پسرلي په د يارلسمه ورځ د هغه د يوې ورځې د پاچاهی کيسه وه او کاپتا د دې کيسې د نکلولو لپاره خاص استعداد درلود.

ښځې به له ډېرې خندا پر ځمکې تاو راتاو شولې او ويل به يې د دې سړي ژبه د يوه سين په شان چټکه او اوږده ده.

په میتاني کې تر هغه وخته ډېر خوشحال وم. مګر پوه شوم چې مينا د شپې ژاړي. زه پوهېدم چې د هغې د ژړا علت دا دی چې له خپله خدايه لېرې ده.

هغې ته مې وويل مينا زه پوهېږم چې ته ولې ژاړې؟

ما تاته ويلي وچې تا به کرت ته رسوم خو لا مې خپل وطن ته نه يې بېولې.

له بده مرغه اوس (کرت) ته سفر نه شم کولای ځکه چې مجبور يم د يوه کار لپاره د هاتي هېواد ته ولاړ شم.

خو له دې کبله چې د کرت بېړۍ ډېرې هاتي ته راځي له هغه ځايه تا په هغو بېړيو کې کرت ته رسولای شم.

هغه څه چې ما مينا ته ويل له حقيقته ډېر لېرې نه وو. ځکه لکه څرنګه چې د خپل

سرګذشت په پیل کې مې وویل د مصر د پوځ مشر دنده راکړې وه. چې نورو هېوادونو ته هم ولاړ شم. د هغوی د پوځي وضعیت په هکله معلومات راغونډ کړم او مصر ته د ستنېدا پر وخت دغه معلومات هغه ته ورکړم.

همدا رنګه باید هاتي هېواد ته ولاړ شم او وګورم چې د دغه هېواد پاچا څومره عسکر لري او د هغه د جنګ وسایل څه ډول دي؟

خو پر دغو خبرو سربېره ما نه غوښتل چې مینا نیغ په نیغه کرت ته بوځم او د هغې خدای ته یې وسپارم. بلکې لېواله وم چې هاتي ته د سفر په وخت کې تر یوه وخته هغه له ځانه سره ولرم.

هغې ته مې وویل مینا په کال کې یو ځل له دې هېواده یو پلاوی د هاتي هېواد ته ځي چې د میتاني د هېواد قلنګ د هاتي پاچا ته ورکړي.

کله چې د قلنګ ورکولو دغه ډله روانېږي لارې امنې وي او غله پر مسافرو حملې نه کوي.

اوس د دغه پلاوي د حرکت وخت دی. باید زه له دې فرصته استفاده وکړم او هاتي ته ولاړ شم. ګنې مجبور به شم چې خپل سفر تر بله کاله چې د قلنګ وړونکو د حرکت وخت راځي وځنډوم.

زه تا نه مجبوروم چې له ما سره د هاتي هېواد ته راشې ځکه چې نه غواړم له دې زیات تا له خپله خدایه لېرې کړم.

خو که ته غواړې زه به دې له دې ځایه سوریې ته بوځم چې په کشتۍ کې کرت ته ولاړه شې او که مې وکړای شول پخپل وخت ستون شوم نو د قلنګ له مامورینو سره به هاتي ته ولاړ شم ګنې زما سفر به راتلونکي کال ته پاتې شي.

مینا وویل سینوهه! زه نه غواړم چې سوریې ته زما د بیولو له امله هاتي ته ستا مسافرت وځنډېږي. ځکه چې حتماً کرت ته زما د تګ په پرتله هاتي ته ستا سفر مهم دی.

ما اورېدلي چې په هاتي کې ځواني نجونې د غوایانو په مخکې نڅېږي. زه به هلته د غوایانو په مخکې د نڅا تمرین وکړم ځکه چې یوه موده وشوه دغه ډول نڅا مې نه ده کړې او ډارېږم چې په دې نڅا کې به خپله تجربه له لاسه ورکړم.

ومې ویل زه په هاتي کې د غوایانو په مخکې له نڅا نه یم خبر خو په دې پوهېږم چې له هغه ځایه په کشتۍ کې کرت ته تللی شو.

مینا وویل هر چیرته چې ته ولاړ شې زه هم درسره ځم ان که د هاتي هېواد وي.

خو کله چې زما مریي واوریدل چې هاتي ته ځو خپه او په قهر شو. ویې ویل موږ لا له یوه خطره نه یو ژغورل شوي چې ته غواړې موږ له بل سره مو مخامخ کړې.

ایا نه پوهېږې. هغه خلک چې په هاتي کې ژوند کوي وحشي خلک دي او پردي وږني چې غوښې یې وخوري.

که یې و نه وژني نو سترګې یې ړندوي چې پخپلو ژرندو کې یې وتړي. ژرندې پرې ګرځوي او غلې پرې اوړه کړي.

بیا کاپتا مینا ته مخ کړ او هغې ته یې وویل زما بادار لیونی شوی خو ته هم چې هاتي ته د هغه تګ مني لیونۍ شوې یې.

که زه ډاکټر وای د سینوهه د سر کوپړۍ مې سورۍ کوله چې له سره یې مضر بړاس ووځي او بیا د غسې خطرناک فکرونه ونه کړي.

خو زه ډاکټر نه یم مګر همغه ډول چې ده زه په یوې چاټۍ کې ځای پر ځای کړی وم. زه هم دی په یوې چاټۍ کې اچولای شم چې څو زېښوونکي یې پر سر واچوم چې هوښیار شي.

بیا کاپتا ساندې پیل کړې او ویې ویل لعنت دې وي پر هغې ورځې چې زه وزېږېدم او بیاله دې لیوني بادار سره مخامخ شوم.... زه نوی چاغ شوی وم او نس مې غټ شوی و. اوس بیا باید د مسافرت بدبختۍ و زغمم هغه هم د سړي خورو په هېواد کې.

کله چې پوه شوم کاپتا نه غلی کېږي نو لکړه مې راواخیسته او هغه مې په ولیو اوشا څو لکړې ووا هه.

کله چې غلی شو و مې ویل کاپتا ! که ستا په ځای بل هر مریي له ماسره داسې سپین سترګي کړې وای ما به هغه خرڅ کړی وای خو له دې کبله چې ته بوډا یې او یوه موده کېږي چې له ماسره یې نو زه چمتو یم. تا ازمیر ته واستوم چې هلته زما کور تر هغه وساتې چې زه بېرته له سفره درستنېږم.

کاپتا وویل سره له دې چې مانه غوښتل هاتي ته ولاړ شم خو تا یوازې نه شم پرېښودلای چې دغه هېواد ته لاړ شې. ځکه چې ستا یوازې تګ دې ته ورته دی چې یو نوی زېږېدلی ماشوم د لیوانو په منځ کې واچوې.

خو دا راته ووایه چې هاتي ته د تګ لپاره باید د سمندر له لارې او په کشتۍ کې

ولاړ شو؟

ومې ویل نه هغه کسان چې له دې ځایه هاتي ته ځي په وچې سفر کوي

زما مرییه وویل د مصر په ستر خدای آمون دې سلام وي. ځکه چې ما قسم کړی و .هېڅکله به په کشتۍ کې ګام کېنږدم او په سمندر کې به سفر ونه کړم. خو دا چې په دې سفر کې اړتیا نشته چې په کشتۍ کې سپاره شو. زه به له تا سره ولاړ شم.

بیا کاپتا د سفر د وسایلو او پیتي چمتو کړل. دی په دې کار ښه پوهېده او تر ما یې ښه چمتو کړل.

# شلم څپرکی

## په هاتي هېواد کې

خلک د هاتي له نومه دومره وېرېدلي چې که زه ووایم هاتي ارام او با امنه هېواد دی څوک باور نه کوي چې زه به رښتیا وایم.

که څه هم د هاتي او سېنډونکي ځیږه خلک او په جنګونو کې بېرحمه دي خو د دوی په هېواد کې چې ډېر غرنی دی امنیت واکمن دی.

په هاتي کې که د چا شیان په لارو کې لوټ شي د هېواد پاچا د هغه د شیانو دوه چنده بېرته ورکوي.

که د غلو په حمله کې څوک ووژل شي پاچا د وژل شوي د هغې شتمنۍ په اندازه چې ده پخپل ژوند کې ترلاسه کړې ده. د هغه پاتې خپلوانو ته ورکوي. په دې ډول د قرباني پاتې کسان پخپل ژوند کې د خرڅ او خوراک اندېښنه نه کوي.

له همدې امله د هاتي د هېواد پر لارو زموږ سفر بې له کومه جنجاله پای ته ورسېد. د پاچا جنګي ګاډۍ زموږ مخکې او شاته روانې وې او هره ورځ یې موږ ته خواړه هم راکول. تر هغه چې د هاتي پلازمېنې (ختوشه) ته ورسېدو.

کله چې د نړۍ د سترو ښارونو خبره کېږي خلک د بابل. طبس او نینوا د ښارونو یادونه کوي.

ما نینوا نه دی لیدلی چې څه ډول دی خو ویلای شم چې د هاتي پلازمېنه ختوشه ښار له ځینو اړخونو تر طبس هم ښه دی.

پر دغه هېواد داسې پاچا حکومت کوي چې هم د هېواد مشر دی. هم مذهبي مشر او هم قاضي دی.

زه فکر نه کوم چې د نړۍ په هېڅ ځای کې دې پاچا د دغه سړي په شان قدرت ولري.

کله چې انسان هاتي ته ځي او سترګې یې په وچو غرونو لګېږي نو حیرانېږي چې څه

ډول ممکنه ده. دغه هېواد چې سوزنده دوبی او وچ غرونه لري دومره شتمن دی.
ان سړی به له ځانه پوښتنه وکړي څه ډول خلک په دغو غرونو کې ژوند کوي او د اوبو له کمښته نه مري.
خو په دغه عجیبه هېواد کې په هغه موسم کې چې په مصر کې نیل مستېږي او اوبه یې راخېژي (په مني کې ژباړن ) هوا سړېږي او له اسمانه سپین رنګه ښځکې ورېږي.
دغه ښځکې ټول غرونه پوښي او بیا په ګرمي کې په اوبو بدلېږي. زه پوهېږم چې تاسې به پر دغو خبرو باور ونه کړئ. خو ما پخپلو سترګو دهاتي دنګ غرونه ولیدل چې له دغو سپینو ښځکو ډک ول.
دغه ښځکې په ټول کال کې د دغه هېواد اوبه تامینوي . خلک په دغو اوبو هم خپل مالونه مړوي او هم یې خپله څښي. ان خپل فصلونه هم پرې خړوبوي.
څومره چې د هېواد دننه خلک ارام دي هومره خپلو ګاونډیانو ته پلمې لټوي او تل سرحدي ښښې شاته کوي چې د نورو خاورې ونیسي.
د سوریې له سرحد سره یې یوه لویه کلا جوړه کړې چې دېوالونه یې له لویو ډبرو جوړ دي.
دغه کلا پر پراخې سیمې حکومت کوي او ټول هغه کاروانونه چې له سوریې هاتي ته راځي او له دې ځایه تېرېږي باید په دغې کلا کې پرتو د هاتي مامورینو ته قلنګ ورکړي.
هېڅ کاروان د هاتي هېواد ته له ورتګه وروسته حق نه لري له لویې لارې بهرشي او که بهر شو خان او مال یې په خطر کې لوېږي، دهغوی شتمني لوټوي. که کاروانیان مقاومت وکړي وژني یې او که مقاومت ونه کړي هغوی اسیرانوي او مریان ترې جوړوي.
د هاتي د خلکو شتمني له دریو ځایونو تامینېږي. لومړی هغه قلنګ دی چې له کاروانیانو او مسافرو یې اخلي ، دویم پر ګاونډیو هېوادونو د حملې له لارې او د شتمنۍ دریمه سرچینه د سرو زرو او مسو او د یو ایرن رنګه او شین فلز استخراج دی چې او سپنه بلل کېږي.
زه نه پوهېږم چې د هاتي او سېدونکي څه ډول دغه او سپنه راباسي او وسله ترې جوړوي. ځکه چې او سپنه د مسو په شان نه ویلې کېږي.
ما د دوی ډ او سپنې یو کان ولید ، خو پوه نه شوم چې څنګه له کاني ډبرو څخه او سپنه ترلاسه کوي

د ختوشه ښار د یوې غرنۍ سیمې په منځ کې جوړ شوی، د غرونو لمنې په میوه لرونکو ونو پوښل شوې او د غرونو په ښکتنۍ برخه کې د اوبو ویالې او لښتي بهېږي

په ختوشه ښار کې وحشتناکې او د نګې ودانۍ جوړې شوې، ځکه دغه ودانۍ له لویو ډبرو جوړېږي او ځینې یې دومره لوړې دي چې سړی وېروي. هېڅ بهرنی د ختوشه ښار ته ننوتلی نه شي. مګر د هغه پلاوي غړی شي چې په کال کې یوځل د هاتي پاچا ته قلنګ راوړي.

له همدې لامله د ختوشه ښار د طبس او بابل په شان مشهور نه دی.

په دې ښار کې او سېدونکي له بهرنیانو سره خبرې نه کوي او که کوم بهرنی تر ې پوښتنه وکړي او هغوی هم په بهرنۍ ژبه پوه شي نو وایي نه پوهېږو.

خو له دې سره سره ملایم خلک دي او له بهرنیانو سره دښمني نه کوي.

د دغه ښار د لویانو او شتمنو کسانو جامې عجیبه، ان د کتود ي دوی لویې جامې اغوندي. پراخ لستوڼي لري چې یو سر یې ځمکې ته رسېږي او د خپلو جامو په سینې کې وزر لرونکې د ایرې انځوروي.

لوړې او د تېرو څوکو لرونکې خولۍ لري او د مصریانو په شان ږیرې خرېي.

ځینې اشرافان او خانان حتی د سر وېښتان هم د ږیرې په شان خري خو د سر په منځ کې یې او ږد کاکل لیدل کېږي.

د هاتي اشرافان او خانان د نړۍ د نورو هېوادنو په شان څرب او چاغ دي، مخونه یې روښانه دي او معلومېږي چې ډېر خواړه خوري.

د هاتي د پاچا پلازمینه ختوشه د طبس او بابل پر خلاف سوداګریز ښار نه دی بلکې یو صنعتي ښار دی او له سهاره تر بېګا پورې پکې د آهنګرۍ غږ اورېدل کېږي او هلته تل وسله جوړېږي.

د هاتي اوسېدونکي د نوور متمدنو ملتونو پر خلاف بهرني مزدور عسکر نه لري او ټول عسکر یې د سیمې اوسېدونکي دي.

زه فکر کوم چې د دوو خبرو له کبله بهرني عسکر نه ګماري، یو دا چې بهرنیان د ځان په شان مېړني او زړه ور نه بولي او بله دا چې فکر کوي که بهرني عسکر هر څومره مېړني او زړه ور هم وي، خو بیا هم اجیر او مزدوران دي او د یوه ځایي عسکر په شان نه په هېواد زړه خوږوي او نه همت لري..

هاتي ځایي مشران لري او هر مشر پخپل ولایت کې کوروا کې لري خو د هاتي د پاچا اطاعت کوي.

په هاتي کې د عدالت اجرا کول عجیبه دي، چې متمدن ملتونه پرې باور هم نه شي کولای.

په دې هېواد کې که یو ځایي پاچا د هاتي د پاچا خلاف بلوا وکړي او لښه وکړي چې پاچا وپرځوي. نو هغه بلوا ګر ځایي مشر نه وژني بلکې هغه یو سرحد ته استوي چې له نورو ملتونو سره په جنګ کې تجربه پیدا کړي او جنګي شخصیت خپل کړي.

په هاتي کې که یو څوک کوم کس ووژني. هغه نه په دار کوي، بلکې قاتل دنده لري چې د مقتول د وینې بیه د هغه پاتې کسانو ته ورکړي. په دغه هېواد کې که یوه مېړونه ښځه یو بل نارینه ته لېواله شي نو. نه ښځه محکوموي او نه یې مین ته سزا ورکوي. بلکې ښځه حق لري چې د مېړه له کوره ولاړه شي او د خپل مین په کور کې پاتې شي. خو مین باید د مېړه تاوان په سرو زرو یا مالونو ورکړي.

که یوه ښځه یا سړی له واده وروسته بچیان رانه وړي دغه ګډ ژوند باطلېږي. ښځه یا مېړه مجبوره کېږي چې د بچي د راوړلو لپاره بل خاوند یا ښځه انتخاب کړي. ځکه د هاتي پاچا له خپل رعیته غواړي چې ډېر بچیان وزېږوي.

د دغه ملت یو حیرانوونکی دود دادی چې که یو څوک یو بل کس په یوې لېږې پرتې سیمې یا واټ کې ووژني چې هلته څوک ژوند نه کوي. نو د هغه د قتل بیه په ګڼ میشته سمیه کې د قتل تر بیې کمه وي.

ځکه دوی باوري دي. هغه کس چې لېرې پرتو او کم نفوسه سیمو ته ځي په قصدي توګه نور پاروي چې ویې وژني.

په داسې حال کې چې په کلیو او ښارونو کې په اسانه څوک د بل سړي وژلو ته نه تحریک کېږي.

د دغه هېواد یو شرمونکی قانون دا دی چې خور او ورو له یو بل سره واده نه شي کولای او د خور او ورور واده لویه ګناه ده.

په هغو دریو خبرو کې. چې اعدام په کې جواز لري، یو یې د خور او ورور واده دی.

کله چې زه هاتي هېواد ته ننوتم له ځان سره مې ویل. له دې کبله چې د دغه هېواد خلک زیار کښ دي او په سړه هوا کې له ژوند سره عادت شوي دي خو دوی معیوب او

کمزوري ماشومان تر زېږېدو وروسته وژني چې په راتلونکې کې کمزوري کسان ترې جوړ نه شي.

دغه خلک ډاکټر ته اړتیا نه لري او ما اورېدلي و، چې کله که په دغه هېواد کې څوک ناروغ شي نو تر درملنې مرګ غوره بولي ځکه چې پخپلې ناروغۍ اعتراف کولای نه شي. زه پوهېدم چې د هاتي او سېدونکي له مرګه نه وېرېږي خو له کمزورۍ وېره لري

زه متوجه نه وم چې په دغه هېواد کې هم یو شمېر اشراف شته او اشرافان او خانان په تولې نړۍ کې تنبل او لټان دي. له مرګه وېرېږي او د ځان درملنه کوي چې مړه نه شي.

له همدې لامله ځینې خانان به په بدلو جامو کې د شپې مهال زما کور ته راغلل او ما به یې علاج کاوه.

زیاتره یې په شرابو کې د ډېر افراط له امله کړېدل، د ختوشه خانانو به ډېر شراب څښل او لاسونه به یې د ډېرو شرابو له امله رېږدېدل.

ناروغانو به غوښتل چې د هغوی د لاسونو د رېږدېدا علاج وکړم او ما به د حمام کولو او مسکنو درملو په وسیله د هغوی علاج کاوه.

له ما سره د ښار د خانانو د ملګرتیا یو لامل دا و چې مینا به د هغوی په مخکې نڅېدله او کله چې به هغوی زموږ کور ته راغلل، مینا ته به مې ویل چې د هغوی په مخکې ونڅېږي.

هغوی به ګران بیه ډالۍ ورکولې او ما پخپله هم له ناروغانو سره او سپین اخیستل او په لنډه موده کې شتمن شوم.

په داسې حال کې چې هاتي ته د ننوتو پر وخت مې فکر کاوه چې له هاتي د ستنېدا پر وخت به تشې همیانۍ له ځان سره وړم.

یو کس چې له ما سره ملګری شو د هاتي د پاچا کاتب و، چې په څو ژبو پوهېده او د بهرنیو پاچاهانو لیکونه به یې ورته لوستل او ځواب به یې ورکاوه.

یوه ورځ چې هغه زموږ په کور کې شراب څښل د مینا نڅا یې ولیده او خوند یې ترې واخیست.

له هغه مې پوښتنه وکړه ولې ستاسې پاچا د ختوشه ښار د بهرنیانو لپاره تړلی دی او نه پرېږدي چې څوک دغه ښار ته راشي او ولې په دغه ښار کې کاروانیان دا حق نه لري چې له لویو لارو بهر شي؟

ايا غوره نه ده چې نور ملتونه هم دغه ښار ته راشي او د هاتي د پاچا قدرت او لوړاوی وګوري. بيا ولاړ شي او نورو ته کيسې وکړي ؟

کاتب وويل: پر هغې ورځې چې زموږ پاچا (شوبيلو ليوما) پاچاشو ويې ويل (د هرش کاله ماته وخت راکړئ او زه به هاتي د نړۍ په کلک او قوي هېواد بدل کړم) او س چې دغه وخت مخ پر خلاصېدو دی او فکر کوم چې ډېر ژر به نور ملتونه زموږ نوم واوري.

ومې ويل کله چې زه په بابل کې وم، شپېته ،شپېته ،شپېته ځله مې ، شپېته عسکر و شمېرل چې د بابل د پاچا له مخې تېرېږي او کله چې به يې ګام پورته کاوه داسې فکر به مې کاوه چې ګني د سمندر د څپو غږ اورېدل کېږي.

خو دلته مې لس ځله ،لس عسکر هم يو ځای ونه ليدل چې روان دي وي. نو د څه لپاره دومره جنګي ګاډي، او نورې وسيلې جوړوئ چې له دغو وسلو استفاده نه شئ کولای.

کاتب وخندل او ويې ويل موږ ددې لپاره وسلې جوړوچې پر نورو يې خرڅې کړو او ډوډۍ پرې واخلو.

ومې خندل ځواب مې ورکړ. يو ليوه هېڅکله خپل غاښونه او پنجې پر يوه سوی نه خر څوي.

د پاچا کاتب دې خبرې ته ډېر وخندل او ويې ويل زه به دغه خبره پاچا ته وکړم او باوري يم چې هغه به ترې خوند واخلي.

بله دا چې زموږ په هېواد کې د نورو هېوادونو پر خلاف شتمن پر بېوزلو حکومت نه کوي بلکې غښتلي پر کمزورو حکومت کوي. زه يقين لرم تر دې مخکې چې ستا وينښتان سپين شي. په دې بـه پـوه شې چې څه ډول يـو غښـتلی حکومـت چې د مشرتابه او قوماندانی لپاره راغلی دی څنګه پر کمزورو ملتونو حکومت کوي.

ما ځان ورته ساده او کم عقله وښود او ومې ويل همغه ډول چې تاسې خدای لرئ چې پر کمزورو ملتونو د حکومت کولو غوښتونکی دی په مصر کې هم فرعون نوی خدای پيدا کړی دی.

کاتب وويل زه د بهرنيو پاچاهانو ليکونه لولم او د مصر د پاچا ليک مې هم لوستلی دی .پوهېږم چې د هغه نوی خدای ډېر سوله غوښتونکی دی او وايي. د ملتونو تر منځ داسې اختلاف نشته چې په خبرو او سولې دې حل نه شي.

ان ستاسې فرعون زموږ لپاره د سرو زرو يوه څانګه را لېږلې چې د(باضافه ) يانې

صليب په ښه ده او وايي چې دا د ژوند او سولې ښه او څېره ده.

کله چې کاتب دغه خبرې کولې خپلې ګوتې يې سره متقاطع کړې چې ما پوه کړي دغه ځانګه څه ډول ده او کومه ښه لري.

(هغه مطالب چې په دغه کتاب کې يې د ملتونو د ژوند، دودونو او د هغو د پاچاهانو د نومونو په هکله او منجمله د دغه صليب په هکله لولئ له تاريخي اسنادو اقتباس شوي دي. سند او لاسوند لري او د دغه فنلنډي کتاب ارزښت هم په دې کې دی چې مستند مطالب لري او صليب هغه نښه وه چې کابو څلور زره کاله مخکې يعنې د عيسی له ميلاده دوه زره کاله مخکې د سولې سمبول ګڼل کېده. ژباړن)

بيايې داسې وويل که ستاسې فرعون زموږ له پاره سره زر راواستوي، چې موږ د هغه رالېږلې طلا خپلو صنعتګرو ته چې وسلې جوړوي په مزد او اجوره کې ورکړو نو تر څو کلونو پورې کولای شي له سولې برخمن شي.

خو د هغه د سولې دوره به ډېره لنډه وي، ځکه کله چې زموږ پاچا پوه شو چې په کافي اندازه وسله او خواړه يې برابر کړي نو پر دغې ورځ به د مصر فرعون هم د نورو پاچاهانو په شان زموږ د پاچا تر امر لاندې وي، ګني هغه او ټول رعيت به يې قتل عام شي.

خو دا هغه مسلې دي چې د يوه ډاکټر سر پرې نه خلاصېږي ځکه چې ډاکټر د پېښو د درک کولو وس نه لري.

ما وويل له دې کبله چې ډاکټر هم د نورو په شان عقل لري او که په ټولو راتلونکو پېښو پوه نه شي حتماً يې په ځينو سره خلاصېږي.

زه اټکل کوم چې په راتلونکو وختونو کې به د مرغانو، تپوسانو او شغالانو د خېټې د مړېدا وخت وي ځکه چې ډېر کسان به ووژل شي. څوک به و نه شي کولای چې مړي د موميايي کولو، يا په چاټيو کې د اېښودلو او يا په ځمکه کې د ښخولو لپاره را ټول کړي.

کاتب وخندل او ما وويل تر دې مخکې چې د هاتي هېواد ته راشم اورېدلي مې وو، چې تاسې هغه اسيران چې په جنګونو کې يې ونيسئ ړندوئ او هغه پخپلو ژرندو کې تړئ چې د ژرندو ډبرې وګرځوي.

ما پر دغې خبرې باور نه کاوه، خو په دغه هېواد کې مې هغوی پخپلو سترګو وليدل او دغه چاره له يوه متمدن ملت سره نه ښايي.

دغه راز ما اورېدلي چې تاسې پخپلو سرحدونو کې د نورو ملتونو په خاورې د تېري پر

وخت زړه بوږنونکې بې رحمۍ کوي، د خلکو لاسونه پرې کوي، د سر پوستکی یې پر مخونو اړوي او ځینې کسان په سیخونو پورې ښښلوي، دغه اعمال د وحشیانو دي نه د یوه متمدن ملت.

کاتب وویل موږ له دې امله د اسیرانو سترګې باسو او بیا هغوی په ژړندوکې تړو چې یو متمدن ملت یو. ځکه که د دوی سترګې ړندې نه وي ځمکه، اسمان او مرغان به وګوري او له دې کبله چې ازاد نه دي نو خواشیني به شي. د تېښتې لټه به وکړي او زموږ لپاره به تل ستونزې پیښوي.

خو اوس چې ړانده دي د تېښتې فکر نه کوي او موږ مجبور نه یو چې تل یو شمېر عسکر د هغوی د ساتلو لپاره وګمارو.

خو د نورو هېوادونو په سرحدونو کې د پولې د اوسېدونکو د لاسونو د پرې کولو او د سرونو د پوستکو د جلا کولو او د هغوی پر مخ د همغه پوستکي د راکاږلو او یا په سیخونو کې د هغوی د خوړندولو کار هم یوه ښېګنه لري.

ددې کار لامل هم زموږ تمدن دی، ځکه چې موږ نه غواړو په نورو هغو هېوادونو کې وژنه وکړو چې اوسېدونکي یې موږ ته کار کوي او قلنګ ورکوي.

دغه راز نه غواړو چې د جنګونو له امله د هغوی ښارونه او یا پټي او باغونه وران شي، ځکه که دغه ښارونه موږ ونیسو زموږ په برخه به هېڅ هم نه وي.

موږ پوه شوي یو چې د ګاونډیو هېوادونو د کنټرولولو او تر سلطې لاندې د راوستلو لپاره تر ټولو غوره وسیله د رعب او وېرې رامنځته کول دي. ځکه هغه ملت چې له وېرې او رعب سره مخامخ شي، هغه پوځ ته ورته وي چې له جنګه وړاندې یې ماتې خوړلې وي.

دغسې ملت نور د پردیو لاس نه شي لنډولای او د هغه له قدرته نه شي ژغورل کېدای.

له همدې امله موږ پخپلو سرحدونو کې د نورو هېوادونو په خاوره کې دغه ډول اعمال ترسره کوو چې خلک ووېرو او مخکې له مخکې خپل د ښمنان ناکام کړو.

ما ورته وویل ایا د نړۍ ټول ملتونه ستاسې دښمنان دي او په نورو ملتونو کې دوستان نه لرئ؟

د هاتي د پاچا کاتب وویل زموږ دوستان هغه ملتونه دي، چې زموږ تر سلطې لاندې وي او موږ ته قلنګ راکړي.

دغه ملتونه پخپل حال پرېږدو او د خپلو عادتونه او دودونو د ساتلو او د خپلو

خدایانو په عبادت ورته څه نه وایو.

زموږ نور دوستان هغه ملتونه دي چې لا زموږ ګاونډیان نه دي، ځکه کله چې زموږ ګاونډیان شول، دومره پلمې ورته لټوو، چې ورسره جنګ وکړو او د هغوی خاوره ونیسو او بیا یې اړ کړو چې موږ ته قلنګ راکړي.

له هغې ورځې چې هاتي رامنځته شوی موږ همدغه دود لرو او له دې وروسته به هم وي.

ما وویل ایاستاسې خدایان په دغو مسلو کې لاسوهنه نه کوي ځکه چې په نورو هېوادونو کې خدایان د حق و باطل او سم وناسم توپیر کوي.

کاتب وویل موږ د سم و ناسم او حق وباطل په هکله ساده کړنه او عقیده لرو.

سم او حق هغه شی دی چې زموږ له خوښې سره سم وي او ناسم او باطل هغه شی دی، چې زموږ له خوښې سره سم نه وي.

سینوهه! دا خبره ومنه چې زموږ، ستاسې او نورو ملتونو په دین کې کوم توپیر نشته. ځکه چې ستاسې او نورو ملتونو له نظره هم سم او حق هغه دی چې شتمن یې غواړي او ناسم او باطل هغه شی دی چې بېوزلي ورته ګروهمن وي.

سینوهه! ته یو ډاکټر یې او عقل دې تر دې ډېر کم دی چې په دې موضوع دې سر خلاص شي او پوه شې چې د دنیا له پیله تر ننه پورې هر څه چې شتمنو ویلي هغه حق او سمه خبره ده. او هر څه چې بېوزلي یې وایي ناحقه خبره ګڼل کېږي.

د دنیا تر پایه پورې به همداسې وي او یوازې د شتمنو ظاهري بڼه بدلېږي او په هر پړاو کې یو شی د بدلېدو وړ نه دی، هغه دا چې شتمن تل هماغسې پاتې کېږي او بېوزلي به بېوزلي وي، یا د بدلېدو ایتوب نشته ده.

کله پسه او غواګانې د شتمنۍ نښې وي او کله هم سره او سپین.

ځینې وخت د یوه مقام او څوکۍ لرل او کله یو کسب لکه ډاکټري، کوډګري او د پاچا کتابت د شتمنۍ نښه وي.

تر هغه چې دغه نړۍ وي د بېوزلو خبره به اهمیت نه لري او هرڅه چې وایي باطل به وي.

که شتمن د هغوی سترګې ړندې نه کړي او په ژرندو پورې یې ونه تړي نو په بله لار به یې کار ته مجبور کړي. ځکه چې دنیا همداسې رامنځته شوې ده او باید همداسې وي.

بېوزلي ځکه رامنځته شوې چې بېوزله د شتمن د اسودګي وسیلې برابرې کړي او پخپله تل په بېوزلۍ او لوږه کې ژوند وکړي.

د نورو پر تمدن زموږ د تمدن ګټه په دې کې ده چې موږ ټول شتمن يو او نور ملتونه د ځان تابع او بېوزله کوو. چې تل زموږ لپاره زيار وګالي او خپله ګټه تل د قلنګ په توګه موږ ته را کړي چې موږ په سوکالۍ کې ژوند وکړو.

خو زموږ د خاصې پرګنې خدايان دوه دي يو اسمان او بل ځمکه. هر کال په پسرلي کې د دغو دوو خدايانو په ویاړ جشن جوړو او د ملت لاره خلاصوو چې خلک هم جشن جوړ کړي.

ځکه په کال کې بايد يو ځل د ملت مخه خلاصه شي چې جشن جوړ کړي او يوه ورځ په خوشالۍ تېره کړي.

د خلکو د ازادۍ لپاره تر ټولو ښه فصل پسرلی دی ځکه چې په دغه موسم کې ځمکه له اسمانه بلاربېږي. ژوند بیا پیلېږي او انسان هم د ځمکې په شان دی.

موږ د ښځو د بلاربېدا لپاره ډېر خوشحالېږو او اهميت ورکو. ځکه هغه ملت چې پر ټولې نړۍ حکومت کول غواړي بايد ډېر ماشومان وزېږوي چې قدرت يې په ځمکه کې پراخ شي.

زموږ عام خلک بيا د نورو هېوادونو دعامو پرګنو په شان ډېر خدايان لري خو موږ د هغوی عقيدو ته اهميت نه ورکوو. نه يې د عقيدو مخه نيسو او نه يې هڅوو. ځکه چې د هغوی عقيدې له سياسي پلوه موږ ته ګټه او تاوان نه لري.

موږ د هغو خدايانو پلويان يو او خلک يې عبادت ته هڅوو چې د زور او وحشت پلويان وي. ځکه چې په زور بايد پر نورو حکومت وکړو او د وحشت او ترهې په مرسته بايد نور ملتونه وډروو چې تابع شي.

که یوه ورځ موږ د زور او وحشت د خدايانو لپاره معبدونه جوړ کړو نو دغه معبدونه به د انسانانو د کوپړيو پر هډوکو ودان کړو.

که ته دغه خبره له دغه هېواده بهر نورو ته وکړې هېڅوک به يې و نه مني ځکه چې ټول ليرې پراته ملتونه فکر کوي چې موږ شپانه او پادوانان يو. چې تل په غرونو کې په بېوزلۍ کې ژوند کوو. نه د بادارۍ او نه د حکومتولۍ وړتيا لرو.

د پاچا کاتب له دغو خبرو وروسته زما له کوره ووت او د هغه له تللو وروسته مې مينا ته ووېل په دغه هېواد کې له پاتې کېدا موږ شوم ځکه په هغو شيانو چې بايد پوهيدلی وای پوه شوم.

که له دې وروسته په دغه ښار او دغه هېواد کې پاتې شم ښایي مړ شم او که یې زه په عادي ډول وژلای دومره نه وېرېدم خو په دغه هېواد کې چې کله بهرنیان وژني پوستکی یې باسي او یا هغوی په سیخونو کې ورکوي.

نو غوره ده چې ډېر ژر له دې ښاره وتښتو او ځان وژغورو.

پر بله ورځ ما له خپلو ناروغانو څخه بل څه وا وریدل او هغوی ویل که څوک په هاتي هېواد کې د حکومت له رسمي عقیدې پرته بله عقیده خپره کړي هغه د کوډګر په نوم نیسي او په سیخانو کې یې ورکوي.

له بده مرغه ما څو ځله داسې خبرې کړې وې چې د هاتي د حکومت له رسمي عقیدو سره یې اړخ نه لګاوه نو هر شېبه ددې امکان و. چې ما ونیسي او په سیخانو کې مې ورکړي.

نو خپلو ناروغانو ته مې وویل چې د ستنېدا نیت لرم او له دې کبله چې هغوی د حکومت په اداره کې نفوذ درلود ماته یې د وتلو اجازه واخیسته او وټاکل شوه چې له ځانګړې لارې تېر شم او ځان ساحل ته ورسوم.

# يوويشتم څپرکی

## د (کرت) د ټاټوبي په لور

له مينا او کاپتا سره يوځای روان شوم او د هاتي پلازمېنه ختوشه مو پرېښوده.

ختوشه داسې يو ښار و چې له دېوالونو يې وينې څڅېدې او د نړۍ د راتلونکي په هکله فيصلې پکې کېدلې.

موږ د هغو ژرندو تر څنګ تېر شوو چې ړندو اسيرانو ګرځولې او هغه کسان مو هم وليدل چې په سيخونو کې يې ورکړي ول. معلومه شوه، چې هغوی کوډګران ول.

بيا د ساحل پر لور روان شو او د هاتي هغه يوازېني بندر ته ورسېدو چې بهرنيانو پکې په ازداه توګه تګ راتګ کاوه خو د هېواد داخل ته يې د ننوتو اجازه نه لرله.

دغه بندر هم د نړۍ د نورو بندرونو په شان ډېرې شراب خانې او عمومي کورونه درلودل او له دغو شراب خانو او کورونو تل د سرياني موسيقۍ غږونه اورېدل کېدل.

کله چې به د بېړيو ماڼوګان او عمله دغه بندر ته ننوتل ځان به يې نيمګرغه احساساوه. ځکه چې هلته ښځې، شراب او خواړه پريمانه ول او دغه ټولی له دې دريو شيانو پرته بل څه نه غواړي.

په هر ځای کې چې دغه درې شيان وړپيدا شي نو ځان نېکمرغه بولي.

موږ څه موده په دې بندر کې ايسار شوو او هر ځل چې به کومې بېړۍ د کرت پر لور حرکت کاوه ما به مينا ته ويل، په دې بېړۍ کې لاړه شه. خو هغې به ځواب راکاه چې دغه بېړۍ کوچنۍ ده او په سمندر کې به ډوبه شي.

يا به يې ويل چې دغه بېړۍ لويه ده د سورېې د بېړيو له ډلې څخه ده او زه چمتو نه يم چې په هغې کې ولاړه شم.

بله پلمه به يې دا کوله چې د دې بېړۍ ماڼو سم سړی نه دی او ډارېږم چې په لاره کې به ما پر سمندري غلو خرڅه کړي.

ما په نوموړي بندر کې طبابت کاوه او هلته هم ناروغان راتلل. ځکه چې د مصري ډاکټرانو شهرت دغه بندر ته هم رسېدلی و.

یو کس چې ماته د معالجې لپاره راغی د بندر د عسکرو قوماندان و، دغه سړی له هغو ښځو سره په نژدې کت کې پر دغې ناروغی اخته شوی و ځکه دی به هغو ښځو ته ورتو چې په دغه بندر کې په عمومي ځایونو کې اوسېدلې.

ما په سوریه (ازمیر) کې د اوسېدو پر وخت دغه ناروغي وپېژندله او له سریاني ډاکټرانو مې د هغې درملنه هم زده کړه.

د بندر د ساتونکو قوماندان ددې ناروغی له امله له ښځو سره ساعت تېری نه شو کولای.

ده وېل دغه ناروغي له یوې ښځې ورغلې او ده هم هغه په سیخانو کې ننه ایستلې او وژلې ده.

هغه سړی له خپلې ناروغی ډېر کړېده. ځکه چې په دغه بندر کې دود داسې و. هرې ښځې چې به د ښار په عمومي تفریح ځایونو او شراب خانو کې کار کاوه مجبوره وه چې له اجورې پرته د ساتونکو له قوماندان سره ځملي خو دغه سړي د ناروغی له کبله له دغو ساعت تېریو څخه خوند نه شو اخیستلای.

کله چې یې ما درملنه وکړه او هغه له ښځو سره له تفریح کولو خوند اخیست. داسې خوشحاله شو چې ماته یې ویل د خپل ناروغ غړي په وزن چې اوس روغ شوی تا ته سره او سپین درکوم.

ما ورته وویل زه ستا زر نه غواړم او که غواړې کوم شی ماته راکړې نو خپله هغه چاړه راکړه چې تر ملا دې تړلې ده.

د ساتونکو قوماندان وخندل او ویې ویل په دې چړې به ته څه وکړې ځکه چې نه سره زر دي او نه سپین زر.

خو زه پوهېدم چې دغه چاړه له همغه فلز څخه جوړه ده چې او سپنه بلل کېږي او بیه یې د هاتي له هېواده بهر دومره ډېره ده چې د اوسپنې چاړه په همدې وزن، د سرو زرو د یوې چړې لس برابره بیه لري.

کله چې زه په ختوشه کې وم، غوښتل مې یوه دغسې چاړه واخلم خو دغه چاړه پر بهرنیانو نه پلورل کېده او که مې ټینګار کړی وای ښایي راباندې شک شوی وای او

دا به څرګنده شوې وای چې زه نیت لرم دغه چاره له هاتي څخه د باندې یوسم. خو دغې چرې د هاتي د او سېدو نکو لپاره ارزښت نه درلود.

کله چې د ساتونکو قوماندان پوه شو چې زه په رښتیا دغه چاره غواړم، او په دې هم پوهېده چې زه به ډېر ژر له هاتي ولاړ شم نو خپله چاره یې ماته راکړه.

دغه چاړه دومره تېره ده چې د سماق له ډېرو د تېرې چړې په پر تله ږیره ښه خرییي او په او سپنیزې چاړې مس، سره او سپین زر پرې کولای شو.

په دې بندر کې یو ځړ ځای و. چې د هاتي خلکو به هلته خپلې غواوې او غویي پېول او ځوانانو به له هغو غوییو سره لوبې کولې. د هغوی په مخکې به نځېدل او پر ملاوو به یې غشي تومبل.

کله چې مینا دغه غوایي لیدل خوشحاله شوه. ځکه چې پوهېده د غوییو په مخکې نځېدلی او د خپلې نڅا تمرین کولای شي.

کله چې ما د لومړي ځل لپاره د سخوندور په مخکې د مینا نڅا ولیده داسې حیران او هک پک پاتې شوم چې بیانولای یې نه شم.

هغه غوایي چې هلته ساتل کېدل د مصر د سوېل په ځنګلونو کې تر وحشي پیلانو خطرناک دي ځکه تر هغه چې پیل و نه ځورول شي پر انسان حمله نه کوي خو یو غویی ډېر خطرناک وي او کله چې انسان وګوري پرې حمله کوي.

ښکر یې د چړو په شان تېره وي او په یوه ګوزار سره خپل ښکر د انسان په خېټه یا سینه کې ننه ایستلای شي. هغه او چتولای او پر ځمکه یې ویشتلای شي.

مینا له نریو جامو سره د غوایي په مخکې نڅا پیل کړه او په حیرانوونکي ډول یې ځان له ښکرو ژغوره.

هغې داسې چټک حرکتونه کول چې د سړي سترګو یې د نڅا حرکتونه نه شو تعقیبولای.

کله خو به دومره زړه وره شوه چې په یوه ټوپ سره به د غوایي پر سر ودرېده او دواړه ښکران به یې کلک ونیول.

بیا به په یوه حرکت سره د غوایي پر ملا کېناستله او بېرته به راکوزه شوه.

کله چې د مینا نڅا خلاصه شوه ځوانانو د هغې په غاړه کې ګلان واچول او هلته موجودو ماڼوګانو ویل چې په کرت کې یې د غوایي په وړاندې نڅا لیدلې خو کله یې

هم نه دي لیدلي چې څوک دې په داسې حرکت او زړه ورتیا وګډېږي

کله چې له ځړځایه ستانه شوو. زه خپه وم، ځکه چې پوهېدم همدا غویی چې هغه یې په مخکې ونځېدله. یوه ځوانه ښځه به له ځانه قربان کړې ځکه چې مینا فیصله کړې وه. د خپل خدای په مخکې به ځان قرباني کړي.

د هغې خدای هم یو غویی یا غوایي ته ورته شی دی.

بیا د کرت د ټاپو یوه بېړۍ بندر ته را ورسیده او د غه بېړۍ نه لویه او نه ډېره کوچنۍ وه. ماڼو یې هم نیک سیرته سړی معلومېده.

مینا وویل چې له دغې بېړۍ سره به د کرت ټاپو ته ولاړه شم چې ځان خپل خدای ته وسپارم او غوره ده چې ته هم زما له تګه وروسته د خپل ژوند په فکر کې شې.

زه پوهېږم چې له بابله دې زما د ژغورولو په وخت تاوان وکړ او بیا دې هم له دې کبله چې نه دې غوښتل په هاتي کې مایوازې پرېږدې راستون شوې.

ما وویل زه تا یوازې نه شم پرېښودلای چې د کرت ټاپو ته ولاړه شې. مینا وویل ولې نه غواړې چې ما یوازې پرېږدې. چې کرت ته لاړه شم؟ که د بېړۍ له ماڼو وېره لرې. نو هغه خو نیک سیرته سړی دی او ما به په لاره کې پر سمندري غلو خرڅه نه کړي. روغه رمټه به مې کرت ته ورسوي.

ومې ویل مینا! زه پوهېږم چې د بېړۍ ماڼو سم سړی دی خو ته پوهېږې چې زه ولې غواړم له تا سره د کرت ټاپو ته ولاړ شم. ځکه چې زه پر تا مین شوی یم.

مینا خپل لاس زما په لاس کېښود او ویې ویل سینوهه! زه له تا سره له ژوند کولو خوند اخلم. ځکه چې تا څو هېوادونو ته بوتلم او د دغو وطنونو خلک دې ما ته راوښودل.

زه د دغو هېوادونو په لیدلو دومره بوخته او مصروفه شوم چې خپل وطن کرت مې له یاده وتلی و. له همدې امله کله چې به تا ته ویل چې کرت لاړه شم. ما به خپل سفر په بېلابېلو پلمو ځنډاوه ځکه چې له تا څخه بېلېدای نه شوم.

خو کله چې د غویی په مخکې ونځېدم نو را په یاد شول چې زما خدای زما په تمه دی چې ورشم او خپل پیغلتوب هغه ته ډالۍ کړم. که زما خدای زما د پیغلتوب د تر لاسه کولو په انتظار نه وای ما به تا ته ډالۍ کړی و.

ما وویل مینا موږ یو ځل په دې هکله خبرې کړې دي او ما وویل چې له دې موضوع

تېرشوی یم. زما علاقه د هغه څه لپاره نه ده چې ته یې فکر کوې. ځکه هغه څه چې ته یې لرې نورې ښځې یې هم لري او کله چې یو سړی ترې وغواړي چې خوږ یې شي دغه غوښتنه مني.

غوسه پر مینا برلاسه شوه او زما لاس یې ټینګ کړ. ویې ویل. که ته د شراب خانو او د عمومي ځایونو د ښځو غوښتونکی یې ورځه او له هغوی سره مستي وکړه خو په دې پوه شه چې زه به داسې غوسه شم چې ممکنه ده تا تپي کړم او له بدنه دې وینه وبهوم.

زه غواړم ته هم زما په شان وې او همغه ډول چې ما لا تر اوسه له کوم سړي سره تفریح نه ده کړې ته هم باید له هیڅ یوې ښځې سره تفریح ونه کړې.

ما ورته وویل. ستا خدای ته له نارینه وو سره له تفریح منع کړې یې خو زما هیڅ یوه خدای هم لا زما لپاره بندیز نه دی لګولی.

مینا وویل خو که ته له کومې ښځې سره تفریح وکړې او بیا زما پر سر لاس کېږدې زه به دې ژوبل کړم.

ومې ویل مینا له دې امله داړه اوسه ځکه چې له ښځو سره تفریح کول داسې کار نه دی چې یو سړی دې تل ورته هیله ولري.

ما یوځل له یوې ښځې سره د تفریح لپاره خپل هرڅه له لاسه ورکړل او ډېر زله شوم او دې چارې له ښځو سره له تفریح داسې زړه توری کړم چې اوس له زړه نه غواړم کوم ښځه خپله خوږ کړم.

مینا وویل له دې کبله چې زه یوه ښځه یم دا خبره راباندې بده لګېږي چې یو سړی ووایي له ښځو سره له تفریح کولو خوند نه اخلي.

کله چې شپه شوه زه ویده شوم او ومې لیدل چې مینا د نورو شپو په خلاف په دې شپه زما کوټې ته رانه غله.

هغې ته مې ناري کړې او ومې ویل مینا! تا هره شپه د خپل بدن په تودوخې ګرمولم ولې نن شپه نه راځې چې ما ګرم کړې. ایا له ما څخه د ننیو خبرو له امله خپه شوې یې؟

مینا وویل نه سینوهه! زه له تا خپه شوې نه یم. خو نن شپه مې بدن دومره ګرم دی چې که تاته درشم او خپل بدن درسره ولګوم له ډېرې تودخې به ښایي تاو سوځوم.

زه ولاړ شوم او هغې ته ور غلم او بدن مې یې لمس کړ، پوه شوم چې تبه یې ده.

هغې ته مې وویل مینا فکر کوم چې ته ناروغه شوې یې اجازه راکړه چې معالجه دې کړم.

مینا هېڅکله نه غوښتل چې معالجه شي او ویل یې چې زما خدای به ما معالجه کړي.

خو ما ورته وویل. ایا ستا خدای له دې پرته چې او به او خواړه وخوري. ستا تنده او لوږه ختمولای شي؟ ناروغي هم همداسې ده او باید د ډاکټر درمل وي چې ناروغي معالجه شي.

مینا موافقه وکړه او ما درمل پرې وخوړل ما یو ډول مسکن درمل مې هم ورکړل. ورته مې وویل اوس ویده شه. ځکه ددې درملو له خوړلو وروسته باید سړی ویده شي چې ناروغي یې له منځه ولاړه شي.

مینا ویده شوه خو زه تر سهاره د هغې پر بسترې ناست او ویښ وم او کله چې سهار پیلېده د خوب لپاره خپلې کوټې ته ولاړم.

خود مینا ناروغي ډېره اوږده نه شوه. هغه ښه شوه او داسې ورځ را ورسېده چې موږ باید د کرت پر لور خوځېدلي وای.

خپل مریي کاپتا ته مې وویل چې د سفر وسایل برابر کړه چې په بېړۍ کې سپاره شو او د کرت ټاپو ته چې د مینا وطن دی ولاړ شو.

کاپتا وویل ما اټکل کاوه چې ددې نجلۍ له امله به ته ما اړ کړې چې په بېړۍ کې سپور شم. خو مخکې تا راته ویلي وو چې موږ به نور هېڅکله په کشتیو کې سپاره نه شو.

بویه زه له دغې بدبختۍ څخه خپلې جامې وشکوم. خو دا کار ځکه نه کوم چې وروسته به یې بیا ګنډلو ته اړ شم.

بو یه ما ژړلي وای خو ځکه نه ژاړم چې ډار ېږم خپله دغه یوه سترګه به هم له لاسه ورکړم.

خو د تسلۍ لپاره یوازې یو شی لرم او هغه دا چې زما د اټکل پر بنسټ به مې دا وروستی سمندري سفر وي او له دې وروسته به په بېړۍ کې سپور نه شم.

په هر حال له دې امله چې یقین مې درلود له دغې ښځې سره به د کرت ټاپو ته ځې ما د سفر وسایل تیا ر کړي دي.

زه د کاپتا له لوري د سخت اعتراض او شور ماشور په تمه وم. خو دا چې ژر تسلیم

شو حيران شوم. وروسته متوجه شوم چې هغه له سفره دوه درې ورځې مخکې په بندر کې له يو شمېر مانوګانو او د بېړيو له عملې سره خبرې کړي او د سمندر د ناروغۍ د مخنيو لپاره چې د څپو له امله پيدا کېږي هغه له مانوګانو ځينې سپارښتنې اورېدلې دي.

مثلاً ورته ويلي يې دي. چې په بېړۍ کې تر سپرېدو يوه ورځ مخکې دې هيڅ شی نه خوري او خپل کمربند دې کلک وتړي چې نس يې ټول وي او بيا دې بېړۍ ته ننوځي.

له ننوتو وروسته دې سمدستي څملي چې په دې ډول له سمندري ناروغۍ سره نه مخامخېږي.

کاپتا تر سفر يوه ورځ مخکې ډوډۍ ونه خوړه او کله چې په بېړۍ کې سپور شو خپل کمربند يې کلک وتاړه.

د بندر د ساتونکو قوماندان زموږ د بدرګې لپاره تر بېړۍ پورې راغی او د بېړۍ پر مانو يې وسپارلم.

بيا د بېړۍ عملې ستر پاروګان په لاسونو کې واخيستل او بېړۍ له بندره حرکت وکړ.

کله چې له بندره ووتو د بېړۍ مانو د سمندر د خدای او د کرت ټاپو د خدای لپاره قرباني وکړه او بيا يې امر وکړ چې بادبان پورته کړي.

کله چې بادبان اوچت شو او بېړۍ په سمندر کې کړه شوه د سمندر څپو هغې ته ټکان ورکړ او ما د معدې د ستونزې او بدلون احساس وکړ.

پر بله ورځ چې له خوبه پاڅيدم ګورم چې د سمندر په منځ کې يم او شا وخوا وچه نه ښکاري.

شين اسمان. تود لمر او د سمندر باد ډېر قوي و او زموږ بېړۍ ګړندۍ مزل کاوه.

د کرت له بېړيو يوه جنګي بېړۍ په دې ګمان چې موږ غله يو موږ ته نژدې شوه. خو کله چې پوه شول د کرت له بېړيو څخه يو پخپل بيرغ موږ ته سلام وکړ او لېرې شوه.

کاپتا چې نور د سمندر له ناروغۍ نه وېرېده د بېړۍ غولې ته راغی او له عملې سره يې خبرې پيل کړې. ويل يې په نړۍ کې يې ډېر عجيبه شيان ليدلي او په يوه سفر کې چې له مصره سوريې ته روان و له سمندري توپان سره مخامخ شو. لږ پاتې وو چې ډوب شي.

بیا یې د نیل په اوبو کې د مصر د اوبړیو په هکله خبرې وکړې او غوښتل یې د دغو عجیبه شیانو له امله چې ده لیدلي و هغوی حیران کړي.

له دې وروسته د ښېرې عملې او ماښوګانو خبرې وکړې او د سمندري ژویو او ډول ډول کبانو په هکله یې خبرې وکړې چې نیم بدن یې د انسانانو په شان دی او خوندور غږ لري

د دوی خبرو کاپتا داسې حیران کړ چې له ډاره یې فیصله وکړه چې نور به پخپلو خبرو سره د ښېرې د عملې د حیرانولو فکر نه کوي.

څو مره چې کرت ته نژدې کېدو مینا ډېره خوشحالیدله. د سمندر نسیم یې ویښتان پریشانه کول او نوره هم ښکلې کېده.

خو زه له دې امله خواشیني وم، چې هغه له لاسه ورکوم او له ځان سره مې وویل چې که له مینا پرته له کرته ستون شوم او مصر ته ولاړ شم مصر ته په تګ به خوشاله نه شم او خوند به را نه کړي. ځکه چې له مینا پرته ژوند راته تریخ ښکارېده.

زه ډېر خپه وم چې له دې وروسته د مینا لاس نه شم نیولای او د هغې د بدن تودوخه نه احساسوم.

د ښېرې ماښو او عملې چې د کرت او سېدونکي ول. د مینا ډېر درناوی کاوه. ځکه چې پوهېدل دا هغه پېغله ده. چې خپل پېغلتوب به د کرت خدای ته ورکړي او په دې هم پوهېدم چې هغه د غوایي په مخکې ښه ګډېږي.

کله چې ما غوښتل د کرت د خدای په هکله له ماښو او عملې توضیحات وغواړم، هغوی به ځواب نه راکاوه او یا به یې ځان غړاوه او ویل به یې ته بهرنی یې او موږ ستا په خبره نه پوهېږو.

# دوه ويشتم څپر کی

## موږ په کرت کې څه وليدل؟

يوه ورځ مې د کرت ټاپو له او بو څخه سر رابهر کړ. د بېړۍ عملې د خوشحالۍ نارې وهلې: ځکه خپل وطن ته رسېدلي ول.

د بېړۍ مانو په دې خوشحالۍ کې، چې روغ رمټ له سفره ستانه شوي د سمندر د خدای لپاره چې همغه د کرت خدای دی او په سمندر واک چلوي قرباني وکړه.

څومره چې د بېړۍ عمله مانو او مينا د کرت له ټاپو او د زيتون له ونو او د هغه له غرونو خوشحاليدل هومره زه خپه کېدم.

د دې لپاره چې پوهېدم بايد مينا هلته پر پرېږدم او له هغې پرته بېرته ستون شم.

مينا چې خپل ټاټوبی ليده له ډېرې خوشحالۍ يې ژړل. خو کاپتا په حيرانۍ سره او په وازه خوله د کرت پر وړاندې سمندر ته کتل او په ساحل کې ولاړې بېړۍ يې شميرلې.

له دې وروسته چې دوه ځله يې شپېته بېړۍ وشمېرلې متوجه شو چې همدومره نورې بېړۍ هم هلته شته چې نه يې دي شمېرلي. بيا يې وويل فکر کوم دلته دومره بېړۍ دي چې په ټوله نړۍ کې به نه وي.

کرت د خپل خدای په قدرت دومره اعتماد درلود چې د دغه هېواد په بندر کې نه کوم برج وا و نه نور استحکامات. خو بندري کورونه له سمندره پيلېږي.

کله چې زه کرت ته داخل شوم داسې شيان مې وليدل چې په نړۍ کې مې په خپلو نورو سفرونو کې نه و ليدلي. (قدرمن لوستونکي دې متوجه وي چې د کرت ټاپو په اړه د سينوهه د ژوند او برخليک دغه برخه له تاريخي پلوه ډېره په زړه پورې ده. ځکه چې کرت دد غه مصري ډاکټر په وخت کې د نړۍ د يو ستر تمدن مرکز و. خو د يونان، مصر او روم په شان د کرت د ټاپو تاريخ ډېر مشهور نه دی. نبايي ډېر خلک تراوسه نه وي خبر چې کرت ټاپو د نړۍ په تمدن کې څومره رول لوبولی دی؟ ژباړن)

معلومه ده چې زما په شان یو ډاکټر چې کله یوه ښارته ننوځي په لومړي نظر کې د خلکو څېرو ته ګوري چې وګوري خلک روغ او سالم دي کنه؟ د غلته ما زیاتره خلک روغ او ښکلي ولیدل.

لږه موده وروسته متوجه شوم چې د کرت د خلکو په ژبه کې د اسې کلیمه نشته چې له امله یې خلک د مرګ په معنې پوه شي او خلک د اسې عیاشي او ساعت تېري کوي چې هېڅکله د مرګ فکر ور سره نه وي.

که څوک مړ شي د جنازې د لېږد لپاره له ډول ډول چلونو استفاده کوي چې څوک پوه نه شي کوم سړی یا ښځه مړه شوې ده.

ما واورېدل چې مړي سوځوي او له منځه یې وړي او دا هم راته ښکاره شوه چې دوی مړي نه ښخوي. ځکه چې ما په کرت کې قبر ونه لید. په کرت کې یوازې د دوی د پاچاهانو څو قبرونه ول چې پر سر یې لویې تیږې ایښې دي.

خو کله چې خلک د دغو قبرونو له مخې تېرېږي مخ ترې اړوي چې و یې نه ویني او تصور کوي چې په دې ډول له مرګه انکار کولای شي.

د کرت تر هنرمندانو او صنعتګرو تکړه خلک په بل ځای کې نه موندل کېږي.

د هغوی منګي او ختین لوښي تر منګیو زیات جواهرو ته ورته دي او کله چې انسان د کرت ختین لوښي په لاس کې اخلي چې او به پکې وڅښي نو په کتلو یې نه مړېږي.

د لوښي پر مخ د سمندري کبانو او ګلانو پر سر د پتنګانو عکسونه لیدل کېږي او هره ډله حیوانات خپل ځانګړی رنګ لري. په دې ډول چې انسان فکر کوي کولال د سفالي رنګونو پر ځای جواهرات پکې کارولي دي.

هر کولال د خپل ګړي او صراحي انځور په یوه خاص ډول انځور وي. پر یوه ختین لوښي د سمندري حیواناتو. پر بل د وچې د حیواناتو او پر بل لوښي بیا د الوتونکو انځورونه لیدل کېږي.

یو شی چې ما په طبس او بابل کې ونه لید او د کرت او سېدونکي ترې برخمن دي او پر دې سربېره د متمدنې نړۍ یوه ګټه حسابېږي د کرت تاپو د تشنابونو ډول دی.

په بابل کې تشنابونه دومره چټل دي چې یو متمدن سړی نه غواړي ورشي.

په طبس کې له دې سره سره چې زموږ خدایانو ویلي چې تشنابونه پاک وساتئ. خو بیا هم دومره پاک نه دي چې اړتیا یې وي. مګر په کرت کې هر تشناب د هنر، سلیقې او ښکلا

بېلګه حسابېږي ځکه چې شپه او ورځ د تشناب له لګنه ترمې او به تېرېږي او دومره پاک دي چې هېڅ وخت تري بد بوی نه لتېږي

د کرت کورونه د بابل په شان لوړ او څو پوړیز نه دي خو د بابل د کورنو په پرتله د ژوند کولو لپاره مناسب او ارام دي.

د کرت خلک کوټې لویې او کړکۍ پراخې جوړوي او هر کور یو حمام او هر حمام د ځان وینځلو لپاره یو لوی لګن یا تشت لري چې په نلونو کې تودې او یخې اوبه ورته راځي.

په سر کې ما فکر کاوه، چې دغه ډول حمامونه او تشنابونه یوازې د شتمنو په کورنو کې شته. خو وروسته مې ولیدل چې د ښار د ډېرو بېوزلو کسانو په کورونو کې هم دغه ډول تشنابونه او حمامونه له ګرمو او یخو اوبو سره شته.

زه په دغه وخت کې پوه شوم چې د دغه ښار خلک ولې ښکلي دي ځکه چې پاک تشناب او په یخو او ګرمو اوبو حمام کول سړي ښکلی کوي.

د کرت ښځو په ورځ کې څو ځل یو خاص وخت له بدنه د اضافي وېښتانو په لیرې کولو او د مخ او وېښتانو په سینګار تېراوه.

دوی په سینګار کې دومره دقت کوي چې هېڅکله یوې مېلمستیا ته په څو وخت نه راځي او څوک له دې لامله نه حیرانېږي

په کرت کې د ښځو کالي د هغوی له لاسونو، پښو او سینو پرته نور بدن پټوي ځکه چې پخپلو ښکلو سینو او لاسونو ویاړي او هیله لري چې خلک یې ښکلا وګوري.

د کرت ښځې څو ځل وېښتان ډېر ښه جوړوي، په داسې حال کې چې په طبس کې ښځې خپل وېښتان خریي او زه فکر کوم چې د ښکلا له پلوه د کرت ښځې په ټوله نړۍ کې ساری نه لري.

د هغوی اندامونه نري او د اندام د ظرافت له امله لږ بچیان زېږوي. د کرت ښځې عموماً یو یا دوه بچیان لري او د بچیانو کمښت په کرت کې عیب نه دی.

د کرت سړي هم د ښځو په شان ظریف اندامونه لري خو پراخ ټټر لري او هر نارینه هڅه کوي چې خپله ملا نرۍ وښیي.

هغوی هم د ښځو په شان د خپل بدن و وېښتان په ډېرې ځیرتیا سره لیرې کوي ځکه دوی غواړي چې کله د غواګانو لوبه کوي نو بدن یې ښکلی معلوم شي.

د ډېر خلک پکې موزې پر پښو کوي او د موزو په ګیټسونو یې د ځناورو عکسونه کښل

شوي وي.

د کرت او سېدونکي نه غواړي نورو هېوادونو ته ولاړ شي، ځکه چې په نورو هېوادونو کې د کرت په شان د سوکالۍ او پاکۍ وسایل نه شته او وایي موږ نه شو کولای د نورو ملتونو په کورونو کې چې پاک تشناب نه او حمامونه نه لري ژوند وکړو.

یو عجیب شی چې ما په کرت کې ولید او په بل هېڅ هېواد کې یې ساری نه و. هغه د موسیقۍ یو ډول اله وه چې له ساز غږونکي پرته غږېدله او د موسېقۍ غږ ترې پورته کېده.

خو هغه غږ چې ترې راوات له مخکې یې په یو شي لیکلی و او ما تعجب کاوه.

زه په دې پوه نه شوم چې څنګه موسیقي او غږ لیکل کېدای شي؟ بله دا چې ما د کرت له او سېدونکو وا اورېدل چې دوی کولای شي د موسیقۍ نوټونه ولیکي او بیا هغه وغږوي. په دې ډول چې کله یو چا کومه سندره یا موزیک نه وي اورېدلی خو لیکلې بڼه یې پیدا کړي نو د هغه له مخې همغه موزیک غږولای شي.

له دې کبله چې زه یو ډاکټر یم او یوازې د طبابت علم ته مې خاصه توجه کوله نو په دې لټه کې نه شوم چې څه ډول د موسیقۍ نوټ لیکل کېدای شي او داسې ښکاري چې نورو هم دې موضوع ته چندان توجه نه ده کړې.

ما په کرت کې هېڅ معبد ونه لید چې د هېواد د خدای لپاره جوړ شوی وي. خو په بدل کې یې د غوایانو عبادت کاوه او د هغوی په مخکې به نڅېدل.

زه پوه شوم چې د کرت ټاپو د او سېدونکو له لوري د غوایانو عبادت مذهب ته د هغوی د علاقې له امله نه دی. بلکې د غوایانو په مخکې له نڅا خوند اخلي او داسې ورځ به نه وي چې د دې نڅا لپاره راټول نه شي او یا پخپله ونه ګډېږي.

د دغه ملت د ژوند یو په زړه پورې ټکی دا دی چې په شرابو کې افراط نه کوي.

ما په کرت کې د او سېدو ترپایه ونه لیدل چې څوک دې نشه شوي وي او یادې د طبس او بابل د او سېدونکو په شان د ډېرو شرابو له امله چا کانګې کړې وي.

په کرت کې ښځې ښکلې ځوانان خوښوي او له همدې امله ځوانان په لوڅو اندامونو د غوېي په مخ کې ګډېږي چې ښځو ته خپله ښکلا وروښیي.

هغه ښځې او نارینه چې د غواګانو په مخکې نڅېږي دوه ډوله وي، یوه ډله هغه دي چې کسب یې همدا دی.

که نارینه وي باید له ښځو سره واده ونه کړي او که ښځې وي باید له نارینه وو سره ساعت تېرې ونه کړي.

خو دویمه ډله هغه کسان دي چې د تفریح لپاره د غوایانو په وړاندې ګډېږي او هغوی که نارینه وي له ښځو او که ښځې وي له نارینه وو سره تفریح کولای شي. زما په نظر د کرت د خلکو په دودونو او روحیه کې یوازې یو شی ناخوښ او ناسم دی. چې هغه د دوی بې ځایه هوس او تمه ده.

دغه ملت تر دې حده د نویو شیانو د درلودلو لېوال دی چې هغه شی چې نن یې خلک خوښوي سبا یې له پام غورځوي او نه یې اخلي او هېڅ سوداګر ډاډه نه دی. هغه شی چې نن د کرت خلکو واخیست سبا به یې هم واخلي که نه؟

کله چې کرت ته ورسېدو په یوه مېلمستون کې مو واړول.

ما بابل ته د سفر په ترڅ کې د هغه ځای مېلمستون لیدلی و. له ځان سره مې ویلي و. چې په نړۍ کې به تر دې ښه کور نه وي.

خو کله چې کرت ته ننوتم او د هغو ښکلي او پاک مېلمستون او مهربان او مېلمه پال نوکران مې ولیدل نو پوه شوم چې د بابل مېلمستون د دې ځای ګرد ته هم نه رسېږي.

ځکه چې د بابل په مېلمستون کې بدرنګه او ناولو غلامانو او نوکرانو کارکاوه. په داسې حال کې چې د کرت په مېلمستون کې ښکلو هلکانو او نجونو کار کاوه، چې تل موسکي ول او مېلمنو ته به یې هرکلی واېه.

کله چې به را وغوښتل شول ښه خدمت به یې کاوه.

موږ مېلمستون ته له ننوتو سمدستي وروسته د هغه په ښکلي حمام کې چې ګرمې او سړې اوبه یې درلودې حمام وکړ، جامې مو بدلې کړې.

مینا د خپل سر و ښېستان کارګوتې کړل، نوې جامې یې واخیستلې او ما ورته له رنګارنګ کانو څخه جوړې غوږوالۍ او غاړه کۍ واخیستل.

هغه جامې چې مینا اخیستې وې د هغې سینه یې نه پټوله په داسې ډول چې ټولو د هغې سینې او لاسونو ته کتل.

له دې وروسته چې جامې یې واغوستلې ما ته یې وویل یو روان تخت کرایه کړه چې د ښار له بندره ولاړ شو او زه غواړم خپل استاد وګورم.

زموږ مېلمستون د کرت په بندر یانې بندري سیمه کې و. له دغه ځایه مو یو روان تخت

کرایه کړ او پرې سپاره شوو. د ښار په لور و خوځېدو. ښار د بندر په پرتله لږ پر لوړې سیمې پروت و او دومره باغونه یې درلودل چې تیتې ودانۍ پکې پټې وې.

مینا روان تخت د یوه باغ په مخکې ودراوه او موږ باغ ته ننوتو.

مینا وویل دا زما د استاد کور دی.

په کرت کې هر ځوان یا پیغله چې د غوایانو په مخکې ګډېږي یو استاد لري چې د هغوی ښوونکی او ملاتړی وي او د نڅا تخنیکونه ورښیي، د غه راز د هغوی له ګټو دفاع کوي او اجازه نه ورکوي چې نور د هغه د شاګرد حق ضایع کړي.

د مینا استاد یو بوډا و. چې کله یې موږ کور ته ورننوتو یوه اندازه پاپیروس (د پخوانۍ زمانې کاغذ چې له مصره واردېده. ژباړن) یې په مخکې پراته ول او مطالعه کول یې.

ماوکتل چې پر د غو کاغذونو د غوایانو عکسونه کښل شوي او معلومه شوه چې د غه غویي هغه ځناور دی چې سبا به یو شمېر کسان د هغه په مخکې ګډېږي او بوډا نیت لري چې پوه شي په کوم غوایي شرط تړلای شي.

کله چې بوډا مینا ولید له خوشاله شو او هغه یې ښکل کړه ویې ویل مینا ! ما فکر کاوه چې ته خدای ته تللې یې او بېرته نه یې راستنه شوې، خو لا مې باور نه کېده او فکر مې کاوه چې را به شې. ځکه مې بل شاګرد نه و. نیولی.

هغه کوټه چې دلته ستا د اوسېدو لپاره وه، همغسې پخپل حال ده خو څه موده کېږي چې پاکه شوې نه ده او ښایي زما ښځې ورانه کړې وای او پر ځای یې جوړ کړې وای. چې په هغه حوض کې خپل کبان وروزي ځکه چې زما ښځه له کبانو سره ډېره مینه لري.

مینا وویل . ستا مېرمنې له کومه وخته د کبانو له روزلو سره لېوالتیا پیدا کړې؟ کله چې زه له دې ځایه تلم هغه خو د کبانو د روزلو په فکر کې نه وه.

بوډا وویل دا مې نوې ښځه ده چې تا نه ده لیدلې او که اوس یو ځوان سړی ورسره نه وای. ما به وروستلې وې او له هغې سره مې معرفي کولې، خو اوس یو ځوان نڅاګر چې نوې یې نڅا پیل کړې له هغې سره دی او که تا ورولم حالت به یې بدل شي.

ایا غواړې خپل ملګری ماته معرفي کړې چې زه هم ورسره ملګری شم او دغه کور د هغه د خپل کور په شان شي.

مینا ! وویل زما ملګری یو مصری ډاکټر دی او نوم یې (سینوهه) ابن الحمار

دی. یوازې ژوند کوي او ښځه نه لري چې ورسره تفریح وکړي.

بوډا وویل که څه موده په دې هېوادکې تېره کړي یوازې به پاتې نه شي. ځکه چې په کرت کې ښکلې ښځې نه پرېږدي چې یو سړی یوازې پاتې شي.

خو تا ته وایم مینا! ایا ناروغه یې چې له یوه ډاکټر سره دلته راغلې یې او که ناروغه وې زه به ډېر خپه شم. ځکه کله چې راغلې زړه مې خوشحاله شو او فکر مې وکړ چې له تا به وغواړم سبا د غوایي په مخکې ونځېږې او لږ سره سپین زما په برخه کړې.

مینا وویل. زه مریضه نه یم او تر بل هر وخت روغه یم.

له دې امله مې له دغه مصري ډاکټر سره سفر وکړ چې هغه زما ژغورونکی دی او که هغه نه وای. زه به په بابل کې مړه شوې وم او یا به مې ځان وژلی وای.

بوډا وویل هیله ده چې له دغه مصري ډاکټر سره د ملګرتیا له امله دې خپل پېغلتوب له لاسه نه وي ورکړی. ځکه ته پوهېږې که ستا پېغلتوب ضایع شي اجازه به درنه کړي چې د غوایانو په مخکې ونځېږې او خدای ته هم نه شې ورتلای.

بیا بوډا پېغلې ته نژدې شو او د هغې سینې یې لمس کړې. ویې ویل ډاډېږم چې ستا پېغلتوب دې له لاسه وتلی نه وي. ځکه چې کله ته له دې ځایه تللې سنې دې ډېرې وړې وې او اوس لږ لویې شوې دي.

ایا غوره نه ده. تر دې مخکې چې د غوایانو په مخکې ونځېږې تا معاینه کړو او پوه شو چې پېغله یې که نه؟ پېغلې په غوسې سره وویل نه غواړم د بابل د مریانو د پلورنې د بازارونو په شان. چې هلته ښځې معاینه کوي چې پېغلې دي کنه؟ ما هم معاینه کړئ.

زه درته وایم له دې کبله مې له دغه سړي سره سفر وکړ چې هغه وژغورلم او که هغه نه وای زه به هم په کرت کې نه وم.

ته خو یوازې د خپل سخوندر او عاید په فکر کې یې او زما د خبرې پروا نه کوې.

له دې خبرې وروسته مینا وژړل او بوډا چې د هغې اوښکې ولیدې پر خپلې خبرې پښېمانه شو. ویې ویل مینا مه ژاړه! زه باور لرم چې ته رښتیا وایې او لا پېغله یې. دغه سړی ستا ژغورونکی دی او که هغه نه وای ته به هم کرت ته نه وای راستنه شوې.

بیا یې د خبرو موضوع بدله کړه او زیاته یې کړه. را په زړه شول چې زه باید نن مینوس ته ورشم او له دې کبله چې هلته د تګ لپاره ځنډېدلی یم نه غواړم چې جامې هم بدلې کړم او په هم دغه جامو کې به لاړ شم.

تاسې په همدې کور کې پاتې شئ، استراحت وکړئ، ډوډۍ وخورئ او که ښځې مې پوښتنه وکړه چې چېرته تللی یم ورته ووایئ مینوس ته تللی دی، ما یې څکه مزاحمت و نه کړ چې غوایي ته نڅېدونکی ځوان ورسره و.

ښځې ته مې دا هم ووایه، کله چې د مینوس له کوره راووځم نو خپلو غوییو ته هم ورځم. ځکه چې یو غویی به چې لا یې په لوبو کې ګډون نه دی کړی، سبا ډګر ته ننوځي او زه یې باید وګورم.

مینا ووېل. زه او سینوهه هم له تاسره ځو، زه به هلته خپل ملګري وګورم او سینوهه به ور وپېژنم.

له دې کبله چې د بوډا او د مینوس د کور تر منځ واټن کم و، نو په روان تخت کې نه بلکې پلې ورغلو.

د مینوس کور ته چې ورننوتو په حیرانۍ سره مې ولیدل چې هلته یو ه ستره ماڼۍ ده، او وروسته پوه شوم چې مینوس د کرت پاچا دی.

زه داسې هک پک شو م چې زما د مریي کاپتا په خبره داسې راته ښکاریده چې پر سر روان یم.

هلته پوه شوم چې په کرت کې د پاچا نوم مینوس دی او په کرت کې د مینوس په نوم دومره پاچاهان تېر شوي چې د کرت خینې اوسېدونکي نه پوهېږي چې دغه اوسنی باچا څویم مینوس دی.

کله چې هغه ستر تالار ته ننوتو چې مینو س پکې و، ومې لیدل چې هلته ډېر ې ښځې او نارینه راټول شوي او داسې په لوړ غږ خبرې کوي او خاندي چې ګنې پخپل کور کې دي.

نارینه وو ښکلې او رنګا رنګ جامې اغوستې وې او ټول ښایسته وو، ښځو هم په ښکلا او ښایسته جامو کې له یوه بل سره سیالي کوله.

مینا زه خپلو ملګرو ته ورمعرفی کړم، ښځو هغه په غېږ کې ونیوله او ښکل یې کړه، نارینه یې هم په لیدو خوشحاله شول خو له دې کبله هېڅ حیران نه شول چې هغه خو دا څه موده نه وه.

موږ له ډېرو نارینه وو او ښځو تېر شو چې بالاخره مینوس ته و رسېدو.

مینو س هم د نورو په شا ن له یو شمېر کسانو سره چې شاوخوا یې ولاړ و، خندل او هغه هم د مینا په لیدو خوشحاله شو.

له دې وروسته چې مینا زه ورمعرفي کړم او مینوس پوه شو چې ما دغه پیغله ژغورلې ده په مصري ژبه یې له ما مننه وکړه او ویې ویل سینوهه! تا زموږ خدای ته یو ستر خدمت وکړ ځکه هغه نجلۍ دې راستنه کړه چې باید زموږ خدای ته ورشي او مینا به ډېر ژر زموږ د خدای کور ته ورشي.

بیا مینا له هاله بهر کړم او ویې ویل راځه چې د ماڼۍ کوټې در وښییم او په هرې کوټې کې د هغې کوټې د شیانو په لیدو سره خوشحاله کېدله.

ما کتل چې د ماڼۍ نوکرانو له دې پر ته چې د مینا له اوږد غیابته حیران شي د هغې په لیدو خوشحالي کوله.

مینا ددې چارې علت ماته بیان کړ او ویې ویل، داچې هېڅوک په دې هېواد کې د بل چا له اوږده غیابته نه حیرانېږي علت یې دا دی چې نه غواړي د چا د مرګ لپاره خواشیني وکړي.

کله چې یو څوک مړ کېږي هېڅوک د هغه ذکر نه کوي او له همدې امله کله چې یوڅوک ورک شي تر هغه یې پوښتنه نه کېږي مګر بیرته راستون شي او که راستون نه شي فکر کوي چې هغه مړ شوی دی نو باید هېر کړای شي.

ځکه د تللو کسانو په تېره بیا د مړو یادول د خپګان سبب کېږي او په دې هېواد کې څوک نه غواړي چې ځان غمونو ته وسپاري.

له دې وروسته چې مینا د ماڼۍ کوټې راوښودې زه یې هغې کوټې ته بوتلم چې د نورو پر سر ودانه شوې وه.

له هغه ځایه ستر ځړځایونه، چې غوايي پکې څرېدل او له ښاره دباندې د زیتون باغونه او کروندې لیدل کېدې.

مینا راته وویل دازما کوټه ده.

ما وویل مینا نو ته په دې کوټه کې ژوند کوې؟ مګر ته د پاچاهۍ د ماڼۍ اوسېدونکې وې؟

پیغلې وویل هو! دغه جامې چې دلته ګورې ټولې زما دي، خو زه یې نه شم اغوستلای ځکه چې له موډه لوېدلې او زموږ په هېواد کې ژر ژر جامې بې موډه کېږي.

ما وویل مینا زه ستا دې خبرې ډېر حیران کړم، ځکه چې هېڅکله مې تصور نه کاوه ته هغه ښځه یې چې ستا د اوسېدو ځای به سلطنتي ماڼۍ وي.

مینا وویل که زموږ د پاچا نوم دې زده وای نو په دې به پوه شوی وې چې زما نوم یانې مینا د پاچا له نوم مینوس څخه اخیستل شوی دی.

ما وویل نو ولې دې دغه خبره ما ته ونه کړه چې پوه شوی وای چې ته د کرت د سلطنتي کورنۍ غړې یې؟ مینا وویل ولې ووایم؟ دلته ټول کسان یو شان دي او ما اړینه نه بلله چې تا ته ووایم چې زه د کرت د سلطنتي کورنۍ یم.

پوه شوم چې مینا سمه خبره کوي او د مینوس په هال کې د خلکو د چلند څرنګوالي دغه خبره ثابتوله. ځکه چې خلکو هلته داسې چلند کاوه چې ته وا په خپل کور کې دي او ګنې پوهېږي نه چې دلته د کرت پاچا دی.

زه په دې هم پوه شوم چې له هغې ورځې چې مې میناولیده ولې سرو او سپینو پرې اغېز نه کاوه او که به مې کوم شی ورته اخیسته او یا مې هغې ته ډالۍ ورکوله نه خوشحالیده. ځکه چې مینا له وړوکوالي عادت کړی و چې سره او سپین وګوري او هغه څه به چې ما ورکول د هغې لپاره یې اهمیت نه درلود او هغه یې نه خوشحالوله.

ما وویل مینا ته چې د کرت د پاچا خپله یې څنګه د غوایانو په مخکې نڅېږې؟ ایا دغه موضوع د هغې ښځې لپاره چې له سلطنتي کورنۍ څخه ده ناسم کار نه دی؟ میناوویل زموږ په هېواد کې د غوایانو په مخکې کې ګډېدل داسې کار دی چې ټول مشران که وغواړي پرې مشغولېدای شي او هر څوک چې په دغه کار کې وځلېږي قدرونه یې کېږي، نو دغه کار عیب نه بلکه له ویاړونو شمېرل کېږي.

بیا له مینا سره یو ځای له ماڼۍ ووتلو او د غویو د لوبو د موسسې پر لور وخوځېدو.

په کرت ښار کې د غویو د لوبې موسسه یو وړوکی ښار دی چې د ستر ښار په څنګ کې جوړ شوی دی.

په دغه ښار کې د غوایانو د لوبو لپاره ځو میدانونه او د غویو د ساتلو لپاره ځو لویې غوجلې جوړې شوي دي.

د غوجلو په څنګ کې څړ ځایونه دي چې شاوخوا یې کټارې درول شوې دي.

کله چې د کرت هوا سړېږي، غواګانې غوجلو ته بېول کېږي او په ګرمۍ کې یې بېرته څړ ځایونو ته بیایي.

خو هغه غوایي چې سبا یا بل سبا د غوایانو د لوبو په ډګر کې پر نڅېدونکو نجونو او ځوانانو حمله کوي په غوجله کې ساتل کېږي.

کله چې د غوییو د لوبو موسسې ته ولاړو د مینا استاد هلته و او په دې سیمې کې زما په لیدو خوشحاله شو.

دغه راز هغه کاهنان چې دنده یې د غوایانو پالل او د نڅېدونکو روزل و، د میناپه لیدو خوشحال شول خو دوی هم دې ته حیران نه شول چې مینا دا دومره موده چېرې وه؟

له دې وروسته چې کاهنان پوه شول زه مصري ډاکټر یم د غویو د خوړو او داچې کله باید خواړه ورکړل شي چې ویښتان یې ځلانده وي او ډېر عمر وکړي له ما څخه پوښتنې وکړې.

په داسې حال کې چې زه پوهېدم د دوی معلومات تر ما ډېر دي، ځکه چې له سلګونو کلونو راهیسې د دوی نیکونو غوایې روزل او پالل.

له هره پړاوه وروسته د پلرونو علمونه زامنو ته لېږدول کېږي او زامن پرې نوي شیان ور زیاتوي او بیا یې خپلو زامنو ته سپاري.

مینا کاهنانو ته ډېره نژدې او پر هغوی ګرانه وه او له همدې امله کله چې یې ولیدله د استاد په خوښه یې موافقه وکړه چې سبا د غوایي په مخکې ونڅېږي او یو غویی یې هم ورته په نظر کې ونیو.

مینا له دې انتخابه ډېره خوشحاله شوه ځکه چې پوهېدله بس ورځ به خپل هنر نندارې ته وړاندې کوي.

له هغه وروسته مینا زما د لارښوونې مسولیت پر غاړه واخیست او ستر کاهن ته ورغلو چې د غوایي بازانو د ټولو کاهنانو مشرتګنل کېده. کله چې د ستر کاهن کوټې ته ورننوتو د کوټې د تیارې له امله مې په سر کې ونه لید او بیا مې سترګې پر هغه سړي ولګیدې چې سر یې د غوایي په شان زېړ رنګه و.

دغه سړي چې سر یې دغوایي په شان و، مونږ ته سر ټیټ کړ او بیا یې خپل سر چې د غوایي سر و، لېرې کړ نو زه پوه شوم چې سر او مخ یې دعادي انسان په څېر دي.

وروسته همدغه سړي چې ستر کاهن و مونږ ته موسکی شو او ښه څېره یې درلوده.

خو زه یې له شکل او صورته وډار شوم، ځکه د هغه په څېره کې یو ډول بې رحمي او تاو تریخوالی لیدل کېده.

مینا چې کله غوښتل ورته ووایي چې هغه څنګه ورکه شوه؟ او ویې نه کړای شول چې د کرت د خدای پر وړاندې ځان قرباني کړي نو ستر کاهن ورته وویل، ضروري نه ده چې

توضیحات ورکړي. ځکه چې زه له دې مسلې خبریم او پوهېږم چې ته یې تښتولې وې او نورو هېوادنو ته یې بیولې وې.

بیا یې زه وستایلم او ویې ویل سینوهه! له دې کبله چې تا مینا کرت ته راستنه کړه چې وکړای شي ځان خپل خدای ته قرباني کړي ما امر وکړ چې تا ته ډېرې ډالۍ درکړي.

کله چې خپل مېلمستون ته ستون شوې هلته به ډېرې ډالۍ وګورې.

ما وویل ما نه مینا د ډالیو د ترلاسه کولو لپاره ژغورلې ده او نه د هغو د ترلاسه کولو لپاره کرت ته راغلی یم. بلکې دې ځای ته زما د راتلو هدف د علم ترلاسه کول دي.

زه تر دې وړاندې چې کرت ته راشم سوریې، بابل او هاتي هېوادونو ته هم تللی وم او په دغو هېوادونو کې مې ډېر شیان زده کړل، اوس کرت ته راغلی یم چې دلته هم خپل معلومات زیات کړم.

د کرت د خدای په هکله مې د پام وړ شیان اورېدلي او ماته وویل شول چې تاسې یو لوی خدای لرئ چې ځوان هلکان او نجونې یې خوښېږي، خو په دې شرط چې هېڅ ډول بدني ککړتیا ونه لري.

دا یو ستر صفت دی چې د بابل او سوریې په خدایانو کې نشته، ځکه چې د بابل او سوریې خدایان اجازه ورکوي چې نارینه او ښځې په معبدونو کې له یو بل سره تفریح وکړي.

ستر کاهن وویل دلته پر لوی خدای سربېره نور خدایان هم شته چې خلک یې عبادت کوي او حتی په بندري سیمو کې د نورو هېوادنو د خدایانو لپاره هم معبدونه جوړ شوي.

ته کولای شې په یوه معبد کې د امون خدای یانې د مصر د خدای لپاره قرباني وکړې خو زموږ ستر خدای بهرنیان نه پېژني او نه شي کولای چې ویې پېژني.

ځکه یوازې هغه کسان چې د هغه د پېژندلو لپاره روزل شوي او د تعلیم یافته مریدانو له ډلې څخه دي اجازه لري چې هغه وګوري او تر اوسه چې چا لیدلی بېرته نه دی راستون شوی چې ووایي زموږ ستر خدای څه ډول و.

تاسې ته دومره وایم چې د کرت د خدای لویوالی او نیکمرغي په لوی خدای پورې تړاو لري.

ما وویل اې لویه کاهنه! کله چې په هاتي هېواد کې وم د هغه ځای له اوسیدونکو مې اورېدلي ول، چې د هغوی خدایان ځمکه او اسمانونه دي او یو پکې هغه بل د باران په

وسيله القاح کوي او محصولات پيدا کېږي.

په همغه وخت کې مې په مبهمه توګه واوريدل چې د کرت د ملت خدای سمندر دی ځکه چې دغه ملت خپل قدرت او نيکمرغي له سمندر کچ کوونې ترلاسه کوي.

ستر کاهن وويل ستا د خبرو يوه برخه سمه ده او موږ په ډېر مسلو کې خپله نيکمرغي او قدرت له سمندر کچ کونې اخلو. خو زموږ خدای سمندر نه دی مګر د سمندر خدای هم دی.

سينوهه! په دې پوه شه چې په ټولو ملتونو کې د کرت ملت يوازېنی ملت دی چې يو ژوندی خدای. خپل ستر خدای بولي، په داسې حال کې چې نور ملتونه د مړو خدايانو عبادت کوي او يادا چې د خدايانو څېرې او بڼې يې له لرګيو او کاڼو څخه جوړ کړې وي او د هغو عبادت کوي.

زموږ خدای نه يو مړ شوی خدای دی او نه کاڼی او لرګی دی بلکې ژوندی دی او تر هغه وخته چې زموږ خدای ژوندی وي هېڅ ملت نه شي کولای چې د کرت له ملت سره مبارزه وکړي او که مبارزه هم وکړي ناکام به شي.

ومې ويل اې ستره کاهنه! ما اورېدلي چې ستا سې خدای په يوه غار کې اوسي چې اوږده او تياره دالانونه لري او زه ډېر غواړم چې دغه غار او دغه کور وګورم.

خو نه پوهېږم چې ولې هغه کسان چې ستاسې د خدای د کتو لپاره انتخابېږي او يا د هغه کور ته ورځي بېرته نه راځي؟

په داسې حال کې چې هغه ته اختيار ورکړای شوی وي چې له هغه کوره راستانه شي، ته وو ايه چې ولې دغه کسان بيرته نه راستنېږي؟

ستر کاهن وويل له دې سره سره چې زموږ د خدای سمبول غويی دی، خو زموږ خدای غويی نه دی بلکې يو داسې موجود دی چې څوک نه شي ويلای هغه څه شی دی؟

همدومره پوهېږو چې ژوندی دی خو دا چې ولې ځينې کسان ورځي او بېرته ترې نه راستنېږي دا د دوی لويه نيکمرغي او وياړ دی.

ځکه چې زموږ د ځوانو هلکانو او نجونو لپاره تر ټولو لوی وياړ او نيکمرغي دا ده چې خدای وګوري او له هغه سره پاتې شي.

له همدې امله کله چې هغه وګوري داسې نيکمرغي احساسوي چې په دې دونيا کې ورته ژوند نيمګړی او خراب ښکاري.

دوی پوهېږي چې که دنيا ته بېرته راشي ددې دنيا زيار او زحمتونه به ګالي. مينا ! ايا ستا هيله دا نه ده چې د خدای کور ته ورشې او خپل پاتې عمر هلته تېر کړې؟

مينا ځواب ورنه کړ او ما وويل ايا زه د خدای کور ته د ننوتو اجازه لرم او ممکنه ده چې د هغه د کور د ننوتو لاره وګورم ؟

ستر کاهن وويل هغه شپه چې سپوږمۍ په اسمان کې د ځوارلسمې شي نژدې ده او په دې شپه به مينا د خدای کور ته ځي او ممکنه ده ته هم د خدای د کور د ننوتو لاره وګورې.

ومې ويل که مينا ونه غواړي او چمتو نه شي چې د خدای کور ته ورشي بيا به څه کېږي ؟

ستر کاهن وويل تر او سه پورې داسې نه دي شوي چې يو ځوان هلک او يا پېغله د خدای کور ته ننوتو ته نه وي چمتو شوي او مينا هم تر هغه وروسته چې د غوايانو په مخکې ونڅېږي په ډېر شوق به د خدای کور ته ورشي.

له دې خبرې وروسته ستر کاهن د غوايي سر پر خپل سر کېښود او دا په دې مانا و، چې موږ. يوه کړي د کتنې وخت پای ته ورسېد او مينا زما لاس ونيو او له کوټې بهر شو.

له دې وروسته چې د ستر کاهن له کوټې ووتو مينا له ما بېله شوه او وېې ويل سبا د نڅېدا ورځ ده او زه بايد نن شپه د غوايي لوبې په موسسه کې پاتې شم.

له دې سره زه يوازې مېلمستون ته ستون شوم.

کله چې مېلمستون ته راغلم ګورم چې زما مريي کاپتا شراب څښلي او مست دی او وېې ويل سينوهه .... زما باداره ! ... د غه ځای د مغرب تاټوبی او د نيکمرغۍ مرکز دی ( پخوانيو مصريانو هغه څه چې ورپسې ملتونو جنت وايه د مغرب تاټوبی باله. ژباړونکی )

دلته شراب ډېر ارزانه او پرېمانه دي او هېڅ بادار خپل مريي په کوتک نه وهي چې ولې دې دومره سپين يا سره پټ کړي دي او که کوم خان خپل نوکر ته غوسه شي او له کوره يې وباسي، نوکر يوه ورځ ځان پټوي او يوه شپه وروسته بېرته راستنېږي او بادار يې ګناه ښښي.

خو ددې ځای سوداګر ډېر چالاک دي او همغه ډول چې د ازمير سوداګر يو مصري غولوي. دوی بيا ازميري سوداګر دوکه کوي. خو په دې ښار کې يو ډول وړوکی کب د زيتون په غوړو کې ږدي چې يوه موده په غوړو کې پاتې شي او دغه کب دومره خوندور

وي چې څومره يې وخوري نه پرې مړېږي (دکاپتا هدف د ساردين په نامه يو ډول کب دی، چې د کرت او سېډونکو به په غوړو کې اېښوده او اوس هم دغه دود په اروپاکې شته. ژباړن)

له دې خبرې ور وسته زما مريي د کوټې دروازه بنده کړه او له دې وروسته چې ډاډه شو د دروازې شاته څوک نه شته ويې ويل باداره داسې ښکاري چې په دې ښار کې کومه حيرانوونکې خبره شوې ده؟ ځکه چې ما په بندري سيمه کې اوريدلي چې د کرت خدای مړ شوی او کاهنين چې د خدای مرګ وارخطا کړي هڅه کوي يو بل خدای پيدا کړي.

خو هرڅوک چې دغه خبره وکړي سخته سزا ورکول کېږي او دوو تنو مانو ګانو چې دغه خبره کړې وه د کرت په ساحل کې له لويو ډبرو څخه سمندر او اختاپوس ته اچول شوي دي. (اختاپوس يو ډول سمندري حيوان دی چې اووه لاسونه لري. ژباړن).

ځکه چې د کرت او سېډونکي وايي چې د هغو قدرت او نيکمرغي په ستر خدای پورې اړونده ده او که د کرت خدای مړشي د کرت خلک به خپل قدرت او نيکمرغي له لاسه ورکړي.

کله چې کاپتا دغه خبره وکړه په زړه کې مې يوه هيله پيدا شوه او هغه ته مې وويل که داسې وي او دکرت خدای لکه چې خلک وايي مړ شوی وي نو داسې ښکاري دغه خبر سم دی (ځکه چې له دې سره سره چې حکومتونه تل هڅه کوي له ملته خبرونه پټ کړي، خو خلک له ټولو خبرونو خبرېږي) که داسې وي نو کله چې مينا د خدای کور ته ننوځي له هغه ځايه به راوځي.

# درویشتم څپرکی

## د کرت د غوایانو د لوبو په ډګر کې

پر بله ورځ د مینا په مرسته چې د غوایانو د لوبو په ډګر کې یې نفوذ درلود، زه په داسې ځای کې کېنول شوم چې هرځای ډېر ښه ولیدلای شم.

غوایان یو په بل پسې ډګر ته ننوتل هلته تر لسو کتارونو ډېر کسان ناست ول؛ خو ټولو میدان ډېر ښه لیدای شو؛ ځکه چې د نندارچیانو ځای داسې جوړ شوی و، چې یو کتار له بله پورته و. په دې توګه یې یو د بل مخه نه نیوله.

د ځوانو هلکانو او نجونو نڅا څو ډوله وه خو تر ټولو سخته نڅا هغه وه چې باید نڅېدونکی د غوایي د دواړو ښکرو له منځه ټوپ کړي او د هغه پر ملا ودرېږي.

لکه چې مخکې مې ویلي ول، مینا یو ځل دغه ډول نڅا کړې وه.

ومې کتل چې د کرت شتمنو پر غوایانو شرطونه تړل داسې بربښېدل چې پوهېږي یو غویی تر بل هغه ښه دی، خو زما له نظره ټول غوایان یو شان ول، زه یې په تو پیر نه پوهېدم.

مینا هم د نورو په شان د غوایي په مخ کې ونڅېدله. زه وډار شوم ځکه د غوایي د ښکر یو ګوزار د مینا د وژنې لپاره بس و.

خو له دې وروسته چې د هغې چالاکي مې ولیده پوه شوم چې غړي او عضلې یې په کنټرول کې دي. نو مې ډار کم شو او د نورو په شان مې ورته خوشحالي وکړه.

په کرت کې نجونې او هلکان لوڅ د غوایانو په مخکې ګډېږي ځکه دغه نڅا دومره خطرناکه ده چې که جامې ونه باسي وبه وژل شي.

جامې که څه هم نرۍ، وي خو ددې مخه نیسي چې وکړای شي خپل غړي او د بدن عضلې په خپل کنټرول کې راولي.

له دې سره سره چې یو شمېر ښځو ښه اندامونه درلودل خو زما په باور د مینا اندام تر

ټولو ښکلی و.

د مینا استاد باوري و، چې دا به هغسې ونه نځېږي، چې باید وای؛ ځکه مینا ډېره موده له کرته لرې او تمرین یې هم نه و کړی.

له نڅا وروسته مینا په داسې حال کې چې بدن یې په مخصوصو تیلو غوړ کړی ؤ راغله او ویې ویل سینوهه! بل سبا سپوږمۍ په اسمان کې ګرده کېږي او زه باید د خدای کور ته ولاړه شم.

له همدې لامله ملګرو مېلمنه کړې یم چې په یوه جشن کې ګډون وکړم، نو له تا سره نه شم تللی خو په هغه شپه چې د خدای کور ته ځم ته هم زما د نورو ملګرو په شان د خدای د کور تر دروازې پورې را سره تلای شې.

ما وویل هر ډول چې ته وایې زه به همغسې وکړم او په دې شپه به له تا سره وم او له ننه تر بلې ورځې پورې به خپل وخت د کرت په ننداري تېر کړم.

یو په زړه پورې شی چې ما خوشحالوي دادی چې څو تنو پېغلو چې ستا ملګرې دي خو لا خدای ته نه دي وقف شوې ماته بلنه راکړې چې د هغو کور ته ورشم او له هغو سره تفریح وکړم.

که څه هم هغوی ستا په شان ښکلې نه دي خو چاغې دي او د هغوی چاغوالی به د دوی عیب پټ کړي.

مینا زما مټ ونیو او ویې ویل سینوهه! زه نه غواړم چې کله زه له تا سره نه یم نو ته هغو نجونو ته ورشې چې زما ملګرې دي.

لږ تر لږه دومره صبر وکړه چې زه د خدای کورته ننوتم بیا ازاد یې چې هر څه دې زړه غواړي ویې کړه، ځوانو نجونو ته لاړ شه او له هغوی سره ساعت تېر کړه.

ما وویل، مینا ټوکې مې کولې له ښځو سره د تفریح کولو شوق نه لرم. اوس بندري سیمې ته ورځم، هلته طبابت پیلوم؛ ځکه هلته د نورو ملتونو ډېر خلک شته چې ناروغان دي او زما معالجې ته اړتیا لري.

همدغه کار مې وکړ، بندري سیمې ته ولاړم مېلمستون ته ننوتم او طبابت مې پیل کړ، تر هغه چې شپه شوه او سپوږمۍ په اسمان کې راڅرګنده شوه.

دا مهال له ټولې بندري سیمې د موسیقۍ او ساز اوازونه پورته شول؛ ځکه په کرت کې ډېر عمومي ځایونه شته، ان هغه کسان چې په کرت کې بېوزله دي د شتمنو په شان

هره شپه په عیش او تفریح تېروي دوی د اسې ژوند کوي چې ګني نه مري او په داسې نړۍ کې ژوند کوي چې ویر او کړاو پکې نشته. زه پخپلې کوټې کې له دې پرته چې ډېره بله کړم د سپوږمۍ رڼا ته ناست وم او کاپتا زما د کوټې تر څنګ په خپلې کوټې کې اوږد غځېدلی ویده و او یا یې ځان ویده ښکاره کاوه.

یو وخت ګورم چې یوه ځوانه ښځه زما کوټې ته راننوته، ما وکتل چې د مېلمستون له کارکوونکو څخه ده. ما ته یې وویل سینوهه!.... غواړې له ما سره ساعت تېری وکړې.

ما وویل، نه... ساعت تېري ته مې زړه نه کېږي.

هغې وویل، که فکر کوې زه ستا وړتیا نه لرم د مېلمستون یوه بله نوکره به راولېږم چې راشي له تا سره تفریح وکړي.

ومې ویل، نه... نه... زه د تفریح کولو او ساعت تېري شوق نه لرم، غواړم یوازې واوسم. ځواني ښځې وویل، عجیبه ده له دې سره سره چې بهرنیان د ساعت تېرۍ لپاره وسیله لري خو قصداً غواړي چې له غمونو سره مخامخ وي او یوازې او سېږي په داسې حال کې چې د کرت خدای ښځه د سړي لپاره پیدا کړې او نارینه یې د ښځې لپاره پنځولی دی.

بیا ما ته رانژدې شوه او ویې ویل، سینوهه! له ما سره تفریح وکړه؛ ځکه زه غواړم پوه شم یو مصري ډاکتر څنګه ساعت تېری کوي.

ومې ویل، ما پخپل حال پرېږده؛ ځکه د ساعت تېري او مستۍ حوصله نه لرم.

نجلۍ وویل، که ته د نورو بهرنیانو په شان تاندوالی نه لرې، علت یې دادی چې ځان دې دلته بندي کړی دی.

ومې ویل، زما له کوټې ووځه او چې مې درته غږ نه وي کړی دلته مه راځه.

نجلۍ وویل، حیرانه په دې یم په هغه هېواد کې چې سړي یې لکه د غه مصري ډاکتر داسې وي نو خلک ژوند ته څه هیله کوي؟!!

ما سترګې په سپوږمۍ کې ښخې کړې وې او خواشینی وم، ځکه پوهېدم یوازینۍ ښځه چې ما غوښتل هغه خپله خور کړم له ما جلا کېږي چې د خپل خدای کور ته ولاړه شي او خپل پېغلتوب هغه ته ډالۍ کړي.

په همدې سوچونو کې وم چې ناڅاپه مې پام شو په کوټه کې څوک شته او د هغو عطرو بوی ترې لتېږي چې نن مې د غوایانو د لوبو په ډګر کې بوی کړی و، سر مې او چت کړ ګورم چې مینا ده.

ومې ویل، مینا څنګه دلته راغلې؟

مینا وویل، ورو خبرې کوه زه نه غواړم څوک زموږ غږ واوري بیا زما تر څنګ کښناسته او ویې ویل، له دې کبله دلته راغلم چې د غوایانو په ډګر کې مې له خپله تخته کرکه کېږي.

زه ددې خبرې په اورېدو حیران شوم، ځکه دا راته له امکانه لېرې ښکارېده چې د مینا په شان یوه نجلۍ د غوایانو له لوبې څخه له ټول تعصب سره سره د غوایانو د لوبې په موسسه کې له خپل کټه کرکه وکړي.

بیا مینا وویل، زه هم ښه نه پوهېږم چې ولې په دې وخت کې دلته راغلې یم، ښایي له کټه کرکې دلته راکاږلې یم.

ښایي راغلې یم چې له تا سره خبرې وکړم، خو که ته غواړې ویده شې زه له دې ځایه ځم. مګر که خوب نه درځي زه دلته پاتې کېږم او ستا خبرې اورم، ستا درمل بویوم او کله چې کاپتا ټوکې کوي د سر وېښتان به یې راکاږم.

زه فکر کوم په نورو هېوادونو کې له تا سره سفر زما فکر بدل کړی دی او نور د پخوا په شان د غوایانو له بویه او د غوایانو د لوبې له ننداره او د نندارچیانو له نارو سورو خوند نه اخلم.

ان د پخوا پر خلاف نه غواړم د خدای کور ته ننوځم. هغه خبرې چې نور یې په دې اړه راته کوي د ماشومانو د بې مانا خبرو په شان راته ښکاري اوس مې د ملګرو لوبې نشې بوختولای، داسې برېښي چې زما عقل یې را څخه اخیستی وي او بل عقل یې لکه د هغو ملتونو عقل، چې ما کتلي دي زما په سر کې اېښی وي.

نو اوس درته وایم چې زما لاس ونیسه او له دې سره سره چې نن دې ویل چاغې ښځې دې خوښېږي او زه چاغه نه یم خو غواړم ته مې لاس ونیسې.

ما وویل، مینا! زه په ځوانۍ کې یو ساده سړی وم او هیڅ یوه ښځه مې خپله خور نه کړه تر دې چې یوه ورځ یوه حریصه او بې رحمه راباندې پېښه شوه او هرڅه چې مې درلودل راڅخه یې واخیستل.

له هغه وروسته هېڅ ښځې ته لېواله نه شوم، ځکه چې له ښځو مې کرکه پیدا شوه، مافکر کاوه ټولې ځوانې ښځې د هغې په شان دي. خو تر هغه وروسته چې ته مې ولیدې، ستا په هوښیارۍ پوه شوم و مې لیدل چې ته سرو او سپینو زرو ته هېڅ پام نه کوې نو سر مې خلاص شو چې په دې دنیا کې داسې ښځې هم شته چې نارینه یې خپله خور کولای

شي، له دې پرته چې د سرو او سپینو لپاره د هغه سړي خور شوې وي.

په دې وخت کې د بېوزلو او کمزورو په هکله زما په زړه کې مینه پیدا شوه او بېوزله ناروغان مې له فیسه پرته معالجه کول.

هغه کسان چې غاښونو به یې درد کاوه بې له دې چې اجوره ترې واخلم د هغوی غاښ به مې ور اېست. ځکه کله چې مې لیدل ته د دنیا د مال او شتمنۍ په هکله دومره بې پروا یې، له ځان سره مې وویل چې زه هم باید د دنیا او دولت فکر ونه کړم خو اوس چې ته غواړې له ما جلا شې او د خدایانو کور ته ولاړه شې، له خدایانو او انسانانو دواړو کرکه کوم.

ځکه چې پوهېږم ستا له تګه وروسته به زما روح په شاړه ځمکه کې د یوه تور کارغه په شان شي او تل به له غمونو سره مخامخ وي.

له دې امله درته وایم چې مینا په دنیا کې هېوادونه ډېر دي خو یوازې یو لوی سیند شته او هغه د نیل سیند دی. نور سیندونه هم شته او به هم لري خو د نیل سیند په شان ژوند ببښونکي نه دي.

دغه سیند له هر ډول بند او خنډ پرته هر کال د مصر توره ځمکه خړوبوي او که د ځمکو د خاوندانو حرص او تمه یې پر ډېر دي د مصر له کروندو به دومره فصلونه تر لاسه شي چې هېڅکله به زما د هېواد خلک دا وس ونه لري چې دغه خواړه وخوري.

راځه چې د نیل ساحل ته ځان ورسوو او هلته یو کور واخلو، د هیلیو غړونه واورو، چې په لوخو کې سندرې وايي او د آمون د خدای بېړۍ (هدف یې لمر دی. ژباړن) چې په اسمان کې حرکت کوي وګورو.

مینا راځه چې ولاړ شو او پاتې عمر له غمونو لېرې ژوند وکړو. کله چې مصر ته ورسېدو په ګډه به یو منګی مات کړو چې مېړه او ښځه شو او بیا به له یوه بله نه جلا کېږو.

له مرګه وروسته به زما او ستا جنازې مومیایي کړي، د لوېدیز په تاتوبي کې به ځای راکړي او تر ابده پورې به هلته ژوند وکړو.

مینا خپل لاسونو زما پر مخ او سترګو تېر کړل او ویې ویل، سینوهه! زه له تا سره مصر یا بل هېواد ته نه شم تللی ځکه هېڅ یوه بېړۍ به ما له دې ځایه بهر نه کړي او په تېره بیا له ننني نخا وروسته تول پوهېږي چې زه باید د خدای کور ته ولاړه شم.

که ته وغواړې چې د خدای کور ته زما د ننوتو مخه ونیسې و به وژل شې او زه باید حتماً

د خدای کور ته ولاړه شم او په نړۍ کې داسې هېڅ ځواک نشته چې د دغه کار مخه ونيسي.

ما وويل، مينا څوک له سباخبر نه وي او ښايي ته له هغه ځايه راستنه شې چې تر اوسه پورې څوک ترې نه دي راستانه شوي او يا ښايي کله چې د خدای کور ته ننوځې او خپل پېغلتوب هغه ته ډالۍ کړې د نېکمرغۍ داسې احساس وکړې چې دغه دنيا هېره کړې.

خو تر هغه ځايه چې زه خبر يم هغه شيان چې پر خدايانو پورې يې تړي يوازې افسانه ده او لا تر اوسه پورې په بېلابېلو هېوادونو کې داسې شی نه دی ليدل شوی چې د خدايانو په اړه زما نظر او عقيده مضبوطه کړي.

له همدې امله که ته د خدای له کوره راستنه نه شوې، زه به دغه کور ته ننوځم او تابه له هغه کوره راوباسم ان که دا زما د ژوند وروستی کار وي او بيا مړ هم شم.

مينا خپل لاس زما پر خولې کېښود او په وېره او ترهه يې شاوخوا وکتل، ويې ويل، دغه فکر دې له سره و باسه! ځکه چې د خدای کور تياره دی او هېڅوک ان د کرت او سپېدونکي د خدای کور ته نه شي ننوتلای، مګر هغه کسان چې غوره شوي وي.

له دوی پرته نور هرڅوک چې هلته ننوځي مړ به شي.

خو زه په ډاډ سره ويلای شم چې له دې کوره به بهر شم، ځکه چې پوهېږم زموږ خدای بې رحمه نه دی او ما هم په زور پخپل کور کې نه ساتي.

زه که وغواړم چې راستنه شم نو مخه مې نه نيسي، دغه خدای د هر ښکلي دی، ټول پام کوي چې د کرت او سپېدونکي په نيکمرغۍ کې ژوند وکړي.

د هغه د نيکۍ له امله په دغه هېواد کې غنم کرل کېږي، په زيتون کې غوړي پيدا کېږي. بېړۍ له يوه بندره بل ته ځي او د سمندرونو توري لړې د بېړۍ د ډوبېدا سبب نه کېږي.

هر څوک چې زموږ په خدای تکيه وکړي ټول به خوشحاله او نيکمرغه وي، زه باور لرم چې دغه خدای ما نه بدبخته کوي او که پوه شي چې زه د راستنېدا نيت لرم مخه مې نه نيسي.

زه پوه شوم چې مينا له ماشومتوبه داسې روزل شوې او لويه شوې چې د کرت خدای ترېل هر چا مضبوط او پياوړی بولي او بل ډول فکر هم نه شي کولای.

که ما ورته سل ځله ويلي وای چې د خدايانو په هکله ډېرې خبرې افسانې دي نه يې

منله.

ددې پر ځای چې له هغې سره د خبرو لټه وکړم د هغې لاس مې ونیو او مینا له ما ځان نه لېرې کاوه او ژړل یې.

هغې ویل سینو هه! پوهېږم چې ته پر ما شک کوې چې کله د خدای کور ته ولاړه شم له هغه ځایه به رابهر نه شم او تا ته به راستنه نه شم، له همدې امله نه غواړم چې ځان له تا وسپموم که هرڅه غواړې له ما سره یې تر سره کولای شې.

ماوویل مینا! زه داسې سړی نه یم چې د ښځې له خوښې پرته هغه خپله خور کړم، ځکه چې دغه ډول خوند یو اړخیز وي او زما لپاره خوند نه لري

دا کفایت کوي چې ته نن شپه دلته راغلې او که غواړې ماته کوم شی راکړې نو د وېښتانو زري پټه دې راکړه چې خوشحاله شم.

میناکله چې دغه خبره واورېده پر خپل بدن یې لاس تېر کړ او ویې ویل سینوهه! له دې کبله چې زه ډنګره یم نو ته زما غوښتونکی نه یې او نه غواړې راسره ساعت تېر ی وکړې؟

ایاغواړې په ډېره لنډه موده کې ځان داسې چاغ کړم چې زما چاغی ته حیران شې؟

ما وویل نه مینا! هېڅ ښځه زما له نظره تر تا ښکلې نه ده، خو زه نه غواړم چې له تا سره ویده شم. ددې لپاره چې دغه تفریح به یو طرفه خوند ولري.

خو زه تا ته ویلای شم چې داسې کار وکړو چې دواړه تري خوشحاله شو.

مینا وویل داکوم کار دی؟ما ورته وویل زه او ته به یو منګی په لاس کې واخلو او مات به یې کړو چې له دې امله به مېړه او ښځه شو، که څه هم دلته کاهن نشته چې زما او ستا نوم د معبد په کتاب کې ولیکي خو د مصر د دودونو پر بنسټ کله چې یوه ښځه له یوه سړي سره د واده په نیت یو ځای منګی ماتوي نو مېړه او ښځه کېږي.

مینا وخندل او ویې ویل ښه ده اوس یو منګی راوړه چې مات یې کړو.

زه له کوټې راووتم چې خپل مریی چې فکر مې کاوه ویده دی را پورته کړم او هغه ته ووایم چې یو منګی راوړه خو ومې لیدل چې کاپتا د کوټې د دروازې تر شا ناست دی او ژاړي

کاپتا وویل زما باداره! زه له دې امله ژاړم چې نری زړه لرم او کله چې مې واورېدل دغه ډنګره نجلۍ له تا سره غږېږي او ته ځواب ورکوې ما وژړل

زه په قهر شوم او یوه لغته مې ورکړه ومې ویل کاپتا! تا ټولې هغه خبرې واورېدې چې

په دې کو ته کې وویل شوې ؟کاپتا وویل که ما نه وای اوریدلې نورو اوریدلې. ومې ویل څه ډول نورو زمور خبرې اورېدلې؟

کاپتا وویل نن شپه ځینې کسان دلته راغلي چې مینا یې څارله او جاسوسي یې کوله، ځکه چې مینا په دې مشهوره ده چې باید د خدای کور ته ننوځي نو اوس تر څارنې لاندې ده چې ونه تښتي.

زه پوه شوم چې که ستاسې د کوټې د دروازې تر شا نه یم نو هغوی به دلته کېني او هغه خبرې به واوري چې په هغوی پورې اړوندې نه دي. نو ځکه زه دلته کېناستم چې نور مزاحمت ونه کړي.

کله چې دلته کېناستم له دې پرته چې ستاسې د خبرو د اورېدو نیت ولرم هغه مې واورېدې ، خو څرنګه چې خبرې د ماشومتوب او ربښتینې وې، نو ژړا راغله او ما خو درته وویل چې زړه مې نرۍ دی ډېره ژر ژړا راځي.

نور په کاپتا په قهر نه شوم او مې ویل له دې کبله چې اوریدلي دي چې مور څه ویلي نو ولاړ شه یو منګی راوړه.کاپتا وغوښتل وخت ضایع کړي ویې ویل څه ډول منګی غواړې ستر وي که کوشنی ؟ رنګین وي که ساده؟ ومې ویل ته پوهېږې چې هر ډول منګی ددې کار لپاره ښه وي. په دې شرط چې ژر ولاړ شې او منګی راوړې ګنې په لکړې به دې تللو ته مجبور کړم.

کاپتا وویل ما کولای شول چې سمدستي منګی راوړم خو له دې لامله مې ځنډ وکړ چې ته د فکر کولو لپاره فرصت پیدا کړې.

ځکه له یوې ښځې سره د منګي ماتول ډېر مهم کار دی او باید له غور او فکر وروسته وشي.

خو ته چې ډېر ټینګار کوې چې له دې ښځې سره به منګی ماتوې، زه به ولاړ شم او منګی به راوړم ځکه چې ستا له امره سر غړونه نه شم کولای.

کاپتا ولاړ ، یو منګی یې راوړ چې د کبانو بوی ترې لتېده او داسې ښکارېده چې کبان پکې اچول شوي وي.

منګی یې زما په مخکې کېښود او ما او مینا منګی له دواړو لاستیو ونیو ،پورته مو کړ، په ګډه مو پر ځمکه وواهه او منګی مات شو .

له دې وروسته چې منګی مات شو کاپتا پر ځمکه کېناست او د مینا پښه یې پر خپل

سر کېښوده او ویې ویل، له دې ورو سته ته زما خاونده یې، زما د بادار په شان پر ما امر کولای شې او ښایي تر سینوهه ډېر امرونه راباندې وکړې.

خو هیله کوم د غوسې پر وخت اېشېدلې او بهرا ونه شیندې او د ټېټو کوریو بوتان پر پښو کړې چې کله ما پرې وهې نو سر مې مات نه شي او یا ونه پرسېږي.

زه به هروخت هماغه ډول چې له سینوهه سره وفادار یم له تا سره هم وفادار یم.

زه نه پوهېږم له دې سره سره چې ډنګره یې ولې له تا سره مې دلچسپي پیدا شوې او حیران په دې یم چې ولې مې بادار ته خپله خور کړې، ځکه چې که زه د بادار پر ځای وای هېڅکله مې داسې ډنګره ښځه نه کوله.

خو فکر کوم کله چې ما شومان راوړې چاغه به شې او زه در سره ژمنه کوم. همغه ډول چې له خپل بادار څخه لره غلا کوم له تا به هم لره غلا وکړم.

کاپتا چې کله خبرې کولې داسې اغېزمن شو چې ویې ژړل، مینا د هغه پر مخ او غاړې لاس تېر کړ او ویې ویل مه ژاړه.

ما کاپتا ته وویل چې د منګي مات کودوړي بهر یوسي او ولاړ شي.

په دې شپه هم زه او مینا د نورو شپو په شان د یو بل تر څنګ ویده شو. خو ما ونه غوښتل داسې استفاده ترې وکړم، چې یو ورور یې له خپلې خور څخه کوي، ځکه پوهیدم چې مینا به ترې خوند وانه خلي او

ما هم له یو اړخیز خونده کرکه کوله.

پر بله ورځ مینا د تېرې ورځې غوندې د غوایانو په مخکې ونځېده او له کومې ناسمې پېښې سره مخامخ نه شوه خو یو ځوان هلک چې د نځېدا په حال کې یې د غوایي پر سر ورټوپ کړ چې د ځاروي پر ښکرونو شا کېښي، ترې ولوېد او غوایي په خپلو ښکرنو وواژه.

کله چې نندارچیانو دغه پېښه ولیده پاڅېدل او نارې یې کړې، زه پوه شوم چې هغوی د خپګان نه بلکې د خوشحالۍ نارې وهې.

غویي یې له هغه ځوانه لېرې کړ. بیا خلک د مړي پر شا وخوا راټول شول او ښځو د ځوان په وینو خپل لاسونه سره کړل.

ما اوریدل چې پخپلو کې یې سره ویل څو مره ښکلې ننداره وه. نارینه وو به ویل چې ډېره موده وشوه د نن په شان ننداره مو نه وه کتلې. بیا نارینه او ښځې خپلو کورنو ته ولاړل.

پر دغې شپې د بندر او ښار څراغونه تر نورو شپو ډېر روښانه ول، ځکه چې ښځې او مېړونه له یو بله لېرې له نورو سره په ساعت تېریو بوخت ول او په کرت کې دغه ډول ساعت تېري او تفریح روا ګڼل کېده. دغه تفریح یوازې د هغې ورځې د غوایانو د لوبې او د ځوان د وژل کېدا له امله نه وه، بلکې له دې کبله وه چې ټول نارینه او ښځې پوهېدل چې نن شپه یوه پېغله د خدای کور ته ورځي.

ما د نورو پر خلاف پر دې شپه ساعت تېری او تفریح نه شو کولای ځکه چې پوهېدم مینا پر دغې شپه په زرینې ګاډۍ کې سپرېږي او د خدای کور ته ورځي.

ملګري به یې پر روان تخت سپاره او یا پلي په هغې پسې روان وي او پر لاره به مستي او خوشحالي کوي.

له دې کبله چې زه پوهېدم چې باید د مینا له شا باید په هغې پسې ولاړ شم نو د هماغې ورځې له سهاره مې یو روان تخت کرایه کړی و.

کاپتا هم له دې امله چې له مینا سره یې علاقه درلوده وویل زه هم له تا سره ځم.

د ښار او د خدای د کور پر لاره له ما پرته ټول خوشحاله ول، زه ځکه خپه وم چې پوهېدم نوره به مینا ونه ګورم.

کله چې د خدای کور ته ورسېدو ټول غلي شول او زه ځیر شوم چې د سپوږمۍ په رڼا کې د خدای کور وګورم چې څه ډول دی.

ما د خدای په کور کې دهغه له دروازو پرته بل څه نه لیدل.

د برنزو دوه سترې او درنې دروازې یوه په بل پسې ولاړې وې.

تر دې وړاندې چې دروازې خلاصې کړي مینا یې د خدای کور ته نژدې یوه معبد ته بوتله او نورو راته وویل چې دغه معبد د خدای د کور د ساتونکو استوګنځای دی.

کله چې مینا کوټې ته ننوته نو جامې یې اغوستې وې، خو شیبه وروسته چې له هغه معبده راوته نو ګورم چې لوڅه ده جامې نه لري، خو د سر وېښتان یې د جالۍ په شان په یو سپین ټوکر کې تاو کړي ول.

مینا له لیرې ماته موسکۍ شوه خوزه پوه شوم چې دغه موسکا یې له جبره او زما د ډاډګېرنې لپاره ده. ګني مینا دومره خوشحاله نه و چې موسکۍ دې شي.

بله خبره دا چې له معبده د مینا تر راوتلو وروسته مې ولیدل، ستر کاهن چې د غوایي سر یې اغوستی او چاړه یې تر ملا تړلې وه، د مینا په څنګ کې روان دی.

د خلکو په خاموشۍ کې مینا او ستر کاهن د خدای د کور د روازې ته ورسېدل. د معبد ساتونکو هغه دروازه چې باید شلو کسانو خلاصه او پورې کړې وای خلاصه کړه او بیا یې دویمه دروازه هم خلاصه کړه.

هلته یوه ساتونکي یو روښانه مشال مینا ته ورکړ بیا مینا او ستر کاهن یوه اوږده دالان ته ننوتل او ساتونکو دواړه دروازې بندې کړې.

ددې منظرې کتلو او دخدای په کور کې د مینا ورک کېدلو دومره غمجن کړم چې پر پښو نه شوای درېدلای.

پر هغو وښو مې ګونډه ووهله چې د خدای د کور په مخکې شنه شوي ول، مخ مې پر وښو کېښود او له دې سره سره چې مینا راسره ژمنه کړې وه چې که د خدای له کوره راستنه شوه له ما سره به ژوند کوي خو زه پوهېدم چې هېڅکله به یې ونه ګورم.

تر هغې شېبې چې مینا په هغه کور کې ورکه شوې نه وه هیله مې وه چې وبه یې ګورم، خو کله چې مې ولیدل. برونزي دروازې ورپسې تړل شوې دي، نو پوه شوم چې باید ددې پیغلې د بیا لیدو هیله ونه کړم.

کاپتا زما په څنګ کې پر وښو ناست و او زګروېده، ځکه چې هغه هم احساس کاوه چې نور به مینا ونه ویني.

خو د مینا ملګرې چې له هغې سره راغلې وې، تر هغه وخته غلې وې چې کله د خدای د کور دروازه بنده شوه.

دوی د هغو کسانو په شان چې ناڅاپه لېوني شوي وي مشالونه ولګول، منګي یې خلاص کړل او د شرابو پر څښلو یې پیل وکړ.

کله چې ټول نشه شول نارینه او ښځې، د سپوږمۍ په رڼا کې نځېدل او په دې نه شرمېدل چې د بدن لوڅ غړي یې چې بل څوک یې باید ونه ګوري نارینه او ښځوته ښکارېدل.

کله چې کاپتا ولیدل ټول نشه دي، دی هم ولاړ او یوه شېبه وروسته له یوه منګي شرابو سره راستون شو.

زه پوهېدم چې هغه دغه شراب له روان تخته راوړي دي ځکه چې موږ له ښاره روانېدو نو راته وویل شول چې د خدای په کور کې د خوړلو او څښلو لپاره څه شی نشته، موږ باید له ښاره خپل خوراک او څښاک یوسو.

کاپتا په ښار کې څو منګي شراب او یوه اندازه خواړه اخیستي او په روان تخت کې یې اینښي ول.

کله چې یې منګي راوړ ماته یې وویل سینوهه! اوس زه هم ستا په اندازه خپه یم، ځکه چې ستا په شان احساس لرم چې نوره به دغه نجلۍ ونه ګورو، خوله دې کبله چې زه او ته دهغې د کتو لپاره کوم کار نه شو کولای نو غوره دا ده چې دواړه شراب وڅښو او خپل غم غلط کړو.

خو ما نه شوای څښلی او د هغو ښځو او نارینه وو په شان لېونتوب نه شم کولای چې خوشحالي او نڅا وکړم.

د کاپتا مخه مې هم ونه نیوله ځکه چې لږ شراب و هغه ته ګټه درلوده او هغه بوډا ورسره قوي کېږي.

مشالونه روښانه ول او سپوږمۍ ځلېده.

نارینه او ښځې بې له دې چې له چا و شرمېږي له مشالونو لېرې کېدل او لږ لېرې یې له یو بل سره د خوراو ورور په شان چلند کاوه.

ناڅاپه کاپتا وویل سینوهه!.. له دې کبله چې ما لاډېر شراب نه دي څښلي سترګې مې تېروتنه نه کوي او ویلای شم چې د شرابو له امله خیالی شیان نه ګورم.

ما وویل کاپتا ته څه وایې؟

زما مریي وویل غواړم دا درته ووایم هغه سړی چې توره یې تر ملا وه او د غوایي سر یې اغوستی. له سره یې دوه ښکران را وتلي ول، له مینا سره یو ځای د خدای کور ته ننوت خو له دې پرته چې د خدای د کور دروازه خلاصه شي له هغه ځایه راوتلی دی چې دغه خبره فکر کولو ته اړتیا لري.

ما شاو خوا وکتل او ستر کاهن مې ولید چې د نورو په شان ګډېږي له کاپتا مې وپوښتل ته ډاډه یې چې هغه د خدای د کور له دروازې بهر شو. کاپتا وویل: کله چې تا سر په ځمکه اینښی و او زګروېدې، ژړل دې، ما یوه شېبه د خدای د کور له دروازې سترګې نه دي بېرته کړي. زه په دې تمه وم چې مینا به له دغو دروازو راووځي، خو ناڅاپه مې ولیدل چې د دغه کس زېړ ښکر د مشالونو په رڼا کې ځلېږي.

د خدای د کور دروازه نه ده خلاصه شوې نو له ځان سره مې وویل حتماً د خدای کور له دې دروازو پرته چې موږ یې ګورو بله لاره هم لري چې دغه سړی ترې روانتی دی.

زه ولاړ شوم او د ستر کاهن پر لوري ولاړم، د هغه لاس مې ونیوه او ورته مې وویل مینا چېرې ده؟

ستر کاهن پر دې خبره داسې غوسه شو چې له خپل سر او مخه یې د غوا سر لرې کړ ویې ویل، په دې وخت چې موږ په تفریح او ساعت تېرې بوخت یو، که ته د کرت یو او سېدونکی وای او له ما دې دغه پوښتنه کړې وای او مزاحمت دې کړی وای نو ما به امر کړی و. چې له لویو ډبرو دې د اختاپوټ خولې ته واچوي.

خو له دې کبله چې ته یو بهرنی یې او د دې ځای له رواجونو خبر نه یې ستا له سزا تېرېږم.

ما ورته وویل مینا چېرته ده ځواب راکړه، هغه دې چېرته بوتله؟

ستر کاهن وویل ما مینا د خدای کورته د ننه کړه او هغه مې د هغه کور په تیارې کې پرېښوده او بېرته راستون شوم.

اوس دلته ګډا او خوشحالي کوم، خو ستا یې په مینا څه؟ او ولې د هغې پوښتنه کوې، ځکه چې ما دلته د مینا د راوستلو له امله ستا زیار جبران کړی و او تا ته مې مېلمستون ته ډالۍ درلېږلې وې.

ومې ویل اې ستره کاهنه! ته ولې دخدای له کوره راووتې خو مینا له هغه ځایه راونه وته، مینا هم له هغې لارې چې ته ترې راوتلی یې بهرته راتلای شوه؟

ستر کاهن وویل اې مصریه! ته ډېرې خبرې کوې او په هغو کارونو کې ګوتې وهې چې په تاپورې اړه نه لري.

د وروستې ځل لپاره درته وایم چې له دې پوښتنو ګروېږنو تېر شه ګنې اختاپوت ته به دې واچوم.

زه سخت غوسه شوم او ومې ویل دغه کار په ماپورې اړه لري او زه باید پوه شم چې مینا چیرته ده. څنګه له تالېرې شوه او هغه دې چیرته خوشې کړه چې ته ترې راستون شوې.

خو په دې وخت کې کاپتا زما لاس ونیو او له ستر کاهنه یې لېرې کړم، ویې ویل اې زما غمجمنه باداره! ته لیونی شوی یې چې له دغه ښکرور سړي سره د ټولو سړیو او ښځو پر وړاندې جنګ کوې او د ټولو پام ځانته را اړوې.

بیا یې زما په غوږ کې وویل ته هم د دوی په شان ونځېږه او خوشحالي وکړه.

د دې لپاره چې ستر کاهن غلط شي د نورو په شان د خلکو دې ټولي ته ننوځه او داسې کار وکړه چې نور ګمان وکړي ته په رښتیا خوشحاله یې.

ماورته وویل زه دغه کار نه کوم او په دروغو ځان خوشحاله نه ښییم.

زه نه غواړم د چا نظر هم راجلب کړم ،بلکې که دغه سړی راته ونه وایی چې مینا چیرته ده او څه ډول هغې ته رسېدای شم زه به یې د هغې او سپینیزې چړې پر یوه ګوزار مړ کړم چې په هاتي کې مې ترلاسه کړې ده. دغه چاړه دومره تېره ده چې کله د چا خېټې ته ننوځي تر قبضې پورې ننوځي.

کاپتا راته وویل غلی شه.... غلی شه.... راځه چې ولاړ شو او لږ شراب وڅکو.

ځکه چې ستا سترګې په دې شپه کې لکه د کونګ غوندې ځلېږي او باید شراب وڅښې چې غوسه دې سړه شي.

که ته موافقه وکړې چې لږ وڅښې زه به درته ووایم چې له کومې لارې مینا ته رسېدای شې.

ځکه چې د دغه ښکرور سړي د وتلو لاره مې پیدا کړې ده.

کاپتا زه د نخېدونکو ښځو او سړیو له ټولي لېرې کړم او پر ځمکه یې پر وښو کېنولم.

لږ شراب یې راباندې وڅښل او ما احساس وکړ چې نور وېښ نه شم پاتې کېدای باید ویده شم. ځکه چې دغه خوب عادي نه و ، او پوه شوم چې زما مریي زما په شرابو کې تریاک اچولي ول او د بابل د پېښې غچ یې راڅخه اخیستی دی.

خو که په دې شپه کاپتا زما په شرابو کې اپیم نه وای اچولي او پر ما یې نه وای خوړلي ما به ستر کاهن وژلی و ، د کرت او سېدونکو به اختاپوت ته اچولی وم او یا به یې په بل ډول وژلی وم خو په دې شپه کاپتا زما ژوند وژغوره .

کله چې را وېښ شوم ګورم چې ورځ شوې ده .لمر راختلی دی او زه پر وښو پروت یم.

سر مې راپورته کړ شاوخوا مې وکتل ،و مې لیدل چې نارینه او ښځې لوڅ لغړ پر وښو ویده شوي ځکه چې تېره شپه تر سهاره د شرابو په څښلو او ګډېدا اخته ول او ستوماني له پښو غورځولي ول.

له دې وروسته چې لمر راوخوت تودوخې یې نارینه او ښځې له خوبه پاڅول.

ښځو خپلې زلفې منظمې کړې او ټولې د سمندر پر لوري ولاړې چې ځانونه ووینځي.

خو له دې کبله چې دوی پخپلو کورونو کې په ګرمو اوبو د ځان وینځلو عادت درلود نو

چې د سمندر او بو ته به یې پښې نژدې کړې بېرته به ستنېدې او په سرو او بو یې ځانونه نه شواى وينځلاى.

له دې وروسته چې ښځو د يو بل په مرسته ځانونه سينګار کړل او منظمې شوې پوښتنه يې وکړه چې څوک د مينا په تمه پاتې کېږي او څوک ښار ته ستنېږي؟

ځينو ښځو وويل ښار ته ستنېږو او روانې شوې خو يوې ډلې چې د ميناهمزولې او ځوانې وې وويل مونږ به په تمه پاتې شو چې هغه را ستنه شي.

هره پېغله چې به په تمه پاتې شوه ويل به يې کوم سړى چمتو دى چې ايسار شي؟او يو سړى به پخپله خوښه ورسره پاتې شو. چې هغه ښځه تنها نه وي.

زه په سر کې پوه نه شوم چې ولې هره ښځه د پاتې کېدا لپاره يوه نارينه ته بلنه ورکوي. خو وروسته متوجه شوم چې کله ښځې په نارينه ووکې يو د پاتې کېدا لپاره ونه بولي ټول نارينه به ښار ته ستانه شي او ښځې به يوازې پاتې شي.

په هغو هېوادونو کې چې تر هغه وخته ما ليدلي ول يوازې کرت داسې و، چې ښځو به ددې لپاره چې نارينه د ځان پر لوري جذب کړي له دغې لارې کار اخيست.

د غوايانو د لوبو په ډګر کې هم متوجه شوم چې نارينه او ښځې له دې سره سره چې لوڅ د غوايانو په مخکې ګډېږي خو خلکو به ورته دومره توجه نه کوله او د هغوى هيجان به ډېر د لوبې له امله و.

له دې سره سره چې ښکلې پيغلې او ځوانان به د کټلو وړ ول، خو د نورو هېوادونو په شان نه ول . علت يې هم دا و، چې په کرت کې نارينه او ښځې له يو بل سره په ټمولاستو کې ازاد دي.

ستر کاهن په هغو کسانو کې شامل و چې بايد ښار ته تللى واى، ما ترې پوښتنه وکړه چې ايا زه دا اجازه لرم چې دلته پاتې شم. تر هغه چې مينا د خداى له کوره راستنه شي.

ستر کاهن وويل هېڅوک دلته ستا د پاتې کېدا مخه نه نيسي خو ته بې ځايه ايسارېږې. ځکه تر اوسه داسې نه دي شوي، چې څوک د خداى کورته ولاړ شي او له هغه ځايه بېرته راستانه شوي وي.

ما ځان کمه عقله وښود او مې ويل اې ستره کاهنه! زه د مينا له ستنېدا سره دلچسپي نه لرم او نه غواړم چې هغه وګورم. بلکې دا يوه پلمه ده، ځکه زه ددې لپاره دلته پاتې کېږم چې له دغو بېساري ښايسته ښځو سره مستي وکړم. ځکه چې دا د کرت ځمکه او اسمان

دی چې دغه ډول ښځې رامنځته کولی شي.
بله خبره دا چې که مې ښځګا تاته سپکاوی کړی وي ښښنه غواړم، ځکه چې ښځګا نشه وم او نه پوهېدم چې څه وایم او څه کوم. یا له چاسره خبرې کوم، خو اوس چې په هوش کې یم پوهېږم چې ښځګانی کار مې ډېر ناسم او ناخوښ و.
دغو خبرو پر لوی کاهن اغېز وکړ او خپل لاس یې زما پر سر کېښود، موسکی شو او ویې ویل ډېر ښه.
اوس چې ته غواړې له ښځو سره ساعت تېر کړې همدلته پاتې شه او زه به دې مخه ونه نیسم خو پام کوه چې زموږ ښځې بارداره نه شي، ځکه چې ته یو بهرنی یې او ښه نه ده چې زموږ ښځې بلاربې کړې اوس نو دومره انتظار وباسه چې مینا راستنه شي.
ومې ویل اې ستره کاهنه! زه دښځو په اړه بې تجربې نه یم، ددې لپاره چې په بابل او سوریې کې مې لیدلي چې باکرې نجونې ددې لپاره چې جیز برابر کړي څه ډول معبد ته ځي؟
ما د ساده ګانو غوندې خبرې کولې چې لوي کاهن فکر وکړي، زه ډېر کم عقله او احمق یم زما هدف هم همدا و او غوښتل مې چې هغه ما ساده سړی وبولي چې ما له هغه ځایه لېرې نه کړي.
له دې سره سره چې ستر کاهن ښار ته ستون شو خو ما داسې احساس وکړ چې د معبد ساتونکو ته یې ویلي چې ما تر نظر لاندې وساتي.
زه داسې فکر کوم چې ښځو ته یې هم اشاره وکړه چې له ما سره تفریح او ساعت تېري وکړي، ځکه چې کله کاهن ولاړ ځینې ښځې پر ما را چاپېره شولې او ماته یې وویل چې له دې ځایه لیرې شو د بوټو منځ او ځنګل ته لاړ شو او هلته وخورو او وڅښو.
ما د هغوی بلنه ومنله او د ځنګل منځ ته ولاړو، هلته پوه شوم چې د کرت ښځې څومره سپین سترګې او بې شرمه دي. ځکه له ما یې هېڅ حیا نه کېده، داسې کارونه یې کول چې په طبس کې د عمومي ځایونو ښځو هم دغه کارونه په ډاګه نه کول.
په داسې حال کې چې زه پوهېدم دغه ښځې چې زه یې دغه ځنګل ته راوستی یم د کرت خانداني او وتلې ښځې دي.
کله چې ښځو ډېر په تکلیف کړم او ما نیت نه درلود چې له هغوی سره تفریح وکړم ځان مې نشه واچاوه او ځان مې په خوب وینو.

ښځو په کرکې سره زه خوشې کړم او ویې ویل. دغه بهرني وحشي ځناور دی او ګني زموږ په اړه یې دومره بې پروایي نه کوله.

کاپتا راغی او زه یې له ځنګله را وایستم او ویې ویل چې د شرابو زغم نه لرې ولې ډېر څښې چې له پښو دې وغورځوي.

کله چې ښځو زما مریی او د هغه غټه خېټه ولیده تو کې او خندا ګانې یې پیل کړې او هغه ته نژدې شوې.

له دې سره سره چې زما مریی ډېر بدرنګه او په یوه سترګه ړوند و خو له دې کبله چې بهرني و، نو د ښځو د کنجکاوۍ حس یې تحریک کړ، ځکه په ټولو هېوادونو کې کله چې یو بهرنی ګوري نو خلک لټه کوي چې هغه وپېژني.

ښځو زما مریی ځنګل ته بوت.

زه چې پوهېدم ممکنه ده. دلته د ډېرې مودې لپاره ایسار شم نو د خپل روان تخت مزدوران مې ښار ته ولېږل چې ډوډۍ او شراب راوړي، په تېره بیا شراب دې ډېر راوړي چې هم یې په خپله وڅښي او هم موږ ترې استفاده وکړو.

په دغې ورځ هلته د موجودو کسانو وخت په خوراک، څښاک او ساعت تېرۍ تېر شو او زه متوجه شوم چې له ښځو سره له ځملاستو هم ستړي شوي دي، ځکه کله چې تفریح د قوانینو په چوکاټ کې نه وي له کار او ژونده زیات سړی ستومانه او ستړی کوي.

بلـه شپه نارینه او ښځو پـه نڅـا او سندرو ویلو تېره کړه او مـا تـر سهاره د هغوی د خندا ګانو او نارو غږونه اوریدل.

کله چې ورځ شوه ټول له ډېرې ستومانۍ څخه ویده شول او کله چې را ویښ شول ځینې یې ښار ته ستانه شول. یوازې هغه کسان پاتې شول چې لا پر تفریح نه و ماړه شوي.

خو دغه کسان هم په دریمه ورځ ښار ته ستانه شول او ځینې پکې له ډېرو شرابو او چټیاتو او بېخوبۍ له امله پر لارې نه شو تللای ما خپل روان تخت هغوی ته پرېښود چې ښار ته یې بوځي او د خپل روان تخت لېږدونکي مې هم رخصت کړل، ورته ومې ویل، روان تخت ته اړتیا نه لرم.

له دویمې ورځې وروسته چې زما د روان تخت لېږدونکو شراب او خواړه ډېر راوړي ول ما په شوارووز کې دوه ځله د معبد ساتونکو ته ډوډۍ ورکوله چې ملګري یې کړم.

پر دریمه ورځ چې ټول ولاړل ساتونکي هلته زما پر ایسارېدو حیران شول.

دوی له دې کبله حیران ول چې ټول پوهېږي یوه نجلۍ هم تراوسه پورې د خدای له کور
ه نه ده راستنه شوې.

هغوی پوهېدل چې د کرت ټول او سېدونکي له دې خبرې خبر دي، نو د هغې نجلۍ په
تمه نه پاتې کېږي چې د خدای کور ته ننوتې وي، دوی ټول بېرته ښار ته ستنېږي خو له دې
کبله چې زه یو بهرنی وم تصور یې کاوه چې د هغوی له دودونو او رواجونو بې خبره یم. له
همدې امله د نورو تر ټګه وروسته زه هلته پاتې شوم.

# ځلرويشتم څپرکی

## له خپل مريي سره مرموز کور ته ننوتم

کله چې شپه شوه د شرابو دوه ستر منګي چې اپيم مې پکې حل کړي و، له ځان سره معبد ته يوړل او کله چې ساتونکو د شرابو منګي وليدل خوشحاله او پرې راټول شول.
دوی د شرابو ځنبل پيل کړل، زه له معبده ليرې شوم او کاپتا مې څنګ ته کړ او ورته مې وويل خدايانو غوښتي دي چې زه او ته له يوه بله بېل شو ځکه چې مينا د خدای له کوره راستنه شوې نه ده، بايد زه ولاړ شم، هغه پيدا کړم او دخدای له کوره يې راستنه کړم.
له دې کبله چې د خدای له کوره تر اوسه پورې څوک نه دي راستانه شوي، نو زه هم چې دخدای له کوره د مينا د را وستو لپاره ځم که بېرته را ستون نه شوم ته ښارته ولاړ شه او زما د نه شتون لپاره چې کومه پلمه کولای شې پيدا يې کړه.
زه پوهېږم ته د پلمو په لټولوا و د دروا غو په ويلو کې د هر استاد يې او خلک قانع کولای شې، مثلاً ووايه چې زه له غره د اختاپوت خولې ته ولوېدم او ويې خوړم او يا ووايه چې په سمندر کې ډوب شوم او اوبو زما جنازه يوړه.
دغسې نورې پلمې هم شته چې ته يې کولای شې او ما ستا لپاره د متې خاورې يوه لوحه ليکلې ده او په خپل مهر سره مې مهر کړې ده. کله چې ازمير ته ورسېدې له سوداګرو زما سره او سپين اخيستلای شې او يا هغه په خپل نوم وکاروه.
ته دا واک هم لرې چې په ازمير کې زما کور خرڅ کړې او له تر لاسه شويو سرو او سپينو سره مصر ته ستون شه.
که پوهېږې چې مصرته د ستنېدا له امله دې په دې تور نيسي چې تښتېدلی مريی يې نو په ازمير کې پاتې شه او زما د سرو او سپينو په ګټه چې له ما څخه تاته رسېږي ارام ژوندو کړه.
ته زما د جنازې د موميايي کولو غم هم مه کوه، ځکه که مينا مې پيدا نه کړای شوه په لوديزې نړۍ کې ژوند راته اهميت نه لري چې جنازه مې موميايي او پاتې شي.

کاپتا له دې سره سره چې تا ډېرې خبرې کولې او يو سپين سترګی سړی يې خو پر ما ګران يې او که کله مې په لکړه سزا درکړې او وهلی مې يې د خير لپاره و، ګټه يې تا ته رسېدلې، ما غوښتل ته باادبه شې، خو بيا له دې امله خواشينی يم چې په لکړه مې پر ملا او اوږو وهلی يې.

کاپتا لږ غلی شو او ويې ويل: زما باداره ! له دې سره سره چې ستا د لکړو ګوزارونه کله کله ډېر درانه او سخت ول خو له تا سره کينه نه لرم، ځکه همغه ډول چې تا وويل د خير او زما د ښېګڼې لپاره ما وهې. ما به کتل چې زه دې وهلم خو ديوه ملګري په شان دې راسره چلند کاوه او پخپلو کارونو کې زما له نظريو استفاده کوې.

په دې ډول چې ډېر ځله به مې دا احساس نه کاوه چې ستا مريی يم، بلکې ته مې خپل ملګری بللې.

زه به هغه وخت پوهېدم چې ستا مريی يم چې ستا د لکړې ګوزار به مې وخوړ.

زه ستا مريی يم او خدايانو د مريي او بادار ترمنځ توپير پيدا کړی. اوس ګورم چې د خدای له کوره د مينا د راوستو نيت لرې او غواړې د خدای کور ته ولاړ شې، خو دغه مينا چې ته يې په لټون پسې ځې، زما آغلې هم ده او خپله پښه يې زما په سر ايښې وه.

زه هم بايد ستا په شان د هغې لټون وکړم او که مينا زما باداره نه وای او ما حتی د هغې د پيدا کولو دنده هم نه درلودای بيا مې هم دا اجازه نه درکوله چې ته يوازې دې کور ته ننوځې، ځکه دخدای کور ډېر تياره دی.

په هغه تياره ځای کې ته يوه نژدې ملګري او زړه سواند مريي ته اړتيا لرې.

ماوويل کاپتا لومړی ځل دی چې زه ګورم له ژړا او زاريو پرته خبرې کوې او ستا خبرې هم راته دهوښيارانو غوندې ښکاري.

بايد زه يوازې دخدای کور ته ولاړ نه شم، ځکه هلته به په تيارو کې لاره ورکه کړم.

خو له دې کبله چې ډېر باور لرم دخدای له کوره به ژوندی ستون نه شم غوره داده چې يو کس وو ژل شي نه دوه.

کاپتا وويل سينوهه ! که تا ما وشړې بيا هم زه له تا سره ځم او اجازه نه درکوم چې يوازې د خدای کور ته ولاړ شې.

هرڅه چې وي زه بوډا يم او تر تا مې تجربه ډېره ده نو په داسې شيانو پوهېږم چې که څه هم تا په دارالحيات کې تحصيل کړی خو بيا هم په هغو شيانو نه پوهېږې.

خو په دې هم پوه شه چې زه له تياري ډاريږم او پر مشال سربېره اجازه راکړه چې يو منګې شراب هم له ځان سره د خداى کور ته يوسم چې کله وډار شم لږ به وڅښم ومې ويل ډېر ښه.

کاپتا ! هرڅه چې غواړې ويې کړه او له دې کبله چې ساتونکو ته په ورکړل شويو شرابو کې مې اپيم اچولي دي، اوس يې اغيز جوت دی ، هغوی ويده شوي نو غوره ده چې ځنډ ونه کړو او د خدای کور ته ننوځو.

کله چې معبد ته ننوتو ومې ليدل چې ټول ساتونکي ويده شوي ، موږ لږ سکروټې او څو مشالونه واخيستل او د خدای د کور د کوچنۍ دروازې کيلي (کونجي) مو هم واخيسته ،ځکه چې کاپتا پوهېده د خدای کور کوچنۍ دروازه هم لري

ده ليدلي ول چې دې کورته د مينا د ننوتو پر شپه ستر کاهن له دې دروازې وتلی و کونجي مو واخيسته، روان شو او بيا مې کوچنۍ دروازه پرانستله ،دخدای کورته ننوتو ما دورازه بنده کړه خو کيلي (کونجي )راسره وه.

کله چې دروازه بنده شوه کاپتا له ډاره رېږدېده او ويې ويل باداره ژر مشال روښانه کړه، ځکه چې دلته دومره تياره ده چې انسان پکې له ډاره رېږدي.

ما له ځان سره سکروټه وړې وه، هغې ته مې ورپو کړل او مشال مې روښانه کړ.

کله چې مې مشال روښانه کړنو ومو ليدل چې په يوه لوی دالان کې يو چې لس لارې ترې بېلې شوې دي او بېلا بېلو خواوو ته تللې دي.

ماچې دغه دالانونه وليدل نو حيران نه شوم ځکه اورېدلي مې ول، چې د کرت ټاپو خدای په داسې کور کې ژوند کوي چې ډېرې لارې لري او د(لبيرنټ )په شان دي *(لبيرنټ په مجازي معنې کې هغه تل خونه وي چې سړی څومره پکې وړاندې ځي نو له نويو څلور لاروسره مخامېږي چې بالاخره سړی پکې ورکېږي د انسان د غوږ په داخلي برخه کې هم يو ځای دی چې لبيرنټ يې بولي ځکه چې تاو راتاو دی ژباړن)*

ما کاپتاته وويل بايد دلته ايسار نه شو او حرکت وکړو، زه خو وايم چې پر دغې لارې ولاړ شو.

کاپتا دالان ته ځير شو او ويې ويل په دې دالان کې تګ سخت نه دی خو بايد داسې کار وکړو چې وکړای شو بيرته ستانه شو.

ومې کتل چې د سترې کڅوړې له منځه يې چې پر اوږه يې وه او د شرابو منګی يې

پکې ایښې و، یوه کلاوه کلک تار را وایست او یو سر یې په هغه لرګي پورې غوټه کړ چې په دېوال کې لګېدلی و. ما وویل کاپتا په دې تار څه کوې؟

کاپتا وویل دغه تار زموږ د راستنېدا لپاره پکارېږي، ځکه چې که هغه تعقیب کړو بېرته همدې ځای ته راستنېدای شو.

که څه هم د بېرته ستنېدا لپاره د کاپتا وسیله ډېر ساده وه، خو ما په یوازې سر هغه هم نه شوای ترلاسه کولای او ومې ویل کاپتا! تادېر ښه فکر وکړ. وروسته روان شوو، چې څومره وړاندې تلو کاپتا د تار کلاوه خلاصوله، بیا له هر دهلېزه وروسته یو نوي دالان ته رسېدو او کله چې به مو کږ کړ بل دالان ته رسېدو یو وخت کاپتا سر او چت کړ او فضایې بوی کړه ویې ویل سینوهه! دغه بوی احساسوې؟

ما هم فضا بوی کړه او د طبس په ښار کې د مړیو د کور په شان و، چې هلته مړي مومیایي کوي.

کاپتا چې رنګ یې له ډاره تت شوی و، یو غړپ شراب وڅښل او زما په اشارې سره بیرته روان شو.

ناڅاپه مو پښه پر یوه شي ولګېده او تېټ شوم ګورم چې د یوې ښځې سر دی خو سر د وخت په تېرېدا سره بوی کاوه او د ورستېدا په حال کې دی.

کله چې کاپتا دغه سر ولید ویې ژړل، ځکه زه او هغه پوه شوو چې مینا هم له همدې برخلیک سره مخامخ شوې ده او هغه یې وژلې یا به یې ووژني، خو په هر صورت موږ نه شو کولای هغه ژوندۍ ترلاسه کړو.

له دې سره سره چې هیله مې نه کوله چې مینا به ژوندۍ وګورو، خو کاپتا ته مې وویل راځه چې نور هم ولاړ شو.

هغه همغسې د تار کلاوه خلاصوله او موږ مخکې تلو. یو وخت مې وکتل چې کاپتا ودرېد او په حیرانو او ترهیدلو سترګو یې ځمکې ته کتل.

ما هم ځمکې ته وکتل او ومې لیدل چې دغوایې خوشایی پر ځمکه پراته دي، خو دومره لوی دي چې سړی ډاروي.

ما وویل کاپتا ګورې دغه فضله څومره ډېر دي، ایا دا خبره منلی شو چې دومره لوی غویی دې موجود وي؟

کاپتا وویل نه باداره! دغسې غویی نشته ځکه که دومره لوی غویی موجود وای چې

دومره فضله وکړي نو په دغو تنګو لاروکې به خنګه تېرېده؟
ومې ويل ستا په باور دغه فضله د څه ډول حيوان دي؟
کاپتا وويل فکر کوم دا به د يو لوی مار غايطه مواد وي، ځکه چې له سترو مارانو پرته بل حيوان دومره غايطه مودا نه لري.
له دې وروسته زما مريي يو غوړپ شراب وڅښل او ويې ويل خدايان دې موږ وساتي،ددې کار پايله به څه وي؟
خو ما اټکل کاوه چې پايله به څه وي، ځکه کله چې يو لوی مار په دغو غارونو او لارو کې وي، مينا به ژوندی نه وي او ښکلې پېغله د مار خوراک شوې ده.
کله چې لوی کاهن دغه نجلۍ د کرت د خدای کور ته دننه کړه، دې ته په پام سره چې پوهېدم په هره مياشت کې يوه نجلۍ د کرت د خدای کور ته ننباسي، نو فکر مې وکړ چې د ستر کاهن يا بل هغه چا مقصد چې په دې کور کې ژوند کوي دا دی، چې له هغې نجلۍ سره څملي او بيا هغه له منځه يوسي.
خو دوه ټکي داسې ول چې نه يې پرېښودل زما دغه فکر ژور او پياوړی شي.
يو دا چې يوازې يې نجونې د خدای کور ته نه بيولې او ځينې وخت يې هلکان هم ور وستل او که د کرت خدای يوازې د معشوقې او سکس په فکر کې وای نو هلکان به يې نه ورو ستل.
بل ټکی دا چې په کرت کې د نارينه وو او ښځو اړيکي دومره ازاد دي چې ستر کاهن يا د کرت خدای له ځواني نجلۍ سره د څملاستو لپاره اړ نه و، چې هغه تياره کور ته بوځي او بيا يې له منځه يوسي.
له همدې امله مې فکر وکړ چې د خدای کور ته د مينا دننه کول له عشق او سکس پرته بل دليل لري او ستر کاهن نه غواړي له دغو نجونو سره څملي.
هر څومره چې وړاندې تلو هغه بوی چې موږ احساس کړی و، نور هم سختېده او نور نو د زغملو نه و.
داسې ښکارېده چې دانسانانو او حيواناتو سلګونو مړي خراب شوي دي او دغه سخت بوی يې رامنځته کړی دی.
يو وخت هغه لاره چې موږ د مشال په رڼا کې ترې تېرېدو روښانه شوه او ما وکتل چې له بهره ورته رڼا راځي.

ځومره چې ورانديږ تلو لاره روښانه کېده تر هغه د غار بلې خولې ته ورسېدو او سترګې مو پر شنه سمندر ولګېدې، په ساحل کې د سمندر د څپو غږ وا ورېدل شو، ګورم چې د اوبو پر سر د ژیو یو کتار یو په بل پسې تر سترګو کېږي.

موږ ولیدل چې دا ژي د یوه ستر مار د بدن را وتلې برخې دي چې مړ شوی، جسد یې بوین شوی او سر یې تر اوبو لاندې نه لیدل کېږي.

هغه وخت زه او کاپتا پوه شوو چې د کرت د خدای د وژل کېدا اوازه سمه ده او هغه ستر مار ډېره موده کېږي چې مړ شوی دی.

ځکه که ډېره موده نه وای وتلې جسد یې بوی نه کاوه، نو همدا د کرت د خلکو خدای و چې هغه یې د خلکو له نظره پټ ساته او هره میاشت یې یوه باکره پېغله او یا ځوان چې لا له کومې ښځې سره نه وي ځملاستلی دغه تیاره دهلیز ته راولي چې دغه ځناور یې وخوري او هره میاشت یو انسان د دغه مار د خوړولو لپاره کفایت کاوه.

پېغلې او ځوانان په تیارې کې ناڅاپه د مار تر ستوني تېرېدل او تر دې ورانديږ چې پوه شي څه وربانديږ شوي د مار خیټې ته تلل.

له دې کبله چې په وچه کې دغه ډول ځناور ژوند نه شي کولای طبیعي خبره ده چې په سمندر کې یې ژوند کاوه.

دغه مار د اوبو د څپو او یا کوم علت له کبله د کرت د ټاپو ساحل ته راغلی او د کرت خرافاتیانو په دې خیال چې هغه د سمندرونو خدای دی، پر دغه حیوان لارې بنديږ کړې چې تل په کرت کې پاتې شي.

دوی بیا د دغه مار د حرکت لپاره دغه کړې وړې لارې جوړې کړې دي ، هره میاشت به یې یو هلک او یا یوه نجلۍ ورو ستل چې له لوږې مړ نه شي او له خپل ځایه د وتلو فکر ونه کړي.

خو کله چې مار مړ شو مجبوره شول داسې وښيي چې هغه ژوندی دی او همغسې یې یوه نجلۍ او یا هلک دې کور ته را وستل.

خو له دې کبله چې مار مړ شوی او نور ژوندی نه دی چې هغه ځوانان وخوري، نو باید پوه شو چې پر مینا یې څه کړي دي او له دې وروسته چې هغه دې کور ته ننوته هغه چېرته بېول شوې.

زه چې د مینا له پیدا کولو نهیلی شوی وم، هغې ته مې نارې کولې او زما غږونو په

دهلیزونو کې انګازې کولې، تر دې پورې چې کاپتا په ګوته ځمکه راوښوده او وې ویل وګوره! ما پر ځمکه د وینې څاڅکي ولیدل چې وچې شوې دي او دغه څاڅکي د سمندر پر لور غځېدلي و.

کاپتا وویل ګورې دغه وینې د اوبو پر لور تللې نو غوره ده چې ورپسې ورشو.

کله چې د اوبو غاړې ته ورسیدو ما وکتل چې د مینا مړی د سمندر پر غاړه په اوبو کې پروت دی.

اوبه رنې وې، مړی یې ښکارېده، یو شمېر سمندري چنګاښان یې پر مړي راتاو شوي ول او غوښې یې خوړې.

ما چیغې کړې، په ګونډو شوم او که کاپتا نه وای زه هم له مینا سره یو ځای کېدم.

خو له دې کبله چې کاپتا متوجه شو چې ورخ شوې او ښایي ساتونکي یې د اپیمو له امله له خوبه راویښ شي، زه یې د هغه تار په وسیله چې غځولی یې و د کرت د خدای له کوره وایستلم.

چې راووتم د معبد پر لوري ولاړم، ومې لیدل د معبد ساتونکي چې تېره شپه په شرابو کې د ګډو اپیمو د خوړلو له امله ویده شوي ول همغسې ویده دي.

له دې پرته چې د خدای د کور په څنګ کې دمه وکړو کاپتا زه ښار ته بوتلم خو زه داسې بېخوده وم چې په لاره کې د نشیانو غوندې روان وم.

کاپتا خلکو ته ویل چې زما د مستۍ علت دا دی چې د مینا د راستنېدا په انتظار کې مې ډېر شراب څښلي او تر نورو ډېر د کرت د خدای د کور پر وراندې ایسار شوي و.

دغه پلمه هر چا منله، ددې لپاره چې پوهېدل زه بهرنی یم او نه پوهېږم چې هېڅوک د خدای له کوره نه دي راستانه شوي.

له دې وروسته چې مېلمستون ته راستانه شوو ما له غوسې او ډېرې نهیلۍ څخه ډېر شراب وڅښل او ویده شوم.

کله چې له اوږده خوبه راپاڅېدم متوجه شوم پر لوی کاهن چې مینا یې د خدای کور ته ننه ایستلې او بیا یې وژلې وه په غوسه نه یم.(زه پوهېدم چې په هغه وخت کې له دغه کاهنه پرته بل څوک هلته نه و، چې مینا یې وژلې وي ).

ستر کاهن مجبور و چې د پخوا په شان وښیي خدای ژوندی دی او باید ځوانان او پېغلې ورولي چې خپل پېغلتوب هغه ته ډالۍ کړي.

زما غوسه د کرت د خلکو دود او دستور ته راتله، چې ولې ځوانان او پیغلې دغه ستر مار ته وراچوي.

زړه مې غوښتل چې پاڅېږم او د کرت په واټونو کې وګرځم، خلکو ته وو وایم اې احمقانو! دغه خدای چې تاسې یې عبادت کوئ یو مار و چې له څه مودې راهیسې مړی شوی او تاسې باید له دې وروسته اجازه ورنه کړئ چې ځوانان او پېغلې مو د خدای کور ته بوځي ځکه چې هغوی وژني.

دوی یې د دې لپاره وژني چې بېرته د خدای له کوره راستانه نه شي.

خو متوجه شوم چې د حقیقت بیانول ډېر سخت دي او خلک چمتو نه دي چې حقیقتونه واوري ان که د هغوی په ګټه هم وي.

د خلکو عقل له خرافاتو او چټیاتو سره داسې روږدی شوی و، چې هره چټي نظریه مني خو یو عقلي حقیقت نه مني.

تر دې ور ها خوا که زه خلک دغې تیارې کوټې ته بوځم او د ستر مار مړی ور وښیم نو هغوی به ما ووژني، او که خلک ما ونه وژني د کرت د دین خادمان او ستر کاهن چې له دې خرافاتو ډېره ګټه اخلي ما له منځه وړي.

ځان مې په دې ډاډه کاوه چې که د کرت د خلکو دین حقیقي وي، نو له دې کبله چې د کرت خدای مړ شوی، ډېر ژر به د کرت د خلکو قدرت او نېکمرغي له منځه ولاړه شي او یوه طبیعي بلا یا د نورو ملتونو حمله به کرت تباه کړي.

د کرت په کوڅو او واټونو کې به وینې وبهېږي او سلګونه بېړۍ به چې د کرت په بندرکې یې لنګر اچولی ډوبې شي.

له دې وروسته به یو وحشي ملت چې پر کرت یې حمله کړې ده د ځایي خلکو ټاټوبی ونیسي او وحشیان چې له ښکلو حمامونو او تشنابونو استفاده نه شي کولای نو هغه به له منځه یوسي او د ځینو ښارونو چټلي به ټول ځایونه ونیسي.

بیا مې له ځانه سره وویل د کرت خدای په ما پورې اړه نه لري ځکه چې زه په دې ښار کې پردی یم او باید ترې ولاړ شم.

زما او د مینا برخلیک هم لکه چې د بابل ستور پېژاندي وایي د ستورو له لوري معلوم شوی، ځکه چې د ټولو کسانو برخلیک ستوري ټاکي او له قضا او قدر سره زموږ جنګ د ازل برخه نه شي بدلولای.

ددې لپاره چې بېرته ويده شم. له کاپتا مې شراب وغوښتل، خو مريي مې د شرابو پر ځای ډوډۍ رواړه، ما ورته وويل شراب غواړم، ډوډۍ نه، او که ماته شراب رانه وړې هډوکي به دې په لکړې مات کړم. کاپتا مجبوره شو چې ولاړ شي او ماته شراب راوړي

له هغه وروسته چې به مې شراب څښل ارامېدم او کله چې به مې په شرابو کې افراط وکړ شيان به راته دوه- دوه ښکارېدل، ظاهراً به مې همداسې فکر کاوه باور مې نه درلود چې داسې دې وي.

يوه ورځ مې وغوښتل په دې اړه له کاپتا سره خبرې وکړم او هغه ته ووايم چې هر حقيقت همداسې دی.

انسان چې حقيقت ويني، د هغه په شتون کې شک نه کوي، په داسې حال کې چې پوهېږي هغه څه چې دی يې ويني يو مجاز دی.

خو کاپتا حاضر نه و، چې په دې اړه له ما سره خبرې وکړي

ماته يې وويل سينوهه! ته د ډېرو شرابو د څښلو زور نه لرې او زه ډارېږم چې مړ به شې، بيا به زه په دې پردي وطن کې څه کوم؟ ستا مړی به څنګه طبس ته يوسم، څنګه به يې دارالممات ته وسپارم او ورته ووايم چې ستا مړی موميايي کړي.

له دې سره سره چې کاپتا زه د ډېرو شرابو له څښلو منع کولم، خو اوس پوهېږم چې که په هغه وخت کې ليونی شوی نه وم او يا مې د لوی کاهن د وژلو تابيا ونه کړه، له دې امله و چې ډېرو شرابو زه سست او پرکاله کولم چې له هغه وروسته مې غوښتل ويده شم.

که شراب نه وای نو له دې کبله چې تل مې د مينا په هکله فکر کاوه يا به ليونی شوی وم يا داچې د ستر کاهن د وژلو فکر مې کاوه او په دې کې به نو زه وژل کېدم.

 څو ځله مې کاپتا ته وويل چې ولاړ شي او لوی کاهن هغه مېلمستون ته راولي چې موږ پکې ديره وو، خو هر ځل به زما مريبه له دې امره سرغړاوه او بيا به پوه شوم چې زما لکړه او وسپنيزه چاړه يې پټه کړې ده، چې هغه ژوبل يا مړ نه کړم او يا د ځان وژنې فکر ونه کړم.

يوه ورځ له خوبه راپاڅېدم ګورم چې کاپتا د کوټې په کونج کې ناست دی او ژاړي.

د شرابو منګی مې را واخيست، يو غړپ مې ترې وکړ او ومې ويل ولې ژاړې؟

ما له څه مودې راهيسې له کاپتا سره خبرې نه کولې، ځکه د هغه له غمجنې خبرې مې کرکه کوله او نه مې غوښتل چې غږ يې واورم. خو په دې ورځ، چې هغه وژړل ومې غوښتل پوښتنه وکړم چې ولې ژاړي.

کاپتا وویل، یوه بېړۍ له بندر څخه سوریې ته ځي او دا وروستی بېړۍ ده چې له دې ځایه سوریې ته ځي.

له دې وروسته د سختو توپانونو له امله په ژمي کې تر راتلونکي کاله بله بېړۍ سوریې ته نه ځي.

ناړې مې کړې ورځه او بندرته لاړ شه، په دې بېړۍ کې سپور شه او ما د خپل منحوس وجود له شره خلاص کړه، زه نور نه غواړم تاووینم.

کاپتا وویل له دې سره سره چې اټکل کوم له دې خبرې وروسته به مې هډوکي مات کړې، خو بیا هم درته وایم چې زه هم ستا له ژونده چې د شرابو د خم په شاوخوا کې د میاشو د ژوند په شان دی، ستړی شوی یم.

ستا شراب څښلو او نشې دومره ستړی کړی، یم چې نور زما په خوله کې شراب مزه نه لري او زه چې شراب مې یوازینۍ هیله او خوښې وه نور شراب نه څښم.

سینوهه! کله چې د پوهې خبرې کېږي ته پر ځان ویاړې، چې په دار الحیات ښوونځي کې دې درس ویلی دی، پوه یې، زرګونه مړي دې کتلي دي، یا دې په خپل لاس د مړیو بدنونه څېرلي دي، خو لا هم نه پوهېږې چې کله څوک مړ شي بیا نه را ژوندی کېږي.

که ته هره ورځ لس منګي شراب هم وڅښې او که له سهاره تر بېګا پورې ناړې سورې وکړې خو نه به هغه ښځه را ژوندۍ شي چې تا خپل ژوند د هغې لپاره داسې کړی دی او نه به یې ته ووینې.

یوازینۍ نتیجه چې ته به یې ترلاسه کړې دا ده چې ته به هم له هغې سره یو ځای شې.

له دې سره سره چې ته ځوان یې، خو اوس دې د ډېرو شرابو له امله لاسونه داسې رېږدي چې نه شې کولای یوه کوپړۍ سوری کړې، یا یوه خېټه څېرې کړې او یا یو غاښ له خولې را وباسې.

څومره پیسې چې دې درلودې په شرابو دې ورکړې، یانې پر اوبو دې لاهو کړې، په سر کې چې ما وکتل تاد هغې صراحۍ په شان شراب څښل چې ښخ نه لري او زه له دې کبله خوشحاله وم چې د شرابو ملګری مې پیدا کړی دی.

ان د بندر په ساقي خانو کې مې ویل، داسې بادار لرم چې د شرابو په لاره کې چې څومره سره او سپین لري له لاسه یې ورکوي.

خو وروسته متوجه شوم چې هر سهار له خوبه را پاڅېږې نو داسې شراب څښې چې

ګنې د ژوند وروستۍ ورځ دې وي، زه و ډار شوم پر تا مې زړه وسوځېد.

زه پوهېدم چې کله ته مړ شې زه به ازمیر ته ولاړ شم او د هغه لیک پر بنسټ به چې تا راته لیکلی، د بېړۍ چلونې له شرکتونو ستا سره او سپین واخلم او ستا کور به د ځان کړم.

دا غلا هم نه ده، ځکه چې تا راته ښنلي دي، خو دا زغم مې نه درلود چې ته د ډېرو شرابو له امله مړ شې او ستا د علم او پوهې سرچینه چې د روزي ګټلو وسیله ده وچه شي.

اوه ...زما ګرانه باداره !....په خدایانو قسم کوم، له دې سره سره، چې ښکنځلې راته کوې او کله مې په لکړه وهې، خو پر ما ګران یې او له تا پرته ژوند نه شم کولای.

دغه دوستي د سرو سپینو او خوړو لپاره نه ده، ځکه ما درته وویل چې زما ګټه، په دې کې ده، چې ته مړ شې او ستا سره، سپین او د ازمیر کور زما شي.

خو له دې کبله چې راباندې ګران یې نه غواړم، زما ګران بادار د ډېرو شراب څښلو او بې ځایه فکر کولو له امله په داسې مرګ ومرې چې بېرته نه ژوندی کېږې.

د کاپتا خبرو پر ما ډېره اغېزه وکړ، ځکه همغه ډول چې ده ویل زه هم متوجه وم چې لاسونه مې رېږدي او د شرابو د څښلو له امله به مړ شم.

ما فکر وکړ چې د شرابو څښلو له امله به ټول هغه علمونه چې په مصر، بابل، سوریې او نورو ځایونو کې مې زده کړي، پر اوبو لاهو شي، ځکه چې زه به مړ شم او له دغو علمونو به استفاده ونه کړای شم.

زه پوه شوم چې په هر شي کې افراط، ان په خوشحالۍ او ساعت تېرۍ کې افراط تاوان لري او لیونتوب دی.

خو نه مې غوښتل کاپتا ته ووایم چې خبرو یې پر ما اغېزه کړې، چې مریی مې مغرور نه شي.

ورته مې وویل: ستا خبرې زما په غوږونو کې د مچانو د بنګېدا په شان دي او زه ستا خبره نه خوښوم، خو له څو ورځو راهیسې مې فیصله کړې چې نور به شراب نه څښم، ځکه چې شراب څښل مې لاسونه رېږدوي او تل ستړتیا احساسوم.

نو سر له ننه به شراب ونه څښم او له دې کبله چې نور نه غواړم په کرت کې پاتې شم، همدا نن له دې ځایه حرکت کوو، ورځه او له دې ځایه د ستنېدا وسایل برابر کړه.

کله چې کاپتا دغه خبره واورېده، له خوشحالۍ یې د ماشومانو په شان ټوپونه وهل او له کوټې ووت ولاړ، چې د ستنېدا وسایل برابر کړي

پر همغې ورځ بېړۍ ته ولاړو او پارو وهونکو له بندره د کشتۍ د ایستلو او له سلګونو وړو او لویو بېړیو د تېرولو لپاره پاروګان خوځول.

له دې وروسته چې سمندر ته ورسېدو د کښتۍ ماڼو د سمندر د خدای لپاره قرباني وکړه او بیايې د بېړۍ بادبان پورته کړ.

کشتۍ د باد د فشار له امله په سمندر کې کړه شوه او د کشتۍ په تنې د څپو د لګېدا غږ واورېدل شو.

زموږ بېړۍ د ختیز یانې د سوریې پر لور روانه شوه او بیا د کرت ټاپو د خوب د یوې منظرې په شان چې د انسان له وینېدا وروسته له منځه ځي زموږ له نظره ورک شو.

اوس نو له ویرې او پراخ سمندره پرته بل څه نه تر سترګو کېدل.

# پينځه ويشتم څپرکی

## له کرته ستنېدل او د ازمير نوي حالات

په دې ډول له دريو کلونو وروسته چې په بابل، هاتي او کرت کې وم په سوريه کې د ازمير په لور روان شوم.

زه پخوا ډېر خام وم خو په دغو دريو کلونو کې د ژوند درس زه پوخ کړی وم.

د سمندر باد او مستو څپو، د شرابو مستي او پخواني فکرونه راڅخه هېر کړل

کله چې به مې د بېړۍ پر دېوال تکيه کوله او د څپو ننداره مې کوله نو د مينا څېره او اندام مې ديوه خواږه خوب په شان سترګو ته درېدل، داسې يو خوب چې پوهېدم هېڅکله به يې په ويښه ونه ګورم.

زه نيکمرغه وم چې مينا، او د غواييانو پر وړاندې مې، دهغې نڅا وليدله او په دې هم خوشاله وم، چې ومې ليدل هغه يې د خدای په کور کې وژلې، ځکه چې بله تجربه مې تر لاسه کړې.

مقصد مې دا نه دی چې ووايم د مينا په مرګ خوشحاله يم او يا مې د هغې د مړينې هيله کوله.

بلکه هدف مې دا دی چې له دغې نجلۍ سره د اشنايۍ له امله مې د کرت ټاپو وليد.

دغه راز مې د هغه ځای حمامونه او تشنابونه وليدل او د دغې سيمې د اوسېدونکو دودونه او رواجونه او پر خپل خدای د هغوی عقيده مې وليدله او د خپل خدای لپاره مې د هغوی سربښندنه وليده چې يوازې يو سمندري مار و.

ددغو شيانو د ليدو له امله مې ډېره تجربه تر لاسه کړه چې له دې پرته مې دغه تجربه نه په برخه کېدله.

تر هغه وخته چې انسان نوي شيان او پېښې نه وي ليدلې ځان بشپړ ګڼي خو له هغه

وروسته چې پوه شي، د هغه پر معلوماتو او علمونو سربېره په نړۍ کې ډېر نور علمونه او معلومات هم شته نو ځان ورته کوشنی ښکاري او همدغه وخت پخپل عيب پوهېږي

له همدې امله بې علمه او بې خبره کسان ډېر ژر مغروره کېږي، ځکه چې فکر کوي، په ټولو شيانو پوهېږي او په نړۍ کې تر ده لوړ او تکړه بل څوک نشته

له همدې امله کله چې ګورو يو نارينه يا ښځينه کبر لري او موږ ته په کمه سترګه ګوري، بايد پوه شو چې هغه ډېر احمق او ناپوه دی او له دې کبله چې په څه نه پوهېږي، تجربه نه لري، نو ځان تر نورو لوړ ګڼي.

څرنګه، چې ازمير ته ننوتم ومې ليدل چې کور مې پخپل حال دی، خو غلو مې د کور ټول سامان لوټ کړی دی.

ګاونډيانو زموږ له نه شتونه استفاده کړې، کور يې په ډېران بدل کړی او مړې زموږ په کورکې منډې وهي.

ګاونډيانو چې وليدو له موږ يې کرکه کوله او ورېدل مې چې ويل يې هغه مصری دی او زموږ ټولې بدبختۍ له مصره دي

د ګاونډيانو له کرکې حيران شوم، زه په مېلمستون کې استوګن شوم، چې کاپتا څو تنه کارګران ونيسي او کور پاک کړي

زه چې ازمير ته ولاړم نو سره او سپين مې نه درلود ځکه درې کاله نه وم راغلی.

وروسته د سمندر کچ کوونې د شرکت پر لور وخوځېدم خو هم په شک کې وم او هم ډېر راسره ملګری و، ځکه هيله مې نه درلوده چې هغوی به زما سره او سپين چې په دغو شرکتونو کې مې پانګونه کړې وه بېرته راکړي

خو د سمندر کچ کوونې د شرکت مالکانو بې له ځنډه زما پانګه د هغې له ګټې سره يو ځای راکړه او دا هم راته معلومه شوه، په تېرو دريو کلونو کې چې زه نه وم او له دې سره سره چې څو بېړۍ ډوبې شوې دي بيا هم زما سره او سپين تر پخوا ډېر شوي دي.

د سمندر کچ کوونې د يوه شرکت مشر زه خپل کور ته وبللم او ويې ويل سينوهه! له دې سره سره چې پر موږ ګران يې، ځکه چې پوهېږو تکړه ډاکټر يې او زموږ د ناروغانو درملنه کولای شې، خو بايد درته ووايم چې د سوريې خلک له مصريانو ډېره کرکه کوي ځکه، هغه ماليات چې فرعون يې له موږ اخلي ډېر زيات دي.

څو ځله يې مصريان په لاره کې سنګسار کړل او د مصريانو کورونو ته يې د مړه سپيي

او پښيمان وراچولي.

له دې کبله چې پر مور ګران يې دغه خبره مې درته وکړه، چې ځانته پام وکړې او پوه شې چې په ازمير کې څه ډول چلند وکړې.

زه په دې خبرې حيران شوم، ځکه درې کاله مخکې چې له دې ځايه تلم خلک له مصريانو سره ملګري ول او د مصريانو، د دودونو او رواجونو تقليد يې کاوه، همغه ډول چې مور په طبس کې د سوريې د خلکو د دودونو تقليد کاوه.

کاپتا هم د هغو کوربنو خبرې تايد کړې چې مخکې يې ماته کړې وې او کله چې د سمندر کچ کوونې د شرکت له کوره خپل کور ته ستون شوم کاپتا وويل، داسې ښکاري چې موذي او شيطاني ارواوې د سريانيانو په سرونو کې ننوتې دي.

دغه خلک لېوني شوي، نور نه غواړي چې په مصري ژبه خبرې وکړي او نن چې ما غوښتل خپله تنده ماته کړم، يوې ساقي خانې ته ننوتم چې يو جام شراب وڅښم، خو څنګه چې د ساقي خانې مشتريان پوه شول، زه يو مصري يم نو له هغه ځايه يې را وايستلم، ماشومان راپسې شول او زما پر لور يې د کارغانو فضله مواد او ګانې را ګوزار کړل.

کله چې پوه شوم په ازمير کې له مصريانو څخه کرکه کېږي، بلې ساقي خانې ته ولاړم او داخل مې هېڅ خبرې ونه کړې، يو نی مې را واخيست، په يوه جام کې مې ننيوست او شراب مې وڅښل. *(مور وويل چې په دغه کتاب کې ټول راغلي مطالب د پخوانيو ملتونو د ژوند د حالاتو، دودونو او عقيدو په هکله دي او تاريخي ارخ لري افسانې نه ده.*

*• تاسو دلته لولئ چې کاپتا د دې لپاره چې شراب وڅښي يو نی يا پايپ يې په جام کې اېښی او شراب يې څښلي دي چې دغه خبره هم تاريخي ارخ لري او مور تصور کوو چې په پايپ يا نی سره د شرابو يا شربتو څښل يو نوی مود دی چې له اروپا څخه ختيځ ته راغلی، په داسې حال کې چې څلور زره کاله مخکې په ختيځ کې په دې ډول شربت او شراب څښل کېدل او دغه مود له ختيزه اروپا ته تللی دی. ژباړن•)*

بيا زما مريي وويل، په ساقي خانه ډېر په تکليف وم ځکه کله چې زه د اوربشو اوبه (بيير) څښم او د خلکو په ټولي کې ناست يم، بايد خپله ژبه هم وکاروم او خبرې وکړم.

د ژبې ترل راته ډېر سخت ول، خو له دې سره، چې سر مې تېټ و، او په پايپ سره مې د اوربشو اوبه څښلې خو اورېدل مې چې خلکو د مصر په فرعون او مصريانو پسې خبرې کولې.

دوی مصریان رټل او ویل به یې پخوا ازمیر یو ازاد ښار و، چې مالیات یې نه ورکول، خو نن سبا باید د دې ښار ټول او سېدونکي فرعون ته مالیات ورکړي او زمونږ بچیان له ما شومتوبه د فرعون په مریانو بدلېږي.

ماجرئت نه شو کولای چې ووایم د مصر فرعون د ازمیر د خلکو د ښېګڼې او خیر لپاره دغه ځای تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستی دی. پخوا چې ازمیر د فرعون په ولکه کې نه و، نو درست کال به د سوریې خلکو له یوه بل سره جنګونه کول او هغو پیشکو ته ورته ول، چې ټولې یې په یوې کڅوړې کې اچولې وي، نه شي کولای چې وتښتي او اړ وي چې له یو بل سره ونښلي او جګړه وکړي

سوریانیان د خپل زور خبرې کوي او وایي چې که په سوریه کې موجود پاچاهان سره متحد شي داسې قدرت به رامنځته شي چې فرعون به ورسره مبارزه ونه کړای شي.

ایا دا خبره د منلو ده چې یوه ورځ به دغه پاچاهان سره متحد شي؟ دوی هېڅکله هم نه شي سره متحد کېدای.

ما هغوی ته ځواب نه شو ورکولای او د دغو خبرو د اورېدو زغم مې هم نه درلود، په بېړه مې د اوربشو اوبه وڅښلې او له ساقي خانې څخه راووتم.

له دې وروسته چې ما د کاپتا خبرې واورېدې، نو سریاني کالي مې واغوستل او له کوره راووتم، متوجه شوم چې زما مریي سمه خبرې کړې وې.

خلکو له مصریانو داسې کرکه کوله او ورته غوسه ول، نو له همدې کبله مصریان مجبور ول چې له ځانه سره ساتونکي وګرځوي.

له دې سره سره چې خلکو به د مصریانو پر لوري د میوې پوستکي او خوسا کبان اچول، خو ماته چا توجه نه کوله، ځکه چې ما سریاني کالي اغوستي ول.

ما خلکو ته غوږ ونیو چې دوی ولې شکایت کوي، خو وروسته پوه شوم چې ټول د هغو مالیاتو له کبله خپه او شکایت کوي چې فرعون یې له سوریې څخه اخلي.

دوی په دې نه پوهېدل چې فرعون د دې مالیاتو یوه ستره برخه په خپله د سوریې پر چارو لګوي او که د مصر غنم نه وي او یا ازمیر او د سوریې نورو ښارونو ته د مصر غنم ونه رسېږي نو خلک به له لوږې مړه شي.

له دې سره چې پوهېدم خلک د مصریانو په اړه بدبینه دي، نو پخپل کور کې مې کتنځی پرانیست.

ځینې ناروغان ماته راغلل، ځکه کله چې خلک ناروغه کېږي او په دردونو اخته کېږي نو بیا د ډاکټر ملیت ورته مهم نه وي، بلکې ددې پر خلاف دا وایي چې ایا ډاکټر تکړه دی او کنه؟ درملنه کولای شي او کنه؟

ځینو ناروغانو به شکایت کاوه چې مصر اوس د وینې زبېښونکي په شان دی او زموږ د وینې د زبېښولو له کبله چاغ شوی دی، په داسې حال کې چې موږ کال پر کال بېوزله کېږو.

د مالیاتو د ترلاسه کولو لپاره د مصر پلمه دا ده چې موږ ته یې پوځي چونۍ جوړې کړې، چې امنیت مو وساتي، په داسې حال کې چې د مصر له لښکرو پرته هم موږ خپل امنیت ساتلای شو.

یو لوی توهین او سپکاوی چې موږ ته شوی دادی چې موږ نه شو کولای خپل پوځي برجونه ورغوو او نوې کلاګانې جوړې کړو، په داسې حال کې چې د نوې کلا د جوړېدا او د برجونو د رغولو لګښت موږ پخپله ورکوو.

که مصر له موږ مالیات نه اخیستلای، نو موږ به نیکمرغه او سوکاله ملت و، خو مصر د ملخانو د پوځ په شان پر سوریې پروت دی او ستاسې فرعون نیت لري چې خپل خدای پر موږ وتپي.

په داسې حال کې چې موږ د هغه د خدای غوښتونکي نه یو او د خپل خدای عبادت کوو.

ما وویل مصر ددې لپاره تاسې ته اجازه نه درکوي چې خپلې کلاګانې ورغوئ یا نوې کلاګانې جوړې کړئ، چې د غه استحکامات د مصر پر وړاندې جوړوئ او نیت لرئ له مصر سره وجنګېږئ.

تاسې مخکې ازاد واست، خو دا خبره مو هېره کړې ده، چې پر مصر د فرعون لـه ولکې مخکې تاسې له یوه بل سره جنګېداست او ستاسې پاچاهان په هر ولایت کې خپلواک ول.

دوی له تاسې سره هر هغه څه کول چې د دوی زړونو غوښتل او شتمن او بېوزله دواړه د هغوی له ظلمه په تنګ شوي ول.

خو نن سبا د مصر قوانین ستاسې ملاتړ کوي او ددې مخه نیسي چې د سوریې پاچاهان پر تاسې ظلم وکړي او شتمن او بېوزله د مصر د قوانینو تر سیوري لاندې دي.

ناروغانو به راته ویل د سوریې د پاچاهانو ظلم یو تور دی، چې مصریانو لګولی او جوړ کړی دی ځکه دوی غواړي چې موږ ارکړي خپله پخوانۍ ازادي هېره کړو او د مصر مریيان شو.

خو که فرض کړو چې زموږ پاچاهانو پر موږ ظلم کاوه، بيا هم زموږ پاچاهان ول او دي موږ د پرديو تر ظلم د هغوی ظلم غوره ګڼو، خو نن سبا ټول د مصر د فرعون مرييان شوي يو او له دې پرته چې موږ له هغه سره کوم اړيکی نه لرو، هغه پر موږ ظلم کوي

ما وويل زه ستا سې په بدن کې د مرييانو داغونه نه وينم، تاسې ازاد ياست، تر پخوا چاغ شوي ياست او دغه چاغي ددې ښوونه کوي چې ښه ژوند کوئ.

که تاسې د پخوا په شان واست او د مصر قانون ستاسې ملا تړی نه وای، نو تل به مو د يو بل بېړی غلا کولې، ونې به مو غوځولې ،د سوريې په لارو کې هېڅ يوه مسافر امنيت نه درلود.

خو نن سبا څوک ستاسې کشتۍ نه لوټي، ستاسې د مېوې ونې نه پرې کوي او له ګواښه پرته د سوريې هرځای ته چې وغواړئ سفر کولای شئ.

سريانيانو زما دلايل نه منل او له دې وروسته چې معالجه به شول خپله ډالۍ به يې په کاوړ ماته راکړه او د تلو په وخت کې به يې ويل. له دې سره سره چې تا د سريانيانو جامې اغوستې، خو بيا هم يو مصري يې! او هر مصري چې هرچېرته ژوند وکړي، يو ظالم دی، ښه مصري نشته مګر دا چې مړ شوی وي.

د خلکو له لوري له مصريانو عمومي کرکه ډېره شوې وه او زه متوجه شوم چې نور په ازمير کې ژوند نه شو کولای.

ځکه چې که فرضاً خلکو زه نه وای وژلای دهغوی کرکې زما ژوند تريخ کړی و، دا سې ښکاريدل چې يوه ميلمه په يوه کورکې وي او کوربه ترې کرکه وکړي چې په دې حالت کې په دې کورکې سړی له اوسېدو څخه سخت بېزاره کېږي.

ما په ازمير کې خپلې پيسې او پورونه راټول کړل او مصر ته مې د تللو نيت وکړ ځکه، له څوکلونو وروسته په پرديو هېوادونو کې وم نو مجبور وم، چې مصر ته ستون شم او د خپل ماموريت راپور د مصر قوماندان (هورم هب) ته ورکړم.

ځکه چې ما ته يې دنده سپارلې وه چې د نورو ملتونو او پاچاهانو له پوځي حاله معلومات راغونډ کړم.

يوه ورځ سهار چې کله په ازمير کې خلک له خوبه راپاڅېدل متوجه شول، چې تېره شپه يې د يو مصري سپاهي سر پرې کړی دی. خلک له دې پيښې وروسته د فرعون له قهره سخت وېرېدلي ول، خپلو کورونو ته ولاړل، دروازې يې بندې کړې او له کوره راووتل.

دغه پېښه د دې سبب شوه چې د فرعون او مصریانو په اړه د خلکو غوسه سړه شي، خو زه پوهېدم چې دغه ارامي موقتي ده او له دې وروسته به د مصریانو پر خلاف د خلکو غوسه او قهر نور هم زیات شي.

همداسې هم وشول او د دغه مصري عسکر وژونکي پیدا نه شول.

دوه یا درې ورځې وروسته خلک له کورونو راووتل او داخل پر مصریانو نور هم په قهر ول، هېڅ مصري جرئت نه کاوه چې له وسلې پرته له کوره راووځي او سړکونو ته ووځي.

له دې کبله چې ما سریانۍ جامې اغوستې، نو له ډاره پرته له کوره ووتم او ځینې شپې به د ایشتار معبدت ته تللم چې تفریح وکړم.

ځکه چې ازمیر ته له ستنېدا وروسته مې د تندې احساس کاوه او د یوه تږي سړي په شان وم، چې نه پوهېږي دغه ځاه، چې له هغې اوبه څښي په چا پورې اړونده ده، ما هم غوښتل چې فقط ویې څښم.

یوه شپه چې د ایشتار له معبده راستنېدم ځینې سریانیان مې ولیدل.

یو یې وویل داسې ښکاري چې دغه سړی مصری دی او که مصری وي باید سم شي چې بیا زموږ معبد ته ولاړ نه شي، ځکه چې دا زموږ لپاره د شرم خبره ده چې یو سنت شوی سړی، زموږ له ښځو سره څملي او ساعت ورسره تېر کړي.

بیا ماته رانژدې شول او ویې ویل موږ غواړو تا معاینه کړو چې پوه شو، ایا مصری یې او کنه؟ ځکه هغه کس چې سنت شوی وي باید زموږ له پېغلو سره ویده نه شي.

ما وویل ستاسې پېغلې یوازې په نوم پېغلې او باکرې دي او چې کله هغوی د سنت کېدا په هکله ستونزه نه لري او څه نه وایي نو تاسو ولې شکایت کوئ؟!

کله چې سریانیانو زما خبره واورېده پر ما یې حمله وکړه او زه یې پر ځمکه وغورځولم.

زما سر یې پر ځمکه وواهه، په دې ډول چې له ځانه سره مې وویل زما د عمر وروستۍ شېبې رانژدې شوې دي.

خو ناڅاپه یوه یې وویل اوه.... دا خو سینوهه ابن الحمار دی او د سوریې د پاچا ملګری دی.

نورو چې دغه خبره واورېده زه یې خوشې کړم، خپل مخونه یې په لمنو پټ کړل چې زه یې ونه ګورم او ویې نه پیژنم، په نارو سورو تښتېدل، زه هم له هغه ځایه پورته شوم او کور ته ولاړم.

# شپږ ویشتم څپرکی

## د یوه ماشوم ناروغي

دوه ورځې وروسته چې ما مصرته د تګ لپاره کالي راغونډول، په څنګ کې مې د ناروغانو درملنه هم کوله، نو یو کس چې پر یوه اس سپورو، او د باد په څېر ګړندی روان و، زما د کور په مخکې ودرېد. په مصر او سوریې کې آس ځغلول دومره دود نه دي، ځکه چې آس داسې یو یاغي ځناور دی چې لوی او فرمان نه منونکی دی.

کله څوک پرې سپور شي نو د مخې دواړه پښې پورته کړي او سپور پر ځمکه وغورځوي، له همدې امله په مصر او سوریه کې خلک تل پر خره سپرېږي، چې بې ازاره او فرمانبرداره دي او ان جنګي ګاډۍ په خره پورې تړي.

که آس په جنګي ګاډۍ پورې وتړي خطرناک کېږي او داسې هیجاني کېږي چې تښتي، ګاډۍ هم ماتوي او سپرلۍ هم وژني.

د هغو ګاډیو چلول چې په آسونه پسې تړل شوې وي ډېر سخت دي، ډېره تجربه غواړي او باید یو کس تل د آس پر ملا سپور وي چې خپله ګوته د آس پوزې ته وروړي چې په دې توګه آس رام شي. (*د سینوهه په وخت لا د آس قیضه نه وه اختراع شوې، چې د غه ځناور پرې رام کړي او د هغه په پوزه کې د ګوتې په ننه ایستو سره یې آس رام او فرمانبرداره کاوه. ژباړن*)

کله چې ما پر آس سپور کس ته وکتل له جامو یې پوه شوم چې د سوریې د غرنیو سیمو او سیدونکی دی او داسې ښکارېد، چې لوټمار وي، ځکه چې لوټماران، غله یا د غرنیو سیمو اوسیدونکي په آسونو سپرلۍ کوي.

هغه سرې نارې کړې، سینوهه ابن الحمار! زه له ډېر لېرې ځایه او د(آمورو ) له هېواده راغلی یم او د دغه هېواد پاچا چې تا پېژني یو زوی لري چې ناروغه شوی دی.

پاچا د خپل زوی د ناروغۍ له کبله داسې غوسه دی چې د داړونکي زمري په شان شوی او هېڅوک جرائت نه کوي چې هغه ته نژدې شي.

د ېر ژر دې خپل طبي وسایل را واخله او له ما سره د امورو هېواد ته روان شه او زموږ د پاچا د زوی معالجه وکړه.

که ځنډ وکړې په دې چړې سره به دې سر له بدنه بېل کړم او بې سره بدن به دې پر ځمکې ولوېږي.

ما ورته وویل که ته زما سره له تنې بېل کړې، نو ستا د پاچا زوی به معالجه نه شي، ځکه که مې سر په بدن پورې نه وي، لاسونه به مې ستاسو د پاچا د زوی معالجه ونه کړای شي.

زه د تګ او ستا د پاچا د زوی معالجې ته تیار یم، خو له دې کبله نه چې ستا له ګوابنه وېرېدلی یم، بلکې د امورو پاچا زما ملګری دی او زه باید د هغه د زوی معالجه وکړم.

د آمورو پاچا همغه سړی و، چې ما څو کاله مخکې په سوریه کې د هغه د غابنونو معالجه کړې وه.

هغه زما ځوانه وینځه وغوښتله، غوښتل یې چې په بیه یې راڅخه وپېري، خو ما هغه ورته ډالۍ کړه.

کاپتا ته مې وویل ولاړ شه او ماته یو راون تخت په کرایې ونیسه.

کله چې یې روان تخت راوست له آس ځغلونکي سره روان شوم تر هغه چې تر یوې هوارې ځمکې تېر شوو او غرنۍ سیمې ته ورسېدو.

هلته له روان تخته کوز شوم او په یوې جنګي ګاډۍ کې یې سپور کړم.

هغه اسان چې ګاډۍ یې کشوله فکر کوم وحشي ول، ګاډۍ یې داسې روانه کړه چې زه وېرېدم او فکر مې کاوه چې په اسمان کې د امون د خدای کشتۍ الوتې ده.

ما له وېرې نارې وهلې، خو ګاډیوانو زما وېرې ته پام نه کاوه، ګړندي روان ول، او څو شېبې وروسته ګاډۍ ودرېده.

زه خوشحاله شوم، فکر مې کاوه چې سفر پای ته ورسېد، خو زه یې له هغې ګاډۍ کوز کړم او په بلې کې یې سپور کړم چې اسونه هوسا او تازه دمه ول.

کله چې ګاډۍ روانه شوه، ما نارې وهلې او ویل مې کرار کرار ولاړ شئ خو چا مې خبرې ته پام نه کاوه.

هر ځل چې به د ګاډۍ حرکت لږ ورو شو ما به وکړای شول خپل لاسونه د هغې له دېوالونو لیرې کړم.

یو ځل مې د چلونکي ملا ته سوکان ونیول، مګر هغه ماته هېڅ توجه ونه کوله، هېڅ یې نه ویل چې ولې یې پر ملا وهم، هماغسې پر مخ روان و.

زه تر اوسه نه پوهېږم چې څنګه په هغې غرنۍ لاره کې په یاغي اسونو پسې تړل شوې ګاډۍ نه اوښتې، نه ماته شوې او نه یې زه ووژلم.

تر دې وړاندې چې لمر د لودیځ افق ته نژدې شي په غرنۍ سیمه کې یوه ښار ته ورسېدو چې نوي دېوالونه یې درلودل او دروازې یې تړلې وې.

ساتونکو چې موږ ولیدو دروازې یې خلاصې کړې او زموږ ګاډۍ په همغې چټکتیا چې په غرنیو لارو کې راتلد د ښار له واټونو هم تېره شوه.

په لاره کې ځینو نارینه وو او ښځو له میوې ډکې ټوکرۍ خوشې کړې او د ګاډیو له ډاره وتښتېدې، ځینې نورو بیا له اوبو ډک منګي وغورځول او مات شول.

کله چې ګاډۍ د امورو د پاچا د ماڼۍ په مخکې کې ودرېده زه یې له ګاډۍ کوز کړم.

د بدن غړي مې داسې ټوټې ټوټې ول، چې پر لاره نه تللی شوم او مریانو په غېږ کې ماڼۍ ته بوتلم.

د ماڼۍ په لوی هال کې یې لسګونه، ډوله وسلې، د زمریانو لکۍ او د مرغانو بڼکې ځوړندې وې.

زه چې ورننوتم د امورو پاچا د هغه زمري په شان چې ښکاري ژوبل کړی وي پر ما حمله وکړه.

د پاچا جامې شلېدلې او پر سر یې ایرې اچولې وې.

پاچا نارې کړې، لوټمارانو! ولې ناوخته راغلاست؟ آیا قصداً مو ځنډ وکړ چې زما زوی له ناروغۍ څخه مړ شي.

د امورو پاچا خورا غوسه و، پر ما چې یې راټوپ کړ نو هغه طلایي پټۍ چې ګاړګوټي ډېره یې پرې تړلې وه خلاصه شوه.

خو د ګاډۍ چلونکي وویل موږ نن پر غرنیو لارو داسې ګړندي راغلو چې مرغان راپسې نه شو رسېدای.

ته باید دغه مصري ډاکټر مننه وکړې، چې هر ځل به موږ ورو تلو هغه به پر ملا سوکان راکول چې ګړندي شو. داسې نارې به یې وهلې چې زموږ اسونه به یې لېوني کړل او ګاډۍ به نوره هم ګړندۍ شوه.

زموږ د پلرونو هم یاد نه دي چې د ازمیر او امورو لاره دې دومره ژر وهل شوې وي
په دې وخت کې د آمورو پاچا زه په غېږ کې ونیولم، ښکل یې کړم، ویې ژړل او ویې ویل، سینوهه! ته باید زما زوی معالجه کړې او زه یې له تا څخه سلامت غواړم.

ومې ویل، لومړی اجازه راکړه چې زه ستا زوی ووینم او پوه شم چې کومه ناروغي لري، وروسته به یې معالجه کړم.

د آموور پاچا زه له ځان سره یوې کوټې ته بوتلم، په کوټه کې یو لوی منقل له اوره ډک ایښی، او ماشوم په زانګو کې ویده دی.

خو په پشمي جامو کې یې داسې نغښتی و، چې رنګ یې تک شین شوی و، او له مخ او بدنه یې خولې بهیدې.

ماشوم په چیغو چیغو ژړل او ما چې ولید پوه شوم چې داسې کومه ناروغي نه لري چې د هغه د مرګ سبب شي، ځکه کله چې ماشوم د مرګ په حال کې وي داسې چیغې نه وهي.

شا و خوا مې وکتل که ګورم یوه سپینه او چاغه ښځه د کوټې پر غولي ناسته ده او په ژړا خپل سر په ځمکه وهي.

دستي مې وپېژند له چې دا زما هغه وینځه ده چې د آمورو پاچا ته مې ډالۍ کړې وه.

څو نورې ښځې هم د کوټې شاوخوا ته راټولې شوې وې، هغو هم ژړل او ځینو خو خپل مخونه سره او ژوبل کړي ول.

ورسته پوه شوم چې دوی د آمور پاچا له دې امله وهلې دي چې د ماشوم د ارامولو چل نه ورته.

ما د آمورو پاچا ته وویل دومره نارامي مه کوه، ځکه چې ستا ماشوم نه مري، خو زه تر دې وړاندې چې ستا ماشوم معاینه کړم، باید ځان پاک کړم، خو تاسې تر هر کار مخکې د اور دغه منقل له دې ځایه لېرې کړئ.

د ماشوم مور چې پخوا زما وینځه وه وویل، که منقل له دې ځایه لېرې کړي د ماشوم به یخ وشي.

ومې ویل نه.... ماشوم د پسرلي په دې هوا کې نه زکام کېږي او نه یې یخ کیږي، تاسې منقل لېرې کړئ او که یې ساړه وشول، یا زکام شو مسولیت یې زما پر غاړه.

ښځې زه وپېژندم موسکۍ شوه او ویې ویل آوه.... سینوهه! .... دا ته یې.... کله چې نوی راغلې ما ونه پېژندې، ځکه چې تا سریاني کالي اغوستي ول.

ما وویل ددې ماشوم د معالجې لپاره داسې په بیړه را روان شوم، چې دومره وخت مې ونه موند چې سریاني جامې وباسم او مصری هغه واغوندم.

د آمورو پاچا په داسې حال کې چې اوښکې یې په سترګو کې ډنډ وې وویل سینوهه! دا درې ورځې کېږي، چې زما زوی څه نه دي خوړلي او که یې خوړلي وي هغه یې بېرته راګرځولي دي.

ماشوم داسې چیغې او ژړاګانې کوي چې زه یوه شېبه هم ارامه نه شم پاتې کېدای.

ما وویل، دغه مریان او وینځې له دې کوټې وباسئ، ځکه یو روغ انسان چې دومره کسان وګوري هم نارې سورې به پیل کړي او ناروغ به شي، پاتې خو یو ماشوم شو.

د آمورو پاچا امر وکړ چې دغه کسان له کوټې ووځي بیا، مې ځان ووینځه، وروسته مې ویل د کوټې کړکۍ خلاصې کړئ!

بیا مې پښمي ټوکر د ماشوم د بدن له ګیر چاپېره لېرې کړل.

ماشوم چې تر هغه وخته نارې وهلې او ژړل یې، سمدستي غلی شو او خپلې چاغې پښې یې وښورولې.

ما وکتل چې ماشوم له دې سره سره چې وړوکی دی، خو د خپل پلار په شان تور او ګڼ وېښتان لري.

ماشوم ته ځیر شوم چې ناروغي یې معلومه کړم، ناڅاپه مې د هغه خولې ته پام شو، خوله چې مې ورخلاصه کړه، ومې لیدل چې یو کوچنی غاښ یې را شین شوی او دا هم راته معلومه شوه چې د ماشوم د ناروغي لامل هم همدا غاښ و.

د آمورو پاچا مې را وغوښت او د ماشوم غاښ مې ور وښود ومې ویل وګوره! ددغې بې اهمیته پېښې له امله د ې، د سوریې تر ټولو مشهور ډاکټر په وحشي آسونو پسې ترلې ګاډۍ کې دلته راوستی دی.

تا په غرنیو سیمو کې پنځوس ځله د مرګ له خطرې سره مخا مخ کړم، په داسې حال کې چې هر څوک لږه تجربه هم ولري، په دې پوهېدای شي چې کله د ماشوم غاښونه شنه کېږي، ماشوم بې تابي کوي او ښایي تبه هم وکړي، خو دغه تبه کوم خطر نه لري.

دا چې ستا ماشوم کانګې کړې دي دا طبیعي خبره ده، ځکه چې تا او د ماشوم مور پر له پسې غوړې شیدې ورکړي، په داسې حال کې چې د ماشوم معدې د هغو شېدو زغم نه درلود نو کانګې یې کړې دي.

اوس یې مور ته وواېه چې له دې وروسته پام کوي، ځکه ممکنه ده ماشوم د شېدو ورکولو پر وخت د هغې سینه پر خپل غاښ ژوبله کړي.

د ماشوم خوله مې د آمورو د پاچا په مخکې خلاصه کړه او هغه یې غاښ ولید.

پاچا چې د خپل ماشوم د ناورغی په علت پوه شو، ډاډه شو چې خطرناکه نه ده، نو په کوټې کې په نڅاشو او د ماشوم مور وویل هېڅکله یې دومره ښکلی غاښ نه دی لیدلی.

خو کله چې دې غوښتل خپل ماشوم په پشمي ټوکرنو کې تاو کړي ما یې مخه ونیوله او ومې ویل د کوشني لپاره د کتان یو ټوکر کفایت کوي چې پکې ویې نغاړئ.

د آمورو پاچا له دې کبله هېڅ خپه نه و، چې د یوې معمولي ستونزې لپاره یې زه له ازمیره راغوښتی یم.

ده امر وکړ چې د هغه د دربار مشران او ملګري دې راشي او د کوچني غاښ دې وګوري.

هغوی ټول کوټې ته راننوتل او ټولو غوښتل خپل غټې، ګنده او په خاورو ککړې ګوتې د ماشوم خولې ته وروړي او غاښ یې وګوري.

خو ما پاچا ته وویل چې هغوی لېرې کړي، ګني کوچنی به یې په رښتیا ناروغه شي.

کله چې د پاچا درباریان او ملګري ولاړل، نو ویې ویل دغه ماشوم راته د سترګو تر لېمو نژدې دی او ګران دی او تر ټولو هغو شیانو ډېر ارزښت راته لري چې زه یې لرم.

له څو شپو راهیسې زه د هغه له زانګو سره نه یم ویده شوی.

زه چې وهېږم زما زوی به مړ شي، بیا څوک به نه وي چې تر ما وروسته د آمورو پر هېواد پاچاهي وکړي.

خپل لاسونه یې زما پر سر کېښودل او ویې ویل سینوهه! پوهېږې چې زما له اوږو دې لوی بار لېرې کړ او زه دې ډېر پوروړی شوم.

بیا یې خپل کوشنی راوښود او ویې ویل تا خو ډېر هېوادونه لیدلي آیا کله دې دومره ښکلی ماشوم لیدلی دی؟

زما د کوشني وېښتان ګورې، د زمري په شان دي، چاغ نس یې یوې کوشنۍ پشکې ته ورته دی، چاغ لاسونه او پښې یې ښیي چې په راتلونکې کې به زما په شان قوي او غښتلی شي.

ورو ورو شپه شوه، څراغونه یې روښان کړل، خو زه د ډېر چټک او سخت سفر له امله ستړی وم، نو استراحت ته مې اړتیا درلوده، د پاچا خبرې مې نه شوې اورېدلی هغه ته مې وویل:

نن له سهاره تر مازیګره زه ستا د جنګي ګاډیو په منځ کې د باد په سرعت، په غرنیو لارو کې روان وم او اوس مې له ډېرې ستړیا د بدن ټول غړي خوږېږي، نو باید ډوډۍ وخورم او ویده شم.

خو ته ددې پر ځای چې خواړه راکړې او یا د خوب ځای راته جوړ کړې، پرله پسې خبرې کوې.

پاچا وخندل او ویې ویل ما هم له څو ورځو راهیسې له ډېر خپګانه څه نه دي خوړولي، خو نن شپه به ټولې تېرې ورځې جبران کړم.

بیا یې امر وکړ چې موږ ته خواړه راوړي

مریانو راته کباب شوی پسه او سېرلی راوړ او له دې وروسته چې ډوډۍ مې وخوړه فکر مې وکړ چې ستړیا مې کمه شوې ده.

زه څو ورځې د آمورو له پاچا سره پاتې شوم او هغه ګران بیه ډالۍ سره او سپین راکړل.

زه پوه شوم چې هغه د تېر ځل په پرتله ډېر شتمن شوی دی.

له پاچا مې پوښتنه وکړه چې دغه شته یې له کومه کړي، ځکه تېر وار چې مې ولیدې دومره شتمن نه وې.

هغه ځواب راکړ هغه ښځه چې تا راکړه په ما پورې یې قدم د ښو شو او ددې سبب شوه چې زه بډای شم.

له پاچا سره د مېلمستیا په څو ورځو کې، هغې ښکلې مېرمنې یانې هغې وینځې چې ما ورکړې وه، زما ښه میلمه پالنه وکړه او زه پوه شوم، چې دغه وینځه له دې سره سره چې چاغه شوې خو بیا هم غواړي چې چاغه شي.

په آمورو کې د مصر پر خلاف نارینه چاغې ښځې ډېرې خوښوي او هرڅومره چې ښځه چاغه وي، د ډېرو خوښېږي.

له همدې کبله په آمورو ټول ان ماشومان داسې سندرې وايي چې پکې چاغې ښځې ستایل کېږي.

ما دغه سندرې واورېدې څو کلیمې وې، خو دوی بیا بیا تکرارولې او نه ستړي کېدل.

د آمورو پاچا نورې ښځې هم درلودې چې د قبایلي مشرانو لونې وې.

دی یوازې له دغو ښځو سره د وفادارۍ د څرګندولو لپاره د هغو کورنو ته ورته

پاچا راته وویل چې له دغو ښځو سره له څملاستو خوند نه اخلي، خو له دې کبله چې د

قبايلي مشرانو لوښې دي، بايد ورسره ځملي چې د هغه او قبايلي مشرانو ترمنځ کرکه را ونه ټوکېږي.

د آمورو پاچا پوهېده چې ما ډېر سفرونه کړي او ځو هېوادونه مې ليدلي، نو ضروري يې ګڼله چې ماته د ځان ډېر صفت وکړي چې زه پوه شم هغه تر نورو پاچاهانو کوشنی نه دی.

هغه د ځان د ستايلو په وخت کې ماته داسې خبرې وکړې چې زه ډاډه يم، زما تر تګ وروسته به دی خپله هم پرې پښېمانه شوی وي چې ولې يې راته داسې خبرې کړې دي.

د بېلګې په ډول ده ويل په ازمير کې د هغه جاسوسان او ګمارل شوي کسان مصريان خوروي او پر هغې شپې چې پر ماحمله وشوه د هغه د ګمارل شويو کسانو له لوري ژوبل شوم، خو هغوی نه پوهېدل چې زه سينوهه يم ګني زه يې نه وهلم.

دغه راز ده ويل هغه مصري عسکر چې په ازمير کې وژل شوی، دده ګمارل شويو کسانو وژلی دی.

د اموروپاچا وويل د هغه له لوري د مصريانو ځورول به تر هغه دوام وکړي چې مصريان له سوريې ووځي او ولاړ شي.

پاچا ويل د ازمير او د سوريې د نورو بندرونو خلک ډارن او محافظه کاران دي، له خپلې ګټې پرته بل هدف او نظر نه لري ټول سوداګر دي.

له همدې کبله بايد يو زړه ور کس د مصري ضد غورځنګ مشري پر غاړه واخلي او مصريان له سوريې وباسي، چې سوريه د پخوا په شان بېرته ازادي ترلاسه کړي.

ماورته وويل ولې د مصريانو په اړه په زړه کې دومره کينه لرې، زه فکر نه کوم چې مصريان تر نورو ملتونو ډېر بدخلک وي.

د آمورو پاچا پر خپلې ګاړګوټې ږيرې لاس تېر کړ او ويې ويل، زه له ټولو مصريانو کرکه نه کوم، ته هم مصری يې او دا دی له تا کرکه نه کوم.

زه په ماشوموالي کې د فرعون په ماڼۍ کې اوسېدلی يم، هلته مې له مصريانو ډېر څه زده کړي دي . ما هلته ليک، لوست زده کړه او زما د ژوند مخينه داسې ده چې بايد مصريان را باندې ګران وي نه دا چې له هغوی کرکه وکړم.

سينوهه ! ته له دې سره سره چې يو ستر ډاکټر يې او ډېر هېوادونه دې ليدلي، خو پاچاهي دې نه ده کړې، له همدې کبله ته نه شې پوهېدای چې د يوه هېواد د مشر او پاچا له نظره کينه څه مانا لري؟

یو پاچا او د هېواد مشر له هېچا سره کینه او دښمني نه لري

کینه دیوه پاچا او هېواد مشر له نظره یو قوي او ځواکمن عامل دی چې حتی تر وسلې ډېره اغېزه لري

د آمورو پاچا وویل تر هغه چې خلک کینه ونه لري، که څه هم په لاس کې به یې توره او نیزه وي، خو پر چا یې نه شي پورته کولای.

دغه راز د یوه هېواد مشر چې پخپله له هېڅ هېواد سره کینه او دښمني نه لري، باید په خلکو کې کینه او دښمني پیدا کړي، چې د کینې او کرکې له لارې خپل قدرت پراخ، مضبوط او کلک کړي

زه هم د سوریې په خلکو کې د مصریانو پر ضد کینه اېشوم او دغه کینه او دښمني دومره زیاتوم چې د سوریې هر اوسېدونکی باور وکړي چې تر مصریانو به بل څوک بېرحمه، تیټ ذاتي او چلباز نه وي. دغه کینه باید دومره زیاته او پیاوړې شي چې کله کوم سریانی سړی او یا ښځه د مصریانو نوم واخلي، نوله کرکې یې وینه وایشېږي او په دې ایمان ولري چې مصریان تر ټولو وېرونکي، خونړي او بېرحمه ملت دی

کله چې له مصریانو سره د سوریې د خلکو کینه دې حد ته ورسیده بیا به دغه دښمني دومره سخته شي، چې غرونه له خپله ځایه وښوروي او هغه مهال به له سوریې څخه د مصري پوځ او واکمنانو ایستل اسانه کار وي

ومې ویل تاسې پوهېږئ چې داسې نه ده او هغه څه چې تاسې وایاست سم نه دي

د آمورو پاچا وویل حقیقت هغه شی دی چې زه یې د خلکو په ذهن کې ځایوم او کله چې ما یو شی د هغوی په روح کې ورننه یوست نو بیا دوی پرې باور کوي

دوی بیا فکر کوي چې حقیقت همدا دی او دغه باور به په هغوی کې دومره کلک شي، چې که څوک د هغه پر خلاف کومه خبره وکړي نو دوی به یې ووژني.

زه د سوریې خلکو ته دغه ذهنیت ورکوم، چې هغوی باید آزاد ژوند وکړي او آزادي هغه شی دی چې تر خوړو ډوډۍ، کور او ان تر ژوند ډېر ارزښت لري.

خلک زما د تلقیناتو پر بنسټ دغه حقیقت مني او له آزادۍ سره دومره مینه پیدا کوي چې چمتو دي، د آزادۍ په لاره کې خپل ژوند له لاسه ورکړي

هر څوک چې پر ازادۍ باور لري هڅه کوي چې نور هم قانع کړي او ډېر ژر به په ټولې سوریې کې یوازې یوه عقیده وي او هغه د آزادۍ عقیده !

د سوريې خلک نه پوهېږي چې دغه عقيده يې خيالي ده ، ځکه آزادي هغه شى دى چې د سوريې او نورو ملتونو لپاره نشته، بلکې هغه لاسوند دى چې په مرسته يې زه خلک غولوم چې په سوريه کې پاتې شم.

کله چې تاسې هم سوريې ته راغلاست داخبره مو کوله چې غواړئ سوريه آزده کړئ خو په دې پلمه مو د سوريې ټول ولس پر خپلو مريپانو بدل کړى او له هغوى قلنګ اخلئ.

ومې ويل نو ته پر آزداى عقيده نه لرې؟

د آمورو پاچا وويل نه.

ته چې يو ډاکتر يې نه شې پوهېداى چې هېڅ يو ټولواک په آزادى باور نه لري بلکې په دغو نومونو خلک غولوي چې خپل حکومت وکړي.

زه د مصر خلک پوهوم چې بايد آزاد شي، خو دغه آزادي تر هغه پورې نه شي ترلاسه کولاى چې د مصر پر خلاف متحد شي.

کله چې د سوريې خلک متحد شول نو دوى پخپل ګمان د ځان لپاره آزادي تر لاسه کوي خو خبره داسې نه ده، دوى دې ته لاره هواره وي چې زه پرې حکومت وکړم.

هغوى بايد د تل په شان زيار وګالي او قلنګ ورکړي، خو دومره به وي چې پخوا يې مصر ته قلنګ ورکاوه او له آزادى وروسته به يې زه ترې اخلم.

زه به دوى ته وايم چې تاسې د نړۍ تر نورو ملتونو نيکمرغه ياست، ځکه چې خپلواکي لرئ او هغوى به هم په دې خيالي نوم او پلمې خپل زړه خوشحالوي.

سينوهه ته پوهېږې چې يو ملت د پسونو ديوې رمې په شان دى او بايد هغوى په ځينو شيانو بوخت وساتل شي چې حکومت پرې وکړاى شي.

د ملت د بوختېدا يوه ښه لاره دا ده چې ورته ووايې ته آزاد يې او ددې لپاره رامنځته شوى يې چې آزاد ژوند وکړې.

خلک ساده دي هرڅه چې واوري مني يې او هغه حقيقت ګڼي، خو مهمه خبره دا ده چې يوه موضوع دومره دهغوى په غوږونو کې دومره وويل شي چې په روح کې يې ځاى ونيسي.

ومې ويل آيا پوهېږې چې ستا خبرې څومره خطرناکې دي؟

که د مصر قوماندان پوه شي چې ته څه نيت لرې نو خپلې جنګي ګاډۍ به ستا د هېواد پر لور راولېږي، دغه ښار به وران کړي، تابه ونيسي او سر په څېرۍ به دې په دار وځړوي

یا داچې طبس ته به دې بوځي او هلته به دې په دار کړي

د آمورو پاچا وویل د مصر فرعون پر ما اعتماد کوي، ماته یې د(حیات صلیب ) رالېږلی دی.

ما د هغه د خدای لپاره یو معبد جوړ کړی او هغه تر خپلو ځینو قوماندانانو پر ما ډېر اعتماد کوي.

اوس راځه، چې یو شی د روښییم چې ساعت دې پرې تېر شي.

د آمورو له پاچا سره د ښار د دېوال لوري ته روان شوم ، هلته مې یو سړی ولید چې له دېواله یې سر په څېړې راځوړند کړی دی.

د آمورو پاچا وویل دغه په دار شوی سړی مصری دی او که یې نه منې نو د هغه سنتېدل به دغه خبره ثابته کړي.

ومې پوښتل ولې دې دغه سړی سر په څیړې ځوړند کړی دی.

پاچا وویل دغه سړی د مصر د فرعون د مالیاتو محصل (یا ټولوونکی) و، او دلته راغلی و، چې له ما قلنګ وغواړي.

له څو کلونو راهیسې زما قلنګ ځنډېدلی او باید د دغو څو کلونو قلنګ ورکړم.

ما ورته وویل د دغه سړي خون به ستا پر غاړه وي او ته به له سخت عذاب سره مخامخ شې، ځکه چې په مصر کې په هرشي لوبې کېدای شي خو د فرعون له محصل سره لوبې نه شي کېدای، ځکه چې هغه د مالیاتو د راغونډولو کس دی.

پاچا وویل ما ورته چل برابر کړی او ددې پر ځای چې فرعون راته غوسه شي ، له ما به خوشاله شي چې دغه مفسد محصل مې وژلی دی. ما په سوریه کې مصري واکمنانو ته لس پخې شوې لوحې لېږلې او ورته ویلي مې دي، دغه سړی چې له سوریې څخه زما هېواد ته راننوت نو په ښځو یې تېری وکړ.

دغه راز یې د سوریې خدایانو ته سپکې سپورې وویلې، زموږ په معبد کې یې ناسم کارونه وکړل.

خوزموږ په قوانینو کې یې لیکلي چې که یو سړی د ښځې له خوښې پرته پر هغې تېری وکړي او یا ورسره خپل ساعت تېر کړي، یا خدایانو ته سپکې سپورې ووایي او یا په معبد کې ګنده کارونه وکړي نو باید ووژل شي.

څومره چې ما د آمورو له پاچا سره خبرې کولې هغه د مصري سپاهیانو قوماندان هورم

هب ته ورته ایسېده چې ما ته یې دنده سپارلې وه له نورو هېوادونو څخه پوځي معلومات را غونډ کړم.

هغه تو پییر چې په دغو دوو کسانو کې و، دا و چې د آمورو پاچا د هورم هب په پرتله په عمر پوخ او تر هورم هب چلباز و.

ځکه د آمورو پاچا په داسې هېواد کې واکمن و چې پخوا ددې سیمې پاچاهان د سوریې له نورو پاچاهانو سره په جنګونو بوخت ول او هغوی یې وژل.

له ګاونډیانو سره به یې دایمي اختلافات درلودل او دغه چارې پاچاهان د سیاست په ډګر کې استادي، ته رسوي.

له دې سره سره چې د آمورو پاچا چالاکه او زړور ښکارېده، خو ما فکر نه کاوه چې هغه دې پر ټولې سوریې د پاچاهۍ کولو وړتیا ولري.

هغه ته مې وویل دا منم چې په کوشنیوالي کې په مصر کې پاتې شوی یې خو د ماشومتوب له امله د مصر د فرعون پر عظمت او سترتوب نه یې پوه شوی.

تا ته نه ښکاري چې فرعون ډېره شتمني لري او کولای شي ښتا د هېواد پر لوري یو ستر پوځ راواستوي چې هېواد به دې درلوټې لوټې کړي.

ته باید پر خپل قدرت مغروره نه شې، دا خیال ونه کړې چې کولای شې د مصر له فرعون سره پنجه نرمولای شې.

کله چې پر یوې کښورې تېل وموښل شي، سوري یې وربند شي او بیا پکې باد پو کړای شي نو کښوره پړسېږي، د کښورې خاوند فکر کوي چې په لاس کې یې یو ستر شی دی، خو کله چې کښوره سوری، شي او باد یې ووځي نو کښوره بېرته کوشنی، شي.

ته هم د یوې کښورې په شان یې، له باده ډک یې، چې کله سوری شوې باد به دې ووځي.

پاچا وخندل او خپل طلایي غاښونه یې ما ته راوښودل، ویې ویل که زه له باده ډکه کښوره یم نو د هاتي او بابل د پاچاهانو په شان متحدان لرم، چې له سوریې څخه د مصره د ایستلو لپاره زما ملګري دي.

ما ورته وویل د بابل او هاتي پر اتحاد مه تېروځه، ځکه یو شغال ښایي د حیواناتو د ښکار لپاره له زمري سره یوځای شي، خو له دې وروسته چې کوم ځناور ښکار کړي، نو د ښکار تر ټولو ښه برخه یې زمری خوري او د شغال لپاره له کولمو او لړي پرته بل شی نه پاتې کېږي.

دغه دوه پاچاهان چې له سوریې څخه د مصر د ایستلو لپاره له تا سره ملګري شوي، نیت یې دا نه دی، چې ته د سوریې پاچا شې، بلکې غواړي چې دوی پخپله د سوریې تا توبې ونیسي او په دې صورت کې ستا لپاره به د آمورو له تا توبي پرته بل شی پاتې نه شي.

د آمورو پاچا ډېر وخندل او ویې ویل سینوهه! زه غواړم ستا په شان تحصیل وکړم، چې عالم شم او ستا په شان نورو هېوادونو ته سفر وکړم چې د نورو هېوادونو د ملتونو له علمونو هم خبر شم.

خو له دې کبله چې باید خپل هېواد اداره کړم، نو نورو هېوادونو ته د سفر فرصت نه لرم.

دغه خبرې چې ما له پاچا سره وکړې، زه یې پوه کړم چې باید د هغه له هېواده ووځم.

ځکه چې که د مصر فرعون خبر شي چې د هغه د مالیې ټولوونکی یې وژلی نو پر آمورو به حمله وکړي او په داسې وخت کې په آمورو کې زما شتون مناسب نه دی.

ښایي د آمورو پاچا به له مصریانو سره د ډېرې کرکې له امله ما ووژني.

نو پر بله ورځ مې پاچا ته وویل څو ورځې کېږي چې ستا مېلمه یم او له دې زیات نه غواړم ستا له مېلمه پالنې ناسمه استفاده وکړم.

که ته یو روان تخت راکړې، زه به ازمیر ته ولاړ شم، خو هلته به هم پاتې نه شم، بلکې مصر ته به ستون شم، ځکه چې د نیل د اوبو د څښلو هیله لرم.

ما رښتیا ویل فکر مې کاوه چې باید مصر ته ستون شم او د پردیو هېوادنو په اړه د خپلو تحقیقاتو نتیجه د مصر د لښکر قوماندان هورم هب ته ورکړم.

د آمورو پاچا وویل هغه مرغه چې ځاله نه جوړوي هېڅکله ارام نه وي خو په نورو هېوادونو کې تر ګرځېدا او د نړۍ له سیله تېر شې او په آمورو کې پاتې شې.

او که ته غواړې دلته پاتې شې، زه به درته یو کور جوړ کړم او د دې ښار یوه ښکلې نجلۍ به درکړم چې هغه خپله مېرمن کړې.

ما په ټوکو ورته وویل د نړۍ تر ټولو بد هېواد آمورو دی او ستا د هېواد له ښځو د زړو وزو بوی راځي، زه نه غواړم چې په دغه هېواد کې پاتې شم.

پر دې سربېره ډېره موده وشوه چې له مصره لېرې یم، وطن رایاد شوی او غواړم ستون شم چې د نیل د غاړې د هیلیو او غازانو آوازونه واورم.

د مصري خرما د ونو تر سیوري لاندې کېنم، د نیل د ماهوګانو سندرو ته غوږ ونیسم،

د مصر ګرم لمر مې پر وليو ولګېږي او بيا دارالحيات ته ولاړشم، د مصر ځوان محصلين له خپلو طبي معلوماتو خبر کړم چې د دارالحيات علمي ارزښت وساتل شي چې د نړۍ تر ټولو ستر ښوونځی دی.

د آمورو پاچا وويل له دې سره سره، چې نه غواړم ته له دې ځايه ولاړشې او ته هم نه غواړې چې پاتې شې، نو ستا لپاره به روان تخت برابر کړم، يو شمېر عسکر به هم درسره واستوم چې تا ازمير ته ورسوي، ځکه چې د مصريانو پر خلاف د سريانيانو غوسه دومره سخته شوې چې ښايي په لاره کې تا ووژني.

ما چې په جنګي ګاډيو کې سفر نه شو کولای نو په روان تخت کې د آمورو له پلازمينې روان شوم او د پاچا عسکرو ازمير ته ورسولم.

ازمير ته چې ورسېدم کاپتا ته مې وويل ډېر ژر، دغه کور خرخ کړه، ځکه چې له دې وروسته د ازمير او سوريې چاپېريال زموږ او نورو مصريانو لپاره خطرناک دی، موږ بايد ستانه شو.

## اوه ویشتم څپرکی

## د هورم هب د ليدو لپاره
## مصر ته ستنېدل

زه مصر ته د ستنېدا لپاره د خپل سفر په اړه ډېر څه نه وايم، يوازې دومره وايم چې کله بېړۍ حرکت وکړ، نو هر څومره چې مصر ته نږدې کېدو ما د بې صبرۍ ډېر احساس کاوه او کرار نه شوای پاتې کېدلای او تل مې د بېړۍ پر غولي چکر واهه.

زما بېره وه چې هر څومره ژر وشي مصر ته ورسېږم کله چې بېړۍ د مصر په ساحلي ښارونو کې لنگر اچاوه، نو ما د هغو ښارونو د ژوند د حالاتو په اړه مطالعه نه کوله ځکه چې ستومانه شوی وم.

ان د سوريې د غرونو رنگ چې د لمر لوېدو په وخت ارغواني کېدل زه يې نه هيجاني کولم.

په سوريې کې پسرلی شوی و، توتکيو په اسمان کې الوتونه کول، سندرې يې ويلې او کله چې مو په بندري ښارونو کې دمه کوله نو د هغو غږ به مې احساساوه چې پر سر به مې گرځېدلې.

د بعل د خدای (د سوريې د خدای) کاهنان د پسرلنيو شيانو د ټولولو لپاره په کوڅو کې نارې وهلې او مخونه يې شوگارې کول.

د دوی تر شا ځوانو نجونو او ښځو گاډۍ راکاږلې او هغه ډالۍ به يې پکې اچولې چې خلکو به د بعل خدای لپاره ورکولې.

خو له دې کبله چې زه مصر ته ستنېدم او د غو شيانو راته ارزښت نه درلود او زړه مې نه غوښتل چې ان يو ځل دې هم دغه منظرې وگورم ځکه يو ځل مې پخوا هم ليدلې وې.

هغه مهال چې ما غوښتل مصر ته ستون شم، د هغه پوه په شان وم چې پر يوې ښځې مين شوی او بايد د هغې ښځې ليدو ته ور شي.

يا بايد همدغه ښځه دده کورته راشي او دغه پوه او عالم نور نه شي کولای د پاپيروس(مصري کاغذ چې له يو ډول بوټي جوړېده) پر پاڼو ليکلي شيان ولولي او که يې ولولي نو له هغو علمونو څه نه شي زده کولای چې پر دغو کاغذونو ليکل شوي وي او تر هغه وخته همداسې چې دغه ښځه ويني له هغه وروسته يې حواس متمرکزې شي او کتاب ولوستلای شي.

زه هم ددې لپاره چې مصر ته روان وم د خپل هېواد ليدو ته ورتلم نو د سوريې د ښارونو د منظرو او ددې سيمې د خلکو د دودونو او رواجونو له کتو بېزاره وم.

ما غوښتل ځان طبس ته ورسوم او د شپې په پيلېدا سره د ښار په کوڅو کې قدم ووهم، د ختېنو کورونو په مخکې تېر شم، هغه منقلونه وګورم چې د کورونو په مخکې يې ايښي او کبان پرې سره کوي.

زړه مې غوښتل چې ژورې ساګانې وکاږم او د کبانو بوی احساس کړم.

د مصر د شرابو جامونه تش کړم او د نيل او به بوی چې د چيکړو بوی يې ځي او دا بوی زما ډېر زيات خوښېږي.

غوښتل مې ډېر ژر مصر ته ورسېږم چې د نيل پر غاړه په شنو شويو پاپيروسونو ګامونه کېږدم او د نيل سيند پر ساحل د وحشي ګلانو خوږ وږم احساس کړم.

کله چې لمر راخېژي او وړانګې يې د آمون د معبد پر رنګارنګ ستنو پرېوزي، نو زه د هغه الواني وړانګې وستايم.

لکه چې پخپل بر خليک کې مې ويلي له دې سره سره چې په طبس کې بدبخته شوی يم، خو د وخت تېرېدا پر دغې بدبختی د هېريدا دوړې پرې ايستې وې او هغه وخت چې مصر ته ستېندم نه مې ځان نيکمرغه احساساوه او نه بدمرغه ، بلکې د وطن درد مې درلود او غوښتل مې ولاړ شم هغه ځای ووينم چې ما پکې سترګې پرانيستلې، پکې لوی شوی يم او ځان مې پکې پېژندلی دی.

کله چې د سينا صحرا ته ورسېدو ، له دې سره سره چې پسرلی و ، مګر بيا هم هغه باد چې د وچې له لوري پر سمندر لګېده، ګرم و او زموږ مخونه يې وسوځول ، ځکه د سينا صحرا د نړۍ تر ټولو ګرمه سيمه ده.

له دې وروسته چې يوه موده مو د سينا د سور رنګه سواحلو په څنډه کې سفر وکړ ،هغه ځای ته ورسېدو چې د سمندر رنګ ژېړ شو.

ما نوګانو پر پړي تړلي يو منګی سمندر ته ورکوز کړ او له هغې خوا يې پکې اوبه را وکښلې.

ما چې وڅښلې نو احساس مې وکړ چې اوبه خوږې دي او د نيل د سيند د چيکړو بوی يې ځي.

کله چې د نيل خوږې اوله چيکړو ډکې اوبه سمندر ته رسېږي نو له ترو او بو سره ژر نه حل کېږي.

پر دې ورځ چې کله ما د نيل اوبه وڅښلې خپل مريي کاپتا ته مې وويل د غه اوبه زما له نظره د نړۍ تر غوره شرابو خوږې دي

خو کاپتا وويل هر چېرته اوبه شته او که د نيل اوبه هم وي د شرابو ځای نه شي نيولای.

ما وويل زه د دې اوبو پر څښلو ځکه خوشحال شوم چې پوهېږم مصر ته را رسېدلي يو.

کاپتاوويل ، که مصرته ورسېدو زه تصور نه کوم چې زما د ژوند حالت دې بدل شي، ځکه زه يو مريی يم، که په مصر کې يم يا په بل ځای کې نو زما لپاره توپير نه لري.

ماوويل کاپتا زموږ او ږدو سفرونو سپين سترګی کړی يې، ان تر دې پورې چې کله مې هېر شوی يې، چې ګڼي ته زما مريی يې.

داسې ځواب راکوې چې هر څوک يې واوري فکر کوي چې دا ستا حق دی چې له ما سره همداسې خبرې وکړې.

که په مصر کې وای نو د نيل له څنډو مې يوه لښته راوړله او پر ملا او ولیو مې څو ګوزارونه درکول چې پوه شوی وای چې ته زما مريی يې او حق نه لرې چې له خپل بادار سره دغسې بحث وکړې.

کاپتا دواړه لاسونه پر زنګنو کېښودل او رکوع يې وکړه ، بيايې وويل زما باداره !: ته هم ډاکټر يې او هم هنرمند خطيب او وينا وال.

ته پوهېږې چې کله او څنګه له خولې خبرې وباسې او هغه څه چې تا اوس وويل ماته يې ستا لکړه او د نيل د څنډو د ونو لښتې راپر زړه کړې.

پوهېږم چې د لکړې او لښتې ګوزار د سيند له چيکړو اوبو، د هيلېو له سندرو، د سروشويو کبانو له بويونو او د طبس د معبدونو د بړاس له ښکلي بويه مشهوردی.

ځکه دا يو زر کاله کېږي چې مريیانو ته په لکړو او لښتو سزا ورکوي، ددغو لښتو له زوره په مصر کې هرڅه پر خپل حال پاتې دي او هېڅ شی له خپل ليمخي څخه پښه نه غځوي

له دې سره سره چې د مصر د جوړېدا زر کاله کېږي، خو هېڅ شی په کې نه دی بدل شوی.

اوس پوهېږم چې باید د لبنتې او لکړې ګوزارونه وخورم، ځکه اوس مې باور دی چې مصر ته رسېدلي یو.

زموږ اوږده سفرونه چې ما د ېر څه پکې زده کړل، پای ته ورسېدل... اوه... اې د نیل د څنډو د بانسونو لبنتې، د مصر خدایان دې برکت درکړي، ځکه هر چاته ادب ورکولی شې چې تر خپل لېمڅي پښې اوږدې نه کړي او ددې مخه نیسې چې څوک پر چاتېری وکړي.

له دې خبرو وروسته کاپتا له ډېر غمه په ژړا شو او بیا د بېړۍ په یوې څنډه کې کېناست او تر هغه وخته ویده و، چې زموږ بېړۍ بندر ته رسېده.

کله چې بېړۍ د نیل سیند ته ورسېده، د بندر په څنډه کې و درېده او زما سترګې پر مصري پنډیانو ولګېدې چې له یوه لنګ پرته یې بله جامه پر تن نه وه.

ما ولیدل چې ډېرې یې خریلې دي او دلته متوجه شوم چې د سریانیانو له اوږدو جامو او ګاږګوټې ډېرو مې کرکه کېده.

سوریه کې نارینه او ښځې ټول چاغ ول، په داسې حال کې چې د مصر نارینه او ښځې ټول نري اندامونه لري. پر ما باندې ان د جوالیانو د بدن د خولو بوی خوږ لګېده.

همدا چې زما او کاپتا نومونه یې ولیکل کاپتا ځان د سوریې معرفي کړ، چې څوک ورته مزاحمت ونه کړي(ځکه چې کاپتا تښتېدلی و).

له بېړۍ چې راکوز شوو، ما خپلې پشمي سریاني جامې وایستلې او د مصر کتاني جامې مې واغوستلې.

له دې وروسته چې دوه ورځې مو په بندر کې استراحت وکړ په یوې بېړۍ کې سپاره شوو چې طبس ته تله.

له هغه وروسته د نیل پر سیند زموږ سفر پیل شو.

موږ ډېره موده د نیل سیند منظرې نه وې لیدلې، نو پر همدغې ورځ مو له سهاره تر بېګا ښې او کیڼ لوري ساحل ته کتل.

د هیلیو او غازانو له اوازونو او دهغو لوخو کلیوالو له لیدو مو خوند اخیست چې خپل غوايي به یې د قولبې لپاره بیول.

کله چې به کشتۍ په یوه بندر کې و درېده، کاپتا به یوې ساقي خانې ته ولاړ او مصري

بيرو (داوربشو اوبه ) به يې څښل. ده به ساقي خانه کې ناستو خلکو ته په نورو هېوادونو کې د خپلو سيلونو کيسې کولې او هغوی به د کاپتا خبرو ته داسې حيران شول چې د مصر خدايانو ته يې پناه وروړله.

څومره چې طبس ته نژدې کېدو د نيل د دواړو غاړو او سېدونکي زياتېدل.

طبس ته نژدې کلي او باندې له يوه بل سره نښتي ول.

يو وخت د نيل په ختيز کې درې غرونه راڅرګند شول، چې ته وا د طبس ښار درې ساتونکي دي، ورپسې د ښار ستر دېوالونه او له هغه ور ها خوا د آمون ستر معبد او سپېڅلې ډنډ راښکاره شول.

کله چې ما د نيل سيند په لوديزه څنډه کې د اموات (مړيو) ښار وليد خپه او غمجن شوم.

ومې ويل د مړيو ښار هغه ځای دی، چې کله مړي موميايي شول هلته يې ښخوي.

د مصر د ټولو فرعونيانو او ملکو قبرونه هلته ول او د هغوی په هديره کې سپين رنګه وداني ځلېدې.

د مصر د هرې ملکې د قبر پر وړاندې يوه ونه کرل شوې چې دغه ونې د پسرلي په موسم کې (هغه فصل چې موږ مصر ته ننوتو) ګلان کوي.

زه څکه د مړيو د ښار په ليدو خپه شوم چې خپل مور و پلار مې راياد شول چې د غوايي په پوستکي کې د يوه فرعون قبر ته نژدې ښخ شوي دي.

ما دهغوی قبر د يوې حريصې ښځې د مينې له امله خرڅ کړی و او هغوی مې پخپل قبر کې نه شو خښولای.

ما دوی ته نوی قبر هم نه شو اخيستلای چې په بلې دنياکې بې کوره نه وي.

په سوېل کې چې د نيل سيند کرېږي د فرعون ماڼۍ د شنو ونو په منځ کې ځلېږي چې طلايي رنګ.

زه شکمن وم چې ايا د مصر د لښکرو قوماندان هورم هب به لا هم په دې ماڼۍ کې اوسېږي او کنه ؟

کله چې زه له مصره تلم هغه يو پياوړی سړی و، او فرعون ته ډېر نژدې و، خو هېڅوک له قضا او قدره خبر نه وي او نه پوهېږي چې هغه کس چې نن باچا ته نژدې دی سبا دغه نژدې والی له لاسه ورنه کړي؟

زموږ بېړۍ د طبس په بندر کې هغې سیمې ته نژدې و درېده چې زه پکې لوی شوی وم. ما ناڅاپه داسې احساس وکړ چې زه ماشوم یم او ځان مې د ماشومتوب د همیشنیو منظرو په منځ کې لیده.

د کوچنیوالي او ځوانۍ د خاطرو را یادېدلو هم خوشحاله او هم خپه کړم.

د پلار و مور په حالت د هر خواشیني شوم، ځکه هغوی ټول عمر ځانونه له کړاو او مصیبتونو سره مخامخ کړل چې وکړای شي ما ته سواد را زده کړي او ښوونځي ته مې ولېږي، خو د ځوانۍ او د یوې ښځې د وسوسې له امله ما له هغو سره خیانت وکړ او د هغوی قبر مې خرڅ کړ.

داسې وشرمیدم چې غوښتل مې مخ پټ کړم، چې طبس مې ونه ګوري او ونه وایي چې دا دی هغه نمک حرامه سینوهه چې خپل مور و پلار یې په بله دنیا کې بې کوره کړل.

تر دې وړاندې چې طبس ته ننوځم په دې ښار کې د ژوند کولو لپاره مې خاص او معلوم پلان نه درلود، ځکه چې هلته زما ژوند کول په هورم هب پسې تړلی و چې ویې وینم او پوه شم چې هغه به زما د راپور له ترلاسه کولو وروسته څه ووایي؟

خو کله چې مې په ښار کې ګام کېښود، پوه شوم چې زه به بیا هم په دې ښار کې د پخوا په شان ډاکټر شم، خو یو مشهور او ستر ډاکټر نه بلکې هغسې ډاکټر چې د بېوزلو په سیمه کې ژوند کوي او د بېوزلو او خوارو کسانو معالجه کوي.

ما دانیت نه درلود چې په پردیو هېوادونو کې تر لاسه کړي معلومات د خپل شهرت او شتمنېدا وسیله وګرځوم، بلکې نیت مې کړی و چې د بېوزلو په سیمه کې ژوند وکړم او احساس مې وکړ چې خوشحاله او هوسا شوی یم.

که زما پر ځای بل ډاکټر وای او په نورو هېوادونو کې یې دومره معلومات ترلاسه کړي وای، نو طبس ته له ستنېدا وروسته یې په یوې شتمنې سیمې کې اړول او د خپل کور پر سر به یې یوه لوحه ځوړنده کړې او خپل نوم به یې پرې لیکلی چې ټول پوه شي دغه ډاکټر تر ټولو غوره دی او هغه کسان چې د معالجې لپاره ورځي باید ګران بیه ډالۍ ورکړي.

ما غوښتل د بېوزلو په محله کې ژوند وکړم او نوم ورکی پاتې شم او له دې امله مې ځان راضي احساساوه.

دغه موضوع د دې ښوونه کوي چې ځینې وخت موږ د خپلې غوښتنې په اړه هم تېروتنې کوو او نه پوهېږو چې څه غواړو په ټوله نړۍ کې ګرځو او له یوه هېواده بل ته ځو، په سرو

او سپينو علم ترلاسه کوو، چې وطن ته له ستنېدا وروسته د يوه شتمن په شان ژوند وکړو او خپل دغه پرتم نورو ته هم وروښيو، خو له ستنېدا وروسته په حيرانۍ سره ګورو، هغه څه چې موږ هوسا او اراموي نو د ښار په يوې څنډه کې ګمنامه ژوند کول دي.

د بندر جواليان پر موږ راتاو شول، چې له بېړۍ څخه زموږ بار راکښته کړي او يوه ميلمستون ته يې يوسي.

دوی تمه درلوده چې له موږ څخه ډېره اجوره واخلي، ځکه هر چېرته دود دا وي چې کله يو مسافر کوم ښار ته ځي نو جواليان ترې ډېرې پيسې اخلي.

خو ما کاپتا ته وويل چې نه غواړم مېلمستون ته ولاړ شم او جواليانو ته ووايه چې زموږ بار، بستره له بېړۍ څخه نه باسي. کاپتا وويل، ايا ته نه غواړي چې په دې ښار کې پاتې شې؟

ومې وويل. ته بې له ځنډه ولاړ شه او د بېوزلو په محله کې يو کور راته واخله. دغه کور تر ډېره حده بايد زما د مور و پلار پخواني کور ته نژدې وي، کور بايد نن واخلې چې زه سر له سبا هلته طبابت وکړای شم.

کاپتا په دې خبرې ډېر خپه شو، ځکه چې تصور يې کاوه موږ به په يوه ميلمستون کې ايسار شو او مريبان به دغه چوپړ کوي، خو نيو که يې ونه کړه، سر يې ښکته واچاو او ولاړ.

پر همغې شپه زه پخپل نوي کور کې چې پخوا ديوه مسګر کور و او د بېوزلو په سيمه کې و پر ځمکه کېناستم.

په شاو خوا کورونو کې او په چم ګاونډ کې ښځو د کورنو په مخکې په منقلونو کې کبان سره کول او له ټولې سيمې څخه د سرو کړيو کبانو بوی لتېده.

چې شپه پخه شوه د عمومي ځايونو چراغونه روښانه شول او له منځه يې د سريانو موسيقۍ سندرې واوريدل شوې.

د مستو مانو ګانو غږونه پورته شول او چې اسمان ته به مې کتل نو د ښار د څراغونو رڼا له کبله سور بخونه شوی و.

زه له اوږدو کلونو وروسته چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په سفر او د معلوماتو په ټولولو بوخت وم، خپل لومړني ځاي يانې خپل کور ته ستون شوی وم.

حيران وم چې په سوريې، بابل او کرت کې مې هغه ښکلې منظرې وليدې، معطره تېل

مې بوي کړل، خو ولې د سرو کړیو کبانو بدبوی او د ګاونډیانو دبېوزلۍ او لوږې منظرو خوند راکاوه.

د بلې ورځې پر سهار مې کاپتا ته وویل یوه ساده او بې انځوره لوحه زما پر کور ولګوه چې خلک پوه شي . دا دیوه ډاکټر کور دی.

هغو ته مه وایه چې زه یو مشهور ډاکټر یم بلکې یوازې زما نوم واخله او توضیح ورکړه چې دغه ډاکټر بېوزله نارو غان ګوري، هر څوک کولای شي له خپل وس سره سم فیس ورکړي.

کاپتا وویل زما باداره ! ته یو مشهور ډاکټر یې او نورو هېوادونو ته د سفرونو په ترڅ کې دې ډېر معلومات راغونډ کړي نو ولې ځان د بېوزلو ډاکټر جوړوې ؟

ما وویل کاپتا ! کومه خبره چې زه درته کوم، هغه ومنه ، زما امر اجرا کړه ګني زما له کوره بهر شه، هرډول چې غواړې ژوند وکړه.

زه پوهېږم چې له مادې دومره غلا کړې چې نن پرې کور اخیستلای شې او یوه ښځه پرې کولای شې.

کاپتا وویل زما باداره ! که ته تبه ونه لرې دغسې خبرې نه کوې.

بله دا چې زه داسې سړی نه یم چې ښځه وکړم ، تل په کور کې له هغې سره جنګ وکړم، دا زما ډوډۍ وخوري او د جنګ په وخت کې مې په لکړې او لښتې ووهي.

کله چې انسان کولای شي آزاد ژوند وکړي او په هوساینه کې وخت تېر کړي، زما په نظر ښځه کول لېونتوب دی.

خو له دې کبله چې ته زما بادار یې که ته پر پوزي خملې زه به هم پر پوزي درسره خملم خو خپله خواشیني هم نه شم پټولای ځکه ستا کار ته چې ګورم نو لېوني ته پاتې کېږې.

یوازې لیونی، مرغله تر خوشیو لاندې پټوي او ته هم خپل علم او پوهه د بېوزلو تر جنډو لاندې پټوې.

ماوویل کاپتا کله چې انسان نړی، ته ستر ګې رڼوي، نو که خان وي او که بېوزله خو لوڅ لغړ وي ، او په نارغیو کې هم بېوزله او شتمن توپیر نه لري دواړه کړاو زغمي او باید دواړه معالجه شي.

کاپتا وویل هغه ډالۍ چې یو شتمن یې له معالجې وروسته ورکوي دیوه بېوزله له ډالۍ سره ډېر توپیر لري.

که زه له فطري پلوه مریی وای او له زوکړې سره مریی ګڼل کېدای ستا دغه نظربه مې منلی و ،خو له دې کبله چې لومړی ازاد وم او بیا غلام شوم دانه شم منلی چې بېوزله او شتمن د انسانانو له نظره یو شان دي.

ومې ویل کاپتا ! زه بېوزله او شتمن ناروغ ته په یوه سترګه ګورم او ستا د معلوماتو د زیاتولو لپاره باید ووایم چې که بې مور و بې پلاره ماشوم پیدا کړم نو هغه د خپل فرزندي اولاد په توګه روزم.

کاپتا وویل ،دغه کار ګټه نه لري ځکه چې بې مور و بې پلاره ماشومان په ځانګړو معبدونو کې ساتي.

هغوی ټیټ رتبه کاهنان کېږي او ځینې ، خو خصیان کوي او د شتمنو کورنو ته یې لېږي چې نوکران او یا د هغوی د ښځو ساتونکي شي.

دغه خصي ماشومان (خوجګان) د خانانو په کورونو کې هغسې ښه ژوند کوي چې که یې پلرونه ژوندي وای نو د هغوی په کورنو کې به یې نه درلود.

که ته کوم ماشوم غواړې نو واده مه کوه او له هېڅ یوې ښځې سره منګی مه ماتوه. ته له هغو پېغلو ځخه چې له ورونو پرته بلا ربېږي وغواړه چې له زوکړې وروسته خپل ماشوم تا ته درکړي.

هغه به لس ځله د آمون له خدایه شکر وکړي چې ته یې ورسره مخامخ کړې او ماشوم ترې غواړې او لو یوې یې.

که نه غواړې چې له یوې بې مېړه ښځې ځخه د هغې زوي واخلې نو یوه ځوانه وینځه واخله چې هم درته بچی وزېږوي او هم له ما سره په کارونو کې مرسته وکړي.

ځکه چې زه بوډا شوی یم او د کور کارونه راته سخت شوي دي او کله کله مې لاسونه رېږدي ، که تا کومه وینځه واخیستله نو تر هغه وروسته به زه هم په کور کې کار کوم او هم به خپلې پیسې په کارو بار واچوم چې ګټه راته وکړي

ما ورته وویل زه نه غواړم چې کومه وینځه وپېرم، خو ته کولای شې د کور د کارونو لپاره یو نوکر ونیسې او ته پخپله زما په کور کې استراحت وکړې.

دا به ستا د تېرو خدمتونو او وفادارۍ انعام وي.

زه پوهېږم ته به په دغه ښار کې ساقي خانې ته ولاړ شې ، او کولای شې هغه خبرې ماته هم راوړې چې ته یې هلته اورې ځکه چې له ساقي خانې پرته په هېڅ ځای کې خلک دومره

صمیمي مجلس نه کوي.

د هر کسان چې هېڅکله خپل باطن نه څرګندوي، خو کله چې شراب وڅښي په خبرو راځي او هغه څه وایي چې په زړه کې یې لري.

له دې خبرې وروسته زه له کوره ووتم چې یو پخوانی ملګری پیدا کړم او د مصر د پوځ قوماندان هورم هب ولټوم.

په دې لړ کې هغې ساقي خانې ته ولاړم چې زما هنرمند ملګری توتمس به هلته ورته.

ما د هغه پوښتنه وکړه.

شراب پلورونکي راته وویل، نه پوهېږم چې هغه چیرته دی او څه کوي، ځکه چې له یوې مودې راهیسې دلته نه راځي، خو تر دې وړاندې چې ورک شي د پیشوګانو انځورونه یې ایستل.

ما په حیرانۍ سره وپوښتل، ولې یې د پیشو ګانو انځورونه ایستل؟

د ساقي خانې خاوند وویل هغه مجبور و، له دې لارې یې پیسې ګټلې، ده په هغو کتابونو کې د پیشوګانو انځورونه ایستل چې ماشومان یې په ښوونځي کې لولي.

زه له ساقي خانې را ووتم او د عسکرو کور (پوځي چونۍ ـ ژباړن ) ته ولاړم چې هلته هورم هب ووینم.

خو هلته چې ورغلم ومې لیدل چې د سپاهیانو په کور کې لږ کسان اوسي.

اوس د پخوا په شان عسکر په انګړ کې نه پهلواني کوي او نه نېښې ولي.

په انګړ کې یو افسر ولاړ و، پوښتنه یې راڅخه وکړه چې دلته څه غواړې او ولې راغلی یې؟

ما ترې پوښتنه وکړه، چې آیا هورم هب هلته دی او که دلته نشته چېرته یې پیدا کولای شم.

صاحب منصب چې کله د هورم هب نوم واورېد سر یې ټیټ کړ او زه دده له درناوي څخه پوه شوم چې هورم هب لا هم د پوځ مشر دی.

له هغه مې پوښتنه وکړه چې ایا هورم هب لا هم د پوځ قوماندان دی کنه؟

صاحب منصب وویل هو ! هغه د پخوا په شان د مصري سپاهیانو مشر دی خو اوس دلته نشته او کوش ته تللی دی چې د هغه ځای چونۍ له منځه یوسي او هغه سرتېري رخصت کړي چې په دې چونۍ کې دي، خو دا معلومه نه ده چې کله به راستون شي.

ما دغه صاحب منصب ته یوه کڅوړه سپین زر ورکړل او هغه د سپینو زرو د دې کڅوړې په لیدو حیران شو، نو بیې کبر پرېښود ماته یې وخندل او ویې ویل، هورمهب یو ستر قوماندان دی او پرې چې پوهېږي چې عسکر څه غواړي او څه ډول چلند ورسره وکړي؟

خو فرعون د یوه پسه په شان دی، د عسکرو له حالاتو خبر نه دی او پام ورته نه کوي

له همدې امله کله چې اوس هورمهب دلته نشته، نو لکه چې ګورې د عسکرو کور تش دی، عسکر تللي چې خیرات ټول کړي او خپله خېټه مړه کړي.

له دې کبله چې زه تر ټولو ټیټ رتبه افسر یم، د ګدایي لپاره نه شم تللی، زه له آمونه غواړم چې د سپینو زرو د دې کڅوړې له امله تا بختور کړي.

ځکه څو میاشتې کېږي چې زه ساقي خانې ته نه یم تللی، چې د وربشو اوبه وڅښم، خو نن به شراب پلورنځي ته ځم او هلته به ښه ډېر وڅښم

تر دې وړاندې چې یې موږ عسکري ته راوستو نو ژمنه یې راسره وکړه چې که سپاهیان شوو، ډېر سره او سپین به ترلاسه کړو او ښکلې ښځې چې وغواړو موږ ته به رسېږي، خېټې به مو تل له خوړو او د اوربشو له اوبو ډکې وي.

د سپاهیانو له کوره چې راووتم دارالحیات ته ولاړم، چې هلته د فرعون د کوپړۍ سوري کوونکی ووینم، خو هلته یې راته وویل چې کوپړۍ سوري کوونکی دوه کاله مخکې مړ شوی او مړی یې د اموات (مړیو) په ښار کې ښخ کړی دی.

په دارالحیات کې چې له ما سره کومې خبرې وشوې، پوه شوم چې فرعون د خپل خدای په پیروۍ چې اتون نومیده، هغه عسکر چې دده پلار اجیران کړي ول رخصت کوي.

د فرعون استدلال دا و چې وایي په سوله او ورورګلوۍ کې به ژوند کوي او عسکرو ته اړتیا نشته

ددې ژوند لیک په پیل کې مې ویلي ول، چې دارالحیات د آمون په معبد کې دی او له دې کبله چې په معبد کې وم، غوښتل مې د معبد حالت هم وګورم، چې د ځوانۍ خاطرې راپه زړه کړم.

هلته مې ولیدل چې کاهنانو خپل خړېیلي سرونه غوړ کړي، سپینې جامې یې اغوستې او وارخطا دي.

کله چې یې خبرې کولې شا وخوا یې کتل او داسې ښکارېده چې وېرېږي، څوک یې خبرې وانه وري

دوی چې زه ولیدم نو په شکمنو سترګو یې تېز تېز راته وکتل او ښایي فکر به یې کړی وي چې ګني زه جاسوس یم.

زه په آمون معبد کې د مصر د پخوانیو مجسمو تر مخې تېر شوم او د معبد وروستی برخې ته ورسېدم او هلته مې په حیرانی سره ولیدل چې یو نوی معبد یې جوړ کړی دی.

کله چې زه د آمون په معبد کې وم، هغه مهال دغه عبادتځای نه و، نو راته معلومه شوه چې دغه معبد له طبس څخه زما له تللو وروسته جوړ شوی دی.

کله چې دغه معبد ته ننوتم ومې لیدل، چې دېوال نه لري بلکې یو تش انګړ دی چې شا و خوا یې لوړې ستنې درولې دي، د انګړ یوه خوا خلاصه ده یانې ستنه نه لري او د معبد محراب همغلته دی.

محراب ته نژدې شوم ومې لیدل ددې پر ځاي چې قرباني شوی پسه او نور سپېڅلي شیان په محراب کې کېږدي، هلته یې ګلان، میوه او غنم ایښي دي.

پر محراب یې یو ډېرین حکاکي شوی انځور کېنبل شوی چې د آتون خدای یې د یوې دایرې په شان ښودلی. له دایرې څخه شاوخوا ته وړانګې تللې، په یوه لاس پای ته رسي او هر لاس د حیات صلیب کلک نیولی دی.

ددې معبد کاهنانو سپینې جامې اغوستې وې، سرونه یې هم نه و خرېیلي او ټول ځوانان ول.

کله چې زه دې معبد ته ننوتم کاهنان د محراب شاوخوا ته را ټول شوي و او سپېڅلې سندره یې ویله.

غوږ مې ونیو ګورم چې د سندرې ټون مې په غوږونو کې اشنالګېږي او هغه مې د سوریې په اورشلیم کې اورېدلې وه.

خو ددغه معبد په ټولو شیانو کې تر ټولو عجیب شی د فرعون مجسمه وه چې د ستنو په سر کې لیدل کېده.

ما ستنې وشمېرلې، ومې لیدل چې څلوېښت ستنې دي او په هرې ستنې د فرعون داسې ډېرینې مجسمې جوړې شوې چې دده تر بدن لویې دي.

مجسمې یې داسې جوړې کړې چې فرعون دواړه لاسونه پر سینې ایښي دي، په یوه لاس کې یې متروکه او په بل کې یې سلطنتي لکړه ده. مجسمې ټولې محراب ته ګوري او زه نه پوهېدم چې کوم مجسمه جوړونکي دغه طرحه ورکړې او هغه یې د خپلو شاګردانو

په وسيله جوړې کړې دي.

خو په دې پوهېدم چې مجسمه جوړونکي قصداً د فرعون د اندام ټولې نيمګړتياوې اپوته ښودلې دي.

مثلاً، فرعون ډنګر لاسونه او پښې لري خو په مجسمې کې يې لاسونه او پښې هومره غټې غټې جوړ کړې چې ته وا د فرعون لاس او پښې ژې دي او له باده ډک شوي دي.

چې د بدن له غړو ورتېر شو مجسمه جوړونکي د فرعون څېره، هم مسخ کړې وه.

ټولو پخوانيو مجسمه جوړونکو او هنرمندانو چې د پخوانيو فرعونيانو مجسمې يې جوړې کړې، هڅه يې کړې وه، چې مجسمه د هغه له اصل سره يو شان وي.

څوک چې زړ کاله وروسته هم دغه مجسمه ګوري پوهېږي چې دغه فرعون څه ډول و؟

خو هغه هنرمند چې د دې معبد مجسمې يې جوړې کړې، نو دې ورته والي ته يې هېڅ توجه نه ده کړې.

کله چې څوک فرعون په لويو او کوچنيو زاويو، وتليو غومبورو او اوږد مخ وګوري نو ترې ډار پېږي

که زما ملګرې توتمس دلته واى او دغه مجسمې يې ليدلې واى نو ويل به يې چې، دا نوى هنري مکتب دى او په نوي هنر کې د خلکو او شيانو انځور او شکلونه بايد د هغوى له اصل سره توپير و نه لري بلکې هنرمند چې يو شى او يا يو کس هر ډول ويني بايد انځور او مجسمه يې هم هماغسې وباسي.

يوه بل شي چې زه يې حيران کړم، دادى چې څه ډول د مصر فرعون (څلورم آمن هوتب) موافقه کړې چې د هغه مجسمې داسې جوړې شي. ايا هغه خپل ځان همداسې ليده، ځکه خو يې پر مجسمه جوړونکو نيوکه نه ده کړې او هغه يې د هغو کسانو په شان چې کفر يې کړى دى په دار نه دى پورته کړى؟

زه پوه شوم چې په نوي معبد کې ليدونکي ډېر نه دي او ننداريان په دوو ډلو وېشل شوي دي.

يو شمېر هغه کسان دي چې د کتان جامې يې اغوستې او د سرو زرو زنځير يې په غاړه کې دى.

دا د مصر درباريان ول، دوى پوهېدل چې فرعون نوي معبد ته توجه کوي نو د چاپلوسۍ او غوړه مالۍ لپاره دغه معبد ته راتلل.

دویمه ډله نندارچیان او عام خلک دي چې په حیرانۍ سره یې د کاهنانو سندرو ته غوږ نیولی و، ځکه چې د هغو په مانا نه پوهېدل او د سندرې تون او اهنګ ورته عجیبه ښکارېده.

دوی له ماښوموالي راهیسې له هغو سندرو سره عادت شوي ول چې د مصر په معبدونو کې د هرمونو له جوړېدا راهیسې ویل کېدې. دغه سندرې د دوي په اروا او کې داسې اخښل شوې وې، چې که یې په خوب کې هم اورېدې نو په مانا یې پوهېدل خو نوې سندرې د هغوی د روح او غوږونو لپاره نا اشنا وې.

له دې وروسته چې سندرې وویل شوې یو سړی چې له ظاهري څېرې کروندګر او له بیدیا راغلی ښکارېد، کاهنانو ته ورنژدې شو او له هغوی یې پوښتنه وکړه، ایا شونې ده یو طلسم او یا دقرباني شوي پسه او غوییي سترګه چې خطر لېرې کوي ده ته په ارزانه بیه چې له ځان سره یې یوسي او له خطرو خوندي شي.

کاهنانو د هغه سړي په ځواب کې وویل، د آتون خدای طلسم او د قربانۍ سترګه نه خرڅوي او هغو ته اړتیا نه لري، بلکې هر څوک چې پرې عقیده وکړي، د هغه ملاتړ کوي او بې له دې چې ډالۍ ورکړي هغه ساتي.

کله چې سړي دغه خبرې واورېدې د څېرې رنګ یې بدل شو او بېرته ستون شو.

ما اورېدل چې سړی له ځانه سره غړمبېده، ویل یې د آتون خدای د درغو خدای دی، بیا د آمون د معبد پر لور روان شو چې ددغه معبد له کاهنانو د قربانۍ سترګه او یا طلسم تر لاسه کړي.

یوه عامه ښځه ځوان کاهن ته نژدې شوه ویې ویل، مګر د آتون په نوم ستاسې خدای د قربانۍ پسونه او غوییي نه ترلاسه کوي؟ څوک ورته قرباني نه کوي چې تاسې غوښه وخورئ او چاغ شئ؟ که ستاسې خدای همغه ډول چې وایئ ځواکمن وي نو د هغه کاهنان باید چاغ او غوښن وي، نه داسې ډنګر او بې وسه لکه تاسې چې یاست.

ستاسې خواري او ناتواني دا ښیي چې خدای مو هم ناتوانه دی، په داسې حال کې چې آمون غښتلی دی، خپلو کاهنانو ته غوښې ورکوي له همدې امله ټول چاغ او غوښن دي.

یوه مشر کاهن وویل آتون له قربانۍ کرکه کوي، نه غواړي چې د ځناورو وینه د هغه لپاره توی شي.

ته باید په دې معبد کې د آمون نوم وانه خلې، ځکه چې آمون د درواغو خدای دی او

ډېر ژر به د هغه د خدايي تخت نسکور او معبد وران شي.

ښځه دوه ګامه شاته شوه ويې ويل اې امونه! خبر اوسه چې ما دغه خبره نه ده کړې بلکې دغه سړي دا خبره وکړه او ستا لعنت بايد پر هغه شي نه پر ما.

ښځه له نورو مېرمنو سره چې هلته وې ولاړه او کاهنانو په ټوکو او خندا ورته وويل ورځئ ورځئ.

اې بې ايمانه خلکو پوه شئ، چې آمون د دراغو خدای دی او ډېر ژر به د هغه ځواک د هغو وښو په شان چې له منځه ولاړ شي چې د لور په وسيله رېبل کېږي.

په دې وخت کې يو سړی تېښته شو، يوه ډبره يې له ځمکې را واخيسته، د کاهنانو خوا ته يې ور وويشته.

ډبره د يوه کاهن پر مخ ولګېده، مخ يې ژوبل شو، کاهنانو د معبد ساتونکي راوغوښتل، چې هغه سړی ونيسي، خو سړی وتښتېد او هغوی بريالي نه شول چې ويې نيسي.

په دې وخت کې زه کاهن ته نژدې شوم او په ادب مې ورته وويل، زه يو مصری يم چې يوه موده له هېواده لېرې وم.

تر دې مخکې چې له مصره ولاړ شم د (آتون) خدای نوم مې اورېدلی و، خو پام مې ورته نه کاوه. وروسته بيا له مصره د لېرې والي له امله مې د دې خدای په هکله معلومات تر لاسه نه کړای شول. اوس راغلی يم غواړم، پوه شم چې د آتون خدای څوک دی، څه وايي او څه ډول بايد د هغه عبادت وشي؟

کاهن لږ شيبه راته وکتل چې پوه شي، زه ملنډې وهم که جدي خبرې کوم.

کله چې کاهنان پوه شول، زه جدي يم، يوه پکې وويل آتون يو واقعي خدای دی.... ټول خدايان چې له آتون مخکې راغلي د دروا غو ول او هغه چې له آتون وروسته راځي هغوی به هم د دروا غو وي.

آتون ځمکه، اسمان، د نيل سيند او ټول ژوي وپنځول او تل موجود و، او وي به. اوس پخپل زوی فرعون کې ځرګند شوی او بايد ټول د هغه عبادت وکړي

دغه خدای د نورو خدايانو پر خلاف چې ټول د دروا غو دي له خلکو څخه ډالی نه اخلي او دې شيانو ته لېوالـه نه دی.

بېوزله او شتمن ته په يوه سترګه ګوري، هر څوک چې پرې عقيده وکړي هغه به پخپلې

پناه کې وساتي.

آتون د نورو جعلي خدايانو په شان نه دی چې ومري، دی په هرځای کې شته او د هغه له ارادې پرته هېڅ کار هم نه کېږي.

ما وویل دغه کاهن چې اوس ددې ځوان کاهن پر مخ ولګېد او هغه يې ژوبل کړ د آتون د ارادې په اساس و، ځکه چې ته وایې هېڅ کار د هغه له ارادې پرته نه شي کېدای.

کله چې کاهنانو دغه خبره واورېده يوه بل ته يې وکتل ويې ویل، داسې ښکاري چې ته پر موږ ملنډې وهې.

خو هغه کاهن چې په مخ لګېدلی و، په لوړ غږ وویل هو! دغه پېښه د آتون د ارادې له مخې وشوه، ځکه چې زه د هغه لیاقت نه لرم. دغه پېښه آتون رامنځته کړه.

دا چې آتون له دې پېښې سره مخامخ کړم علت يې دا و، چې زه پخپل روح کې له فرعون سره د ډېر محبوبیت له امله مغرور شوی وم، آتو ن مې هېر کړ او پر فرعون ځکه ګران یم چې ډېر ښه غږ لرم او سندرې ويلای شم.

کله چې فرعون پوه شو زه چمتو یم د هغه په خدای ایمان راوړم، زه يې معبد ته ولېږلم نو دې ځای ته ورسېدم.

ومې ویل، بیا نو آتون خدای دغه توانايي لري، چې فرعون اړ کړي يو کس ناڅاپه له خاورو پورته کړي او معبد ته يې راولي چې کاهن شي.

یوه کاهن وویل زموږ فرعون د خلکو مادي او ظاهري اړخ ته توجه نه کوي، بلکې له هغه ځواکه استفاده کوي چې آتون ورکړی.

دی د نورو له زړونو خبرېږي او پوهېږي چې آيا دغه کس ترقي کولای شي او کنه؟

ومې ویل، فرعون څنګه د نورو خلکو له زړونو خبرېدای شي او د خلکو زړونه لوستلای شي، ځکه چې یوازې (اوزي ریس) دغه قدرت لري او ددې وس لري، چې د نورو له زړونو خبر شي. *(اوزي ریس د مصر يو مشهور خدای و، دغه خدای د اروپايانو په تاریخونو کې چې د مصر په هکله لیکل شوي ډېر راغلی دی نو له همدې کبله د مصر په خدایانو کې تر نورو ډېر مشهور دی ژباړن)*

کله چې ما دغه خبره وکړه کاهنانو پخپلو کې خبرې وکړې او مشوره يې کوله چې ماته څه ځواب راکړي؟

یوه پکې وویل: (اوزي ریس) د دویمې، دریمې، بلکې د څلورمې درجې او هغه هم

خيالي خداى دى.

اوزې رئيس نشته ، يوازې د عامو خلكو خيالونو هغه رامنځته كړى خو ددې پر خلاف آتون موجود دى ، ناځرګند او همېشنى خداى دى او فرعون په عين حال كې چې يو انسان دى د آتون اصليت هم لري.

ځكه خو په يوه وخت كې څو شخصيته درلودلاى شي.

دا چې د خلكو زړونه ويلاى او له هغو خبرېداى شي، علت يې دا دى چې په يوه وخت كې څو شخصيتونه لري. داسې چې يو انسان د څو كسانو غوندې كېږي او همدا لامل دى، هغه مجسمې چې هنرمندانو جوړې كړې او ته يې پر ستنو برسېره وينې داسې جوړې شوې چې هم ښځې دي او هم نارينه.

ځكه چې د خداى اصليت په فرعون كې شته، او هغه ددغه اصليت له امله هم نارينه او هم ښځينه ځواک لري.

ما مې سر په دواړو لاسو ونيو او ومې ويل، زه د همدغې ښځې په څېر -چې اوس له دې ځايه ولاړه- ساده سړى يم، ستاسو د خبرو په معنا نشم پوهېداى زما عقل دا نه مني، چې يو كس دې همهالى هم نر وي او هم ښځه، هم نطفه دې جوړه كړي او هم دې د ماشوم زېږولو او پاللو توان ولري. بله دا چې تاسې پخپله هم د آتون په خداى سره جوړ نه ياست. تاسې لكه چې نه پوهېږئ هغه څوک دى او څه وايي؟ ځكه كله چې زه له تاسو پوښتنه وكړم تاسو يې له سلا مشورې وروسته ځواب راكوئ.

كاهنانو پر دې خبرې اعتراض وكړ ويې ويل نه ! داسې نه ده ! موږ د آتون د خداى په اړه هېڅ شک هم نه لرو ، هغه بشپړ خداى دى، هېڅ نيمګړتيا نه لري تل و او همېشه به وي خو موږ نيمګړي يو.

له دې كبله چې كمى لرو ، د آتون خداى ښه نه شو پېژندلى، خو څومره چې فكر او مطالعه وكړو، هغه به ښه او ډېر وپېژنو.

حتماً څو كاله وروسته، به د آتون خداى ښه وپېژنو ، شل كاله وروسته به زموږ پېژندګلوي د اوس په پرتله ډېره وي

خو اوس يوازې يو كس آتون ډېر ښه پېژني او هغه د مصر فرعون دى، ځكه چې هغه د آتون له ذاته دى او د آتون روح د هغه په بدن كې وي.

له دې سره سره چې د دې خبرې قانع نه كړم خو پر ما يې ډېر اغېز وكړ، ځكه زه متوجه

شوم چې دغه خبرې له ډېر صمیمیته ډکې دي.

زه پوهېدم چې د کاهنانو په دې خبرو کې ممکنه ده یو لوی حقیقت وي، هغه دا چې مونږ نه خدایان یو او نه پوهېږو.

له دې کبله چې زمونږ عقل کم دی او ناپوه یو، نو فکر کوو چې نور نادان او نا پوهان دي.

پوه شوم چې ښایي په نړۍ کې داسې حقیقتونه وي چې زمونږ سترګې یې نهویني، زمونږ غوږونه یې نه اوري، لاسونه یې نه لمس کوي، خو له دې سره سره دغه حقیقتونه شته.

کله چې مونږ د څه شي په اړه نه پوهېږو نو باید له هغه شي منکر هم نه شو او داسې ونه وایو چې دغه شی نشته.

ښایي فرعون هم داسې حقیقت موندلی وي چې هغه ته آتون وایي خو زه چې سم درک او پوهه نه لرم، نو پر دې نه پوهېږم چې آتون څوک دی؟

له دې کبله چې خپل اشنایان مې پیدا نه کړای شول، بېرته کورته راستون شوم، ومې لیدل چې کاپتا زما د حکم پر اساس پر کور یوه لوحه ځوړنده کړې او دی پخپله په کورکې ناست دی، د اوربشو یو منګی اوبه یې ځانته ایښې او غوړپ ترې کوي.

زما په کور کې څو ناروغان ناست او زما دستښدا په تمه ول.

ما په سر کې هغه مور را وغوښتله، چې خوار ماشوم یې په غېږ کې نیولی دی. ښځې راته وویل، ورځ پر ورځ زما زوی خوار او ډنګرېږي خو ما ولیدل چې نه یې مور او نه هم ماشوم ناروغ دی.

د ماشوم مور ته مې وویل، ستا د ماشوم ناروغي له دې امله ده چې ته کافي ډوډۍ نه خورې، که پوره خوراک وکړې نو ماشوم ته به پوره شېدې ورکړې او هغه به چاغ شي.

له دې وروسته چې ښځه ولاړه یو مریي مې معاینه کړ، چې ګوته یې د ژرندې تر ډبرې لاندې شوې او ژوبله شوې وه.

د هغه پر ټپ مې درمل کېښودل او ومې تاړه.

بیا مې یو سړی معاینه کړ، چې کاتب و، د هغه دستوني په منځ کې د یوه موټي په اندازه یوه غده پیدا شوې وه، ده ته مې هغه درمل ورکړل چې له یو ډول سمندري بوټي تر لاسه کېږي.

ومې ویل دغه غده باید ستا له ستوني وایستل شي او ته باید له هغه وروسته یوه موده استراحت وکړې، چې تپ دې ښه شي.

هغه ته مې وویل، ایا ممکنه ده چې زه ستاسې کور ته درشم او هلته ستا له ستوني څخه دغه غده را وباسم.

سړي وویل هو! وروسته مو پرېکړه وکړه چې زه به پر بله ورځ د هغه کور ته ورځم او دغه غده یې له ستوني راوباسم.

کله چې سړي غوښتل ولاړ شي دوه کړې مس یې له خپل جیبه را وایستل چې د فیس په بدل کې یې راکړي.

ما ورته وویل، ما لا نه یې معالجه کړی چې له تا کوم شی واخلم.

هغه وویل، تا درمل را کړل، باید د هغو پیسې واخلې!

ما ورته وویل، له دې پرته چې له تا ډالۍ واخلم ستا علاج به وکړم خو په بدل کې، چې زه کله کتابت ته اړ شم نو ستا له هنره به استفاده کوم.

له هغه وروسته یوې ځوانې ښځې چې هلته څېرمه یې په یوه عمومي کور کې ژوند کاوه، خپله سترګه را وښودله ویې ویل، زما سترګه خوږېږي.

ما د هغې په سترګه کې درمل واچول، ښځې غوښتل خپل فیس د هغو ښځو په شان چې ځان ارزانه خرڅوي راکړي.

ما ورته وویل، ناروغ یم او نه شم کولای چې له ښځو سره څملم.

دغه راز مې د ښځې پر خېټه دوه دانې هم لېرې کړې چې خپلو مشتریانو ته ښه ښکاره شي.

خو پر دغې لومړۍ ورځ ما له خپلو ناروغانو څخه ان یوه کړۍ مس هم وانه خیستل.

کله چې هغوی ولاړل کاپتا ماته خواړه راوړل او ویې ویل باداره! تا نن له خپل کاره دومره ګټه هم پورته نه کړه چې په دې خوړوکې د اچول شوې مالګې بیه پوره کړي.

زما مریي کاپتا، دغه خواړه چې یوه سره شوې هیلۍ وه د طبس له یوه خوړنځایه را اخیستې او ګرمه کړې وه.

په طبس ښار کې هیلۍ او غازان داسې سره کوي چې ما یې ساری په هېڅ بل هېواد کې نه دی لیدلی.

زموږ په ښار کې هیلۍ او غازان په یوه فلزي لوښي کې ږدي او دروازه یې بندوي، بیا

دغه لوښی په یوه داش کې ږدي، په نتیجه کې هیلی او غاز داسې پخېږي چې د خوړو ټول مایعات په خوړو کې پاتې کېږي او نه ضایع کېږي

دغه ډول پخلی په هېڅ یوه هېواد کې نشته او یوازې په طبس کې دغه ډول خواړه پخوي

*(د سینوهه د برخلیک په دې برخه کې ثابتېږي چې په داش کې د دوډۍ او خوړو پخول چې مورږ فکر کوو د رومیانو اختراع ده او له هغه ځایه اروپا ته غځېدلې ده، خو دا د مصریانو نوښت دی او د طبس د ښار خلکو دغه ډول خواړه پخول )*

کاپتا پر دې شپه پر ما خوندور شراب وڅښل او له دې سره سره چې پر دغې ورځ مې له چا فیس نه و اخیستی، خو داسې خوشحال وم چې ته ګڼې یو شتمن سوداګر مې معالجه کړی او هغه ماته د سرو زرو یوه غاړکۍ راکړې وي.

دا خبره به هم وکړم، هغه مریی چې ما یې څو ورځې مخکې ګوته معالجه کړه، کله چې یې څو ورځې وروسته ګوته ښېخې ښه شوه، نو ما ته یې یوه پیمانه اوړه راوړل او ویل، دغه اوړه یې له یوې ژرندې پټ کړي چې د فیس په بدل کې یې ماته راکړي

په دې مانا چې د لومړۍ ورځې طبابت ګټه یوه پیمانه اوړه شول، خو ما له دغه مریي څخه اوړه وانه خیستل او ومې ویل دادې ستا وي. پر بله ورځ زما مریی چې له کوره بهرته تللی و، راستون شو ماته یې وویل سینوهه ! زه تصور کوم چې نن او سبا به ډېر ناروغان ولرې، ځکه کله چې بهر ولاړم اور ېدل مې چې خلکو سره ویل، پرون یو ډاکټر راغلی او د پخواني مسګر په کور کې یې اړولي او له فیسه پرته ناروغانو معالجه کوي او پر دې سربېره بېوزله ناروغانو ته د مسو کړۍ هم ورکوي

کاپتاویل بېوزلو یو بل ته سپارښتنه کوله چې ډېر ژر دې دغه ډاکټر ته ورشي چې هم خپله ناروغي معالجه کړي او هم له هغه څخه مس ترلاسه کړي.

دوی ویل دغه ډاکټر چې خلک بې فیسه معاینه کوي او بیا مس هم له ځانه ورکوي نو ډېر ژر کېدای شي مفلس شي، دغه کور وپلوري او له دې ځایه به ولاړ شي.

ځینو ویل ښایي دغه سینوهه ناروغ او لیونی شوی دی، او که یې لیونتوب همداسې پاتې وي نو هغه به په یوې کوټې کې واچوي او وینه زبیښونکي به یې پر سر کېږدي چې لېونتوب یې له منځه ولاړ شي.

کاپتا زیاته کړه، ماچې دغه خبرې له خلکو واورېدې د هغوی پر حماقت مې وخندل،

ځکه چې پوهېدم چې ته بداى سړى يې.

ما ستا د حکم پر اساس ستا ټول فلزات په کار اچولي، ته د خپلې طلا له ګټې ښه ژوند کولای شې او هره شپه د نن شپې په شان هيلې او غازان خوړلای شې.

بيا زما مريي وويل، خو زه له يوه شي وېرېږم هغه دا چې ته عادي سړى نه يې او له همدې امله ممکنه ده، يوه ورځ هغه وکړې چې خپل ټول سره او سپين لېږې غوزار کړې او دغه کور له ماسره يو ځای چې ستا مريي يم، خرڅ کړې

ځکه تا يو ځل مخکې هم دغه کار کړى او خپل کور دې له ما سره يو ځاى پر هغې ښځې پلورلى و چې ته پرې مين شوى وې.

که زه نه واى تښتېدلى نو اوس به د هغې ښځې مريي واى.

نو غوره ده چې په يوه کاتب يو کاغذ وليکې چې زه سر له سبا ازاد يم او پخپله خوښه چې هرچېرته وغواړم تللى شم، څوک نه شي کولاى چې نور ما واخلي يا وپلوري.

زه له دې امله له تا څخه دغه ډول ليک غواړم چې خبرې له منځه ځي، خو ليکنه تر ابده پاتې کېږي ځکه چې پاپيروس (مصري کاغذ ژباړن ) له منځه نه ځي.

# اته ویشتم څپرکی

## د راتلونکي لپاره د طبس د خلکو اندېښنه

پر هغې شپه چې کاپتا د غه خبرې وکړې زه له دې لامله، چې بې وزلي مې وړیا معالجه کړي ول خوشحاله وم او خوړو او شرابو مې خوشحالي نوره هم زیاته کړه.

پسرلی و، او د اکاسي ګلونو، هوا له خوږو عطرو ډکه کړې وه.

د نیل له بندره د سوریې د شیانو بوی راته. له عمومي کورونو د سریاني موسیقۍ غږونه پورته کېدل .کونګانو سندرې ویلې او ما خپل روح خوشحاله لیده.

له همدې لامله مې کاپتا ته اجازه ورکړه چې په یوه ختین لوښي کې د ځان لپاره شراب واچوي.

هغه ته مې وویل کاپتا تر دې وړاندې چې ته له ماوغوارې چې تا آزاد کړم، ما په باطن کې ته ازاد کړی وې.

ستا ازادي له هغې ورځې پیل شوه چې ما او تا غوښتل له دې ښاره وتښتو. ما سره او سپین نه درلودل او تا د خپل ټول عمر بسپنه ماته راکړه چې وکړای شو وتښتو.

پر دې ورځ ما فیصله وکړه چې کله شتمن شوم، تا به ازاد کړم. بیا به تاته وایم چې له ما سره د یوه مریې په شان نه بلکې د یوه نوکر په شان ژوند وکړې هر چېرته چې غواړې ولاړ شه.

اوس درته وایم چې ته ازاد یې. خو ستا د ډاډ لپاره به سبا د کاتب په وسیله یو لیک ولیکم چې ته پر خپلې ازادۍ ډاډه شې.

خو له دې کبله چې تا وویل زه به د خپلو سرو زرو په ګټې وټې ژوند وکړم. ته راته ووایه سره او سپین ماته څه ډول ګټه رسولای شي. ایا تا زما طلا ګانې د آمون په معبد کې په امانت نه دې ایښې؟

کاپتا پخپلې یوې سترګې راته وکتل او ویې ویل نه سینوهه! اوس چې ازاد یم تا ته

وایم چې ما ستا امر نه دی اجراکړی او ستا طلا مې د آمون په معبد کې امانت نه ده ایښې، ځکه چې ستا حکم له عقله لیرې و.

زه هغه امر نه منم چې له عقله لیرې وي او له دې کبله چې ممکنه ده ناڅاپه غوسه شې د احتیاط لپاره مې ستا لکړه هم پټه کړې ده، چې پر ملا او ولیو مې ونه وهې.

خو ددې لپاره چې پوه شې ولې مې ستا امر نه دی اجراکړی، وایم چې یوازې احمقان خپل سره او سپین په معبد کې امانت ږدي، ځکه چې په معبد کې د سرو زرو ایښودل دوه عیبه لري.

لومړی دا چې کاهنان او په پایله کې د مصر فرعون ستا له شتمنۍ خبرېږي او پوهېږي چې ته څومره زر لرې؟

یو کار چې د لېونتوب دلیل دی ،دا دی چې سړی د خپلې شتمنۍ له اندازې خلک خبر کړي.

دویم عیب دا دی چې کله خپله طلا معبد ته وسپارې، چې د معبد په خزانه کې پاتې شي، باید هر کال یوه اندازه سرو یا سپینو زرو د ساتلو په بدل کې معبد ته ورکړې او په نتیجه کې کال په کال ستا سره زر کمېږي.

له همدې امله کله چې ته له کوره ووتې په ښار کې ګرځېدې او خپل پخواني ملګري دې لیدل ، نو زه په ښار کې وګرځېدم، چې پوه شم له طلا څخه بې له دې چې سړی زیار وباسي او یا کار وکړي، څه ډول استفاده کېدای شي چې ګټه هم وکړي.

زه پوه شوم چې په طبس کې نور هېڅوک خپل سره او سپین د آمون معبد ته نه ورکوي ، ځکه دوی اوس پر معبد باور نه کوي او ډارېږي چې طلا به یې له منځه ولاړه شي.

له دې کبله چې د سرو او سپینو د سپارلو لپاره پر معبد اعتماد نه شي کېدای، نو په ټول مصر کې ډاډمن ځای نشته چې انسان وکړای شي خپله طلا هلته ورکړي.

پر دې سربېره د هغو معلوماتو له مخې چې ما ترلاسه کړي د آمون خدای خپلې ځمکې خرڅوي.

ما ورته وویل دروغ وایې او د آمون خدای یعنې د آمون معبد هېڅکله ځمکې نه خرڅوي، بلکې تل ځمکې اخلي او هر کال خپل جایداد زیاتوي.

کاپتا وویل خو اوس د آمون معبد په پټه خپلې ځمکې خرڅوي او په بدل کې یې سره او سپین اخلي او پخپلې خزانې کې یې ږدي.

له دې کبله چې د آمون معبد ډېرې ځمکې خرڅې کړي او سره و سپين يې اخيستي او س په مصر کې سره او سپين کم شوي دي.

ومې ويل آيا تا زما سره ورکړل او ځمکې دې واخيستې ؟

کاپتا وويل نه باداره ! ما ستا سره او سپين نه دي ورکړي ، ځکه نه زه او نه ته په کرنيزو کارونو پوهېږو.

که ستا سره او سپين مې ورکړي وای نو ناظرانو ، کروندګرو او هغو مريبانو به چې په کروندو کې يې کار کاوه ستا د پټيو محصولات غلا کول ، دا په داسې حال کې ده، چې زه په طبس کې پخپله غلا کوم ياني نور دو که کوم.

پردې سربېره ما احساس وکړ چې د آمون د معبد له لوري د ځمکو خرڅول به د هغه معبد له لوري چې له سلو کلونو زيات وخت يې ځمکې اخيستې دي بې دليله نه وي.

د غه معبد پوهېږي چې په راتلونکي کې د نوي خدای پر وړاندې مقاومت نه شي کولای نو بايد له منځه ولاړ شي، ځکه خو وار له مخه خپلې ځمکې خرڅوي چې د غه ځمکې د نوي خدای په برخه نه شي. د آمون د معبد له لوري د ځمکو خرڅول خطرناک کار دی ، ښايي نوی خدای ادعا وکړي چې د پخواني خدای ټولې هغه ځمکې چې پر خلکو خرڅې شوې، په هغه پورې اړه لري ، او ټولې ځمکې چې د امون معبد اخيستې دي له دې پرته چې خلکو ته يې تاوان ورکړل شي ، هغه به ضبط شي.

ما ورته وويل دا بېلابېلې او جزيي مسلې دي، زه له تا پوښتنه کوم چې زما سره او سپين دې څه کړل، چيرته دې ولګول چې وايې ګټه به يې ماته ورسېږي.

کاپتا وويل له دې کبله چې د امون معبد خپلې کرنيزې ځمکې خرڅوي سره او سپين اخلي، لکه چې ومې ويل په مصر کې سره او سپين کم شوي دي.

د غه چاره ددې سبب شوې چې د استوګنې د کورونو او د سوداګريزو ودانيو بيه کمه شي، نو کله چې ما وليدل د کورونو بيه ټيټه شوې ده، ستا د سرو او سپينو يوه برخه مې ورکړه او تا ته مې څو کورونه او تجارتي ځايونه واخيستل.

ته به دغه کورونه او ځايونه په کرايې ورکړې، هرکال به يې کرايه ترلاسه کړې، ستا کورونه به تل موجود وي او ګټه به درته کوي.

له دې کبله چې زه پوهېدم د دغو کورنو د پېرودلو لپاره ستا له لوري بشپړ اختيارات لرم . نو ستا له مهره پرته مې کورنه واخيستل او که اخيستونکي د ډالۍ په توګه ماته کوم

شي راکوي. هغه په تا پورې اړه نه لري. دا پخپله د هغوی حماقت دی.

ځکه په دې عمل کې زه له تاڅخه کوم شی نه پټوم، بلکې له اخيستونکو څخه دالی تر لاسه کوم او که ته هم و غواړې خپل پخواني مريي ته دالی ورکړې هغه به هم ومنم.

ومې ويل کاپتا زه به تا ته دالی درنه کړم ځکه په دې کار کې تا خپلې ګټې ته پام کړی دی او اتکل کوې چې د ترلاسه کولو او دغه راز د کورنو د جوړلو او بيارغولو لپاره د خرڅې د بېلولو په پلمه له ما څخه ډېره غلا وکړې.

کاپتا وويل تېروتی يې.

که ته يو کنجوس او ظالم بادار وای ما به دغه فکر کړی و. او اټکل به مې کاوه چې په راتلونکې کې له دغو کورنو څخه ځه ډول استفاده وکړم.

خو ته ډېر مهربانه او زړه خوږی بادار يې. هېڅ اړتيا نشته چې زه له ځان سره دغسې حسابونه وکړم. ځکه هرشی چې ته يې لرې زما تر لاس لاندې دي.

زه ستا شتمني خپله شتمني بولم. کله چې ستا ګټو ته پام کوم. په دې مانا ده چې خپلې ګټې ته توجه کوم. ځکه مې ستا په سرو زرو يوه اندازه غله دانه هم اخيستې ده.

ما وويل کاپتا ولې دې غله اخيستې ده؟

کاپتا وويل دغه لانجه چې اوس د خدايانو تر منځ په مصر کې پيل شوې، حتماً د مصر د ملت لپاره خرابې پايلې لرلای شي.

ددې لپاره چې کله خدايان له يوه بل سره جنګونه کوي. نو لکه مشران چې له يوه بل سره ونښلي تاوان يې خلکو ته رسېږي.

ملت بايد د مشرانو او خدايانو د لانجو لپاره قرباني ورکړي. زه فکر کوم چې د مصر ددغو دوو خدايانو د لانجې له امله به ګډوډي رامنځته شي. بې نظمي او ګډوډي به کروندې پر شاړو ځمکو بدلې کړي. پر دې سربېره نن سبا چې هر څوک سره او سپين لري د خدايانو د لانجې له وېرې پرې ځمکه اخلي.

خلک پوهېږي چې سره او سپين غلا کېدای شي خو ځمکه تر څوک نه شي اخيستلای.

هغه کسان چې ځمکې اخلي ټول. يا سوداګر. درباريان او کاهنان دي. دغه کسان له معبدونو ځمکې اخلي چې دغه ځمکې د معبد له منګولو تر لاسه او د ځان يې کړي.

خو په دغو کسانو کې هېڅ يو کروندګر نه دی او ځمکه نه شي کرلای چې په نتيجه کې

به د کروندګرو ټولې ځمکې شاړې پاتې کېږي.

د ځمکې محصولات لکه غنم او نوره غله به ډېره کمه شي. مصر به د خوراکي توکو له کمښت سره مخامخېږي او په دې وخت کې به هغه غله په ښه بیه خرڅولای شو چې موږ اوس اخیستې ده.

زه پوهېږم ته فکر کوې چې غله د ډېرو په شان نه وي. چې زر کاله یې وساتو بلکې موږکان، غله دانه خوري او مریيان غلا ترې کوي خو ترڅو چې انسان تاوان ونه کړي ډېره ګټه نه شي کولای.

نو ددغو اخیستل شویو کورونو یوه برخه مې د غلو دانو په ګودامونو بدل کړي چې اخیستل شوي غنم او نوره غله هلته وساتو.

پام به کوو چې نه موږکان غنم وخوري او نه یې مریيان غلا کړي.

کله چې مو غله خرڅه کړه ګودامونو ته به اړتیا ونه لرو. دغه کورونه به سوداګرو ته په کرایه ورکړو چې خپل شیان هلته کېږدي او یا تجارتخانې ترې جوړې کړي.

ومې ویل کاپتا! زه ستا پر خلاف. هیله من نه یم چې دغه کار دې ګټه وکړي خو دا چې اوس دې معاملې کړي زه کوم شکایت نه لرم. په دې شرط چې په راتلونکې کې ما په کرار پرېږدې او ددغو کورونو د اداره کولو یا دغلو دانو د خرڅولو لپاره ما په تکلیف نه کړې.

کاپتا وویل. ما یو بل فکر هم کړی چې هغه هم ستا د شتمنۍ لپاره ډېره ګټه لري.

زه په کرنې ډېر نه پوهېږم خو دمریيانو په پیر او پلورکې ډېر تکړه یم له همدې امله باید د مریانو یو بازار واخلو.

زه پوهیږم چې باید څنګه مریيان په ارزانه بیه واخلو او له پېرودونکو څخه یې عیبونه پټ کړو. همدغه راز. پوهېږم چې څه ډول د لرګیو او متروکو په وسیله مریان فرمانبرداره کړو. ځکه چې پخپله مریی وم او څوک چې مریی وي د مریانو د خرڅولو په ټولو چلونو پوهېږي.

زه ډاډ درکوم چې که موږ دغه بازار واخلو په څو کلونو کې به د مصر یو شتمن کس شې.

ومې ویل کاپتا له دې سره سره چې د مریيانو پلور و پېر ډېره ګټه لري. خو زه نه غواړم چې مریيان خرڅ کړم. ځکه چې د مریيانو پلورل ډېر ګنده او له کرکې ډک کار دی.

زه په دې پوهېږم چې ډېر شتمن کسان دغه کار کوي. ټول د مریانو پیر پلور کوي او ټول مریانو ته اړتیا لري.

ماهم پخوا ته او هغه وینځه چې تا راته راوستې وه اخیستي واست ، خو نن سبا نه غوارم چې د مریانو پلورونکی واوسم.

کاپتا سور او سویلی ویوست اوویې ویل، زه نه پوهېږم چې ته ولې داسې یې او ولې نه غواړې د نورو په شان په لنډه موده کې بې زحمته شتمن شې؟

که مور د مرییانو یو بازار او څو عمومي کورونه (فاحشه خانې ) واخلو ښکلې وینځې به د مرییانو له بازاره عمومي کورونو ته بیا یو او هره شپه به له هره کوره ډېر سره او سپین ترلاسه کړو.

. خو څه وکړم چې خدایانو داسې بادار راکړی دی، چې سلیقه یې له نورو سره بېخي توپیر کوي.

اوس چې نه غواړې د مریانو بازار او عمومي کورونه واخلې نو زما یو بل وړاندیز ومنه .

ومې پوښتل ستا وړاندیز څه دی؟

کاپتا وویل له دې کبله چې نن دې آزاد کړی یم، زه غوارم چې له دې امله یو جشن جوړ کړم او له دې سره سره چې زما غوښتنه به ستا له نظره بې ادبي وي، خو غوارم له ما سره ولاړ شې او یو ځای د سیند پر غاړه په بندري سیمه کې د(تمساح لکۍ)په ساقي خانه کې شراب وڅښو. دا شراب هم د تمساح لکۍ نومېږي او ډېر قوي شراب دي چې تر نورو یې نشه ډېره ده.

له دې سره چې د کاپتا غوښتنه له ادبه ډېره لېرې وه او یو مریی او نوکر باید له خپل باداره ونه غواړي چې له هغه سره شراب خانې ته ولاړ شي او هلته کوم شی وڅښي، خو ما د کاپتا غوښتنه ومنله، ځکه چې پر دې شپه ډېر خوشحاله وم او فکر مې کاوه چې ساقي خانې ته تګ او هلته ساعت تېري کول په یوه مناسبت دي

پر دې سربېره مې داهم پر زړه ول، چې کله مور په کرت کې و، کاپتا چمتوشو چې له ما سره د خدای کور ته ننوځي په داسې حال کې چې پوهېده څوک تر اوسه پورې د خدای له کوره نه دي راستانه شوي

زه هم باید نن د هغه وړاندیز ومنم او له هغه سره میخانې ته ولاړشم ، ځکه چې ساقي خانې ته تګ تر دې ډېر اسانه دی، چې انسان پوه شي داسې ځای ته ورځي چې نور ترې نه شي راستنېدای

کله چې کاپتا وویل او ما یې وړاندیز ومانه ، نو ډېر خوشحاله شو ، ولاړ زما بالا پوش

او لکړه چې تر دې مهاله یې پټه کړې وه ببرته راوړه. بالا پوش یې زما پر اوږو واچاو، له کوره راووتو او د (دتمساح لکۍ) شراب خانې ته ولاړو.

د(تمساح لکۍ) شراب خانه د بندري سیمې په مرکز کې د کورونو په منځ کې وه او تر دې وړاندې چې شراب خانې ته ننوځو، پام مې شو چې د ساقي خانې پر سر یې یوه ستره وچه شوې تمساح ځوړنده کړې وه، چې شیشې ته ورته سترګې یې وې او تر خلاصې خولې یې تېره غاښونه ښکارېدل.

کله چې ساقي خانې ته ننوتو ومې لیدل چې پنډ دېوالونه لري، د غټو دېوالونو ګټه دا وي چې په دوبي کې کوټه یخه او په ژمي کې ګرمه ساتي.

د کاپتا د ننوتو له حالته پوه شوم، چې لږ تر لږه یو ځل دلته راغلی دی او له چاپېریال سره بلد و.

کله چې کېناستو نو ومې لیدل چې د ساقي خانې د هوالونه او غولی د اشرافو د کورونو په شان په لرګو فرش شوي او پر دېوالونو د لرګیو بېلابېل انځورونه کښل شوي دي.

کاپتا چې ولیدل، زه د ساقي خانې لرګیو ته ګورم، ویې ویل، دغه لرګي چې وینې له زړو ببړیو یې جوړ کړي، هرلرګی د یوې ببړۍ خو باد او باران یې رنګونه ور بدل کړي دي.

په ساقي خانه کې ناستو مشتریانو ماته په ځېره خو ځغلند وکتل او بیرته پر خپلو کارونو بوخت شول.

کاپتا امر وکړ چې، زموږ لپاره د(تمساح لکۍ) شراب راوړي او د ساقي خانې مشر ته یې وویل چې شراب دې پخپله دی جوړ کړي؟

ماته داسې ښکاره شوه چې د تمساح لکۍ شراب داسې شراب دي چې باید جوړ شي، یانې د نورو شرابو په شان نه دي، چې بې له ځنډه یې له منګیو او صراحۍ څخه په جامونو کې تش کړي او راېې وړي.

وروسته مې ولیدل چې د یوې ښځې دوه پیالې په لاس کې دي، زموږ خواته راغله او داسې معلومېده چې د میخانې نوکره وي.

دغه ښځه ډېره ځوانه نه وه، خو د مصر په شان هېواد کې چې ښځې لوڅې پکې ګرځي، دې ښځې جامې اغوستي وې، په غوږونو یې د سپینو زرو لښتۍ او په لاسونو کې یې دوه بنګړي ول.

چې څو مره رانژدې کېده هغه مې نوره هم ښکلې ليده، کله چې مو ږ ته را ورسيده ومې ليده چې نرۍ او قوسي شکله وروځې يې وې او غنم رنګه جذابې سترګې يې درلودې.

ما د هغې سترګو ته وکتل. هغې د نورو ښځو غوندې چې سرا ړوي مخ، وا نه ړاوه. بلکې زما سترګو ته ځيره شوه.

يوه پياله ترې ما واخيسته او بله کاپتا.

ما ورته وويل اې ښکلې ښځې نوم دې څه دی؟ ښځې وويل زما نوم (مريت) دی.

ما څوک ښکلې ښځه نه بولي. خو له دې کبله چې تا په دې نوم ياده کړم، زه پوهېږم چې ته با حيا سړی يې او د يوه نوي ځوان په شان يې چې په دې ډول خبرو سره ځانته جرئت ورکوي چې وکړای شي خپل لاس د يوې ښځې پر لاس کېږدي.

ته هم ځانته جرئت ورکوې چې خپل لاس زما پر لاس کېږدې.

بيايې پوښتنه راځخه وکړه. ايا ته ډاکټر نه يې او ستا نوم سينوهه نه دی؟

ومې ويل همداسې ده... دې وويل که غواړې په دې ساقي خانه کې بيا موږ پخپلو ليدو خوشحاله کړې ما ته د ښکلې ښځې غږ مه کوه او ما مه سپکوه.

له هغې مې پوښتنه وکړه، چې ته څه ډول پوهه شوې چې زه سينوهه يم؟

مريت وويل ستا شهرت تر تا ژر دې ميخانې ته را رسېدلی دی. ان تر دې چې ته ساقي خانې ته ننوتې ما وپېژندې. اوس راته معلومه شوه چې ستا شهرت بې دليله نه و.

کله چې مريت له ما سره خبرې کولې موسکۍ وه، خو زه پوه شوم چې موسکا يې له زړه نه ده او خوشحاله نه ده. بلکې دغه موسکايې د يو غم ښودنه کوي او د ښځې له سترګو هم دغه احساس کېده.

ومې ويل مريت! که تا زما ستاينه د کاپتا له خولې اورېدلې وي چې زما پخوانی غلام دی. اوس مې ازاد کړی او دلته ناست دی. نو په دې پوه شه چې په هغه اعتماد نه شي کېدای.

ځکه چې دغه سړی خپل خاص طبيعت لري. د هغه طبيعت داسې دی چې د هغه ژبه د دروغو او رښتيا ترمنځ توپير نه شي کولای او دروغ ډېر وايي.

زه له دې سره سره چې يو ډاکټر يم خو د هغه دغه مرض مې معالجه نه کړای شو. زما د لکړې ګوزارونو هم پر دې معالجې اغېز ونه کړ.

مريت له غمجنې موسکا سره وويل سينوهه! دروغ ډېر ځله تر رښتيا ښه وي. ځکه

چې درواغ انسان ته هیله ورکوي انسان خوشحاله کوي، په داسې حال کې چې رښتیا خبره سړی نهیلی کوي.

مثلاً، کله چې ته ماته وایې (اې ښکلې مېرمنې) له دې سره سره چې پوهېږم درواغ وایې، زه زړه یم. خو بیا هم په دې درواغو خوشحالېږم.

زه غواړم د تمساح لکۍ دغه شراب چې ما در ته راوړي ویې څښې او ماته ووایې چې ایا دغه شراب قوي دي. که نور هغه شراب چې په بهر کې د څښلي دي.

له دې پرته چې زه له مریت څخه سترګې واړم. د دغو شرابو یو غوړپ مې وکړ.

خو له هغه وروسته مې ونه کړای شول هغې ته وګورم. ځکه چې ستوني او نس مې وسوځېد ناڅاپه. مې وینه په بدن کې واېشېدله.

کله چې ارام شوم د شرابو نشه ځرګنده شوه. ومې ویل که څه هم کاپتاه هر درواغ وایي خو هغه څه چې د دې شراب خانې د شرابو په هکله یې ویلي سم دي، ځکه چې ستا شراب تر هغو ټولو شرابو قوي او اغېزناک دي چې ما په بهر کې څښلي دي.

دغه راز تودوخه یې هم تر هغو تورو تېلو زیاته ده چې د بابل خلک یې له ځمکې څخه تر لاسه کوي او په څراغونو کې یې سوځوي

(له تورو تېلو څخه د لیکوال هدف نفت یا تېل دي. ژباړن)

لکه څنګه چې یوه حقیقي تمساح د خپلې لکۍ په زور یو قوي سړی پر ځمکه ویشتلی شي. ستا شراب هم یو مضبوط او قوي سړی له پښو غورځولی شي.

زما له خولې د خوږولونو خوش بویه بوټو او مسالو بوی احساسېده. ځان راته تاند او خوشحاله ښکارېده. زړه مې غوښتل له مریت سره نورې خبرې هم وکړم. هغې ته مې وویل:

مریت زه نه پوهېږم چې دې شرابو زه دومره ښاد کړم که ستا شتون زما روح خوشحاله کړی دی؟

همدومره پوهېږم چې خوشحاله یم. زړه مې غواړي، خپل لاس ستا پر لاسونو کېږدم. که له دې حرکته خپه کېږې، پر ما نیوکه مه کوه. ځکه چې ستا د تمساح لکۍ ما ته دا جرئت راکړی دی.

ښځه لږ وروسته ولاړه او ویې ویل: زه د دې ساقي خانې خاونده نه یم. دلته نوکره یم. خو دغه شراب زه جوړوم.

یوازینی ډالی چې پلار ماته راکړې ده، د دې شرابو د جوړلو چل یې را زده کړی دی.

دې شرابو د خلکو پام داسې ځانته را اړولی، چې ان ستا مریی چې ته وایې اوس دې ازاد کړی، ځان زما لیواله او پر ما مین ښیي چې ددې شرابو د جوړولو چل له ما زده کړي.

کله چې ستا مریی بریالی نه شو چې ما خپله خور کړي فیصله یې وکړه دغه ساقي خانه په سروزرو واخلي او دغه راز غواړي ددې شرابو دجوړلو چل له مازده کړي.

کله چې کاپتا دغه خبره واورېده ښځې ته یې اشاره وکړه چې، غلې شي، خو زه چې نشه وم ومې ویل مریت! اوس چې ما د تمساح لکۍ شراب څښلي او ځان خوشحاله احساسوم، فکر کوم چې کاپتا حق لري پر تا مین شي او زه یې نه ملامتوم، چې غواړي تا خپله خور کړي.

خو زه دغه خبرې له ډېرې نشې کوم او سبا چې هوښیارشم ښایي خپله خبره بېرته واخلم او ایا دا خبره سمه ده چې کاپتا زر ورکړي دي چې دغه میخانه واخلي.

تر دې مخکې چې ښځه څه ووایي کاپتا ماته وویل سینوهه! ما نه غوښتل چې ته په دې ډول ددې شراب خانې له اخیستو خبر شې، بلکې غوښتل مې چې پخپله زه دغه خبره درته وکړم.

خو اوس چې دې ښځې دغه راز افشا کړ باید ووایم چې دغه میخانه ما په خپلو سرو او سپینو اخیستې ده، په هغې طلا چې په څو کلونو کې مې له تا پټه کړې وه، ځکه چې د یوې ساقي خانې د اداره کولو وړتیالرم، پوهېږم چې دا اسانه کار دی، ستونزې پکې نشته، د ځوانۍ څواک هم نه غواړي.

ما په ساقي خانو کې د فلزاتو له ورکولو پرته دومره شراب او د اوربشو اوبه څښلې چې اوس د یوه اخیستونکي په لیدو سره پوهېږم چې ایا هغه د خپلو شرابو بیه ورکولای شي کنه؟

ایا په پور یې ورکولای شو کنه؟ د شرابو خرڅول اسانه او خوندور کار دی، ځکه چې انسان په ساقي خانه کې ډول ډول کسانویني، له هر یوه څخه نوې خبرې اوري.

زه یو کونجکاو سړی یم او غواړم له هر څه خبر شم نو دا زما لپاره ډېره ګټه لري.

په دې وخت کې کاپتا خپله پیاله پر سر واړوله او په خوشحالۍ یې وویل:

زما باداره! یوازنی کار چې هېڅکله له دوه نه لوېږي شراب خرڅول دي، ځکه تر هغه چې نړۍ شته نو خلک به شراب څښي.

ممکنه ده فرعونیان نه وي ، د مصر خدایان له خپلو ګډیو کښته ګوزار شي او له منځه ولاړ شي خو د شرابو خرڅلاو به بند نه شي، ځکه کله چې خلک خوشحاله او نیکمرغه وي هم شراب څښي او کله چې خپه او خوابدي وي نو د خپل ویر او بدبختی د کمولو لپاره میخانې ته راځي او شراب یا د اوربشو اوبه څښي.

کله چې یو کس مینبږي، خپله مینه په شراب څښلو سره پیاوړې کوي او په کور کې له خپلې ښځې سره جنجال کوي، بیا هم د زړه تنګی د کمولو لپاره شرابو ته پناه وروړي.

کاپتا خپلو خبرو ته دوام ورکړ او ویې ویل:

سینوهه! ښایي ته چې یو غیر عادي کس یې، زما دغه فکر خوښ نه کړې او ووایې چې انسان باید زیار وګالي او خپله روزي وګټي، خو زه وایم، هغه کسان هوښیاران دي چې له تکلیف پرته د نورو له کار و زیاره ګټه اخلي.

په داسې حال کې چې نور خلک د زیار او کړاو له ګاللو سره سره وږي دي او دوی ارام ژوند کوي.

زما په اند دهغو ښځو له دندې پرته چې ځان خرڅوي ترټولو آسانه کار د شرابو خرڅول دي په دې تو پیر چې ځان پلورونکې ښځې پانګې ته اړتیا نه لري ځکه چې دهغوي پانګه دهغوي په بدن کې ده که لږ بسپنه وکړي دعمر په پای کې به په هغه کور کې ژوند وکړي چې په خپله یې جوړ کړی دی او سوکاله به وي.

زه ښښه در څخه غواړم چې ډېر غږېږم، دغه ډېرې خبرې له دې امله دي چې لا د تمساح لکۍ په شرابو نه یم عادت شوی، ددې شرابو یوه پیاله مې داسې مستوي چې خپله ژبه مې هم په واک کې نه وي.

زما خبرې ددې ساقي خانې په اړه وې.

دغه میخانه زماده او زه وایم چې اوس به یې ددې میخانې له پخواني مالک سره په ګډه د مریت په مرسته چلوم او ګټه به یې سره وېشو.

ددې میخانې پخوانی مالک چې له دې وروسته به زما کارګر شي د مصر په زرو خدایانو قسم خوړلی چې، له نیمایي ډېره ګټه به نه اخلي او له ما به غلا نه کوي.

زه باوري یم چې هغه به غلا ونه کړي ځکه هغه دینداره سړی دی او ځینې کاګان یې د معبد کاهنان دي.

دوی ښه مشتریان دي او ډېر د تمساح لکۍ شراب څښي ، لامل یې دا دی چې کاهنان د

آمون د معبد د تاکستان شراب څښي او هغه کسان چې د غه شراب و څښي ، بیا د تمساح په یوې یا دوو پیالو نه نشه کېږي او بل له دې امله د دې شراب خانې ډېر ګاکان د معبد کاهنان دي، چې شراب پلورونکی فکر کوي د کسب ګټه د مذهب له ګټې سره اړونده کړي چې لومړی ګټه له دویمې هغې ځړوبه شي او تر ننه همداسې شوي دي

خو داسې ښکاري چې زه ډېرې خبرې کوم او بیا وایم چې زما د ډېرو خبرو علت دادی چې نن زما د ژوند خوشحاله ورځ ده.

باور وکړه چې زما د خوشحالۍ اصلي علت دادی چې ګورم ته ما ته غوسه نه یې او ما د پخوا په شان خپل نوکر بولې.

دا په داسې حال کې ده چې زه نن ازاد یم او شراب پلورل مې پیل کړي او دا له دې سره سره چې ځینې فکر کوي شراب خرڅول ښه کار نه دی.

له دې خبرې وروسته کاپتا له ډېرې نشې وژړل. خپل سر یې زما پر ځنګنو کېښود ، ما په زور د هغه سر له خپلو ځنګنو لېرې کړ، ومې ویل پورته شه په میخانه کې د غسې سپک کارونه مه کوه. ځکه که مشتریان وګوري چې د دې شراب خانې نوی مالک دومره بې حیا او سپک دی . پر تا بدبینه کېږي او نور به دلته رانه شي.

له دې وروسته چې کاپتا خپل سر پورته کړ ما ترې پوښتنه وکړه زه پر یوه خبره نه پوهېږم هغه د دغې میخانې د پلورلو مسله ده.

ځکه که د غه ساقي خانه هغسې چې ته وایې ښه چلېږي نو ولې یې خاوند راضي شو ، چې پر تایې خرڅه کړي او بیا د شاګرد په توګه له تا سره کار وکړي او په ګټه کې شریک شي.

کاپتا چې لا یې اوښکې نه وې وچې شوې وویل :سینوهه ! ته خاص استعداد لرې او غواړې پخپلو دلایلو چې له افسنطین درملو ترخه دي زما خوښی زهرجنې کړې.

که زه درته ووایم چې زه او دغه شراب پلورونکی د ماشومتوب ملګري یو او د یو بل په غم او ښادۍ کې شریکان و ، بیا به یې ومنې. چې هغه د پخوانۍ ملګرتیا له امله چمتو شو چې خپله شراب خانه پر ما خرڅه کړي.

خو زه پوهېږم، دغه خبره هم تا نه شي قانع کولای ، نو مجبور یم ومنم چې زه هم پر دې دلیل قناعت نه شم کولای او باید ووایم چې د دې شراب خانې په خرڅولو کې پخوانی شراب پلورونکی یو راز لري.

زه تصور کوم چې دغه راز له پخواني خدای آمون سره د مصر د نوي خدای په جنګ پورې تړاولري.

ځکه چې د مصر په هره بلوا کې لومړنی ځای چې حمله پرې کېږي شراب خانې دي.
خلک برید پرې کوي چې وکړای شي شراب او د اوربشو اوبه وڅښي.

صراحی او جامونه ماتوي پخپله شراب پلورونکی. په نیل سیند کې ډوبوي. نو له همدې کبله ددې شراب خانې مالک ډارشوی دی.

ددې شراب خانې مالک د امون کلک پلوی دی او دومره تعصب یې ښودلی چې نن سبا نه شي کولای له پخواني خدایه منکر شي او پر نوي خدای عقیده وکړي.

له همدې کبله هېڅوک نه مني چې هغه خپله عقیده بدله کړې وي او د نوي خدای پیروي یې پیل کړې وي.

له بلې خوا د ساقي خانې دغه مالک پوه شوی چې د امون خدای سخت وېرېدلی دی.
تر دې حده چې د آمون معبد خپلې ځمکې خرڅوي ځکه فکر کوي یوه ورځ به دغه ځمکې ترې واخلي.

ما چې ولیدل. شراب پلورونکی ډار شوی نو داسې خبرې مې وکړې چې د هغه ویره او ترهه مې نوره هم زیاته کړه. ورته مې ویل. ډېر ژر ځان له دې شراب خانې خلاص کړه. ځکه که کومه ستونزه او بلوا پیل شوه خپله پانګه به په دې میخانې کې له لاسه ورکړې.

هغه هم چې سخت ډار شوی و. ومنله او ساقي خانه یې پر ما خرڅه کړه.

له دې کبله چې زه پوهېدم. هغه د میخانې د اداره کولو وړتیا لري او تر هغه به بل تکړه شاګرد پیدا نه کړم نو له هغه او مریت څخه مې وغوښتل چې په دې میخانې کې پاتې شي.

ما وویل کاپتا زه نه پوهېږم چې ته به له دې میخانې استفاده وکړې کنه؟

خو په دې پوهېږم چې تا پر یوې ورځې ډېر کارونه کړي دي او که زه وای پر یوې ورځې مې دغه ټول کارونه نه شوای کولای.

بیا پورته شوو او له ساقي خانې ووتو.

ما احساس وکړ چې کاپتا ډېر مست دی سم په لاره نه شي تللی او د تمساح یوې لکۍ خراب کړی دی.

# نهه ویشتم څپرکی

## په مصرکې د یوې لویې فتنې سریزې

زه د طبس ښار د بېوزلو په سیمه او د پخواني مسګر په کور کې د بېوزلو ډاکټر شوم او لکه چې کاپتا یې اټکل کړی و ، هغسې ډېر ناروغان راته راتلل.

ما د دغو ناروغانو له درملنې استفاده نه کوله او اپوته یې ماته تاوان پېښاوه ، ځکه چې ناروغانو ته مې وړیا درمل ورکول.

ځینې وخت خو به لا مجبور شوم هغوی ته خواړه هم ورکړم ، ځکه چې کتل به مې د یوه ناروغ معالجه په دې پسې تړلې چې ښه دوډۍ و خوري نو ډېر ځله مې د درملو پر ځای دوډۍ ورې خوړله.

هغه ډالۍ چې ځینو ناروغانو راکولې بې ارزښته وې ، خو له دې کبله چې په اخلاص یې راکولې زه یې خوشحالولم.

زه له دې کبله ډېر خوشحاله وم چې خلکو زما نوم مبارک ګاڼه او داسې یې یادولم چې ګني د نړۍ یو ستر او نیک کس یم.

کاپتا چې د بوډاتوب او شتمنې له کبله نور زما خدمت نه شو کولای نو د کور د کارونو لپاره مو یوه بوډۍ ښځه وګمارله چې هم یې له نارینه وو کرکه کوله او هم یې ژوند ته هیله نه وه.

خو له دې چې باید انسان تر هغه چې ژوندی وي کار وکړي ، نو هغې هم زموږ په کور کې کار کاوه.

دغه ښځه که څه هم ډېره زړه وه ، خو ښه خواړه یې پخول او ما هېڅکله د هغې د لاس له خوړو شکایت نه و کړی.

بله خبره دا چې دې ښځې د هغو بېوزلو له بده بویه کرکه نه کوله چې د درملنې لپاره

زموږ کور ته راتلل، په داسې حال کې چې کاپتا اوس له دغه بویه سخته کرکه کوله.

دغه ښځه به تل حاضره وه، خو ما به نه ليدله او هغې ته مې (موتي) ويل.

د شپې مهال د طبس ښار د څراغو په رڼا روښانه کېده، ميخانې او عمومي ځايونه به له مشتريانو ډک شول، خو هر چا چې لږ عقل هم درلود اتکل يې کولای شو چې کومه خبره کېدونکې ده.

ځکه چې د آتون په نوم د نوي خدای او د مصر د پخواني خدای آمون تر منځ مبارزه سختېدله.

دوه درې مياشتې تېرې شوې، په طبس کې خلک د دوو خدايانو د مبارزې له بالقوه پايلو اند ېښمن ول او د مصر د پوځ قوماندان هورم هب هم مصر ته راستون نه شو.

د ورځې له پلوه د لمر تودوخه ډېره وه، او ځينې وخت به له ډېرې تودوخې او ستومانۍ څخه له کاپتا سره د(تمساح لکۍ )ميخانې ته تلم، خو هلته مې هغه سوزنده او تېز شراب نه څښل، بلکې لږ د اوربشو اوبه به مې څښلې چې يوازې تنده کمه او ستوماني لېرې کړي او په دې ډول به نه نشه کېدم.

له دې کبله چې په ميخانه کې ګرمي کمه وه زه به هلته هوسا شوم او د مريت د ښکلا له ننداري به مې خوند اخيست.

کله چې به د هغې سترګې زما په سترګو کې ښخې شوې ،احساس مې کاوه چې زړه مې چا کېکښلی دی او زړه به مې غوښتل چې د هغې لا س پخپل لاس کې ونيسم.

له دې وروسته چې څو ځله دې ميخانې ته ولاړم متوجه شوم چې ددې ميخانې مشتريان خاص کسان دي او هرڅوک هلته نه پرېږدي،

يا داچې د ميخانې حالت داسې و، چې بېوزله کسان نه شي کولای هلته شراب او د اوربشو اوبه يا د تمساح لکۍ شراب وڅښي.

کاپتا ورو راته وويل ددې ميخانې په ګاکانو کې داسې کسان هم شته چې د مړيو د ښار له لوټماريو يې شتمني تر لاسه کړې ده.

خو کله چې دې ميخانې ته راځي د اشرافانو په شان چلند کوي او هېڅکله به سپک سپک چلند ونه کړي.

دغه راز هغه ويل ، ددې ميخانې ټول مشتريان هغه کسان دي چې يو بل ته اړتيا لري

او د نورې مادي راکړې ورکړې لپاره دلته راځي يو ځاې د تمساح لکۍ شرابو لپاره نه راځي.

يو ځينې ګاک چې څوک ورته اړتيا نه لري زه وم. ځکه چې ما نه کوم شی اخيستل او نه پلورل.

نه مې سره او سپين پور ورکول چې سود يې واخلم. نه د پورونو اخيستونکی وم.

خو ټول پوهېدل چې زه د کاپتا ملګری يم. له همدې کبله به يې ميخانې ته پرېښودم.

مګر له دې سره سره د پر صميميت يې راسره نه درلود ځکه پوهېدل چې زه کومه ګټه نه شم ور رسولای.

ما په دې ميخانې کې د مصر او طبس د حالاتو او د هېواد د پېښو په اړه ډېر معلومات تر لاسه کول.

يوه بېلګه يې وايم. يوه شپه په ميخانه کې وم، چې د سپاندو او په اورکې د نورو سو ځېدونکو خوشبويه نباتي دانو سوداګر ميخانې ته راننوت.

هغه خپلې جامې شکولې او پر سر يې ايرې تويې کړې وې.

ميخانې له راننوتو سره سم يې يوه پياله د تمساح لکۍ شراب وڅښل او ويې ويل،

هيله کوم چې دغه فرعون دې تر قيامته پورې ملعون وي. ځکه دغه فرعون نه غواړي د عقل پيروي وکړي او هر څه چې يې په مازغو کې وګرځي هغه عملي کوي.

هغه وويل تر ننه پورې زما ژوند د سپاندو او نورو خوشبويه دانو پر خرڅلاو چلېده.

چې له لېرې پرتو هېوادونو مې راوړل.

هر کال په دوبي کې يو شمېر بېړۍ له دې ځايه د ختيځ پر لور ځي او هر کال به لږ تر لږه له لسو بېړيو څخه د ختيځ له شيانو او سوځېدونکو دانو سره بېرته راستنېدلې.

سږ کال چې بېړيو غوښتل د ختيځ سمندر پر لور ولاړې شي. ناځاپه فرعون بندر ته راغی، زه حيران شوم چې دغه سړی ولې په ټولو کارونو کې لاسوهنه کوي؟ په داسې حال کې چې دغه ډول کارونه په ده پورې اړه نه لري او بله دا چې په طبس کې دومره څارونکي او کاتبان څه کار کوي؟ ايا د هغوی دنده څارنه نه ده، چې هر کار له قانون سره سم تر سره شي؟

کله چې فرعون بندر ته راغی. ماښوګانو په بېړيو کې زارۍ کولې ښځو او ماشومانو يې په ساحل کې اوښکې تويولې او خپل مخونه يې شکول. ځکه پوهېدل چې يو شمېر

ماڼو ګان به بیرته ستانه نه شي.

ټول پوهېدل چې دوی به په سمندر کې ډوب شي خو دا یو دود دی، کومه نوې خبره نه ده.

هر ځل چې بېړۍ روانېږي، د ماڼوګانو ښځې او ماشومان زارۍ کوي او ساندې وایي ،خو داخل چې ملعون فرعون د ښځو زارۍ، نارې سورې او د ماڼوګانو زارۍ ولیدې، امر یې وکړ چې باید نور د ختیځ پر لور کشتۍ ولاړې نه شي.

هر څوک چې سوداګر دی پوهېږي چې د فرعون دغه امر او مخنیوی د سوداګرو د نابودۍ د امر په مانا دی.

له دې سره د ماڼوګانو ښځې او ماشومان تباه کېږي، ځکه تر هغه چې بېړۍ د ختیځ پر لور ولاړې نه شي ، سوداګر به ګټه ونه کړي او د ماڼوګانو ښځې او ماشومان به وږې پاتې شي.

هرڅوک چې په مصر کې ژوند کوي پوهېږي چې باید هېڅکله د یوه ماڼو لپاره چې په کښتۍ سفر کوي خواشیني ونه کړي، ځکه هېڅوک پخپله خوښه نه ماڼو کېږي.

هغه محکومین چې قاضیانو محکوم کړي او ورانکاري دي مجبورېږي، چې ماڼوګان شي، په دغسې حالت کې باید ولې د هغو د ډوبېدو له امله خواشیني شو؟

ایا د څو تنو هغو کسانو مړینه چې محکوم شوي او مجبور دي چې ماڼوګان شي ډېره دخواشینۍ خبره ده، که د سوداګر د پانګې تباه کېدل د تاسف وړ دي چې کشتۍ یې جوړه کړې او هغه یې سنبال کړې ده.

ځکه چې کشتۍ خو پخپله نه جوړېږي، بلکې باید پانګه پرې ولګول شي ،جوړه شي او بیا له کافي خوړو سره د ختیځ سمندر پر لوري واستول شي.

زما زړه پر مصري سوداګرو سوځي چې دوی پخپله په لېرې پرتو سیمو کې دي، ښځې او ماشومان یې په مصر کې دي او دغې ښځې او ماشومان به هېڅکله خپل مېړونه او پلرونه ونه ویني.

هغه سوداګر چې په نورو سیمو کې دي، نورې ښځې یې کړې او وایي هغه ماشومان چې دوی زېږولي د بدن پر پوستکي تاپې لري.

یوه شپه دغو سوداګرو همدا سې شکایت وکړ او پر فرعون یې لعنت وایه ، هغه ته یې ښېراوې کولې او ویل یې چې دغه سړی به ټول سوداګر له ګټې وتې وباسي.

دغه راز به هغه سوداګر هم تباه کړي چې په لېرې پرتو سیمو کې دي او مصر ته شیان را استوي

له دې وروسته چې درې پيالې د تمساح لکۍ شراب يې وڅښل هيجان يې کم شو. او پر دې يې ښښنه وغوښته چې فرعون ته يې سپکې سپورې ويلې وې

ده وويل له ډېره خپګانه يې دغه ډول خبرې وکړې او زياته يې کړه، ما فکر کاوه چې د فرعون مور (تي) به وکړای شي. خپل زوی سم کړي او عقل ور وښيي. خو هغه هم په دې فکر کې نه ده.

دغه راز ما تصور کاوه چې د فرعون د نوي معبد مخکښ (آی) به د هغه لپاره زړه سواندی نصيحت کوونکی وي خو دغه سړی هم يوازې په يوه فکر کې دی او هڅه کوي پخوانی خدای آمون له پښو وغورځوي

تر دې مخکې چې فرعون ښځه وکړي، نو ما فکر کاوه چې دی به له دې کبله بې پروا وي چې واده يې نه دی کړی. خو چې (نفر تي تي) د هغه خور شوه بيا هم د هغه بې پروايي ختمه نه شوه.

له هغه وروسته چې نفر تي تي د مصر ملکه شوه په جامو کې يې حيرانوونکي موډونه را وايستل چې د دربار ښځې د هغې پيروي کوي او اوس د دربار ښځې د نفر تي تي په شان د خپلو سترګو شا و خوا رنګوي.

دوی د سوريې د ښځو په شان جامې اغوندي. د هغوی جامې داسې دي چې مخکښی برخه يې ښېخي خلاصه ده.

کاپتا وويل ما دغسې جامې په هېڅ هېواد کې نه دي ليدلې. خو ايا ته باوري يې، هغه ښځې چې نوی موډ کالي اغوندي، د بدن هغه برخه چې بايد پټه يې کړي د نورو د ننداري لپاره لوڅه پرېږدي؟

ايا، تا پخپله د ښځو د بدن دغه برخه ليدلې ده؟

سوداګر وويل زه خور لرم. له خپلې خور څخه څو بچيان لرم. ځان يو شريف سړی ګڼم خو کله چې ما هغه ښځې وليدې چې د بدن مخکښی برخه ښېخي لوڅه ده، نو د هغوی له نامه ښکته برخې ته مې ونه کتل.

په دې وخت کې د ميخانې نوکرې مريت خبرې پيل کړې او سوداګر ته يې وويل، که ته بې سليقې سړی يې، نو دا د ښځو ګناه نه ده. ځکه چې په دوبي کې له دې موډه پيروي ډېره ښه ده او ښځې ښکلې کوي.

مريت سوداګر ته وويل، هغه جامې چې ته پرې نيوکې کوي داسې نه دي، بلکې ښځې

له دغو جامو سره . پر هغه ځای د کتان یوه ټوټه تړي چې باید پټه وساتل شي.

د ډېرو تېزو سترګو نارینه هم نه شي کولای تر دغې ټوټې لاندې بدن ووېني.

سوداګر غوښتل ځواب ورکړي، خو د ډېرې نشې کبله یې ونه شو کولای.

ده خپل سر په دواړو لاسونو کې ونیو او د ښځو د جامو د نوي موډ . د لېرې سمندرونو پر لور د بېړیو د مخنیوي او د خیتځو سیمو د شیانو له ګټو څخه د سوداګرو پر راګرځېدو یې وژړل.

په دې وخت کې د آمون د معبد یو کاهن چې سر یې خریلی او معطر تېل پرې موښلي ول. په خبرو کې راګډ شو او په لوړ غږ یې وویل:

زه د ښځو د نویو جامو په هکله څه نه وایم ځکه چې د امون خدای د جامو او موډ په هکله څه نه دي ویلي. خو هغه څه چې ټول شیان له منځه وړي، د ختیځ لوري ته د فرعون له لوري د بېړیو د تګ مخنیوی دی.

ځکه که دغه بېړۍ ولاړې نه شي . نو څوک په اور کې سو ځېدونکې معطرې نباتي دانې نه شي راوړلای او که دغه دانې رانه وړي نو زموږ خدای. آمون به زموږ د قربانۍ پر وخت له ښه بویه محروم شي.

دا په داسې حال کې ده چې آمون ته ښه بوی ډېر خوند ورکوي او له آمون سره شوې دغه دښمني د مصر د ملت لپاره ستره بدبختي ده.

له هغې ورځې راهیسې چې هرمونه جوړ شوي د چا نه یاد پړي، چې د مصر ملت دې داسې بد بخته شوی وي.

زه یقین لرم له دې وروسته چې هر مصري د فرعون د نوي خدای یو پیرو هم وګوري نو ناړې به ور تو کړي.

د نوي خدای پیروان پر خپلو جامو د نوي خدای نښه تومبي چې یو صلیب دی.

ستاسې له ډلې که نن شپه هر څوک ولاړ شي او خپل لوی ضرورت (جواب چای) د نوي خدای په معبد کې رفع کړي، زه به پرې څو پیالې د تمساح لکۍ شراب وڅښم.

دغه کار سخت هم نه دی. ځکه د آتون په نوم دغه ملعون خدای معبد دېوال هم نه لري او که یې څوک ووېني نو د معبد له ساتونکو څخه په اسانه تښتېدلی شي.

زه پخپله هم دغه کار کولای شم خو له دې کبله چې د آمون د معبد کاهن یم. نو ښه نه ده چې ما وګوري او دا کار د آمون د سپکاوي سبب شي.

په دې وخت کې يو سړی چې پر مخ يې د کوي يا چيچک نښې وې، د ميخانې له يوه ګوټه را ولاړ شو، کاهن ته نژدې شو او ورو يې ورسره خبرې وکړې.

کاهن دغه کس پخپل څنګ کې کېناوه او پر هغه يې د تمساح لکۍ شراب وڅښل.

سړی چې کله شرابو ګرم کړ، نو په لوړ غږ يې کاهن ته وويل، زه دغه کار ته چمتو يم او ځم.

زه پر آمون عقيده لرم او دا نه شم منلای چې بل خدای دې د آمون ځای ونيسي، ځکه له هغې ورځې چې زېږدلی يم، تر ننه پورې د آمون عبادت کوم.

کاهن وويل که ته نن شپه ولاړ شې او د آتون د معبد په محراب کې خپل ضرورت رفع کړې، زه به تاو ببښم.

ان که ستا جنازه موميايي هم نه شي، بيا به هم تر مړينې وروسته د لوېديز نيکمرغه ټاټوبي ته ورسېږې، ځکه هر څوک چې د آمون لپاره مړ شي او يا که په سمندر کې ماهوګان ډوب شي بيا به هم د لوېديز ټاټوبي ته ورسېږي.

نشه کاهن د ډېرې نشې له کبله په ميخانه کې ناستو کسانو ته وويل، که تاسې د آمون په لاره کې قتل او غلا وکړئ، کورونه وسوځوئ او هر بدعمل وکړئ، زه به تاسې وبښم او ان که فرعون ووژلاست هم تاسې به وبښم.

کله چې د کاهن خبرې دې ځای ته ورسېدې نو د کاپتا شاګرد او د ميخانې چلوونکی سړی راپورته شو کاهن يې پر سر په يوه لرګي وواهه.

کاهن پر ځمکه ولوېد او شراب پلورونکي وويل، دغه کار هم زه د آمون لپاره کوم، ځکه چې پوهېږم آمون ويلي هېڅوک بايد د هغه زوی يانې فرعون ونه وژني.

ټولو مشتريانو د شراب پلورونکي خبره تايد کړه، خو له دې کبله چې شونې ده د يوه کاهن وهل ناوړه پايلې ولري، نو ما او کاپتا د نورو مشتريانو په شان غوره وبلله چې له ميخانې راووځو شو.

مريت زما د بدرګې لپاره را سره روانه شوه، کله چې د ميخانې تياره دهلېز ته ورسېدو ما خپل لاس د هغې پر لاس کېښود او ومې ويل، ستا له سترګو داسې ښکاري چې ته هم ما غوندې يوازې يې او ورور نه لرې (يانې مېړه نه لرې ځکه چې په مصر کې د ورور او خور ودونه روا ول ژباړن) زه غواړم چې يوه ورځ دې د نوي موډ په کاليو کې وګورم او باوري يم، چې ته به په دې جامو کې ښايسته شې ځکه چې ستا خېټه کوچنۍ او ښوييه ده.

مریت زما لاس ټېل نه واهه او ویې ویل، شونې ده زه یوه ورځ دغه جامې وا غوندم او له تاڅخه چې ډاکتر یې ،وغواړم، زما د بدن د ځینو غړیو په هکله نظر راکړې

دا به راته ووایې چې دې ته ورته غړي دې په خپل طبي مسلک کې کتلي کنه؟

اوس زما بر خلیک دې ځای ته رسېدلی دی.

باید ځینې شیان یاد کړم چې کله زما دوو سترګو لیدل نو له کرکې ړېږدېدم، خو د دغو پېښو د مخنیوي لپاره مې کومه وسیله نه درلوده.

زه باید هغه شیان بیان کړم چې ته، یا هغه څوک چې دغه کتاب زما له مرګه وروسته لولې نو پر هغو به باور وکړې، ځکه زه اټکل کوم دغه ډول پېښې به ستا په وخت کې هم وشي.

څرنګه، چې ددې کتاب په پیل کې مې وویل په نړۍ کې هر شی بدلېږي، یوازې دبشریت حماقت دی چې نه بدلېږي او ترکومه چې دا دنیا وي د خلکو له حماقته به استفاده کېږي.

د دوبي په نیمایي کې د مصر د سپاهیانو قوماندان هورم هب د مصر په سوېل کې د کوش له ټاټوبي راستون شو.

د ګرمۍ له کبله توتکۍ نه الوتې او غرېږې نه اورېدل کېده.

په ډنډونو کې اوبه نه خوسا کېدلې او خلک د ورځې له پلوه له سیند څخه را وتل، یوازې هغه کسان پاتې کېدل چې مجبور ول، د طبس په بندر کې کار وکړي او یا په بېډیا کې په پټیو کې کار کوي

خو د شتمنو کسانو باغونه تل ساړه او له ګلانو ډک ول او تل د باغونو په لښتیو کې اوبه رواني وې

په دې دوبي کې فرعون د تېرو کلونو پر خلاف په طبس کې له خپلې ماڼۍ راونه ووت، چې کوز مصر ته ولاړشي او د هغه ځای له سړې هوا استفاده وکړي

له دې کبله چې فرعون ساړه بڼ ته نه و تللی ټول پوه شول چې سترې پېښې کېږي.

یوه ورځ خلک خبر شول چې هورم هب راغلی او له کورونو راووتل چې د فرعون عسکر وګوري

هغوی ولیدل له ټولو هغو لارو چې له سوېله طبس ته راغځېدلې په دوړو پټ تورپوستي عسکر په داسې حال کې ښار ته راننوځي چې د نېزو مسي څوکې یې ځلېدې.

تور پوستو چې توري سترګې او سپین- سپین غاښونه یې درلودل . شا و خوا یې حیران -حیران کتل او معلومېده چې د طبس د ستر او ښکلي ښار لیدو حیران کړي دي.

پر همدې وخت چې تور پوستي عسکر طبس ته ننوتل د فرعون جنګي بېړۍ هم بندر ته ورسېدې.

له بېړیو څخه جنګي ګاډۍ او اسونه . وچې ځمکې ته ولېږدول شول او خلکو ولیدل چې د ګاډیو چلونکي او د اسونو پالونکي ټول د شردن ټاټوبي او سېډونکي یا تورپوستي دي.

(شردن هغه سیمه ده چې اوس یې لیبیا بولي. ژباړن )

باید ووایم چې پخوا یې په مصر کې ګاډۍ په خرو پسې تړلې . او په اسونو پسې د جنګي ګاډیو د تړلو دود له شردون څخه مصر ته ورغلی دی.

کله چې تور پوستي عسکر ښار ته ننوتل د شپې مهال یې په څلور لارو کې د پیرې دروازې ودرولې او د شمال او جنوب تر منځ یې د سیند لاره بنده کړه.

دوی لاره داسې بنده کړه. چې هېڅوک د مصر د قوماندان له اجازې پرته جنوب یا شمال ته د تللو لپاره د نیل سیند له لارې استفاده ونه کړي.

پر همدې ورځ چې تورپوستي. طبس ته ننوتل خلک داسې وار خطا شول. چې په کارخانو ، ژرندو ، دوکانونو او بندر کې کارګر رخصت شول

د طبس کسبګرو د خپلو هتیو په مخکې اینبې توکي له وېرې بېرته دوکانونو ته ننه ایستل او دروازې یې پسې راوتړلې.

د عمومي ځایونو خاوندانو ، یو شمېر بې تربیته او پیاوړي کسان وګمارل. چې که کومه خرابه پېښه وشي، نو ددې مخه ونیسي چې پر میخانو یا عمومي ځایونو برید ونه شي.

د طبس خلکو به یوازې په بېړنیو حالاتو کې ، معبد ته د تګ پر وخت سپینې جامې اغوستې. خو اوس ټولو سپینې جامې واغوستلې او د آمون د معبد پر لور روان شول چې په حقیقت کې یو ښار دی.

د آمون د معبد د پراخوالي د بیانولو لپاره همدا کفایت کوي چې ووایو . دار الحیات د آمون د معبد یوه موسسه وه.

پر همدې ورځ چې تور پوستي سرتېري. ښار ته ننوتل او کارونه رخصت شول . نو

داسې اوازه خپره شوه. چې تېره شپه دآمون خدای د سیال آتون د معبد محراب ککړ شوی دی. یو مړ سپی چا په محراب کې اچولی او د معبد د ساتونکي سر یې غوڅ کړی دی.

خلکو ددې خبرو په اورېدو سره ظاهراً خواشیني وښودله. خو په باطن کې ټول خوشحاله ول. ځکه چې ولس له نوي خدای سره مینه نه درلوده چې عجیبې غریبې خبرې یې کولې.

پر دې ورځ کاپتا راته وویل باداره! خپل طبي وسایل او شیان بر سېره کېږده. زه اټکل کوم چې سبا یا بل سبا باید دومره کار وکړې چې د ډوډۍ خوړلو لپاره به وخت پیدا نه کړې.

د تور پوستي د راتګ پر ورځ ما واورېدل چې هورم هب هم ښار ته راننوتی دی.

زه ولاړم چې هغه ووینم. خو هلته له رسېږ.و سره راته معلومه شوه چې هورم هب تر ټولو وروسته یانې پر بله ورځ ښار ته راځي.

پر دې شپه تورپوستي عسکر په طبس کې ول. له دې پرته له چې د پوځ قوماندان موجود وي، دوی څو دوکانونه لوټ کړل او پر څو عمومي کورونو یې حمله وکړه.

خو د پوځ سپین پوستو مصري ساتونکو دوی د خلکو په مخکې ووهل، مګر ددې سزا د عمومي ځایونو د مالکانو تاوان جبران نه کړای شو او د هغوی غوسه یې سړه نه کړه.

پر بله ورځ مازیګر، هورم هب په یوې جنګي بېړۍ کې طبس ته راننوت او ما په بېړه ځان بندر ته ورساوه چې هغه ووینم.

ما تصور نه کاوه چې هغه به دومره په آسانۍ سره ولیدای شم. خو کله چې یې هغه ته خبر ورکړ چې سینوهه ستا کتو ته راغلی نو دستي یې امر وکړ چې ما بېړۍ ته ورولي.

تر هغه وخته ما د مصر د کومې جنګي بېړۍ منځ نه و لیدلی. خو کله چې بېړۍ ته ننوتم د یوې جنګي او سوداګریزې بېړۍ ترمنځ ډېر توپیر نه و.

یوازې دا چې جنګي بېړۍ د اور اچولو لپاره وسایل لري. بادبانونه یې رنګارنګ او ښکلي وي او د بېړۍ مخه او شا یې سینګار کړې وي.

کله چې مې هورم هب ولید متوجه شوم، چې د هغه د متو عضلات مضبوط شوي او د پوځ د عمومي قوماندان سینې داسې راوتلې وې چې ته وا د یوې ښځې سینې دي.

د هورم هب په لاس کې یوه متر که وه، چې د سرو زرو لاستی یې و. او زري غاړکۍ یې په غاړه او پر تټر پرته وه.

کله چې د هغه مخې ته ورغلم، دواړه لاسونه مې پر زنګونو کېښودل. ورته ټيټ شوم.

هورم هب وخندل ویې ویل اې ابن الحمار سینوهه! په ډېر ښه وخت راغلې.
خو له دې کبله چې ډېر غټ شوی و، زه یې ښکل نه کړم او ما هم جرئت ونه کړ چې هغه ښکل کړم.

د هورم هب تر څنګ یو چاغ او ټیټ سړی ولاړ و، چې د ګرمۍ له کبله یې خولې خولې و.
زه نه پوهېدم چې هغه څوک دی او ناڅاپه او په حیرانۍ سره مې ولیدل، چې هورم هب خپله متروکه چې د قوماندانۍ نښه ده، هغه سړي ته ورکړه.

ده له خپلې غاړې څخه زري غاړکۍ راوکښله او هغه ته یې ورکړه او ورته یې وویل، دغه طوق پر غاړه کړه او سر له ننه د مصر د پوځ د قوماندانۍ مسولیت پر غاړه واخله، ښه به وي چې د مصر د ملت وینه ستا په ګنده لاسونو وبهېږي، نه زما په لاسونو.

زه له پخوا د هورم هب د خبرو له لهجې سره بلد وم او پوهېدم چې هغه تل د زړه خبره کوي. نمایشي خبرې نه کوي، ان ما اورېدلي دي، چې له فرعون سره هم داسې خبرې کوي چې کله کله د شخړې په شان وي.

په زړه پورې دا وه چې ده هېڅکله له ما سره داسې چلند نه کاوه، نه یې له ما سره بد چلند کړی او نه کله بده او چټي خبره راته کړې ده.

کله چې یې خپله متروکه او غاړکۍ دغه سړي ته ورکړه، نو مخ یې را واړوه، ویې ویل سینوهه! ما چې درته وویل پر سم وخت راغلې لامل یې دا دی چې زه حاضر یم ستا کور ته ولاړ شم، ځکه چې له دې مېزانې (ساعته) وروسته د مصر د پوځ قوماندان نه یم. *(مېزان چې نن یې مونږ ترازو بولو په هغه وخت کې د دابو د ساعت نوم و، لکه چې اوس موږ وایو له دې ساعته وروسته مصریانو به ویل له دې میزانه وروسته. ژباړن).*

که ستا په کور کې یو پوزی هم وي غواړم پرې ویده شم، د مه وکړم او تر دې زیات نور له لیونو سره خبرې ونه کړم.

بیا یې خپل لاس د همغه چاغ او ټیټ سړي پر اوږه کېښود او ویې ویل: سینوهه! دغه سړي ته ښه ځیر شه، هغه وپېژنه، ځکه دغه سړی هغه څوک دی چې له دې مېزانه وروسته به نه یوازې د طبس بلکې د ټول مصر بر خلیک ور سره وي.

دی د مصر پوځ نوی قوماندان دی او فرعون هغه زما ځای ناستی کړی دی. ځکه چې ما فرعون ته وویل چې لیونی دی او که ته دغه سړي ته ښه ځیر شې، نو پوه به شې چې فرعون به بیا ماته محتاج شي.

د پوځ نوي قوماندان چې خولې پرې راماتې وېې ويل، هورم هبه ! پر ما غوسه نشې، ځکه چې ته پوهېږې، مانه غوښتل ستا ځای ونيسم. زه د جنګ سړی نه يم او فکر کوم زما د باغ چوپتيا، او په دغه باغ کې له خپلو پيشوګانو سره لوبې کول د جنګ د ډګر تر شور ماشوره ماته غوره وي.

خو له دې وروسته چې فرعون زه د پوځ د نوي قوماندان په توګه وټاکلم، د هغه د ارادې بې احترامي مې نه شوه کولای، په تېره بيا دا چې وېې ويل، نه به کوم جنګ وشي او نه به وينه تويه شي، بلکې آمون به پخپله نسکور او له منځه ولاړ شي.

هورم هب وويل د فرعون يوه لوی عيب دا دی چې کله کومه هيله کوي، نو خوبويني چې هغه هيله يې پوره شوې، بيا تصور کوي هغه څه چې ده يې فکر کړی په رښتيا عملي شوي دي.

ډ آمون په هکله هم همدا غلط فکر کوي، خيال کوي چې له وينې بهېدو پرته د آمون خدای پرځولی شي او د آتون خدای يې پر ځای کېنولی شي.

هورم هب ورته وويل، له دې کبله چې پوهېږې پر تا پيشوګانې ګرانې دي او له جنګه کرکه کوې، نو د آمون د خدای ختمول يې تا ته سپارلي دي.

خو زه درته وايم چې له وينې بهېدا پرته دغه کار شونی نه دی، ته بايد ډېر کسان ووژنې چې وکولای شې د آمون خدای را نسکور کړې، خو هغه وينه چې ته يې بهوې له دې کبله چې ستا خپله وينه نه ده نو تاوان به و نه کړي.

له دې وروسته هورم هب هغه سړی پر ملا وواهه، سړی دده د لاس تر ګزار لاندې کړوپ شو او بيا يې ماته وويل راځه چې له دې ببرۍ څخه ولاړ شو.

کله چې موږ غوښتل له دې ببرۍ څخه ووځو، هلته ناست سرتېري را ولاړ شول، نېزې يې څنګ ته کېښولې، هورم هب ته يې سلام وکړ.

هغه عسکرو ته په لوړ اواز وويل: زه له تاسې سره خدای پاماني کوم خو پوهېږم چې يوه ورځ به بيرته تاسې ته راستون شم.

تر هغې ورځې چې زه نه يم راغلی تاسې د دغه سړي پيروي کوئ، چې اوس مو قوماندان دی او نظم او دسپلين ته پام وکړئ.

که مو داسې و نه کړل نو له ستنېدا وروسته به پر ملا دومره متروکې او لرګي وخورئ چې د بدن د غوښو ټوټې مو جلا شي.

عسکرو وخندل او هورم هب وويل، زه خپل شيان له بېرې څخه نه باسم ځکه چې پوهېږم دلته به خوندي وي.

بيا يې زما پر غاړه کې لاسونه را واچول او ويې ويل سينوهه! زه نن شپه غواړم ځان بوخت کړم.

ومې ويل په دې ښار کې يوه ميخانه شته چې د تمساح لکۍ يې بولي يو ډول معطر شراب لري، چې په هېڅ ځای کې حتی په بابل او کرت کې يې سارى نه موندل کېږي.

خو ډېر قوي دي، بايد په خوړلو کې يې احتياط وشي. ايا غواړې هلته ولاړ شو چې ته دغه شراب وڅښې؟

هورم هب وويل. هو! غواړم چې دې ميخانې ته ولاړ شم.

ومې ويل. نو امر وکړه چې يو ټولی عسکر ستا د ساتلو او د بې نظمۍ د مخنيوي لپاره دغې ميخانې ته ولاړ شي.

له دې سره سره چې هورم هب نور د پوځ قوماندان نه و. نوي مشر ته يې داسې امر وکړ چې ته وا هغه سړی لا هم دده تر امر لاندې دی.

هغه ته يې وويل، يو شمېر باوري سپاهيان د تمساح لکۍ شراب خانې ته واستوه چې نن او په نورو ورځو کې ميخانه وساتي او چا ته اجازه ورنه کړي چې هلته بې نظمي جوړه کړي

زه ددې دهغه د امر له کبله خوشحال شوم. ځکه چې اټکل مې کاوه، که ناسمې پېښې وشوې. نو د تمساح لکۍ به تر بل هرځای ژر له حملو سره مخامخ شي.

دا ځکه چې ټول پوهېږي. ددې ميخانې تر شا ځينې کوټې د هغو کسانو د معاملې ځای دی چې د امواتو د ښار له قبرونو غلاوې کوي او يا غلا کړي سره او سپين پخپلو منځو کې ويشي.

دغه راز ځينې کسان خبر ول. چې که کومه پېښه وشي نو پر دغې ميخانې به حتماً حمله وشي او کاپتا ته به سخت تاوان ورسوي

خو ميخانې ته د هورم هب له امر سره سم د عسکرو تر رسېدلو وروسته دغه خطر له منځه ځي.

ما هورم هب ته لارښونه وکړه، هغه مې د تمساح لکۍ شراب خانې ته بوت او په يوې کوټې کې مې کېناوه.

مریت مونږ ته مخصوص شراب راوړل.

هورم هب په یو وار پر سر واړول او ویې ټوخل، خو ځو شیبې وروسته یې وغوښتل چې یو بله پیاله شراب هم ورته راوړي.

مریت بیا جام ورته ډک کړ او هورم هب هم وڅښل.

ماته یې وویل دغه ښځه ډېره ښکلې ده، ایا له تا سره ملګرې ده؟

ما ورته وویل، له دې ښځې سره زما دوستي عادي ملګرتیا ده او خصوصي اړخ نه لري.

زه په تمه وم چې هورم هب به خپل لاس د مریت لاس کې کېږدي، خو هغه په ادب سره مېرمنه رخصت کړه او له دې وروسته چې هغه ولاړه ماته یې ویل: سینوهه! سبا هغه ورځ ده چې په طبس کې به وینه وبهېږي.

فرعون فیصله کړې چې خپل خدای، د آمون پر ځای کېنوي، له دې کبله چې فرعون پر ما ګران دی، نو د هغه د دغه اقدام مخه نه نیسم.

زه پوهېږم که مې د فرعون مخه نیولې وای نو هغه به داسې خپه شوی و، چې ممکنه ده له غمه مړ شي.

ته پوهېږې زه هغه کس یم، چې کله فرعون ولیعهد و، ما ستا په شتون کې هغه پخپلو جامو کې پټ کړ چې ساړه یې ونه شي، له هماغه وخته پر ما ګران شو.

زه پوهېږم چې د خدای د بدلولو لپاره به د فرعون اقدام ډېرې وینې توی کړي نو ځکه مې د مصر پوځ له قوماندانۍ مې استعفي ورکړه چې د خلکو د وینې بهیدا مسولیت را پر غاړه نه شي.

زه پوهېږم که دغه مسولیت پر غاړه واخلم نو په راتلونکې کې به د مصر د ملت له کرکې سره مخ شم.

سینوهه! کله چې زه او ته په سوریه کې سره بېل شو، نو له هغه تر اوسه پورې د نیل له بستره ډېرې اوبه تېرې شوې، څو وارې دغه سیند مست شوی دی، ساحل یې تر اوبو لاندې شوی او راز په دې هېواد کې ډېرې نورې پېښې هم شوې دي.

سره له دې، چې د فرعون د امر پر اساس مې د هېواد جنوب ته سفر وکړ، چې ټولې پوځې چوڼۍ ختمې کړم او ټول تورپوستي عسکر طبس ته راولم او اوس د مصر په جنوب کې هېڅ عسکر نشته، ټولې چوڼۍ تشې دي او دغه کار په سوریه کې هم تکرارېږي.

بې له شکه سوریه به بلوا وکړي او ښایي هغه وخت به فرعون پخپل لېونتوب پوه شي

او په دې به هم پوه شي چې هېواد له عسکر و پرته نشي ساتل کېدای.

له هغې ورځې چې فرعون فیصله کړې، د خپل خدای د غوښتنې پر اساس عمل وکړي له هغه وروسته د مصر له کانونو څخه پامور شیان نه راوځي ددې لپاره چې وايي مر ييان خوشې کړئ، هغوی تنبلان دي په کانونو کې کار نه کوي.

له دې سره سره چې زه عسکر يم او له خدايانو سره مې کار نشته خو د فرعون نوي خدای اند ښمن کړی يم، ځکه ګورم چې دغه خدای نيت لري د وينې بهېدا په وسیله د بل خدای ځای ونيسي.

زه د خدايانو په کارونو ډېر نه پو هېږم خو په دې پوهېږم چې خدای ددې لپاره رامنځته شوی دی چې خلک نیکمرغه کړي نه دا چې د هغو وينه تويه کړي.

له سياسي پلوه زه د فرعون له دې اقدام سره موافق يم، خو دا روده سمه نه ده چې دی غواړي آمون را نسکور کړي.

د فرعون د اقدام سیاسي ګټه دا ده چې د آمون خدای په مصر کې ډېره موده خدايي کړې، ډېر چاغ شوی دی، کروندې، کروندې ،باغونه ،تاکستانونه ، پادې او ژرندې لري او کله چې فرعون دغه خدای را نسکور کړي د امون د خدای ټوله شتمني به دده شي.

خو په کوم ډول چې فرعون غواړي دغه کار تر سره کړي په طبس کې به ډېره وژنه او وراني رامنځته کړي.

ما وويل هورم هب ! زه له اصولي پلوه د امون له پرځولو سره موافق يم ، ځکه آمون هغه خدای دی، چې حريص او بې رحمه دی او د خلکو له آزاديو سره جوړ نه دی.

ده د خپلو کاهنانو په وسيله يې خلک داسې په ناپوهۍ کې ساتلي دي چې په دې هېواد کې هېڅوک نه پوهېږي چې څه کېږي؟

که څوک پوهېږي هغوی خپله خبره نه شي کولای، ځکه چې کاهنان به يې له منځه يوسي.

خلک ټل له آمونه په وېره کې وي.

خو آتون هغه خدای دی چې تمه نه لري ،سوله او ازادی غواړي او هڅه يې دا ده چې خلک له وېرې وژغوري.

هورم هب وويل زه ستا له عقيدې سره موافق نه يم او هغه خدای چې ويره او ترهه ونه لري خطرناک بولم، ځکه له وېرې پرته ملت نه شي اداره کېدای.

نوی خدای له دې سره سره چې مهربان او سوله غوښتونکی دی، مګر د مصر لپاره تر پخواني هغه خطرناک دی.

خو له دې سره د آمون د راپرځولو لپاره له تا سره موافق یم، زه هم وایم چې باید دغه خدای له منځه ولاړ شي خو په داسې ډول نه لکه چې فرعون یې غواړي.

هورم هب وویل، که فرعون د دغه کار اجازه را کړي، زه به د آمون خدای داسې له منځه یوسم چې حتی په دې ملت کې به د هېچا وینه هم تویه نه شي.

ما پوښتنه ترې وکړه، چې ته به څه وکړې؟

هورم هب وویل، ما په یوې شپې کې له دې پرته چې د آمون خدای کاهنان خبر شي د لومړۍ لیکې ټول کاهنان وژل او نور کاهنان مې د کانونو د استخراج لپاره معدنونو ته استول.

په دې ډول چې کله خلک سهار له خوبه راپاڅېدل نو هېڅ کاهن به یې نه و، لیدلی او دغسې به د آمون خدای له منځه تللی وای.

ځکه د آمون قدرت په کاهنانو پورې تړلی دی، که کاهن و نه لري آمون هم قدرت نه لري.

خلک هم چې کله ګوري خدای نه لري، نو هر خدای دې چې ور وړاندې کړې، د هغه عبادت کوي، ځکه چې د خلکو شعور په دې حد کې نه دی چې د یوه او بل خدای ترمنځ توپیر وکړي.

خو له دې کبله چې فرعون غوښتل دغه کار په ښکاره وکړي، نو نن په طبس او د مصر په ډېرو ښارونو کې حتي ماشومان هم پوهېږي چې فرعون نیت لري آمون له منځه یوسي.

له همدې امله کاهنانو خلک د طبس او نورو ښارونو په معبدونو کې راټول کړي، هغوي هڅوي چې مقاومت وکړي او د خلکو د مقاومت له امله به وینه تویه شي.

له دې خبرې وروسته هورم هب د تمساح لکۍ یو بل جام شراب وغوښتل او ویې څښل.

دریيم جام مست کړ سر یې پر دواړو لاسونو کېښود او د مصر د ملت لپاره یې وژړل چې د بدبختۍ له کبله وژل کېږي.

ما غوښتل د هغه د ژړا مخه ونیسم خو یو وخت مې وکتل چې هورم هب ویده شوی دی.

# دیرشم ځپرکی

## د طبس په ښار کې وژنه

ما پر دې شپه په هغې خصوصي کوټه کې د هورم هب د ساتلو مسولیت پر غاړه واخیست. ځکه چې که مې خوشې کړی وای او تللی وای ممکنه ده د مصر د پوځ نوي قوماندان وژلی وای.

خو د ساقي خانې له عمومي انګړه تر سهاره پورې د هغو عسکرو د شور او مستۍ غږ راته، چې میخانه یې ساتله.

کاپتا او د هغه شاګرد چې د ناوړه پېښو اټکل یې کاوه، د عسکرو د دوستۍ جلبولو لپاره یې هغوی ته د اوربشو اوبه او ډوډۍ ورکوله.

پر دې شپه نه یوازې زه ویده نه شوم، بلکې په طبس کې د فرعون له عسکرو او افسرانو پرته ټول خلک وینښ ناست ول او ما وروسته واورېدل چې پخپله فرعون هم پر دې شپه وینښ و.

ځکه خلک پوهېدل سبا به د طبس د خلکو په ژوند کې یوه ستره ورځ وي ځکه قوي احتمال لیدل کېده چې د مصري پوځ او د ښار د هغو اوسېدونکو ترمنځ به شخړه وشي چې د آمون په ستر معبد او د معبد په مخکې راټول شوي ول.

پر دې شپه د آمون د معبد کاهنانو قرباني وکړه او پر هغو کسانو چې په معبد او له هغه د باندې ول، ډوډۍ او غوښه وویشل شوه. ما پخپله په خصوصي کوټه کې هم د خلکو نارې سورې اورېدای شوې.

کاهنانو شپه په شپه د آمون نوم اخیست او ویل یې هر څوک چې د آمون په لاره کې قرباني شي، حتماً به تلپاتې نیکمرغي ور په برخه شي.

زه باوري یم چې که کاهنانو خلک نه وای پارولي نو په راتلونکي او نورو ورځو کې به

وينې نه واى بهېدلې.
ځکه که کاهنان تسليم شوي واى. نو فرعون چې سوله غوښتونکى سړى و، له وينې بهېدا يې کرکه کوله او هغوى يې نه ځورول.
ښايي د آمون د کاهنانو د ځمکو ،سرو او سپينو يوه برخه يې هم بيرته هغوى ته ورکړې واى چې پاتې عمر په خوشحالۍ کې تېر کړي.
خو کله چې يو څوک تل په قدرت او شتمنۍ کې عادت شي نو بيا داسې مينه ورسره پيدا کوي چې د قدرت او شتمنۍ په لاره کې ځانونه هم قربانوي
کاهنان پوهېدل چې که جنګ وشي ، نو خلک به له شکه له فرعونه کرکه وکړي، ځکه چې د جنګ د پيليدا په وخت کې به تور پوستو عسکرو خلک قتل عام کړي و.
که څه هم ددې وينې بهېدنې له امله به د آمون مجسمه نسکوره شوې واى. خو آمون به د وينې ميثاق د خلکو په زړونو کې ځاى کړى و ، چې هېڅکله به يې هېر کړى نه واى او ترقيامته به يې فرعون ته سپکې سپورې ويلې.
هغه ته به يې ښېراوې کولې چې ولې يې تورپوستي عسکر د خپل ملت ياني مصريانو پر ضد درولي دي.
په حقيقت کې کاهنانو هيله کوله چې د مقاومت په وسيله او د قتل عام له لارې آمون تلپاتې خداى کړي . ان که يې مجسمه را وپرځول هم شي او معبد يې بند شي.
کله چې ورځ شوه د لمر تودوخې ډېر ژر د شپې ساړوبي له منځه يوړه او بيا په ځلور لارو او چوکونو کې د نغارو غږونه واورېدل شول.
څو جارچيان له يوه چوکه بل ته تلل او د پاپيروس کاغذ له مخې يې د مصر د فرعون فرمان لوست.
د فرمان مضمون دا و ، چې آمون د دروغو خداى دى بايد هغه را وپرځول شي. بايد تر ابده پرې لعنت وويل شي.
ددې جعلي خداى ټول معبدونه په لر او بر مصر کې او د غه راز د هغه ټولې ځمکې ،مرييان ،مالونه ، سره او سپين د مصر د فرعون او د هغه د خداى آتون په واک کې راځي او له دې وروسته به بېوزله خلک هم په هغو حوضونو کې حمام کولاى شي چې مخکې په جعلي خداى پورې اړوندول.
دغه راز به دوى کولاى شي چې ددغو حوضونو اوبه وڅښي.

فرعون د دغه جعلي خدای ځمکې ټولو هغو کسانو ته ورکوي چې ځمکه نه لري او د آتون د خدای د شکرانې په توګه هلته فصلونه وکري.

کله چې دغه فرمان د آتون د معبد پر وړاندې ولوستل شو، خلک په سر کې غلي شول، چې پوه شي فرعون پخپل فرمان کې څه وايي؟

کله چې فرمان هغه ځای ته ورسېد چې د آمون ټولې ځمکې، څاروي، مريان، سره او سپين د فرعون او د هغه د خدای له لوري ضبط کېږي، نو کاهنانو چيغې کړې، خلکو هم د هغوی په پيروۍ داسې چيغې پيل کړې چې تا به فکر کاوه، د کورونو او واټونو خښتې او ډبرې هم نارې وهي.

د تورپوستي عسکر سره او سپين رنګونه خوښېږي، له همدې امله يې پر خپلو مخونو سره او سپين رنګونه موښلي ول.

دوی چې دغه غږونه واورېدل وار خطا شول، شاو خوا يې کتل، له دې سره سره چې شمېر يې زيات و، خو بيا هم وېرېدل چې که طبسيان پرې حمله وکړي نو مړه به شي.

خلکو داسې چيغې وهلې چې چا د فرعون د فرمان وروستۍ برخې وانه ورېدې او پوه نه شول چې فرعون فيصله کړې د آمون لعنتي نوم هم له منځه يوسي او په ځان يې هم د اخناتون (د آتون غوښتونکي) نوم ايښی دی.

کله چې يې د آمون د معبد په مخکې فرمان لوستل کېده زه هلته نه وم او کيسه مې وروسته واورېده، خو خلکو داسې چيغې وهلې چې غږونه يې د تمساح لکۍ ميخانې ته هم را رسېدل.

هورم هب د خلکو په غږ را ويښ شو کېناست او ويې ويل سينوهه! هغه شراب چې تا بېګاه راکړل ډېر قوي و، او تر سهاره ويده شوم.

هورم هب د خلکو د نارو سورو له امله او دغه راز په دې خاطر چې خلکو د آمون نوم اخيست، روانې پېښې چې د خوب او نشې پر وخت هېرې‌ږي، بېرته ور ياد کړې او روان شو.

زه هم په هغه پسې روان شوم او له خصوصي کوټې د ميخانې انګړ ته ور ووتم.

د ميخانې د انګړ په يوه ګوټ کې يو شمېر هغه عسکر چې بېګا يې ډېر شراب څښلي ول د نشې له کبله پراته او لا ويده ول.

هورم هب سر د اوبو په يوه ډک تشت کې دننه کړ چې د خوب پر کالي يې ورکه شي

بیا یې له میخانې څخه د اوریښو یو منګی اوبه او یوه ډوډۍ واخیستله او په تشو کوڅو کې د آمون د معبد پر لور روان شو.

کله چې معبد ته نژدې شوم، هغه لنډی او چاغ سړی چې د مصر د پوځ نوی قوماندان، او پیت آمون نومېده پر خپل روان تخت سپور و او عسکرو ته یې داسې وویل: اې د کوش د تاتوبې عسکرو! او اې د شردن د هېواد زړورو، فرعون امر کړی چې د غه ملعون آمون وپرځوئ او له تاسې سره ژمنه کوم چې انعام به ترلاسه کړئ!

له دې وروسته د مصري پوځ نوی قوماندان، چې ته وا دنده یې پای ته رسېدلې پر خپل روان تخت وغځېد او د ګرمۍ له امله مریيانو ورته پکی واهه.

د ټولیو مشرانو خپلو ټولیو ته امر وکړ چې د حملې لپاره چمتو شي.

زه او هورم هب په داسې ځای کې ولاړو، چې د معبد مخه او انګړ مو ښه لیدلای شو.

موږ ولیدل چې د معبد انګړ له سپین پوښه نارینه وو، ښځو او ماشومانو ډک دی او لا هم ځینې ماشومان له خوبه نه و، پاڅېدلي او داسې ښکارېدل چې ټولو شپه د معبد په انګړ او یا د هغه مخې ته په خوب تېره کړې ده.

تورپوستي عسکر ناڅاپه روان شول، جنګي ګاډۍ هم روانې شوې او غوښتل یې د آمون معبد ته ننوځي.

عسکرو د نیزو د لرګیو په زور خلک له لارې لېرې کړل چې د معبد دروازو ته ځان ورسوي.

کله چې جنګي ګاډیو غوښتل معبد ته ننوځي، نو خلکو د آمون آمون نارې کړې او په یوه وار یې پرې حمله وکړه.

له دې کبله چې دوی له تکړه عسکرو سره جنګ نه شو کولای نو ځانونه یې تر جنګي ګاډیو لاندې واچول او د خپلو مړیو په زور یې لاره داسې بنده کړه چې ګاډۍ ودرېدې، اسونه وترهېدل، لاس و پښې یې وهلې او د ښځو او ماشومانو غړونه اسمانونو ته پورته شول.

خلک داسې هیجاني او په قهر ول چې که تورپوستو عسکرو تر وروستي کسه پورې هم وژلي وای، نو دوی له مقاومته لاس نه اخیست.

خوله دې کبله چې افسران پوهېدل، فرعون امر کړی چې باید وینه ونه بهول شي نو یې خپلو سرتېرو ته د شاتګ امر وکړ.

کله چې خلکو ولیدل سپاهیانو شاتګ وکړ، نو له دې سره سره چې یو شمېر پکې مړه او ژبل شوي ول، خو د خوشحالۍ نارو یې ځمکه او اسمانونه ولړزول.

ما او هورم هب چې دغه منظره لیده متوجه شو، چې افسران د پوځ د قوماندان روان تخت ته نژدې شول او هغه ته یې وویل، اې پیت امونه! موږ له وینې بهېدا پرته مخکې نه شو تللی او له بلې خوا فرعون ویلي، باید وینه ونه بهول شي، موږ اوس څه وکړو؟

د پوځ قوماندان چې کله واورېدل فرعون خپل نوم بدل کړی، نو هڅه یې وکړه، خپل نوم هم بدل کړي او ویې ویل، زه پیت آمون نه پیژنم، زما نوم پیت آتون (یعنې له آتونه برکت اخیستونکی ) دی.

د پوځ یوه قوماندان چې د زرو کسانو مشر ښکارېده او زرینه متروکه یې په لاس کې وه وویل، زه نه له آمون سره کار لرم، نه له آتون سره او نه د آتون له برکت موندونکو سره، بلکې له تا څخه پوښتنه کوم چې زموږ دنده څه ده او موږ باید څه وکړو ؟

د آمون معبد موږ ونیسو کنه؟

د پوځ قوماندان وویل، هر ډول چې فرعون امر کوي همغسې وکړئ. له دې کبله چې هغه ویلي باید وینه ونه بهول شي، تاسې هم له وینې بهېدا پرته معبد ونیسئ او د آمون مجسمه رانسکوره کړئ!.

د پوځ د قوماندان د روان تخت په څنګ کې دغه جنګي شورا داسې مهال جوړه شوې وه، چې خلکو د انګړ او سړک ډبرې شکولې او تورپوستي یې پرې ویشتل.

یوه ډبره راغله او د پوځ د قوماندا ن د روان تخت د یوه آس پر پښه ولګېده او ور ماته یې کړه او یوه کس د آس یوه سترګه هم ور ړنده کړه. کله چې پیت آتون ولیدل، آس یې ړوند او ګوډ شو، غوصه شو، له روان تخته راکوز او یوې جنګي ګاډۍ ته وروخوت.

آتون له دې سره امر وکړ چې پر معبد حمله وکړي.

کله چې جنګي ګاډیو حرکت وکړ، د ګاډیو چلونکو او په هغو کې ناستو عسکرو به خلک اوچت کړل او بې له ځنډه به یې په ګاډیو پورې له ستوني ځوړند کړل.

دوی به ویل په دې ډول د فرعون له امره سرغړونه هم نه کېږي، موږ وینه نه بهوو او څوک چې خپه کېږي وینه یې پر ځمکه نه تویېږي.

تورپوستو عسکرو له لیندو څخه کړۍ جوړې کړې او د خلکو په منځ کې یې منډې وهلې.

هر څوک چې به يې مخې ته ورغلل تر ستوني به يې نيول ساه به يې وربندوله ، ان هغوی له ماشومانو او ښځو سره هم داسې چلند کاوه.

خلکو له هر لوري څخه عسکر په کانو ويشتل چې عسکرو به هڅه کوله د زغرو په مرسته ځانونه ترې وساتي ، خو کله چې به يو تور پوستی د خلکو لاس ته ورغی هغه به يې ټوټه کړ.

هورم هب چې د اوربشو د اوبو صراحي يې په لاس کې وه او ډوډۍ يې ترملا تړلې وه د معبد په مخکې پر هغې مجسمې ودرېد چې بدن يې د زمري او سر يې د قوچ و.

ده غوښتل له همدغه ځايه د جنګ ډګر ښه وليدلای شي ،ده په همدې حال کې ډوډۍ هم خوړله او کله به مې چې د شرابو منګی چې مخکې ما ترې اخيستی و ، ورکړ يو ګوټ به يې وڅښي.

د مصر د عسکرو قوماندان پيت آتون د خپلو سپاهيانو په مخکې لټه کوله چې معبد ونيسي، خو د خلکو د سخت مقاومت له امله بريالی نه شو.

د هغه د روان تخت په څنګ کې به د اوبو ترازو ژر ژر تشېده او هغه به پوه شو چې وخت ډېر ژر تېرېږي.

يو وخت مې واورېدل چې خو تنه افسرانو ته يې ناري کړې، هغوی يې روان تخت ته نژدې ور وبلل او ويې ويل، زه په کور کې يوه ښايسته پيشکه لرم او نن يې د لنګون ورځ ده، نو زه بايد کور ته ستون شم.

له تاسې غواړم چې ډېر ژر دغه معبد ونيسئ او د آمون مجسمه رانسکوره کړئ، ګنې په آتون قسم،چې ستا سې له غاړو به د سرو زرو غاړکۍ لېرې کړم او ستاسې د مترو کو لاستي به مات کړم .

پوځي قوماندانان پوه شول چې که معبد ونه نيسي، نو له دندې به لېرې شي، نو خپل عسکر يې راټول کړل او د پوځي کړنلارو پر اساس يې هغوی ته د حملې حکم وکړ.

له دې وخته وروسته نور چا د فرعون امر ته توجه نه کوله، چې وينه دې نه بهول کېږي، بلکې تور پوستو عسکرو خپلې نېزې د نارينه وو ، ښځو او ماشومانو په خېټو، ټټر او سينو کې دننه کولې.

نېزې د خلکو پر وينو تکې سرې وې او د معبد په مخکې دومره وينه وبهېده، چې پخپله تورپوستي عسکر به پکې ښوېيدل او پر ځمکه لوېدل.

خو چې هر څوک به ولوېد و به وژل شو او کله چې کاهنانو ولیدل چې عسکرو سخته حمله پیل کړه نو د آمون د معبد دروازې یې خلاصې کړې او خلک ترهېدلي وتښتېدل.

تور پوستو عسکرو تښتېدونکي کسان په غشو ویشتل، ځینې یې پر خاورو مړه اچولي ول او جنګي ګاډي په تښتېدلو کسانو پسې روانې وې.

کله چې تښتېدلي کسان د نوي خدای آتون معبد ته ولاړل له ډېرې غوسې یې د نوي معبد د کاهنانو او په معبد کې ډېره وینه توی شوه.

کله چې جنګ پای ته ورسېد او وژل شوي کسان یې وشمېرل سل ځله یې سل کسان شمېرلي ول چې وژل شوي ول.

که څه هم د آمون د معبد کاهنانو د معبد خارجي دروازې خلاصې کړې، چې خلک وتښتي، خو داخلي دروازې یې بندې کړې وې او عسکر د مسي دروازو او د معبد د سترو دېوالونو ترشا و درېدل.

دا هغه عسکر دي چې تل په بیدیاو کې جنګېدلي او له بانګسونو څخه په جوړو کورونو یې حملې کړې دي.

دوی نه پوهېدل چې څه ډول پر هغو کلاګانو حمله وشي چې پنډ او لوړ دېوالونه لري.

کاهنانو او د معبد نورو ساتونکو، له پاسه پر عسکرو د وړو نېزو او غشو ګوزارونه کول او ډېر شمېر عسکر د دېوال په څنګ کې ووژل شول.

په وینو باندې ډېر مچان راغونډ شوي ول، د پوځ قوماندان وویل سپاندې او عود راوړئ او ویې سوځوئ، چې د وینې کروونکی بوی له منځه ولاړشي او مچان لېرې شي.

له دې وروسته چې سپانده او عود یې وسوځول د پوځ نوي قوماندان افسرانو ته وویل، تاسې داربېږئ چې فرعون به غوسه شي ځکه چې هغه تاسې ته ویلي ول، د آمون مجسمه داسې رانسکوره کړئ چې وینه و نه بهېږي.

خو تاسې د هغه د حکم پر خلاف عمل کړی، د خلکو وینه مو بهولې خو د ملعون خدای آمون مجسمه مو له منځه نه ده وړې

اوس خو دغه کار شوی او چاره نه لري، خو زه به یوازې هڅه وکړم چې فرعون په تاسې غوسه نه شي.

همدا اوس هغه ته و رځم او ممکنه ده، چې خپل کور ته هم ولاړ شم چې وګورم ایا زما پیشکې بچې زېږولې دي کنه؟

تاسې زما په نه شتون کې تورپوستو عسکرو ته خواړه او شراب ورکړئ او ورته ووايئ چې ځانونه دې نه ستړي کوي.

د هغوی هڅه بې نتيجې ده، ځکه چې موږ اوس ددې معبد د نيولو لپاره چې پر يوې کلا بدل شو، وسايل نه لرو.

زه يو تکړه قوماندان يم او پوهېږم، هر څومره چې ددې معبد د نيولو هڅه وکړو ګټه نه کوي.

خو زه له دې امله ګرم نه يم، ځکه فرعون ماته نه و، ويلي چې دغه کلا محاصره او بيا يې ونيسم نو ځکه ما له ځانه سره ددې کلا د نيولو وسايل نه دي راوړي.

پر دې ورځ بله کومه خاصه پېښه ونه شوه او افسرانو، تورپوستو او د شردن (اوسنی ليبيا ژباړن) عسکرو ته امر وکړ چې د آمون معبد له دېوالونو لېرې شي او له هغو مړيو سره هم واټن پيدا کړي چې د طبس د دوبي په ګرم لمر کې ډېر ژر پړسېږي.

پر دې ورځ د لومړي ځل لپاره خلکو وليدل چې کارغان او مردار خواره له دښتو او غرونو څخه د طبس ښار پر لور راغلل چې د وژل شويو کسانو مړي وخوري، په داسې حال کې چې تر هغه وخته چا نه و، ليدلي چې دغسې مرغانو پر طبس يرغل کړی وي.

له دې وروسته چې عسکر د معبد له دېوالونو لېرې شول د خوراکي توکو ګاډي راغلې او پر هغو يې خوراکي توکي او شراب ووېشل.

د شردن عسکرو چې تر تورپوستو هوښياران ول، ددې پر ځای چې تر لمر لاندې پاتې شي، د معبد شا و خوا کورونه يې ونيول چې زياتره يې د شتمنو ول.

دوی په يخوبيو (مخصوص ساړه ځايونه ول، چې شراب او نور څښاک به يې پکې ايښودل ژباړن) کې يې د شرابو او نورو مايعاتو په منګيو او چاټيو بريدونه وکړل.

تورپوستي تر يوه وخته په لمر کې پاتې شول، خو وروسته چې پوه شول شا و خوا کورونه نيولای او ژوند پکې کولای شي، نو پاتې کورونه دوی ونيول چې استراحت پکې وکړي.

پر دې شپه په طبس کې څراغونه روښانه نه شول او د نيل غاړه او کوڅې تياره وې.

پخپله د شردن عسکرو او تور پوستو سپاهيانو اورونه لګولي ول، پر کورنو به يې حملې کولې، چې هرڅه به يې ګوتو ته ورتلل وړل يې او ښځې او نجونې به يې خپلې خوښې کړې.

خلکو د عسکرو له وېرې خپل کورونه پرېښودل او په واټونو کې تيت و پرک شول.

په دې وخت کې چې به عسکرو هر څوک وليدل، نو پوښتنه به يې ترې کوله چې د آمون پلوي دي که د آتون.

خو هېڅا جرئت نه کاوه چې ووايي د آمون پلوي دی. ټولو ځانونه د آتو ن پلويان ښودل.

عسکرو به ورته ويل، ته دروا غ وايې او مونږ نن د آمون په معبد کې وليدې، څو شيبې وروسته به يې سر ترې بېل کړ او د هغوی جامې، سره او سپين به يې ولوټل.

ټولو غوښتل له ښاره ووځي او له طبسه وتښتي، خو دا کار ډېر ستونزمن و، ځکه چې عسکرو د ښار ټولې لارې بندې کړې وې او د نيل په لاره کې يې هم جنګې بېړۍ درولې وې.

دوی به ويل، فرعون ويلي چې له ښاره د خلکو د تېښتې مخه ونيسئ، چې کاهنان او د آمون پيروان د ملعون خدای له معبده سره او سپين له ځان سره ونه باسي.

يوه ورځ وروسته د ښار هوا د معبد په مخکې او د ننه د مړيو د بويونو له امله بيخي ککړه شوې وه. څوک نه پوهېدل چې له دغو مړيو سره څه وکړي او څه ډول يې موميايي کړي؟

د امواتو کور (مرده خانه ) چمتو نه و، چې د وژل شويو کسانو مړي ومني. يوازې يو وخت يې منل چې ستر قاضي به د مړيو په کور کې د هغوی له موميايي کولو سره موافقه وکړه.

ددي لامل دا و، چې ډېر ځله ښايي ځينې کسان خلک ووژني او بيا يې مړي په دې ځای کې موميايي کړي، له همدې امله يو مصري ډاکټر بايد دا خبره تصديق کړي چې ژوبل شوی کس د جراحي عملياتو له کبله مړ شوی، نه دا چې چا وژلی وي.

او يا دا چې ستر قاضي بايد امر وکړي چې وژل شوی کس د مړيو په کور کې موميايي شي.

فرضاً که ستر قاضي چې د نوي خدای مخالف و، امر کړی وای چې د وژل شويو کسانو مړي دې د مړيو په کور کې موميايي کړای شي بيا هم دمړيو کور دغه کار نه شو کولای، ځکه د مړيو حوضونه کوچني دي او دومره ځای نه لري چې سل ځله سل مړي د موميايي کولو لپاره ومنل شي.

بله خبره دا چې د مړيو د کور کارکوونکو له نوي خدای سره مخالفت کاوه ځکه چې

اوازه وه، نوی خدای غواړي د مومیایي کولو بیه کمه کړي.

لکه چې مخکې مې توضیحات ورکړل، ځوکاله مخکې تر دې وړاندې چې زه خپل ستر سفرونه پیل کړم، کله چې مې د خپل مور و پلار مړي د مومیایي کولو لپاره د مړیو کور ته وروړل کارکوونکو شکایت کاوه چې مزد او اجوره یې کمه ده.

داپه داسې حال کې و، چې دوی به له هر شي غلا هم کوله خو بیا یې هم ویل چې باید اجوره یې زیاته شي او دې ته خو په هېڅ ډول چمتو نه ول چې دغه لږه اجوره یې نوره هم کمه شي.

د پوځ افسرانو د فرعون له وېرې د مړیو حپلو خپلوانو ته اجازه ورنه کړه چې د مړیو جنازې پورته کړي او د مړیو کورته یې یوسي.

د یوې پخوانۍ رودې پر اساس به هر سهار د مړیو کور فرعون ته یو راپور ورکاوه چې تېره ورځ څو تنه مړه هلته وروړل شوي دي.

او که اوس فرعون پوه شوی وای چې ناڅاپه ولې دومره مړي زیات شوي، نو پوهېده چې د پوځ افسرانو د حکم پر خلاف ډېر شمېر کسان وژلي او د ډېرو وینې یې بهولي دي.

په داسې حال کې چې جنازې د معبد او واټونو په شاوخواکې پرتې وې هره ورځ او شپه یې شمېر نور هم زیاتېده، ځکه چې تورپوستو عسکرو او د شردن سپاهیانو د وینې د بوی، د لوټمارۍ د خوند او د شرابو او ډوډۍ د خوړلو له لامله نظم او ډسپلین تر پښولاندې کړی و، او افسرانو د هغو مخه نه شو نیولای.

یو شمېر غله او سړي وژونکي چې پخوا یې د آمون د ګزمو له وېرې جرئت نه شو کولای چې کورونو او قبرونه ولوټي او پر ښځو تېری وکړي اوس نو د نیل غاړې له لېرې پرتو سیمو او جونګړو راوتلي ول، هر یوه پر خپله سینه د نوي خدای صلیب ټومبلی و او په دې نوم چې د نوي خدای پیروان دي د کورنو په لوټمار، وژنو او د قبرونو په غلا و بوخت ول چې ان د فرعون قبرونه یې هم لوټ کړل.

د آمون د معبد کاهنانو له بالاحصاره فرعون او نوي خدای ته ښېراوې کولې او ویل یې دغه سړي لېوني دي او تر ده زیات یې لېوني خدای داسې حالت رامنځته کړی چې تر پېنځوسو کلونو پورې دغه ورانۍ نه شي جبرانېدای.

هره شپه د طبس له کورنو څخه د اور لمبې پورته کېدې څوک نه و، چې دغه اورونه مړه کړي.

هغه سیمه چې زموږ کورپکې و ، یانې د بېوزلو محله د ډېرو نارینه وو ، ښځو او ماشومانو پټنځای و ، ځکه چې خلکو اورېدلي ول ، هورم هب زما په کور کې مېشت دی ، له همدې امله دې سیمې ته راغلل چې د هورم هب په سیوري کې د غلو او د تورپوستو سپاهیانو او د شردن د جنګیالیو له شره خلاص وي.

له دې سره سره چې عسکرو هېڅ شي ته پام نه کاوه خو له خپل قوماندان څخه به یې سترګه سوځېده او ترې ډارېدل.

د هغه له ډاره به یې جرئت نه شو کولای چې زموږ پر سیمې حمله وکړي یا ښايي پوهېدل چې دا د بېوزلو سیمه ده ، نو که یې لوټ هم کړي څه به لاس ته ورنه شي.

هورم هب زما په کور کې ورځ تر بلې ډنګرېده ، له دې سره سره چې (موتي) ورته ښه خواړه پخول او د هغې خواړه یې خوښېدل خو اشتهایې نه درلوده.

هورم هب راته وویل سینوهه ! که له دې توپانه وروسته د نیل سیند هم توپاني شي ، نو له نظم او ډسپلینه د وتلیو عسکرو مخه به ونه نیول شي.

ما څو کاله زیار وایست چې زما عسکر نظم پیدا کړي او د وحشي ځناورو په شان نه وي ، خو دغه نوي او احمق قوماندان چې یوازې د خپلو پیشکوفکر کوي په څو ورځو کې زما عسکر د داړونکو ځناورو په شان کړل.

اوس که زه هم وغواړم چې نظم او ډسپلین ټینګ کړم باید سلګونه عسکر ووژنم ، له دې پرته بله لاره نه لرم ، ځکه چې په بله لاره نظم او انضباط نه شو ټینګولای.

په دې ورځو کې چې په طبس کې عام وژنه او لوټمار روان و ، کاپتا بډای او چاغ شو او اورېدل مې چې په دې حالت خوشحاله دی.

کاپتا راته وویل باداره ! که دغه حالت د نیل سین تر مستیدا (د مني ترپیله )دوام وکړي زه به د مصر لوی شتمن شم ، ځکه چې عسکر لوټ شوي سره او سپین او ګرانه بیه شیان میخانې ته راوړي او د شرابو په بدل کې یې ماته راکوي.

اوس زما د میخانې څو خصوصي کوټې له غلا شویو شیانو ډکې دي او نیت لرم چې کله له طبسه وتل آزاد شي ، دغه سره او سپین د بېړیو په وسیله له هېواده د باندې ولېږدوم او هلته یې خرخ کړم. (که د افغانستان د تېرو کلونو ناوړه حالاتو ته توجه وشي دا خبره به بې ځایه نه وي چې وویل شي ، زموږ ځینې مشرانو هم د کاپتا په شان فکر کاوه ، خو هغه درې زره کاله پخوا اوسیده او مسلمان هم نه و. ژباړن )

هېڅ يوه تورپوستي عسكر او د شردن سپاهي، غلو او ورانكارو د كاپتا له ميخانې غلا نه شوه كولای او نه يې ورېا شراب څښلای شوو.

ددې لپاره چې پوهېدل دغه ميخانه د هغو عسكرو له لوري ساتل كېږي چې هورم هب دنده ورسپارلې ده.

مستو غلو او عسكرو به د شرابو تر څښلو مخكې كاپتا يا مريت ته د هغو بيه وركوله او بيا به هغوی شراب وركول.

كاپتا هم د عسكرو ډېره ښه پالنه كوله، ځكه چې شراب خانه يې ورته ساتله ،تل به يې ماړه او نشه ساتل چې د صميمت له مخې د هغه ميخانه وساتي.

د وژنو پر درېيمه ورځ په طبس كې د ډېرو مړيو له املـه ناروغي پيدا شوې او ماته دومره ناروغان راغلل چې زما درمل خلاص شول او درمل مې نه شوای چمتو او تر لاسه كولای.

ناروغانو ته مې وويل چې ستاسې د معالجې لپاره درمل نه لرم خو كولای شم داسې لارښوونه درته وكړم چې كه عمل پرې وكړي، ښايي درملنه مو وشي.

پر څلورمه شپه، زه ډېر خپه وم او د خپګان له كبله د كاپتا ميخانې ته ولاړم.

د شرابو تر څښلو وروسته هلته ويده شوم او سهار مريت له خوبه راپاڅولم.

ما هغې ته وويل، ژوند هغې سرې شپې ته ورته دی، چې انسان د ځان د ګرمولو لپاره اور ونه لري.

په دې سړه شپه كې دوه بې كسه او غمجن ژوي چې د يوه بل تر څنګ پاتې شي ممكنه ده د يو بل د بدن له تودوخې استفاده وكړي او ګرم شي، ان كه د هغوی سترګې په دروغو له يو بل سره دوستي څرګنده كړي.

مريت وويل سينوهه ! ته څنګه دا خبره كوې، چې زما سترګې تا ته دروغ وايي؟

كه ما درته دروغ ويلي او له تاسره مې مينه نه وای، بېګا له دې وروسته چې ته ويده شوې، زه ستا په څنګ كې نه ويدېدم.

زه تا ته دروغ نه وايم خو له دې كبله چې ته يو ځل يوې ښځې دوكه كړی يې او دروغ دې ترې اوريدلي ، نو نه غواړې ومنې چې ممكنه ده پر يوې ښځې ګران يې، زه فكر كوم داستا خېل دی.

مريت وويل سينوهه ! له هغې ورځې راهيسې چې ما وليدلې احساس كوم چې ته پر

ښځو بې باوره یې او دغه بدګماني دې له دې امله ده چې په سرو او سپینو یوې میینې ښځې له تاسره خیانت کړی دی. هغې له تا څخه ستا ټول شته اخیستي دي، ته یې اړ کړی یې چې له مصره ولاړشې او څو کاله په نورو هېوادونو کې ژوند وکړې.

خو اوس چې په دې ښار کې هرڅه بدل شوي او د کوټې چت د کوټې غولي ته راغلی، دروازې اپوټه خلاصېږي، ایا له هغې ښځې سره حساب کتاب نه شې کولای، چې په دې ډول له ښځو سره ستا بدبیني ورکه شي؟

ما په هغه وخت کې مریت ته ځواب ورنه کړ او کورته راغلم چې له درملو پرته د ناروغانو درملنه وکړم.

کله چې له میخانې راووتم او کورته را ورسېدم نو د هغې ښځې دې خبرې بیخي بدل کړم.

زه په هغه وخت کې د کور او شتمنی په فکر کې نه وم. ان د خپل پلار و مور د شتمنی فکر مې نه کاوه، خو د یوه شي له کبله ډېر خپه وم او هغه دا چې نفرنفر حتی زما د مور و پلار قبر راڅخه واخیست.

زما کم بخته مور و پلار له دې وروسته چې ټول عمر یې زما د روزلو لپاره زیار وایست، دوی بې قبره پاتې شول او دغه درد زما لپاره ډېر سخت و، هېڅ ارام یې نه درلود، هر څومره هڅه چې مې وکړه خو دغه درد مې هېر نه شو.

په لاره کې تر کوره ژړېدم ځکه نه پوهېدم چې ایا له نفرنفر څخه خپل غچ واخلم کنه؟

زما لپاره له هغې ښځې څخه غچ اخیستل سخت کارنه و، او که مې څو تنو عسکرو ته لږ فلز ورکړي وای هغوی تلل هغه ښځه یې وژله، خو ما نه غوښتل چې هغه ښځه ووژل شي، ځکه چې د هغې قتل ماته د غچ اخیستو لپاره یو کوچنی او بې اهمیته قصاص و.

هرځل چې به رایاد شول چې د مور و پلار د مړیو د مومیایي کولو لپاره مجبوره شوم، یوه موده د مړیو په کور کې پاتې شم او له دې سره سره چې د دارالحیات فارغ التحصیل ډاکټر وم، خو ما هلته شاګردي وکړه او تر ټولو چټل او سخت کارونه مې وکړل.

ددغو ټولو بدبختیو مسوله نفرنفر وه، دغه شیان چې به راپه زړه شول په بدن کې به مې وینه وایشېدله.

زه له انتقامه تېرېدای شوم، خو په دې ډول به ستاپه شان (چې دغه کتاب لولې) یو

انسان نه بلکې ستا د خدای په شان کېدم او زه ستا خدای نه شم کېدای.

ځکه هغه څوک چې انسان دی روح لري او څوک چې روح لري د نورو د ځورولو او کړولو له کبله کړېږي او په زړه کې له هغوی سره کینه ساتي. دغه دښمني نه شي هېرولای او یوازې خدایان دي، چې کړاو او زیار کتلای او ګاللی شي، خو کینه په زړه کې نه ساتي.

په داسې حال کې چې ما فکر کاوه، په څه ډول له هغې ښځې څخه غچ اخیستلای شم چې د ځوانۍ په حال کې زما په شان نور ځوانان ونه غولوي، د طبس حالات نور هم خراب شول.

عسکر چې تر هغه وخته پورې پرې اعتراض کاوه داسې سپین سترګي شول، چې پخپلو افسرانو یې حملې کولې، د هغوی له لاسونو به یې متروکې اخیستلې، پر سرونو به یې وهل او د هغوی له غاړو څخه یې د سرو زرو غاړکۍ ایستلې.

یو افسر لټه وکړه چې د خپل زري طوق د اخیستو لپاره جګړه وکړي، خو تور پوستي عسکر په نیزه وواهه او څو شېبې وروسته مړ شو.

پر همدې ورځ د فرعون له لوري یو کس زما کورته راغی او هورم هب ته یې وویل، فرعون غوښتی یې. راشه او له ما سره د هغه ماڼۍ ته ولاړ شه.

هورم هب ولاړ شو، ځان یې وپنځه او د سلطنتي ماڼۍ پر لور روان شو.

زه د فرعون او هورم هب له مذاکراتو څخه هغه مهال خبر شوم چې وروسته هورم هب راته کیسه وکړه.

کله چې فرعون هورم هب ولید، هغه ته یې وویل، د طبس او سېدونکي د هیلیو په شان وژني او پر زیاترو ښځو د تور پوستو عسکرو له لوري تېری شوی دی.

او س خبره دې ځای ته رسېدلې، چې سپاهیان خپل افسران وهي، هغوی وژني او د هغوی د مخنیوي لپاره د پوځ قوماندان هېڅ هم نه کوي، زه د پخوا په شان تا د مصر د پوځ قوماندان ټاکم چې امنیت او نظم ټینګ کړې.

هورم هب وویل اې اخناتونه! تا پخپله غوښتل چې همداسې وشي او همداسې وشول.

فرعون وویل، ما نه غوښتل چې داسې وشي او مانه و ویلي چې خلک ووژني، شتمنۍ یې لوټ کړي او پر ښځو تېری وکړي، بلکې ویلي مې و، چې له وینې بهېدا پرته آمون نسکور کړئ.

هورم هب وویل کله چې ته یوه کس ته وایې چې یو منګی شراب وڅښه، خو مه نشه

کېږه دا به داسې خبره وي چې له عقل سره اړخ نه لګوي.

ځکه کله چې يو څوک يو منګی شراب وڅښي نشه کېږي او په کوم ډول چې تاغوښتل ، آمون نسکور کړې، نتيجه به يې همداوي چې ته يې ګورې.

اخناتون وويل، اوس ولاړ شه او نظم ټينګ کړه.

هورم هب وويل، دغه کار زه نه شم کولای، مګر دا چې د لسو ورځو لپاره ماته د ځان په شان بشپړ اختيار او واک راکړې.

فرعون وويل، ايا د آمون خدای به راپرځوې؟

هورم هب وويل، د آمون پرځول ستا د پاچاهۍ لپاره اړين دي، ځکه که ته هغه نسکور نه کړې، نو له دې وروسته به په مصر پاچاهي ونه کړای شې.

د څو ورځو پېښو داسې حالت رامنځته کړی، چې يا بايد ته حکومت وکړې او يا آمون پاتې شي او پاچاهي وکړي.

فرعون وويل، نو کله چې د آمون پر معبد حمله کوې، پام کوه چې د معبد کاهنان ونه وژل شي.

هورم هب وويل، زه تر دې وړاندې چې پر معبد حمله وکړم بايد هغه عسکر سم کړم، چې وحشيان شوي دي.

له دې وروسته چې پر آمون د حملې وار راغی، تا ته به ووايم چې څه کوم؟

فرعون د قوماندانۍ متروکه او اميل هورم هب ته ورکړل او امر يې وکړ چې د هغه مخصوصه ګاډۍ د پوځ د قوماندان د سپرلۍ لپاره ځانګړې کړي.

تر دې مخکې چې هورم هب خپل کار پيل کړي، سل تنه پېژندل شوي عسکر يې د جلادانو په توګه وګمارل، هر يوه ته يې توره ورکړه او د ښار پر بېلابېلو سيمو يې وويشل او په دې ډول هرې سيمې ته پينځه جلادان ورسېدل.

وروسته يې امر وکړ چې سرنی ووهي او ټول عسکر احضار کړي ځينې عسکرو چې هورم هب ته وفادار و، له دې وروسته چې خبر شول هغه د پوځ قوماندن شوی دی، د سرني د غږ په اورېدو سره د هورم هب پر شاوخوا راټول شول او هغه پينځه سوه عسکر پيدا کړل.

دغو پينځه سوه عسکرو جنګي ګاډۍ هم درلودې او هورم هب ور سره روان شو.

هر عسکر چې به يې د لوټمار په حال کې وليد پر همغه وخت کې به يې د جلادانو په

وسيله په لرګي پورې وتاړه او هر عسکر چې به قتل وکړ، بې له ځنډه به يې سر ترې جلا کړ.

خومره چې هورم هب په ښار کې وړاندې تلو، د عسکرو هغه ټولي به ورسره يوځای کېدل چې له لوټ تالانه به راګرځېدل او له ده سره به يوځای کېدل.

هغه به تر شا په واټونو او څلور لاروکې چونې او پوستې جوړولې او ويل به يې چې غله او وړانکاري دې ،ونيول شي او قاتلين دې بې له ځنډه ووژل شي.

هورم هب ترسهاره پورې د طبس په کوڅو کې ګرځيده او خومره چې به وړاندې تلو په محلو کې به امنيت ټينګېده.

سهار چې نژدې کېده نو د غلو او وړانکارو ډلې د تورې شپې په شان کمېدلې.

د هورم هب ترشا چې کوم قوماندان هغه ګمارلی و، هر وژونکی چې به يې وليد وبه يې واژه او غله به يې په لرګيو تړل.

کله چې ورځ شوه هورم هب د جارچي په وسيله اعلان وکړ، چې تېره شپه يوازې هغه کسان ووژل شول چې قتل يې کړی و، خو له دې ورسته که څوک غلا وکړي او يا په کومې ښځې تېری وکړي هم وبه وژل شي.

د ورځې تر نيمايي پورې هم جلادانو د تورپوستو عسکرانو سرونه جلا کول، ځکه چې تورپوستي عسکر دې ته نه و چمتو چې د حالاتو بدلون ومني.

دوی ذا نه منله چې د خپل سريو وخت تېر شوی خو له نيمې ورځې وروسته تورپوستي سپاهيان هم پوه شول چې له تسلېمدا پرته بله چاره نه لري او بايد د عسکرو کور (چونې) ته ستانه شي.

له دې سره سره کله چې به عسکر چونې ته ورسېدل هغوی به يې معاينه کول، که به يې جامې په وينو وې، جلاد ته به يې وسپارل چې سر ترې پرې کړي

زه يقين لرم چې هورم هب، يوازې ددې لپاره تورپوستي عسکر نه وژل چې امنيت او نظم راولي بلکې ددې لپاره چې يو مصری و، او له دې کبله چې تورپوستو مصريان وژلي ول، نو له غوسې به پر ځان راتاو شو او غوښتل يې چې غچ واخلي.

په دې ورځ چې کله شپه شوه پر طبس امنيت او نظم حاکم شو، خو وژنو او لوټماريو خلک داسې اغېزمن کړي ول، چې څراغونه يې روښانه نه کړل او له عمومي کورونو د سرياني موسيقۍ غږونه نه اورېدل کېدل

خو میخانې چې په دې بلوا کې نه وې ورانې شوې، پر دې شپه یې ډېر څه وګټل او. کاپتا سمه خبره کړې وه، چې د هغه دنده داسې کسب دی، چې هېڅکله نه رخصتېږي، ځکه چې خلک هم د خوښیو او هم د غمونو او بدبختیو پر وخت شراب څښي.

د بلې ورځې له سهاره هورم هب نجاران او بېړۍ جوړونکي احضار کړل او ډېر شمېر کارګران یې وګمارل چې د شتمنو کسانو د ورانو شویو کورونو یوه برخه ورانه کړي او زړې کشتۍ هم پرزه پرزه کړي چې د کورنو او بېړیو له لرګیو پوړۍ، خوځنده برجونه او منجنیق جوړ کړي.

هورم هب پوهېده، چې له دې وروسته د آمون د معبد کاهنان پوه شول چې فرعون ناکام شو او د هغوی معبد او خدای یې ور نسکور نه شو کړای.

دی پوهېده چې له هغوی سره خبرې ګټه نه لري، ځکه چې داسې مغروره شوي ول، چې د تسلیمېدا امکان یې موجود نه وو.

له دې پرته بله چاره نه وه، چې د جنګ په رودو سره پر معبد حمله وشي او د دغه معبد دېوالونه ونړوي.

د بلې ورځې تر سهاره پورې د طبس له ښاره د کولنګ او څټک غږونه اورېدل کېدل او څومره چې کارګرانو له ودانیو او بېړیو څخه لرګي راوړل ترکاڼانو او بېړۍ جوړونکو ترې پوړۍ، خوځنده برجونه، منجنیقونه او د قوچ سرونه جوړ ول (د قوچ سر هغه لوی دوه درانه تیرونه او ستنې وې، چې سر به یې د قوچ یا غویي د سر په شان تراشو او لسو یا شلو کسانو به لېږداوه، چې په منډه به یې په زور سره په لویو دروازو وهل چې ماتې یې کړي او کلاګانو ته ننوځي. ژباړن)

په یوه شواروز کې یې پینځه خوځنده برجونه، یوه اندازه پوړۍ او څلور منجنیقونه (د پخوانیو جنګونو وسله وه چې کلاګانو او دېوالونو ته به یې اور پرې ورویشت.) جوړ شول او پر بله ورځ د هورم هب عسکر له پینځو لورو د آمون پر معبد برید پیل کړ.

د معبد کاهنانو چې د معبد د کلابندي اټکل یې نه وکړی نو هېڅ شی یې نه درلودل خلک په دغسې وخت کې د برجونو او کلاګانو له پاسه پر حمله کوونکو جوش شوي تېل او اوبه راتویوي، خو دوی نه جوش شوې اوبه درلودې او نه ګرم شوي تېل.

کله چې د قوچ د سر (لویې ستنې) په وسیله معبد ولړزېد کاهنان پوه شول، چې مات به شي، نو سرني یې وواهه چې خلک خبر کړي چې نور مقاومت پرېږدي.

دوی په هېڅ دل چې آمون کافي قرباني تر لاسه کړې او پاتې خلک باید ژوندي پاتې شي، چې په راتلونکې کې بیا د آمون خدای را ژوندی کړي.

د دوی په باور که د آمون ټول پیروان له منځه ولاړ شي، نور به د هغه د بېرته را ژوندي کولو لپاره څوک پاتې نه وي.

له دې وروسته چې کاهنانو مقاومت پرېښود، د معبد دروازې یې پرانستلې او هغه خلک چې په معبد کې ایسارېدو تنګ کړي ول، په ډېرې خوشحالۍ سره خپلو کورنو ته ستانه شول.

په دې ډول هورم هب له وینې بهېدا پرته معبد ونیو او د دارالحیات ډاکټران یې ښار ته واستول چې ناروغان معالجه کړي.

خو د مړیو کورته چې د معبد یوه موسسه وه ورنه غی، ځکه چې له کارګرو پرته نور ژوندي کسان باید د مرګ کورته ولاړ نه شي.

دغه راز هغه کسان هم ورتلای شي چې خپل مړي دغه کورته وړي او یا مومیایي شوي مړي ترلاسه کوي.

له دې وروسته چې د معبد دروازې خلاصې شوې کاهنانو د معبد له یو شمېر ساتونکو سره یو ځای په هغه ځای کې مقاومت وکړ چې د آمون مجسمه اېښودل شوې وه.

په دې وخت کې د معبد د کاهنانو د ساتونکو او د هورم هب ترمنځ جنګ پیل شو او دغه جنګ تر مازیګره پورې روان و.

د معبد ټول ساتونکي ووژل شول، ځینې کاهنان هم ختم شول او یوازې د لومړۍ درجې کاهنان پاتې شول.

وروسته هورم هب نغاره ووهله جنګ یې بند کړ او کاهنانو ته یې وویل، زه ستاسې له خدای سره دښمني نه لرم، ځکه چې یو عسکر یم او له خدایانو سره نه دوستي کوم او نه دښمني.

زه فکر کوم که ستاسې د خدای مجسمه په دې معبد کې ترلاسه نه شي دا به غوره وي او تاسې پخپله د هغه مجسمه له منځه وړلای شئ او په دې ډول به زه ستاسې د خدای په وژلو تورن نه شم.

زه د یوې میزانې (ساعت) په اندازه وخت درکوم، چې په دې اړه فکر او فیصله وکړئ او زه به له هغه وروسته حمله پیل کړم.

ددې لپاره چې زه عسکر یم او باید د فرعون امر اجرا کړم او که تاسې یو ساعت وروسته خپله مجسمه له منځه یوړه او له معبده مو و ایسته نو هېڅوک به ستاسې مزاحمت ونه کړي.

موږ یوازې دې ته ځیر یو چې تاسې له معبده څخه سره او سپین یو نه سيء چې د فرعون د خدای مال دی.

کاهنانو وویل سمه ده، موږ یو ساعت وروسته تاسې ته ځواب درکوو.

کله چې یو ساعت تېر شو کاهنان له خپله ځایه راووتل او هورم هب ته یې وویل، چې ور ننوځي.

هغه چې کله ور ننوت نو د آمون مجسمه یې ونه لیدله او پوه شو چې کاهنانو ماته کړې او ټوټې یې له ځان سره له معبده د باندې وړې.

دا کار یې ددې لپاره کړی و، چې بیا ووایي آمون غیبت کړی و او په راتلونکې کې به راښکاره شي.

هورم هب د معبد د خزانې دروازې لاک و مهر کړې، حجارانو ته یې دنده وسپارله چې پر کانو د آمون لیکل شوی نوم پاک کړي او پر ځای یې د آتون نوم ولیکي.

بیا یې د جارچیانو په وسیله اعلان وکړ چې آمون له منځه تللی او له دې وروسته د هغه پر ځای آتون د مصر خدای دی.

خلک چې پوه شول، جنګ او وینې بهېدل پای ته رسېدلي ، نو له خپلو کورونو را ووتل او د شپې مهال طبس هغسې په څراغونو ښکلی شو لکه چې یو وخت د امن او ټیکاو پر مهال و.

له دې وروسته چې امنیت ټینګ شو او د آتون خدایي پیل شوه، د تور و سپین تو پیر له منځه ولاړ او ما پخپله په وار وار ولیدل چې شتمنو به تورپوستي خپل کور ته ور بلل.

پر همدې شپه چې کور ته دستنېدا پر مهال په یوه بازار کې تېرېدم، دوه پېښې مې ولیدې چې هېڅکله به یې هېرې نه کړم .

یوه داچې د اشرافي پرګنې یوه سړي په کوڅه کې یوه تورپوستي ته بلنه ورکوله چې د هغه کور ته ورشي او له هغه سره ډوډۍ وخوري.

بله داچې د آمون د معبد یو ساتونکی مې ولید چې د واټ په څنګ کې ژوبل پروت و، او د آمون نوم یې اخیست، خلک پرې را ټول شول او مازغه یې په ډبرې ورباد باد کړل او

ښځې بیا د هغه د مړي شا و خوا ته ګډېدلې.

لس ورځې مخکې که چا آمون ته سپکاوی کړی وای نو هغه به یې وژلی وای نو دغو کسانو د آمون د نوم اخیستلو په ګناه یو سړی وواژه.

زه چې کور ته تلم دغه دوه منظرې مې ولیدې او سر مې په دواړو لاسونو ونیوه په سوچونو کې ډوب شوم، ځکه چې پوهېدم امکان لري یوه ورځ داسې خدای راشي، چې د خلکو جهالت او حماقت له منځه یوسي.

په همدې فکرونو کې وم او د کور پر ځای د تمساح د لکۍ د میخانې پر لور روان شوم.

دا هغه شپه نه وه، چې زه دې وکړای شم، کور ته ولاړ شم، ځکه چې د بشر جهالت او د هغه سستې عقیدې سخت غمجن کړی وم، نو د تمساح لکۍ دمیخانې پر لور روان شوم هر چې د شرابو په څښلو او له مریت سره په خبرو ځان ډاډه کړم.

کله چې هلته ورسېدم هغه عسکر چې میخانه یې ساتله او له هورم هب سره زما په ملګرتیا خبرول پر ما راټول شول ویې ویل، مریت موږ ته ویلي، چې ته باید له یوې ښځې غچ واخلې او له دې کبله چې پوهېږو ته د هورم هب نژدې ملګری یې او دغه میخانه ستا د پخواني مریي کاپتا ده، نو موږ هم چمتو یو ستا غچ واخلو.

ما له مریت څخه پوښتنه وکړه، تا دوی ته ویلي چې د انتقام د اخیستو لپاره ما ته ځانونه وسپاری؟

مریت وویل، هو زه باوري یم چې که نن شپه تېره شي او تا له هغې ښځې څخه چې ته یې تېر ایستلی یې خپل غچ وانه خیست، بیا به دغه فرصت ونه لرې

ددې لپاره چې سر له سبا به د طبس حالت عادي شي، خو نن شپه لا غیر عادي ده او هر څوک چې له بل چا سره دښمني لري له هغه څخه غچ اخیستلای شي.

عسکرو ته مې وویل له ما سره ولاړ شئ، خو پام کوئ چې تاسې نن شپه د هورم هب امر ته ژمن یاست او که د امر پر خلاف کوم کار وکړئ ستاسې سرونه به له تنه بېل شي.

زه نن شپه یوازې د هورم هب امر پر تاسې اجرا کوم.

دا خبره مې ځکه وکړه چې عسکر وویرېږي او زما له امره سر غړونه ونه کړي.

عسکرو وویل، ډاډه اوسه چې موږ به ستا د امر پر خلاف کوم کار و نه کړو، ځکه پوهېږو ستا د هورم هب امر دی

و مې ویل، بله خبره دا چې باید څوک ما ونه ګوري او و مې نه پېژني، تاسې هم اړ نه

یاست چې زما نوم واخلئ، بلکې که له تاسې څخه کومه توضیح وغوښتل شوه ورته وواياست ، چې د آتون د خدای له لوري راغلي یاست چې د هغه له دښمنانو غچ واخلئ.

خو اوس لږ صبر وکړئ، چې یو روان تخت راولي، زه پرې سپور شم او له تاسې سره ولاړ شم.

زما پخواني مریي کاپتا یو کس په روان تخت پسې واستاوه او یو ساعت وروسته له روان تخت سره راغی، زه پرې سپور، له عسکرو سره یو ځای روان شوم او د نفر نفر کور ته ورسېدم.

هلته مې عسکرو ته وویل، په دې کور کې یوه ښځه ده، چې هلته تر نورو ښځو ډېره ښکلې ده.

تاسې به دغه ښځه په لومړي نظر د هغې له ښکلا او پرتم څخه وپېژنئ، په دې شرط چې د هغې د خرېیل شوي سر په لیدو سره پرې مین شئ.

ولاړ شئ او هغه راولئ، که یې مقاومت وکړ د نېزې په لرګي یې ووهئ چې غلې شي او مقاومت پرېږدي، خو پام کوئ چې بد چلند ورسره ونه کړئ.

که هورم هب پوه شي چې تاسې له دې ښځې سره بد چلند کړی او د هغې ښکلا مو له منځه وړې نو ټول به وو ژني.

د نفر نفر د کور له منځه د ساز او سندرو غږ راته او ځینې نشه مشتریانو په دې عمومي کور کې نارې سورې وهلې.

کله چې عسکرو دروازه وټکوله د کور نوکرانو، نه غوښتل چې دروازه خلاصه کړي، ځکه فکر یې کاوه چې دغه عسکر له ښځو سره د تفریح په بدل کې د فلز د ورکولو وس نه لري.

خو عسکر په زور کور ته ننوتل او هغه کسان چې په دې کور کې په ساعت تېري بوخت ول، وتښتېدل.

لږه شېبه وروسته ما ولیدل چې یو عسکر نفرنفر په یو تور ټوکر کې تاو کړې او زما د روان تخت پر لور یې راولي.

کله چې ما دغه ښځه په تور ټوکر کې ولیده خیال مې وکړ، چې مړه شوې او عسکرو د هغې مړی ماته راوړی دی.

خو کله چې یې ښځه زما پر روان تخت کېښوله او ما معاینه کړه، ومې لیدل چې ژوندۍ

خو بې هوشه شوې، د پخوا په شان ښکلې ده او خرهیل شوی سر یې ځلېږي.

هر عسکر ته مې لږ څه سره او سپین ورکړل او هغوی مې رخصت کړل، نیت مې دا و، چې عسکر پوه نه شي، زه چیرته ځم؟

بیا مې د روان تخت مریبانو ته وویل چې د پخواني خدای آمون معبد ته نژدې زما کور دی، هلته مې ورسوئ.

زما کور هلته نه و، خو غوښتل مې مریبانو ته ناسم ادرس ورکړم او بیا هغوی رخصت کړم.

د آمون پخواني معبد ته نژدې مې په واټ کې روان تخت ودراوه او مریبانو ته مې وویل چې پر ځمکه یې کېږدي.

له روان تخته کوز شوم، نفر نفر مې چې په تور ټوکر کې تاو شوې وه، له روان تخته را کوزه کړه، د مریبانو اجوره مې ورکړه او هغوی مې رخصت کړل.

له دې وروسته چې دوی ولاړل ما نفر نفر چې لا بېهوشه وه، را اوچته کړه او د مړیو د کور پر لور روان شوم.

کله چې هلته ورسېدم دروازه مې وټکوله او د مړیو د کور کارکوونکو دروازه خلاصه کړه.

دوی ولیدل چې ما ظاهراً یو مړی راوړی، نو یې ښکنځلې پیل کړې ویې ویل، په دې ورځو کې زموږ کار کم و، چې تا هم موږ ته مړی راوړی؟

ومې ویل، دغه مړی چې ما درته راوړی، له نورو مړو سره توپیر لري، راشئ ویې ګورئ.

د مړیو د مومیایي کولو کارکونکي مشال را اوړ، کله چې یې نفر نفر ته ورنژدې کړ، خورا خوشحال شول او ویې خندل.

ما چې له کلونو وروسته د مړیو د کور خندا اورېده، دهغوی له خندا و رېږدېدم.

یو یکې نفر نفر ته نژدې شو او د هغې پر سینه یې لاس کېښود، ویې ویل، پر آمون قسم چې دغه ښځه لا ګرمه ده.

ومې ویل، که غواړئ په آسوده ډول کار وکړئ او څوک دربانديې اعتراض ونه کړي د آمون نوم مه اخلئ.

ددې لپاره چې د آمون خدای نشته او د هغه پر ځای آتون پر مصر خدایي کوي

ګورئ دغه ښځه لا ګرمه ده او زه یې تاسې ته پر ېږدم، چې ښه یې وساتئ، بدن یې داسې مومیایي کړئ چې ژر خراب نه شي او د هغې زري غاړکۍ او ګاڼه ستاسې د اجورې لپاره کفایت کوي.

خو د مرګ د کور نوکران پوه شول چې هغه ښځه ژوندۍ ده او په دې هم وپوهېدل چې زه څه وایم.

یوه پکې وویل اې ناپېژانده! که زه پوه شم چې ته د مصر د نوي خدای پیروي کوې، زه به هم د نوي خدای عبادت وکړم، ځکه له هغې ورځې چې ځان مې پېژندلی دی، همدلته اوسېږم او تل له هغو ښځو سره ځملم چې بدن یې تر ژمي هم سوړ وي.

هېڅکله داسې نه دي شوي چې له یوې ژوندۍ ښځې سره تفریح وکړم.

ډاډه اوسه چې اویا ځله، اویا ورځې به هغه دلته وساتو او که یوه ورځ څوک له مونږ پوښتنه وکړي، چې ولې مو یوه ژوندۍ ښځه دلته ساتلې وبه وایو چې مونږ مړه ترلاسه کړه، خو له دې ورسته چې مونږ د مالګې اوبو ته کوزه کړه پوه شو چې ژوندۍ ده.

زه پوهېدم، د مړیو د کور کارکونکي چې ټول عمر یې له ښځو سره تفریح نه وه کړې نفر نفر به هېڅکله پرېنږدي، چې له دغه ځایه راووځي.

ځکه د هغوی له بدنه ډېر بد بوی لتېږي او هغوی په طبس کې عمومي کورونو ته نه پرېږدي چې له ښځو سره تفریح وکړي.

په دې ډول ما له نفر نفر څخه د مور و پلار غچ واخیست، او اوس پوهېږم له دې سره سره چې غچ اخیستل خوند لري او داسې شراب دي چې انسان نشه کوي، خو مستي یې ډېره ژر له منځه ځي.

نه پوهېږم ولې له دې وروسته چې غچ واخیستل شي، سړی پښېمانېږي او بیا ځانته وایي، کاشکې مې غچ نه وای اخیستی.

په دې وخت کې چې ما نفر نفر د مرګ د کور کارکونکو ته سپارله، ددې لپاره چې ځان ډاډه کړم نو له ځان سره مې وویل، زه دغه کار د راتلونکو ځوانانو د ژغورلو لپاره کوم، ځکه تر هغه وخته پورې چې دغه ښکلې او آزاده ښځه وي، زما په شان با حیا او ساده هلکان به بدبخته کړي، لکه چې زه یې په هلکوالۍ کې بد بخته کړی وم.

له دې وروسته چې د تمساح لکۍ میخانې ته ولاړم مریت زما پر لور راغله، زما لاس یې ونیو، ویې ویل سینوهه! ولې غمجن یې؟

ومې ویل، ځکه چې ښځې تل زموږ د بدبختۍ سبب کېږي.

کله چې موږ پر ځان مینان کړي، له تور و خاورو سره مو خاورې کړي او کله چې موږ ترې غچ اخلو بیا هم ځان بدبخته ګڼو.

مریت وویل، ستا دغه فکر له دې امله دی، چې لا دې داسې څوک نه دي موندلي چې وغواړي تا سو کاله او نېکمرغه کړي.

ومې ویل، زه د مصر له خدایانو او د ټولو هغو ملتونو له خدایانو چې سفر ورته مې ورته کړي، غواړم د هغو کسانو له خطرې دې ما وساتي چې نیت لري خلک نیکمرغه کړي

ځکه چې فرعون هم غوښتل د مصر ملت نېکمرغه کړي او اوس د وژل شویو کسانو مړیو د طبس فضا له بویونو ډکه کړې ده.

په دې وخت کې مریت د تمساح لکۍ یو جام شراب راکړل او ویې ویل دا وڅښه... چې غمونه دې هېر کړي.

ما د تمساح لکۍ شراب وڅښل، چې څنګه مې له ستوني ښکته شول احساس مې وکړ، چې فکر مې بدل شوی او نور مې د نفرنفر فکر ونه کړ، بلکې د مریت په فکر کې وم.

هغې ته مې وویل، مریت زه نن شپه تاته ډېره اړتیا لرم، هغه غچ چې ما له هغې ښځې واخیست له هغې سره یې زما حساب کتاب پاک کړ.

مریت وویل که غواړې پوه شې پر یوې ښځې ګران یې کنه؟ هغه په سرو او سپینو او هغو ډالیو سره وآزمایه چې په راتلونکې کې به یې ورکوې

ممکنه ده یوه ښځه نن له تا څخه سره او سپین وانه خلي، خو له تا سره تفریح وکړي، ددې لپاره چې په راتلونکي کې سره او سپین ورکړې، یا دا چې د نفر نفر په شان تا اړ کړي چې خپل ټول شیان هغه ته ورکړې.

د یوې ښځې د مینې د امتحان یوازینۍ وسیله دا ده چې هغه نه یوازې اوس د تفریح په بدل کې له تا سره او سپین ونه غواړي بلکې په راتلونکې کې هم له تا څخه د کوم شي د ترلاسه کولو تمه ونه کړي

ایا ته پخپل ژوند کې له داسې ښځې سره مخامخ شوی یې او هغه چمتو شوې، چې له تا سره تفریح وکړي؟

ومې ویل هو .... زه په ژوند کې له یوې ښځې سره اشنا شوم، چې له ما یې سره او سپین ونه منل، خو چمتو نه شوه چې له ما سره تفریح وکړي

مریت وویل، بیا نو پر هغې ښځې ګران نه وې
ومې ویل پر هغې خپل خدای ډېر ګران و، ویل به یې چې باید خپل پېغلتوب خپل خدای ته ډالۍ کړي.
مریت پر دې شپه زه د میخانې یوې خصوصي کوټې ته بوتلم او بیا یې خپل پوزی وغوړاوه چې زه وکړای شم پرې څملم.
خو نارینه داسې وي چې کله پر یوې ښځې مین شي، نو خپل ځان هم هېروي او بدلېږي او په یاد یې نه وي چې پخوا یې ژمنې کړي، چې له هېڅ یوې ښځې سره به تفریح نه کوي.
ایا داسې څوک به وي چې ووایي، یوه ښکلې ښځې یې لیدلې، چې پر هغې ښځې ګران هم وي، خو بیا پر خپلې هغې ژمنې ولاړ وي، چې مخکې یې کړې وي.
زه فکر کوم همغه ډول چې تېل کمزوري اور تېز او غړغړانده کوي یو ښکلې ښځه هم، د نارینه اور داسې زیاتوي، چې هغه په دې اورکې ټولې هغه پخوانۍ ژمنې سوځوي چې پخوایې د ښځو په هکله کړې وي.
ما فکر کاوه چې که کومه ورځ فرعون راته ووایي سینوهه! ته خپل علم ماته راکړه او یو جاهل سړی شه او زه به یې په بدل کې د پاچاهۍ تخت او تاج درکړم، نو زه به دغه معامله ونه منم، ځکه چې پوهېدم په ناپوهۍ کې ژوند کول، که انسان فرعون هم وي ارزښت نه لري.
خو که مریت راته ویل، چې سینوهه! ټول علم دې ماته راکړه او له دې وروسته یو ناپوه کس شه، خو زه یې په بدل کې ټوله شپه له تا سره ویدېږم، زه به دغه معامله ومنم، ځکه چې پوهېږم تر ټولو لویه نېکمرغي له هغې ښځې سره ژوند کول دي چې پر دې نارینه ګران وي او پر هغه دا ګرانه وي.
پر دې شپه مې فکر وکړ چې بې ځایه مې له سمندرونو اخوا سفرونه وکړل او بې ګټې سوریې او بابل ته ولاړم چې هلته نېکمرغي تر لاسه کړم.
هغه نېکمرغي چې زه ورپسې وم، نه په سمندرونو کې وه او نه په بابل، هاتي او نورو ځایونو کې، بلکې دغه نېکمرغي له یوې ښځې سره او سېدل و، چې زما په ښار طبس کې یې ژوند کاوه.
خو دا خبره هم د کولو ده، چې انسان باید له سمندرونو ور آخوا سفر وکړي، نور هېوادونه ووینې، چې پوه شي، هغه نیکمرغي چې دی ورپسې دی، په بل ځای کې نشته

بلکې د هغه پخپل هېواد کې پیدا کېږي.

تر هغه چې انسان په مزلونو کې، همغه ډول ستړی نه شي لکه چې زه په بابل کې د تېښتې پر وخت ستړی شوم د ناستې او استراحت په قدر نه پوهېږي.

د داسې ښځې د مینې تر لاسه کول، چې نارینه له زړه پرې ګران وي دې ته اړتیا لري چې تر هغه مخکې انسان محرومیت وګالي.

پر بله ورځ چې زه له خوبه را ویښ شوم، مریت راته موسکی شوه او راته یې وویل، سینوهه! که د سرو او سپینو له امله راباندې ګران وای او ستا فلزاتو ته مې اړتیا درلودای، ویل به مې، چې له دې ځایه مې خپل کور ته بوځه چې هلته آسوده ژوند وکړای شم.

خو زه فلزاتو ته اړتیا نه لرم او تا د سرو او سپینو لپاره نه غواړم له همدې امله دلته پاتې کېږم.

ومې ویل مریت! که زه درباندې ګران یم، ولې زما کورته نه راځې چې تل همغلته واوسې.

ښځې وویل، په دوو دلیلونو ستا کورته نه درځم، یو دا چې زه دغه ځای چلوم، زه د تمساح لکۍ شراب جوړوم، بل ځوک دغه ډول شراب نه شي جوړولای او د جوړولو راز به یې هم چا ته ونه وایم چې سوداګریز سیال ونه لرم، نو له دې ځایه نه شم تللی.

بله دا چې دا خبره تجربه شوې، چې کله یوه ښځه او نارینه له مادي اړتیاوو پرته پر یو بل ګران وي، نو بیا غوره ده چې له یو بله لېرې ژوند وکړي چې د دوی د مینې اور هېڅکله خاموشه نه شي.

که زه ستاسې په کور کې ژوند وکړم له یوه او یا دوو فصلونو وروسته به ستا د کور په یو شي بدله شم.

له هغه وروسته چې کله ته کور ته راځې زړه به دې نه غواړي، چې راته وګورې. خو که له یو بله لېرې ژوند وکړو تل به پر تا ګرانه یم.

# یو دیرشم څپرکی

## اخناتون د مصر فرعون

پر دې ورځ هورم هب فرعون ته ورغی او هغه ته یې وویل د آمون خدای را وپرځول شو او له منځه ولاړ، د هغه پر ځای د آتون خدای واکمن شو.

فرعون هغه په ثابته توګه د مصر د پوځ مشر کړ او هغه ته یې وویل، نیت لرې سبا د آتون د معبد زیارت ته ولاړ شي، خو نن شپه به په سلطنتي ماڼۍ کې د خپلو ملګرو هرکلی وکړم.

هورم هب زما په اړه له فرعون سره خبرې وکړې او ویې ویل، دا هغه ډاکټر دی، چې کله ته ولیعهد وې، له تا سره په بېدیا کې پاتې و، له هغه وروسته زه فرعون ته ور په زړه شوم.

هورم هب ته یې وویل، نن شپه چې په میلمستیا کې د ګډون لپاره راځې هغه هم له ځان سره راوله.

بیا هورهب زما په هکله فرعون ته معلومات ورکړل، چې ځینې برخې یې پکې لافې وې او ویې ویل، دغه مصری ډاکټر په نړۍ کې ساری نه لري.

د مصر او بهر ټول طبي علوم یې زده کړي ،تر او سه یې سلګونه ناروغان او ژوبل کسان له مرګه ژغورلي دي.

اخناتون (د دغه فرعون لومړنی نوم څلورم (آمون هوتپ) و او لومړنی نوم د دې ښودنه *کوي، چې آمون پرې ګران و، خو وروسته یې په آتون عقیده پیدا شوه او خپل نوم یې اخناتون کېښود چې د آتون لېواله او خوښوونکي ته وايي.*

*نوموړي فرعون آتون واحد او نالیدلی خدای باله او د واحد او نالیدلي خدای عبادت کاوه. ژباړن)*

فرعون ډېر لېوال شو، چې ما ووینې او په دې ډول ما د لومړي ځل لپاره د یوه میلمه په توګه د فرعون په میلمستیا کې ګډون وکړ.

کله چې د فرعون ماڼۍ ته ننوتم د لومړي ځل لپاره مې مصري ښځې د اوړي په نوي موډ کاليو کې وليدې.

دغه موډ ډېر ښکلی و، ښځو خپلې جامې داسې ګنډلې وې، چې په زړه پورې ښکارېدې، بلهدا چې په دې مېلمستيا کې ښځو د سترګو شاوخوا شنې کړې وې، غومبوري او شونډې يې هم سرې وې.

هورم هب فرعون ته ورو ستم، ما وليدل چې اخناتون لوی شوی دی، ما هغه ته بيا هم د يوه ماشوم په سترګه کتل او فکر مې کاوه چې اوس هم ماشوم دی، خو هغه لوی شوی و، مګر سترګې يې برېښنده او مخ يې ډنګر و.

اخناتون د کتان جامې اغوستې وې، چې سلطنتي کتان بلل کېده. کله چې يې زه وليدم ويې ويل، سينوهه! ما هغه وخت ليدلی وې، چې وليعهد وم.

نن هورم هب ستا د علم په هکله له ماسره خبرې وکړې ويې ويل، په مصر او نورو هېوادونو کې دې د طب زده کړې کړې دي.

بيا يې د خپل طبيعت په هکله خبرې وکړې ويې ويل، يوه موده کېږي چې زه د سر خوږ لرم.

هر وخت چې څوک د داسې مسلې په هکله خبرې کوي چې زما په خوښه نه وي، سر مې په درد شي او داسې مې کړوي چې نه ډوډۍ خوړلای شم او نه خوب راځي.

ډاکټران زما سرخوږی په مخدره توکو کراروي خو زه له دغو درملو کرکه کوم، ځکه چې پوهېږم مخدره توکي تمرکز له منځه وړي او ددې مخه نيسي چې زه په آسودګۍ د خپل خدای په هکله فکر وکړم.... سينوهه!.... ايا ته آتون پېژنې.

هغه پوښتنه چې فرعون له ما وکړه ډېره خطرناکه وه او بايد په احتياط سره مې ځواب ورکړی وای.

هغه ته مې وويل هو! آتون پېژنم. فرعون وپوښتل، څنګه هغه پېژنې ما وويل، آتون زما او د ټول بشريت له پوهې لوړ او ستر دی.

فرعون پر دې ځواب خوشحال شو او ويې ويل سينوهه! هغه ځواب چې تا ماته راکړ له ټولو هغو ځوابونو ښه دی، چې نور يې راکوي، خو اوس دا راته ووايه چې د جمجمې په سوري کولو سره زما معالجه کولای شې؟

ومې ويل، اخناتونه! ستا د سر خوږ د کوپړۍ سوري کولو ته اړتيا نه لري، ځکه چې يو

ډاکټر په بل ډول هم تامعالجه کولای شي او ډاکټران تر هغه وخته د سر د کوپړۍ له سوري کولو ډډه کوي، چې له دې لارې پرته بله معالجه نه وي.

فرعون وویل هورم هب ستا داسې ستاینه کړې او زه هم د آتون په هکله ستا له ځوابه داسې راضي شوی یم، چې غواړم تا ته یوه څوکۍ او مقام درکړم.

ته پوهېږې چې سلطنتي سر سوری کوونکی بوډا و، او چې مړ شو نو ځای یې خالي پاتې شو.

ما تر اوسه د هغه پر څوکۍ څوک نه دي ټاکلي، خو ته به له دې وروسته درباري سر سوری کوونکی شې او د (سپې د ستوري) له ورځې به ددې څوکۍ له امتیازاتو ګټه اخلې.

زه وایم چې دارالحیات تا په همدې نوم وپېژني (په پخواني مصر کې ورځې د اسمان د ستورو په نوم یادېدې او د سپي له ستوري هدف د هغو ستورو ټولګه ده، چې کلب اکبر یې بولي، او دا په پخواني مصر کې د یوې ورځې نوم و.) له دې خبرې وروسته هورم هب زه له فرعونه لېرې کړم او بل تالار ته یې د ډوډۍ خوړلو لپاره بوتلم.

هورم هب وویل، د درباري کوپړۍ سوري کوونکي ځای د فرعون په ښي اړخ کې وي، نو زه او هورم هب هلته کېناستو.

د ډوډۍ خوړلو په وخت کې ما ولیدل، چې فرعون د هیلۍ غوښه، د غاز، پسه او غویي غوښه او کبان نه خوري، بلکې یوه ډوډۍ یې نیمه کړې او خوري یې او د شرابو پر ځای یې د هغه په جام کې اوبه واچولې او ویې څښلې.

له دې ورسته چې موړ شو، ویې ویل، د مصر ملت ته وواياست چې د فرعون اخناتون خواړه ډوډۍ او اوبه سوله او حقیقت دي.

د هغه خواړه د مصر له بېوزلو او مریانو سره توپیر نه لري، خو له هغې شپې وروسته پوه شوم، بلکې ومې لیدل، چې فرعون د هیلۍ، غاز، پسه او غوايي غوښه نه خوړله، خو منظم خوراکي رژیم یې نه درلود، کله نا کله به یې هوس وکړ، چې وچه ډوډۍ له اوبو سره وخوري او کله به یې ډوډۍ نه خوړله.

میلمانه له ډوډۍ وروسته بلې کوټې ته ولاړل، ما هلته ولیدل چې یو چاغ سړی رانږدې شو، ما په لومړي نظر ونه پېژاند، خو له دې وروسته چې د هغه سترګو ته مې وکتل ومې لیدل چې زما پخوانی هنرمند ملګری توتمس دی.

د هغه په لیدو ډېر خوشحال شوم، هغه مې په غېږ کې ټینګ ونیو او ښکل مې کړ.

ورته مې وويل، توتمس زه ستا د کتو لپاره هغې ساقي خانې ته ولاړم چې پخوا به مې هلته ليدلې، خو هلته يې راته وويل چې توتمس نور دې ساقي خانې ته نه راځي.
توتمس وخندل او ويې ويل، سينوهه! زه د دربار مجسمه جوړونکی يم او زما حيثيت ددې مخه نيوله چې هغې ساقي خانې ته ولاړ شم.
اوس مې داسې ملګري پيدا کړي چې تل مې د خوندورو خوړو او شرابو د څښلو لپاره خپلو کورونو ته ميلمه کوي او دې ته اړتيا نه پېښېږي چې د شرابو د څښلو لپاره هغې ساقي خانې ته ولاړ شم.
ومې ويل توتمسه! له دې کبله چې ته درباري مجسمه جوړونکی يې، حتماً د آتون په معبد کې پر ستنو د فرعون مجسمې تا جوړې کړې دي؟
توتمس وويل موږ يو شمېر مجسمه جوړونکي يو، چې په ګډه کار کوو او له حقيقي هنره همغه ډول چې په کرت کې ورته توجه کېږي الهام اخلو.
کله چې د آمون درواغجن خدای پر مصر واکمن و، موږ مجبور و، چې د هنرونو اصول تر پښو لاندې کړو او د مجسمو په جوړولو او د انځورونو په طراحۍ کې د درواغجن خدای پيروي وکړو.
که به لږ منحرف شوو ددغه جعلي خدای کاهنانو به کافران بللو او موږ به يې وژلو.
هغوی به ويل هر ډول هنر چې د آمون خدای له قوانينو سره په ټکر کې وي کفر دی.
هغه هنرمند چې يوه مجسمه جوړه کړي يا انځور وباسي، خو د آمون له هنري اصولو سره اړخ ونه لګوي و به وژل شي.
موږ حقيقي هنرمندانو چې د هنر په آزادۍ باوري يو له دې کبله چې له دغه ډول چاپېريال سره ځان نه شو برابرولای او د پخواني خدای د حماقت پيروي مو نه شوه کولای، نو لوږې به مو تېرولې او کله به حتی يو جام د اوربشو اوبه هم نه را رسېدې.
خو نن سبا ازاد يو په آزادۍ سره د خپل هنر لپاره کار کوو، هر هغه شی جوړولای شو چې غواړو يې.
ما توتمس هورم هب ته ور وپېژاند او هغه ته مې وويل دغه سړی چې ته يې ګورې يو نابغه هنرمن دی، فرعون يې هم په قدر پوهېږي ځکه خو هغه درباري مجسمه جوړونکی دی.
هورم هب د درباري مجسمه جوړونکي په کتو خوشحاله شو، خو د خپل مقام له امله

يې ډېره خوشحالي څرګنده نه کړه او کله چې توتمس د هورم هب اندام او څېرې ته وکتل هغه ته يې وويل:

ډېر مې زړه کېږي چې ستا مجسمه وباسم او د نوي خداى آتون په معبد کې يې کېږدم، ځکه چې ته د آتون ژغورونکى او د پخواني خداى نابودونکى يې او ددې وړتيا لرې چې ستا مجسمه په نوي معبد کې کېښودل شي.

هورم هب پر دې خبره داسې خوشحال شو، چې مخ يې له خوشحالۍ پړقېده.

زه پوه شوم چې د هغه د خوشحالۍ علت دا دى چې تر دې ورځې پورې چا د هغه انځور يا مجسمه نه ده ايستلې او توتمس د لومړي ځل لپاره په کاڼي کې د هغه مجسمه جوړوي.

کله چې موږ د هورم هب د مجسمې په هکله خبرې کولې، ما وليدل چې هغه ناڅاپه پورته شو، دواړه لاسونه يې پر زنګنو کېښودل او رکوع يې وکړه.

موږ هغه لوري ته وکتل چې کوم لوري ته هورم هب رکوع کړې وه، ګورم چې د مصر ملکه او د اخناتون مېرمن (نفر تي تي )را روانه ده، نو موږ هم پورته شوو او د مصر ښکلې ملکې پر لور مو رکوع وکړه.

نفر تي تي د درباري ښځو د نوي موډ جامې اغوستې وې، چې موږ ته را ورسېده لاسونه يې پر سينې کېښودل.

ما وليدل چې هغه ګوته او بنګړي نه لري، ځکه چې نه يې غوښتل خپله ښکلا په ګوتو او بنګړيو پټه کړي.

ملکې ماته وويل سينوهه ! زما لاسونه د يو زوى د روزلو لپاره بې طاقته دي، ځکه چې فرعون زوى غواړي چې له هغه وروسته پر تخت کېني.

زه او هغه دواړه له دې کبله اند ېښمن يو چې ما زوى نه دى زېږولى او دواړه له جعلي خداى آمون څخه وېرېږو.

که څه هم هغه اوس راپرځول شوى، خو موږ پوهېږو چې په کمين کې راته ناست دى.

ما دوه لونې زېږولې، خو تر اوسه مې زوى نشته.

ما اورېدلي چې ته ستر ډاکتر يې او په بهرنيو هېوادونو کې دې ډېر معلومات راغونډ کړي، ما ته ووايه چې کله به زوى پيدا کړم.

هغې ته مې وويل: اې د فرعون مېرمنې ! غوره دا ده چې ته د زوى د پيدا کولو په فکر کې ونه اوسې، ځکه چې ستا د بدن وروستنې غړې لږ سور لري او هغه مېرمنې چې د بدن

خلفي غړي يې لږ سور ولري که زامن وزېږوي، ممکنه ده چې د لنګون پر مهال مړې شي.

نفر تي تي وويل، له دې سره سره زه يو زوی غواړم او ته بايد داسې طبابت وکړې چې د زوی خاونده شم.

ومې ويل اې نفر تي تي! له آتون پرته بل هېڅوک نه شي کولای له زېږېدو مخکې د يوه ماشوم جنس معلوم کړي او ما په نورو هېوادونو کې داسې ډاکټران وليدل چې ادعا يې کوله کولای شي د يوې ښځې لپاره هلک يا نجلۍ وزېږوي، خو ډېرو به تېروتنه کوله او کله چې به يې تېروتنه ثابته شوه رحم يې ملامتاوه، چې د هغوی د حکمونو په اساس يې عمل نه دی کړی.

هغوی پوهېدل، هغه لارښوونې چې دوی يې مېرمنو ته کوي دومره دقيقې او سختې دي چې ښځو به پر ټولو عمل نه شو کولای او بيا به يې همدا دليل راووړ، چې پرخپلې ناپوهۍ پرده واچوي.

خو زه تا ته دروغ نه وايم، اعتراف کوم چې داسې درمل په تا نه شم خوړلای چې تا ته زوی درکړي.

خو له دې کبله چې تا نجلۍ زېږولې احتمال يې شته چې زوی وزېږوې او ستا درېيم اولاد به هلک وي، مګر له دې سره سره په دې برخه کې هم درسره ژمنه نه شم کولای.

نفر تي تي چې په موسکا يې زما خبرې اورېدې، زما د خبرو تر خلاصېدو وروسته، خپه شوه او زه پوه شوم چې زما خبرو پر کاله کړه.

کله چې تو تمس وليدل چې ملکه پر کاله او خپه شوې، نو په خبرو کې راګډ شو او ويې ويل اې نفر تي تي! ولې د نجونو په زېږولو خپه کېږې؟

ته د نړۍ تر ټولو ښکلې ښځه يې، دا به غوره وي، چې ته تل لور وزېږوې، چې ستا لونې هم ستا په شان ښکلې وي او ستاسې ښکلا دنيا ته روښانه کړي.

ما ستا مشره لور ليدلې، پوهېږم چې څومره ښکلې ده؟

نن سبا د مصر د دربار ټولې ښځې هڅه کوي داسې ځانونه سينګار کړي چې هغې ته ورته شي او زما ډېر زړه کېږي ستا مجسمه وباسم چې ستا له مړينې زر کاله وروسته، خلک ستا ښکلا وګوري، هغه وستايي او د نفر تي تي نوم تل په نړۍ کې د ښکلا نوم وي.

*(د مصر د ملکې دغه مجسمه چې تو تمس جوړه کړې، اوس هم شته او د برلين په موزيم کې ساتل کېږي. د مصر لومړني پاچا لومړي فواد د جرمنې له حکومته وغوښتل*

*چې دغه مجسمه چې اروپايي لرغون پوهانو موندلې وه، بېرته مصر ته ستنه کړي، د جرمني حکومت هم دغه مجسمه مصر ته ورکړه او اوس باید دغه مجسمه د مصر په یوه موزیم کې وي ژباړن)*

نفرتيتي موسکۍ شوه او معلومه شوه چې د درباري مجسمه جوړونکي له خبرو یې خوند اخیستی، بیا له موږ څخه لېرې شوه.

پر بله ورځ ما مریت د تمساح لکۍ له ساقي خانې را وایسته او له ځان سره مې بوتله، چې د آتون نوي معبد ته د فرعون د تګ سیل پرې وکړم.

مریت نوې موډ جامې واغوستلې.

له دې سره سره چې د یوې میخانې نوکره ګڼل کېده، خو کله چې زه له هغې سره له میخانې ووتم او د طبس په واټونو کې ورسره روان وم نو خجالت نه وم، ځکه چې مریت ډېره ښکلې او مودبه وه.

زه له مریت سره د نوي معبد پر لور روان شوم او د معبد په مخکې په هغه ځای کې کېناستم، چې د فرعون نژدې کسانو ته جوړ شوی

مریت خپل لاس زما پر اوږه کېښود او د خلکو د ټولي په سیل بوخته شوه.

زه ګمان کوم، پر دې ورځ د طبس ټول اوسېدونکي د معبد په مخکې او په هغو واټونو کې راټول شوي ول، چې فرعون پرې تېرېده او د قوچ واټ په دواړو غاړو کې (له دې چې د واټ دواړو غاړو ته داسې مجسمې جوړې وې، چې سرونه یې د قوچ ول، دغه واټ ته یې قوچ وایه) له ګلانو ډک لوښي ایښي ول، چې فرعون راشي، خلک پرې ګلان وشیندي.

له دې وروسته، چې زه او مریت پخپل ځای کې کېناستو، متوجه شوم، چې حالات غیر عادي دي او کله چې څېر شوم وپوهېدم، چې دغه غیر عادي حالت له دې امله دی چې خلک غلي دي.

کله چې په یوې سیمې کې بېوزله خلک راټولېږي، له دې کبله چې ټول خبرې کوي او خاندي یو ډول زوږ او رېدل کېږي، خو پر دې ورځ هلته چا خبرې نه کولې.

داسې چوپتیا واکمنه وه، چې انسان یې خپه کاوه او یوازې د کارغانو او بازانو اوزاونه اورېدل کېدل چې په اسمان کې الوتل، ځکه چې کارغان او بازان د مړیو په خوراک داسې ماړه شوي ول، چې نه یې غوښتل له دې ځایه ولاړ شي.

کله چې فرعون پر روان تخت راغی، ما ولیدل، چې یو شمېر تورپوستي، عسکر یې

شاته روان دي، چې مخونه یې په رنګونو رنګ کړي ول.

پر دغې ورځ د فرعون د بدرګې لپاره د تورپوستو عسکرو حرکت لویه تېروتنه وه، ځکه په نندارچیانو کې داسې څوک نه و، چې د تورپوستو عسکرو له لوري یې د طبس په لوټمار او وژنو کې تاوان نه وي لیدلی.

لا هم د ښځو په مخونو د اوښکو لارې ښکارېدې، د خلکو ټپونه نه و رغېدلي او ډېرو خلکو کورونه نه درلودل ځکه چې تورپوستو ور سوځولي ول.

فرعون پر دې ورځ دوه پوړیز تاج پر سرایښی و او له دود سره سم یې لاسونه پر ټټر ایښي ول، (فرعونیانو به خپل لاسونه د چلیپا په ډول پر ټټر ایښودل) په یوه لاس کې یې لنډه لکړه او په بل کې یې متروکه نیولې وه. فرعون د یوې مجسمې په شان و، چې نه ښوري، دا دود دی، په رسمي وختونو کې چې فرعون د خلکو په منځ کې تېرېږي باید ونه ښوري.

کله چې عسکرو فرعون ولید نېزې یې اوچتې کړې او د خوشحالۍ نارې یې وکړې.

درباریانو او شتمنو کسانو هم د عسکرو په شان د خوشحالۍ نارې وهلې، خو دغه نارې د خلکو د چوپتیا په منځ کې د مچانو بنګېدا ته ورته وې، چې د ژمي په یوې ورځې کې بنګېږي.

هغو کسانو چې د خوشحالۍ نارې یې وهلې کله چې متوجه شول خلکو خپله چوپتیا وساتله، وشرمېدل او خولې یې پټې کړې.

په دې وخت کې د مصر فرعون اخناتون د پخوانیو دودونو پر خلاف، چې باید فرعون د خلکو له منځه د یوې مجسمې په شان حرکت وکړي، لاسونه یې له ټټره لېرې کړل، لکړه او متروکه یې وښوروله چې خلکو ته سلامونه وکړي.

ناڅاپه خلک ولړزېدل او د هغوی له ټولي د توپان د غږ په شان غږ پورته شو چې ویل یې (مونږ آمون غواړو) ...(آمون زمونږ خدای دی) ...(آمون د خدایانو پاچادی)

د خلکو شور او زوږ دومره لوړ و، چې ته وا د طبس ټولې ډبرې او خښتې نارې وهي. آمون غواړو .... اې جعلي فرعونه .... ولې دې زمونږ خدای نسکور کړ؟

دغو غږونو د فرعون د روان تخت لېږدونکي داسې وډارول، چې ودرېدل، خو افسرانو بېرته حرکت ته اړ کړل او روان تخت د نوي معبد د دروازې پر لور روان شو.

په دې وخت کې خلکو د زمریانو په څېر زوروري نارې وهلې او روان شول د فرعون د

روان تخت مخه یې ونیوله.

له دې وروسته حالات داسې ګډ وډ شول چې معلومه نه وه څوک په کوم ځای کې جنګېږي؟

تر کومه ځایه چې ستر ګو کار کاوه او د لیدو وس و، معلومېدل چې د خلکو تورپوستو او سپین پوستو ترمنځ سخت جنګ روان و، چې ډېر بې رحمانه و.

عسکرو په تورو او نېزو باندې نارینه او ښځې وژلې، خلکو په ډبرو او چاقوګانو جنګ کاوه، چې تورپوستي او سپین پوستي عسکر به لاس ته ورغی ځای پر ځای به یې وواژه.

خو له دې ټولو سره هېڅ د فرعون پر لور ډبره نه ګوزاروله، فرعون د خپلو نیکونو په شان له لمره پیدا شوی و، چا جرئت نه کاوه چې د فرعون پر لور حتی یوه ډبره هم وولي.

ما لیدل چې پخپل روان تخت کې پاڅېد، خپل مقام او شخصیت ته له پامه پرته یې عسکرو ته وویل صبر وکړئ او خلک مه وژنئ! خو عسکر په جنګ او وینې بهیدا کې داسې بوخت ول، چې د فرعون غږ یې نه اورېده.

فرعون چې پوهېده هېڅ ډول خطر یې نه ګوابښي او څوک یې د وژلو هڅه نه کوي نو له وېرې پرته یې د خلکو او عسکرو ترمنځ د جنګ سیل کاوه.

د (آمون غواړو) غږ یوه شېبه هم نه کرارېده، خلک داسې غوسه ول چې د فرعون د نژدې کسانو او ملګرو د کمپ پر لور یعنې د هغه ځای پر لور چې موږ ناست و، را روان شول او غوښتل یې موږ ووژني.

کله چې هورم هب ولیدل، درباریان، چې ډېرې ښځې هم پکې وې په خطر کې دي نو امر یې وکړ، چې نغارې وغږوي.

کله چې نغارې ووهل شوې په فرعي کوڅو کې ولاړو جنګي ګاډیو حرکت وکړ.

هورم هب د احتیاط لپاره جنګي ګاډي په کوڅو کې درولې وې، چې خلک یې په کتلو سره ونه پارېږي، دغه راز که کومه بلوا وشي ډېر ژر به امنیت ټینګ شي.

د جنګي ګاډیو په مخکې د جنګ په ډګر کې غشي او لورونه لګوي، خو پر دې ورځ دغو ګاډیو غشي او لورونه، نه درلودل او هورم هب ویلي و، هغه دې پورته کړي چې خلک ونه وژل شي.

ګاډي په چټک او منظم حرکت سره راغلې، زموږ د کېناستو ځای یې کلابند کړ او

ځینې د فرعون د روان تخت په شاوخوا کې ودرېدې. خلکو هڅه کوله چې مقاومت وکړي خو پوه شول چې د ګاډیو تراړابو لاندې به وځپل شي، ځکه یې لاره پرانستله او د فرعون روان تخت حرکت وکړ.

فرعون معبد ته داخل نه شو، بلکې له معبده تېر او ان نیل ته ورسېد، له روان تخته کوز او په سلطنتي بېړۍ کې کېناست، څو جنګي بېړیو بدرګه کاوه او ولاړ.

کله چې فرعون ونه کړای شو، د نوي خدای معبد ته ولاړ شي او په بېړۍ کې کېناست او ورک شو، نو خلکو د خوشحالۍ ناري وکړې عامو خلکو د شتمنو په کورونو بریدونه وکړل، د هغوی شتمنۍ یې لوټ کړې او پر ښکلو ښځو یې تېری وکړل.

له همدې کبله هورم هب مجبوره شو چې یو ځل بیا د طبس په واټونو کې حرکت وکړي، په هرې محلې کې یو جلاد وټاکي، هر څوک به یې چې د لوټمارۍ او قتل په حال کې لیده وژل به یې.

مازیګر مهال د جلادانو له لوري د سرونو د پرې کولو په بدل کې په طبس کې امنیت ټینګ شو.

د لمر ترلوېدو مخکې کارغان، بازان او مردار خواره راکوز شول چې په واټونو په تېره بیا د قوچ په واټ او د نوي معبد په مخکې پراته مړي وخوري.

د مصر فرعون اخناتون تر هغې ورځې پورې پخپلو سترګو د ملت مقاومت او وینې بهیدل نه و لیدلي خو کله چې یې دغه حالت ولیدنو د طبس پر خلکو سخت غوسه شو چې د نوي خدای او هغه پر وړاندې یې مقاومت کړی و.

ده امر وکړ چې هر څوک که د آمون خدای نوم واخلي او یا د آمون خدای انځور د خپل کور پر لوښو انځور کړي، نو له طبسه به جلا وطن شي او کانونو ته به د اجباري کار لپاره ولېږل شي، خو خلک غلي ول او هېچا د بل کس شیطاني ونه کړه.

پر بله ورځ فرعون پوښتنه وکړه، چې د آمون څو تنه پیروان جلا وطن شول؟

مامورینو وویل څوک نه دي جلاوطن شوي، ځکه چې هېچا د آمون د خدای نوم نه دی اخیستی.

فرعون وویل نو هغه کسان چې پرون یې ناري وهلې چې آمون غواړو څوک دي؟ آیا هغوی نه نیسئ او کانونه ته یې نه لېږئ؟

مامورینو وویل پرون د خلکو شمېر زیات و، موږ ونه توانېدو چې ټول ویېژنو او نه

پوهېږو چې څوک د جعلي خدای پلويان دي.

دا وخت فرعون له ډېرې غوصې يو حکم وکړ، چې زه يې ډېر خپه کړم.

هغه ووېل که څوک يو کس په ګوته کړي چې د آمون عبادت کوي، نو د آمون پرست شتمني، د هغه کېږي.

له دې سره سره شريف کسان چمتو نه شول چې د آمون پيروان معرفي کړي، خو اپوته يو شمېر غلو او ډاکوانو ځينې کسان په دې نوم چې د آمون عبادت کوي حکومت ته معرفي کړل او مامورينو هم بې له ځنډه د شاقه کارونو لپاره کانونو ته واستول او غلو او ډاکوانو د دغو کسانو شتمني خپله کړه.

په داسې حال کې چې په طبس کې دغه ظلم او ناروا روانه وه، د نوي معبد له پېښې وروسته پر درېيمه شپه، هغه وخت چې زه پخپل کور کې ويده وم، د فرعون له ماڼۍ يې ماته يو روان تخت را واستاوه او زه يې احضار کړم. کله چې زه ماڼۍ ته ننوتم هغه ناروغي چې کله نا کله به فرعون ورسره مخامخ شو، بيا پرې راغلې وه، او دارالحيات يو شمېر ډاکټران هم هلته موجود ول.

معلومه شوه چې ډاکټران د فرعون له معالجې وېرېدل او زه يې د دې لپاره ورغوښتی وم چې له دوی سره په معالجه کې شريک شم.

دغه راز د فرعون د درملنې مسوليت وېشل شي او پردې سربېره زه درباري کوپړۍ سوری کوونکی وم او زما شتون يې اړين باله.

زه فرعون ته نژدې شوم، د هغه نبض مې وکوت ومې ليدل چې نبض يې کمزوری دی او د اختاتون لاسونه او پښې سړې دي.

بيا مې د هغه د سترګو بانه پورته کړل، ومې ليدل چې سترګې يې ژوندۍ او ځلانده دي او د هغو کسانو په شان نه دي چې ځنکدن يې وي.

ډاکټرانو ته مې ووېل بايد د فرعون لړ وينه وبهول شي چې په هوش راشي.

د دارالحيات ډاکټرانو ووېل، موږ دغه معالجه نه شو کولای، ځکه چې فرعون ډنګر دی، وينه يې کمه ده او که يې وينه وبهول شي مړ به شي.

ما ووېل که دغه بېخودي دوام وکړي فرعون به مړ شي، ځکه چې ورو ورو يې نبض کمزوری کېږي.

خو بايد د هغه وينه داسې وبهول شي، چې کله هغه وينې شي پوه نه شي چې وينه يې

بهول شوې ده.

د دارالحیات ډاکټرانو وویل، آیاد دغه کار مسولیت منلای شې؟ ومې ویل، هو منم یې! ځکه چې باوري یم ددې بې هوشۍ دوام خطرناک دی.

ډاکټرانو وویل، هرڅه چې غواړې ترسره یې کړه.

ما د طبابت د وسایلو له صندوقه خپله ستن را وایسته او په اور کې مې کېښوده، وروسته مې له اوره را وایستله چې سره شوه نو هغه مې د فرعون په رګونو کې دننه کړه او وینو یې داري وکړې.

 څو شېبې وروسته فرعون خوله خلاصه کړه او ژوره ساه یې واخیستله، ما ډېر ژر د وینې مخه ونیوله، د فرعون لاس مې وتاړه او هغه لوښی مې پټ کړ چې وینه پکې وه.

فرعون بېخي په هوش کې راغی، پاڅېد او کېناست.

د دارالحیات ډاکټران چې یې ولیدل ور په زړه شول چې دارالحیات د آمون په معبد کې دی او د هغې کرکې له امله چې له آمونه یې کوله امر یې وکړ، چې دغه ډاکټران له مانۍ وباسي.

له دې وروسته چې دغه ډاکټران ولاړل ویې ویل، سینوهه! ولاړ شه او زما بېړیو ته خبر ورکړه، چې د حرکت لپاره چمتو شي او پارو وهونکو ته خبر ورکړئ چې زه د سفر نیت لرم.

له هغه مې پوښتنه وکړه، چیرته ځئ؟

ویې ویل، زه نور په دې ښار کې ژوند نه کوم، له خپلو بېړیو سره حرکت کوم او روانیږم، تر هغه پورې به ځم چې داسې ځای ته ورسېږم چې د نوي ښار د جوړولو لپاره مناسب وي

هلته به یو نوی ښار جوړ کړم، پکې مېشت به شم او بیا به طبس ته ګام هم را وانخلم، ځکه چې ددې ښار اوسېدونکي د باطل او جعلي خدای آمون پیروان دي

زه به د آتون پر وړاندې د هغوی چلند هېڅکله هېر نه کړم زه باوري یم چې په هېڅ پړاو کې زما نیکونه د طبس د خلکو له لوري داسې بې عزته شوي نه ول.

له همدې لامله باید ولاړ شې او هورم هب ته ووایې، چې زه همدا نن شپه له طبسه په بېړیو کې ځم او پر هرچا چې ګران وم له ماسره به ولاړ شي.

د مصر د پوځ قوماندان هورم هب چې د فرعون د حرکت وسایل یې برابرول، ما ته وویل سینوهه! همداسې ښه ده، ځکه چې هم د طبس خلک خپلې هیلې ته رسېږي او هغه څه

ترلاسه کوي چې غواړي یې او هم فرعون له دې پرته چې جګړه وشي هغه څه ترسره کوي چې غواړي یې.
اخناتون له طبسه وتلو ته دومره بېړه درلوده، چې دومره صبر یې هم ونه کړ، چې سلطنتي کورنۍ سفرته چمتو شي.
ویې ویل زه ځم او هغوی دې پخپلو بېړیو کې راسپاره شي او په ما پسې دې راشي.
هورم هب یو شمېر جنګي بېړیو ته دنده وسپارله، چې د فرعون د بدرګې لپاره له هغه سره حرکت وکړي.
زه هم له فرعون سره ولاړم او په باطن کې له دې سفر سره موافق هم وم، ځکه پوهېدم چې د آب و هوا بدلون د هغه لپاره ګټه لري.
د شمال پر خوا مو د نیل سیند له بهیر سره سم حرکت وکړ، طبس ته مو شاه کړه او ورو ورو ترې لېرې شو.
د فرعون د بېړۍ ارغواني بادبانونه یې پورته کړل، چې حرکت نور هم زیات کړي.
له لنډې مودې وروسته د طبس سلطنتي ماڼۍ، دېوالونه، ډبریني ستنې (هدف هغه ستنې دي چې په عمودي توګه یې په ځمکه کې ښخې کړې دي او د هغو له سیوري یې د ورځې حساب کاوه چې کوم وخت دی. ژباړن) او درې ګوني غرونه له نظره ورک شول.
خو د مصر د پلازمېنې یادګار له موږ سره و، ځکه چې کله به د نیل تمساح ګانو په اوبو کې حرکت کاوه، نو د هغوی اوږدې او ځواکمنې لکۍ به ښورېدلې.
دوی داسې ښکارېدل چې ګڼي هغه مړي خوري چې نیل یې له ځان سره له طبسه راوړي.
ځینې مړي د اوبو پر سر ګرځېدل او بوی یې کړی و، چې دغه ناوړه بوی ټوله فضا نیولې وه.
په کشتۍ کې یې د فرعون په کوټه کې سپانده او عود سوځول چې دغه خراب بوی ورک کړي.
لس ورځې وروسته هغې سیمې ته ورسېدو چې نور پکې مړي نه ښکارېدل، فرعون له خپلې کوټې راوت، د بېړۍ په غولي کې ودرېد او د نیل سواحلو ته یې کتل.
د نیل سیند په دواړه غاړو کې ځمکه ژېړ رنګه وه، کلیوال د فصلونو په ټولولو بوخت ول، کلیو ته یې وړل او مالونه یې د نیل غاړې ته راوستل چې اوبه وڅښي.
شپنو به خپلې شپېلۍ وهلې.

کله چې خلکو د فرعون بېړۍ وليده د خرما د ونوله څانګو سره له خپلو کليو د نيل د غاړې لور ته په منډه را روان شول او څانګې يې ښورولې، نارې يې وهلې او خوشحالۍ يې کولې.

فرعون ددې خلکو په ليدو تاند او خوشحال شو، خندل به يې او کله به يې امر وکړ چې کشتۍ ودروي.

ساحل ته به ولاړ او له کليوالو سره به يې خبرې کولې د ښځو او ماشومانو پر لور به يې لاسونه ښورول.

کله به د نيل ساحل پر غاړه پسونه فرعون ته ورنژدې شول او د هغه لمنه به يې بويوله او يا به يې هغه وڅاټه، فرعون به د ماشومانو په څېر خوشحال شو او خندل به يې.

زه د اخناتون د روحيې په بدلون خوشاله شوم، خو په يوه کار يې خپه وم، هغه دا چې ويل به يې، د هغه خدای لمر دی.

دی به د بېړۍ پر غولي کېناست، بدن به يې د خدای په مخکې لوڅ کړ، خو دغه خدای په دوبي کې ډېر خطرناک کېده او انسان به يې له ډېرې ګرمۍ ناروغه کړ.

فرعون هم له دې امله چې ډېر تر لمر لاندې درېده تبه به يې شوه، سترګې به يې ځلېدې، خو د شپې مهال به يې حالت ښه و.

دی به د شپې هم دبېړۍ پر غولي ناست و، ستورو ته به يې کتل او ماته يې ويل، زه به د پخوانی خدای ټولې ځمکې پر هغو کرندګرو خرڅې کړم، چې تر اوسه پورې يې ځمکې نه درلودې او په لړو يې ګوزاره کوله.

دوی به بيا وکولای شي چې ډېر غنم توليد کړي او ډېر پسونه او غواګانې وروزي.

د ومره ډوډۍ وخوري چې بچيان يې چاغ او ښځې يې ښکلې شي او بيا له يوه بل سره کينه ونه لري.

زما خدای اتون به د بېوزله او بېدای تر منځ توپير له منځه يوسي او داسې کار به وکړي، چې نور مريان مجبور نه وي، چې د ډوډۍ خوړلو لپاره ټول عمر د خپل بادار لپاره زيار وګالي.

سينوهه! زه له طبسه ځکه راوتلی يم، چې پوهېدم طبس هغه ښار دی چې د بېوزلو او شتمنو توپير پکې ډېر زيات دی.

ډېر کسان چې بېوزله دي، بايد ټول عمر د مريانو او يا نوکرانو په توګه کار وکړي، تل

به بېوزلي وږي وي او هر څومره زيار چې ګالي ټول به د شتمنو جيب ته ځي.

زه له طبسه ځکه کرکه کوم، چې او سېدونکي يې د پخواني خدای عبادت کوي، ځکه چې پخوانی دروا غجن خدای د بېوزلو بدبختي او شتمنو لا شتمني غوښتله.

خپل ټول اصول يې داسې برابر کړي ول، چې شتمن ورځ پر ورځ شتمن کېدل او بېوزلي به نور هم بېوزلي شول او په لوږې او بدبختۍ کې به پاتې شول.

زه پوهېږم چې د طبس له خلکو باید دا تمه ونه کړو چې داسې ژر له پخواني خدایه لاس واخلي، ځکه چې هغوی خوندونه ،لتي. عیاشي درک کړې او دا ټول پر پخواني خدای د عقيدې له برکته دي.

زما هیله له هلکانو او ماشومانو څخه ده، ځکه یوازې دوی دي، چې په آتون به عقیده ولری او د مصر د ملت راتلونکی پسرلی به رامنځته کړي.

کله چې ماشومانو او ځوانانو پر آتون عقېده وکړه، بیا به چمتو نه شي چې بېرته آمون ته ګروهمن شي او له دې وروسته چې دغه نسل لوی شو له آتون پرته به بل خدای نه پېژني.

ددې لپاره چې زه خلک، آتون ته ګروهمن کړم ، نیت لرم چې پخواني ښوونکي له ښوونځيو وباسم او د هغوی پر ځای نوي ښوونکي وټاکم.

دغه راز مې هوډ کړی، چې د مصر خط بدل کړم، ځکه چې د بېوزلو او شتمنو تر منځ د توپیر، یو لامل همدا مصري خط دی.

ما فکر کړی چې د لیکلو لپاره ضروري نه ده، چې موږ د هر شي بڼه انځور کړو، بلکې په بله بڼه هر هغه شی لیکلی شو چې غواړو يې.

د مصر ننی خط ډېر سخت دی او بېوزلي نه شي کولای ډېر کلونه ددې خط د زده کولو لپاره زده کړې وکړي.

یوازې شتمن کسان يې زده کولای شي، له همدې امله شتمن خلک لیک لوست لري او تر بېوزلو غوره دي.

خو کله چې خط آسانه شي نو ټول به لیک لوست کولای شي او شتمن به لیک پر بېوزلو د برلاسي په توګه نه کاروي.

زه د فرعون له دې خبرې وویرېدم ، ځکه پوهېدم چې نوی خط څه ډول دی او پوهېدم چې دغه خط اسانه، خو ډېر بدرنګه دی.

ټول کاهنین به ترې کرکه کوي، نو فرعون ته مې وویل ،دغه کار مه کوه او د مصر خط

مه بدلوه.

فرعون وويل ولې؟

ومې ويل ددې لپاره چې د مصري خدايانو ټول قوانين پر همدې خط ليکل شوي او دغه خط سپيڅلی دی.

فرعون وويل کله چې نوی خط هم دود شي او خلک پرې د خدايانو قوانين وليکي، هغه به هم سپيڅلی شي.

ومې ويل د مصري خط بدلون يو بل تاوان هم لري.

فرعون وپوښتل بل کوم تاوان؟ ومې ويل که د خط زده کول آسانه شي او هر څوک وکولای شي چې زده يې کړي نو بيا به څوک پر خپلو لاسونو کارنه کوي.

په کروندو کې به کرنه کېږي، کانونه به نه استخراجېږي او بيا به دغه آسانه خط د هغه ملت لپاره څه ګټه ولري چې له لوږې مري؟

د فرعون سترګې ددې خبرې په اورېدو سره وبرېښېدې او ويې ويل، سينوهه! زه له طبسه ددې لپاره راووتم چې غوښتل مې د پخواني خدای د دودونو له پلويانو وتښتم، خو اوس ګورم چې د پخواني خدای د زړو او ناچلو عقيدو يو پلوی، له ما سره ملګری او زما په څنګ کې دی.

سينوهه! ته حقيقت نه وينې، خو زه داسې بينا يم، چې حقيقت په راتلونکو کلونو کې داسې ګورم، لکه چې په رڼو اوبو کې يو شی پروت وي.

کله چې ټول خلک ليک او لوست وکړای شي، نو ټول به پخپلو لاسونو کار وکړي او د ورونو په شان به د کرنې، مالدارۍ، د کانونو د ايستلو، صنعت او سوداګرۍ کارونه سره وويشي.

په هغې دنيا کې، چې زما خدای آتون به يې رامنځته کړي، کينه به نه وي او په هغې نړۍ کې به څوک د بل چاله لاسه ږوږۍ وانه خلي، بلکې هر څوک به خپله ږوږۍ په بل چا وويشي.

په دې دنيا کې چې هر څوک به لوستي او پوه وي، د شتمن او بېوزلي تر منځ به توپير ختم شي.

نه به بېوزله وي او نه شتمن، ځکه څوک به نه شي کولای، چې د خپلې برلاسۍ په زور بل څوک کار او نوکرۍ ته اړباسي.

هېڅوک به چاته ونه وایي چې اې ګنده سریانیه ورک شه ! یا اې ناولیه تورپوستیه ورک شه.

هر څوک به یو بل ته د ورور پر سترګه ګوري او له دې کبله چې بېوزله او شتمن نه وي، نو کینه به هم نه وي او جنګ به نه رامنځته کېږي.

فرعون د دې خبرو په وخت کې داسې هیجان درلود چې سرې یې ډاراوه.

زه پوه شوم چې هغه بیا په میرګي مرض اخته شوی او هغه مې د بېړې په غولي کې پر پوزي څملاوه او مسکن درمل مې ورکړل چې ارام شي.

خوله دې وروسته چې فرعون ویده او کرار شو، متوجه شوم چې که څه هم اخناتون، کله لېونی کېږي، خو د هغه لېونتوب ساري دی او زه هغه مهال د نوموړي خبرو اغېزمن کړم.

ما ډېر ملتونه لیدلي او پوه شوم، چې ټول ملتونه سره یو شان دي، ما ډېر ښارونه هم لیدلي ول او په دې هم پوهېدم چې ټول ښارونه سره ورته دي او د دېوالونو لنډوالی او اوږدوالی او یا د کورنو رنګونه د ښارونو د اختلاف لامل نه وي.

زه ډاکټر یم او د یوه ډاکټر له نظره د یوه مصري او یو سریاني او یا یوه تورپوستي او سپین پوستي ناروغۍ توپیر نه لري.

دوی یو پر بل غوره نه دي، د ډاکټر دنده دا ده، چې درې واړه معالجه کړي.

زه د خپلې پوهې له کبله د فرعون خبرو اغېزمن کړم، له ځان سره مې وویل، که څه هم دغه سړی لیونی دی او لیونتوب یې نورو ته هم غځېږي، خو کله چې ساري لېونتوب چاته غځېږي خوندور وي.

پخپل زړه کې مې احساس کاوه، چې فرعو ن یو ستر حقیقت ته اشاره کوي او که څه هم د هغه حقیقت په ځمکنۍ نړۍ کې نه اجرا کېږي او یوازې په لوېدیزه نړۍ کې هغه اجرا کېدای شي. (په مصر کې لوېدیزه نړۍ د مړیو نړۍ او هم د بیا ژوندي کېدا او تلپاتې ژوند دنیا وه. ژباړن) خو باید داخبره تاید کړم چې که انسانان وکړای شي، داسې ژوند وکړي چې د بېوزلو او بډایانو توپیر به ختم شي او ابدي نېکمرغۍ ته به ورسېږي.

زه پوهېدم چې له فرعون پرته بل هېچا دغه ډول ستر حقیقت نه و ویلی او له هغه وروسته به یې هم څوک ونه وایي.

زه پر دې هم پوهېدم چې د بېوزلو جهالت د فرعون دغه حقیقت نه شي منلای، ډېرې وېنې به وبهېږي (همغه ډول چې په طبس کې د وینو ویالې روانې شوې) او ښایي د فرعون

لوړ او پرتمین حکومت له منځه ولاړ شي.
خو هغه څه چې فرعون یې وایي داسې شی دی، چې چا له هغه مخکې ورته نغوته نه ده کړې او له هغه وروسته به هم ونه ویل شي. که څوک یې ووایی د اخناتون نه تقلید به یې کړی وي.
له هغه وروسته مې د اسمان ستورو ته کتل او له ځان سره مې وویل، ته هغه سړی یې چې نه پوهېږې له کوم ځایه راغلی یې او مور و پلار دې څوک دي؟
له دې وروسته چې لوی شوې وادې ورېدل، یوې ښځې او مېړه یې، چې سړی د طبس د بېوزلو ډاکټر و، ته په زوی والي ومنلې.
په سیند کې یې ستا کجاوه پیدا کړه، ته یې لوی کړې او تر اوسه هم ته د طبس د بېوزلو ډاکټر وې.
له هغو دې د سرو او سپینو تمه هم نه کوله او هغوی دې معالجه کول، بیا نو که د نوي فرعون د غه حقیقت ترقي راولي او د شتمن او بډای تر منځ توپیر له منځه وړي، نو تا ته یې څه تاوان رسېږي؟
په دې ډول ولې د فرعون د نوي خدای د حقیقت پلویتوب نه کوې او اخناتون نه هڅوې چې دغه حقیقت په مصر کې اجرا کړي.
سینوهه! ته په دې پوهېږې، هغه کار چې فرعون یې غواړي تر سره یې کړي، د نړۍ په هیڅ یوه هېواد کې عملي کېدای نه شي او په هیڅ ځای کې د بېوزلو او شتمنو توپیر او د مریي او بادار توپیر نه شي ختمېدای.
خو له دې کبله چې مصر ډېر بډای هېواد او ډېرې حاصلخېزې ځمکې لري، ښایي دلته دغه حقیقت پلی شي.
کله چې دغه حقیقت دلته پلی شو بې له شکه به له دې ځایه ټولې نړۍ ته وغځېږي.
په ټولې نړۍ کې به د بېوزلو شتمنو مریانو او بېوزلو توپیر ختم شي او بیا به په ټولې دنیا کې یو نوی نړیوال کال پیل شي.
*(مصریان لومړني کسان دي چې یوه شول ځمکه د لمر کېر چاپېره را تاوېږي او په هرو ۲۷ زرو کلونو کې یو ځل د یوه خاص ستوري پر وړاندې درېږي او دغه اوو ویشت زره کلن پړاو یې نړیوال کال باله. ژباړن)*
زه پوه شوم چې انسان ته تر دې ښه فرصت هېڅکله نه دی ور په برخه شوی چې وکړای

شي ځان د تل لپاره نیکمرغه کړي، ځکه چې تر او سه پورې یو فرعون هم داسې نه و، چې
ووایي د بېوزلو، شتمنو، نوکراو بادار تر منځ توپیر نشته.

ښایي په راتلونکي کې داسې مریان او نوکران پیدا شي، چې هڅه وکړي د شتمنو او
بېوزلو توپیر ختم کړي، خو ځوک به د هغوی خبرو ته غوږ کېښږدي او که غوږ ورته و هم
نیسي نو د هغوی خبره به عملي نه شي، ځکه چې شتمن به د مزدورانو او مریيانو ځواک
ختم کړي.

خو کله چې د مصر فرعون اخناتون وایي چې باید د بېوزلي او شتمن تر منځ توپیر نه
وي او له دې کبله چې خبره یې اغېزه لري قدرت، سره او سپین ورسره دي، نو ممکنه ده،
چې خپله خبره عملي کړي.

فرعون چې وایي د دغو پرګنو تر منځ دې توپیر ختم شي، باید د بشر د نېکمرغۍ لپاره
دغه یوازېنۍ فرصت له لاسه ورنه کړل شي، ځکه چې ناشونې ده، له دې وروسته دې په
مصر، بابل او سوریه کې داسې پاچا پیدا شي، چې د بېوزله او شتمن د توپیر د ختمولو
غوښتونکی وي.

زه د بېړۍ په خنګ کې ودرېدم او ستورو ته مې کتل، په دې فکرونو کې وم، چې د
نیل ساحل د پخو شویو غنمو بوی مې احساس کړ.

ناڅاپه مې خپل مریي کاپتا ته پام شو، چې اوس په طبس کې د یوې میخانې خاوند او
شتمن کس دی، فکر مې وکړ چې که دلته وای او د فرعون خبرې یې اورېدلې وای څه به
یې ویل؟

له دې سره سره چې کاپتا نه و، خو زه پوهېدم چې هغه به د فرعون د خبرو له اورېدو
وروسته څه ویلي ول.

هغه به ویل سینوهه! فرضاً که فرعون وکړای شول چې د شتمن او بېوزلي توپیر ختم
کړي، نو ټول خلک به باسواده شي.

نور به نه مریي وي، نه بادار، نه به ټیکه دار وي، نه کارګر او ټول به لکه ورونه
کروندې کري، صنعت او تجارت به وکړي.

له هغه وروسته به د بشر ټولې بد بختۍ ختمې شي او بیا به څوک د بل د خواریو له
لارې شتمن نه شي.

پر داسې ورځ به بیا هم ځینې کسان هوښیار او ځینو احمقان وي..... ځینې به چالاک او

ځینې نور به سادګان وي.

هغه کسان چې هوښیار او چالاک وي، د احمقانو او سادګانو جیبونه به تش کړي او یا به په بېلابېلو چلونو او کیسو سره هغوی اړکړي چې د دوی لپاره کار وکړي، تل به همداسې و او همداسې به وي.

ځکه کله چې انسان پوه شي چې بل غولولای شي امکان نه لري چې ترې تېر شي.

دغه راز هغه کس چې نورو ته تاوان رسولای شي هغه به تاوان او ګوزار ورکوي او په انسانانو کې هغه کسان چې د تاوان رسولو ځورولو او غولولو وس نه لري هغه مړي دي.

همدا ستا فرعون چې غواړي د شتمن او بېوزلي تو پیر ختم کړي وګوره له خلکو سره یې څه کړي دي؟

هغه حقیقت چې ستا فرعون او د هغه خدای یې پلویتوب کوي، یوازې څو ډوله مرغانو او حیواناتو لکه کارغانو، مردار خورو او تمساحګانو ترې استفاده کړې او نورو تولو ته یې تاوان رسېدلی دی.

خو له دې سره سره پر دې هم پوهېدم چې که کاپتا وای نو نیوکې به یې کولې.

بله ورځ چې کله فرعون د خپل خدای او د هغه د حقیقت په هکله خبرې کولې، ما یې له نظر یې سره موافقه کوله او هغه به خوشحاله شو.

له طبسه د راوتلو پر پینځلسمه ورځ د فرعون بېړۍ هغه ټاټوبي ته ورسېده چې په هېڅ خدای پورې اړونده نه وه.

دغه ځمکه د نیل په څنډو کې اواره ځمکه وه او لږ لېرې ترې څو غونډۍ وې چې ونې یې نه درلودې

څو شپنو هلته خپل پسونه پوول.

فرعون له بېړۍ څخه راکوز شو او دغه ځمکې یې د آتون په ولکه کې ورکړې ویې ویل، دلته به یو ښار جوړ کړم او نوم به یې د(آتون د افق ښار) کېږدم.

*(په ځینو اروپایي متنونو کې له دې کبله چې ځینو یوناني مورخانو آتون خدای په آتوم یاد کړ، نو دوی هم آتون ته د آتوم کلیمه کارولې ده. ژباړن)*

د فرعون له بېړۍ وروسته په هغه پسې رواني نورې بېړۍ هم ساحل ته ورسېدې او پکې ناست کسان پلې شول.

فرعون خپل معماران راوبلل او ویې ویل دلته باید یو ښار جوړ شي او هر هغه کس ته

یې د کور لپاره یوه یوه ټوټه ځمکه ورکړه چې له ده سره ملګري ول.
په دې ښار کې د اخناتون د نقشې پر اساس باید له شماله جنوب ته پېنځه واټونه او پېنځه نور له ختیځه لوديځ ته جوړ شي.
په هره ټوټه ځمکه کې یو کور جوړېده چې له ګاونډي سره یې تو پیر نه درلود، د فرعون د امر پر اساس د هېڅ، یوه کور لوړوالی باید تر نورو کورونو زیات نه وي او په هر کور کې باید یو شان کوټې او پخلنځي جوړ شي.
فرعون غوښتل چې په دې ښار کې ټول له نورو سره ځان یو شان وبولي او د آتون له ښاره خوشحاله وي او شکر وکړي، چې دغه مساوات ورته رامنځته شوي دي.
کله چې ښار جوړېده، ما لیدل چې هېڅ یوه کس، چې کور یې جوړاوه له آتونه مننه نه کوله او اپوته یې هغه او فرعون ته ښېراوې کولې، چې ولې فرعون له طبسه لېرې کړي او داسې ځای ته یې راوستي دي چې نه پکې ابادي شته او نه میخانه.
یوه ښځه هم له هغه کوره خوشحال نه و، چې د ښځې او د بچیانو د ژوند کولو لپاره یې کور جوړاوه، ځکه چې هرې ښځې غوښتل د خپل کور په مخکې اوربل کړي او ډوډۍ پخه کړي، خو د نوي ښار په کورونو کې یې نغري په کورونو کې دننه جوړ کړي ول.
هغوی په طبس کې په هغو کوټو کې ویده کېدل، چې ځمکه یې په کلکې ختې کاګل شوې وه، خو کله چې یې ولیدل د نویو کورنو غولي یې په خښتو فرش شوي ناخوښه و.
دوی ویل خښتې له ډېرو موښلو وروسته په غبار او ګرد بدلېږي او ستونزې پېښوي.
دغه راز د دې سیمې له متې ختې څخه هم په تنګ ول او ویل به یې چې دغه خته له دې وروسته چې پخه شي او لوښي ترې جوړ کړو درز کوي او ماتېږي.
د دې ښار اوسېدونکو غوښتل، د خپلو کورنو په مخکې ترکاري او سبزیانې وکري، خو فرعون د سبزیانو کرل بند کړي ول او هر کور ته یې یوه ټوټه ځمکه له ښاره بهر ورکړې وه، چې هلته سبزیانې وکري.
د ښار اوسېدونکو شکایت کاوه، چې د دوی ځمکې له نیل سینده لېرې دي او کروندو ته له سینده د اوبو راوړل سخت کار دی.
ښځو د نوي ښار د سړکونو په منځ کې طنابونه تړلي ول، چې کالي پر یې وچ کړي خو فرعون دغه کار هم منع کړی و.
فرعون ویلي ول، چې د نوي ښار اوسېدونکي، باید په کورونو کې پسونه او وزې ونه

ساتي، خو ښځو دې خبرو ته توجه نه کوله او په نويو کورونو کې يې پسونه او وزې ساتلې.

که څه هم طبس يې هېر نه کړ خو ورو ورو خلک له نوي ښار سره روږدي شول او زه متوجه شوم چې که هغوی ته وويل شي چې اوس دې طبس ته ولاړ شي نو ستنيدا ته نه چمتو کېدل.

بيا د نيل سين د مستېدا وخت راغی، د مني فصل راورسېد، موږ تصور کاوه، چې د نيل سيند د مستېدا او د اوبو د زياتېدا له امله به فرعون طبس ته ستون شي، خو هغه پخپلې بېړۍ کې پاتې شو او له هغه ځايه يې د آتون د افق ښار او د کورنو جوړولو کار څاره.

هره ډبره چې به پر بلې کېښودل شوه فرعون به ورته خوشحاله و او ما ليدل چې کله به يې ليدل چې يو کور بشپړېږي نو خندل به يې.

فرعون د هغو سرو او سپينو يوه برخه چې د آمون له معبده يې لوټ کړې وه، د نوي ښار په جوړولو ولګوله او د پخواني خدای تولنه څمکه يې پر هغو بېوزلو ووېشله چې کروندو ته لېوال ول.

اخناتون ددې لپاره چې د طبس سوداګر تر فشار لاندې راولي، د هغو ټولو بېړيو سامان او شيان يې واخيستل، چې د نيل سيند پورته برخې او طبس ته تللې.

د نوي ښار جوړلو ته د فرعون د بېړۍ له کبله، د ډبرو او لرګيو بيه زياته شوه او که به چا يو ځل د نيل سيند له لومړني آبشاره، چې د سترو ځنګلونو په خوا کې و، د آتون د افق ښار ته چارتراش راوړل نو شتمن کېده.

د آتون افق ښار ته ډېر کارګران راغلل او د نيل تر څنګ يې په هغو جونګړو کې ژوند کاوه چې له بانګسونو يې جوړې کړې وې.

له سهاره تر بېګا پورې يې خبنتې وهلې، هغه به يې پخولې، لارې به يې جوړولې او يا به يې د ځمکو اوبولو لپاره لښتې او ويالې جوړولې.

د نيل د سيند له طغيانه وروسته يې له شاوخوا سيمو څخه زرګونو ميوه لرونکې ونې نوي ښار ته راوړې، ويې کرلې او ځينو په بل کال ميوه هم وکړه چې پخپله فرعون له همدغو ونو څخه مېوه ټوله کړه.

په داسې حال کې چې کارګران، ممعاران او ختګران په کار اخته ول او بېړيو

چارتراش او ډېرې راوړلې، ما هم ډېر کارونه درلودل.

ځکه چې د ښار د اوبو رسولو سیستم لا نه و جوړ شوی او ډېر کارګران به د خوسا اوبو د څښلو له امله ناروغان شول.

یو ښه کار چې وشو هغه د نوي ښار د بندر جوړېدل و، ځکه چې له هغه وروسته بار وړونکي د تمساح له خطره خلاص شول.

تر دې مخکې چې بندر جوړ شي بار وړونکي مجبوره ول، چې اوبو ته ننوځي او دبېړۍ پېتې ساحل ته ورسوي، خو په دې وخت کې به یوه ناري کړې او بل به متوجه شو چې تمساح یې ملګری خوړلی دی.

د هغې منظرې لیدل چې د یوه بار وړونکي نیمایي بدن د تمساح په خوله کې دی، ډېر ډارونکی دی او تر دې مخکې چې څوک یې مرستې ته ورشي تمساح به سړی تر اوبو لاندې کش کړ چې په یوه سوري کې یې ځای کړي.

تمساح به د جوالي مړی تر هغو ساته چې خراب به شو او بیا به یې خوړ.

له همدې امله دوی مجبور شول چې د تمساح یو شمېر ښکاریان راولي، سره او سپین زر ورکړي چې د تمساح خطر کم کړي.

هغوی په لنډه موده کې تمسا ح ګانې ختمې کړې خو له دې سره سره د بندر تر جوړېدو پورې د تمساح د داړلو خطر موجود و.

ما اورېدل هغه تمساح ګانې چې د آتون د افق په ښار کې وې، هماغه تسماحګانې وې چې د خوراک په تمه یې له طبسه تر دغه ځایه د فرعون بېړۍ تعقیب کړې وې.

زه په دې نه پوهېدم چې د تمساح، د فرعون دبېړۍ او د نوې نمرۍ د پیدا کېدا ترمنځ به څه اړیکی وي؟

خو له ډېرو مې اورېدلي ول، چې تمساح ډېر ځیرک حیوان دی له همدې امله له دې وروسته چې ښکاریان راغلل او یو شمېر یې ووژلې نو تمساحګانې پوه شوې چې دلته پاتې کېدل خطر لري او که پاتې شي وبه وژل شي.

دوی د آتون د افق ښار تر پرېښودو وروسته بېرته طبس ته ولاړې، ځکه چې پوهېدې چې طبس د قوماندانۍ مرکز دی، هورم هب هم لا په دغه ښار کې دی او ښایي بیا له دې ښاره د ډېرو کسانو مړي راووځي او او به یې خراب کړي، چې دوی یې وخوري.

کله چې د نیل اوبه له طغیانه وروسته کېناستې او شاته ولاړې د مصر د پوځ قوماندان

هورم هب د آتون د افق ښار ته راغی.

فرعون هورم هب ته دنده وسپارله، چې پوځ بـه کموي، تورپوستي عسکر او د شردن ځواک به رنګوي، خو زه پوهېدم چې هغه به د فرعون د دغه امر په اړه سستي کوي.

هورم هب ځکه دغه پوځ نه رنګاوه، چې پوهېده یوه ورځ به سوریه بلوا وکړي او مصر د سوریې د بالقوه بلوا د له منځه وړلو لپاره پوځ ته اړتیا لري.

خو فرعون د سوریې پر بلوا باور نه درلود او ویل به یې سوریه به بلوا ونه کړي نو غوره دا ده چې تورپوستي عسکر او شردن ځواکونه رخصت کړي، ځکه چې په مصر کې ترې کرکه کېږي او باید نور ځوک دغه عسکر ونهویني.

له هغې ورځې چې هورم هب نوي ښار ته ننوت هر ځل چې به له فرعون سره د پوځ د رنګېدا خبره کیدله، نو دواړو به په دې مضمون بحث کاوه:

هورم هب به ویل، د سوریې حالات ډېر خراب دي او مصریان هلته کمزوري دي، که کومه بلوا کېږي د سوریې مصریان به په لومړۍ ورځ له منځه ځي، نو ته باید یو پوځ ولرې چې د سوریې د بلوا مخه ونیسي.

اخناتون به ځواب ورکړ، ایا تا په دې ښار کې زما د ماڼۍ انځورونه کتلي دي؟ او ایا پوهېږې چې انځورګرانو زما پر ماڼیو د کرت د ټاپو په شان تصویرونه ایستلي دي؟

که ته زما پر ماڼیو ایستل شوي انځورونه وګورې معلومه به شي چې ما هلته داسې انځورونه کښلي، چې تصور کوې کبان په اوبو کې ګرځي او هیلۍ په هوا کې الوزي.

خو د سوریې په اړه زه باور نه لرم چې هلته دې بلوا وشي، ځکه د دې سیمې ټولو پاچاهانو ته مې د حیات صلیب لېږلی او په سوریه کې د آمورو د هېواد پاچا له ماسره دومره نژدې ملګرتیا کوي چې د آتون لپاره یې یو معبد جوړ کړی دی.

آیا تا د آتون ستر ارګ چې ما د خپلې ماڼۍ په مخکې جوړ کړی لیدلی دی؟

*(د بریالیتوب د ارګ یا طاق ظفر جوړېدل چې د رومیانو له پړاوه وروسته د بریالیو کسانو د ویاړ سمبولونه شول، د رومیانو نوښت نه و، بلکې رومیانو دغه دود له مصر او کرت څخه زده کړی و او په مصر او کرت کې یې د خدایانو په ویاړ ارګ یا طاق ظفر جوړاوه. ژباړن).*

زه تا ته وایم چې دغه ارګ وګوره ځکه چې په لیدو ارزي او معمارانو ډېر ښه جوړ کړی دی.

ما نه دي غوښتي چې آتون د خداى د ارګ جوړولو لپاره مريان له کانونه ډبرې راوباسي او کړاو وزغمي، ددې پر ځاى مې دستور ورکړ چې د آتون ارګ له خښتو جوړ کړي.

هورم هب به ويل زه چې هر ځل ستا مانۍ ته ننوځم د آتون ارګ ګورم، خو ته د آمورو له پاچا ځان ساته.

اخناتون به ځواب ورکړ، زه غواړم چې ته هغه لوحې وګورې چې نومورې ما ته را استولې دي او ته به پوه شې چې دغه پاچا څنګه د آتون مريد شوى او د هغه په اړه له ماپوښتنې کوي، چې پر آتون يې عقيده نوره هم پخه شي.

هورم هب به ځواب ورکړ، زه لوحې ته دومره اهميت نه ورکوم، ځکه پر کومه ورځ چې کوم پاچا وغواړي بلوا وکړي هرډول لوحه او ژمنه به تر پښو لاندې کړي.

له زور پرته هېڅ شى يو پاچا دې ته نه شي مجبورولاى، چې ستا فرمانبرداره وي، اوس چې ته غواړې پوځ منحل کړې، لږ تر لږه دا موافقه وکړه، چې په سرحدونو کې يو شمېر عسکر پاتې شي، چې د مصر پر خاورې د بهرني تېري مخه ونيسي.

همدا اوس هغه قبايل چې د مصر په جنوب کې ژوند کوي، ددې لپاره چې خپل مالونه د مصر په ورشو ګانو کې وپيايي، ستا خاورې ته ننوځي او د تورپوستو کورونه سوځوي.

په داسې حال کې چې دغه تورپوستي ستا متحدين دي، د هغوى کورونه هم د بانګسونو دي، ډېر ژر اور اخلي.

اخناتون به ځواب ورکاوه، دغه قبايل چې د مصر په جنوب کې ژوند کوي له بېوزلۍ څخه دغه کارونه کوي، که وکړاى شي پخپلو ټاټوبو کې خپل مالونه ماړه کړي نو مصر ته نه ننوځي.

خو له دې کبله چې څر ځايونه، نه لري مجبور دي، چې د خپلو مالونو د مړولو لپاره مصر ته ننوځي.

نو که د مصر په جنوب کې تورپوستي زغم و لري او موافقه وکړي چې د هغوى مالونه د تورپوستو په څرځايونو کې وڅري هېڅکله به د هغوى کورنو ته اور ورته نه کړي.

هو رم هب وويل ته ما ته امر کوې، چې پوځ منحل کړم او عسکر رخصت کړم چې خپلو ولايتونو ته ولاړ شي، خو ايا پوهېږې چې تر رخصتېدا مخکې بايد په مصر کې کلک او

مضبوط امنیت رامنځته کړي او ګزمې ودروي.

ځکه هغه عسکر چې رخصتېږي او خپلو کورونو ته ځي، نو په لاره کې به زرګونه کورونه لوټ کړي او پر زرګونه ښځو به په زور تېري وکړي.

فرعون وویل دا ستا ګناه ده چې زما له عسکرو سره دې د آتون په هکله خبرې نه دي کړي، ځکه که هغوی آتون وپېژني او پوهېدای، چې هغه سوله غواړي، د مینې او محبت خدای دی، نو پر ښځو دتېري او لوټماریو فکر یې نه کاوه.

نن سبا چې په دې ښار کې خلک آتون پېژني هېڅکله کومه پېښه نه کېږي.

زما لور مریتاتون یوازې له یوې غرځې سره ګرځي او بل کوم ساتونکی او ملګری نه لري، خو څوک پرې تېری نه کوي.

زه باوري یم، پر دې سربېره چې باید عسکر رخصت شي، جنګي ګاډۍ هم باید له منځه ولاړې شي، ځکه چې د جنګي ګاډیو درلودل په دې مانادي چې نورو پاچاهانو ته وښیو چې موږ جنګ غوښتونکي یو. خو که جنګي ګاډۍ ونه لرو نو هغوی به پوهېږي چې موږ د جنګ نیت نه لرو.

هورم هب په ملنډو وویل، غوره نه ده چې جنګي ګاډۍ خرځې کړو، ځکه چې فکر کوم د آمورو هېواد او په سوریه کې هاتیان چمتو دي، چې ستا جنګي ګاډۍ واخلي او یوه ورځ یې ستا پر خلاف وکاروي.

دغه بحث د فرعون او د هغه د قوماندان تر منځ څو ورځې روان و، خو بالاخره هورم هب چې مقاومت یې کاوه فرعون یې د دووشیانو منلو ته چمتو کړ، یو دا چې د مصر په سرحدونو کې چونۍ وساتي او بله دا چې په مصر کې د ننه دې یوه ګزمه رامنځته کړي، چې په هېواد کې د ننه امنیت وساتي.

فرعون وویل، زه له دې شرطونو سره موافقه کوم، چې ګزمه جوړه شي، خو له ګزمې دې کومه ورځ د پوځ په شان استفاده ونه شي.

ددې لپاره چې ګزمه د پوځ په شان نه شي فرعون وټاکله، چې دهغوی وسلې دې یوازې نیزه او هغه هم له وسپنیزې څوکې پرته وي.

هورم هب دغه امر ومانه خو کله چې د یوې ګزمې په جوړولو بوخت و، چې کورنی امنیت وساتي، بیا پوځ رنګ کړي او عسکر کورونو ته واستوي، نو په دې وخت کې دوه قاصدان یو پر بل پسې له سوریې څخه راغلل.

دوی خبر ورکړ، د آمورو پاچا له دې وروسته چې په طبس کې يې د پخواني او نوي خدای تر منځ د جګړې او له طبسه د فرعون د وتلو او نوي ښار د جوړلو خبرې واورېدې، اوس نيت لري چې بلوا وکړي.

ده هغه کړې چې د مصر دوه ښارونه چې د هغه هېواد ته نژدې پراته و، ونيسي. يو ښار پکې (مژيدو) و او اوس په مژيدو ښار کې مصري عسکر او چونۍ محاصره دي او له فرعونه مرسته غواړي.

فرعون له دې خبرې وروسته هورم هب ته داسې وويل:

زه تصور نه کوم چې د آمورو پاچا دې په سوريه کې له کوم علت پرته بلوا کړې وي، زه باوري يم چې مصري مامورينو هغه سپک کړی دی او پاچا غوسه شوی دی.

تر هغه چې پوه نه شم، ددې سرې بلوا د مصريانو له پارولو پرته شوې د هغه د سزا کولو لپاره به ونه کړم.

خو دې پېښې متوجه کړم چې ما د سوريې په هکله هغسې پام ونه کړ چې بايد کړی مې وای او را په زړه شول چې تا (هورم هبه!) کله چې په اورشيلم کې وې هلته دې د آتون لپاره معبد جوړ نه کړ او اوس هغه وخت دی چې زه په اورشيلم کې د آتو ن لپاره يو ښار جوړ کړم چې د سوريې پلازمېنه شي.

ځنګه چې مژيدو کرار شو، هلته به هم د آتون لپاره ښار جوړ کړم، ځکه چې مژيدو يو ستر سوداګريز مرکز او د کاروانونو په لاره کې پروت دی، که په دې ښار کې د آتون لپاره ښار جوړ کړو دغه ښار به ډېر اباد شي.

کله چې هورم هب د فرعون دغه ځواب واورېد، داسې غوسه شو چې د خپلې متروکې لاستې يې مات کړ او ټوټې يې د فرعون تر پښولاندې پر ځمکه وويشت.

له هغه ځايه راووت او ماته يې وويل، دغه سړی لېونی دی، ددې پر ځای چې پوځ واستوي، چې د آمورو پاچا نسکور کړي، دی وايي نيت لري په اورشيلم کې د آتون د خدای لپاره معبد جوړ کړي او هغه د سوريې پلازمېنه کړي.

په هغو ورځو کې چې هورم هب به د افق په ښار کې و، زما د مسافرتونو په هکله يې ډېرې خبرې وکړې او غوښتل يې، پوه شي چې ايا ما د هغه د سپارښتنو پر اساس په نورو هېوادونو کې پوځي معلومات راغونډ کړي کنه؟

کله چې ما خبرې پيل کړې او راټول شوي پوځي معلومات مې ورته ويل، په ډېرې

ځیرتیا سره یې ورته غوږ نیولی و.

یوه ورځ مې هغه چاړه هم وروښودله چې په هاتي هېوادکې یې ماته راکړې وه.

کله چې ده دغه چاړه ولیده ډېر حیران شو او ویې ویل یې سینوهه! زموږ مسي چړې ددغه چاقو پر وړاندې چې ته وایې له اوسپنې جوړ دی، د لرګي په شان ښکاري.

هورم هب د نورو ملتونو د پوځي وسایلو او عسکرو په هکله داسې پوښتنې راخخه کولې چې زما له نظره د ماشومانو د پوښتنو په شان وې.

خو وروسته پوه شوم، چې هورم هب یو عسکر دی، ځکه دغسې پوښتنې کوي.

مثلاً ویل به یې، چې کله د بابل عسکر حرکت کوي لومړی ښۍ پښه مخکې کوي، که کینه؟ یا دا چې په هاتي کې هغه اسونه چې د جنګي ګاډیو د ذخیرې لپاره دي، پخپله له ګاډیو سره یوځای حرکت کوي که د هغوی ترشا روان وي؟

یابه یې دا سوال کاوه، چې د بابل د جنګي ګاډیو ارابې څو شعاع ګانې لري او آیا د څرخ شاوخوا یې په فلزاتو پوښلې ده کنه فلزي پوښ نه لري؟

یو بل شی چې هورم هب ورته ډېر پام کاوه دا و، چې غوښتل یې پوه شي په هاتي ،میتای او بابل هېوادونو کې د پلونو حالت څه ډول و.

هره ورځ به یو کاتب راته او هغه څه چې ما د نورو هېوادونو د عسکرو د شمېر، لارو ،پلونو او بندرونو په اړه ویل، هغه به یې له ځان سره لیکل، ددې لپاره چې کله هورم هب وغواړي له دغو معلوماتو څخه استفاده وکړي.

خو هغه معلومات چې ما د نورو هېوادونو د خدایانو ، مجسمو ،عمارتونو او د کرت د حمامونو او تشنابونو په هکله ورکول هورم هب ورته چندانې توجه نه کوله.

کله چې هورم هب په کاوږ خپله متروکه ماته کړه او ولاړ، غوښتل یې چې د مصر د پوځ له قوماندانۍ استعفا وکړي، نو وروسته اخناتون چې هورم هب پرې ګران و زه ورپسې واستولم او ویې ویل، هغه ته ووایه چې راشي او له ماسره پخلا شي، ځکه زه نه غواړم چې هغه له ما خپه او جلا وي.

خو له دې سره چې فرعون او هورم هب پخلا شول او اخناتون بله متروکه ورکړه، بیا هم هورم هب ونه کړای شول فرعون قانع کړي، چې د آمورو پاچا دوهلو لپاره سوریې ته عسکر واستوي.

له دې وروسته چې هورم هب ولاړ فرعون ماته وویل سینوهه! که آتون غوښتي وي چې

سوریه د مصر له لاسه ووځي ، نو غوره ده چې د آتون اراده عملي شي، ځکه چې پر سوریې سلطه د مصر لپاره له تاوانه پرته بل څه نه دي ورپه برخه کړي .

ومې ویل اخناتونه ! تر هغه ځایه چې زما یادېږي او له نورو مې اورېدلي دي ، پر سوریې د مصر سلطه تل د مصر په ګټه وه، ځکه چې مصر د سوریې له ډېرې شتمنۍ څخه استفاده کړې ده.

فرعون وویل، شتمني هغه شی دی چې ملت فاسدوي، ځکه چې ملت تنبل او بې رحمه کېږي.

د مصر ملت زیارکښ، قانع او صبرناک ملت و، خو کله چې یې سوریه ونیوله او د سوریې شتمني مصر ته ننوته نو تنبلي ،عیاشي او د سریانیانو ځینې ناسم او خراب عادتونه هم مصر ته راغلل.

کله چې سوریه د مصر له لاسه ووځي نور به له مصریانو څخه تنبلي، عیاشي او د سریانیانو خراب عادتونه هم کډه وکړي.

له دې سره سره چې زه پوهېدم فرعو ن لیونی دی، خو تمه مې نه کوله چې دغه خبرې دې د یوه پاچا له خولې واورم.

ځکه چې یو پاچا د خپل قدرت د ساتلو لپاره باید اجازه ورنه کړي چې بل هېواد د هغه سیمې لاندې کړي.

هغه ته مې وویل: اې اخناتونه ! زه یوه موده په سوریه کې وم او په ازمیر او (مژیدو ) ښارونو کې مې ژوند کړی.

په ازمیر کې د مصري چوڼۍ قوماندان یو زوی درلود چې رامسس نومېده او دغه هلک چې په هغه وخت کې لس کلن و، د سوریې تر ټولو ښکلی هلک ګڼل کېده.

ده به تل په مردکیو او لولک لوبې کولې، خو کله چې ناروغ شو ماته یې راوست، زه پوه شوم چې د معدې چینجی لري او هغه مې معالجه کړ.

په مژیدو کې یوه مصری ښځه وه چې هېڅ سړي نه شوای کولای، هغه یو ځل وګوري، ځکه که دوه ځله یې هغه لیدلې وای حیران شوی به و.

دغه ښځه یې هم یو ورځ ماته راوستله چې خېټه یې پړسېدلې وه، ما ورته وویل باید خېټه دې سوری کړم ، چې ناروغي دی معالجه شي.

یوه ورځ یې کورته ورغلم د خېټې له څیرلو وروسته مې معالجه کړه.

فرعون وپوښتل ولې ماته دغه خبرې کوې ؟

ومې ويل ددې لپاره يې تا ته وايم چې هماغه مصری هلک به اوس د سرياني عسکرو په چړو ټوټه شوی وي او هغه ښکلې ښځه به د سوريې د نشه عسکرو منګولو ته لويدلې وي او هغوی به د ښځې ژړاګانو ته له پامه پرته، پر هغې تېری کوي.

ايا دغه پېښې تاته اهميت نه لري او ته دا خبره منلای شې چې په سوريه کې مصري ماشومان او سړي ووژني او پر ښځو يې تېری وکړي؟

فرعون ماته وکتل او ويې ويل سينوهه ! ته وايه زه څه وکړم ؟

ايا حکم وکړ م چې په سوريه کې بلوا شوې او لس يا سل مصريان وژل شوي دي، نو زما عسکر دي سل ځله سل سرياني عسکر ووژني؟

ايا ستا په نظر دا سم کار دی؟

ايا هغه سريانيان چې د يو شمېر وژل شويو مصري عسکرو د وژلو لپاره وژل کېږي ځانونه ،ښځې او ماشومان نه لري؟

که زه بدی ته په بدی ځواب ورکړم نتيجه به يې بدي نه وي ؟

خو که د بدی سزا په نيکی ورکړم، که څه هم له دې امله به بدي رامنځته شي،خو تر هغې بدی به ډېره کمه وي، چې وغواړو بدي په بدي سره جبران کړو.

که ته زما ډاکټر يې او نه غواړې چې ستا په خبرو ناروغ شم ، نو په دې اړه خبرې مه کوه، چې بايد په سوريه کې د مصريانو د وژلو غچ له خلکو واخلو، ځکه چې ستا دغه خبرې ما ډېر ځوروي.

د آمون د خدای په پړاو کې به يې وينه پر وينو وينځله او د يوه مصري د وژلو لپاره به يې د نورو هېوادونو سل تنه وژل.

له همدې امله به رخه او کينه سخته شوه، ځکه چې هغو سلو کسانو زامن ښځې او خپلوان درلودل او هغوی به هم غچ اخيست.

خو آتون وايي، بايد په ويني بهېدنې سره انتقام وانه خيستل شي، ځکه چې که د وژنې په بدل کې وژنه وشي، هېڅکله به رخه او کينه ختمه نه شي.

له همدې امله تاته وايم چې نور په دې اړه له ما سره خبرې ونه کړې. پرېږده چې زه له خپل حقيقت سره ژوند وکړم ،د رخې او کينې پر ځای د آتون له لوري په خلکو کې مينه رامنځته کړم.

# دوه دېرشم څپرکی

## نوی ښار چې فرعون جوړ کړ

ما نور څه ونه ويل خو د مڅيدو د ښار پر دروازو مې د لويو ستنو د وهلو پر غړونو سترګې نه شوای پټولای.

زه پوهېدم، په دې ښار کې چې هره مصري ښځه د سرياني عسکرو لاس ته ورشي پرې تېرې به وکړي خو بيا هم کله چې ما ليدل يو ليونی دومره نيکې خبرې کوي خوشحاله وم.

ما تر اوسه پورې د درباريانو د ژوند په هکله چې له طبسه دغه نوي ښار ته راغلي ول څه نه دي ويلي.

هغوي له فرعون سره يوځای رانه غلل، ځکه چې اخناتون له طبسه داسې ګړندی را ووت چې درباريان بريالي نه شول له هغه سره يو ځای حرکت وکړي نو ځکه وروسته د آتون د افق ښار ته راغلل.

د درباريانو ژوند له دې پرته بل څه نه درلودل، چې تل له آتون سره نژدې ول.

کله چې به هغه وخندل، دوی به هم خندل او کله چې به فرعون غمجن و، هغوی به هم ځانونه غمجن ښودل.

د درباريانو پلرونه هم د پخوانيو فرعونيانو په دوران کې همدا کارونه کړي ول او اولادونو ته يې هم دا له پلرونو څخه په ميراث پاتې ول.

که څه هم دېرې درباريانو به هېڅ خاص کار نه درلود، خو رسمي دندې يې درلودې، هغه به يې له يو بل سره پرتله کولې او هر چا هڅه کوله وښيي چې دنده يې د درناوي وړ او ستره ده.

ځينې وخت چې به د يوه درباري دنده د نورو په پرتله کوچنۍ ښکاره شوه داسې يې ښودل چې که څه هم د هغه دنده ظاهراً وړه ده، خو په مانا کې يې دنده د درناوي وړ ده، او د دغه سړي ملګرو به هم داسې ښودل چې ګني ملګری يې سم وايي.

د فرعون د درباریانو دندې په دې ډول وې: د دربار د بوټونو مسول، د دربار خیمه لرونکی او نانوای، د دربار د جامو مسول یا د شرابو مسول، خو هغوی په ټول عمر کې یو ځل هم د فرعون بوټان یا چترۍ نه وې لېږدولې.

دغه راز یې یو ځل هم هغه ډوډۍ نه وه پخه کړې، نه یې ورته شراب په لاس کې ورکړي ول، ځکه چې ټول د دربار شخصیتونه ول او پر دغه کار شرمېدل.

دغه دندې د نورو پر غاړه وې، چې زیاتره یې مریان او نوکران ول د اخناتون په دربار کې حتی درباري سنت کوونکی هم موجود و، زه هم د دربار سر سوری کوونکی شمېرل کېدم چې د فرعون د ځانګړي ډاکټر نوم و.

زه فکر کوم د ټولو درباریانو په منځ کې یوازې ما کار کاوه، چې تل به مې د فرعون طبیعت څاره چې ناورغ نه شي.

پر هغې ورځ چې درباریان له طبسه په بېړیو کې راورسېدل او د آتون د افق ښار ته رانژدې شول، نو د آتون خدای سندره یې پیل کړه، چې وښیي د فرعون پر نوي خدای عقیده لري.

له هغه وروسته یې په کېږدیو کې واړول، چې د نیل پر غاړه درولې شوې وې.

تر هغه چې د افق د ښار کورونه جوړېدل نو دغو خلکو به هلته خوړل، څښل او له ژونده یې خوند اخیست، ځکه چې د مصر ژمی ببخې ختم شوی و، پسرلی و او مرغانو به سندرې ویلې.

درباریانو به دومره مریان او نوکران درلودل، چې د هغوی د اوسېدو ځای پخپله یو ښار ګڼل کېده، ځکه چې هغوی له مریانو او نوکرانو پرته ژوند نه شو کولای.

ځینو خو به ناسته پاسته هم پخپله نه شوای کولای، باید مریانو تر لاس نیولي، پاڅولي او کېنولي وای.

خو یو شی به یې هېڅ کله نه هېراوه، هغه دا، هر چېرته چې به فرعون و، همغلته به دوی هم ول، چې اخناتون یې وګوري او نوم وڅېره یې ترې هېره نه شي.

هغوی چې کله ولیدل فرعون غواړي نوی ښار ډېر ژر جوړ شي نو ختګري یې هم پیل کړه.

ما لیدل چې د دربار ځینې ښکلې ښځې به پر ځمکه ناستې وې او خښتې به یې وهلې او ځینو درباري نارینه وو به، په داسې حال کې چې مریانو یې پرې چترۍ نیولې وې چې

لمر يې ونه سوځوي پر د ېوالونو خښتې اېښودلې.

اصلي ختګران دغه کار سخت تنګ کړي ول ، ځکه چې درباريان د کورونو په جوړېدا نه پوهېدل او اصلي ختګران او معماران مجبور ول چې دغه ودانۍ بېرته يې ونړوي او له سره يې جوړې کړي.

خو درباريانو به تل پر خپلو کارونو ويار کاوه او خپل تناکې لاسونه به يې فرعون ته ورښودل چې هغه پوه کړي، د فرعون د خدای د ښار د جوړولو لپاره يې ځومره زيار ګاللی دی.

له څو ورځو وروسته درباريان په ختګرۍ ستړي شول او په کار کې د تنوع لپاره ، د نيالګيو په اېښودلو او باغوانۍ اخته شول.

په دې وخت کې د باغوانانو وار شو ، چې له ډېرې غوسې به يې د مصر خدايانو ته پناه يوړه ، ځکه هر څومره نيالګي او بوټي چې به يې وکرل درباريانو به وچ کړل، تنکي نيالګي به يې له منځه يوړل او د اوبو لښتي به يې خراب کړل.

باغوانانو به په ښکاره فرعون ته د درباريانو شکايت نه شو کولای چې په دغو کارونو کې د هغوی د لاسوهنې مخه ونيسي.

خو درباريانو به فکر کاوه چې له باغوانانو سره مرسته کوي، مګر په حقيقت کې يې هغوی ته ستونزې راتوکولې.

څه موده وروسته درباري مېرمنې او نارينه له باغوانۍ څخه هم ستړي شول، د بوټو اغزيو به ځورول، د شپې به حشراتو تنګول او سبا به ماته راغلل چې معالجه يې کړم .

ځينې به پټ په پټه طبس ته ستانه شول، چې هلته ساعت تېري وکړي، خو ځينې چې نه شوای تلی او ځان يې بايد فرعون ته ورښودلی وای هغوی به په نوي ښار کې پاتې ول.

دوی به خپل وخت د شرابو پر څښلو او د کمسايي پر لوبو کې تېراوه.

خو د افق د ښار جوړېدل پر مخ ولاړل، کورونه ورځ په ورځ لوړېدل او له ښاره د باندې ځمکه له ګټورو بوټو ډکېدله.

زه نه پوهېدم چې د اتون د افق پر ښار ، څومره سره او سپين ولګېدل خو دومره خبر شوم، چې ټول هغه سره او سپين چې فرعون د پخواني خدای له معبده تر لاسه کړي ول، ددغه ښار په جوړلو يې ولګول او بيا هم کمی احساس شو.

خو داخبره هم بايد وکړم چې د آمون ټول سره او سپين د فرعون لاس ته ور نه غلل،

7




# سینوهه

## د فرعون د ځانګړي طبیب یادښتونه

له میلاد څخه ۱۳۵۰ کاله وړاندې

تاریخ

سیاست

فلسفه

دینپوهنه

ارواپوهنه

ناول

**میکاولتاري**

ژباړن: ډاکتر محمد عیسی ستانکزی

ځکه چې د آمون د خدای د معبد پخوانيو کاهنانو چې پوهېدل، ممکنه ده فرعون د هغوی خدای له منځه يوسي، نو له دې مخکې چې د طبس جنګ پيل شي د سرو او سپينو زېرمه يې بل ځای ته لېږدولې وه.

د مصر سلطنتي کورنۍ د افق ښار ته د فرعون د انتقال له امله وويشل شوه، پخوانۍ ملکې ياني د اخناتون مور، چې تي تي بلل کېده ونه غوښتل چې له طبسه راووځي او د سلطنت ښکلې مانۍ پرېږدي د آتون د معبد ستر کاهن آمي چې ما مخکې د هغه ذکر کړی و، په طبس کې پاتې شو او د پخوا په شان يې ژوند وکړ.

له طبسه د فرعون له وتلو وروسته د دغه ښار د خلکو ژوند کوم توپير ونه کړ او د غلته يوازې د فرعون کمی احساسېده.

خلک د هغه پر تګ خپه نه ول، بلکې هغه به يې جعلي فرعون باله او فکر يې کاوه چې د هغه له شر او جنجاله خلاص شول.

ملکه نفرتي تي چې نوي ښار ته راغلې وه، د لنګون لپاره بېرته طبس ته ولاړه، ځکه چې د تورپوستو د يونو او قابلو له مرستې نه شوای تېرېدای.

ملکې پر درېيم ځل هم لور وزېږوله او د خپلې لور نوم يې (آنخز آتون) کېښود او ددې نجلۍ سر هم د نفرتي تي د نورو لونو په شان اوږد و.

تورپوستو قابلو به له دې کبله چې د لنګون پر مهال پر نفرتي تي سختي تېره نه شي نو د ملکې په خېټه کې به يې د ماشوم سر ته فشار ورکاوه او د هغې سر به د دوی د دغه فشار له امله اوږد شو.

عام خلک له زېږېدو مخکې د سر د موښلو له کيسې خبر نه ول.

دوی به د مصر د فرعون د لونو دغه ډول سر يوه معجزه بلله او تصور يې کاوه چې دغه ډول سر د يوه ستر خدای د نژاد له سرونو څخه دی چې ملکې ته يې ورکوي.

د خلکو حماقت تر دې حده و، چې هڅه به يې کوله خپل سرونه هم د مصر د ملکې د لونو په شان کړي.

له دې کبله چې تر زېږېدو وروسته د سرونو بڼه نه بدلېږي نو دوی به مصنوعي وښتان داسې کېښودل چې سر يې اوږد ښکاره کړي.

شاهزادګيو ددې لپاره چې وښيي د دوی د سر اوږدوالی ساختګي نه بلکې طبيعي دی، نو کله کله به له ساختګي وېښتانو پرته، په خرېيلو سرونو په مېلمستياو کې

راڅرګندې شوې.

شاعرانو به د هغوی په ستاینه کې شعرونه ویل او مجسمه جوړونکو به د هغوی د سرونو په تقلید د خپلو مجسمو سرونه هم اوږده جوړول.

له دې وروسته چې د نفرتیتي درېیمه لور هم پیدا شوه، د مصر ملکه له طبسه د افق ښار ته ولاړه او د آتون د ښار دایمي اوسېدونکې شوه.

خو په طبس کې یې د خپل خاوند حرم سرای پر خپل حال پرېښود، ځکه چې نه یې غوښتل خاوند یې تر دې زیات د حرم سرای په مسایلو کې ښکېل وي او خپل ځواک د چارو پر سنبالولو ولګوي.

پخپله فرعون هم له نورو ښځو سره چنداني علاقه نه درلوده او یوازې ځینې وخت به یې د مېړه او ښځې د دندې د تر سره کولو لپاره ورته پام کاوه.

خو زه پوهېدم چې نفرتیتي تر ټولو پرې ګرانه ده، ځکه چې د حرم په ټولو ښځو کې ښایسته وه او د دریو لونو له زېږېدو وروسته بیا هم تر ټولو ښکلې ګڼل کېده.

خو نفرتیتي به پر فرعون د خپل ګرانښت لامل د خپلې طبعي ښکلا پر ځای هغه کوډګر بلل، چې د دې په خدمت کې ول.

ځایي کوډګرو به ویل چې که د خپل خاوند مینه وساتي، یوه ورځ به د زوی خاونده هم شي.

په یوه کال کې د آتون د افق ښار هم جوړ شو، هر څوک چې به دې ښار ته له مخکېنی خبرتیا پرته ننوتل فکر یې کاوه، چې د جوړېدا یې لږ تر لږه لس کاله تېرېږي.

ځکه چې د خرما ونې او نورې مېوه لرونکې ونې له ریښو را ایستل شوې او دې ښارته راوړل شوې وې.

ډېرې ونې وچې شوې، خو له دې کبله چې د ځینو ونو د وچېدو اټکل یې مخکې له مخکې کړی و، نو دومره ونې یې راوړې چې د آتون د افق ښار په یوه باغ بدل شي.

د اوبو په لښتیو کې به کبان ګرځېدل او هیلیو به د ښار پر سر الوتونه کول.

کورني غرخه ګان به په کورونو کې د ګلانو او وښو په منځ کې ګرځېدل او له کورونو به د ډوډۍ پخولو پر وخت د خوړو او مسالو بویونه لتېدل.

په دې ډول د آتون د افق ښار د مصر د نوي خدای آتون په نوم جوړ شو.

کله چې بیا د مني موسم را ورسېد او د نیل اوبه را وختلې نو فرعون هوډ وکړ، چې په

رسمي توګه د غه ښار نوي خدای ته ډالۍ کړي
ترمني لږ مخکې معمارانو او کارګرانو ځلور سړکونه جوړ کړي ول، چې له ښاره پر ځلور لورو ته تلل.
د هر سړک په وروستۍ برخه کې يې د آتون خدای مجسمه جوړه کړې وه.
يوه ورځ فرعون له سلطنتي کورنۍ او درباريانو سره شمال لور ته تللی و او هلته يې ژمنه وکړه، چې د افق ښار د تل لپاره د آتون ښار بولي.
ترهغه چې ژوندی دی هلته به اوسي او له مرګه وروسته به خپلې موميايي شوې جنازې په يوه غره کې چې په ختيځ کې پروت و، ښخې کړي.
د کانو تراشوونکي او ختګران چې بايد د فرعون قبر يې جوړ کړی وای، کله چې وپوهېدل بايد څو کاله په دې غرنۍ سيمه کې پاتې شي ، نو له ځان سره يې خپلې کورنۍ او بچيان هم راوستل او هغې غرنۍ سيمې ته ولاړل.
ترتګ مخکې فرعون ورته ويلي ول، زه نه غواړم تاسې زما د قبر د جوړولو لپاره کړاو وزغمئ او په کارونو کې بيړه وکړئ، ځکه چې زما خدای (آتون ) وايي چې بايد څوک ونه کړول شي.
که تاسې دوه يا درې تله (دهغه وخت ساعت ته يې تله ويله يانې دوه يا درې ساعته) کار وکړئ، نو له څو کلونو وروسته به زما قبر جوړ شي.
هڅه وکړئ چې ډېره ډوډۍ وخورئ او خپلو ښځو او ماشومانو ته هم ډېره ډوډۍ ورکوئ، چې چاغ او ښکلي شي، ځکه چې آتون ښکلا خوښوي
ښکلا د دې سبب کېږي چې د خلکو په منځ کې مينه پيدا شي او په يوه ملت کې چې ټول نارينه او ښځې ښکلې وي، نو رخې او کينې نه پيدا کېږي.
کله چې فرعون فيصله وکړه، چې خپل قبر جوړ کړي، نو اشرافانو او درباريانو هم هوډ وکړ؛ چې د ځانونو لپاره قبرونه جوړ کړي
دې مسلې فرعون متوجه کړ چې بايد د مړيو کور ولري، چې هلته مړي موميايي کړي
له همدې امله فرعون امر وکړ چې د طبس د دارالممات تکړه موميايي کوونکي دې د افق ښار ته راوستل شي.
فرعون پوهېده چې دغه موميايي کوونکي په طبس کې د آمون په معبد کې اوسېدل، خو په دې هم خبر و ، چې د موميايي کولو يو کارګر نه آمون پېژني او نه آتون.

دا داسې کسان دي چې ټول عمر یې د مرګ په کور کې تېر کړی او داسې موجودات دي چې انسان هم ورته نه شو ویلای، ځکه چې له مړیو سره یې داسې عادت کړی وي چې د هغو له ډلې شمېر کېږي.

پر هغې ورځې چې د طبس د مومیایي کولو کارګران د نیل سیند له لارې په بېړیو کې د افق ښار ته راوستل شول، خلکو خپلې پوزې بندې کړې وې او خپلو کورونو ته تښتېدل، ځکه چې د کارګرانو مخصوص بوی په فضا کې تیت شوی و، چې خلک یې تېښتې ته اړ کول.

یوازې زه ترې ونه تښتېدم، ځکه چې رایاد شول، یوه ورځ زه هم د هغوی په شان وم او د مرګ په کور کې مې کار کاوه.

تر دې مخکې چې مومیایي کوونکي راشي د افق د ښار پر څنډه د مرګ کور د هغو لپاره جوړ شوی و.

فرعون زه د دې ودانۍ د جوړولو او د مومیایي کولو د وسایلو د برابولو د څارونکي په توګه وګمارلم.

دی پوهېده چې د آتون د خدای کاهنانو له مومیایي کوونکو سره دښمني درلوده، ځکه چې فکر کوي دوی د پخواني خدای آمون پلویان دي او هېڅ کاهن چمتو نه و، چې د دې کور د جوړولو څارنه وکړي.

ما خپله دنده په سمه توګه ترسره کړه، پر طبي معلوماتو سربېره مې د مړیو په کور کې کار هم کړی و، او په دې پوهېدم چې د مړیو یو سنبال کور کومو شیانو ته اړتیا لري.

د مړیو په کور کې مې د مالګینو اوبو لپاره څو ستر حوضونه جوړ کړل او څو هالونه مې ودان کړل، چې مومیایي کوونکي د مړي د بدن د محتویاتو د تشولو لپاره او په پټیو او تړارو د هغو د تړلو لپاره ستونزه ونه لري.

زه پوهېدم چې د مومیایي کوونکي کارګر کور باید په دارالممات کې دننه وي نو د هغوی د اوسېدو لپاره مې باید کافي کوټې جوړې کړې وای.

له دې کبله چې فرعون زما لپاره په افق ښار کې کور جوړ کړی و، د هغه ښار اوسېدونکی شوم.

له دې وروسته په دغه ښار کې زما په ژوند کې خاصه پېښه ونه شوه، چې اهمیت ولري، ځکه کله داسې هم کېږي چې څو کاله پر انسان تېر شي خو په ژوند کې یې خاصه

پېښېږي او کله بيا په لنډه موده کې ډېرې پېښې کېږي.

زه لس کاله د افق په ښار کې وم، خو په دې موده کې کارونه کابو يو ډول پر مخ روان ول.

هره ورځ ما پخپل کور کې ناروغان معالجه کول او هره ورځ به د فرعون ماڼۍ ته ورتلم کله نا کله به زما او د ښار د نورو اوسېدونکو په ژوند کې ځينې پېښې وشوې، چې د يادولو او اهميت وړ څه پکې نشته.

په دې موده کې چې زه د افق په ښار کې وم، زما پر معلوماتو څه زيات نه شول، خو له هغو معلوماتو مې استفاده وکړه، چې په ځوانۍ کې مې زده کړي ول.

زه د شاتو د مچۍ په شان وم، چې په ژمي کې نوي شات نه توليدوي، خو له هغو څخه استفاده کوي چې په دوبي ګې يې جوړ کړي وي.

په تېرو لسو کلونو کې د وخت په تېرېدا سره زما روح هم بدل شو، ځکه چې شپه او ورځ تېرېږي داسې وي، لکه چې اوبه د کاڼو پر مخ تېرېږي او خپل اغېز پرېږدي.

که څه هم اوبه نرمې او سپکې وي، خو کاڼي تراشي او ښويوي يې، د وخت تېرېدل هم د انسان روح تراشي او هغه بدلوي.

زه د عمر په تېرېدو سره دروند او کم ادعا شوم، نور مې د ځوانۍ په شان پخپل علم او پوهې وياړ نه کاوه.

ښايي هغه څه چې زه يې دروند کړی وم، دا و، چې کاپتا به اوس ما ته نه ويل چې ته ستر ډاکتر يې، بايد خپل هنر مشهور کړې، چې خلک ستا قدر وکړي.

کاپتا د افق په ښار کې نه و، بلکې په طبس کې اوسېده او هلته يې د خپلې ميخانې او زما د دارايۍ مسوليت پر غاړه درلود.

د افق ښار که څه هم د اخناتون د اوسېدو ځای و، خو ژوند پکې داسې وه چې ته به وايې دغه ښار له مصره پرته په بوې بلې دنيا کې پيدا شوی او د بهرنۍ نړۍ د پېښو غبرګون د افق ښار ته داسې رسېده لکه د سپوږمۍ رڼا چې په اوبو کې ولوېږي او بيا ورکه شي.

د فرعون لپاره د مصر نور ښارونه داسې ول، لکه چې نه وي، ځکه چې د دغو ښارونو له پېښو بېخي نه خبرېده او هغه نه پوهېده چې په نورو ښارونو کې کاختي او تنګسيا راغلې ده.

درباريانو هېڅکله فرعون ته حقيقت نه وايه، هغوی باور درلود چې که فرعون ته دغسې خبرې وکړې، له هغه سره به يې اړيکي خرابې شي.

کله چې به مجبور شول يوه خبره ورته وکړي (ځکه چې پوهېدل له دې پرته بله چاره نه لري، نو دغه موضوع به يې په لفافو او شاتو او يا ګلانو کې ونغاړله چې فرعون به د بهرنۍ پېښې په حقيقت پوه نه شو او دغه خبرې يې ددې لپاره هم فرعون ته نه کولې چې هغه د سر په درد اخته نه شي.)

د طبس ښار د آتون د معبد د ستر کاهن آمي له لوري اداره کېده او فرعون د ماليات راغونډول، د عدالت اجرا او سوداګريزې چارې ټولې په طبس کې پرېښودې.

له همدې امله طبس د پخوا په شان د مصر پلازمېنه پاتې شو او د افق ښار لکه دويمه پلازمينه داسې و.

آمي د اخناتون خسر و، فرعون پرې ډېر باور درلود او په طبس کې يې د يوه رښتيني پاچا په شان ژوند کاوه.

له دې وروسته چې آمون خدای را وپرځول شو، د فرعون پر وړاندې د مقابلې لپاره بل ځواک پاتې نه شو، چې د هغه د قدرت مخه ونيسي.

له دې لامله آمي هم کوم دښمن نه درلود او د نوي خدای او فرعون په نوم يې په طبس کې حکومت کاوه.

آمي فکر کاوه، چې پخوانی خدای له منځه تللی دی او په مصر کې نوی قدرت واکمن شوی، نو نا امنۍ او ستونزې به رامنځته نه شي.

د آمي قدرت دومره پراخ و، چې پر هر چا او هر شي پلی کېده او که به د دوو کروندګرو او دوو جواليانو په منځ کې هم اختلاف راغی نو د هغوی ستونزه به د ستر کاهن آمي او ياد هغه تر لاس لاندې کسانو له لوري حل کېده.

آمي له دې امله خوشحال و، چې فرعون د افق په ښار کې دی او طبس ته نه راځي، ځکه پوهېده که فرعون طبس ته راغلی وای د هغه لپاره يې ستونزې پېښولې.

ستر کاهن ددې لپاره چې فرعون خوشحال کړي د افق ښار د پسوللو لپاره يې ګران بيه ډالۍ استولې او فرعون چې به د نوي ښار د ښکلي کولو لپاره هر څومره سره او سپين غوښتل آمي به ور استول.

هورم هب د ممفيس په ښار کې حکومت کاوه، هېواد ته يې امنيت او نظم راوست.

هورم هب د مالیاتو هر هغه مامور ته، چې له خلکو د مالیاتو ترلاسه کولو ته به تلل او هر هغه سنګ تراش امنیت ساته، چې د امون نوم به یې له مجسمو، معبدونو او قبرونو لېرې کاوه او پر ځای به یې د آتون نوم لیکه.

فرعون امر کړی و، چې حتي د هغه د پلار قبر وسپړي او د آمون نوم د مړي له کوټې او د هغه د مومیایي شوي پوښ له مخه پاک کړي او پر ځای یې د آتون نوم ولیکي.

کله چې د فرعون د پلار قبر پرانستل شو، نو څرګنده ده چې د عادي کسانو قبرونه په سر سپړل شوي ول او د آمون پر ځای د آتون نوم پرې ولیکل شو.

کله چې یې غوښتل د آمون نوم د قبرونو له مخې لېرې کړي او پر ځای یې د آتون نوم ولیکي، نو له دې سره سره چې په مصر کې د قبرونو سپړل جرم و، خو ستر کاهن آمي به چاته څه نه ویل.

ځکه چې هغه ډېر هوښیار سړی و، پوهېده تر هغه وخته چې فرعون د مړیو جنګ ته ورځي د هغه اقدامات به د ژوندو لپاره خطره نه وي او انسان باید احمق وي، چې د مړیو پر خلاف د یوه فرعون د اقدماتو مخه ونیسي او هغه له ځانه خپه کړي.

د نوي خدای او پخواني خدای د پلویانو تر منځ د طبس له کورني جنګه وروسته، لکه چې ومې ویل مصر یوه موده آرام و او ستر کاهن آمي د مالیاتو ترلاسه کول لویو تحصیلدارانو ته وسپارل.

هغوی هم پخپل وار دغه کار یو شمېر وړو تحصیلدارانو ته وسپاره، او له خلکو به یې مالیات اخیستل.

د مالیاتو د اخیستو له هر پړاو وروسته به بې وزله کسانو ددې لپاره چې د چارواکو پام ځانته ور واړوي پر سر ایرې اچولې او جامې به یې شکولې خو چا به ورته پام نه کاوه.

دوی به د قانون پر اساس د مخکنیو کسانو په پرتله تر ډېر فشار لاندې ول، ځکه چې د بېوزله سړي لیدل چې د مالیاتو د مامورانو له ظلم سره مخامخ شوی و، دومره عادي چاره وه، چې چا به پرې زړه نه سوځاوه.

دغه راز د مالیاتو د مامورینو له لوري د مالیاتو د هر پړاو له اخیستو وروسته دغه مامورین نور بډایه کېدل.

دا یو منلی اصل دی چې علاج یې نشته، او تر هغه چې دا نړۍ وي له خلکو به مالیات اخیستل کېږي.

د مالیاتو اخیستونکي مامورین د حکومت په تاوان شتمن کېږي او یوازې په یوې لارې د مالیاتو د اخیستونکو مامورینو د بډاینې مخه نیول کېدای شي، هغه دا چې مالیات نه وي، خو دا چاره ناممکنه ده.

د افق په ښار کې نفر تي تي خپله څلورمه لور وزېږوله او د څلورمې لور لنګون دا سې بدبختي رامنځته کړه چې د سوریې د بلوا بدبختي چې مخکې مې یې شرحه کړه هېره شوه.

نفر تي تي د څلورمې لور له لنګونه وروسته ټول کسان تورنول چې پر هغې یې کوډې کړي دي او اړ کړې یې ده چې بیا لور وزېږوي.

دا طبس ته ولاړه چې د هغه ځای له تورپوستو کوډګرانو مرسته وغواړي چې د نورو د کوډو اغېز ختم کړي

# دري دېرشم څپرکی

## زما پخوانی غلام

خدايانو داسې غوښتل چې هغه تل لوړ وزېږوي او له هغه وروسته بيا هم لوړ وزېږوي چې ان د شپږو لونو مور شوه.

له سوريې څخه هم وړونکي خبرونه را رسېدل.

له سوريې څخه د هرې لوحې، او يا د پخې شوې ختې د لوحې له را رسېدو وروسته د لوحو د ظبطولو برخې ته ورتلم او هغه به مې لوستلې، ځکه چې پخپله فرعون دغه لوحې نه کتلې.

کله چې به ما دغه لوحې لوستلې د خپل غوږ له څنګه به مې د غشو د ويشتلو غږ اورېده، د اور بوی مې احساساوه، د هغو نارينه وو غږونه به مې اورېدل چې خېټه يې څېرل کېږي او د ماشومانو چيغې به مې تر غوږ شوې.

دا ځکه چې د آمورو هېواد عسکر وحشيان دي او د ماشومانو پر وژلو هم صرفه نه کوي، په تېره بيا دا چې د هاتي افسران يې قوماندانان وي.

په هغو لوحو کې چې له سوريې څخه دا خناتون لپاره راتلې د اورشليم او (بيت لوس) د پاچا ليکونه هم ول او له فرعون سره يې خپله وفاداري ځرګندوله.

ده ويل اوس د آمورو د پاچا له خطر سره مخامخ دی، په ډاګه کړې يې وه، چې هاتي د آمورو له پاچا سره مرسته کوي او غوښتل يې چې فرعون وسلې او سپاهيان ورولېږي.

خو فرعون له دغو ليکونو کرکه کوله، هر ليک چې نه لوستل کېدو، هغه به يې د ارشيف مسول ته ورکړ چې ويې ساتي، بيا به زه آرشيف ته ورتلم او دغه ليکونه به مې لوستل.

له سوريې راغلي ليکونه يوازې دوو تنو لوستل، يو زه وم او بل د آرشيف مسول.

کله چې د آمورو پاچا اورشيليم ونيو، د سوريې نور پاچاهان چې پوه شول د آمورو له

پاچا سره مقاومت نه شي کولای نو له هغه سره یو ځای شول.

په دې وخت کې هورم هب چې تر هغه وخته یې په پټه د سوریې له پاچاهانو سره د فلزاتو د لېږلو په وسیله مرسته کوله، له ممفیس ښخه د افق ښار او بیا فرعون ته راغی، ویې ویل: اخناتونه موافقه وکړه چې زه سل ځله سل عسکر راغونډ کړم او له سلو جنګي ګاډیو سره یې سوریې ته واستوم او تر له سوریه بیرته ستا لپاره ونیسم.

اخناتون چې په هغه وخت کې د اورشلیم د ښار د سقوط له امله خواشینی و، وویل:

د اورشلیم پاچا چې اوس یې ما نوم هېر کړی دی، بوډا سړی دی، کله چې زه کوچنی وم په طبس کې زما پلار ته راغلی و، چې اوږده ږیره یې درلوده.

اوس چې اورشلیم د آمورو پاچا لاس ته لوېدلی دی، زه چمتو یم چې د اورشلیم د پاچا تاوان جبران کړم او له دې سره سره چې په مصر کې د مالیاتو د ټولولو حالت ښه نه دی، خو زه به د اورشلیم پاچا ته دوا مدره مرستې ورکړم او هغه ته به د سرو زرو یو طوق ورولېږم چې په غاړه یې کړي او سر لوړی شي.

هورم هب وویل، هغه نور سرلوړی کیدای نه شي، ځکه چې سر یې له تنه جلا شوی دی، د آمورو پاچا د هغه له سره یو جام جوړ کړی او شراب پکې ښښي.

اخناتون وپوښتل، تا له کوم ځایه دغه خبر اورېدلی دی؟

هورم هب وویل، زما جاسوسانو راته دغه خبر راوړی دی.

فرعو ن وویل، زه حیران یم چې د آمورو پاچا ولې دغه کار کړی دی، ځکه چې هغه زما ملګری دی او له ما یې د حیات صلیب تر لاسه کړی دی، خو ښایي ما د هغه په اړه تېروتنه کړې وي او هغه به تور زړی سړی وي.

خو دا چې ته وایې سل ځل سل عسکر چمتو کوې او له جنګي ګاډیو سره یې سوریې ته لېږې، دغه خبره دې د منلو نه ده.

ددې لپاره چې خلک په مصر کې د ډېرو مالیاتو او د محصولاتو د خرابۍ له امله ناخوښه دي او دومره ډېر عسکر او جنګي ګاډۍ نه شو برابرولای.

هورم هب وویل، اوس چې نه غواړې ماته دغه پوځ راکړې نو په آتون قسم در کوم چې لږ تر لږه لس جنګي ګاډۍ او لس ځل لس عسکر راکړه، چې سوریې ته ولاړ شم او هغه شیان وژغورم چې لا د (آمورو) د پاچا لاس ته نه دي ورغلي.

فرعون وویل، زما خدای آتون د وینې تویېدل منع کړي، زه به په سوریې کې ونه

جنګیږم.

زه غوره بولم چې سوریه آزاده او خپلواکه وي، خو په دې شرط چې جنګ ونه شي او له دې وروسته چې سوریه خپلواکه شوه، د سوریې د پاچاهانو یوه اتحادیه جوړه کړه.

موږ به له سوریې سره سوداګري وکړو، ځکه چې سوریه موږ ته اړتیا لري او سریانیان د مصر له غنمو پرته ژوند نه شي کولای.

هورم هب غوسه شوی و، بیا یې هم خپله غوسه کابو کړه او ویې ویل اخناتونه! آیا ته تصور کوې چې د آمورو پاچا له دې وروسته چې سوریه یې ونیوله، یوازې په سوریه به اکتفا وکړي؟

هر مصری نارینه او ماشوم چې وژل کیږي او هر سوري ښار چې د هغه لاس ته ورځي نور هم غښتلی او پیاوړی کیږي

له دې وروسته چې سوریه یې ونیوله، د سینا د ټاټوبي د نیولو فکر به وکړي، موږ به د سینا د مسو له کانه بې برخې شو او د خپلو غشو او نېزو د څوکو د جوړولو لپاره به مس نه لرو.

فرعون وویل، ما یو ځل درته ویلي و، چې د نېزو لرګي تراش کړۍ نو تېره به شي، مسي څوکو ته اړتیا نه لري.

ستا دغه خبرې ددې مخه نیسي چې هغه نوې سندره چې د آتون لپاره مې جوړه کړې بشپړه کړم.

هورم هب وویل، اخناتونه له دې وروسته چې د آمورو پاچا د سینا ټاټوبی ونیو، مصر ته به ننوځي او کوز مصر به ونیسي، ځکه چې سوریه د مصر له غنمو پرته ژوند نه شي کولای.

که ته له سوریې ځخه ډاریږې له هاتي وډار شه، ځکه چې نن سبا هاتي د آمورو د پاچا متحد دی، خو زه د خپلو جاسوسانو په وسیله د هاتي له حالاتو خبر شوی یم او پوهیږم چې د هاتي پاچا به په یوازې سر د مصر د نیولو هڅه ونه کړي.

اخناتون لکه چې یو هوښیار کس د لیوني په خبرو پسې خاندي په کرس وخندل او ویې ویل، هورم هبه! له هغې ورځې چې انسان پیدا شوی تر ننه پورې هیڅ دښمن د مصر خاورې ته نه دی ننوتی، ځکه چې مصر د نړۍ تر ټولو شتمن او قوي هېواد دی.

خو ددې لپاره چې ستا ډار کم شي، تا ته وایم چې هاتیان وحشي خلک دي، په غرونو

کې ژوند کوي، خپلې پادې او مالونه پيايي، دومره بېوزله دي، چې جنګ کولای نه شي او ميتاني هېواد چې زموږ دوست دی، زموږ او هاتي ترمنځ حايل دی.

ما د هاتي پاچا ته د حيات يو صليب لېږلی او د هغه د غوښتنې پر اساس مې لږ سره او سپين زر هم وراستولي دي، چې زما مجسمه پخپل معبد کې ودروي.

هغه چې کله سپينو او سرو ته اړتيا ولري، نو له مايې غواړي او له همدې امله به پر مصر حمله ونه کړي.

ما وليدل چې د هورم هب مخ له غوسې تک سور دی او ممکنه ده نور ونه کړای شي ځان کنټرول کړي.

زه چې د فرعون ډاکټر يم او ددې حالت دوام مې د فرعون په تاوان باله، فکر مې وکړ، چې ښايي فرعون ناروغ شي.

هورم هب مې له فرعونه لېرې کړ او له دې وروسته، چې د اختناتون له مانۍ راووتو، هورم هب وويل دغه سړی د نړۍ له حالاتو او ژونده بې خبره دی.

زموږ ډېر خوار مريان هم د نړۍ د حالاتو په هکله تر ده ډېره پوهه لري، فرعون خيال کوي چې د حيات د صليب يا د زرو په لېږلو سره د هغو کسانو مخه نيولای شو، چې د مصر خاورې ته يې سترګې نيولې دي.

فرعون په دې خبر نه دی، چې مصر د دنيا تر ټولو شتمن هېواد دی، له همدې کبله نور غواړي چې مصر ونيسي او د مصر سره، سپين او غنم د ځان کړي.

عجيبه خو داده چې کله فرعون له ما سره خبرې کوي، له دې سره سره چې پوهېږم تېروتنه کوي، خو بيا يې هم په خبرو خوشحالېږم، ځکه چې هغه دغه خبرې له ډېره صداقته کوي او د درواغو او چل ښنه پکې نه ښکاري.

له هغه مې پوښتنه وکړه او س څه کوې آيا د افق په ښار کې پاتې کېږې که نه ستنېږې؟

هورم هب وويل که په دې ښار کې پاتې شم او د ورځې له پلوه د فرعون مانۍ ته ولاړ شم او د هغه د درباريانو په شان دغه خبرې واورم نو وېرېږم چې په څو ورځو کې به د نورو درباريانو په شان سينې پيدا کړم او تمه راڅخه وکړي چې ماشومانو ته شېدې ورکړم، نو غوره ګڼم چې بير ته ستون شم.

د هورم هب تر تللو وروسته زه ډېر خپه شوم، ځکه چې پوه شوم د هورم هب لپاره ښه ملګری او د فرعون لپاره يو ښه سلاکار نه يم.

زه باید فرعون ته حقیقت ووایم، چې هغه پخپله غلطي پوه شي.

ما چې هاتي او سوریې ته سفر کړی، د آمورو هېواد پاچا مې لیدلی او دا مې هم لیدلي چې په هاتي کې د جنګ لپاره څه ډول تیاري نیول کېږي.

ما باید فرعون پوه کړی وای چې آمورو او هاتي وړونکي دښمنان دي او که ورسره مقاومت ونه شي نو مصر به ونیسي.

مالیدل چې زما د خوب ځای نرم دی، اشپز مې له غوښې، هیلیو او نورو چارپایانو څخه تر ټولو ښه خواړه راته برابروي، ښه اسوده ژوند لرم، نو نه مې غوښتل چې خپل ارام ژوند له لاسه ورکړم.

ماله دې سره سره چې د سرو او سپینو د ټولو لو فکر نه کاوه، خو د مصر په دربار کې مې له سو کاله ژونده خوند اخیست.

زه پوهېدم چې که فرعون ته حقیقت ووایم، خپه به شي، که څه هم کینه نه لري، خو له ډېره خپګانه به ما له درباره وباسي، چې نور مې مخ ونه ګوري.

بله دا چې فکر مې وکړ، زه ډاکټر یم او زما دنده د نارغیو معالجه ده نه د نورو د سپاهیانو مخنیوی.

کله چې فرعون د خپل پوځي قوماندان یانې هورم هب نظر نه مني نو زه چې یو ډاکټر یم، زما رایه به څه ډول ومني؟

له دې سره سره چې فرعون پوهېږي، هورم هب یو پوځي دی، د هغه خبره یې وانه ورېده، نو زما خبره به هم ونه مني او وایي به ته په سیاسي او پوځي چارو نه پوهېږې، نو غوره ده، په هغه کار کې مداخله ونه کړې چې په تا پورې اړه نه لري.

په دې وخت کې د فرعون دویمه لور چې مک تاتون نومېده ناروغه شوه، تبه یې وکړه، ټوخی یې هم درلود او ډنګره شوه.

ما په ډېرې ځیرتیا سره معاینه کړه او پوه شوم چې کومه خاصه ناروغي نه لري، بلکې ناروغي یې د بدن د عمومي کمزورتیا له امله ده او دهغې د غښتلتیا لپاره مې د تقویې محلول ورکړل.

فرعون د مک تاتون په ناروغۍ خپه شو، ځکه چې لونې پرې ګرانې وې او د هغه لومړنۍ او دویمه لور به ډېر ځله په سترو مېلمستیاوو کې له فرعون سره وې.

هرځل چې فرعون غوښتل نورو ته کوم شی ورکړي، په دغو دواړو لونو کې به یې د

یوې په لاس هغه شی ور ډالی کاوه.

له دې وروسته چې مک تاتون ناروغه شوه، له هغې سره د فرعون مینه نوره هم زیاته شوه او دا طبیعي چاره ده، ځکه ناروغ اولاد په پلار ډېر ګران وي.

فرعون به په ورځ کې څو ځله له ماځخه د خپلې ناروغې لور پوښتنه کوله او تل به یې ویل لور به مې مړه شي؟

هغه ته مې ویل، ستا لور کومه خاصه ناروغي نه لري، چې مړه شي د هغې ناروغي د کمزورتیا له امله ده.

فرعون د لور د ناروغۍ له غمه ډنګر شو او ما په دربار کې دوه ناروغان پیدا کړل، یو فرعون او بل د هغه لور.

زما ټول وخت د دغو دوو کسانو په پالنه کې تېرېده، ځکه چې زما لپاره دغه دوه کسان، د مصر تر ټولو ناروغانو او په دې هېواد کې تر ټولو هغو کسانو مهم ول، چې لوړې کړېدل.

له دې کبله چې زما ټول وخت د فرعون او د هغه د لور په معالجې تېرېده، نو اشرافان او درباریان چې به ناروغان شول هغوی مې په دقت نه شوای معاینه کولای.

دوی به ویل سینوهه چې پخوا د مصر تر ټولو تکړه ډاکټر و، اوس کبرجن شوی، له دې کبله چې د فرعون مخصوص ډاکټر دی، فکر کوي چې نور ددې لیاقت نه لري چې دی یې معالجه کړي.

په داسې حال کې چې داسې نه و، او هغه دقت چې ما د فرعون او د هغه د لور په معالجې کې کاوه، ددې مخه یې نیوله چې نور خلک په ځیرتیا سره معاینه کړم او پالنه یې وکړم.

پر دې سربیره زه چاغ شوی وم او د پخوا په شان به چابک نه شوای تللی د سرو ینښتان به مې تویېدل پوهیدم چې ډېر ژر به ګنجی شم د شپې مهال به له ډېرې چاغۍ په خوب کې خورېدم که څه هم، چې له کوره د فرعون ترمانۍ ډېره لاره نه وه خو په دې لاره کې به هم په روان تخت کې سپریدم.

زه پوهیدم تر هغه وخت چې فصل بدل نه شي د فرعون د لور طبیعت به ښه نه شي او همدا چې نیل مست شو او د افق د ښار هوا د مني له امله سړه شوه د مک تا تون طبیعت هم ښه شو او څومره چې نجلۍ تکړه کیده له پلاریې هم ورسره ښه کیده.

کله چې مې ولیدل فرعون او د هغه لور معالجه شوي ، نو فرعون ته مې وویل له دې کبله چې ته اومک تا تون روغ شوي یاست، زه هم اوس په افق کې خاص کار نه لرم ، مو افقه وکړه، چې طبس ته یو سفر وکړم.

ځکه چې روح مې په طبس کې ، د تمساح لکۍ د میخانې په مریت او حتي کاپتا پسې خپه شوی دی.

فرعون وویل زه ستا له سفر سره موافق یم، خو ټولو هغو کسانو ته زما سلام ورسوه چې په لاره کې د آتون لپاره په کرنې بوخت دي او په بیرته راستنېدا کې د هغو حال ماته راوړه.

دغه ځمکې همغه وې چې له پخواني خدای آمون سره وې، فرعون له آمونه واخیستې او پر هغو کسانو یې وویشلې چې د کرنې غوښتونکي ول ، ما له فرعون سره خدای پاماني وکړاو په بېړۍ کې د طبس پر لور روان شوم.

***

په لاره کې مې څو ځله د نیل ساحل پر دوارو غاړو کې دمه وکړه، له کلیوالو سره به مې خبرې کولې او هېڅ د ستړیا احساس مې نه کاوه، ځکه چې په بېړۍ کې زما ځای تر سایوان لاندې هوسا و.

زما اشپز په بلې بېړۍ کې راته خوندوره ډوډۍ پخوله او له دې کبله چې خلکو زموږ لپاره ډالۍ راوړلې، موږ تل تازه خوراکي توکي درلودل.

هغه سیمې چې زه ترې تېرېدم داسې ځمکې وې چې پخوا په آمون پورې اړوندې وې. ما دد غه کتاب په سر کې وویل، له دې کبله چې آمون خدای پر مصر ډېره اوږده موده خدایي کړې وه او د هغه کاهنین بریالي شوي ول چې د مصر ډېره کرنیزه ځمکه د نیل سیند په دواړو غاړو کې واخلي.

د آمون د خدایۍ په وخت کې د مصر ډېرې زراعتي ځمکې یا د آمون د معبد وې او د آمون رعیت به پکې کر کاوه او یا دا چې کروندګرو به ځمکه له آمون څخه اجاره کړه او کر کیله به یې پکې کوله.

په مصر کې زراعتي ځمکه د نیل په دواړو غاړو کې وه او په بله سیمه کې زراعتي ځمکه نه شته، مګر په استثنایي توګه که به په ځینو ځایونو کې چینه موجوده وه، پټي به هم جوړ شوي ول.

فرعون د پخواني خدای ځمکې پر کروندګرو ووېشلې او ډېر شمېر کسان چې

کروندګر نه ول، د پخواني آمون په پټیو کې کروندګر شول او د نیل سیند په دوارو غاړو کې دغه ډول کروندګر لیدل کېدل.

کروندګر ډنګر و کمزوري ول، ښځو به یې د تیو د شېدو له کمي او د خپلو ماشومانو له کمزورتیا شکایت کاوه.

خپل کندوان به یې را وښودل او ویل به یې، وګوره زموږ د غنمو ځیره څومره کمه ده، بله دا چې پخواني خدای پر موږ غضب کړی او ښېراوې یې کړې دي.

ما چې غنمو ته وکتل ومې لیدل، چې دا غونه لري او داسې ښکارېدل چې د وینو څاڅکي پر غنمو څڅېدلي وي.

نویو کروندګرو ویل، کله چې موږ کر کیله پیل کړه، ومو لیدل چې زموږ غنم د فصلونو تر ټولو وروسته دغه ډول دي، فکر مو وکړ چې موږ نه پوهېږو او په کرنې مو سر نه خلاصېږي.

خو وروسته پوه شوو چې پخواني کروندګر هم د محصولاتو له خرابۍ څخه شکایت کوي، نو موږ پوه شوو چې دغه ځمکې د پخواني خدای آمون دي او آمون موږ ته ښېراوې کړې دي.

د غنمو د محصولاتو له کمښته پرته داسې نښې نښانې تر سترګو کېږي چې پخواني خدای پر موږ غوسه دی او سهار چې کله له خوبه را پاڅېږو پخپلو کروندو کې د پښو پلونه وینو، متوجه کېږو چې تنکي نیالګي یې را مات کړي دي.

د اوبو په ځاګانو کې مردار شیان اچول کېږي چې موږ اوبه ونه څښلی شو، زموږ د اوبو لښتي د خاورو او شګو په وسیله بندېږي او زموږ څاروي له ناروغیو مري.

ځینو په داسې حال کې چې فرعون او د هغه خدای ته یې ښېراوې کولې، خپلې ځمکې یې پرېښودې او ښارونو ته ولاړل، چې خپله پخوانۍ دنده پیل کړي.

دوی ویل موږ ددې لپاره چې تر اوسه د فرعون خدای او د هغه صلیب ته هیله من یو له دې ځایه نه یو تللي، موږ فکر کوو چې ښایي د فرعون خدای موږ د پخواني خدای له تاوانونو وژغوري.

موږ احساس کوو، چې د پخواني خدای ځواک د نوي هغه په پرتله ډېر دی او داسې ورځ به راورسېږي، چې موږ به له لوږې مړه شو.

یا به مجبور شو چې د نورو په شان دغه سپېرې ځمکې، چې لعنت پرې شوی پرېږدو

اوښار ته ولاړ شو.

په دې سفر کې زه یو ښوونځي ته هم ولاړم.

کله چې ښوونکو زما زرینه غاړګۍ ولیدله او کتل به یې چې د حیات صلیب مې په غاړه کې پروت دی، نو پوهېدل چې زه د دربار یو شخصیت یم، زما به یې ډېر احترام کاوه، خو خپله نا رضایتي به یې هم نه پټوله او ویل به یې:

موږ د فرعون او د هغه د خدای د رضا لپاره چې نوی خط یې دود کړی، چمتو یو چې ډېر زیار وګالو.

هغه خط چې په نوي خدای ګران دی او وایي چې باید له ماشوموالي زده کړای شي ډېر عامیانه او احمقانه خط دی، چې نه کومه ښکلا لري او نه هغه علمونه ښودلای شي چې موږ زده کړي دي.

له ډوو زرو کلونو راهیسې او د هرمونو د جوړېدا له وختـه تر ننه پورې، زموږ علوم او معارف په پخواني خط لیکل شوي دي.

نن باید هغه ټول شاته پرېږدو او په زور نوی خط زده کړو، چې ټول سواد ولرو.

په داسې حال کې چې هرمونه په زاړه خط جوړ شول، د پخواني خط په وسیله، مصر د نړۍ ستر ملت شو او د هغه علمونو او معارف ،نړۍ روښانه کړه.

موږ ددغه خط د روزلو لپاره لوحې او نی نه لرو ، مجبور یو چې په یوه لرګي د شګو پر سر د ماشومانو لپاره د نوي خط بڼې انځور کړو.

د ماشومانو پلار و مور چې نوی خط د نوي خدای بدعت بولي له موږ څخه ناخوښه دي، په داسې حال کې چې موږ نه بلکې نوی خدای ګنهګار دی.

له دې کبله چې مېندې او پلرونه له موږ څخه خوښ نه دي، نو زموږ اجوره لږه راکوي او د غنمو پیمانه، چې موږ ته یې راکوي سرونه یې تش وي، هغه د زیتون تېل راکوي چې خراب شوي وي او د اوربشو تروې اوبه راکوي.

یو بل شی چې تر اوسه موږ ونه کړای شو فرعون او نوی خدای پرې پوه کړو دا دی، چې نوی خط یوازې هغه ماشومان زده کولای شي چې وړتیا ولري

پخوا هم همداسې و او هغه ماشومان چې بې استعداده ، لیک لوست یې نه شو کولای بله دا چې د فرعون خدای وایي چې باید نجونو ته هم لیک لوست وښودلی شي، په داسې حال کې چې نجونو ته لیک لوست هېڅ ګټه نه لري، ځکه چې نجونې ډاکترانې

،انجنيراني او کاتباني، نه شي جوړېدای.

ما به کله نا کله له ځينو ډاکټرانو څخه امتحان اخيست او پوهېدم به چې د هغوی معلومات ډېر کم دي.

ان دوی به په پخواني خط هم ښه نه پوهېدل، خو ددې لپاره چې اسوده ژوند وکړي، د حيات صليب يې منلی و او ځانونه يې د نوي خدای پيروان ښودل.

کروندګر له ښوونکو ډېر ناخوښ ول، ماته يې ويل سينوهه! ته فرعون ته نژدې يې او هغه ته ووايه چې موږ د نويو ښوونځيو له کړاو او تاوانه وژغوري.

ځکه چې ددې ښوونځيو معلمين د نيل سيند له تمساح ګانو ډېر خواره خوري او په خېټې مينان خلک دي.

هر څومره غنم، د زيتون تېل او د اوربشو او به چې ورکو، دوی وايي لږ دي او که د غنمو په خرڅلاو سره يوه اندازه مس تر لاسه کوو له موږ څخه يې اخلي ان زموږ د غوايانو پوستکي راڅخه اخلي او خرڅوي يې، چې شراب پرې واخلي.

موږ د ورځې له پلوه په بيديا کې کر کيله کوو، دوی مو کورونو ته ورځي او شيان مو لوټوي.

دوی تل غوره او ګران بيه شيان غلا کوي او چې اعتراض کوو چې ولې زموږ شيان پټوئ، وايي، نوي خدای ويلي چې بايد ټول خلک سره مساوي وي.

دوی وايي کله چې يو سړی کوم شی ولري نو دا فرق نه کوي چې خپل يې دی که پردی.

ما دغه شکايت اورېد او د کروندګرو د ستونزو د اوارې لپاره مې هېڅ هم نه شو کولای، ځکه چې فرعون ماته نه و ويلي چې د هغوی د ستونزو د اوارې لپاره کوم اقدام وکړم.

هغه ويلي ول يوازې زما سلام کروندګرو ته ورسوه.

ما هغوی رټل او ويل به مې، کرنه حوصلې، زيار او له بلاګانو سره مبارزې ته اړتيا لري.

تاسې له ډېرې تنبلۍ څخه له بلاګانو سره مبارزه نه کوئ، ځکه خو ستاسې د کروندو محصولات کمېږي.

تاسې که د شپې مهال پام وکړئ نو څوک به ستاسې تازه نيالګی مات نه کړي، ستاسې په څاګانو کې به مردار شيان وانه چوي او ستاسې د اوبو لښتي به نه بندوي.

تاسې ددې لپاره نه غواړئ چې ماشومان مو ښوونځیو ته ولاړ شي چې د ښوونکو اجوره نه ورکوئ، دغه راز غواړئ چې له خپلو بچیانو څخه په پټیو کې استفاده وکړئ او هغوي کار کولو ته اړ کړئ.

که زه د فرعون په شان وای ستاسو په لیدو به شرمېدم، ځکه چې تاسې نه غواړئ، له هغو ځمکو استفاده وکړئ، چې فرعون تاسې ته درکړې، په داسې حال کې چې دغه پټي د مصر تر ټولو ښېرازه، ځمکې دي.

پخواني خدای به تل هغه ځمکې نیولې چې تر ټولو ښې وې او اوس دغه ځمکې له تاسې سره دي، خو تاسې له تنبلۍ څخه دغه کروندې بې ګټې کړې دي، څاروي مو وژلي، چې تازه غوښې یې وخورئ او له پوستکو یې ګټه واخلئ.

هغوی به ویل موږ نه غوښتل چې زموږ ژوند بدل شي، ددې لپاره چې موږ بېوزله وو او زموږ پلرونو ویلي ول، چې کله انسان بېوزله وي باید د بدلون فکر ونه کړي.

ددې لپاره چې هر انقلاب د بېوزلو په زیان او دشتمنو په ګټه دی او د ژوند تر هر بدلون وروسته شتمن، نور هم شتمن کېږي خو د بېوزلو په کندوانو کې غنم او په منګیو کې یې د زیتون تیلو اندازه ورځ په ورځ کمېږي.

ما داسې ښودل چې په دې خبرو باور نه کوم، خو په باطن او په زړه کې د هغوی خبره تایدوم، ددې لپاره چې پوهېدم، په ټولنیز ژوند کې هر بدلون د شتمنو په ګټه او د بېوزلو په زیان وي.

ممکنه ده په موقتي توګه ځینې شتمن بېوزله شي، لکه دا چې د آمون د معبد کاهنانو خپلې ځمکې له لاسه ورکړې او بېوزله شول.

خو دغه پېښه هغه زیان و، چې یوازې یوې پرګنې ته رسېږي او بیا هم له یو ستر ټولنیز بدلون نه وروسته ټولې ګټې وتې د شتمنو په برخه کېږي او بېوزله به همغه راز بېوزله وي یا به نور هم بېوزله کېږي.

فرعون پخوانی خدای له منځه یووړ او د هغه ځمکې یې پر کروندګرو وویشلې چې د بېوزلو او شتمنو توپیر ختم کړي.

خو نن سبا یو شمېر درباریان، شتمن او اشرافان او یو شمېر طفیلي کسانو چې ځانونه د آتون پلویان بولي، د پخوانیو کاهنانو ځای نیولی دی.

دوی له دې پرته چې کار وکړي، په آسانه هرڅه تر لاسه کوي، زه هم د هغوی په شان یو

طفیلي شوی سړی یم، ځکه چې ما هم د هغوی په شان ګټور کار نه کاوه.

د آتون پلوي نوي کاهنانو، ټول بې سواده ښوونکي او ټول اشرافان چې ځانونه نوي خدای ته معتقد معرفي کوي، داسې طفیلي ژوي او وړې دي چې د سپيو په وړيو کې وي.

د غه وړې تل د سپي له وینې څخه تغذیه کېږي، له دې پرته چې کوم کار وکړو، موږ تل د مصر د ملت له وینې استفاده کوو، خو د مصریانو لپاره کومه ګټه نه لرو.

هغه وړې چې د سپي په بدن کې وي ممکنه ده خیال وکړي، چې له سپي غوره دي او سپي ددې لپاره پنځول شوي، چې هغوی تغذیه کړي یانې اصلي ژوي دوی دي، سپي فرعي ژوي دي.

موږ هم فکر کوو چې اصلي او اوچت موجودات موږ یو او د مصر ملت ددې لپاره پیدا شوی، چې موږ تغذیه کړي، خو همغه ډول چې سپي د وړو له نه شتونه سوکاله او ارام وي، که د مصر ملت زموږ په شان د طفیلي موجوداتو له شره خلاص شي نو نېکمرغه به شي.

زه په دې سوچ سخت خپه شوم، ګني زه یو طفیلي او مفت خور موجود یم او په دې وخت کې د کروندګرو تنبلي راته چتې خبره ښکاره شوه.

زموږ بېړۍ د طبس پلاره کې حرکت ته دوام ورکړ، تر دې چې درې ګوني غرونه چې د طبس دایمي ساتوونکي دي راڅرګند شول او د ښار ودانۍ او باغونه ولیدل شول.

له کلونو جلا وطنۍ وروسته د طبس په لیدو ډېر خوشحال شوم، داسې لکه چې سمندر کچ کوونکي له لېرې سیمو، څخه طبس ته راستانه شوي وي، د نیل په سیند کې مې دوه پیمانې شراب په ځان واړول او ځان مې پرې وو ینځه.

زموږ بېړۍ د طبس ډبرین بندر ته ورسېده، نو د بندر د ولاړو اوبو او د کټو د مسالې خوږ بوی، یانې د طبس همېشنی وږم مې احساس کړ.

خپل کور ته چې مخکې د یوه مسګر کور و، ولاړم او هلته مې موجوده ونه ولیده او را په یاد شول چې دغه ونه ما ایښې وه.

خو دغه کور ماته کوچنی ښکاره شو، ځکه چې زه د افق په ښار کې په داسې کور کې اوسېدم چې یوې ماڼۍ ته ورته و، او له همدې امله د پخواني کور په لیدو خوشحال نه شوم.

په دې وخت کې پوه شوم او وشرمېدم چې فاسد شوی یم، ځکه تر هغه وخته چې څوک فاسد شوی نه وي، پخوانی ساده ژوند، چې له هاندو هڅې، فعالیت او انسان دوستۍ سره یو ځای وو، هغه ته سپک او وړوکی نه ښکاري.

کله چې د کار او له بېوزلو سره د مرستې او لاس نیوي مرکز د انسان له نظره ډېر وړوکی ښکاره شي، دلیل یې دا وي چې شتمني او تجملاتو د هغه روح تیاره کړی او د عاطفې سرچینه یې وروچه کړې.

زما مریی کاپتا په کور کې نه و، خو بوډۍ نوکره موتي موجوده وه، چې زه یې ولیدم ویې ویل، دغه ورځ بختوره ده چې بادار مې پکې راستون شو.

خو په دې پوه شه چې زه ستا د راتلو په تمه نه وم، ځکه مې ستا کوټه نه ده منظمه کړې او کالي مې نه دي وینځلي.

نارینه په ټولو ځایونو کې یو شان دي، ناڅاپه ځي، او کله چې څوک د هغوی د ستنېدا په انتظار کې نه وي بیرته به راستانه شي.

ومې ویل موتي له دې کبله چې کور زما د هر کلي لپاره چمتو نه دی، زه به تر هغه په بیړه کې واړوم چې زما کور چمتو شي.

ایا کاپتا ګوري او د هغه له وضعې خبره یې؟

موتي وویل، کاپتا کله نا کله خو ډېر لږ دې کور ته راځي.

هغه نن سبا ډېر شتمن شوی دی او کله چې له ما سره خبرې کوي پوهوي مې چې له ما سره ډېر تو پیر لري.

که ته غواړې هغه وګورې نو د تمساح لکۍ میخانې ته ولاړ شه...

زه د تمساح لکۍ میخانې پر لور روان شوم، مریت زما لور ته راغله ګورم چې چاغه شوې ده، خو ښکلا یې لا هم پر خپل ځای وه.

له دې کبله چې ما ګران بېه جامې اغوستې وې او زرینه غاړګۍ او د حیات صلیب مې په غاړه کې و، او ساختګي وېښتان مې درلودل نو مریت و نه پېژندم، ویې ویل، ایا تا په میخانه کې د ځان لپاره ځای نیولی دی، ځکه چې که ځای دې نه وي اجاره کړی، زه دې دلته هر کلی نه شم کولی.

ومې ویل: مریت! زه داحق درکوم چې ما و نه پېژنې، ځکه کله چې یوه ښځه ډېره موده له یوه سړي لېرې وي او په دې موده کې یې ډېر سړي په غېږه کې نیولي وي، نو هغه

لو مړی سړی به هېر کړي.

خو زه له سفره راستون شوی یم او یو جام یخو شرابو ته اړتیا لرم، یو څوکۍ هم راوړه چې پرې کېنم، بیا یو جام شراب را باند وڅښبه.

مریت له حیرانۍ ناري کړې سینوهه! دا ته یې.... بختوره ده دغه ورځ چې ته یې دلته راستون کړې.

مریت په بیړه چوکۍ راوړه او زه یې کېنولم، پخپله زما په مخکې ودرېده، ځیر ځیر یې راته کتل ویې ویل، سینوهه! ته چاغ شوی یې او ستا سترګې د پخوا په شان ځلا نه لري، خو اوس پکې د کرارۍ او خوښۍ نښې لیدل کېږي.

ته اوس هغه سړي ته ورته یې چې له ژونده یې هر څه غوښتي وي، هغه یې ترلاسه کړي وي او ځان بل شي ته محتاج نه ګڼي.

بیا یې زما له سره ساختګي ویښتان لېرې کړل او پر سر یې لاس راتېر کړ ویې ویل، سینوهه! اوس د ځوانو او ښکلو ښځو په شان ویښتان نه لرې، او زه دغه ګنجی سر د نورو سړیو تر ګڼو ویښتانو ډېر خوښوم، اوس به زه درته شراب راوړم.

ما ورته وویل مریت! ماته د تمساح لکۍ شراب مه راوړه، ځکه چې نه مې معده دغه شراب زغملای شي او نه مې سر.

مریت پر مخ لاس راتېر کړ او ویې ویل سینوهه! ایا زه ډېره زړه او چاغه شوې یم، چې ته کله ماته را ورسېدې، د معدې او سر فکر کوې

ځکه کله چې پر یو سړي کومه ښځه ګرانه وي، نه د معدې فکر کوي او نه د سر فکر ورسره وي، خو کله چې مینه له منځه ځي، په دې وخت کې سړی له خوړو او شرابو شکایت کوي.

په دغه وخت کې وایي دغه خواړه خوندور نه دي، یا دا چې درانه دي او هغه شراب زما معده په تکلیفوي او سر درد پیدا کوي.

ومې خندل مې ویل مریت! دا خبره ومنه چې زه هغه پخوانی ځوان سړی نه یم او د عمر تېریدا پر یوه بوډا سړي بدل کړی یم.

د سر ویښتان مې توی شوي دي، ډېر ژر به مې غاښونه هم ولوېږي او باید ساختګي غاښونه کېږدم او بله دا چې د یوه بوډا معده د یوه ځوان له معدې سره توپیر لري.

مریت وویل، ته بوډا نه یې ځکه کله چې مې ولیدې زړه مې وغوښتل له تا سره تفریح

وکړم او که بوډا وای زه به درته لېواله شوې نه وم.

له یوې ښځې پرته بل هېڅوک د یوه سړي په ځوانۍ او بوډاتوب ښه نه پوهېږي، کله چې یوې ښځې یو سړی ولید او له سرو او سپینو پرته یې له هغه سره ساعت تیري ته زړه وشو، نو دا په دې مانا ده چې هغه سړی ځوان دی او په دې اړه د ښځو سلیقه تېروتنه نه کوي

خو اوس دا راته ووایه چې د تمساح لکۍ درته راوړم که نور شراب؟

ما لکه چې هغې ښځې ته وویل په سر کې مې نه غوښتل د تمساح لکۍ شراب وخورم، خو وروسته مې ورته وویل د تمساح لکۍ راوړه، ځکه له یوې مودې راهیسې له تا لېرې وم، بیا غواړم پخوانی تاندوالی او شوق په ځان کې ژوندی کړم.

مریت ولاړه او د تمساح لکۍ یو جام شراب یې راوړل، زما په لاس کې یې کېښودل او ما پر سر واړول.

که څه هم ستونی مې وسوځېد او سترګې مې له اوښکو ډکې شوې خو څو شېبې وروسته مې ځان دومره تاند احساس کړ، چې د مریت په لاس کې مې لاس کېښود او ومې ویل، مریت! تا سمه خبره کوله.

زه لا بوډا شوی نه یم، ځکه زما زړه ځوان دی او چې ته مې ولیدې احساس مې وکړ، چې د پخوا په شان ستا غوښتونکی یم.

باید تا ته ووایم چې زه به دې هېڅکله هېره نکړم، په دې کلونو کې چې له تا لېرې وم هر ځل چې مې توتکۍ لیدلې؛ چې د طبس پر لور الوځي هغوی ته مې ویل چې مریت ته زما سلامونه ورسوئ.

مریت وویل، سینوهه! زه هم تل ستا په فکر کې وم او هر ځل چې کوم سړی زما په څنګ کې ویدېده او خپل لاس یې زما پر لاس اېښود، ما به ستا په هکله فکر کاوه او غمجنه به شوم.

دا ځکه چې پوهېدم له هېڅ سړي سره ساعت تېري او تفریح هومره خوند نه لري لکه له تا سره.

کله به مې له ځان سره ویل، چې زه دې هېره کړې یم، ځکه چې د افق په ښار کې د فرعون په ماڼۍ کې ډېرې ښکلې ښځې شته او تا له هغوی سره تفریح کولای شوه.

ومې ویل مریت! سمه ده چې د فرعون په ماڼۍ کې ډېرې ښکلې ښځې شته، خو ته زما یوازېنۍ ملګرې یې او له طبسه چې وتلی یم هېڅ یوه ښځه مې نه ده ملګرې کړې.

مریت وویل کله چې کاپتا فرصت پیدا کاوه او په میخانې کې کېناست ما او هغه به ستا په هکله خبرې کولې.

کاپتا ستا ښېګڼې بیانولې ویل به یې، ساده زړی سړی یې، که په لېږې پرتو هېوادونو کې هغه له تاسره نه و، او ته یې له خطرو نه وې ژغورلی، نو وژل شوی به وې.

زه د تمساح لکۍ تودوخې ډېر هیجاني او مست کړی وم و مې ویل آه.... زما پخوانی او وفاداره نوکر کاپتا چیرته دی چې زه یې په غیږ کې ونیسم، ځکه له دې سره سره چې اوس زما په شان د یوه سړي لپاره د پخواني مریي په غیږ کې نیول غوره کار نه دی خو بیا هم هغه پر ما ګران دی.

مریت وویل، کاپتا د ورځې له پلوه میخانې ته نه راځي، ځکه چې د ورځې له پلوه خپل وخت د غنمو په بازار او هغو میخانو کې تېروي چې د سترو معاملو مرکزونه دي.

اوس که تا ولید حیران به شې، ځکه چې کاپتا دا ښځي هېره کړې چې پخوا یو مریي و.

نن ورته ځان یو حقیقي بادار او شتمن ښکاري.

زه چې د تمساح لکۍ له څښلو وروسته هیجاني شوی وم مریت وویل غوارې ولاړ شو او په ښار کې لږ وګرځو چې باد دربندې ولګېږي او دغه راز وګورې چې په طبس کې ستا په نه شتون کې کوم بدلون نه راغلي دي.

ومې ویل هو ...چمتو یم چې له تاسره چکر ته ولاړ شم، ځکه چې له تا سره چکر وهل ډېر خوند لري.

مریت ولاړه او مخ یې سینګار کړ، د زرو غاړکۍ یې هم په غاړه کړه چې راستنه شوه ډېره ښکلې شوې وه، روح بښوونکي عطر یې پر ځان شیندلي ول او دا داسې عطر دي، چې یوازې په طبس کې پیدا کېږي.

روان تخت یې راوست زه او مریت پکې سپاره او روان شو، چې د آمون پخواني معبد ته نژدې د قوچانو واټ ته ورسېدو ما ولیدل، چې د مریت د خبرو اپوته طبس هېڅ بدل شوی نه دی.

د پخواني جنګ ورانۍ، همغه راز څرګندې دي او چا نه دي جوړې کړې.

یوازې په څو برخو کې د پخوانیو نړېدلو ودانیو پر ځای نوې ودانۍ جوړېږي.

کله چې د آمون پخواني معبد ته ورسېدو، په حیرانۍ سره مې ولیدل چې کارغان لا هم هلته الوت کوي، ځکه چې سپېرو مرغانو له کورني جنګه وروسته لا کډه نه وه کړې او

عادت يې کړی و، چې د پخواني معبد له پاسه والوزي.
زه او مريت له روان تخته راکوز شوو، ومو ليدل چې په معبد کې ګنه ګونه نشته، يوازې، د دارالحيات په مخکې او د مړګ د کور په مخکې يو څو تنه ښوري.
زه پوهېدم چې دارالحيات او د مړګ کور لا هم د آمون په پخواني معبد کې دي، ځکه چې بل ځای ته ددغو دواړو موسسو انتقال ډېر سخت دی او لګښت يې هم ډېر وي.
مريت راته وويل، له دې سره سره چې دارالحيات شته، خو فرعون ورته پام نه کوي، ځکه يې تېر برم نه دی پاتې.
ډېر ډاکټران چې تل به په دارالحيات کې ول، له هغه ځايه تللي او په ښار کې يې کورونه جوړ کړي دي.
د آمون ستر باغونه د بې پامۍ له امله وچ شوي ول، او ځينې پخوانۍ ونې يې چپه کړې وې.
کله چې ما وليدل، دغه معبد چې يو وخت د نړۍ ستر علمي مرکز و، په دې ډول دی، نو ډېر خواشينی شوم.
ما د ځوانۍ عمر په دې معبد يانې دارالحيات کې تېر کړی و، او تصور کوم هر څوک هغه ځای چې ځواني يې پکې تېره کړې وي، په بوډا توب کې وران وويني خواشينی کېږي.
مجسمې چپه شوې او پر ډېوالونو د آمون نوم پاک شوی و.
کله چې دارالحيات ته نژدې شوم، هلته داسې کسان ول چې په غوسې يې ماته کتل.
مريت وويل سينوهه! دغه د حيات صليب له غاړې لېرې کړه او يا يې پټ کړه، ځکه کله چې دغه کسان ستا صليب ګوري فکر کوي چې ته د آتون پلوی يې او ممکنه ده په ډبرو دې وولي او يا دې په چړې ووژني.
مريت سمه خبره کوله، خلک زما د صليب په ليدو غوسه شوي ول، په تېره بيا هغه کاهن چې د پخوانيو کاهنانو په شان يې سپينې جامې اغوستې وې، سر يې خرييلی او په تېلو غوړ کړی و او هلته ګرځېد.
فرعون بنديز لګولی و، چې د پخواني خدای کاهنان بايد سپينې جامې وانه غوندي، سرونه ونه خريي او تيل پرې ونه موښي.
دغه راز دوی د آمون معبد ته هم نه شي تللی، خو دغه کاهن په ستايونکې جرائت د پخواني خدای د کاهنانو په جامو کې د خلکو په منځ کې ګرځېد.

کله چې به د خلکو په منځ کې تېرېده، خلکو به ورته لاره پرانستله او رکوع به یې ورته کوله.

زه متوجه شوم چې که دغه کاهن زما صلیب وګوري او اشاره وکړي چې خلک ما ووژني، نو بې له ځنډه به زما وینه وبهوي، ان که په دې هم پوه شي چې زه د فرعون خاص ډاکټر یم.

ځکه چې په مصر کې یوازې یو کس سپېڅلی او د خدای زوی دی، هغه هم فرعون دی.

له همدې امله خلک هېڅکله یو فرعون نه وژني، خو شاو خوا کسان عادي خلک ورته ښکاري او وژل یې هم ورته اهمیت نه لري.

ما خپل لاس د حیات پر صلیب چې په غاړه مې و، کېښود چې خلک یې ونه ګوري او له مریت سره یو ځای له دارالحیات څخه لېرې شوم.

د معبد دېوال ته چې ور نژدې شوم، هلته مې ولیدل چې یو کیسه خوان سړی نکل کوي او یو شمېر کسان پرې راټول دي چې ځیني ناست او ځیني ولاړ ول.

څوک چې نه وېرېدل چې جامې او لنګ یې چټل نه شي پرلتې یې وهلې وې، پر ځمکه ناست ول او د کیسه خوان نکل یې اورېده او چا چې نه غوښتل جامې یې خیرنې شي ولاړ ول، د هغه نکل یې اورېد.

د نکل ویونکي کیسه ماته نوې ښکاره شوه، له دې سره سره چې په ماشومتوب کې مور راته د مصر ټولې کیسې کړې وې، خو ما تر دې ورځې پورې دغه کیسه نه وه اورېدلې.

دغه کیسه په لنډه توګه داسې وه: پخوا یوه توزپوستې کوډګره چې له (ست) څخه یې الهام اخیست (په پخواني مصر کې ست په ورپسې پیړیو کې د شیطان معادل و) له خپلې خېټې یو جعلي فرعون وزېږاوه او دغه فرعون له دې وروسته چې پاچا شو، د ست پیروي یې پیل کړه.

ست چې به هر څه ورته ویل هغه به یې ترسره کول او د(ست )د حکم پر اساس یې د مصر د خدای مجسمې رنګې کړې.

بیا خدای د مصر په ملت عذاب نازل کړ، د مصر په کروندو کې غنم نه شنه کېدل او که به شنه شول نو خراب به ول.

د نیل سیند مستو څپو ددې پر ځای چې پټې ښیراز کړي، د خلکو کورونه به یې وړل او هر کال به ملخانو د مصر د کروندو غله دانه خوړله او په لښتیو کې به اوبو د وینو رنګ

پیداکاوه.

له دې سره چې فرعون د(ست ) د حکم پر اساس د مصر خدای را پرځولی و، د مصر خلکو خپله عقیده نه وه بایللې او په پخواني خدای یې عقیده درلوده.

له همدې امله د فرعون خدای په خوارۍ او بدبختۍ کې مړ شو او هغه تورپوستې ښځه هم مړه شوه چې دغه جعلي فرعون یې زېږولی و چې له دې سره پخوانی خدای بیرته راستون شو.

ده د فرعون او دهغه د پیروانو ټولې کړوندې، سره او سپین زر پر خپلو هغو پیروانو وویشل چې هغه ته وفادار پاتې ول.

دغه کیسه ډېره خوږه وه، کله چې خلک پوه شول پخوانی خدای راستون شو خپلو پیروانو ته یې انعام ورکړ، نو داسې خوشحاله شول چې ټوپونه یې وهل او نارې سورې یې پیل کړې.

کیسه ویونکي ته یې د مسو هومره حلقې ورکړې چې هغه مجبور شو خپلې کړۍ په یو ټوکر کې تاوکړي او له ځان سره یې یوسي.

کله چې خلک تیت و پرک شول مورږ هم نیت وکړ، چې ستانه شو.

ما مریت ته وویل دغه کیسه ډېره په زړه پورې وه، خو عجیبه داده چې له او سنیو حالاتو سره برابره ده.

زه حیران یم، چې دغه کیسه ویونکي څرنګه جرئت وکړ چې دغه کیسه ووایي.

مریت وویل دغه د دروغو نکل نه دی او نه یې دغه کیسه له خپلې خېټې ویلې، بلکې د آمون د پخواني معبد کاهنانو په هغو کتابونو کې موندلې، چې له ننه کابو زر کاله مخکې لیکل شوي دي.

که د فرعون مامورین وغواړي، چې د هغه مخه ونیسي، نو کیسه ویونکی به ورته ووایي چې دغه کیسه په کتابونو کې لیکل شوې حقیقت لري او هېڅوک هغه د دواغو ویلو په جرم نه شي نیولی.

ومې ویل، زه هورم هب پېژنم، چې په مصر کې د نظم د ساتلو د مامورینو مشر دی او پوهېږم چې هغه ډېر سخت سړی دی او په خدایانو هم عقیده نه لري، خو د فرعون امر په سمه توګه اجراکوي. مریت وویل، هورم هب چې هر څومره سخت ګیره وي، د یو کیسه ویونکي مخه نه شي نیولای، مګر دا چې کیسه ویونکی دروغ ووایي او اوس خو دغه

کيسه ويوونکي دروا غ نه دي ويلي، هرڅه چې يې ويلي له کتابه يې ويلي دي

خو خلک يوازې دغه کيسې نه اوري بلکې د دغو غيب ويلو په هکله هم يو بل ته کيسې کوي.

که ته د طبس په واټونو کې وګرځې ، نو و به وينې چې کله دوه ښاريان له يوه بله سره خبرې کوي ، نو همدغه غيبي خبرې کوي.

د مصر حالات هم دغه غيب ويل تايدوي، ځکه چې د غنمو بيه لوړېږي، د ماليا تو د ترلاسه کولو مامورين لا له مخکې د ہر خلک ځوروي او په ډېرو سيمو کې پر کروندو لعنت شوی دی، خراب غنم ترې شنه کېږي، کروندګر نه دغه غنم خوړلای شي او نه يې خرڅولای شي.

په همدې خبرو خبرو کې ، زه او مريت د تمساح لکۍ ميخانې ته ورسېدو او ميخانې ته له رسېدو نيم ساعت نه و، تېر شوی چې څراغونه يې ولګول او د څراغونو له روښانه کولو وروسته کاپتا هم ميخانې ته ننوت.

خو کاپتا چاغ شوی و، کله چې يې غوښتل ميخانې ته ننوځي په يوې اوږې له دروازې ننوت، ځکه چې د هغه لويه خېټه د ميخانې په دروازې کې نه ځايېدله.

مخ يې د سپوږمۍ په شان ګرد ښکارېده، پخپلې ړندې سترګې يې يوه ټوټه سره زر او پر سر يې شنه ساختګي ويښتان ايښي ول، په غاړه او لاسونو کې يې غاړکۍ او بنګړي ول.

کاپتا د طبس د خانانو او شتمنو په شان جامې اغوستې وې، د هغه چا په شان يې ګامونه اخيستل چې پخپل لوړاوي يې باور وي.

خو کله چې يې زه وليدم له خوشحالۍ يې چيغې کړې او ويې ويل، بختوره ده، دغه ورځ چې زه يکې خپل ارباب وينم.

بيا يې زړه غوښتل چې رکوع وکړي، خو له دې کبله چې خېټه يې لويه وه، لاسونه يې زنګونو ته نه رسېدل، ددې پرځای پر ځمکه کېناست، زما پښې يې ونيولې او ويې ژړل.

ما له ځمکې را پورته کړ او په غېږ کې مې ونيو، خپله پوزه مې د هغه پر وليو او مخ کېښودله او هغه هم خپله پوزه زما پر مخ او وليو کېښودله، د ميخانې مشتريانو ته يې په خطاب کې وويل، نن د خوشحالۍ ورځ ده، له همدې امله هر مشتري ته چې اوس په ميخانه کې دی، يو جام شراب وړيا ورکوم، خو د دويم جام بايد بيه ورکړي.

وروسته کاپتا له ځان سره یوې خصوصي کوټې ته بوتلم، مریت ته یې ویل، ته زما له بادار سره اوسه، ځکه چې پر هغه ګرانه یې او که له ترې لیرې شې خپه به شي.

مریت زما او کاپتا تر څنګ کېناسته.

کاپتا امر وکړ چې موږ ته سرې کړې هیلې راوړي او له کلونو وروسته ما د طبس سره کړې هیلۍ وخوړه چې په هېڅ ځای کې داسې خوندوره ډوډۍ نه پخېږي.

له ډوډۍ وروسته، کاپتا وویل، زما ګرانه باداره! زه پوهېږم چې تول هغه لیکونه او حسابونه چې په دې څو کلونو کې مې تا ته درلېږلي د افق په ښار کې تاته رسېدلي دي.

ته د خپلو کارونو په څرنګوالي خبر یې او اړتیا نشته، چې زه د کارونو پر څرنګوالي او پخوانیو حسابونو باندې درسره خبرې وکړم، خو هیله کوم اجازه راکړې د نن شپې، دغه ډوډۍ او هغه شراب چې مشتریانو ته مې ورکړي ستا په کاته کې ولیکم.

ما د مالیاتو په ورکولو کې، ستا لپاره بچت کړی او د مالیاتو د ترلاسه کولو مامورین مې غولولي او د نن شپې لګښت ستا لپاره اهمیت نه لري.

زه پوهېدم چې کاپتا په فطري توګه کنجوس دی، نو څه مې ونه ویل.

کاپتا وویل، ایا زما له لیکونو او په تېره بیا زما له حساب کتابه چې تا ته در رسېدل خوشحاله شوې؟

ومې ویل، کاپتا! ما ستا لیکونه او حساب، کتاب ترلاسه کړی، خو پر حسابونو مې سر خلاص نه شو، ځکه چې دومره شمېرنې یې درلودې چې سړی ګنګس کوي او ما چې به حسابونو ته ځغلنده کتنه هم کوله سربداله کېدم.

کاپتا چې شراب یې څښلي ول، وخندل، مریت هم ورسره په خندا شوه، خو کله چې کاپتا خندا بس کړه ویې ویل، زما ګرانه باداره! زه خوشحاله شوم چې ګورم ته د پخوا په شان ساده یې او پر جدي او اساسي کارونو دې سر نه خلاصېږي.

له دې سره سره چې نه غواړم تا له سرکوزي سره پرتله کړم، خو لا هم د هغه سر کوزي په شان یې چې د سرو زرو غاړکۍ یې مخکې کېږدي خو څنګه چې سرکوزی نه پوهېږي په هغې غاړکۍ څه وکړي؟ ته هم له دې غاړکۍ څخه د استفادې په چل نه پوهېږې.

زما ګرانه باداره! ته باید د مصر له خدایانو راضي شې او د هغوی شکر پر ځای کړې چې زما په شان یو نوکر یې در په برخه کړ، ځکه چې که یو غل نوکر در په برخه شوی وای نو په ډېره لنډه موده کې به یې په تورو خاورو کېنولی وې، په داسې حال کې چې ما شتمن

کړي يې.

ومې ويل کاپتا! فکر کوم اړتيا نشته چې د مصر له خدايانو راضي واوسم، ځکه دا زه وم چې ته مې انتخاب کړې.

ايا په ياد دې دي، چې کله مې رانيولې، ته يې د مريیانو د پلورلو په چوک کې په يوې ستنې پورې تړلی وې او تا له هغه ځايه پر تېرېدونکو ښځو ملنډې وهلې.

له هغوی سره دې بدې ټوکې کولې، له خلکو دې د اوربشو اوبه غوښتې، خو چا نه درکولې.

له دې کبله چې يوه سترګه دې درلوده او ډنګر وې، هېچا تا ته توجه نه کوله، چې ودې پېري، خو کله چې زه د مريیانو د پېرلو بازار ته ننوتم ته مې رانيولې، ځکه چې په هغه وخت کې يو ځوان او بېوزله ډاکټر وم او ګران بيه مريي مې نه شو اخيستلای.

کاپتا چې زما خبرې واورېدې، خپه شو څېره يې ګونځې شوه، ويې ويل، زما باداره ښه نه ده چې پخوانۍ خاطرې در په زړه کړې، ځکه چې دغه خاطرې ما خپه کوي، زما حيثيت ته تاوان رسوي او بله ګټه نه لري.

خو ستا د شتمنۍ په هکله بايد ووايم چې د مالياتو د ترلاسه کولو د مامورينو له مزاحمتونو سره سره ماشتمن کړی يې او دوه سرياني کاتبان مې ګمارلي، چې د ماليې لپاره ستا شتمنۍ حساب کړي.

سرياني مامورين مې له دې کبله ګمارلي، چې لومړی خو ماليه پر هغوی ډېر باور لري او دويمه خبره دا ده چې د يوه سرياني کاتب پر حساب د مالياتو د مامورينو سر نه خلاصېږي او حتی (ست) هم د سرياني کاتبانو په حسابونو نه پوهېږي، ان که ستا د پخواني ملګري هورم هب ټول ملګري هم له هغوی سره مرسته وکړي.

رښتيا اوس چې د هورم هب خبره ياده شوه، بايد ووايم چې ستا له سپارښتنې سره سم مې يوه اندازه سره او سپين هغه ته پور ورکړل او بيا هم ستا د سپارښتنې پر اساس مې د دغه پور د ترلاسه کولو لپاره ټينګار ونه کړ، ځکه چې پوهېدم که ټينګار وکړم له هغه سره ستا ملګرتيا خرابېږي.

پوهېږم ته دا سې سړی يې چې پخپلې شتمنۍ نه يې خبر، خو بايد درته ووايم، چې زما د خدماتو او زحمتونو له امله ته اوس د مصر يو لوی شتمن يې او ستا شمتني سره او سپين زر نه دي، بلکې حقيقي شتمني لري.

سره او سپين د وخت په تېرېدا سره ممکنه ده، خپل ارزښت له لاسه ورکړي، خو ځمکه ،مالونه، کور، بېړۍ او مريان هېڅکله خپل ارزښت نه بايلي.

ځومره چې د سرو او سپينو ارزښت کمېږي، د ځمکو ،کورونو بېړيو او مرييانو ارزښت هومره زياتېږي.

زه پوهېږم چې ته د خپلې شتمنۍ په اندازې نه يې خبر، ځکه چې ما ستا د کروندو او کورونو يوه برخه د خپلو نوکرانو او کاتبانو په نوم کړې ده او لامل يې دا دی چې د مالياتو له مامورينو ستا د شتمنۍ يوه برخه پټه پاتې شي.

هغه ماليات چې فرعون لګولي دي، پر شتمنو فشار زياتوي، بېوزلي بايد په پينځو برخو کې يوه برخه د ماليې په توګه ورکړي او شتمن بايد په دريو کې يوه برخه شتمني د ماليې په توګه ورکړي.

که دچا محصول ډېر زيات وي نيمايي يې ترې اخلي.

د سوريې له لاسه تللو او دغو درنو مالياتو، مصر بېوزله کړی، خو مصر چې ځومره بېوزله شي، شتمن نور هم بډايه کېږي او بېوزلي نور هم بېوزله کېږي او دا د هغو هېوادونو ځانګړتيا ده، چې له بېوزلۍ سره مخامخېږي.

خو ته سينوهه! اوس په شتمنو کې راځې او ورځ په ورځ دې شتمني زياتېږي، بايد درته ووايم، چې ددې شتمنۍ يوه برخه د غنمو د احتکار له امله ستا په برخه شوې ده.

کاپتا ،يو غوړپ شراب وڅښل او ويې ويل:

زما باداره! په هغو هېوادونو کې چې د ورانۍ پر لور ځي، نو ځينې کروندې پکې شاړې پاتې کېږي، همدغه ډول اوس په مصر کې د کروندو يوه برخه شاړه پاتې ده، نو د غنمو بيه لوړېږي. زه ډېر ژر په دې خبرې پوه شوم او متوجه شوم چې په غنمو کې هېڅکله ځوک تاوان نه کوي، ځکه چې هر کال د تېر هغه په پرتله ګرانېږي.

له همدې امله د غنمو په اخيستو پسې شوم او له هر کال وروسته مې غنم په لوړه بيه خرڅول.

اوس پوه شوی يم، چې په بل کال کې د غنمو خرڅول تېروتنه ده، نو بايد غنم احتکار کړو ، ځکه چې هره مياشت د تېرې هغې په پرتله د غنمو بيه لوړېږي.

ځوک چې نن خپل غنم خرڅوي که هر ځومره يې ګران خرڅ کړي، بيا به هم خپه وي، ځکه چې سبا به تر نن هم غنم ډېر ګران وي.

له همدې امله چې هرڅومره کېدای شي، زه غنم اخلم او اوس ستا د بيو ګانې له غلې ډکې دي، خو هغه به خرڅې نه کړم، ځکه چې پوهېږم بيا به هم د غنمو بيه لوړه شي.

کاپتا زما او مريت لپاره شراب واچول او ويې ويل، زه د فرعون ډېره مننه کوم او له خدايانو غواړم، چې هغه ته سل ځله، سل کاله عمر ورکړي

ځکه څومره چې فرعون ډېر عمر وکړي، خلک نور هم بېوزله کېږي او څومره چې خلک بېوزله شي هومره به مجبور شي، چې خپلې ښځې ،ځمکې، زامن او نجونې د څو پيمانو غنمو لپاره خرڅ کړي.

په دې ډول به موږ په وړيا توګه د خلکو ځمکې ونيسو او د هغوی زامن ،لوڼې او ښځې به وينځې او مريان کړو.

کاپتا چې دې خبرو خوند ورکاوه، وويل، تل دې وي فرعون او د هغه خدای آتون، چې شتمن مياشت په مياشت شتمن کوي او بېوزله له يوه فصله بل ته نور هم بېوزله کوي

موږ ته وخت راکوي، چې د مصر ټولې ځمکې، باغونه او کورونه واخلو، نارينه او ښځې خپل مريان او وينځې کړو.

اې باداره ! ته دغه تصور ونه کړې، چې زه به نن سبا له تا څخه د پخوا په پرتله ډېره غلا کوم.

له تا دغه خبره نه پټوم چې کله کله زه له دې کبله خواشينی کېږم چې ولې دومره صادق يم او که ما ښځه او اولادونه درلودای ، نو حتماً به يې ملامتولم چې ولې ستا له شتمنۍ څخه ډېره غلا نه کوم.

ځکه چې اې لويه باداره ! او اې ستر سينوهه ! لا تراوسه د مصر خدايانو ستا په شان بل ساده بادرا نه دی پيدا کړی، خدايانو ته ددې لپاره پيدا کړی يې چې انسان در څخه غلا وکړي.

ما او مريت د کاپتا خبرو ته خندل او کاپتا وويل، زما باداره ! هغه شتمني چې ته يې نن لرې له مالياتو او ځينو متفرقه خرڅونو پرته سوچه ګټه لرې.

متفرقه او تيت و پرک خرڅې هغه رشوتونه دي، چې ما د مالياتو د ترلاسه کولو مامورينو ته ورکړي دي ، چې له تا سره مرسته وکړي ځينې نور تيت و پرک لګښتونه هغه شراب دي، چې ما د مالياتو د ترلاسه کولو په مامورينو څښلي دي، ځکه کله چې غواړې د مصري کاتبينو حسابونه وګورې، نو سرونه يې ور ګرم کړه چې سترګې يې حسابونه ښه

ونه کتلای شي.

کاپتا خپلو خبرو ته دوام ورکړ:

ته نه پوهېږې چې د مالیاتو دغه مامورین، که ډېر شراب هم و خوري بیا هم نه نشه کېږي او سترګې یې نه تیاره کېږي.

په تیت و پرک لګښت کې هغه غنم هم راځي، چې زه یې بېوزلو او هغو کسانو ته ورکوم چې پوهېږم، هر چېرته چې ځي نو په چاپسې خبرې کوي

ددې لپاره چې ستا صفت او ستاینه وکړي او ووایي، چې سینوهه خپل ټول غنم ولس ته ببښي، دغه کار اړین دی او دا د شتمن کېدا یو چل دی.

یو شتمن هر کال، سلګونو کورنیو له منځه وړي او د هغوی ځمکې نیسي، نارینه او ښځې مریيان او وینځې جوړوي، د غنمو او نورو غلو، دا نو په احتکار سره بیې لوړوي او سلګونه کسان له لوږې وژني او په بدل کې یې خپلې کوټې له سرو او سپینو ډکوي.

دوی د دې ټولې ګټې په بدل کې یو موټی غنم یا هم لږ سره او سپین زر څو تنو بېوزلو ته ورکړي ، او هغوی چې هر ځای ته ځي بیا نو وایي چې دغه شتمن خپل هرڅه بېوزلو ته ورکوي، شپه او ورځ د بېوزلو د سوکالۍ لپاره کار و زیار کوي

ددې چل ګټه په دې کې ده، چې لومړی بېوزلي یا هغه کسان چې زما له لاسه بېوزله، مریان او وینځې شوي او شتمن کسان دواړه له تاسره رخه او بخیلي کوي چې ولې شتمن شوی یې؟

دویمه دا چې کله د مصر حالت خراب شي او د آتون خدای له منځه ولاړ شي، نو څوک دا لټه نه کوي، چې ستا د غنمو او غلو ګودامونه وسوځوي او ستا کورونه وران کړي، یا تا ووژني، ځکه چې خلک تا یو زړه سواند او مهربان کس بولي.

له دې وروسته چې کاپتا خپلې خبرې خلاصې کړې، لاسونه یې پر ټټر کېښودل، داسې ښکارېدل چې زما د ستاینې په تمه دی.

ما ووېل کاپتا ! نو په دې ډول زه پخپلو ګودامونو کې پریمانه غنم لرم.

کاپتا ووېل، هو ! ته نن په مصر کې تر ټولو ډېر غنم لرې.

ومې ویل کاپتا ! اوس د غنمو د کرلو وخت دی؟

کاپتا ووېل، هو ! له همدې امله غنم ډېر لږ پیدا کېږي، ته باید ډېر ژر هغو کروندګرو ته ولاړ شې، چې د پخواني خدای آمون، پر ځمکو کې دهقاني کوي او زما غنم پر هغو

خلکو وو ښي چې تخم ته اړتيا لري، ځکه چې هغوی د کرلو لپاره غنم نه لري او د هغوی غنم مرض وهلي دي.

ما پخپله وليدل چې د هغوی غنم، د وينې په رنګ سرې ټاپې لري.

کاپتا وويل، ګران باداره! ته خپل فکر په دې ناسمو پلانونو مه ستړی کوه، پرېږده، چې زه ستا په ځای فکر او فيصله وکړم.

په سر کې چې کله کروندګرو د آمون په پټيو کې کر پيل کړ، ګودام لرونکو، ورته د کر او خوراک دواړو لپاره د نويو حاصلاتو تر ټولو پورې غنم پور ورکول.

داسې ټاکل شوې وه چې د هرې پيمانې غنمو په بدل کې د فصل د اخيستو په وخت دوه پيمانې غنم بيرته وسپاري.

خو له دې کبله چې کروندګرو ددغه پور د ورکولو وس نه درلود پور ورکونکي مجبور شول د هغو مالونه ترې واخلي او کله چې به کروندګرو مال او څاروي نه درلودل هر څه به يې له لاسه ورکړل.

خو نن سبا غنم دومره ګران شوي، چې که ته د فصل د اخيستو او د درمند د ټولولو پر وخت د غنمو د پور پر ځای د هغوی څاروي هم ترې واخلې، نو ډېره ګټه به دې نه وي کړي.

ځکه غنم ګران شوي او که يې په بازارکې خرڅ کړې تر هغه به ډېره ګټه وکړې، چې څاروي ترې غصب کړې.

پر دې سربېره د غنمو د کرلو لپاره کروندګرو ته د تخم لپاره په پور د غنمو ورکول د سوداګرۍ له پلوه ناسم کار دی، ځکه چې زموږ د کار او مسلک غوښتنه دا ده، چې سږ کال غنم ونه کرل شي.

له دې سره به په بازارونو کې د غنمو بيه لوړه شي، نو موږ بايد کروندګرو ته غنم ورنه کړو، چې د تخم په ځای يې وکاروي او وې کري.

ځکه چې لومړی خو هغوی د فصل د اخيستو پر وخت او د درمند د ټولولو پر وخت زموږ پور نه شي راکولای او موږ يې بايد څاروي ترې واخلو چې دا چاره زموږ په ګټه نه ده.

دويمه دا چې د هوښيارۍ خبره دا ده، چې که ځمکه ونه کرل شي، ښه ده، ځکه چې د غنمو بيه به زياته شي.

دريمه خبره دا ده چې ګودام داران به له موږ سره د ښمني پيل کړي چې ولې مو کروندګرو ته په پور غنم ورکړي دي؟

د کاپتا په څوب کې مې وويل، هغه څه چې زه يې درته وايم ويې منه، زما غنم پر کروندګرو ووېشه او هغوی ته ووايه چې دغه غنم د آختاتون او دهغه د خدای آتون په نوم درکوم، ځکه چې فرعون پر ما ګران دی، له همدې امله يې د خدای درناوی کوم.

ما کروندګر وليدل چې هډوکي يې تر پوستکي لاندې داسې ښکارېدل لکه په کانونوکې کارګران، ما وليدل چې د کروندګرو د ښځو سينې، د يوه وچ شوي ژي په شان ځوړندې دي، هغوی خپلو ماشومانو ته شېدې نه شي ورکولای.

ما وليدل چې د هغوی لوی ماشومان هم وږي دي او سترګې يې له ډېرې لوږې، کړاغې راوتلي دي.

له همدې امله بايد ته زما غنم پر کروندګرو ووېشې او ورته ووايې چې فرعون او د هغه خدای آتون دغه غنم تاسې ته په پور درکوي، چې ګټه ترې واخلئ او پخپلو ځمکو کې يې وکرئ.

خو زه نه غواړم چې دغه غنم په وړيا توګه پر هغو ووېشل شي، ځکه چې تجربې ښودلې، کله چې څوک وړيا يو شی ترلاسه کوي، د هغه په قدر نه پوهېږي او له همدې امله مصري کروندګر د آمون له هغو پټيو او څارويو څخه چې فرعون ورکړي ول ګټه وانه خيسته.

که فرعون په سمه بيه دغه پټي او څاروي ورکړي وای او بيه يې په کيستونو ترې اخيستې وای، نو کروندګر به مجبور شوي وای، چې له ځمکو او څارويو څخه استفاده وکړي او تنبلي ونه کړي.

هغه پور چې ته يې کروندګرو ته ورکوې بايد سود ونه لري او هغوی ته ووايه چې د هرې پيمانې غنمو په بدل کې، د درمندونو په وخت کې بايد يوه پيمانه غنم بيرته راکړي او ته يې وڅاره چې دوی بايد دغه غنم په پټيو کې وکري.

کله چې کاپتا دغه خبرې واورېدې ساندې يې پيل کړې، ګرېوان يې وشکاوه او ويې ويل، زما باداره! ته بيا راغلې او زه دې له بدبختيو سره مخامخ کړم، زه څه ډول د هرې پيمانې غنمو په بدل کې د درمند پر وخت هغه يوه پيمانه غنم بيرته ترلاسه کړم؟

که زه د هرې پيمانې غنمو په بدل کې همدومره غنم ترلاسه کړم له چا به غلا کوم؟ ځکه چې زه ستا له شيانو غلا نه شم کولای، نو بايد د نورو له شيانو غلا وکړم.

زه نه شم کولای چې د فرعون په نوم او د هغه خدای آتون په نوم کروندګرو ته غنم په پور

ورکړم. ځکه چې آمون به ښېرا راته وکړي.

زه د فرعون او د هغه د مامورينو له وېرې د غه خبرې په ډاګه نه شم کولای، خو له دې کبله چې دلته پردي څوک نشته ځکه د غه ډول خبرې کوم او وايم چې پخوانی خدای آمون ډېر قوي دی.

د هغه کاهنان که څه هم ظاهراً قدرت نه لري، خو اوس يې د آتون پر ټولو کروندګرو او کروندو لعنت کړی دی، له همدې امله د آتون کروندګر ورېږي او د هغوی په ځمکو کې مرض وهلي غنم راشنه کېږي.

کله چې کاپتا د غه خبرې کولې ما له ډېرې ګرمۍ، ساختګي وېښتان له سره لېرې کړل او کله چې د کاپتا سترګې زما پر ګنجي سر ولګېدې ويې ويل، اوو زما باداره! ايا ستا سر هم ګنجی شوی دی؟... ايا غواړې داسې درمل درکړم، چې د سر وېښتان دې بېرته راشنه کړي او تر پخوا هم ښکلي وېښتان ولرې؟

دا تر ټولو ښه درمل دي، چې په مصر کې رامنځته شوي او لا د دارالحيات ډاکټران ترې نه دي خبر.

هر چا چې کارولي ښه نتيجه يې ورکړې، زه يې ستايلی يم، خو يوازې يوه کس شکايت وکړ او ويې ويل، د دغو درملو د استفادې له امله يې پر سر داسې وېښتان راشنه شوي چې، د حيواناتو د وړيو په شان دي او د تورپوستو په شان ګارګوتي دي.

کاپتا ځکه ګډې وډې خبرې پيل کړې، چې په دې ډول زه خپله فيصله هېره کړم، خو ما پوه کړ، چې پر خپل هوډ کلک ولاړ يم او زما غنم بايد پر کروندګرو ووېشل شي.

کله چې کاپتا متوجه شو، چې زه ټوکې نه کوم ويې ويل، زما باداره! ايا لېونی سپي داړلی يې، که دې د لړم نيش په بدن کې ننوتی دی چې لېونی شوی يې؟ ستا دغه فيصله به مونږ د ډېوالیه کړي او بيا به د يوې نمرۍ ډوډۍ د تر لاسه کولو لپاره زيار ګالو.

زه هم ستا په شان د ږنګرو کروندګرو په ليدو خپه کېږم، خو زه داسې ځای ته نه ځم، چې د غه ډول کروندګر ووينم چې تر پوستوکي لاندې يې هډوکي ښکاري.

زه که په کوم ځای کې ورسره مخامخ شم مخ ترې اړوم، ځکه انسان چې کله يو شی ويني نو اغېزمن کېږي، خو کله چې غمجن شيان او مسلې ونه ګوري نو نه اغېزمن کېږي.

يو شی چې زه يې خپه کړی يم دادی، چې ته وايې زه بايد ولاړ شم او پر کروندګرو غنم ووېشم، دا ډېر سترې کوونکی کار دی، ځکه چې د نيل پر غاړه د مصر کروندې، يوې

جبې ته ورته دي.

که زما پښه په ختـه کې ننوتـه، پر ځمکـه به ولـوېږم او يا به د اوبو لګولو په يوه ستر لښتي کې ډوب شم، ځکه چې نن سبا بوډا يم او د پښوا په شان ستوماني نه شم زغملای.

ومې ويل کاپتا! تا پښوا دروغ ويل او ما تصور وکړ چې اوس شتمن شوی يې او دروغ ويل به دې پرېښي وي.

خو اوس چې ګورم بيا هم د پښوا په شان دروغجن يې.

ته نن سبا تر پښوا ډېر ځوان ښکارې، ځکه چې پښوا دې لاسونه او پښې رېږدېدل او اوس دې لاسونه نه رېږدي.

پښوا به دې سترګه سره شوې وه، خو اوس دې سترګه نه سره کېږي، مګر هغه وخت چې شراب وڅښې.

ته ډېر چاغ شوی يې او زه د يوه ډاکټر په توګه ستا لپاره دا سفر ضروري بولم، ځکه چې ډېره چاغي درته تاوان کوي، پر زړه دې فشار راوړي او ساه دې لنډه لنډه کېږي.

کله که پلی وګرځې، نو ډنګر به شې او زموږ په شان به په چالاکۍ سره پر لاره ځې.

ايا پر زړه دې دي، کله چې د بابل په لارو کې پلي ګرځېدو، ته به څنګه چالاکه روان وې، ايا پر زړه دې دي، چې د لبنان په غرونو کې مو څنګه مسافرت کاوه او ته به خومره ګړندی غرونو ته ورختلې.

که زه د فرعون خاص ډاکټر نه وای، نو حتماً له تا سره په دې سفر کې ملګری کېدم، کروندګرو ته ورتلم او غنم مې پرې وېشل، خو له دې کبله چې د فرعون ځانګړی ډاکټر يم، نو که يې هره ورځ په کار شم له طبس څخه به ځم.

بالاخره کاپتا تسليم شو او موافقه يې وکړه، چې زما په حکم کار وکړي.

موږ تر نيمې شپې شراب وڅښل، کاپتا د تېرو سفرونو کيسې او خاطرې بيان کړې او کله به يې زه او مريت خندولو.

مريت خپلې سينې لوڅې کړې، چې زه لاس پرې ورکېږدم، کله چې کاپتا ستړی شو او غوښتل يې ولاړ شي ويده شي، نو مريت راته وويل، اجازه به رانه کړې چې د ويدېدا لپاره ستنه شم.

مريت له ما سره منګی نه و، مات کړی (يانې له قانوني پلوه زما ښځه شوې نه وه، ژباړن)

خو پر دې شپه يې له ما سره دومره مينه وکړه چې تصور کوم، که بلې هرې ښځې له ما سره

منګی مات کړی وای، نو دومره مینه به یې راسره نه وای کړې.

په دې شپه چې مې کله له مریت څخه پوښتنه وکړه، ایا له ماسره منګی ماتوې؟ هغې ځواب راکړ سینوهه! ته د فرعون ډاکټر یې او زه ستا لیاقت نه لرم، ځکه چې زه د یوې میخانې نوکره یم او ستا خور (ستا مېرمن ژباړن) باید هغه ښځه وي، چې چا په میخانې کې د شرابو ورکولو پر وخت نه وي لیدلې.

په بل سهار باید زه په طبس کې د فرعون مور ته ورغلی وای چې ټول ترې ډارېږي.

تر دې وړاندې چې د هغې ماڼۍ ته ورننوځم، بېرې ته ستون شوم چې د کتان جامې واغوندم او بیا په غاړه کې د سرو زرو طوق او د حیات صلیب ځوړند کړم.

کله چې د جامو د بدلولو په حال کې وم، موتي راننوته او ویې ویل اې زما باداره! بختوره ده هغه ورځ چې ته طبس ته راستون شوې، خو بېګا دې د نورو سرپانو په شان چلند وکړ او ددې پر ځای چې کور ته راشې او هغه ډوډۍ چې ما درته پخه کړې وه، وخورې، میخانې ته ولاړې او له دې ښځې سره دې (هدف یې مریت وه) شپه تېره کړه.

ما پرون ستا تر تللو وروسته مریان وګمارل او کومو چې تنبلي کوله، هغوی مې په متروکو ووهل، چې ژر ژر کور را پاک او ستره شي او ته وکړای شې د شپې مهال کور ته راشې.

خو ته رانه غلې او له همدې امله زه نن په تا پسې راغلم، غواړم، چې تا له ځان سره کور ته بوځم او هغه خواړه وخورې چې ما نن سهار درته برابر کړي دي.

که له دې ښځې څخه لېرې کېدای نه شې نو غوره ده، چې هغه هم له ځانه سره کور ته راولې.

ځکه چې کور ته ددې ښځې راوستل تر دې ډېر ښه دي چې د هغې د کتو لپاره میخانې ته راشې او کور چې ستا د هوساینې ځای دی، خو ته ترې لېرې پاتې شې.

زه پوهېدم، چې موتي د مریت ښکلا ستایي او هغه د دوستۍ وړ مېرمن بولي، خو عادت یې کړی و، چې د غسې خبرې وکړي او د خپلو خبرو سبک او روده نه شوه بدلولای.

ځکه مې یو سړی میخانې ته واستاوه، چې مریت ته ووایي ژر را روانه شي او زما کور ته راشي، ځکه چې زما نوکرې موتي طبس ته زما د ستنېدا لپاره په کور کې یو وړوکی جشن جوړ کړی دی.

پر روان تخت سپور شوم او د کور پر لور روان شوم، موتي زما د روان تخت په څنګ

کې روانه وه او ویل یې باداره ! ما تصور کاوه، کله چې ته په افق ښار کې پاتې شوې او په دربار کې مېشت شوې ته به ارام سړی شې، خو اوس چې ګورم د پخوا په شان عیاش یې او له ښځو سره دې مینه دومره ډېره شوې، چې طبس ته له تنوتو سره سم میخانې ته راغلې چې ځان ښځو ته ورسوې.

پرون چې له افقه نوی راغلی وې، ما ولیدل چې سترګې دې ځلېدلې او اننګي دې سره او ګرد ول، خو له دې کبله چې یوه شپه له دې ښځې سره وې اننګي دې تنوتې دي او سترګې دې تورې او لویدلې ښکاري.

دغه موضوع د دې ښودنه کوي، چې له ښځو سره لېونی مینه لرې، ځکه کوم سړی چې په اعتدال کې له ښځو سره ساعت تېري کوي، دومره ژر یې څېره نه بدلېږي

خو ډېر نارینه داسې نه دي او غواړي چې تل له ښځو سره ساعت تېري وکړي.

کور ته تر رسېدو پورې موتي همداسې خبرې کولې او بالاخره مې هغې ته وویل، اې ښځې ! ستا دغه خبرې مې پر غوږ داسې لګي لکه د مچانو بنګېدا، غلې شه !

موتي غلې شوه، خو زه پوهېدم، چې خوشحاله ده، ځکه چې بریالی شوه ما کور ته راستون کړي، موتي او مریبانو کور په ګلانو ښایسته کړی و.

موتي د بلاګانو د لېرې کولو لپاره یوه مړه پیشو د ګاونډي د کور په مخ کې واچوله او ثو ماشومان یې وګمارل، چې کله زه کور ته ننوځم نو دوی په لوړ غږ ووایي (بختوره ده هغه ورځ چې زما بادار بېرته راستون شوی دی)

موتي ځکه دغه ماشومان ددې کار لپاره وګمارل چې غوښتل یې زه بچیان پیدا کړم او ویل به یې په هغه کور کې، چې ماشوم نه وي تاندوالی پکې نه وي.

خو هغې په یوه شرط زما لپاره د ماشوم هیله کوله، چې کور ته کومه ښځه رانه ولم، ځکه چې موتي زما په کور کې د بلې ښځې د اوسېدو زغم نه درلود.

له دې کبله چې له ښځې پرته ماشوم نه پیدا کېږي نو ما هم ماشوم نه پیدا کاوه او د موتي هیله مې نه شوای پوره کولای.

کله چې ماشومانو په لوړ غږ او خاص تون ثو ځله وویل (بختوره ده هغه ورځ چې زموږ بادار بیرته راستون شوی دی) ما هغوی ته ثو کړه مس ورکړل او موتي په شاتو کې پخې کړې ثو پتیرې پرې وویشلې چې ماشومان په خوشحالی سره ولاړل.

له دې وروسته چې زه کور ته ننوتم مریت هم راغله، ما ولیدله چې ځان یې په ګلانو

سینګار کړی دی او په بدن یې عطر وهلي و.

موتي زموږ لپاره خوندور خواړه برابر کړي ول، هغه خواړه چې یوازې په طبس کې پخېږي او ما یې په بل هېڅ ځای کې ساری و نه لید.

ما او مریت ډوډۍ خوړله، مریت دوه ځله په ډېرې مینې د موتي خواړه وستایل، موتي په زړه کې خوشاله شوه، خو ددې لپاره چې خپله خوشحالي یې پټه کړې وي، سترګې یې کش کړې او داسې یې وښودله چې د هغې له ستایلو کرکه کوي.

په دې کور کې چې اوس زما او مخکې د یوه مسګر کور و، د ډوډۍ پر وخت د مریت تر څنګ داسې خوشال وم، چې له اوبو جوړ ترازو (ساعت، ژباړن)ته په خطاب کې مې وویل، خپل څاڅکي بند کړه چې دغه شېبې همداسې پاتې شي، ځکه کله چې دغه شېبې له منځه ولاړې شي، بیایي ساری یې بل وخت پیدا نه شي.

زما په کور کې له مریت سره د ډوډۍ خوړل داسې مهمه پېښه نه وه، چې زه یې په اړه ډېرې خبرې وکړم، خو له دې کبله پرې غږېږم، چې انسان د نیکمرغۍ د موندلو لپاره سفرونه کوي او د نړۍ ګوټ ګوټ ته مزل کوي، خو کله چې خپل کور ته ستنېږي، پوهېږي هغه نیکمرغي چې ده ورپسې مزلونه کول د هغه په کور کې ده او چټي یې د خوشبختۍ د لټون لپاره نړۍ کچ کړې ده.

له دې وروسته چې ډوډۍ وخوړل شوه، ما ولیدل، چې زموږ د سیمې یو شمېر ښوزلي او زما ځینې، پخواني ناروغان زموږ په انګړ کې ګرځي.

دوی داسې ښکارېدل چې ځینې پکې شتمن شوي دي، ځکه نوې جامې یې اغوستې وې.

یوه پکې د نورو په استازیتوب وویل، سینوهه! تر هغه وخته چې ته په دې سیمه کې اوسېدلې او په وړیا توګه دې زموږ معالجه کوله، موږ دې په قدر نه پوهېدو.

خو له دې وروسته چې له دې ځایه ولاړې، موږ پوه شوو، چې ستا شتون څومره زموږ په ګټه او موږ ته غنیمت و.

اوس چې راستون شوی یې، ستا په لیدو ډېر خوشحاله یو او دغه ورځ، چې ستا د راستنېدا ورځ ده، بختوره ګڼو.

بیا یې هغه ډالۍ راکړې چې زما لپاره یې راوړې وې.

ددغو ډالیو بیه، ډېره لوړه نه وه، خو له دې کبله چې په مینه یې راکړې، نو زه پرې ډېر

خوشحال شوم.

زه پوه شوم چې زموږ د سیمې ځینې ښوزله نور هم ښوزله شوي دي، ځکه چې د فرعون نوي خدای هغوی ته ځینې ستونزې پیدا کړي وې، چې د هغوی دندې او کار ته یې تاوان رساوه.

یوه ښوزله ماته یوه پیمانه سبوس راوړل، سبوس د هغو کسانو خوراک دی، چې غنم نه شي اخیستلای.

بل ښوزله یو مرغه راته ډالۍ کړ، چې په ډېرې یې ښکار کړی.

یوه سړي څو دانې وچې خرماوې زما مخته کېښودلې او یوه ښوزله ځوان یو ګل راکړ.

په ناروغانو کې مې یو بوډا کاتب هم ولید، چې په ستوني کې یې ججوری درلود(دې ناروغۍ ته اوس ګواتر یا د ججوري ناروغي وایي. ژباړن ) او سر یې ټیټ کړی و.

د هغه په لیدو حیران شوم، ځکه چې تمه مې نه کوله هغه دې ژوندی وي او هغه مریی مې هم ولید، چې ما یې ګوتې معالجه کړې وې، هغه خپلې ګوتې را وښودې، پوه شوم چې ښې ښه شوی دی.

یوه نجلۍ چې په ارزانه بیه یې ځان خرڅاوه، هم زما ناروغه وه او ما پخوا د هغې سترګه معالجه کړې وه.

هغې خپلې ټولې ملګرې هم ماته را واستولې، چې زه یې بدني نیمګرتیاوې ورته لېرې کړم.

دغه نجلۍ چې اوس پنډه او غټه ښځه شوې وه، زما پخوانۍ ناروغه وه، چې ما په نورو کې شتمنه لیدله.

ځکه چې دې ښځې د شتو او فلزاتو د ټولولو فکر درلود او هغه فلزات به یې غونډول چې په ارزانه بیه یې، د ځان په پلورلو تر لاسه کول.

دې ښځې څو میخانې اخیستې وې، بیا یې په اجاره ورکړې وې

په یوې کې یې د ځان لپاره د عطرو د خرڅلاو دوکان جوړ کړی و، او په عین حال کې یې، چې عطر به یې خرڅول، د هغو ښځو ادرسونه به یې هم خپلو مشتریانو ته ورکول چې ځانونه ارزانه خرڅوي.

ما د ټولو ډالۍ په ډېرې خوشحالۍ ومنلې او له دې کبله، چې په دې ورځ زما کور ته ځینې راغلي ښوزله ناروغانو معالجې ته اړتیا درلوده، ما هم د کتان جامې وایستلې او د

هغو معالجه مې پیل کړه.

مریت هم خپلې جا مې وایستلې او د ناروغانو په معالجه کې یې مرسته راسره وکړه.

د ناروغانو په تېپونو به یې پټۍ لګولې، زما چاړه به یې پاکوله او په اور کې به یې اېښودله او یا به یې د هغو کسانو په رګونو کې ترياک پېچکاري کول، چې د غاښ درد یې درلود، چې د غاښ ایستلو پر وخت د درد احساس ونه کړي.

زه متوجه شوم چې زما ناروغان حتي مېرمنې، له دې امله ډېرې خوشحالې وې، چې مریت له ما سره مرسته کوي، ځکه چې مریت ډېر ښکلی اندام درلود، چې هېڅ ډول جامو د هغې د اندام ښکلا نه شوه پټولای.

کله چې د ناروغانو په معالجې بوخت شوم، ناڅاپه مې ځان هماغه سینوهه ولید چې پخوا بېوزله و، او د بېوزلو معالجه یې کوله.

له دې کبله چې تر اوسه د مقام، شتمنۍ او په دربار کې د پاتې کېدا له امله فاسد شوی نه وم، نو ځان مې ډېر نېکمرغه احساساوه.

او له دې امله چې ښکلې مریت هم د ناروغانو په معالجه کې له ما سره مرسته کوله نور مې هم ځان نېکمرغه احساساوه.

بیا به مې په زړه کې ترازو (د هغه وخت د اوبو ساعت ته یې ترازو یا مېزان وایه ژباړن) ته ویل اې ترازو ! د اوبو بهیر و دروه، ځکه چې اوس ځان نېکمرغه ګنم او ډارېږم، چې که د نیکمرغۍ دغه شېبې تېرې شي بیر ته به راستنې نه شي.

کله چې وروستی ناروغ معالجه شو او زما له کوره ولاړ، پوه شوم چې لمر لوېدو، ته نژدې کېږي، خو زه لا د فرعون د مور کور ته نه وم تللی.

مریت چې پوه شوه زه باید د فرعون د مور کور ته ولاړ شم او به یې راوړې، ما ځان ژر ژر ووینځه، دې راسره مرسته وکړه چې جامې واغوندم او د سرو زرو غاړګۍ او د حیات صلیب یې را پر غاړه کړ.

کله چې مې غوښتل له کوره را ووځم ویې ویل، سینوهه ! د فرعون د مور په کور کې ډېر مه ایسارېږه ! هڅه وکړه ژر بیرته راشې، ځکه چې د کور پوزي ستا په تمه دي.

# څلور دېرشم څپرکی

## د فرعون مور

دفرعون دمور مانۍ ته دتللو لپاره باید په بېړۍ کې سپور شوی واي.

په بېړۍ کې سپور شوم او پارووهونکو ته مې وويل همت وکړئ ژر پارو ووهئ او که د ستورو تر روښانه کېدا پورې ما د فرعون د مور مانۍ ته بوځئ تاسې ته به زر درکړم.

پارو وهونکو داسې په بېړه پارو واهه چې دبېړۍ څوکې د اوبو د ځیرلو پر وخت، د بېړۍ دواړو غاړو ته دېوالونه جوړ کړي ول.

په اسمان کې دوه ستوري لا نه و، روښانه شوي، چې زه د فرعون د مور کور ته ورسېدم.

تر دې وړاندې چې ووایم د فرعون مور خپل حضور ته څه ډول ومنلم او څه یې وويل؟

لومړی باید یادونه وکړم چې هغه دوه ځله له طبسه د افق ښار ته راغله، خو په افق کې پاتې نه شوه ځکه هغې له دغه ښاره کرکه کوله او د نوي خدای په اړه یې د خپل زوی کړنلاره نه وه خوښه.

دې به ويل، نوي خدای په مصر کې د ژوند نظم ګډوډ کړی او خلک یې خپه کړي دي.

خو پر فرعون مور ډېر ګرانه وه، له همدې امله یې هېڅکله له مور سره جنجال نه کاوه.

دود او دستور داد ی چې کله یو هلک واده نه وي کړی نو د مور پر وړاندې تر هغې ورځې ړوند او کوڼ وي، چې واده وکړي او ښځه یې غوږونه او سترګې ورخلاصې کړي.

خو د فرعون ښځه نفر تي تي چې د آتون د ستر کاهن آمي لور وه د پلار په خاطر یې د فرعون د سترګو او غوږونو د خلاصولو فکر نه کاوه، ځکه چې پوهېده ستر کاهن له (تي ئي) سره د ورور او خور اړيکي درلودل او هر ځل ستر کاهن د دې لپاره د فرعون د مور مانۍ ته ورته چې له (تي ئي) سره مجلس وکړي.

پر دې خبرې ټول، ان د سلطنتي مانۍ (هغه مانۍ چې د فرعون مور پکې اوسید) ساتونکي لا پوهېدل.

خو یوازې په افق ښار کې فرعون له دې موضوع بې خبره و، حتی ځینو ویل، چې د تې ئي وروستی لور هم د فرعون نه بلکې د ستر کاهن لور ده.

زه تصور کوم، له هغې ورځې چې مصر او فرعون رامنځته شوي، له استثنایي مواردو پرته د فرعون مور د غه ډول کارونه کړي او له دې دود سره سم یې بچیان پیدا شوي، خو څوک یې پرې نه خبرول.

ځکه په هر پړاو کې، هغه کسان چې له دې موضوع خبر دي هغوی یې په پاپیروس نه لیکي چې راتلونکي خلک ترې خبرشي، بلکې دغه راز ساتي.

کله چې دوی مړه شول د هغوی راز هم له منځه ځي.

په هر پړاو په تېره بیا په دې پړاو کې، همداسې دي چې د فرعون د مور د ژوند حالات نه لیکل کېږي، چې خلک او راتلونکي نسلونه ترې خبر شي.

په هر پړاو کې هغه کسان چې د فرعون په دربار کې ژوند کوي پر دې خبره پوه او زه هم د فرعون د ډاکټر په توګه له دې موضوع خبر یم.

له هغې ورځې چې اخناتون د مصر پر خلکو نوی خدای تپلی د پخواني خدای کاهنان وايي، چې حتي اخناتون د خپل پلار زوی نه دی او تي ئي د اخناتون د پلار په ژوند کې هم په همدې دود ژوند کاوه او اخناتون هم په همدې ډول پیدا شوی دی.

زه جرئت نه کوم چې دغه اوازه تایید کړم، باور لرم چې فرعون د خدایانو زوی دی، ځکه د مصر پاچاهي هغه نعمت دی، چې خدایان یې فرعون ته ورکوي.

خو باوري یم، چې د پخواني فرعون په ژوند کې په داسې حال کې چې لا د نوي خدای موضوع منځ ته نه وه راغلې، د آمون کاهنانو له فرعون سره دښمني پیل کړه.

هغه مهال هم دا اوازه موجوده وه چې دغه فرعون د خپل پلار زوی نه دی.

په هر حال، کله چې پر دې ورځ د تي ئي سلطنتي ماڼۍ ته ننوتم د فرعون مور زه یوې کوټې ته ور وبللم.

ددې کوټې پر دېوالونو ډېر قفسونه راځوړند ول او په هر قفس کې مرغان هم تر سترګو کېدل چې ځینو پکې الوت کاوه.

تي ئي له ماشومتوبه د مرغانو له نیولو سره علاقه درلوده، هره ورځ به یې د ونو پر څانګو سرېښناک کنډ موښل او مرغان چې به پرې کېناستل بیا ترې نه شوای پورته کېدای.

دې به پر همدغه ډول نیول او په قفس کې به یې واچول، اوس هم کله ناکله دغه لوبه کوي.

کله چې زه د تي ئي کوټې ته ننوتم ومې لیدل چې پوزي جوړوي او رنګین نقشونه یې پکې اچولي دي.

ماته یې وویل سینوهه! ولې وځنډېدې؟ ایا تا وعده نه وه کړې، چې نن سهار به راځې؟

ما وویل ستا زوی یو لړ دندې راسپارلې وې او ویل یې طبس ته له ننوتو سره سم باید هغه تر سره کړې، بیا زما مور ته ورشه.

که زه نن سهار دلته راغلی وای مجبور به وم چې ستا د زوی ځینې حکمونه وځنډوم او ته پوهېږې چې دغه ځنډ سم نه دی.

تي ئي وویل، ایا زما زوی معالجه شوی، که د پخوا په شان لېونی دی؟

ما وویل ستا موخه څه ده؟ تي ئي وویل، زه فکر کوم چې هغه لا هم لېونی دی، ځکه چې یوازې یو لیونی د آتون په شاو خوا کې داسې شور ماشور کوي او خلک خپه کوي.

بیا یې وپوښتل سینوهه! ته چې سلطنتي کوپړۍ سوری کوونکی یې، ولې د هغه سر نه سوری کوې او دغه لېونتوب نه ترې باسې؟

ما وویل، فرعون ناروغ نه دی، چې سر یې ور سوری کړم.

د دې لپاره چې تي ئي دغه خبرې پرېږدي، ما په افق کې د فرعون د ژوند، د هغه د لوبو د لوبو، د هغوی د غرڅو، د سلطنتي ماڼۍ د سپیو او د دغه ښار په سپېڅلې جهیل کې د بېړۍ ځغلولو او نورو شیانو په هکله خبرې وکړې.

په دې ډول تي ئي د فرعون د لېونتوب خبرې هېرې کړې، بیا یې اجازه وکړه چې زه د هغې د پوزي اوبدلو کارخانه وګورم.

ویې ویل، سینوهه ته د اوربشو اوبه (بیر) راوړئ!

تي ئي ویلای شو چې نوکران یې ماته شراب راوړي، ډېره کنجوسه مېرمن نه وه، خو له توکمیز پلوه د یوې معمولي کورنۍ ښځه وه، پلار یې د مرغانو په نیولو ګوزاره کوله، نو تي ئي له همغه وخته د اوربشو له اوبو سره مینه درلوده.

دا اوس هم د اوربشو اوبه څښي، خو له دې کبله چې ډېرا فراط پکې کوي، نو مخ او بدن یې پړسېدلی دی.

تي ئي دورګه ده، یانې پلار یې سپین پوستی او مور یې تورپوستې وه، څوک چې یې

ووینې فکر کوي، چې تورپوستې ده.

په طبس کې ورته تورپوستې کوډګره وايي، ځکه چې له کوډو سره ډېره علاقه لري.

زه چې هرځل تې ئي وينم حيرانېږم، چې دغه ښځه څه ډول توانېدلې چې په ځوانۍ کې د فرعون په شان د يوه سړي پام ځانته ور واړوي او فرعون خپل ورور کړي.

دا نه يوازې ښکلې نه ده بلکې ډېره بدرنګه ده، خلک وايي فرعون يې په کوډو غولولی دی چې هغه خپله خور کړي.

په داسې حال کې چې تې ئي د اوربشو اوبه څښلې نو له ما سره يې خبرې شروع کړې.

له دې کبله چې زه يو ډاکټر يم او ښځې معمولاً له ډاکټرانو سره بې پردې خبرې کوي او هغه شيان ورسره شريکوي چې نورو ته يې نه وايي، نو دې هم له ما سره بې پردې خبرې کولې.

د فرعون مور راته وويل سينوهه! زه پوهېږم چې، ته خور نه لرې او ډاډمنه يم، چې هره شپه له يوې ښځې سره ساعت تېري کوې، ځکه چې په افق ښار کې ښکلې ښځې ډېرې دي او د افق ښځې سختې نه کوي، له تا سره ساعت تېري ته چمتو کېږي.

زه فکر کوم چې ته آرام او نرم سړی يې، زه وينم ته دومره ارام يې چې کله خو زه په تنګ شم او زړه مې غواړي په بدن کې دې يوه ستنه ننباسم چې ته څه ډول ټوپونه وهې.

خو دا هم بايد ومنم چې ته ډېر ښه سړی يې او دې ته حيرانه يم چې ته يو پوه يې، او له دې ښېګنې څخه څه استفاده کوې؟ ځکه هغه څوک چې پوه دي ښېګنې ته اړتيا نه لري.

تجربې ښودلې، چې يوازې احمقان او هغه کسان چې هېڅ کار نه شي کولای ښه کېږي، خو ستا په ليدو ځکه خوشحالېږم، چې کله تا وينم پوهېږم، ته داسې سړی يې، که له ما سره ښېګنه ونه کړې، نو بدي هېڅکله راسره نه کوې.

له همدې امله يوه داسې خبره درته کوم چې تر اوسه پورې مې بل سړي ته نه ده کړې او هغه د آتون په هکله ده.

آتون، ما او په حقيقت کې آمي رامنځته کړی، زما او هغه مقصد دا و، چې د آتون په وسيله آمون له منځه يوسو او په دې ډول زما د زوی او په ټوله کې زمونږ ځواک زيات شي.

خو ما او آمي دا اټکل نه و کړی چې د آتون موضوع دې دومره لويه شي چې د مصر ملت دې خپه شي.

حتماً پوهېږې (او که پوه نه شې ډېر ساده يې) چې آمي له دې سره سره چې زما ورور نه

دی، خو له ما سره ساعت تېري کوي، خو هغه مې ډېر نه خوښېږي، ځکه چې د پخوا په شان طاقت نه لري.

پر کومه ورځ چې آمي نوی خدای جوړ کړ، ما تصور نه کاوه، چې زما په زوی به دومره اغېز کوي، چې شپه او ورځ به د آتون په فکر کې وي.

خو اوس همدغسې وشول او زوی مې پر آتون داسې مین شوی، چې زه فکر کوم لېونی دی، باید د سر کوپړۍ یې سوری شي چې له جمجمې یې لېونتوب ووځي.

هغه بله خبره چې زه یې حیرانه کړې یم دا ده، چې نفر تي تي له دې سره سره چې ښکلې ده، ولې تل د فرعون لپاره لور زېږوي.

کله چې ښځه ښکلې وي، سړی په ډېرې لیوالتیا ورسره ساعت تېري کوي او ته چې ډاکټر یې پوهېږې چې کله نارینه په ډېرې مینې او شوق له نفر تي تي سره ساعت تېري کوي باید لور ونه زېږوي.

بله دا چې زه نه پوهېږم ولې خلک زما له تورپوستو کوډګرو، کرکه کوي، په داسې حال کې چې هغوی ښه خلک دي.

د مور په خېټه کې د ماشومانو سرونه د زوکړې پر وخت اوږدوي، خو خلک له دې ښو نارینه او ښځو څخه کرکه کوي.

اوس زه مجبوره یم هغوی د خپل کور په ځمکتلې کې پټ کړم، ځکه که یې خلک ووینې نو تورپوستي به تر ې ووژني.

زه له دغو تورپوستو کوډګرو ډېره خوشحاله یم، ځکه زما لپاره داسې درمل او شیان برابروي، چې زما جنسي غریزه یې تر پخوا ډېره کړې ده.

زه چې څومره له نارینه وو سره ساعت تېري کوم، بیا مې هم زړه نه سړېږي او غواړي نور ساعت تېري وکړم.

خو که ته تصور وکړې، چې زه له آمي سره له ساعت تېري خوند اخلم تېروتنه کوې او که ستر کاهن آمي د آتون په مسله کې له مور سره شریک نه وای، ما به له ځانه شړلی و، ځکه چې دغه سړی له یوې ښځې سره د پخوا په شان ساعت تېري نشي کولی.

تي ئي یو غټ غوړپ د اوربشو اوبه وڅښلې او بیا یې د هغو کاریګرو ښځو په شان چې د نیل پر غاړې جامې وینځي په کړس کړس وخندل ویې ویل: سینوهه! دغه تورپوستي ډېر تکړه ډاکټران دي، خو خلک یې کوډګر بولي، ځکه چې د هغوی په چل نه پوهېږي.

د هغوی له تور رنګ او د بدن له بد بویه کرکه کوي او که ته وکړای شې خپله کرکه یوه لور ته کړې، نو د هغوی له طبابته به ګټه واخلې، البته په دې شرط چې هغوی خپل طبي رازونه درته ووايي، ځکه چې د خپلو طبي رازونو په برخه کې ډېر تعصب لري.

زه د نورو پر خلاف د تورپوستو د بدن له بویه کرکه نه کوم، تور ځوان نارینه مې خوښېږي، له هغوی څخه د سپین پوستو ځوانانو په پرتله ډېر خوند اخلم.

دا چې ته ډاکټر یې تاته وایم چې له تورپوستو ځوانانو سره تفریح کوم او پخپله تورپوستي ډاکټران ماته د دې تفریح اجازه راکوي وايي چې، تاندوالی در په برخه کوي او د ژوند غمونه به در څخه لېرې کړي.

زه پوهېږم چې د مصر ځینې سپین پوستې مېرمنې د هغو کسانو په شان دي، چې له هر ډول خواړه یې خوړلي وي او له غوړې ډوډۍ څخه نور خوند نه شي اخیستای.

دوی له همدې کبله ساده ډوډۍ ته مخه کوي او کله کله د خوند د بدلون لپاره له تورپوستو سره ساعت تېري کوي.

خو له تورپوستو سره زما تفریح په دې ډول نه ده، بلکې زه په رښتیا د دوی له ساعت تېري او غېږې خوند اخلم، ځکه احساس کوم چې یو تورپوستی، د یوه سپین پوستي په پرتله له لمر، ځمکې او هوا څخه ډېره استفاده کړې وي.

د دوی په بدن کې د سپین پوستو په پرتله ډېره انرژي او ځواک وي، که یو سپین پوستی ځوان، له یوه تورپوستي سره پرتله شي، یو لکه سوړ ژمی او بل د ګرم اوړي په شان ښکاري.

په ژمي کې ګرمې ورځې ډېرې دي، خو هېڅکله د اوړي د ورځو تودوخه نه لري او د اوړي په شان انسان د لمر له تودوخې او هوا څخه نه سست کېږي.

زه هم کله چې له یوه تورپوستي سره ځملم راضي او خوشحالېږم. اوس چې دغه خبره تاته کوم نه وېرېږم، ځکه چې ته یو ډاکټر یې او دعادت له مخې د خلکو رازونه ساتې.

بیا هم که دې زما راز افشا کړ، زه به منکره شم او وبه وایم، چې ته دروا غ وایې، ځکه چې زمونږ دغه خبرې بل څوک نه اوري، چې بیا ستا خبرې تاید کړي.

که خلک هم ستا له خولې واوري، چې زه له تورپوستو سره ساعت تېري کوم، تر دې به ډېر بدبینه نه شي چې اوس دي.

ددې لپاره چې خلک زما په هکله دومره بدبینه شوي او دومره بدې خبرې کوي، چې

دغه نوي بد ویل به ورته چندانې اهمیت ونه لري. نو غوره ده، په دې اړه بل چاته څه ونه وایې.

زه فکر کوم چې څه به ونه وایې، د دې لپاره چې نیک سړی یې، په داسې حال کې چې زه یوه بده ښځه یم.

بیاد فرعون مور غلې شوه، یو غوړ پ د اوربشو اوبه یې وڅښلې او د خپل رنګین پوزي په اوبدلو لګیا شوه، ما هم د هغې لاسونو ته کتل چې څه ډول پوزی اوبي او غوټې ورکوي.

د فرعون مور، چې لړ پوزی وبانه نو ویې ویل:

سینوهه! له دې کبله چې ته ډېر نیک سړی یې، باید درته ووایم، چې انسان په ښځو باندې کوم ځای ته نه رسېږي، په دې نړۍ کې یوازې یو شی ارزښت لري او انسا ن هر شي ته رسولای شي، هغه قدرت دی.

حتي سره او سپین له قدرته پرته ارزښت نه لري، تا ولیدل، چې پخواني خدای آمون له دې سره سره چې ډېر سره او سپین یې درلودل خو قدرت راوپرځاوه اوله منځه ولاړ.

خو هغه کسان چې زما د زوی په شان د سلطنت پر ګدۍ کیني د قدرت او توان په ارزښت نه پوهېږي.

زما په شان کسان چې پر خاورو پیدا شوي، پوهېږي چې قدرت څومره ارزښت لري؟

ما هم د دې لپاره چې ځواکمنه شم هرکار ته مې لاس اچولی دی او نیت مې دادی چې له ماوروسته زما د وینې ، هډوکي ،او غوښې میوه یانې زما زامن په مصر کې پاچاهي وکړي او تر هغه چې نړۍ او اهرامونه وي، نو دوی د مصر فرعونان وي.

هغه کارونه چې ما د قدرت د ساتلو لپاره کړي دي، د مصر د خدایانو له نظره د سزا وړدي، خو له تا یې څه پټه کړم، له هغه وخته چې ما ولیدل څه ډول یو خدای په اسانه راپرځېدای شي او بل څنګه د هغه پر ځای واک ته رسولای شو ، نو د مصر پر خدایانو مې عقیده کمزورې شوې ده.

زه فکر کوم چې هغوی چندانې قدرت نه لري، بلکې د فرعون توان او قدرت د خدای تر زور زیات دی.

بله خبره دا چې ما تجربه کړې، چې په دې دنیا کې نیک او بد عمل نشته، بلکې نیکي او بدي خیالي شیان دي او زموږ د اعمالو نیکي او بدي زموږ په بریالیتوب یا نه

بریالیتوب کې ده...

که ته تر ټولو بد کارونه وکړې او بریالی شې، ټول وایي چې ستا اعمال ښه و، خو که تر ټولو ښه کارونه وکړې او بریالی نه شې، وبه وایي چې بد دې کړي.

له دې سره سره کله چې زه فکر کوم، د قدرت د ترلاسه کولو لپاره مې کوم کوم کارونه کړي دي، بدن مې رېږدي، ډارېږم، چې ښا یي زما ډار له دې امله وي چې ښځه یم، ځکه که ښځه څومره پیاوړې او بې رحمه هم وي، یو څه په خیالاتو یقین لري او په چټیاتو فکر کوي.

یو شی چې تل ما ډاروي، هغه دادی، چې هر ځل نفرتي تي، د مصر ملکه او زما د زوی میرمن لور زېږوي.

ددې لپاره چې هغه زوی وزېږوي، ما د مصر له ټولو تورپوستو کوډګرانو مرسته غوښتې ده.

هر ځل چې نفرتي تي امیندواره شي، ځانته زیری ورکوم چې هغه به دا ځل زوی زېږوي، خو کله چې ماشوم پیدا شي، زما حالت داسې وي، لکه چې د پیشو یو مړی یې له خپلې کوټې را ایستلی وي او د نیل سیند ته یې وراچولی وي.

کله چې را ستنېږي بیا هم ګوري چې د پیشی مړی همغلته دی.

زه احساس کوم چې لعنت رابا ندې شوی، ګني نفرتي تي به تل لور نه وه، زېږولې.

په داسې حال کې چې د فرعون مور خبرې کولې، ما د هغې پوزې او بدلو ته کتل او ناځاپه مې پام شو، هغه غوښتې چې دا یې پوزې ته ورکوي، هغه د مرغانو د پلورونکو او ښکاریانو غوښې دي.

د غه غوښې هغه کسان اخوي چې مرغان پالي یا مرغان نیسي بیا یې خرڅوي او په کوز مصر کې د مرغانو د پالونکو غوښې ټول پېژني.

هغه څه چې د فرعون د مور غوښو ته یې زما پام ور واړاو دا و

چې ما ته هغه ټوکری رایاده شوه چې په ماشومتوب کې یې زه پکې اچولی وم.

ناسکه مور مې، هغه په نیل کې نیولې او ترې را ایستلې وه چې د مرغانو د پالونکې مشهورې غوښې یې درلودې.

ما د کتاب په پیل کې وویل، چې زما ناسکه مور (چې ما هغه خپله حقیقي مور بلله) له دې وروسته چې زه یې په اوبو کې له ټوکرۍ سره پیدا کړم، هغه ټوکرۍ یې ساتلې وه، ما

په ټول ماشومتوب کې دغه ټوکرۍ کتله او ټول جزیات یې راته یاد ول.

زه پوهیدم چې د ټوکرۍ د جوړېدا پر وخت کومې غوټې چې ورکړل شوې وې، د مرغانو د پالونکو مشهورې غوټې دي.

پر دې شپه مې چې کتل د فرعون مور هم پخپل پوزي کې، دغه ډول غوټې کاروي، حیران شوم.

په سر کې مې عجیبه فکرونه پیدا شول، دغه فکرونه دومره حیرانوونکي ول، چې اوس یې نه شم ویلی څه ډول ول؟

خو په دې پو هېدم چې د مرغانو د پالونکو غوټې، په کوز مصر کې دود وې، نه په برني مصر کې او هغه ټوکرۍ، چې زه پکې اچولې شوی وم، په علیا یا برني مصر کې یانې په طبس کې له اوبو را ایستل شوې وه.

کوز مصر د نیل سین د اوبو په ښکتنۍ برخې کې پروت و، اوبه له برني مصره ښکته راتلې او سفلي مصر ته رسېدې، نو ښکاره خبره وه یوه ټوکرۍ چې په نیل کې اچول شوې وي، د اوبو له بهیر سره سم حرکت کوي.

خو ددې فکر په وخت کې متوجه شوم، چې د تي ئي پلار مرغ باز یا د مرغانو پالونکی و، او لور یې چې اوس پوزی اوبي، د مرغبازانو غوټه له خپله پلاره زده کړې ده.

خودا بیا هم یو سوال و راته چې په کوز مصر کې اوبدل شوې ټوکرۍ څه ډول برني مصر یانې طبس ته را رسېدلې ده.

تي ئي پرې نه ښودل چې په دې اړه زما فکر دوام وکړي او ویې ویل سینوهه! کله چې زه د خپلو اعمالو په هکله خبرې کوم، ښایي ته ما ورتې او ووایې چې زه تور زړې یم، خو غوره داده چې زما حالت ته هم لږ پام وکړې، بیا به پوه شې چې زه مجبوره وم، دغسې خراب کارونه وکړم.

څکه کله چې د یوه مرغ باز لور د فرعون حرم سرای ته راځي، د هغې له لوري د قدرت ساتل ډېر سخت کار وي.

ځکه چې د فرعون له پاملرنې پرته، د هغې د ملاتړ لپاره هېڅ ډول مادي او معنوي ملاتړ نه وي او د هغې دښمنان چې د حرم سرای او دربار ټول اوسېدونکي وي، او ټول چمتو وي چې هره شېبه یو تاوان ورورسوي، چې هغه د فرعون له نظره وغورځوي

نو زما د قدرت یوازینۍ وسیله دا وه، چې اجازه ورنه کړم، له ما سره د فرعون مینه کمه

شي.

له تورپوستو او ګوډګرو مې مرسته وغوښته هغوی، هم داسې شیان را وښودل، چې ومې کړای شول، فرعون ځانته را جذب کړم. فرعون پوه شو که د حرم سرای له هرې ښځې سره تفریح وکړي، دومره خوند ترې نه شي اخیستلی څومره چې له ما سره له ساعت تېرې اخلي. له دې وروسته چې ما د کوډو په زور فرعون پر ځان مین کړ، هڅه مې وکړه د فرعون په قدرت او د ځان په محبوبیت سره خپل مخالفین او دښمنان له منځه یوسم.

زما د شپې او ورځې کار دا و، چې د خپلو دښمنانو دسیسې شنډې کړم، هغه لومې چې دښمنانو راته غوړولې دي وشلوم او له هغو کسانو غچ واخلم، چې راباندې نه شي ګرانېدای.

زما یو کار دا و، چې پرې نه ږدم د حرم هېڅ یوه ښځه تر ما مخکې زوی وزېږوي او ته نه پوهېږې، چې ما ددې کار لپاره څومره زیار ګاللی دی او څومره زر مې ورکړي دي.

ډېره هڅه مې کوله، پخپله امیندواره شم، خو بیا هم نه امیندواره کېدم او په بدل کې نورې ښځې حامله کېدلې.

هر ځل چې به یوه ښځه امیندواره شوه، تر هغې ورځې پورې چې ما به د هغې اولاد پخپله خوښه انتخاباوه، یوه ورځ به په کراره نه وم ناسته.

ته له دې کبله چې درباري ډاکټر یې ښایي اټکل وکړای شې، چې ما څه ډول یو زوی پر لور بدلاوه، خو ددې کار لپاره مې د حرم ډېرې نوکرانې له ځان سره ملګرې کړې.

تر تا مخکې یو درباري سرسوری کوونکی (درباري ډاکټر، ژباړن) و، چې د مرګ یې ډېره موده نه ده تېره شوې، پر نجونو باندې د هلکانو په بدلولو کې له ما سره مرسته کوله (د کتاب په پیل کې سینوهه ویلي، چې د فرعون په حرم سرای کې یې څه ډول له زېږېدا وروسته، د هلکانو په ځای نجونې د هغو په ځای کې اچولې، ژباړن)

تر هغه وخته دغه هلې ځلې روانې وې، چې فرعون بوډا شو او زما لمس کولو د هغه توان کم کړ.

خو بالاخره زما زوی پیدا شو، چې اوس فرعون دی، خو دغه فرعون یوازې څو لونې لري او لا یې زوی نه دی پیدا شوی، چې د هغه ځای ونیسي.

دغه خبرې مې ددې لپاره وکړې، چې ته سینوهه! پوه شې زه یوه لایقه او توانمنه ښځه یم او په ډېر مهارت مې وکړای شول خپل قدرت وساتم او پراخ یې کړم.

که ما له خپل لیاقت او هوښیارۍ څخه کار نه وای اخیستی نو نن به د مصر د پاچاهۍ په ګدۍ زما زوی نه بلکه بل فرعون ناست و.

ومې ویل تې ئي! زه پوهېږم چې ستا لیاقت څه ډول دی؟ ددې لپاره چې ستا د هوښیارۍ نښې مې په بل ځای کې هم لیدلې دي، ما ولیدل چې د مرغ بازانو مخصوصې غوټې څنګه اچوې؟

کله چې ما دغه خبره وکړه تې ئي خپلې سترګې چې د اوربشو اوبو ور تکې سرې کړې وې، را واړولې او ویې ویل سینوهه! ایا خلک زما له رازونو خبر دي؟

ومې ویل زه کوډګر نه یم، خو پوهېږم چې له خلکو هېڅ شی نه شي پټېدای.

خلک په هر شي خبرېږي ځکه چې د شپې له پلوه، چې ته تصور کوې څوک ویښ نه دي، ستا کارونه نه ګوري، خو ستوري او سپوږمۍ ویښ وي، تاویني.

باد چې ستا له څنګه تېرېږي، پوهېږي، چې ته څه کوې؟ ته کولای شې، چې د خلکو خولې بندې کړې، خو د باد مخه نه شې نیولی او نه هم د ستورو سترګې ور بندولای.

له دې کبله چې تې ئي دې خبرې په غوسه کړه، خو ما د خبرو موضوع بدله کړه او مې ویل، دغه پوزې چې ته یې په اوبدلو بوخته یې ډېر ښکلی دی او زړه مې غواړي دغسې یو پوزې ولرم.

د فرعون مور وویل، کله چې دغه پوزې خلاص شو، تا ته به یې درکړم خو ته به یې په بدل کې څه را کړې؟

ځواب مې ورکړ، زه به یې په بدل کې خپله ژبه درکړم.

د فرعون مور وپوښتل، څه ډول دې ژبه ماته راکوې؟

ومې ویل، ایا ته په دې نه پوهېږې چې ددې خبرې مانا څه ده؟

ددې خبرې مانا دا ده، چې زه به خپله ژبه وساتم او ستا پر خلاف به څه نه وایم.

د فرعون مور چې شرابو نشه کړې وه، وویل، دغه ډالۍ چې ته یې ماته راکوې ارزښت نه لري، ځکه دا هغه ډالۍ ده، چې په ما پورې اړونده ده.

ومې پوښتل څنګه، په تا پورې اړونده ده؟

د فرعون مور ځواب راکړ نه یوازې ستا ژبه زما ده، بلکې ستا لاسونه هم زما دي او زه ویلای شم، چې ستا ژبه در پرې کړي او ماته یې راوړي، چې له دې وروسته زما رازونه ونه لیکلی شې، چې راتلونکي کسان یې وګوري او هغوی ما وپېژني.

ومې ویل، تې ئي ! تا نن شپه ډېر بېر ښښلی، له همدې امله داسې خبرې کوې، چې
باید له خولې دې ونه وځي.

غوره ده، چې نورې د اوربشو اوبه ونه ښښې او ویده شې چې خوب د نشې اغېزه ختمه
کړي، ګني ښايي د اوبو د آس په شان شیان دلته وګورې.

خو له دې سره سره چې ته نشه او زه هوښیار یم وایم، چې چمتو یم خپله ژبه درکړم،
یانې ستا رازونه وساتم، په دې شرط چې ته هم دغه اوبدل شوی پوزی ماته راکړې.

د فرعون مور وخندل او ویې ویل، سینوهه ! که له تا پرته بل چا د غه خبرې کړې وای،
هغه به مې نه وې پرې ایښی، چې زما له ماڼۍ ژوندی ولاړ شي.

خو له دې کبله چې ته ډاکټر یې او پوهېږې، چې زما او زما د زوی د رازونو ساتونکی
یې، تا نه وژنم، کله چې دغه پوزی خلاص شو تا ته به یې درکړم.

ما د فرعون له موره خدای پاماني واخیسته، له ماڼۍ راووتم، او په بېړۍ کې سپور
شوم چې مریت ته ولاړ شم.

کله چې په نیل کې تېرېدم هغه شپه مې په ذهن کې انځور کړه، چې یو ماشوم یې په
ټوکرۍ کې ایښی وي او هغه ټوکرۍ یې د نیل اوبو ته سپارلې وي.

په دې ټوکرۍ کې داسې غوټې وې، چې یوازې مرغ بازان یې اچولې شي.

ما غوښتل د هغه ماشوم راز چې اوس لوی سړی شوی او سینوهه نومېږي روښانه کړم،
خو ځکه وېرېدم چې، د مجهولاتو او ناڅرګندو شیانو په اړه چې د انسان پوهه څومره
زیاتېږي، د هغه غمونه هم هومره ډېرېږي او ما غوښتل زما غم نور زیات نه شي.

## پینځه دیرشم څپرکی

# په طبس کې دارالحیات ته ستنېدل

کله چې فرعون د افق په ښار کې له ماپوښتنه وکړه، چې دڅه لپاره طبس ته ځم، ومې ویل، زه درباري کوپړی سوری کوونکی یم نو باید کله ناکله دارالحیات ته ولاړ شم او هلته محصلینو ته درس ورکړم.

فرعون دغه خبره ومنله او کله چې طبس ته راغلم، په رښتیا مې زړه غوښتل چې دارالحیات ته ولاړ شم، ځکه له هغه وخته چې په افق ښار کې وم، یو سر مې هم سوری کړی نه و، ډارېدم چې په دې برخه کې خپل مهارت له لاسه ورنه کړم.

پردې سربیره هیله من وم چې دارالحیات ته په ورتګ سره به هغه نوي علمونه هم زده کړم، چې زموږ په وخت کې نه ول.

زموږ په وخت کې که چا غوښتل چې په دارالحیات کې تحصیل وکړي، لومړی باید د آمون د معبد کاهن وی او له دې وروسته چې کاهن به شو، بیا به دارالحیات ته ولاړ خو دا پوښتنه یې نه شوه کولای چې ((و لې یا دڅه لپاره ؟)).

زموږ په وخت کې په دارالحیات کې د پوهې ترلاسه کولو عبادتي اړخ درلود او محصلینو ته به یې ویل، له دې کبله چې پوهانو پخوا دغه عقیده درلوده، نو تاسې باید د هغوی علمي، عقیدوي او د معالجې رودې ومنئ او موږ به هر هغه څه منل چې هغوی به ویل.

خو له دې وروسته چې پخوانی خدای راوپرځول شو او نوي خدای یې ځای ونیو، نور نو د دارالحیات محصلین مجبور نه ول ، چې د آمون د معبد کاهن شي.

دوی به ددې پر او له کچ کولو پرته نیغ په نیغه زده کړې پیلولې او دا واک یې هم درلودل چې و پوښتي ولې یا د څه لپاره؟

له دې کبله چې زه پر دې خبرې پوهېدم ، نو فکر مې کاوه، چې په دارالحیات کې به علمونو ډېر پرمختګ کړی وي.

محصلین به کولای شي نیوکې وکړي او د علمي ستونزو او نیمګړتیاو ، په هکله پوښتنې وکړي، دوی به بریالي شوي وي چې د علم په ډګر کې نوې لارې پیدا کړي او هغه پراخ کړي.

موږ چې کله په دارالحیات کې زده کړې کولې، نیوکې مو نشوې کولای او که مې له استاده پوښتنه کوله چې ولې داسې کېږي ؟ ځواب یې راکاوه، ددې لپاره چې پخوانیو پوهانو همداسې کړي دي.

یا دا چې ځواب یې راکاوه، چې آمون همداسې غوښتي دي.

موږ به د زده کړې پر وخت له ډېرو ستونزو سره مخامخ کېدو ، چې هېڅ یوه به استادانو نه شوه حل کولای.

خو نویو محصلینو ، خپلې نیوکې کولای شوې او له استاده یې غوښتلی شوای، چې ستونزې یې ور حل کړي.

کله چې دارالحیات ته ننوتم ومې لیدل چې د زده کړې کیفیت او کمیت دواړه خراب شوي دي او محصلینو نیت نه درلود چې پوهان ترې جوړ شي.

ددې پر خلاف دوی غوښتل چې یوازې نوم یې په دې علمي موسسې کې راشي، د دارالحیات د فارغ التحصیل په نوم طبابت پیل کړي او فلزات تر لاسه کړي.

دارالحیات ته د راتلونکو شاګردانو شمېر هم کم شوی و ، خلکو د پخوا په شان پر دې ستر طبي ښوونځي باور نه درلود او هلته د معالجې لپاره نه راتلل.

دوی پوهېدل چې د دارالحیات ځینې استادان له ښوونځي څخه وتلي دي او په ښار کې یې کتنځي جوړ کړي دي.

کله چې طبس ته ولاړم په دارالحیات کې مې د سر سوري کولو درې عملیات وکړل او له دې سره سره چې محصلینو زما وړتیا وستایله، خو پخپله پوه شوم چې زما لاسونه هغه پخوانۍ وړتیا او چالاکي نه لري او د سترګو نظر مې هم کم شوی و.

په دې دریو عملیاتو کې مې یو ددې لپاره وکړ چې ناروغ په کراره کړم ځکه، چې ناروغ ډېر درد درلود ، ما یې د سر کوپړۍ پرانیستله، چې هغه له درده وژغورم.

دویم کس یو سړی و ، چې تر دغې نېټې دوه کاله، مخکې د ډېرې نشې له امله خپل بام

ته وخوت، کله چې يې خپلوانو راکوزاوه ، دی وتښتېد او له بامه ولوېد.
دغه سړي ظاهري ټپ نه درلود ، خو له څو ورځو وروسته په مړګي اخته شو او کله به تاو را تاو شو او ناره به يې وهله، خيالي منظرې به يې تر سترګو شوې او يا به يې ځان لوند کړ.
د دارالحيات د استادانو د سپارښتنو له مخې د جراحۍ پر وخت مجبور شوم، له هغه سړي څخه چې شتون يې د وينې د درېدا سبب کېږي وغواړم چې د ناروغ سرته ودرېږي
دغه سړی تر هغه بل ډېر کم عقل و، چې د فرعون په مانۍ کې و، ما مخکې په دې کتاب د هغه په هکله خبرې وکړې او ومې ويل چې هغه مړ شو.
دغه اوسني سړي د پخواني په پرتله د وينې د بهېدا د مخنيوي توان نه درلود او کتل مې چې د عملياتو پر وخت له ټپ څخه د وينې ځاځکي بهر ته راوځي.
کله چې ما د ناروغ سر سوری کړ، ومې ليدل، چې د مازغو ځينې برخې د مړې شوې وينې له امله تورې شوې دي.
ما په ډېرې ځيرتيا سره مړه شوې وينه د هغه له ماغزو لېرې کړه، خوله دې وروسته چې د هغه سر مې بېرته بند کړ د مرګي حملې بېخي ورکې شوې
پر درېيمه ورځ همغه ډول چې ما يې تمه کوله، دغه سړی مړ شو، خو له دې سره سره چې ناروغ پر درېيمه ورځ مړ شو، مګر هېڅوک حيران نه شول، ځکه چې ټول پوهېدل کم سارې خبره به وي چې د چا د سر کوپړۍ خلاصه کړي او هغه ژوندی پاتې شي.
کله چې جراحي عمليات پای ته ورسېدل، محصلينو وستايلم، په داسې حال کې چې ما کوم خاص کار نه و کړی او زموږ په وخت کې د سر د کوپړۍ د خلاصولو عمليات که بې ارزښته نه ول نو څوک ورته حيرانېدل هم نه
درېيم کس چې ما يې سر خلاص کړ يو ځوان و، چې په کوڅو کې غلو پرې حمله کړې وه، سره زر يې ترې غلا کړي ول او سر يې هم ور مات کړی و.
کله چې يې دغه ځوان دارالحيات ته راوست، زه هلته وم، پوه شوم د ناروغ حالت خطرناک دی، نو فيصله مې وکړه، چې ژر يې عمليات وکړم.
مات شوی هډوکی مې د هغه له سره را وايست او د سر په سوري شوې ځای کې مې يې يو ټوټه سپين زر ورکېښودل او سر مې وروتاړه.
دغه زر تر دې مخکې په اور کې اېښودل شوي، بيا بيرته ساړه شوي وي

دوه اوني وروسته دغه ځوان معالجه شو که څه هم په لومړیو کې یې خپل لاسونه او پښې نه شوې ښورولای، کله چې یې د هغه لاسونه او پښې ورتخنول، نه به پوهېده خو وروسته ورو ورو معالجه شو او خپل عادي ژوند یې پیل کړ.

له دې سره چې دغه ناروغ ژوندی پاتې شو، خو د دارالحیات محصلینو باور درلود، چې د هغه سرې عملیات چې مرګي یې درلودل تر دې مهم و.

ددې لپاره چې بریالی شوم، د هغه سرې له مازغو څخه مړه وینه لېرې کړم، بې له دې چې د عملیاتو پر وخت مړ شي.

د دارالحیات استادانو هم د شاګردانو په شان زما درناوی کاوه، خو له دې کبله چې د افق له ښاره راغلی وم او د حیات صلیب مې پر غاړه و، نو احتیاط یې راسره کاوه.

زما په مخکې یې خصوصي او ځانګړې خبرې نه کولې او د هغه سپي په شان چې نور بویوي، زه یې هم بویولم، چې پوه شي پر ما باور کولای شي کنه؟

ما هېڅکله د آتون او مذهبي مسلو په هکله له هغوی سره خبرې ونه کړې، ځکه چې پوهېدم دارالحیات لا هم د پخواني خدای آمون یوه کلکه کلا ده.

کله چې زما درېیم جراحي عملیات هم په بریالیتوب سره پای ته ورسېدل (یو مریض هم د عملیاتو پر وخت مړ نه شو او له جراحي وروسته به مړ شو، او په هغو درېو کې یو تن ژوندی پاتې شو) د دارالحیات یو ډاکټر په یوې خالي کوټې کې ما ته راغی او ویې ویل:

اې سینوهه! ته ډېر پوه سړی یې او پخوا دې په همدې ښوونځي کې درس ویلی دی، ایا له دې امله خیران شوی نه یې چې ولې دلته ناروغان نه راځي؟

ومې ویل، حیران شوی یم.

هغه ډاکټر وویل داچې ناروغان دلته نه راځي، علت یې دا دی، چې پوهېږي په طبس کې داسې ډاکټران شته له چړې، اور، درملو او پټې لګولو پرته ناروغان معالجه کړي.

هغو ډاکټرانو چې په دې ډول درملنه کې تخصص لري، له ما غوښتي چې تا ته درشم، درته ووایم، چې غواړې دغه ډول معالجه وګورې؟

که لېواله یې مور به دې ددغه ډول ډاکټرانو کتنځي ته بوځو، په دې شرط چې موافقه وکړې، سترګې دې وتړل شي او پوه نه شي چې چیرته ځو.

بله دا ژمنه وکړې هغه څه چې ګورې بل چاته یې ونه وایې.

ما وویل د هغو شیانو په هکله چې نن سبا په طبس کې خلک د هغوی په هکله خبرې

کوي، یا یې تصور کوي ما ډېر څه اورېدلي دي. خو له دې کبله چې یو ډاکټر یم باور مې نه کېږي، چې له درملو چړې او اور څخه پرته وکړای شو، ناروغی معالجه کړو، نو نه غواړم چې په دغو چلولونو کې ښکېل شم.

که په دغو لوبو او چلولونو کې ښکېل شوم وبه وایي چې د فرعون ځانګړی ډاکټر شاهدو، چې له درملو، چړې، تېږې او اور پرته د نارغیو معالجه کېدای شي.

زه نه غواړم چې زما له نومه د یوه خراب او درواغجن کار د تاید لپاره استفاده وشي.

هغه وویل سینوهه! ته یو پوه او هوښیار کس یې، بهرنیو هېوادنو ته دې سفرونه کړي او د نورو علمونه دې زده کړي، نو له دې امله په دغسې چلولونو تا نه شي غولولای.

زه ددې لپاره چې تا ته دروښیم، موږ له درملو او چړې پرته هم معالجه کولای شو، تا ته بلنه درکوم چې راشې او د ځینو ډاکټرانو د معالجې روده وګورې.

کله چې تا د سر د کوپړۍ عملیات کول، له هغه سړي دې استفاده وکړه، چې شتون یې، ددې سبب شو چې د ناروغ د بدن وینه ودرېږي.

په داسې حال کې چې تا د وینې بهېدا د مخنیوي لپاره نه له پټۍ کار واخیست، نه له اوره، نو بیا ولې له درملو، چړې او اور پرته د ناروغانو معالجه یو چل بولې؟

دې خبرې پر ما اغېزه وکړه ومې ویل، سمه ده، زه چمتو یم چې له تاسې سره ولاړ شم او وګورم چې تاسې څه ډول معالجه کوئ.

دغه کس چې د دارالحیات ډاکټرو، له ما سره وعده وکړه، چې د شپې به له روان تخت سره راځي، ما به له ځان سره بیایي، خو ویې ویل چې باید سترګې دې بندې وي چې پوه نه شې چېرته دې بیایو.

هغه سړی د شپې راغی، زه یې په روان تخت کې کېنولم، سترګې یې را وتړلې او تخت روان شو.

یو وخت روان تخت ودرېد، مریبانو له اوږو کوز کړ او ما ته هم هغه سړي لاس راکړ له روان تخته یې راکوز کړم.

ما احساس وکړ، چې یوه دالان ته ننوتو او له دې وروسته چې یوه موده په دالان کې روان وو له څو پوړیو هم تېر شو، بیا یې زما سترګې را پرانیستلې.

زه په یوه کوټه کې وم، چې څو څراغونه پکې بل ول او د پخواني خدای دکاهنانو په شان یو کاهن هلته موجود و، چې سر یې خرېیلی او غوړ کړی و.

دغه کاهن زما نوم واخیست، معلومه شوه، چې هغه ما پېژني، بیا یې د کوټې یوه کونج ته اشاره وکړه، ما ولیدل چې هلته درې کسان غځېدلي دي.

کاهن وویل سینوهه! دغه درې کسان ناروغان دي او ددې لپاره چې پوه شې موږ دوکه نه کوو، ولاړ شه پخپله یې معاینه کړه.

زه هغو ته ورغلم چې معاینه یې کړم، ومې لیدل چې یوه ناروغه ډنګره او ځوانه ښځه ده، چې له ځایه نه شي ښورېدلای، داسې ښکاري چې یوازې سترګې یې ژوندۍ دي

بل ناروغ یو ځوان و، چې پر ټول بدن یې لمدې تپاکې لیدل کېدې چې که عادي کسان دغه سړی وګوري، نو کرکه به ترې وکړي.

درېیم ناروغ هم یو فلج شوی بوډا و، چې دواړه پښې یې نه شوې ښورولای.

ددې لپاره چې ډاډه شم هغه فلج دی یوه ستن مې د هغه په پښو کې ننه ایسته، خو درد یې احساس نه کړ او دې خبرې وښودله، چې هغه فلج دی، دواړه پښې یې حرکت نه کوي او بې حسه دي

کاهن ته مې وویل، بې له شکه چې دغه درې تنه ناروغان دي او که زه یې معالج ډاکټر وای، هغوی به مې دارالحیات ته استولي ول مګر زه پوهېږم چې دارالحیات په غالب ګمان ددې بوډۍ او بوډا معالجه نه شي کولای.

خو ددغه ځوان درملو داسې هم کېدای شي چې پر خپل بدن ګوګړ وموښي او یا په هغو اوبو حمام وکړي چې ګوګړ پکې ګډ وي.

کاهن یوه چوکۍ راوښودله و ویې ویل سینوهه! هلته کښېنه او وګوره چې موږ اوس ستا په مخکې دغه درې تنه معالجه کوو.

بیا د کاهنانو په امر څو تنه مریيان کوټې ته راننوتل، درې واړه ناروغان یې د کوټې له کونجه پورته کړل او د کوټې په منځ کې یې وغځول.

د باندې د یوې سندرې غږ واورېدل شو، چې څو تنو په ګډه ویله، له هغه وروسته د پخواني خدای څو تنه کاهنان کوټې راننوتل چې سندرې یې ویلې او د دغو دریو تنو شا و خوا ته ودرېدل.

بیا یې په پرله پسې ډول سندرې وویلې او ټوپونه یې ووهل، خپلې جامې یې و ایستلې او خپل بدنونه یې د ډبرو په چړو ټپیان کړل چې وینه ترې وبهېده.

زه ددې صحنې په لیدو حیران شوم، ما په سوریه کې دغسې یوه منظره کتلې وه.

خو د کاهنانو شور ماشور او زوږ دومره زیات شو، چې وحشت او ترهه یې رامنځته کړه، په داسې حال کې چې هغوی دغه کوډو ته ورته کار ته دوام ورکاوه، ناڅاپه یوه دروازه خلاصه شوه، د پخواني خدای آمون مجسمه یې رادننه کړه.

کله چې د آمون مجسمه را ښکاره شوه ټول غلي شول.

له هغه کړسنده شور ماشوره وروسته دغې چوپتیا پر ما اغېز وکړ او کله چې مې د پخواني خدای مجسمه کتله ځلیدله او پرتمینه ښکارېده.

هغه کاهن چې په لومړي سر کې یې زما هرکلی وکړ، دغو درېو ناروغانو ته وویل، تاسې چې پر آمون عقیده لرئ پاځئ او روان شئ، ځکه چې آمون بختور کړي یاست.

هغه وخت ما هغه درې تنه ناروغان پر خپلو سترګو ولیدل. چې وښورېدل او په داسې حال کې چې د آمون مجسمې ته یې کتل، لومړی په ښپښانده حرکتونو پر دواړو زنګنو ودرېدل

هغه کس چې پر دواړو پښو فلج شوی و، په لاسونو خپلې پښې موښلې او بیا مې ولیدل چې ورو ورو پاڅېد.

ښځه هم د هغه سړي په شان ولاړه شوه او دوه ګامه مخکې لاړه.

درې واړه په داسې حال کې چې د آمون نوم یې اخیست په ژړا شول

له هغه وروسته یې د آمون د مجسمې د کوټې دروازه بنده کړه او مریانو څو څراغونه راوړل چې زه وکړای شم ناروغان په سمه توګه ووینم کړم.

ما په حیرانۍ سره وکتل چې نه یوازې فلج شوی سړی او ښځه پر لاره تللی شي، بلکې د هغه ځوان تپاکې او زخمونه هم جوړ شوي او بدن یې روغ او پاک شوی دی.

دې پېښې ډېر حیران کړم، ځکه چې د هغه ځوان معالجې چې بدن یې له تپاکو او زخمونو ډک و، هېښ او هک پک کړی وم او د یوې معما په توګه راته ښکارېده.

هغه کاهن چې په سر کې یې زما هرکلی کړی و، وویل سینوهه! ایا دا خبره منې چې دغه درې تنه معالجه شوي دي؟

ومې ویل، ددغو دوو تنو یانې د بوډا او بوډۍ معالجه له علمي پلوه د توضیح وړ ده او زه فکر کولای شم چې دغه دوه تنه پخوا د کوډګرو د ارادې له امله یا په طبیعي توګه فلج شوي ول او اوس د یوه ځواکمن کوډګر ارادې هغوی بېرته رغولي دي.

خو ددغه ځوان معالجې ډېر حیران کړی یم.

زه په دې اړه علمي توضیح نه شم درلودلی، ځکه چې د بدن تپ په کوډو یا پر ناروغ د

خپلې ارادې په تپلو سره نه شي معالجه کېدای او هغه هم په دې لنډه موده کې.

کله چې ما د دغه سړي تناکې او ټپونه ولیدل پوه شوم چې د ګال ناروغي ده او ګال نه معالجه کېږي، مګر د ګوګړو په وسیله او یا دا چې تل په ګرمو اوبو حمام وکړي.

خو دغه ځوان له حمام کولو او د ګوګړو له کارولو پرته په لنډه موده کې معالجه شو او مجبور یم ومنم چې دغه معالجه معجزه ده، ما تر اوسه پورې نه و لیدلي چې څوک دې دغسې معالجه وکړای شي.

کاهن وویل دغه ځوان او هغه دوه تنه، آمون معالجه کړي دي او اوس دا خبره منې چې آمون د خدایانو پاچا دی.

ما وویل ددې خدای نوم زما په مخکې په لوړ آواز مه اخله، ځکه چې فرعون دغه خدای راپرځولی او ددې خدای د نوم په اخیستو یې بندیز لګولی دی.

له دې کبله چې زه د فرعون په چوپړ کې یم، نه غواړم چې څوک یې نوم واخلي.

زه پوه شوم چې زما خبرو کاهن غوسه کړ، خو له دې کبله چې لوړ مقامه سړی و، پر خپلې غوسې برلاسی شو او ویې ویل، زما نوم هري بور دی.

زه له دې کبله تاته خپل نوم درښیم، چې ته ولاړ شې، ما فرعون ته ور وښیې او هغه خپل عسکر را واستوي، چې ما ونیسي او یامې د مترکو په زور اړ باسي چې د اجباري کار لپاره کانونو ته ولاړ شم.

خو زه نه له فرعون څخه وېرېږم او نه د هغه له مترکو او عسکرو څخه.

هر څوک چې پر آمون عقیده ولري او ما ته راشي زه به هغه معالجه کړم.

له دې کبله چې زه او ته دواړه عالمان او پوهان یو، نو غوره دا ده چې د پوهانو په شان خبرې وکړو.

زه تاته بلنه درکوم چې راشې او زما په کوټه کې یوه پیمانه شراب وڅښو، ځکه چې پوهېږم دلته دد غو شیانو له لیدو وروسته ستړی شوی یې.

هري بور، د دارالحیات ډاکټر رخصت کړ، زه یې له یوه دهلېزه تېر کړم او د هوا دروندوالي پوه کړم چې په ځمکتلې کې روان یو.

وروسته پوه شوم چې ویل کېږي د آمون تر پخواني معبد لاندې ځمکتلې یا زېرزمنی وې چې نا محرمو کسانو هغه نه وې لیدلې.

له ځمکتلې څخه چې تېر شوو، یوې کوټې ته ورسېدو، چې هلته د استراحت وسایل

لکه فرش، کټونه او صندقونه ایښي ول او هري بور په ډېر درناوي زما په لاسونو اوبه را واچولې.

بیایې زما مخې ته ډوډۍ، مېوه، خواږه او شراب کېښودل او ویې ویل سینوهه! دغه شراب چې ته یې څښې ډېر زاړه دي او د آمون له پخوانیو تاکونو تر لاسه شوي دي

نن سبا په مصر کې دغسې شراب نه جوړېږي، ځکه چې د آمون د تاکونو برکتي باغونه له منځه تللي دي

هري بور له دې وروسته چې جام یې پر سر واړاو، وویل:

سینوهه! موږ دې پېژنو او پوهېږو، چې فرعون درباندې ګران دی، خو له خدایانو سره تعصب نه لرې

له هغه وخته چې تا په دارالحیات کې زده کړې کولې، د مذهب په برخه کې بې پروا وې، ډېره دې علم ته توجه کوله، له همدې امله نن شپه زه له تا سره په مذهبي مسلو خبرې نه کوم

زما خبرې د فرعون په اړه دي، زه پوهېږم، چې ته له انسانانو سره خواخوږي لرې، ستا سلګونه ناروغان دا شهادت ورکوي، چې له سرو او سپینو پرته د بېوزلو معالجه کوې

ته له دې سره سره چې یوه موده نه وې، او اوس چې راستون شوی یې، بیا هم بېوزلي په وړیا توګه معالجه کوې.

نو شک نشته چې خواخوږی او بشر دوسته سړی یې او د مصر د ملت ښېګڼه غواړې

زه تاته ویلی شم، چې د مصر فرعون اخناتون ددې هېواد لپاره پر یوې سترې بلا بدل شوی دی، چې خطر یې تر هغې کاختۍ هم ډېر دی چې پخپله ده رامنځته کړې ده.

ددې لپاره چې د مصر ملت تر دې زیات، ددغه سړي د ظلم په پایله کې تاوان ونهویني نو باید دغه فرعون او د هغه خدای را وپرځول شي.

ما وویل هري بوره! زه په ځواني کې د خدایانو په اړه بې پروا وم، ځکه چې کتل مې څومره چې د مصر خدایان ډېرېږي هومره د مصر خلک بدبخته کېږي، خو د فرعون خدای ،آتون له نورو خدایانو سره توپیر لري

توپیر یې دا دی چې هغه د خلکو ترمنځ مساوات غواړي او وایي چې باید بادار له مریي او کارګر له ټیکه دار سره توپیر ونه لري

بېوزله او شتمن یو شان دي، شتمني باید داسې ووېشل شي، چې په مصر کې ټول خلک په یوه اندازه له ځمکې ،اوبو او لمره استفاده وکړای شي.

له کومې ورځې چې مې نوی خدای پېژندلی، فکر کوم چې په نړۍ کې یو نوی کال پیل شوی دی.

موږ په داسې پېړۍ کې ژوند کوو، چې د بشر تر ټولو ځلانده پېر دی (په پخواني مصر کې نړیوال کال شپږ ویشت یا اووه ویشت زره کاله و او کله چې سینوهه وایي، په نړۍ کې یو نوی کال پیل شوی، مانا یې داده چې بل اوویشت زره کلن پېر په نړۍ کې پیل شوی دی. ژباړن) نور به په نړۍ کې دغه فرصت د بشر لاس ته ور نه شي.

یو پاچا چې باید د نورو ځمکې ونیسي، خلک د مریانو او وینځو په توګه وګماري، د هغو سره او سپین ترې واخلي، خو ددې پرخلاف دی پخپله دغه نوبت وکړي او د خلکو تر منځ د توپیرونو د ختمولو لپاره را مخکې شي.

د شتمن او بېوزلو تر منځ توپیر... د شتمن او بډای د توپیرونو د ختمولو فکر وکړي، د پخواني خدای ځمکې پر نورو وویشي.

دغه راز هغه سره او سپین چې د پخواني خدای له خزانې یې ترلاسه کړي ول، په هغه پورې اړوند دي، خو دی یې د ښار پر نویو ودانیو لګوي، نو له دغه فرصته باید استفاده وکړو او د بشریت تر منځ عدالت او ورور ګلوي ټینګه کړو.

هري بور وویل، په دې موده کې چې فرعون د خپل خدای قوانین په ډېرې سختۍ سره پلي کړل، ایا د شتمن او بېوزلي ترمنځ یې توپیر ختم کړ؟ د بشریت ترمنځ یې مساوات ټینګ کړ؟

ما وویل نه، خو وروسته به ورور ګلوي او مساوات راشي.

هري بور وویل، سینوهه! ته پوه او عالم یې خو له سیاسي چارو خبر نه یې، نه پوهېږې چې که د فرعون د نوي خدای قوانین د اجرا وړ وای، لږ تر لږه تر ننه خو به یې یوه برخه اجرا شوې وای.

د فرعون د خدای د قوانینو د عملي کېدا نتېجه دا شوه، چې د آمون کاهنان او شتمن کسان بېوزله شول، خو د هغوی پر ځای د نوي خدای کاهنان شتمن او بډای شول.

یوه شتمنه پرګنه له منځه ولاړه، خو پر ځای نوې شتمنه پرګنه رامنځته شوه او نن سبا په مصر کې د شتمن او بډای توپیر د آمون تر وخت هم ډېر شوی دی.

سینوهه ته با انصافه یې، زه غواړم چې ته قضاوت وکړې.

ته پخوا د آمون د معبد کاهن وې او که دې مقام ته نه رسېدې تا ته یې اجازه نه درکوله،

چې په دارالحیات کې زده کړې وکړي
د زده کړو له بشپړېدا وروسته ډاکټر شوې ، ایا ته چې د آمون د معبد پخوانی کاهن او له دارالحیاته فارغ شوی ډاکټر یې چمتو یې، چې له یوه مریي سره یوشان و اوسې؟ ایا چمتو یې چې د یوه مریي په شان ژوند وکړې ، د هغه په شان پر خاورو څملې او ستا خواړه هم یوه ګوله ډوډۍ او د اوربشو اوبه وي
ومې ویل، هري بوره ! زما ارزښت تر یوه مریي زیات دی، ځکه چې ما کلونه زده کړې کړې دي، خو یو مریی چې زده کړې یې نه وي کړي زما ارزښت نه لري
هري بوروویل په بابل کې داسې کسان شته چې وایي، کلونه کېږي چې زیار مو ګاللی، صبر او زغم مو کړی، تر دې چې ډېره مو اوږده شوه او دومره لویه شوه چې اوس ځمکې ته رسېږي
له دې کبله چې اوږدې ډېرې، لرو نو تر نورو معتبر یو او دا حق لرو چې د نورو په پرتله د ژوند له وسایلو ډېره استفاده وکړو، یا تر نورو ډېر سره او سپین تر لاسه کړو.
ومې ویل، هېڅوک هم د اوږده ږیري په لرلو سره نه نورو ته ګټه رسولای شي او نه کوم خدمت کولای شي، چې په بدل کې یې تر نورو ډېر سره او سپین تر لاسه کړي
خو هغه کس چې له دارالحیاته فارغ شوی وي، نورو ته خدمت کولای شي او هغوی ته یې خیر رسېدای شي، نو دا حق لري، چې و ذایي تر نورو باید ښه ژوند وکړي.
هري بوروویل سینوهه ! ایا ته خلکو ته ډېر خیر رسوې، که هغه کروندګر چې په بابل یا مصر کې پر کرنه بوخت وي او خلکو ته خواړه رسوي؟
که ته نن نه یې خلک له لوږې نه مري، خو که کروندګر نه وي خلک به مړه شي.
ایا ته نورو ته ډېر خیر رسوې، که هغه مریی، چې په کان کې کار کوي، سره او سپین راباسي او د هغه پر سرو او سپینو باندې چې ته هر څه وغواړې تر لاسه کولای یې شې.
ولې هغه کروندګر، چې تر تا ډېر د خلکو خدمت کوي او خیر ورسوي ورېږي دي؟ ته ولې هغو مریانو ته انعام نه ورکوې چې په وږې نس په کانونو کې تر مرګه پورې کار کوي ؟
هغه څه چې په خلکو کې شتمن او بېوزلي پیدا کوي ، دا نه دي چې شتمن د بېوزلو په پرتله خلکو ته ډېر خدمت کوي او خیر ورسوي، بلکې د شتمن او بېوزلي تر منځ توپیر له دوو شیانو پیدا کېږي، یو خدای دی او بل حکومت.
هر چېرته چې خدای او حکومت موجود وي، یو شمېر خلک به شتمن او یو شمېر نور به

بېوزله کېږي، ځکه خو د مصر د خدای کاهنان ځانته دا حق ورکوي، چې تر نورو ښه ژوند وکړي او شتمن وي.

همداسې د حکومت کارکوونکي هم دا خپل حق بولي، چې له ټولو امتیازاتو برخمن وي.

دغه دوه ډلې د نورو او ځان تر منځ، د شتمن او بېوزلو تر منځ توپیر ساتي، داسې قوانین رامنځته کوي، چې هېڅکله بېوزلي شتمن نه شي، ځکه چې بیا به له دوی سره برابر شي.

د بابل حکومت د ډېرې قانون د شتمن او بېوزلي، د توپیر د ساتلو لپاره اجراکوي او د مصر حکومت په دارالحیات کې د زده کړې قانون د همدغه کار لپاره عملي کوي.

په مصر، بابل، هاتي، سوریې، کرېټ او نورو ځایونو کې د خدای د کاهنانو او د حکومت د کارکوونکو هدف یو دی، هغه دا چې د دوارو ګټې او امتیازات وساتل شي او هڅه یې دا وي چې تر وسه- وسه بل څوک ورسره شریک نه شي.

سینوهه! تر هغه وخته پورې، چې په مصرکې یو خدای او یو حکومت وي، نو د شتمن او بېوزلو تر منځ به توپیر هم همداسې پاتې وي.

له دې کبله چې مصر او نور هېوادونه له خدای او حکومت پرته ژوند نه شي کولای، نو تل به د شتمن او بېوزلي تر منځ توپیر موجود وي.

ستا فرعون چې غواړي، دغه توپیر ختم کړي، د لېونتوب کار کوي، ځکه چې د اخناتون دغه کار به مصر له منځه یوسي، نو ددې پر ځای چې دی دغه کار وکړي باید مخکې له مخکې مونږ دی له منځه یوسو او مصر وژغورو.

ددې خبرې په اورېدو وارخطا شوم، لږ شراب مې وڅښل، چې خپله وارخطایي او پرېشاني ختمه کړم.

هري بور وویل: سینوهه! ته بې ازاره مصری یې او یو مصری باید د مصر د ژغورلو په دې مبارزه کې بې پلوه پاتې نه شي او بې پرې پاتې کېدل، له دندې تېښته او یو ډول بې غیرتي ده.

مونږ د آمون پیروان یو، چمتو نه یو چې له بې پرې کسانو سره، په نرمۍ او زغم سره چلند وکړو، ځکه چې مونږ په دې هېواد کې د بې پرې کسانو د کړو وړو قربانیاني شوي یو.

کومه ورځ چې فرعون فیصله وکړه، چې زمونږ خدای له منځه یوسي، مونږ هیله کوله چې د مصر ملت به د خپل خدای د نسکورولو په کسات کې پاڅون وکړي او اجازه به ورنه

کړي چې د هغوی دودونه او رواجونه له منځه ولاړ شي.

خو یو وخت مو ولیدل، چې د هېواد اکثریت خلک بې پرې پاتې شول او د خپل ځان یا مالونو د له منځه تللو له وېرې لاس تر زنې کېناستل او سکوت یې وکړ.

همدغو بې پرې کسانو موږ له منځه یوړو.

که موږ تر دې وړاندې، چې فرعون له آمون سره وجنګېږي، پوهېدلي وای، چې خلک به بې پرې پاتې شي، نو له دښمن سره به مو د مبارزې لپاره عسکر اجیران کړي وای او له نورو هېوادونو ، څخه به مو عسکر راوستلي وای.

له دې کبله چې سره او سپین مو درلودل، نو یو ستر پوځ مو جوړولای شو، خو په دې هیله چې ټول مصریان د آمون پلویان دي او اجازه به ورنه کړي چې خدای یې را وپرځول شي، نو ځکه موږ د لښکر جوړولو هڅه و نه کړه.

سینوهه ! ته چې تر اوسه بې پرې وې، له دې وروسته باید خپله لاره معلومه کړې.

ته باید موږ ته ووایې، چې زموږ دوست یې که دښمن؟ ځکه چې موږ ټول بې پرې کسان خپل دښمنان بولو او هغه کسان چې له موږ سره نه دي هم زموږ دښمنان دي.

له دې کبله چې ته ډېر ښه سړی یې، نو باید خپله لاره معلومه کړای شې او باید دا هم درته ووایم چې ستا فرعون به تر ابده ژوندی پاتې نه شي.

زه دغه خبره بل چاته نه کوم، خو تاته یې وایم، ځکه چې د لوړ ظرفیت خاوند او پوه انسان یې او داسې خبرې اورېدلی شې، چې نور یې د اورېدو توان او ظرفیت نه لري.

ومې ویل، هري بوره ! سپینه خبره وکړه، داڅه وایې ؟

هري بور وویل، موږ د فرعون د مړینې سریزه برابره کړې ده، هغه به مړ شي، خو ډېر ژر دغه کار نه کېږي.

ومې ویل: هري بوره !آیا لیوني سپي داړلی یې که لړم چیچلی یې چې دغسې خبرې کوې؟

هري بور په کوټه کې څراغ اوچت کړ او ویې ویل راشه چې یو شي در وښیم.

زه هم ور ولاړ شوم او په هغه پسې له کوټې ووتم ، کله چې له دهلېزه، ووتم، بیا هم هغه سړي له یوه دالانه تېر کړم او یوې کوټې ته ورسېدو.

کله چې یې دروازه خلاصه کړه، د سرو او سپینو کڅوړې مې ولیدې.

ددغو څلزاتو په لیدو موسک او د هري بور پر سادګۍ حیران شوم.

هغه چې زما موسکا ولیده ویې ویل، سینوهه ! زه ماشوم نه یم چې هڅه وکړم، د سرو و

سپينو په زور تا له ځان سره ملګرتيا ته اړ کړم.

زه پوهېږم، چې تـه سلطنتي ډاکټر يې او درباري ډاکټر سرو و سپينو ته ارزښت نه ورکوي، ځکه هر څومره سره و سپين چې وغواړي تر لاسه کولای يې شي.

ما ، ته له دې امله دې کوټې ته راوستې چې مجبور يو له دې ځايه تېر شو او بلې کوټې ته ورسېږو .

بيا يې يوه لويه مسي دروازه خلاصه کړه او زه يې يوې بلې کوټې ته ننه ايستم.

له دې سره سره چې زه خرافاتي نه يم خو ده د څراغ په رڼا کې داسې شی راوښود ، چې په ليدو يې زه ورېږدېدم.

په دې کوټه کې پر يوې لويې ډبرې، چې دراز چوکۍ ته ورته وه، د فرعون اخناتون ومي مجسمه ايښې وه، چې په ټټر او سر کې يې غشي ننه ايستلي ول.

هري بور وويل، سينوهه ! موږ د آمون په نوم، ستا فرعون په مرګ محکوم کړی دی او دغه غشي چې ته يې وينې، سپېڅلي غشي دي.

دغه غيشي د آمون په نوم سپېڅلي شوي او ستا فرعون به حتماً پرې ومري.

خو لـه بده مرغـه موږ نه شو کولای، هغـه ژر مړ کړو او يـوه موده وخت غـواړي چې نوموړی د هغو ټپونو له کبله مړ شي، چې موږ يې دلته د هغه په شان قالب ته ورکوو او په دغې موده کې به د دغه سړي لېونتوب مصر بد مرغه او کمزوری کړي.

سينوهه ! دغه منظره مې ځکه تاتـه در وښودله، چې پوه شې خير دې په دې کې دی، چې بې پرېتوب پرېږدې او له موږ سره ملګری شې.

ځکه چې اخناتون به حتماً مړ شي او تـه بـه بې فرعونه شې او هغه مقام بـه لـه لاسه ورکړې، چې نن يې لرې.

هري بور، له کوټې را و ايستلم او دروازه يې بنده کړه، بيرته هغې کوټې ته ولاړو، چې هلته مو شراب څښل.

هغه ماته شراب واچول او ويې ويل، موږ د دې لپاره چې فرعون مړ کړو ، د دې مجسمې له جوړېدا وروسته مو ، د هغه لږ وېښتان او نوکان د افق له ښاره تر لاسه کړل او په دې مجسمې کې مو وکارول.

هغه کسان، چې موږ تـه يې د فرعون وېښتان او نوکان راکړل ، دا کار يې د سرو او سپينو لپاره نه دی کړی ، بلکې پر آمون يې عقيده درلوده او مرسته يې راسره وکړه.

له هغه وروسته هري بور وويل : زموږ د خداى قدرت کال په کال زياتېږي او تا پخپله نن شپه دلته وليدل چې موږ وتوانيدو ، د خپل خداى آمون د ځواک او مرستې په وسيله له درملو ، چړې ، اور او پټۍ پرته ناروغان معالجه کړو.

له دې وروسته به د آمون ځواک نور هم زيات شي او د مصر پر هېواد او ملت به تر دې ډېر لعنت وکړي، ځکه چې د مصر پر هېواد او خلکو ډېر په قهر دی .

څومره چې فرعون ډېر عمر وکړي، د مصر پر ملت د آمون قهر هم هومره زياتېږي او کله چې فرعون، مړ شي نو د مصر ملت به هم له بد مرغيو خلاص شي.

ته چې د فرعون خاص ډاکټر يې پوهېږې، چې فرعون په سر درد اخته دی او دغه سر درد د هغه ځواک ورو ، ورو کموي، تر هغه چې هغه ووژني.

غوره دا ده چې ډېر ژر دغه پېښه وشي او که ته غواړې، زه به يو ډول درمل درکړم، چې فرعون له سر درد او د اوس او راتلونکې له هر ډول سر خوږيو خلاص کړي.

ومې ويل هري بور ترڅو چې انسان ژوندی وي ممکنه ده ناروغه شي، چې د زړښت پړاو ته رسيږي ناروغۍ يې نورې هم ډيريږي بايد داسې درمل خلکو ته ورکړو چې داوس او راتلونکو ناروغيو پر وړاندې يې خوندي کړي يوازې مرګ دی چې انسان له ټولو ناروغيو ژغوري.

هري بور وويل، دغه درمل چې زه يې درکوم، فرعون به نور درملو ته اړتيا و نه لري او بله دا چې پر بدن به يې د درملو اغېز هم نه ښکاري.

ان کله چې د هغه مړی موميايي کوونکو ته ورکړي، نو موميايي کوونکي به هم پوه نه شي چې ګني فرعون دې دغو درملو وژلی وي، ځکه چې د هغه په توري ينې، معدې او کولمو کې به هېڅ اغېزه پرې نه ږدي.

تر دې وړاندې چې زه هغه ته ځواب ورکړم، هري بور زياته کړه:

سينوهه ! که ته دغه کار وکړې او فرعون د خوب د دغو درملو په مرسته لوېديزې نړۍ ته واستوې، نو ستا نوم به د آمون او د هغه د پيروانو په منځ کې تلپاتې شي.

له دې سره به ته تلپاتې ژوند ولرې او موږ ، يانې آمون او د هغه پيروان به ستا او ستا د راتلونکي نسل ملاتړ وکړي او تر هغې ورځې چې مصر وي او پر دغه ټاټوبي لمر ځلېږي، نو ستا خپلوان به په نېکمرغۍ او درناوي کې ژوند کوي.

که ته بېوزله او حريص وې ما به سره زر درکړي واى، چې فرعون بلې دنيا ته واستوې،

خو ته ډېر ستړی یې ، او نه شي کېدای چې د سرو او سپینو په زور کې دې د ځان کړو.
ستا په شان کسانو سره یوازې یو انعام مناسب دی او هغه د نوم تلپاتې کېدل دي.
هري بور خپلې اغېزناکې سترګې زما په سترګو کې ښخې کړې، ما چې ورته وکتل سست او پرکاله شوم او احساس مې وکړ چې دده غه سړي د ارادې تر سلطې لاندې راغلی یم، خو زما روح دې ته چمتو نه و، چې د هغه سپارښتنې ومني.
هري بور زیاته کړه، سینوهه! ته یو پوه او ډاکټر یې، پوهېږې چې، تر یوه حده د وګړو اراده تر خپلې سلطې لاندې راوستی شو او اوس که زه درته ووایم چې لاس دې پورته کړه نو ته همدغسې کوې.
که درته ووایم چې پورته شه ،نو ته به پاڅېږې، خو تا داسې کار ته نه شم مجبورولای چې روح دې نه مني.
که ته پخپله خوښه پر آمون عقیده او باور ونه کړې ، نو زه نه غواړم چې تا دغه کار ته اړ کړم ، او نه دې مجبورولای شم چې زما درمل فرعون ته ورکړې.
خود مصر د هېواد او ملت په خاطر له تا غواړم، دغه درمل چې ما برابر کړي واخله ، فرعون ته یې ورکړه او د مصر ملت وژغوره.
تر هغه وخته چې هري بور، خپلې سترګې زما په سترګو کې ښخې کړې وې، ما خپل لاسونه، نه شو ښورولای.
له دې وروسته چې هغه سترګې راخخه واړولې، ما خپل لاسونه وښورول او ومې ویل، هري بوره، زه اوس درسر ژمنه نه شم کولای، خو خپل درمل دې راکړه، چې راسره وي.
ښایي یوه ورځ پخپله فرعون ونه غواړي، چې له خوبه راپاڅېږي او موافقه وکړي، چې تر تریاکو ، په قوي درملو سره هغه ویده کړم، چې بیا راویښ نه شي او کله چې را ویښ شي، نو کومه ستونزه ونه ګالي .
هري بور، یو بوتل راته راوړو یې ویل، درمل په دغه بوتل کې دي او اوس چې دې دغه بوتل له ما واخیست، نو مصر ستا په لاس کې شو.
موږ کولای شو فرعون په بل ډول هم له منځه یوسو ، ځکه چې هغه هم انسان دی او کله چې د هغه په بدن کې نیزه او یا چاړه ننوځي د هغه وینه به تویه شي او وبه مري.
خو باید دغه کار ونه شي، ځکه کله چې خلک یو ځل هم پوه شي چې فرعون له منځه تللی شي، نو تر هغه وروسته کومه پېښه نه کېږي. په دې دنیا کې به د فرعون مرګ، په

کایناتو کې د یوه مریي د مرګ په پرتله کم اغېز ولري او بیا به خلک هغه کوي، چې نور فرعونیان هم ووژني.

که دا کار وشي نو په راتلونکې کې به د مصر قدرت خپځانده شي او په هېواد کې به دننه تل ګډوډي او ناامني وي.

غوره دا ده چې فرعون داسې مړ شي چې خلک تصور وکړي، هغه پخپل طبیعي مرګ مړ شوی دی.

ته کولای شې په خلکو کې دغه تصور رامنځته کړې او اوس ته یوازېنی کس یې چې د مصر د ژغورلو قدرت لرې او برخلیک یې ستا په لاس کې دی.

ومې ویل هري بوره! له دې سره سره چې ته فکر کوې، پر هر څه پوهېږې، خو داسې نه ده، له ځینو شیانو بې خبره یې او نه پوهېږې چې د مصر برخلیک یوه ورځ د داسې چا په لاس کې و، چې تو کرۍ یې اوبدلې.

هري بور وویل، د تو کریو له اوبدلو ستا مقصد څه دی؟

ومې ویل، دغه موضوع اوږده کیسه لري، په هر حال ستا درمل له ما سره دي، خو په یاد ولره، چې ما له تا سره ژمنه نه ده کړې.

هري بور وویل، خو که دې مصر وژغوره، نو لوی انعام به تر لاسه کړې. له هغه وروسته، بې له دې چې زما سترګې وتړي، زه یې له هغو تل خونو را وایستم چې د آمون تر پخواني معبد لاندې وې.

تر دې مخکې چې، زه له ځمکتلو را ووځم ماته یې وویل، سینوهه! ته شریف سړی یې او رازونه ساتې، زه ضرور نه ګنم تا ته سپارښتنه وکړم چې ددې ځمکتلو، په تېره بیا هغو ته د تلونکو لارو په هکله چاته څه ونه وایې.

دا ځکه چې په طبس کې داسې کسان شته، چې پوهېږي د آمون په معبد کې ځمکتلو ته نه شي ننوتلی.

ما وویل، هري بوره! ښایي زه یوه ورځ ووایم، چې د آمون تر پخواني معبد لاندې ځمکتلي شته، خو لارې به یې هېڅکله چاته ور ونه ښیم، ځکه چې دا زما راز نه دی.

څو ورځې وروسته د فرعون مور تي تي په خپلې مانۍ کې د یوه زهرجن مار له چیچلو وروسته مړه شوه.

د فرعون مور له ځوانۍ څخه دا عادت درلود، چې د خپل پلار د لارښوونو له مخې په

لومو کې مرغان ونيسي.

يوه ورځ خپلو لومو ته ورتله او دې ته يې پام نه وه چې که په لومه کې يوه کوچنۍ مرغۍ شته، کېدای شي يو زهرجن مار هم وي، نو هلته د (سراست) په نوم يوه کوچني مار وچيچله.

له دې وروسته چې نارې يې کړې او نوکرانو ورمنډې کړې، غوښتل يې د هغې ځانګړی ډاکټر را وغواړي، خو دهغې ډاکټر لکه چې تل په دغسې حالاتو کې نه وي، دا ځل هم موجود نه و، نو زه يې وروغوښتلم او تر هغه چې زه ورسېدم نو دا هم مړه شوې وه.

سراست ډېر خطرناک مار دی او څوک چې وچيچي، نوبيا ژوندی نه شي پاتې کېدای خو يوه لاره هم شته هغه دا چې تر دې وړاندې چې د مارچيچلي، زړه سل ځله وډبېږي، د هغه د نېش ځای سوری کړای شي، له چيچل شوي ځايه پورتنۍ برخه پر يوه پړي کلکه وتړل شي او له چيچل شوي کس څخه ډېره وينه وبهېږي

خو د تي ئي په مانۍ کې، چا دغه فکر نه و کړی، کله چې زه ور ورسېدم ومې ليدل چې د فرعون مور مړه شوې ده.

ماووېل، زه نور څه نه شم کولای، بايد مړی موميايي کوونکو ته وسپارل شي چې موميايي يې کړي.

د اتون د معبد ستر کاهن آمي، چې کله د فرعون د مور په مړينه خبر شو نو راغی او د تي ئي پر پړسېدلو غامبورو يې لاس تېر کړ، ويې ويل، دا غوره وه، چې هغه مړه شي، ځکه چې تي ئي پر دې سربېره، چې ځوانه او ښکلې نه وه، زما پر خلاف يې دسيسې هم کولې او اوس چې دا مړه شوې هيله کوم چې خلک به په کرار شي.

زه تصور نه کوم چې آمي دې هغه وژلې وي، که څه هم د آتون د معبد پر کاهن د فرعون بوډۍ مور ګرانه نه وه، خو هغه دواړه سره متحدول

دوی پوهېدل چې يوه بل ته ګټه ورسوي، په دې دنيا کې د ګټو شرېکېدل، تر مينې زيات خلک سره نژدې کوي او د شريکو ګټو دوستي، تر مينې زيات دوام کوي.

کله چې د تي ئي د مړينې خبر په طبس کې خپور شو، خلکو جشنونه جوړ کړل، د فرعون د مور د مړينې په خوشحالۍ کې يې شراب وڅښل او نارې يې وهلې چې موږ د کوډګرو له شره خلاص کړئ.

ددې لپاره چې آمي خلک خوشحاله کړي، پېنځه تنه کوډګر يې، چې يوه پکې

تورپوستې ښځه وه، له مانۍ را وایستل.

خلک ناڅاپه پرې راټول شول او له دې سره سره چې تورپوستي کوډګر ول، خو په کوډو يې ځان ونه شو ژغورلای، ټول ووژل شول.

د کوډګرو تر مړینې وروسته آمي د هغوی د کوډو ټول وسایل مات کړل او ويې سوځول.

دغې پېښې زه خواشینی کړم، ځکه چې زړه مې غوښتل پوه شم، چې تورپوستو کوډګرو له کومو درملو استفاده کوله او څه ډول يې د نورو معالجه کوله.

هیڅ په سلطنتي مانۍ کې د تي ئي او کوډګرو پر مړینې ونه ژړل او د هغې پر کټ حاضر نه شول.

یوازې شهزادګۍ او د تي ئي لور باکتاتون د خپلې مور د مرګ بستر ته راغله.

تي ئي تر مړینې مخکې ما ته ددې نجلۍ په هکله ویلي ول چې هغه يې تر فرعون مخکې زېږولې، خو ما تر هغه وخته نه وه لیدلې.

کله چې شهزادګۍ باکتاتون د خپلې مور د جنازې په څنګ کې زه ولیدم ويې پوښتل، ایا ته سینوهه يې؟

ومې ویل، هو!

ويې ویل، ایا تا د هغو تورپوستو د وژلو مخه نه شوه نیولای؟

ومې ویل، باکتاتون! ته پوهېږې، چې زه په طبس کې هېڅ نفوذ او قدرت نه لرم.

په دې ښار کې قدرت د آتون د ستر کاهن آمي او د مصر د لښکرو د قوماندان هورم هب په لاس کې دی.

که ما د تورپوستو د وژلو د مخنیوي هڅه کړې وای، نو خلکو به زه هم وژلی وای.

ما به هېڅ ډول تورپوستي له مرګه نه وای ژغورلي، ځکه چې خلک پوهېږي زه د فرعون ځانګړی ډاکټر یم، دوی فکر کوي ستا له مور سره یو لاس وم او له پخواني خدای سره دښمني لرم.

شهزادګۍ زما خبره تاید کړه، بیا يې وویل، دغو تورپوستو خوارانو کومه ګناه نه وه کړې، نه يې غوښتل چې کوډې وکړي او که آزاد وای، نو خپلو ځنګلونو ته به تلل، هلته به يې ژوند کاوه.

له دې کبله چې هغوی د ځنګل ځناورو ته ورته ول، په ښار کې يې ژوند نه شو کولای،

زما مور په زور هغوی په ښار کې ساتلي ول او ددې مانۍ په زیر زمینۍ کې یې بندیان کړي ول.

زه حیرانه په دې یم چې هورم هب ولې ددغو کسانو د وژلو مخه ونه نیوله؟

له دې وروسته شهزادګۍ د هورم هب د مجردۍ په هکله خبرې وکړې او ویې ویل حیرانه یم چې هورم هب ولې واده نه کوي، چې ګڼه کورنۍ جوړه کړي.

ومې ویل، له ما څخه دغه پوښتنه نورو کسانو هم کړې او ما هغوی ته ځواب نه دی ورکړی، خو تاته یې ځواب درکوم ځکه زما ځواب په تا پورې اړه لري.

له دې وروسته چې هورم هب طبس ته راغی او د لومړي ځل لپاره یې په سلطنتي مانۍ کې ګام کېښود، ستر ګې پر تا ولګېدې.

کله چې هغه ستا ښایست ولید، نو بلې ښځې ته یې نه شو کتلی، ځکه چې بله هره ښځه ورته بدرنګه ښکارېده، له همدې امله یې تر اوسه پورې له بلې ښځې سره منګۍ مات کړي نه دی.

خو باکتاتون! ته ولې مېړه نه کوې او ګڼ زامن نه پیدا کوې؟

ایا ته نه پوهېږې چې ونې تل ګلان او میوه نه کوي او یوه ورځ به د نیل په خړو او ختو کې ولاړې تر ټولو ښې ونې داسې شي چې مېوه به نه شي کولای.

شهزادګۍ وویل، سینوهه! ته پوهېږې چې زما وینه سلطنتي یا له خدایانو څخه ده او د مصر تر ټولو شریف او ستر کسان هم زما لپاره د ډېر کوچني دي چې واده ورسره وکړم، هورم هب خو پر ځای پرېږده! یوازې یو کس ددې لیاقت لري، چې له ما سره واده وکړي او هغه زما ورور فرعون دی، خو فرعون له نفرتي تي سره واده کړی دی.

پر دې سربېره، زه پخپله هم مېړه نه غواړم، ځکه چې اورېدلي مې دي کله چې نارینه غواړي له ښځو سره ځملي، نو تاوتریخوالی کوي او له ځینو ښځو مې اورېدلي، هغه خوند هم چې ښځې یې له نارینه وو سره له ساعت تېري اخلي، هسې درواغ او لافې دي او د خوراک او څښاک تر خوند زیات نه وي.

کله چې باکتاتون دغه خبرې کولې، ما ورته کتل، متوجه شوم چې مخ یې سور شوی دی، ژر ژر ساه اخلي او پوه شوم چې په باطن کې د نارینه وو په اړه بل نظر لري.

زه پوه شوم چې ځوانه شهزادګۍ له دې خبرو خوند اخلي، نو خپلو خبرو ته مې دوام ورکړ او ومې ویل: باکتاتون! هغه تاوتریخوالی چې نارینه یې له ښځو سره د تفریح پر وخت کوي، حقیقي تاوتریخوالی نه دی، بلکې له هغوی سره د ډېرې مینې له امله یې کوي.

ټولې ښځې دغه ډول تاوتريخوالي خوښوي.
خو له دې کبله چې هورم هب تر او سه پورې له کومې ښځې سره منګي نه دي مات کړي، ښځه کولای شي، پخپله خوښه هغه وروزي، ځکه که نارينه څومره هم زړه ور او ځواکمن وي، خو تر هغه چې له کومې ښځې سره يې منګي نه وي مات کړي، له ښځو سره د ساعت تېرې په مسله کې له يوه ماشوم سره توپير نه لري.
ښځه کولای شي هغه په خپله خوښه وروزي او پخپل زړه ور سره تفريح وکړي.
ته هم کولای شې، زړه ور او ځواکمن هورم هب پخپل څنګ کې داسې نرم او ملايم کړې، چې کله هغه له تاسره اوسي، داسې به ښکاري لکه چې د هيليو د سينې په ښکلو ستا بدن موښي.
باکتاتون وويل، زه نه غواړم، چې ته د هورم هب ستاينه وکړې، ځکه چې هغه پر خاورو زېږدلی دی او له اصيل زاته نه دی.
د هغه له نومه مې کرکه کېږي او بله دا چې دغه ډول خبرې زما د مور د مړي پر وړاندې ښې نه دي.
زړه مې غوښتل هغې ته ووايم، چې تا پخپله دغه خبرې پيل کړې، مګر غوره مې وبلله چې په دې اړه هېڅ ونه وايم.
له هغه وروسته مې د هغه چا په شان چې د سلطنتي مانۍ له حالاتو او له تي ئي څخه له کرکې بې خبره وي، وپوښتل: باکتاتون! ولې د مانۍ کومه ښځه دلته نشته او ستا د مور په مړي نه ژاړي؟
کله چې ستا د مور مړی د مرګ د کور پر لور بيايي، چې موميايي يې کړي، ايا په لاره کې نوکرانې شته چې وژاړي، ساندې ووايي او پر سر ايرې باد کړي.
خو له دې کبله چې د مور جنازه به دې ژر د مرګ کور ته ونه لېږدول شي، نو دا ضروري ده چې يو څوک يې پر وژاړي او ساندې ووايي. له دې کبله چې زه ډاکټر يم نه شم ژړېدای، ځکه چې ډاکټران دومره ډېر مړيويني چې اوښکې يې وچېږي او د ژړا وس نه لري.
له دې وروسته چې د عمر يې لږه موده تېره شوه، له موسيقۍ او سندرو هم خوند نه شي اخيستلی، ځکه هغه ډاکټر چې ټول عمر يې د مرګ له سوړوالي سره تېر کړی وي هغه تودوخه له لاسه ورکوي، چې له موسيقۍ او سندرو څخه د استفادې لپاره ضروري وي.
بيا مې وويل، اې مهربانې شهزادګۍ چې لا دې مېړه نه دی خوښ کړی، پوه شه! چې

ځواني د اوړي د ګرمو ورځو په شان ده، بوډاتوب د مني د نیمو تودو ورځو په شان او مرګ د ژمي د سړو ورځو په شان وي.

که څوک د اوړي له تودو او ګرمو ورځو او د مني له نیمو ګرمو ورځو استفاده ونه کړي، نو کله چې د مرګ سړې شپې، ورځې را ورسېږي بیا ترې استفاده نه شي کولای.

باکتاتون وویل، سینوهه! د مرګ په هکله له ماسره خبرې مه کوه، ځکه چې زه نه غواړم د مرګ په هکله فکر وکړم.

زه ځوانه یم، د ژوند له شاتو خوند اخلم او ستا په شان نه شم ژړېدای، ځکه چې زه له خدایانو پیدا شوې یم او څوک چې له خدایانو پیدا شوی وي باید ونه ژاړي.

پر دې سربېره به مې اوښکې د مخ سینګار پاک او خراب کړي، خو باید یو څوک زما د مور پر مرګ وژاړي او همدا اوس ځم یوه ښځه دلته را لېږم چې اوښکې تویې کړي.

ومې ویل باکتاتون! هغه شېبه چې ما ولیدې او متوجه شوم چې ښکلې یې، داسې هیجاني شوم، چې که ته یوه ځوانه ښځه هم دلته را واستوې، زه به یوه شېبه هم دلته پاتې نه شم

نو ورشه یوه بوډۍ ښځه را ولېږه، چې د مور لپاره دې وژاړي.

باکتاتون په ټوکو وویل، سینوهه! ما اورېدلي، چې ته پر خدایانو عقیده نه لرې، خو فکر مې نه کاوه چې مړیو ته هم احترام نه کوې.

له دې کبله چې زما مور مړه شوې ده، باید د هغې د جنازې په خوا کې دغه ډول خبرې ونه کړې.

خو د هغې د ټوکو لهجې او هغې خوشحالۍ چې زما له خبرو څخه هغې ته پیدا شوه، ماته څرګنده کړه، چې زما له خبرو یې خوند اخیستی دی.

ما په قصدي توګه د فرعون خور ته دغه خبرې وکړې او یوه موخه مې درلوده.

باکتاتون ولاړه او د سلطنتي ماڼۍ یوه میرمنه یې له څو سپینو او سرو ښځو سره را واستوله.

په دغو مېرمنو کې د پخواني فرعون نورې ښځې، (د تي ئي د مېرې ښځې) د سلطنتي ماشومانو پالونکې نوکرانې، وینځې او نورې ښځې شاملې وې.

خو زیاترو سپین سرو مېرمنو ځانونه ځوان ښودل او له دې کبله چې په سلطنتي ماڼۍ کې اوسېدلې، هیله یې کوله چې په دې توګه به یو سړی لېونی کړي او له هغوی سره به مینګی مات کړي

## شپږ دېرشم څپرکی

## څه ډول پخپل هويت پوه شوم

هغه بوډۍ، چې پر دې ورځ د ژړېدا لپاره راغله ((مهو نفر)) نومېدله. ما چې يې کله مخ ته وکتل پوه شوم، چې له سرېو سره دلچسپي لري.

د هغې د نوم له دويمې برخې (مهونفر) څخه څرګنده وه، چې پخوا ښکلې وه.

دا چې راغله ژړا او ساندې يې پيل کړې.

زه ولاړم يو منګی شراب مې راوړل، يو جام شراب مې هم ورکړل او ورته مې وويل مهونفر دا وڅښه چې ګټه درته کوي.

هغې چې شراب وڅښل بيا يې ونه ژړل او ددې لپاره چې له هغې خبرې وباسم، نو ددې د پخوانۍ ښکلا په هکله مې خبرې پيل کړې ومې پوښتل، ايا دا سمه خبره ده، چې د فرعون په ټولو ښځو کې يوازې تي ئي د هغه لپاره زوی وزېږاوه او نورو ټولو لونې زېږولې.

مهونفر ماته په وحشت سره وکتل او اشاره يې راته وکړه چې چوپ شه.

هغه له دې امله ډارېده چې مرۍ به زما پوښتنې او د هغې ځوابونه واوري.

ددې لپاره چې له هغې خبرې وباسم د هغې د پخواني پرتم او ښکلا په هکله مې نورې خبرې هم وکړې او ورته مې وويل، مهونفر! ته اوس هم ښکلې يې او ستا سترګې د ځوانو نجونو په شان دي.

که ته او يوه ځوانه نجلۍ د يوه سړي په مخکې ودرېږۍ، هغه سړی به له ځوانې ښځې تېر شي او لېواله به وي چې له تاسره ساعت تېري وکړي.

ښځې چې څومره زړې او بوډۍ شي، په دغو خبرو باور کوي، ان که په دې هم پوه شي چې پر هغې ملنډې وهل کېږي، ځکه چې پخپل روح کې دې ته چمتو وي چې پر دغو خبرو باور وکړي.

له همدې امله مهونفر له ما سره ملګرې شوه، کله چې يې د تي ئي جنازه د موميايي

کولو لپاره د مرګ کور ته یوړه، نو بوډۍ ښځې ماته بلنه راکړه چې د هغې کوټې ته ورشم او شراب ورسره شراب وڅښم.

له دې کبله چې ما غوښتل له هغې څخه معلومات راغونډ کړم، نو د هغې بلنه مې ومنله، کوټې ته یې ورغلم، لږ شراب مې ورسره وڅښل، خو هغه مې هڅوله چې نور هم وڅښي.

کله چې نشه شوه ویې ویل، تې ئي د نارینه وو په انتخاب کې عجیبه سلیقه درلوده، ځکه له دې سره سره چې د مصر ټول خلک ښکلي اندامونه، نازک او غنم رنګ پوستونه لري، د بدنه یې خوندور بوی ځي خو دې بیا هم ترې کرکه کوله.

نوموړې به د مصري خلکو پر ځای، مضبوط تورپوستي د ساعت تېري لپاره انتخابول او ویل به یې، د هغوی د بدن له تېز بویه او د ساعت تېري پر مهال د هغوی له تاوتریخوالي څخه خوند اخلي.

کله چې بوډۍ دغه خبرې کولې ماته را نژدې شوه، زما ولي او ټټر یې بوی کړل، خو ما له ځانه لېرې کړه، ومې ویل، اورېدلي مې دي، چې تې ئي یوه تکړه اوبدونکې وه، ښکلې ټوکرۍ یې اوبدلې.

ایا تا نه دي اورېدلي، چې هغې کله د شپې مهال دغه ټوکرۍ په سیند کې خوشې کړې وي.

بوډۍ وویل له دې کبله چې تې ئي مړه شوې، زه یې له خطره خلاصه یم او تاته ویلای شم، چې د پخواني فرعون په ژوند درې نوي زېږېدلي ماشومان د تې ئي په وسیله په ټوکریو کې کېښودل شول او ټوکرۍ یې په نیل سیند کې خوشې کړې.

تې ئي باور درلود کله، چې څوک دغه ټوکرۍ وګوري فکر کوي چې نوی زېږېدلی د بېوزلو د کورنۍ دی او له دې کبله چې د ماشوم مور و پلار د هغه د ساتلو توان نه درلود، نو هغه یې په ټوکرۍ کې اچولی او په نیل سیند کې یې خوشې کړی دی.

په دې وخت کې تې ئي د فرعون د ښځو نوي زېږېدلي ماشومان له هغوی څخه پټول، په ټوکرۍ کې یې اچول او په نیل کې به یې خوشې کول.

دا هغه وخت و، چې لا تې ئي د خدایانو له وېرې هلکان نه وژل، ځکه ډارېده چې د نوي زېږېدلي ماشوم په وینو یې لاس ککړ نه شي.

خو تر هغه وروسته چې آمي، تې ئي ته ورزده کړل، چې څنګه له زهرو کار واخلي، نو

هغې به هغه هلکان چې د پخواني فرعون ښځو زېږول په زهرو وژل.

خو کله چې د ميتاني د پاچا لور او د فرعون ښځې هلک وزېږاوه تې ئي لا له زهرو ځخه د استفادې چل نه و زده کړی، نو هغه هلک يې هم په ټوکرۍ کې کېښود او نيل سيند ته يې واچاو.

ما وويل مهو نفر ! ته پوهېږې چې زه ډېر بې تجربې يم، نو زما د غولولو لپاره دغه ډول خبرې کوې، ځکه ما اورېدلي، چې د ميتاني د پاچا لور او د پخواني فرعون ښځې زوی نه وزېږولی.

بوډۍ ښځې وويل، سينوهه ! ته بې تجربې نه يې، بلکې ډېرې تجربې لرې او ستا سترګې شاهدي ورکوي، کله چې وايي تجربه نه لرم دروغ وايې.

که تې ئي ژوندۍ وای، ما دغه راز نه شو افشا کولای خو دا چې هغه مړه شوې ده، تا ته ويلای شم چې دا تې ئي وه، چې د ميتاني د پاچا لور يې پرې نه ښوده، چې د مصر وليعهد مور شي.

ته خبر يې چې له پخوا ځخه دود داسې و، چې د مصر فرعونيانو د ميتاني له سلطنتي کورنۍ ځخه يو ښځه تاکله او بلې خوا ته همدغې پاچاهي کورنۍ هم غوښتل چې خپله لور د مصر پاچا ته ورکړي.

دوی به نجونې په ماشومتوب کې له ميتاني ځخه مصر ته استولې، چې د مصر په دربار کې لويې شي او فرعون وکړای شي، هغوی پخپلې خوښې لويې کړي او چې لويې شوې بيا د فرعون مېرمنې شي.

په دې وخت کې هم د ميتاني له درباره يوه نجلۍ مصر ته راغله او دلته په سلطنتي ماڼۍ کې اوسيدله، چې له پېغلتوب وروسته د اخناتون مېرمن شي، خو ته به خبر نه يې چې هغه مړه شوه.

کله چې د ميتاني د پاچا لور او د پخواني فرعون مېرمن چې (تادو هپا) نومېده مصر ته راغله، دومره وړه وه، چې نانځکې يې لوبولې.

پخواني پاچا له دغې نجلۍ سره څو کاله نانځکې لوبولې دي مګر لويه شوه.

تې ئي ډېره هڅه وکړه چې پخواني فرعون دغه نجلۍ د نورو ښځو په شان خپله خور نه کړي، خو ددې کار مخه يې ونه شوه نيولی.

ځکه کله چې يو نارينه د يوې ښځې په څنګ کې ژوند وکړي او ددغې ښځې د بدن

غړي د هغه په مخکې وده وکړي، نو له هغې سره تفريح او ساعت تېري کولو ته داسې تړې کېږي، چې هېڅوک نه شي کولای هغه له دې هيلې څخه واړوي.

او که هغه سړی پوه شي چې دغه نجلۍ د هغه ښځه ده، حتماً به له هغې سره ساعت تېري وکړي.

له دې وروسته چې (تادو هپا) د فرعون حقيقي مېرمن شوه، نو امېندواره شوه.

له دې وروسته تې ئي پخپل ټول توان سره هڅه وکړه چې د ميتاني د پاچا لور دې ته وهڅوي چې خپل مُاشوم وغورځوي، خو په دې کار کې هم ناکامه شوه.

تې ئي د فرعون د نورو ښځو په اړه دغه کار کاوه او هغوی يې سقط جنين ته اړ کولې.

له دې کبله چې دغو مېرمنو لويې کورنۍ نه درلودې، نو له تې ئي به وېرېدلې.

دوی به د هغې له ډاره خپل ماشومان سقط کړل او يا دا چې موافقه به يې کوله، چې تر زېږېدا وروسته که به ماشوم هلک و، نو تې ئي به هغه وړي او پر ځای به يې يوه نجلۍ ږدي او يا به دا اوازه ګډوي چې نجلۍ يې زېږولې او هغه هم مړه شوې ده.

خو د ميتاني د پاچا لور اصل او نصب درلود، لويه کورنۍ يې درلوده او په مصر کې يو شمېر سترو شخصيتونو چې خپل مقام او شتمني يې د هغې له امله بلل، ددې نجلۍ ملاتړ کاوه، هيله يې کوله چې د هغې زوی پيدا شي چې د مصر وليعهد شي.

په همدې وخت کې چې د ميتاني د پاچا لور امېندواره شوه، پر همدې مهال تې ئي هم اميندواره شوه، خو زه پوهېږم چې د هغې زوی له فرعون څخه نه، بلکې د آمي له زوزاده و.

کله چې تې ئي پوه شوه اميندواره شوې ده، نو هوډ يې وکړ، په هر ډول چې وي، بايد د ميتاني د پاچا نوزېږی ماشوم له منځه يوسي.

آمي چې د لمر په ښار کې او سېده ددې کار لپاره يې طبس ته راوست او ټول نوکران يې په سرو او سپينو تطميع کړل او يا يې وګواښل او د ځان ملګري يې کړل (*دلمر ښار په پخواني مصر کې په پېنځو مشهورو ښارونو کې يو و او يونانيانو له دې وروسته چې د مصر تاريخ يې وليکه، دغه ښار يې هيلو پوليس وباله.*

*هيلو په يوناني ژبه کې لمر او پوليس د ښار په مانا دی له همدې امله د لمر ښار په ډېرو تاريخونو کې د هيلو پوليس په نامه هم يادېږي ژباړن)*

کله چې د ميتاني د پاچا لور زوی، وزېږاوه د تې ئي ټول ملګري او نوکرانې، په دې پلمه چې د شهزادګۍ د درد د کمولو لپاره راغلي، ددې ښځې شا و خوا يې کلا بنده کړه.

ښځې زوی وزېږاوه، خو له دې وروسته چې په را په خود شوه او غوښتل یې خپل زوی وګوري یوه مړه نوې زېږېدلې نجلۍ یې وروښودله او ویل یې داستا بچۍ ده.

خو زه پوهېدم چې د میتاني د شهزادګۍ بچی زوی و او هغه یې پر همدې شپه په یوې ټوکرۍ کې کېښود او په نیل کې یې خوشې کړ.

و مې ویل مهونفر! ته له کومه ځایه خبره شوې، چې تې ئې له دې وروسته چې د میتاني د مېرمنې شهزاده پیدا شي، هغه یې په ټوکرۍ کې کېښود او په نیل کې یې خوشې کړ؟

بوډۍ ښځې وویل، پر دې شپه زه پخپله د نیل په اوبو کې ګډه شوم او ټوکرۍ مې په اوبو کې کېښودله، ځکه چې تې ئې امېدواره وه، سیند ته نه شوای ورګډېدای.

که یې ټوکرۍ په ساحل کې نژدې په اوبو کې ایښې وای، نو په لوخو کې به ګېره شوې وه او لېرې به نه تله.

له همدې امله یې ما ته وویل چې د سیند اوبو ته ورګډه شم او ټوکرۍ په داسې ځای کې کېږدم چې د اوبو له بهیر سره مخامخ شي او اوبه یې یوسي.

کله چې ما دغه خبرې واورېدې، داسې غوسه راغله، چې را اوچت شوم او د شرابو جام مې پر ځمکې وویشت او تر پښو مې لاندې کړ.

مهو نفر چې زما غوسه ولیده، زما لاس یې ونیو او کې یې نولم،

بیا یې وویل، ما په دې هکله بل چا ته څه نه دي ویلي، خو له دې کبله چې ته مې خوښ شوې تاته مې دغه کیسه وکړه.

د سلطنتي ماڼۍ په ټولو نوکرانو کې، تې ئې یوازې په ما اعتماد درلود، ځکه چې زما د تېر ژوند په رازونو خبره وه او پوهېده چې که زه ورسره خیانت وکړم، ما وژلی شي.

ما ولیدل، هغه ټوکرۍ چې د میتاني د شهزادګۍ زوی پکې اچول شوی و، تې ئې اوبدلې وه، چې هغه ماشوم یې په ټوکرۍ کې کېښود ژوندی و.

کله چې مې ټوکرۍ خوشې کړه او اوبو یوړه، نو ډېره هیله منه نه وم چې ګڼي هغه ماشوم دې ژوندی پاتې شي او کوم سړی یا ښځه دې دغه ټوکرۍ له سیند څخه واخلي او هغه ماشوم دې لوی کړي.

ځکه چې په نیل کې تمساح ګانې ډېرې دي او تمساح ګانې دغه ډول ماشوم ژوندی تېروي او یا غوښې خوړونکي مارغان دغه ماشوم خوري.

د میتاني شهزادګۍ چې په هوش راغله او ویې لیدل، چې یوه مړه نجلۍ یې د هغې په څنګ کې اچولې ده، ساندې یې پیل کړې او ویې ویل دغه نجلۍ زما لور نه ده، ځکه چې د هغې د بدن د پوستکي رنګ زما د بدن د رنګ په شان نه دی او نه یې سر ماته ورته دی.

هغې ښځې سمه خبره کوله، ځکه چې د میتاني شهزادګۍ، د خپلې سیمې د نورو ښځو په شان روښانه رنګ درلود، سر یې وړوکی او ښکلی و، او ماشوم یې هم غنم رنګ و.

شهزادګۍ په چیغو چیغو وویل، تي ئي او د هغې تورپوستو کوډګرو زما زوی، د کوډو په زور بدل کړی، خو تي ئي ویل، دغه ښځه له دې کبله لېونۍ شوې ده چې مړ ماشوم یې زېږولی دی.

فرعون د تي ئي خبره ومنله، خو له هغې ورځې وروسته د میتاني شهزادګۍ کمزورې او ناروغه شوه.

داسې ښکاري چې تي ئي هم هغې ته زهر ورکول، ځکه وېرېدله، چې بیا امیندواره نه شي او بیا زوی و نه زېږوي.

که څه هم تي ئي پخپله هم امیندواره وه، خو وېرېده، چې د پخوا په څېر بیا لور ونه زېږوي.

شهزادګۍ څو ځله هڅه وکړه، پر همدغه ناروغ بدن له ماڼۍ څخه وتښتي او ولاړه شي، چې خپل ماشوم پیدا کړي.

له همدې امله ټولو ومنله، چې د تي ئي خبره سمه ده او دغه ښځه لیونۍ شوې ده.

شهزادګۍ څه موده ناروغه وه، او وروسته مړه شوه.

کله چې بوډۍ خبرې کولې ما خپلو لاسونو ته کتل او لیدل مې، چې سپین دي او له دې وروسته چې د هغې خبرې خلاصې شوې، نو پوښتنه مې ترې وکړه، ایا د میتاني شهزادګۍ سپین رنګه وه؟

بوډۍ وویل، هو!

ومې ویل، مهونفر! ایا ماته دا ویلی شې، چې دغه پېښه کله رامنځته شوه، په کوم وخت کې دې دغه ماشوم په ټوکرۍ کېښاوه او پر اوبو کې دې لاهو کړ؟

بوډۍ وویل، ستا په نظر ایا غوره نه ده، ددې پر ځای، چې په دې خبرو خپل وخت تېر کړو، راځه وڅښو او وخورو؟

ومې ویل، زه غواړم پوه شم، کله دغه ماشوم وزېږېد، کله مو هغه په ټوکرۍ کې

کېښنود او نیل ته مو وسپاره؟

بوډۍ وویل، دغه پېښه د ستر فرعون د پاچاهۍ، پر دوه ویشتم کال په مني کې هغه وخت وشوه چې نیل مست شوی و.

که ته راته ووایې چې زه څنګه له دې نېټې خبره یم؟

زه وایم، له دې امله دغه پېښه نه هېروم، چې اخناتون یانې اوسنی فرعون او د تي ئي زوی له دغه کاره څه موده وروسته وزېږېد.

بوډۍ دومره پوډر او رنګ موښلی و، چې پر مخ او شونډو یې د رنګ پنډوالی لیدل کېده.

هغه ماته رانژدې شوه او ویې ویل، سینوهه! تا وویل چې که زه او یوه ځوانه ښځه، د یوه نارینه په مخکې ودرېږو، نو هغه نارینه به ما د خپلې مېرمنې په توګه غوره کړي

اوس وایم چې که ته وغواړې، زه به ستا ښځه شم!

خو زه په داسې فکرونو کې ډوب وم، چې هغې ته مې ځواب ورنه کړ او د ځان په هکله مې فکر کاوه.

څکه چې که د بوډۍ خبرې سمې وي، نو زه هماغه ماشوم یم، چې د میتاني د شهزادګۍ له خېټې او د ستر فرعون له ملا څخه پیدا شوی یم.

یانې د خدایانو له نسله یم، سلطنتي وینه زما په رګونو کې روانه ده، او د مصر د پاچاهۍ لپاره تر اخناتون ډېره ورتیا لرم، څکه چې هم د فرعون مشر اولاد یم او هم یې په یقیني توګه زوی یم.

په داسې حال کې چې اخناتون له ما وروسته زېږېدلی دی، او لکه چې بوډۍ وایي، د فرعون نه، بلکې د آمي زوی دی او د هغه د پلار په هکله شکونه شته دي.

په دې وخت کې پوه شوم، چې زه ولې په ځوانۍ کې منزوي وم، څکه چې د چا په رګونو کې چې د پاچاهۍ وینه وي، هغه یوازې وي او د یوه پاچا په شان به بل څوک یوازې نه وي.

په دې وخت کې پوه شوم چې ولې سره او سپین راته ارزښت نه لري؟ علت یې دا و، چې که څوک د خدایانو له نسله وي او د فرعون وینه یې په بدن کې بهېږي، لوړ همت لري او سرو او سپینو ته اهمیت نه ورکوي

بوډۍ دومره خبرې وکړې او په کوټه کې ایخوا دېخوا ولاړه، چې زما د فکر کولو لړۍ وشکوله

هغې ته متوجه شوم او ددې لپاره چې پخپلو خبرو سره زما افكار پريشانه نه كړي، هغې ته مې وويل غوره ده، چې يو شى وڅښو.

لږ شراب مو وڅښل، بوډۍ يو ځل بيا خبرې پيل كړې او ويې ويل، كه يې ته ومني، نو ستا مېرمن به شم.

بالاخره ددې لپاره چې له ما څخه لاس پر سر شي، د هغې په شرابو كې مې لږ اپيم واچول چې له دې سره ويده شوه.

كله چې د تي ئي له ماڼۍ راووتم، ګورم چې د ماڼۍ نوكراڼې، ما يو بل ته وربښيي او خاندي

د دوى د خندا له كبله غوسه شوم، خو حيران نه شوم، ځكه چې تل ټيټ او ناپوه كسان، چې پخپله پرتم او حيثيت نه لري، له بخيلۍ څخه په معتبرو او مخورو كسانو پسې خاندي

دوى فكر كوي چې په دې كار سره به خپل كمى او حقارت جبران كړي.

كله چې كورته ولاړم ومې ليدل چې مريت په كوركې زما په تمه ده، چې د فرعون د مور په هكله له ټولې كيسې خبره شي.

كورته چې ورننوتم، زما نوكرې موتي پر خپلې خولې لاس كېښود او د هغو كسانو په شان، چې ناڅاپه حيرانه شوي وي، په اشارې سره يې مريت ته زما سترګې ور وښودلې.

مريت هم، چې زه وليدم حيرانه شوه او زما نوكرې ورته وويل، اوس به زما دا خبره منې، چې ويل مې ټول سړي يو شان دي او پر هېڅ سړي اعتماد نه شو كولاى.

ماوويل، نن زما ترټولو ستومانه كوونكې او بده ورځ وه.

له دې ورځې وروسته استراحت كولو ته اړتيا لرم، نو په دې خبرې بحث نه شم كولاى، چې موتي د نارينه وو په هكله وكړه.

ناڅاپه د مريت مخ تک شين شو، منډه يې كړه او د سپينو زرو هنداره يې راكړه او نارې يې كړې:

سينوهه! زه تا ته نه وايم چې له نورو ښځو سره له ساعت تېرې لاس واخله، ځكه هغه ښځه چې كوم سړي ته د غه ډول سپارښتنه كوي كم عقله ده.

ځكه كله چې يو نارينه ددې فرصت او امكانات ولري، چې له يوې ځوانې او ښكلې ښځې سره تفريح وكړي، نو نا ممكنه ده چې ځان له دې خوشحالۍ څخه محروم كړي

خو له نورو ښځو سره داسې تفریح وکړه، چې زه پرې خبره نه شم او روح مې داغي نه شي.

ته چې وایې نن ستا د عمر ستومانه کوونکې ورځ وه، خپلې ځېرې ته یو ځل وګوره، چې پوه شې ستا د دروا غو نښه څنګه ستا په ځېرې کې له ورایه ښکاري؟

کله چې ما د سپینو زرو په هنداره کې خپل مخ ولید، زه هم د ښځو غوندې حیران شوم، ځکه و مې لیدل چې مخ مې داسې سور شوی، ته به وایې انځورګر رنګ کړی دی.

د مخ ښې او کیڼ لوري، پر زنې او غاړې مې د بې حیا بوډۍ یانې مهو نفر د شونډو نښې په ارغواني رنګ له ورایه ښکارېدې.

له دې کبله چې هغې ښځې زما پر مخ پورې خپل مخ موښلی و، داسې ښکارېدل، چې یو رنګمال په کچ او رنګونو، زما مخ سور او سپین رنګ کړی وي.

و مې غوښتل د سپینو زرو هنداره لېرې کړم، خو مریت مې هنداره له لاسه واخیسته او زما مخ ته یې ونیوله چې له هغې سره د بې وفایي ښکاره نښه وګورم.

کله چې مې مخ ووینځه او پاک شو، مریت ته مې وویل، فکر کوم تا لویه تېروتنه کړې ده، ځکه چې خیال کوې ما له هغې ښځې سره ساعت تېر کړی دی، نو باید توضیح ورکړم...

مریت وویل، زه توضیح ورکولو ته اړتیا نه لرم او تا چې له ما سره بې وفایي کړې نه غوارم چې په درغو سره خپله خوله چټله کړې.

په دې ډول مسلو کې هېڅ شک نه پیدا کېږي، ځکه چې ستا د مخ رنګونه دا ښیي چې تا له نورو ښځو او احتمالاً د فرعون د مور په مانۍ کې له ښځو سره ساعت تېری کړی دی.

زه په دې خواشینې یم، چې تا داسې هېره کړې وم، چې په یاد دې نه و، زه په کور کې ستا د راتلو په تمه یم، ګني مخ به دې وینځلی و.

بله دا چې تا ښایي له دې امله مخ نه وي وینځلی، چې زه د فرعون د مور په مانۍ کې له ښځو سره ستا د ساعت تېري نښه وګورم او په دې پوه شم، چې ښځې تا ته دومره لېواله وي چې کله دې وګوري بې واکه شي او بې له ځنډه ستا په غېږ کې ځان اچوي.

یا داسې مست شوی یې، چې هېر شوي دې دي، چې د فرعون د مور په مانۍ کې له ښځوسره له ساعت تېري وروسته خپل مخ ووینځې!

په داسې حال چې مریت رټلم زما نوکری داسې اوښکې تویولې، چې ته وا کومې ښځې ته د خپل مېړه خیانت ورمعلوم شوی وي او ټولو نارینه و ته یې ښېراوې کولې.

زه پوه شوم چې د مریت قانع کول او ارامول له خپله ځانه د مهو نفر تر لېږې کولو سخت کار دی، ځکه ما په شرابو کې د اپیمو په اچولو سره مهو نفر ویده کړه او مریت مې نه شوه ارامولای.

بالاخره مې هغې ته وویل، مریت! ته له یوې مودې راهیسې ما پېژنې او زموږ ملګرتیا له هغه وخته پیل شوه، چې لا د افق ښار ته نه وم تللی.

کله چې له هغه ځایه طبس ته ستون شوم تا ته راغلم او دغه اوږده ملګرتیا باید پر ما ستا له اعتماد سره یو ځای وي.

ځکه کله چې یوې مېرمنې له اوږدې ملګرتیا او مینې څخه یو نارینه نه وي پېژندلی نو بیا به یې هېڅکله ونه پېژني.

خو دا چې زما مخ په رنګ سور شوی دی، علت یې زما په یوه ستر راز کې دی او که دغه راز یوازې زما په اړه وای اوس به مې درته افشا کړی و، خو دغه راز په سلطنتي ماڼۍ پورې هم اړوند دی، نو باید افشا نه شي او غوره دا ده چې ته له دې رازه خبره نه شې.

مریت زما په ځواب کې دغومبسې د لشې په شان په سرې او تېزې ژبې وویل: سینوهه! زه منم چې ته پوه سړی یې او کله چې یو پوه سړی له یوې یا څو مېرمنو سره تفریح کوي، باید د هغو راز وساتي.

ځکه ډېرې ښځې کله چې یو نوی سړی په غېږ کې نیسي، نه غواړي چې نور پوه شي، چې هغوی نوی عاشق پیدا کړی دی.

د ځوانو او ښکلو مېرمنو د رازونو ساتل د ځوانمردۍ او امانتدارۍ نښه ده.

ما فکر کاوه، چې ستا د روح په ژورو پوه شوی یم خو اوس پوهېږم چې ډېره لویه تېروتنه مې کړې او ستا په روح کې ډېر دالانونه او کنجونه شته، چې تیاره دي او څوک پرې نه پوهېږي، چې په هغو کې څه دي؟

خوشحاله په دې یم، چې له تا سره مې منګی نه دی مات کړی او خپله ازادي مې له لاسه نه ده ورکړې.

زه ډېره ساده وم، چې ویل به دې له تا پرته بله کومه ښځه راباندې ګرانه نه ده.

ما باور کاوه او حتماً دې د فرعون د مور په ماڼۍ کې همدا خبرې د نورو ښځو په غوږونو کې هم زمزمه کړې دي.

ما غوښتل مریت دلاسا کړم، چې په دې ډول د هغې خپګان کم کړم، خو هغې ناړې

کړې، ماته مه رانژدې کېږه، ځکه چې ته نن داسې سترې شوی یې، چې باید څلرویشت ساعته ویده شې او تر هغه وخته چې د تې ئې د مانۍ ځوانې ښځې وي، زه درته ارزښت نه لرم.

د هغې هره خبره د هغو غشو په شان، چې په دارالحیات کې د جراحۍ لپاره کارول کېږي، زما په زړه کې ننوتله.

له دې وروسته چې مریت هرڅه چې یې غوښتل وویل، زما زړه یې زخمي کړ او له کوره ولاړه.

که د فرعون د مور په کور کې د هغې ورځې له خبرو اندېښمن نه وای، نو د مریت تر خبرو، د هغې په تګ ډېر خپه کېدم.

خو له دې کبله چې ټول فکر مې، هغو خبرو ته متوجه و، چې په دې ورځ مې اورېدلې وې، نو کله چې مریت وغوښتل ولاړه شي، ما د هغې مخه ونه نیوله او باوري یم، چې هغه به هم له دې امله حیرانه شوې وي.

پر دې شپه خوب نه راته، ټوله شپه مې پر هغو شیانو فکر کاوه، چې د فرعون د مور په مانۍ کې مې اورېدلي ول.

تر هغه چې د شرابو نشه مې په سر کې وه، ددې پېښې حیرانوونکی اړخ راته مهم نه و، خو کله چې مې نشه له سره والوته، په داسې حال کې چې د اوبو د ترازو څاڅکو(د اوبو ساعت )ته مې غوږ نیولی، د فکرونو پر سمندر لاهو شوم، ځان راته غمجن او اندېښمن ښکاره شو.

له ځان سره مې وویل، سینوهه! ته په یوې محرومې پرګنې او نړۍ کې پیدا شوې او په لومړیو شپېو کې چې دې نړۍ دې سترګې رڼې کړې، ته یې د مصر له سلطنته لېرې کړې او په یوې ټوکرۍ کې یې د نیل سیند ته ور واچولې.

بیا یوې ښځې چې د بېوزلو د ډاکټر مېرمن وه، د نیل له سیند څخه را ونیولې او له دې کبله چې زوی یې نه درلود، ته یې خپل زوی وبللې او لوی یې کړې.

ښوونځي ته یې واستولې چې لیک لوست زده کړې، له دې سره سره، چې د غه ډاکټر ډېر بېوزله و، ته یې د آمون معبد ته واستولې، چې په دارالحیات کې زده کړې وکړې او ډاکټر شې.

خو ددې پر ځای چې دې مېړه او ښځې ته انعام ورکړې، د یوې حریصې ښځې لپاره دې

داسې خوار کړل، چې له خپله وخته مخکې مړه شول او مړي یې بې قبره پاتې شول.
بیا د مینا په نوم پر یوې ښځې مین شوې او له هغې سره کرت ته ولاړې، د کرت د خدای کور ته ورننوتې او ودې لیدل، چې د کرت خدای، یو لوی سمندري مار دی، چې مړ شوی دی.

خو مینا یې د هغه لپاره قرباني کړې وه او ودې لیدل چې د مینا مړی، ساحل ته نژدې په سمندر کې پروت و او سمندري چنګاښانو پرې حمله کړې ده.
بیا مصر ته راستون شوې او د دو خدایانو جنګ دې ولید.
له طبسه د افق ښار ته ولاړې، بیا څو کاله هلته پاتې شوې، چې د سر وېښتان دې توی شول، سر دې ګنجی شو، د اندام تناسب دې له منځه ولاړ او دافق د ښار خوندورو خوړو چاغ کړې.
نن له ډېرو کلونو وروسته درته معلومه شوه، چې ولې منزوي یې او د یوازېتوب احساس دې کاوه او ولې دې نه غوښتل چې د شتمنو په شان د عیش او عشرت محفلونه ولرې.
تر دې چې ډېرو ملګرو به دې ویل، سینوو ابن الحمار یوازې او ګوشه ګیر دی، خو دغه ټولې خبرې د خدایانو او ستورو له لوري ستا په تقدیر کې لیکل شوې وې، تا نه شوی بدلولای او باید همداسې شوې وای.
خو ایا اوس دا ثابتولای شې، چې ته د ستر فرعون زوی یې او د میتانې د شهزادګۍ له خېټې پیدا شوی یې؟
ددې خبرې ثابتول، چې ته یې د نیل له سینده رانیولی یې سخت کار نه دی، ځکه کله چې ته لوی شوې، نو ناسکه پلار دې دغه خبره تاته کړې ده او نورو کسانو چې ځینې یې اوس هم ژوندي دي، ستا له ناسکه پلاره دغه خبره اورېدلې ده او شهادت هم ورکولای شي، خو څه ډول ثابتولای شې چې ته د ستر فرعون زوی یې.
له هغه وخته چې د مصر بېوزله خلک عادت شوي چې خپل ماشومان نیل ته واچوي، هره شپه څو ماشومان نیل ته اچول کېږي ځینې یې د تمساګانو خوراک شي او ځینې وژغورل شي، خو دغه موضوع ددې دلیل نه شي کېدای، چې ته د فرعون زوی یې.
او په ټوکرۍ کې د مرغبازانو غوټه دا خبره نه شي ثابتولای، ځکه چې دغه موضوع په مصر کې ډېره عامه شوې او ښایي د کوز مصر ډېر ټوکرۍ اوبدونکي، ټوکریو ته دغه ډول

غوټې ور کړي.

ان ستا د بدن سپين رنګ، ددې دليل نه شي کېداى، چې ته د ميتاني د شهزادګۍ له خېټې پيدا شوى يې، ځکه سرياني او ميتاني سپيم رنګه مېرمنې په مصر کې ډېرې دي او داسې هم نه ده چې سپين پوستې ښځې د يوه کس لپاره ځانګړې شوي وي.

په دغو فکرونو سره مې شپه سبا کړه او تر هغه همدا فکر راسره و، چې لمر راوخوت او هوا روښانه شوه.

د ورځې په روښنايي کې ددې لپاره چې د وهمونو او خيالونو پردې لېرې کېږي، دا خبره نوره هم راته ثابته شوه، چې زه داسې دليل نه لرم چې ثابته کړم، د فرعون زوى يم او د ميتاني د شهزادګۍ له خېټې پيدا شوى يم.

سهار مې ځان ووينځه، کتان جامې مې واغوستې، موتي راته تروه کبان او د اوربشو اوبه راوړې، ومې ليدل چې بيا هم ژاړي او سترګې يې سرې شوې دي.

له دې وروسته چې کبان مې وخوړل او د اوربشو اوبه مې وڅښلې، نو پر روان تخت کېناستم، د دارالحيات پر لور روان شوم، چې ناروغان معاينه کړم.

هلته څوک نه ول، چې سر يې سورى کړم، بيرته را ستون شوم او د آمون له پخواني معبد سره تېر شوم چې دا مهال خالي و، هلته مې وليدل چې د معبد پر زاړه بام څو دانې چاغ چاغ کارغان ګرځي او چيغې وهي.

زما په مخکې يوه توتکۍ تېره شوه او د آتون د معبد پر لور ولاړه.

زه هم ددغه معبد پر لور روان شوم، خلکو د نوي خداى، په معبد کې مذهبي سندرې ويلې، خداى ته يې مېوې، غنم او د سپاندو لوګي ډالۍ کول.

ما وليدل چې څو تنه مصريان د آتون په معبد کې دي او د سندرو د ويلو په وخت کې لا سونه پورته پورته کوي چې آتون ولمانځي.

هر چا چې ليدل تصور يې کاوه، چې ټول د آتون پيروان دي، خو په حقيقت کې داسې نه ول.

زه پوهېدم چې طبس يو لوى ښار دى او ټل يوه ډله مسافر د کشتيو په وسيله او يا د وچې له لارې دې ښار ته راځي، غواړي چې د آتون معبد وګوري او د نوي خداى د کاهنانو سيل وکړي.

په داسې حال کې چې کاهنان د سندرو په ويلو بوخت ول، ما د ستنو له پاسه د مصر د فرعون اخناتون مجسمو ته کتل، ليدل مې چې سترګې يې له ډېره شوق او جذبې څخه

ترهېدلي ښکاري او دغه مجسمې د مصر د نویو هنري آثارو یوه برخه وه.

مجسمه جوړونکي په دغو مجسمو کې د هنر پخوانیو اصولو ته پام نه دی کړی، خو پخوانۍ مجسمې یانې د اخناتون له دورې مخکې مجسمې یې په پخوانیو اصولو جوړې کړې وې، نو انسان په یوه نظر د هرې مجسمې خاوند پېژندلی شو.

په دې کې د ستر فرعون امنوفیس مجسمې د خلکو ډېر پام ورجلباوه او هر چا چې لیده پوهېده، چې خوار او بوډا شوی دی، د مصر د سلطنت تاج یې پر سر دروند ښکارېده او تر څنګ یې د مصر ملکه تي ئي ناسته ده.

د پخواني مصر د کورنۍ د غړیو په مجسمو کې د میتاني د شهزادګۍ تادو-هیا مجسمه هم لیدل کېده، چې د پخواني خدای امون لپاره د قربانۍ په حال کې ده.

خو د مجسمې په څنګ کې کتیبه یا ډبر لیک یې داسې اصلاح کړی و، چې د میتاني شهزادګۍ د نوي خدای لپاره قرباني کوي.

دا په داسې حال کې وه، چې د نوموړې شهزادګۍ د ژوند پر مهال نوي خدای آتون لا پر مصر حکومت نه کاوه، چې څوک ورته قرباني وکړي.

له دې کبله چې پخوانیو مجسمه جوړونکو د لرغوني هنر د اصولو په اساس، علاقه درلوده چې هره مجسمه د هغې اصلي خاوند ته ورته جوړه کړي او د میتاني د شهزادګۍ مجسمه یې هغې ته داسې ورته جوړه کړې وه، چې لیدونکی یې د اندامونو او څېرې په جزیاتو هم پوهاوه.

زه د هغې ښکلا حیران کړم او څومره چې مې ورته کتل، دا راته ښه ثابتېدله چې دا له هغو ټولو ښکلو مېرمنو څخه ښکلې ده چې تر دې مهاله مالیدلې دي او ان له مینا او نفر نفر نفر څخه هم ښکلې ده.

هرځلې چې را په زړه شي، چې زه د هغې ښکلې او تاندې شهزادګۍ زوی یم او تي ئي د زهرو په وسیله وژلې او یا له ډېره غمه مړه شوې ده، روح به مې سخت غمجنېده.

دهغې څېرې او اندام دومره لېواله کړم، چې نه مې غوښتل ستر ګې ترې واړوم.

کله به یوې توتکۍ زما پر سر الوت وکړ او ناري به یې کړې، دې کريکې د مور یوازیتوب او مسافري را په زړه کوله، چې له میتاني څخه مصر ته راغلې وه او دلته د تي ئي د کینې او جنایتونو په لومه کې ګېر شوه.

له دې سره به ماته ژړا راغله.

کله به مې له ځان سره ویل څه ډول ممکنه ده، چې زما په شان یو سړی، چې سر مې ګنجی شوی، بدن مې چاغ شوی او مخ مې ګونځې کړې، دداسې یوې ښکلې او ځوانې شهزادګۍ زوی وي؟

بیا به مې فکر کاوه، چې که مې مور ژوندۍ وای، اوس به تر ما ډېره بوډۍ وه، ځکه چې وخت هرڅوک بدلوي او له ځوانۍ څخه يې بوډاتوب ته رسوي.

ما خپله مور نه وه لیدلې او باور مې هم نه کاوه، چې زما په مخکې مجسمه به زما د مور وي، خو د مور فکر د هغې زېږنځای یانې د میتاني هېواد ته متوجه کړم.

ما د غه هېواد هغه وخت، چې له مصره د باندې وم لیدلی و او په دې کتاب کې مې هم لیکلي دي.

له دې سره د میتاني ښکلې کورنه رایاد شول.

په هغه وخت کې زه نه پوهېدم، چې د میتاني هېواد یوه شهزادګۍ دې زما مور وي او که په دې خبرې پوهېدای، نو د میتاني هېواد منظره به بل ډول راته ښکارېده.

زه تر هغو شپېو پورې د نومورې شهزادګۍ د مجسمې پر ننداره بوخت وم، چې د آمون له معبده يې د پخواني فرعون د وخت مجسمې د آتون معبد ته راوړې وې.

بیا له دې کبله چې ورځ تېرېده، د تمساح لکۍ، د میخانې پر لور روان شوم، چې هلته له مریت سره پخلا شم.

خو مریت د یوه عادي مشتري په سترګه را ته وکتل او له دې پرته چې له ما سره خبرې وکړې، خواړه او شراب يې راته راوړل.

د ډوډۍ تر خوراک ورسته راننژدې شوه او ويې ویل ایا نن دې خپله معشوقه ولیدله ؟

ومې ویل، زه له مریت پرته بله معشوقه نه لرم او نن ښځو ته نه یم تللی.

له کوره چې را ووتم دارالحیات ته ولاړم، بیا د آتون معبد ته ولاړم او تر ډېره وخته هلته وم.

مریت د ملنډو په موسکا سره زما خبرې اورېدې او بیا يې وویل: زه پوهېدم، چې نن ښځو ته نه يې ورغلی، ځکه چې ستا په شان سړی، چې د سر وېښتان يې توی شوي او چاغ شوی دی نه شي کولای چې له پروني ساعت تېري وروسته نن بیا له ښځو سره تفریح وکړي.

خو ستا معشوقه د خپل مین له لېرېوالي داسې بې قراره شوې وه چې دلته راغله او غوښتل يې تا ووینې.

زه د دې خبرې په اورېدو سره هک پک پاتې شوم او ومې ویل، مریت دا څه وایې، زما

معشوقه څوک ده او څوک دلته راغلې ده؟

مریت د ملنډو موسکا وکړه او ویې ویل، نن ستا معشوقه په داسې حال کې، چې ځان یې د یوې پېغلې په شان سینګار کړی و، دلته راغله او ما چې کله د هغې مخ ولید حیرانه شوم، ځکه چې ومې لیدل مخ یې داسې سور او سپین کړی و، چې که مې ګوته پرې وهلې وای نو په رنګونو کې به ننوتلې وای.

کله چې یوه بوډۍ او چاغه ښځه، ځان سینګاروي، خلک وېروي او د میخانې مشتریان یې پر کتو هک پک شول.

هغې چې کله ستا نوم واخیست او ته یې ونه موندلې نو دغه لیک یې ماته راکړ، چې تا ته یې وسپارم.

مریت یو لیک راته راکړ، چې پر یوه لرګي تاوو شوی و.

ما پاپیروس (مصري کاغذ. ژباړن) خلاص کړ، په داسې حال کې چې له کرکې مې وینې په رګونو کې اېشېدلې، لیک مې ولوست او داسې پکې لیکل شوي ول:

د زرینې سلطنتي مانۍ د اوسېدونکې مهو نفر له لوري سینوهه ته! زما ښکلیه خوسکېه! کله چې نن له خوبه راپاڅېدم سر مې درد کاوه، خو روح مې تر سر ډېر خوږېده، ځکه چې کتل مې ته زما په څنګ کې نه وې او زه ستا د عطرو خوږ وږم نه احساسوم.

کاشکې زه ګوډه وای، چې تل ستا په څنګ کې وای، کاشکې زه عطر وای، چې ستا پر بدن پاتې کېدای شوای او کاشکې زه شراب وای، چې تل ستا په خوله کې وای.

سینوهه! زه کوڅه پر کوڅه او کور پر کور په تا پسې وګرځېدم او تر هغه به نه غلې کېږم چې تا پیدا نه کړم، ځکه چې جسم مې تا ته اړتیا لري او له تا پرته یوه شېبه هم ارامه نه یم.

ته ولې زما کورته نه راځې او له ما سره تفریح نه کوې.

زه پوهېږم ته ډېر شرمناک یې او که شرمېږې نو، په دې پوه شه، چې د سلطنتي مانۍ ټول کارکوونکي اوس پوهېږي چې پر ما ګران یې او ټول غواړي چې ته مانۍ ته راشې ،چې زه ستا په لیدو خوشحاله شم.

سینوهه! دغه لیک چې دې تر لاسه کړ، سمدستي زما لور ته راشه او که رانه شې نو زه به تو تکۍ شم او ستا خواته به درشم، تر هغه به دې لټوم چې پیدا دې کړم.

د هغه چا له لوري چې غواړي ته یې وروړشي (مهونفر).
دغه لیک مې ولوست، خو د هرې جملې له لوستو سره یې کرکه راتله، دغې کرکې لېونی کړم، نه پوهېدم څه ووایم.
مریت ناڅاپه پاپیروس راځخه وتښتاوه، لرګی یې مات کړ، پاپیروس یې وشکاوه، تر پښو یې لاندې کړ او ویې ویل:
سینوهه! که دغه ښځه ښکلې او ځوانه وای، ما به ځان قانع کولای شو، چې تر ما یې ښکلې او ځوانه ښځه پیدا کړې، ځکه یې هغه تر ما غوره بللې ده.
خو دغه ښځه دومره بدرنګې ده، که بیزوګان یې هم وګوري، ترې وبه‌ېږي او تښتي.
تا څه ډول وکړای شول له دې ښځې سره اړیکې ولرې او ایا سلطنتي ماڼۍ ستا عقل له سره لېرې کړ؟
دا خبره ماته د منلو وړ نه برېښي، ځکه چې ته د فرعون ډاکټر یې او تل په سلطنتي ماڼۍ کې اوسېدلی یې او د یوې سلطنتي ماڼۍ لیدل ستا لپاره څه نوې خبره نه ده چې ځان ورک کړې.
ما له ډېرې بې وسۍ او غوسې خپلې د کتان جامې وشکولې او ومې ویل، مریت! کله چې زه په سلطنتي ماڼۍ کې وم، د تي ئي د معالجې لپاره وغوښتل شوم، خو زما ورتګ ګټه ونه کړه، ځکه چې هغه د مار له زهرو مړه شوې وه.
وروسته زه مجبوره شوم، چې د نورو معلوماتو په هیله، چې زما لپاره یې اهمیت درلود، دغې بوډۍ ته چاپلوسي وکړم، خو له بده مرغه دې ښځې هم خیال کړی، چې زما چاپلوسي له مینې وه او زه ورته لېوال شوی یم.
په داسې حال کې چې زه له دې ښځې څخه کرکه کوم، خو پوهېږم چې هغه به مې خوشې نه کړي او پخپل لیک کې یې لیکلي، چې د توتکۍ څېر به په ما پسې راشي.
اوس باید ته ولاړه شې او زما پارو وهونکو ته ووایې، چې ډېر ژر حرکت ته چمتو شي، چې له طبسه ووځم، ځکه که په طبس کې پاتې شم دغه ښځه به ما پرې نه ږدي.
زه له دې امله اندېښمن یم چې کومه ورځ له دې ښځې سره تماس پیدا نه کړم، او له دغې ښځې سره تر اړیکې دا غوره بولم چې د مړیو په کور کې له مړیو سره تماس ولرم.
مریت د زور خندا وکړه او ویې ویل، زه پوهېږم چې تا له دې ښځې څخه څه ډول معلومات غوښتل، ځکه چې دغه ښځه تر ما درې برابره بوډۍ ده او په همدې اندازه د

ساعت تېریو او تفریح په اړه ډېر معلومات لري.

ته په دې پوهېږې، چې له یوې ښځې سره چې په تفریح کولو کې تر ما درې برابره زیاته تجربه لري ساعت تېری څومره خوند لري؟

ماوویل مریت! داسې نه ده، ته تېروتنه کوې، ما نه غوښتل له دې ښځې سره تفریح وکړم.

ما له دې امله هغې ته چاپلوسي وکړه، چې مجبور وم، له هغې څخه معلومات ترلاسه کړم، خو زه دلته دا خبرې نه شم کولای ځکه دا میخانه ده.

نو ښه دا ده چې راځه کور ته ولاړ شو، چې زه دغه راز درته ووایم، چې ته پوه شې ما له دغې چاغې او زړې ښځې سره د تفریح کولو هېڅ نیت نه درلود.

مریت په لېوالتیا سره زما په روان تخت کې کېناستله او روان شو. کور ته چې ورسېدو، هلته ما د خپلې زوکړې راز او هغه څه چې ناسکه مور و پلار راته ویلي و، هغې ته وویل.

بیامې وویل چې څه ډول زما مور و پلار زما سپین پوست ته حیرانېدل، چې ولې زما پوستکی د مصر د خلکو په پرتله ډېر سپین دی.

دوی به ویل چې بې له شکه ستا مور و پلار او یا یو پکې سپین پوستی ول.

بیا مې له تي ئي سره د خپل لومړني تماس په هکله وویل، چې څه ډول هغه د پوزي په اوبدلو کې د ښکاریانو غوټه کاروي.

ومې ویل، هغې ته وکره چې زه پکې اچول شوی او په نیل کې خوشې شوی وم، د ښکاریانو او مرغبازانو غوټې درلودې او دې خبرې زه له فکرونو سره مخامخ کړی وم.

بیا مې هغه معلومات ورته بیان کړل، چې له مهونفره مې اورېدلي ول او زیاته مې کړه، څو قوي شواهد شته، چې زه یې له مخې د پخواني فرعون زوی یم او د میتاني د شهزادګۍ له خېټې پیدا شوی یم، خو یقین نه لرم چې د فرعون او د میتاني د شهزادګۍ زوی به یم.

کله چې مریت زما دغه خبرې واورېدې ناڅاپه، د هغې شکونه ختم شول او نور یې پر ما ملنډې ونه وهلې.

نور د هغې پر شونډو باندې د ملنډو موسکا زه ونه ځورولم او په ځیرتیا یې راته وکتل او ویې ویل سینوهه! له اولې ورځې چې د تمساح لکۍ میخانې ته راغلې او ما ولیدې، پوه شوم چې ته له نورو سړیو سره توپیر لرې.

ته مې حیاناک، متفکر او منزوي سړی ولیدې او هر ځل چې مې غوښتل له تا سره منګی مات کړم او تا خپل ورور کړم، پوه به شوم چې زه د دې وړتیا نه لرم چې ستا خور شم.

سینوهه زه هم یو راز لرم چې په وروستیو ورځو کې مې څو څو ځله غوښتل تا ته ووایم، خو اوس د خدایانو شکر ادا کوم چې ددې مخه یې ونیوله چې زه خپل راز تا ته ووایم، ځکه هغه راز چې له خولې ووت بیا داد نشته چې پټ پاتې شي.

خو سینوهه ! همغه ډول چې پخپله دې وویل، ددې موضوع د ثابتولو لپاره کومه وسیله نه لرې او غوره داده چې خپل راز هېر کړې.

زه به یې هم هېر کړم او داسې فکر وکړه، چې دغه منظرې او پېښې دې په خوب کې کتلې دي، په تیره بیا دا چې د عمر په پای کې انسان یوازې خوب او خیال دی.

ته داسې سړی یې چې ټولې دنیا ته دې سفر کړی، د بابل ،هاتي ،میتاني او کرت هېوادونه دې کتلي دي او د طبابت له پیله تر اوسه دې په سلګونو ناروغان عملیات کړي، یا دې سرونه ورسوري کړي.

نو ایا له ټولو هغو منظرو څخه چې تا په سفرونو کې کتلي او له هغو ټولو معالجو څخه، چې تا کړې ، له خیالونو او خاطرو پرته چې له خوبونو سره یې توپیر هم نشته بل څه په لاس کې لرې؟

ومې ویل نه!

مریت وویل، ټول خلک په ژوند کې ستا په شان دي او د هغو ژوند د ټولو خاطرو او پېښو ټولګه د خوبونو د منظرو په څېر له خیالاتو سره یو شان ده.

ځینې کسان د شتمنۍ د ټولولو له مخې په دې فکر کې دي چې له خپله ژونده یې ښه ګټه اخیستې ده.

دوی ټول عمر سره او سپین ټول کړي او هغه یې د کورونو او ځمکې پر اخیستو لګولي دي.

دوی پر ځان ویاړي چې د ژوند ثمره یې خوب و خیال نه دی، بلکې سره او سپین ،ځمکې، کورونه، مالونه، پټي او دکانونه دي.

څو سوه کاله د آمون د معبد کاهنانو همدغه کار وکړ او دومره سره سپین، کورونه او پټي یې یوځای کړل، چې تصور یې کاوه د عمر تر پایه پورې به شتمن او بې نیازه وي.

خو په یوې ورځ کې د مصر خدای بدل شو او نوي خدای امر وکړ چې د آمون د کاهنانو ټولې ځمکې، سره و سپین ،کورونه ،او دکانونه له هغوی څخه و اخیستل شي او هغوی

هم، ناڅاپه متوجه شول، چې د کلونو کلونو محصول او ګټه یې یوازې خوب او خیال دی.
و مې ویل مریت دا لومړی ځل دی چې له تا داسې څه اورم چې له تا څخه مې د اورېدو تمه نه کېدله.
مریت وویل، له دې کبله چې تر اوسه مې ته نه وې لیدلی، چې د یوې لویې پېښې له کبله دلاسې ته اړتیا ولرې.
تر اوسه دا اړتیا نه وه، چې له تا سره داسې خبرې وکړم. خو نن پوهه شوم، چې ممکن ته پر هغې موضوع ځان بدبخته کړې چې د پوهېدا له امله یې فکر کوې ستر راز دې موندلی دی.
ممکنه ده شپه او ورځ سر پر دوولاسونو ونیسې او غمجن شې، چې ولې دا خبره نه شې ثابتولی، چې ته د فرعون زوی یې، له همدې امله مې دغه خبره درته وکړه، چې په راتلونکي کې ځان اند ښمن نه کړې.
بیا مریت خپلې شونډې زما پر لاسونو کېښودلې او ویې ویل سینوهه! ما وبښه چې پرون او نن مې وځورولې، ځکه چې زه یوه ښځه یم.
کله چې یوه ښځه وګوري چې د هغې د خوښې د سړي مخ د بلې ښځې په سینګار ککړ شوی وي او بیا پرې هم پوه شي چې نوموړې ښځې ورته عاشقانه لیک استولی، نو خپله کینه او حسد نه شي پټولی او حسادت داسې پرې برلاسه کېږي، چې څرګند شیان هم د هغې له سترګو پټوي.
ومې ویل مریت تا وویل چې کوم راز لرې او غوښتل دې ماته یې ووایې دا کوم راز دی؟
مریت وویل، ښایي داسې ورځ راشي چې هغه راز درته ووایم، خو اوس یې د ویلو وخت نه دی.
اوس ته باید ددغې ښځې له شره خلاص شې، کله چې دغه ډول بوډۍ او شهوتي مېرمنې د یوه سړي چاپلوسي ووینې، فکر کوي چې دغه سړی پرې مین شوی دی.
دوی چې بیا وروسته وګوري، چې سړی یې په اړه بې پروا دی، نو دا ورته د سړي خیانت ښکاري.
یانې فکر کوي چې لومړی سړی پرې مین شوی، خو بیا یې وروسته بله ښځه موندلې او له هغې سره یې خیانت کړی دی.
زه باوري یم، چې که ته په طبس کې پاتې شې، هغه ښځه به دې پرې نه ږدي.

هر ډول چې وي تا به اړ کړي چې ورسره تفریح وکړې او تر هغه بله بده خبره دا چې له هغې سره منګې مات کړې.

نو له دې ځایه ولاړ شه او تر تګ مخکې ورته ولیکه، چې هغه ناهیلې شي، ګني په تا پسې به درشي، ممکنه ده په بابل کې هم تا تعقیب کړي چې ستا وصال ته ورسېږي.

ځکه څومره چې انسان زړېږي دوه حرص پکې وده کوي، یو (که ښځه وي) له نارینه څخه د تمې حرص او (که سړی وي) له ښځې څخه د تمې حرص او بل د شتمنۍ د ټولولو حرص پکې زیاتېږي.

دا چې ته داسې نه یې، دا ځکه چې ښایي د خدایانو وینه ستا په رګونو کې روانه وي او د فرعون زوی یې، نو ته یو استثنایي موجود یې، خو نور چې څومره زړېږي دغه دوه حرصونه پکې ډېرېږي.

متوجه شوم چې مریت د هوښیارۍ خبره کوي او که زه په طبس کې پاتې شم دغه ښځه به مې پرې نږدي.

موتي ته مې وویل، زما د سفر وسایل راوړه او یو مریی مې واستاوه، چې زما پارو وهونکي له میخانو او عمومي ځایونو را وبولي.

ما نه غوښتل چې مهو نفر سپکه کړم، نو ځکه مې په پاپیروس کاغذ باندې هغې ته یو مودبانه لیک ولیکه چې مضمون یې په دې ډول و.

د سلطنتي کوپړۍ سوري کوونکي سینوهه له لوري، په طبس کې د سلطنتي زرین باغ او سپډونکې مهو نفر ته!

مهو نفر ډېر خواشینی یم، چې پر هغې ورځ زما څرګندونې د دې سبب شوې، چې ته زما د احساساتو په اړه تېروتنه وکړې او تصور کوې چې زه باید بیا له تا سره وګورم.

په داسې حال کې چې له تا سره تر کتو مخکې، ما خپل روح بل چا ته سپارلی و او اوس که له تا سره تفریح وکړم، له هغې ښځې او خپل روح سره به مې خیانت کړی وي.

پردې سربېره زه مجبوره یم، چې په یوه اوږده سفر ولاړ شم او نور به دې ونه ګورم.

خو په دوستانه ډول له تا څخه جلا کېږم او د دې لپاره چې یوه ډالۍ مې درکړې وي، د تمساح لکۍ په نوم یو منګی مشهور شراب در استوم چې په ښنبلو سره یې بوخته شې.

مهو نفر! باید درته ووایم، پر دې سربېره چې زما د احساساتو په اړه دې تېروتنه کړې، زما د جنسي قدرت په اړه هم تېروتې یې، ځکه چې زه بوډا شوی یم، سست او ستومانه سړی یم

چاغ بدن او راوتلې خېټه لرم، سر مې هم ګنجی دی او د عادي ښځو د رضایت سبب نه شم کېدای دا خو لا پرېږده، چې ستا په شان یوه راضي کړم.

ځکه ستا رضایت د هغه سړي کار دی، چې ځوان او غښتلی وي. خوشحاله یم چې زما د بوډاتوب او کمزورتیا له امله مورې داسې کار ونه کړ، چې له هغه وروسته به ترې سخت پښېمانه و.

ځکه چې ته حتماً له یوه بوډا او کمزوري سړي څخه کرکه کوې او غوره دا ده چې مورې یو بل هېڅکله ونه ګورو.

له دې وروسته چې لیک مې ولیکه مریت ته مې ورکړ، چې ویې لولي او خپل نظر پرې راکړي.

مریت وویل سینوهه! تا په دې لیک کې ددې لپاره چې ادب ته دې پام کړی وي، ځان دې بوډا معرفي کړی او ډارېږم، چې دغه عجیبه ښځه د لیک د مفهوم په اړه تېروتنه وکړي او له تا لاس وانخلي.

غوره دا وه چې په دې لیک کې دې بې پردې لیکلي وای، له دې کبله چې هغه ډېره زړه، بد رنګه او کرکجنه ده او هېڅکله یو نارینه نه چمتو کېږي، چې د هغې په شان له یوې ښځې سره تفریح وکړي، نو ځکه ته له دې ښاره وتښتېدې چې د ژوند تر پایه دې سترګې پرې ونه لګېږي.

ومې ویل مریت! دا یوه ښځه ده او یو مودب کس باید یوې ښځې ته و نه وایي، چې ته زړه او بدرنګه یې، ځکه ښځې ته چې هر ډول ښکنځل وکړې ببښي یې خو دغه خبره که سمه هم وي، نه یې ببښي.

له دې سره سره چې مریت د لیک له ډول او ژبې ناراضه وه او ویل یې چې، دلیک ژبه باید ځیږه وي، چې هغه بوډۍ نوره هم نهیلې شي خو بیا یې هم لیک ماته راکړ چې سر یې بند کړم.

ما لیک بند کړ او یو مریی مې را وغوښت چې لیک زري سلطنتي ماڼۍ ته یوسي او مهونفر ته یې وسپاري.

خو په لاره کې ځان د تمساح لکۍ میخانې ته هم ورسوي او یو منګی مشهور شراب هم له ځان سره یوسي، چې لیک او شراب په یو وخت مهونفر ته ورسېږي.

## اوه دېرشم څپرکی

# تيښتې ته په ورته ډول له طبسه وتل

شپه را رسېدلې وه او په اسمان کې د ستورو له را ځرګندېدا څو شېبې تېرې شوې وې، چې موتي خبر را کړ، د سفر شيان مې تيار کړي دي او بېړۍ ته يې ورلای شې.

مريت ميخانې ته نه ولاړه او له ما سره پاتې شوه.

ما چې به هر ځل هغې ته کتل خواشينی به شوم، ځکه چې پخپلې کم عقلۍ سره مې له هغې څخه د بېلتون زمينه برابره کړه.

که ما په ناپوهۍ کې هغې بوډۍ ته چاپلوسي نه وای کړې، نو تر کومه چې مې زړه غوښتل، په طبس کې پاتې کېدای شوم، چې د مريت له کتلو خوند واخلم.

مريت هم په چورتونو کې وه، ناڅاپه يې وويل، سينوهه! ايا ماشومان درباندې ګران دي؟

زه دې نابېره پوښتنې هک پک کړم.

مريت چې ماته کتل ويې ويل مه ډارېږه، ځکه چې زه نه غواړم ستا لپاره ماشومان وزېږوم.

خو يوه ملګرې مې ده، يو څلور کلن زوی لري او وايي چې زوی يې غواړي په نيل کې سفر وکړي، شنه پټي، کروندې، پسونه، غواګانې، هيلۍ او غازان وګوري، ايا کولای شې په دې سفر کې دغه ماشوم له ځان سره بوځې؟

ومې ويل، مريت! زه پوهېږم چې کله دغه څلور کلن ماشوم را سره بوځم نو په سفر کې به په کرار نه يم، ځکه تل بايد د دغه ماشوم پالنه وکړم، چې له بېړۍ څخه اوبو ته ونه لوېږي او يا يې تمساح ونه خوري.

مريت وخندل او ويې ويل سينوهه! کله چې دغه ماشوم پيدا شو ما پخپله له خپلې ملګرې واخيست او يو مې وور چې سنت يې کړم او هغه ښځه چې کوم ماشوم سنت کولو ته بيايي د هغه په ورا ندې د يوې مور په شان دندې لري.

نو زه به دیوې مور په شان په دې بېړۍ کې پاتې شم او د هغه پالنه به وکړم، نو له دې کبله چې زه به یې ساتم، هغه به او بو ته نه لوېږي چې تمساح وخوري.

کله چې ما دغه خبره واورېده ډاسې خوشحال شوم، چې دواړه لاسونه مې پر خپل سر ووهل او ومې ویل، مریت! که ته د ماشوم د پالنې لپاره ځې، نو اجازه لرې چې د یوه ماشوم پر ځای د اتون د معبد د لومړني ښوونځي ټول ماشومان له ځان سره راولې.

او ته چې د ماشوم د ساتلو لپاره ځې، نو څوک به زما په بېړۍ کې ستا پر شتون حیران هم نه شي او ستا نیک شهرت ته به تاوان هم ونه رسېږي.

ما د بوډۍ او شهوتي مېرمنې له وېرې فیصله کړې، چې سهار وختي حرکت وکړم.

مریت زموږ د بېړۍ تر روانېدو مخکې ولاړه او هغه ماشوم یې له خوبه راپاڅاوه او رایې وست، خو د ماشوم مور نه وه راغلې.

ما غوښتل دغه مېرمن ووینم، ځکه چې هغې پر خپل زوی تهوت نوم ایښی و.

د ماشوم مور پر خپل زوی باندې ددغه نوم د ایښودو ګټه هم لېدلې وه، ځکه چې تهوت د یوه خدای نوم دی.

په مصر کې مور و پلار ډېر لږ جرئت کوي، چې پر خپل ماشوم باندې د کوم خدای نوم کېږدي، په تېره بیا د تهوت خدای نوم چې د خط او د خدایي او بشري معلوماتو خدای دی.

ماشوم ویده و او موږ حرکت وکړ.

کله چې د طبس هغه غرونه چې ساتونکو ته ورته دنګ ولاړ ول، زموږ له سترګو پټ شول نو ماشوم هم راویښ شو.

تهوت ښکلی ماشوم و، چې تور او نرم وېښتان یې درلودل او د هغه پر تنده یې ورې کړې جوړې کړې وې، ما ته یې په تورو سترګو داسې کتل چې ته وا له ډېرې مودې مې پېژني.

زه ډېر ژر له دغه ماشوم سره اشنا شوم، مینه مې ورسره پیدا شوه، هغه مې پر خپلو زنګنو کېناوه او د نیل د څنډو له لوخو مې ورته وړې ټوکرۍ واوبدلې، اجازه مې ورکړه، چې زما پر طبي وسایلو لوبې وکړي او زما درمل بوی کړي.

تهوت په دې سفر کې موږ ته هېڅ ستونزه پېښه نه کړه، نه په اوبو کې ولوېد او نه تمساح وخوړ، بلکې اپوته یې زموږ خوشحالي نوره هم زیاته کړه.

هره شپه چې به زه او مریت د یوه بل تر څنګ ویده وو، د ماشوم د ساه اخیستو منظم غږونه به مو اورېدل چې زموږ تر څنګ به ویده و او سهار چې به کله راویښ شوو هغه به لا ویده و.

زه به هېڅکله له مریت او تهوت سره یو ځای د نیل د سیند دغه سفر هېر نه کړم او له نیکمرغۍ وروسته د خوښیو او هیلو یوه پړاو داسې مست کړم چې مریت ته مې وویل:

راځه چې یو منګی مات کړو چې تل دیو بل تر څنګ ژوند وکړو ته هم زما لپاره د تهوت په شان یو ښکلی ماشوم وزېږوې.

زه تر ننه پورې د اولاد غوښتونکی نه وم، خو اوس احساس کوم چې زما وینه د ځوانۍ جوش نه لري، د زړېبودۍ وخت را غلی، او هر ځل چې تهوت ګورم، زړه مې غواړي د هغه په شان یو زوی ولرم.

خو مریت خپل لاس زما پر خولې کېښود او ویې ویل سینوهه! ته پوهېږې، زه داسې ښځه یم، چې په میخانې کې کار کوم او په میخانې کې لویه شوې یم.

تر تا مخکې نورو سړیو، هم له ما سره تفریح کړې او ددې وړتیا نه لرم، چې د فرعون د ځانګړي ډاکټر او تر هغه لوړ د لوی فرعون د زوی ښځه شم، ځکه چې تا یوه ورځ په طبس کې راته وویل، چې تصور کوې د فرعون زوی او د خدایانو له نسله یې.

بله دا چې معلومه نه ده، چې کله ستا خور شم نو ماشومان به وزېږوم او کنه؟

دغه ماشوم پر ما هم ګران دی او فکر کوم چې زه او ته له دې ماشوم سره په دې بېړۍ کې نورې ښې ورځې په مخکې لرو او داسې فکر وکړه چې زه ددې ماشوم مور او ته یې پلار یې.

ځکه چې هغه وړوکی دی، د ټولو ماشومان په شان پخوانۍ ورځې هېروي، زه هغه ته ورښودلی شم، چې تا ته پلار ووایي او ته تصور وکړې چې ته د هغه حقیقي پلار یې.

له هغې ورځې وروسته به کوچني تهوت خپل لاسونه زما په غاړه کې اچول او خپل مخ به یې زما پر مخ کېښود، ما ته یې پلار وایه او ما د هغه د ګاړګوټو ویښتانو له موښلو څخه خوند اخیست.

په هغو ورځو کې چې موږ په بېړۍ کې له نیله تېرېدو داسې مو ځان نېکمرغه احساساوه، چې د نیل پر دواړو غاړو مو د مصري کروندګرو لوږې او بدبختۍ ته هېڅ توجه نه کوله، یانې نه مې غوښتل د هغو د ږنګرو او خوارو ځېرو په کتلو او د هغوی په نارو سورو خپله نیکمرغي او عیش خراب کړم.

نن سبا چې هغه د خوشحالۍ ورځې را په زړه شي، په سترګو کې مې اوښکې ډنډې شي، له سینې اسویلي باسم او فکر کوم، ولې انسان داسې پیدا شو چې د خوشحالۍ ورځې یې ډېر ژر تېرېږي او اپوته، د بدبختۍ ورځې یې دومره وروو تېرېږي چې هېڅکله نه ضایع کېږي.

نور نو زموږ سفر هم پای ته ورسېد او موږ د افق ښار ته ننوتو.

کله چې دې ښار ته ولاړو له دې سره سره چې ډېر وخت مې ترې د باندې نه و تېر کړی، خو احساس مې وکړ، چې د افق په ښار کې یو نوی حقیقت رامنځته شوی دی او زه یې نه ګورم.

د افق د ښار لمر همغه و، کورونه او ونې همغه وې، خو ما داسې احساس کاوه، چې دلته یو نوی حقیقت رامنځته شوی دی. یو وخت متوجه شوم، دغه حقیقت چې ښار یې زما په نظر کې بل ډول کړی دی، کاختي ،بدبختي او د کاختۍ او بېوزلۍ له امله جنایتونه دي.

مریت او کوچني تهوت په ښارکې ډېر ایسار نه شول او طبس ته ستانه شول او زه بیا یوازې شوم.

د یوازېتوب غم، چې په سفرکې راسره نه و ،اوس بیرته راته را ستون شو.

څو ورځې وروسته، چې مریت او تهوت د افق له ښاره تللي ول، د مصر فرعون اخناتون چې چمتو نه و، دخپل هېواد حقېقتونه وګوري اوس مجبور شو چې یو حقیقت وویني.

حقیقت په دې ډول و، چې د مصر د انتظامي ځواکونو قوماندان هورم هب یو شمېر مصریان، چې له سوریې څخه تښتېدلي ول، له ممفیس ښاره د افق ښار ته واستول، چې ځانونه فرعون ته ور وښيي او هغه پوه شي، چې د هغه د خدای غړنده چلند ،سوله غوښتنه ،او مساوات په سوریه کې پر مېشتو مصریانو څه بد حال راوستلی دی.

پر هغې ورځ چې دغه مصریان را تښتېدلي او له سوریې څخه د افق ښار ته راغلي ول، خلک د هغوی په لیدو داسې وېرېدلي ول، چې خپلو کورونو ته ولاړل او د کورنو دروازې یې رابندې کړې.

هغوی غوښتل، چې د فرعون ماڼۍ ته ننوځي، خو د ماڼۍ ساتونکو د هغوی مخه ونیوله او تښتېدلو ،کسانو د فرعون د ماڼۍ دېوالونو او دروازې په کاڼو ووېشتې او فرعون یې مجبور کړ هغوی ته اجازه ورکړي چې ماڼۍ ور ننوځي او خبرې یې واوري

دغه خلک چې ماڼۍ ته را ننوتل زه هلته وم او کله چې فرعون ته نژدې شول نارې یې کړې، اې اخناتونه !نن سبا د مصر د فرعون قدرت او شتمني په سوریې کې هغه کس ته

ورته دي، چې د کوما په حال کې وي او ډېر ژر به قبر ته ولاړ شي.

ته په افق کې ناست يې او نه پوهېږې چې په سوريه کې له مېشتو مصريانو سره ګورزونه، جنګي ګاډي، اورونه، تورې او نېزې څه کوي

ته نه پوهېږې چې د سوريې په ښارونو کې د هغو کسانو وينه څه ډول بهېږي چې ستا په اعتماد يې هلته ژوند کاوه.

ناڅاپه د هغوی نارې په ساندو او ويرونو بدلې شوې، هغو کسانو چې لاسونه يې له مټو څخه غوڅ شوي ول، خپل لستوڼي يې پورته کړل او ويې ويل اې فرعونه! موږ لاسونه درلودل، خو ستا د قدرت په ډاډ مو خپل لاسونه قربان کړل، له دې وروسته به د عمر ترپايه پورې سوالګر يو.

هغه ځوانان يا بوډاګان چې سترګې يې ترې ايستلې وې، يا يې ژبې ترې پرې کړې وې، رامخکې شول او د ځناورو په شان په نارو سورو يې وويل اې فرعونه! پر تا او ستا پر خدای باور او اعتماد موږ په دې بلا اخته کړي يو.

که موږ پوهېدای، چې ته دومره خوار او بې زړه يې، نو تر دې وړاندې، چې د سوريې پاچاهان بلوا وکړي او موږ ووژني، موږ به تښتېدلي و.

له دې سره سره چې په موږ يې دغه بلا راوستې ده، بيا هم تر خپلو ښځو او لوڼو ښه يو، ځکه چې زموږ ټولې ښځې او لوڼې د هاتي د عسکرو او د آمورو د پاچا د سرتېرو لاس ته ورغلې.

تر هغه چې ژوندۍ وي د هغو ښځو په شان به، چې ځانونه په ارزانه بيه خرڅوي، د سوريې او هاتي د عسکرو له تېريو سره مخامخ وي.

کله چې فرعون بې مټو لاسونه، بې سترګو د سر کاسې او بې ژبو خولې ولېدې مخ يې په دواړو لاسونو پټ کړ، بيا يې د خپل خدای آتون په هکله خبرې وکړې، ويې ويل آتون له وينې بېزار دی، د نورو له کړولو او درواغو څخه کرکه کوي وايي، چې ټول خلک بايد يو شان وي او له يو بل سره مينه وکړي.

کله چې کم بخته مفرورانو دغه خبرې واورېدې داسې غوسه شول چې ښکنځلې يې پيل کړې، ويل يې اې فرعونه! ته تر ټولو ملعون فرعون يې او تر اوسه چا نه دي اورېدلي، چې کوم پاچا دې د خپل رعيت پر وړاندې داسې بې پروايي کړې وي.

هېڅ پاچا داسې نه دي کړي چې خپل رعيت بهرنيو ظالمانو ته وسپاري، ايا پوهېږې!

د حيات هغه صليب چې تا د سوريې پاچاهانو ته استولي و، په هغه يې څه وکړل؟

هغو دغه صليبونه د خپلو خرو او اسونو په غاړو کې واچول او په اورشيليم کې يې ستا د کاهنانو پښې غوڅې کړې.

که څه هم له دغو کاهنانو څخه يې پښې غوڅې کړې خو مجبور يې کړل چې ستا د خداى په مخکې وګډېږي.

کله چې اخناتون دغه خبره واورېده ناڅې يې کړې او د ځينو نورو وختونو په څېر پرې د بې هوشۍ حمله راغله او پر ځمکه ولوېد.

کله چې د ماڼۍ ساتونکو وليدل، چې فرعون بې هوشه شوى، نو غوښتل يې چې دغه مصري فراريان له ماڼۍ څخه وباسي.

مفرورانو چې هرڅه له لاسه ورکړي ول او هېڅ يې نه درلودل چې بيا يې له لاسه يې ورکړي، نو يې مقاومت وکړ او د هغوى او ساتونکو تر منځ شخړه پېښه شوه.

ځمکه د مصري فراريانو په وينو سره شوه او هغه کسان چې د سوريې د پاچاهانو له ظلمونو راتښتېدلي او فرعون ته دلاسنوي په تمه راغلي ول، د فرعون په ماڼۍ کې ووژل شول او د هغوى مړي يې په نيل سيند کې واچول.

کله چې ساتونکي د دغو تښتېدليو کسانو د وينې په تويولو بوخت ول، د مصر ملکه نفرتيتي او د هغې لوڼو له خپلو کوټو څخه د هغوى د وژلو ننداره کوله.

له دې کبله چې دوى لومړى ځل جنګ، تېښته او بدبختي ليدله نو هېڅکله يې بيا دغه صحنه هېره نه شوه.

په داسې حال چې د ماڼۍ په انګړ کې وژنه روانه وه، ما فرعون کوټې ته بوت او پر سر مې لانده ټوکران ورکېښودل، په ستوني کې مې مسکن درمل ور واچول، چې بې هوشي ختمه شي او بيا د کمزورتيا له امله ويده شو.

کله چې له خوبه راويښ شو، په تتې څېرې او پرکاله سترګو يې ماته وويل سينوهه! دغه حالت د زغملو نه دى بايد اصلاح شي.

ما له هورم هبه اوريدلي، چې د آمورو پاچا چې اوس يې په سوريې کې پر مصريانو حمله کړې ده، دى يې پېژني.

ژر هغه ته ورشه او له هغه سره د سولې د اخيستو لپاره خبرې وکړه، د سولې په بدل کې چې يې هر څومره سره او سپين غوښتل ور يې کړه.

زه چمتو یم د مصر ټول سره او سپین د آمورو پاچا ته ددې په بدل کې ورکړم چې له مصر سره سوله وکړي، ان که له هغه وروسته مصر د تل لپاره بېوزله شي.

ومې ویل اخناتونه! زه وایم چې د سولې د اخیستو تر ټولو ښه روده داده، چې ته د مصر سره او سپین هورم هب ته ورکړې، چې هغه پرې جنګي ګاډۍ ،نیزې ،تورې ، او ګرزونه جوړ کړي او د جنګ لپاره عسکر پرې وروزي.

فرعون سر په دواړو لاسونو ونیو او د هغه چا په شان چې سر یې په ورمېږ درونه وي، سترګې یې کش کړې بیا یې وویل سینوهه! په دې پوه شه چې له دښمني څخه دښمني پیداکېږي، انتقام د انتقام سبب کېږي او د وینې بهېدل نورې وینې هم بهوي

کله چې یو شمېر کسان لټه کوي له نورو غچ واخلي د هغو پر خلاف د غچ او انتقام نور زړي هم کري

ته چې وایې د سولې اخیستل به د مصر لپاره خواري او سپکاوی ولري، دا یوازې خرافات دي او د دښمنۍ او غچ اخیستو د روحیې له لامله دي

زما خبره ومنه د امورو پاچا ته ورشه او هغه ته ووایه، هر څومره سره او سپین چې غواړې زه چمتو یم چې د سولې په بدل کې یې ورکړم.

زه پوهېدم چې د سرو او سپینو په وسیله د سولې اخیستل لېونتوب دی، ځکه کله چې د سولې پلورونکي د مصر سره او سپین واخیستل او پوه شو، چې مصر بې وزله شوی دی، نو په ډېر ډاډ او جرئت سره، جنګ نور هم سختوي

ددې لپاره چې فرعون له دې کاره پښېمانه کړم، یا پخپله د لېونتوب دې معاملې ته ورګډ نه شم ومې ویل:

اخناتونه! تا د سولې په هکله خبرې کړې او له جنګ سره دې پرېکړون کړی خو ما د جنګ غوښتنې او ددې چارې د اصلي اړتیا یانې سفر کولو وړتیا له لاسه ورکړې او اوس په ځارویو او ګاډیو سفر نه شم کولای.

پر دې سربېره تر هغه مخکې چې زه د آمورو پاچا ته ورسېږم، د هغه سپاهیان به زما لاسونه او پښې غوځې کړي او سترګې به مې را وباسي.

زه داسې سړی نه یم چې دوراغ ووایم، له هغه چا سره بحث او معامله نه شم کولای، چې له ماشومتوبه یې درواغ او چل ول زده کړي وي،

د آمورو او سېدونکي درواغجن او چلبازان دي او باید هغه کسان له دوی سره معامله

او مذاکره وکړي، چې درواغ وويلای شي، نو زما پر ځای بل څوک ور واستوئ.

خو فرعون وويل سينوهه! هغه څه چې درته وايم ويې منه، سوريې ته ولاړ شه او د آمورو له پاچا څخه سوله وپېره.

د فرعون له کوټې څخه چې راووتم په هغو مصري فراريانو مې سترګې ولګېدې، چې مړي يې هلته پراته ول، ومې ليدل چې د چالاس نښته د چا پښې او د چا سترګې.

زه پوه شوم چې که زه هم سوريې ته ولاړم، د هغوی په شان به شم، د سوريې بلوا ګر به زما دواړه لاسونه را پرې کړي او سترګې به مې د سر له کاسې وباسي.

غوره مې وبلله چې کور ته ولاړ شم او ځان په ناروغۍ واړوم، چې د فرعون پرېکړه بدله شي او سوريې ته زما د آستولو مسله هېره کړي.

کله چې د فرعون د ماڼۍ له دروازې راووتم، او کور ته تلم و مې ليدل چې نوکر مې په بېړه منډې را وهي، چې زه يې وليدم، ويې ويل ما فکر کاوه، چې ته به تر بېګا کورته رانه شي، دلته راغلم چې له يو نوې خبرې دې خبر کړم.

ومې پوښتل نوې خبره څه ده؟ ويې ويل، همدا اوس يوه بېړۍ له طبسه، افق ښار ته را ورسېده او ستا د کور تر څنګ ودرېده او يوه ښځه ترې را کوزه شوه.

دغه ښځه له دې سره سره چې ډېره بوډۍ ده، خو ځان يې د هغو پېغلو په شان سينګار کړی، چې غواړي مېړه پيدا کړي، مخ يې په رنګونو سور کړی او تېز عطر يې وهلي دي.

هغې ما ته وويل ستا بادار سينوهه! زما غوښتونکی دی او هغه زما په بېلتون کې اوښکې تويوي!

خپل نوکر ته مې وويل، هغې خپل نوم درته واخيست؟ ځواب يې راکړ هو! نوم يې مهونفر دی، زه ددې لپاره راغلی يم، چې ډېر ژر کور ته راستون شې، ځکه چې مهونفر ستا په تمه ده.

کله چې مې واورېدل مهونفر په کشتۍ کې له طبسه زما تر شا دلته راغلې ده، له ډېرې وېرې او کرکې څخه ورېږدېدم.

بيرته سلطنتي ماڼۍ ته راستون شوم او فرعون ته مې وويل، فيصله مې کړې چې ستا د امر د اجرا لپاره همدا اوس سوريې ته روان شم.

ډېر ژر خپلو کاتبانو ته وواېه، چې د آمورو پاچا ته لوحې وليکي چې هغه زما په مقام او درجې پوه شي او دا هم ورته معلومه شي چې زه ستا له لوري راغلی يم.

فرعون خپل کاتبان را وغوښتل او هغوی ته یې وویل چې زما لپاره لوحې ولیکي.
ویې ویل، کله چې لوحې چمتو شوې له یوې اندازې سرو زرو سره به یې تا ته درولېږم.
ما چې کور ته له تګه وړه درلوده، فرعون ته مې وویل، چې زه سلطنتي ماڼۍ ته نژدې، د خپل ملګري توتمس د مجسمه جوړولو په کارخانه کې یم. کله چې لوحې چمتو شوې، ورته ووایه، چې هلته یې له طلا سره یو ځای را واستوي.
ما غوښتل د توتمس کارخانې ته ولاړ شم، ومې لېدل چې زما نوکر د ځواب په تمه دی.
هغه ته مې وویل ولاړ شه او مهونفر یانې همدې بوډۍ ښځې ته ووایه چې فرعون زه سوریې ته آستولی یم او زه هلته وژل شوی یم، چې هغه له ما څخه بېخي نا امیده شي او پوه شي چې نور زه ژوندی نه یم.
کله چې ما دا خبره کوله پوهېدم چې درواغ نه وایم، ځکه یقین مې درلود سوریې ته په تګ سره به ووژل شم.
خپل نوکر ته مې وویل کله چې دې مهونفر ته وویل، چې زه په سوریه کې وژل شوی یم، نو باید هغه بیر ته کشتۍ ته ستنه کړې او طبس ته یې واستوې.
که یې نه غوښتل چې له کوره لاړه شي، په زور یې کشتۍ ته ستنه کړه او دومره پوه شه چې که زه له سوریې راستون شوم او وګورم چې دغه ښځه زما په کور یا د افق په ښار کې ده ستا او د کور د نور نوکرانو غوړونه به پرې کړم اود اجباري کار لپاره به مو کانونو ته واستوم.
زما نوکر چې د لومړي ځل لپاره یې له ما څخه دغه ګواښ اوریدلی و، پوه شو چې زما دغه خبره جدي ده او په آتون یې قسم وخوړ، چې دغه ښځه به له کوره وباسي او له طبسه به یې بهر کړي.
له دې وروسته چې ډاډه شوم زما نوکر به زما حکم پر ځای کړي، د خپل ملګري او د سلطنتي مجسمه جوړونکي توتمس کارخانې ته ولاړم.
توتمس پخوا د هورم هب یوه مجسمه جوړه کړې وه او پر دې ورځ چې زه د هغه کارځای ته ورغلم ومې لیدل چې یوه بله مجسمه یې له خرمایي رنګه او په نوي سبک جوړه کړې ده.
که څه هم توتمس په دې مجسمه کې د هورم هب د بدن د ځینو برخو په جوړولو کې مبالغه کړې وه، په تېره بیا د هورم هب د متو او ټټر عضلې یې دومره پنډې جوړې کړې وې، چې که هرچا دغه مجسمه لیدلې وای نو فکر یې کاوه چې د یوه غېړنیونکي، مجسمه ده، نه د سلطنتي پوځ د قوماندان.

خو د هنر نوی سبک دغسې شی غوښت، چې د بدن د ځینو برخو په جوړولو کې چې راوتلې دي مبالغه وکړي، چې دغه کار تر ښایست ډېره بدرنګي رامنځته کوله.

پخوا به هنرمندانو هڅه کوله عیبونه پټ کړي او یوازې ښېګڼې وښيي، خو د نوي هنر اړتیا دا وه، چې تر ممکنه حده پورې د انسان عیبونه نور هم څرګند کړي او حتی ښې برخې هم د ډېرې مبالغې له امله د عیبونو په بڼه معلومېدې.

ځکه چې نوی هنر په انسان کې له یوشمېر هندسي بڼو او کرښو پرته بل څه نه ګوري او ددې پېر د هنرمند له نظره ښکلا خاص مفهوم نه لري او هڅه کوي هندسي بڼې او کرښې په څرګند ډول تر سترګو شي.

پخواني هنر انسان د نړۍ تر ټولو ښکلی موجود باله او نوی هنر باور لري، چې انسان د نړۍ تر ټولو بدرنګه ژوی دی او حتی له نباتاتو او جماداتو هم بدرنګه دی.

کله چې تو تمس زه ولیدم، لوند ټوکر یې راواخیست او د هورم هب پر مجسمې یې تېر کړ چې ماته وښيي د مجسمې عضلې څنګه پړقېږي؟

کله چې یوه شو ما نیت کړی د فرعون په حکم سوریې ته ولاړ شم ویې ویل، زه هم د (هت نت سوت) معبد ته ددې مجسمې د رسولو لپاره له تا سره ځم.

ماورته وویل د هورم هب مجسمه د هغه معبد په یوه غوره ځای کې کېږده او ددغه سفر په ترخ کې به د نیل سین له ښکلې ورېمې هم استفاده وکړو، ځکه یوه موده کېږي، چې سفر مې نه دی کړی او زما لپاره تفریح او ګرځېدل ضروري دي.

کاتبانو لوحې او د سفر لګښت راوړل، موږ د هورم هب مجسمه حکومتي بېړۍ ته چې زموږ لپاره چمتو شوې وه، ولېږدوله او د (هت نت سوت) پر لور روان شو چې له هغه ځایه زه سوریې ته ولاړ شم.

(هت نت سوت هغه ښار وو چې نن سبا المینا بلل کېږي. ژباړن) کله چې روان شو تو تمس وویل سینوهه! له دې کبله چې ته هغه هېواد ته ځې، چې د جنګ اور پکې بل دی، نو په شراب څښلو کې سختي مه کوه، ځکه چې معلومه نه ده، له دې وروسته به وخت دا فرصت درکړي چې شراب وڅښې کنه؟ ما د تو تمس پر نصیحت عمل وکړ او کله چې د نیل سیند د اوبو له بهیر سره روان وو، په شراب څښلو مې صرفه ونه کړه.

## اته دېرشم څپرکی

# د فرعون په حکم د سوریې پر لور حرکت

کله چې ما غوښتل کاپتا ته دنده وسپارم، چې ولاړ شي او د اتون پر کروندګرو زما غنم ووېشي، نو هغه د بد بختۍ اټکل کړی و.

ده به ویل ستا دغه فرعون به په دې کارونو موږ ټول بدبخته کړي او موږ به له خوندورو خوړو ،ارام کور او نرمې بسترې محروم کړي.

کله چې زه د سوریې پر لور روانېدم پوه شوم چې د کاپتا اټکل سم و.

زه له ارام کور او نرمې بسترې څخه محروم شوی وم، د فرعون لپاره باید ولاړ شم او د سوریې د جنګ خطرونه وزغمم.

که کاپتا زما د غنمو د وېشلو لپاره له کور ،خوړو او ښې بسترې څخه محروم شوی و، لږ تر لږه ژوند یې خوندي و، په داسې حال کې چې، زه داسې ځای ته تلم، چې باور مې نه درلود له هغه ځایه دې راستون شم او که ژوندی را ستون شم نو لاسونه او سترګې به مې نه وي.

انسان باید د خبرو پر وخت د بدو پېښو اټکل ونه کړي، ځکه چې بدې پېښې ژر پېښېږي: په داسې حال کې، چې سمې پېښې په ځنډ او یا هم هېڅکله نه پېښېږي

په لاره کې ما د هغو بدبختیو په هکله خبرې کولې، چې په سوریې کې به ورسره مخامخ شم، خو توتمس راته وویل، غلی شه او پرېږده چې زه ستا انځور وباسم.

توتمس زما څېره انځور کړه، ما چې ورته وکتل چې ډېر بدرنګه شوی یم ، نو هغه مې وراته او ورته ومې ویل، ته زما ملګری نه یې، ځکه که زما ملګری وای نو زه به دې داسې بد رنګه نه انځورولی.

توتمس وویل، زه هنرمند یم او کله چې هنرمند یوه مجسمه جوړوي یا انځور باسي، نه د چا ملګری دی، نه له چا سره دښمني لري، یوازې باید د خپلو سترګو پیروي وکړي او هغه څه انځور کړي، یا یې مجسمه جوړه کړي، چې وینې یې.

موږ ډېر ژر د هت نت سوت ښار ته ورسېدو.

دا ښار د نیل سیند تر څنګ پروت یو وړوکی ښار دی او له یوه کلي سره ډېر توپیر نه لري.

د غلته مورې ولیدل چې پسونه او غواګانې د ښار په کوڅو کې ګرځي او د ښار معبد یې له خښتو جوړ کړی دی.

د ښار چارواکي، چې پوه شول زه د فرعون مخصوص ډاکټر یم او تو تمس سلطنتي مجسمه جوړونکی دی، نو په ډېر درناوي یې، زموږ هرکلی وکړ.

توتمس د ښار په معبد کې د هورم هب مجسمه ودروله.

دغه معبد پخوا د هوروس د خدای لپاره جوړ شوی و.

هوروس هغه خدای دی، چې سر یې د باز په شان دی، خو له دې وروسته چې فرعون نوی خدای مشهور کړ، هغه معبد یې هم د آتون لپاره بېل کړ او د هوروس د خدای مجسمه یې له هغه ځایه لېرې کړه.

د ښار اوسېدونکي چې د هوروس د خدای د مجسمې له لېرې کېدا وروسته یې بله مجسمه نه درلوده، د هورم هب د مجسمې په لېدو ډېر خوشحال شول.

زه تصور کوم چې هغه به یې خپل خدای بللی وي، یا یې د پخواني خدای پر ځای منلی دی، ځکه چې ددې ښار اوسېدونکي، نا لوستي ول او پر دې نه پوهېدل، چې ممکنه ده له مجسمې او ظاهري بڼې پرته هم خدای موجود وي.

د هورم هب اصلي مور و پلار هم په همدغه ښار کې اوسېدل او د ښار عام خلک ول.

له دې وروسته چې هورم هب د مصر د پوځ قوماندان شو، هڅه یې وکړه، خپل مور و پلار په اشرافانو کې راولي چې خلک ووایي، هورم هب د نجیبانو او اشرافانو له کورنۍ څخه دی.

هورم هب فرعون ته دومره نژدې و، چې هر څه یې ترې غوښتي وای نو فرعون له جنجاله پرته منل.

له همدې امله د مصر د لښکرو قوماندان، خپل پلار په سلطنتي څارونکو کې شامل کړی و او مور یې د دربار پادوانه کړه، ځکه چې مور یې د غواګانو له پادوانې او لوشلو پرته بل کار نه شو کولای، لیک لوست یې هم نه و زده چې هغې ته بله دنده ورکړي.

د هورم هب د پلار هم لیک لوست نه و زده خو په څارونکو کې شامل شو او د مصر په ځینو کلیو کې یې د آتون د ودانیو څارنه کوله. د هغه دنده یوازې تشریفاتي وه او کوم

خاص کار یې نه کاوه ټول کارونه به معمارانو او خټګرانو کول.
کله، چې د هورم هب مور و پلار په دربار کې په شاملېدا سره د اشرافانو او نجیبانو په کتار کې راغلل، په ټول مصر کې خلکو فکر کاوه، چې هورم هب له اشرافانو او نجیب زادګانو څخه دی.
شپه او ورځ چې مور په نیل کې سفر کاوه، زه به په بېړۍ کې ناست او پر سر به مې د فرعون زري تراړې څپې وهلې (زري تراړه په حقیقت کې یو کم سوره او اوږد بیرغ و، چې د اوسنیو بیرغونو پر ځای یې د بېړۍ په مخکېنۍ برخه کې لګاوه او لا هم په ځینو هېوادونو کې یوه کم سوره او اوږده ریتاړه پر بېړیو ځوړندوي. ژباړن).
د بېړۍ پر غولي ناست وم، د نیل د غاړې لوخې او د مرغانو د الوتلو ننداره مې کوله.
روانو اوبو ته مې کتل، لمر تود شو، مچان به راباندې ګرځېدل او له ځان سره به مې ویل، سینوهه! سترګې له ډېرو کتلو ستومانه کېږي، غوږونه له ډېرو اورېدلو ستړي کېږي او روح هېڅکله نه راضي کېږي، ځکه چې هېڅوک په ژوند کې خپلو ټولو هیلو ته نه رسېږي.
داسې څوک نه شو پیدا کولای، چې ووایي زه خپلو ټولو هیلو او ارزوګانو ته رسېدلی یم.
که څه هم انسان په ژوند کې هېڅکله په بشپړه توګه د نېکمرغۍ احساس نه کوي، خو بیا هم له مرګه وېرېږي او زړه یې ورته تنګ وي.
خو که نور له مرګه ډارېږي نو سینوهه! ته چې یو ډاکتر یې باید له مرګه ونه وېرېږې، ځکه دومره مړګونه دې لیدلي چې مرګ اوس عادي شی درته ښکاري.
ته پوهېږې! کله چې د مرګ وخت را نږدې شي، ټولې ستونزې کړاونه ،او د ژوند هیلې له منځه ځي.
له بدني کړاو او روحي ستونزو سره یو ورځ ژوند تر هغه ډېر سخت دی، چې انسان تر قیامته پورې په قبر کې پاتې وي، ځکه چې که تر ابده پورې سړی په قبر کې پاتې کېږي بیا هم د محرومیت احساس نه کوي.
زه لږ وخت په دې فکرونو کې وم، چې د بېړۍ اشپز به وویل، ډوډۍ تیاره ده.
زه به پورته شوم له توتمس سره به مې یو ځای ډوډۍ وخوړه او بیا به مې استراحت کاوه او ویده به شوم.

په دې ډول زموږ بېړۍ د ممفیس ښار ته ورسېده (ممفیس د مصر پخوانی ښار دی چې داوسنۍ قاهرې په جنوب کې پروت دی او تراوسه پورې د دې ښار کنډوالې هلته ترسترګو کېږي ژباړن ).

هورم هب په ممفیس ښار کې و او کله چې زما له ورتګه خبر شو نو زما یې ډېر زیات او افراطي درناوی وکړ.

ده ځکه زما درناوی وکړ چې زه په سوریه کې د آمورو پاچا ته د فرعون د استازي په توګه ور روان وم.

بل علت یې داو، چې له سورېې څخه یو شمېر تښتېدلي مصریان او د مصر پلوي سریانیان چې له دې هېواده تښتېدلي ول او هم د نورو ملتونو شتمن کسان په ممفیس کې ول.

کله چې هورم هب خبر شو، چې زه سورېې ته ځم، نو زما هرکلي یې وکړ او موخه یې دا وه چې هغوی پوه شي، د مصرفرعون دومره قوي او د درناوي وړ دی چې هورم هب یې د استازي دومره هرکلي او درناوی کوي.

هورم هب د خلکو په مخکې خپل لاسونه په زنګنو کېښودل او زما پر وړاندې یې رکوع وکړه.

خو کله چې خلک لاړل هغه زه خپل کور ته بوتلم، چې کوټې ته ننوتو نوکران یې رخصت کړل او په داسې حال کې چې د سرو زرو د لاستي درلودونکې متروکه یې ښوروله ویې ویل، سینوهه ! له دې سره سره چې لا نه پوهېږم ته ولې سورېې ته د آمورو پاچا تـه ورځې، خو باور لرم چې ستا سفر د فرعون د لېونتوب پایله ده.

ما د خپل ماموریت په اړه توضیحات ورکړل، ومې ویل لکه چې تا اورېدلي. ماته یې ویلي ، په هره بیه چې وي د آمورو له پاچا آزیرو څخه سوله وپیره.

کله چې هورم هب دغه خبره واورېده داسې چیغې یې پیل کړې چې زه وویرېدم.

بیا یې وویل زه پوهېدم چې د فرعون لېونتوب بیا پیل شوی دی خو فکر مې نه کاوه چې هغه دې دومره لیونی شوی وي چې فکر وکړي سوله په سرو او سپینو اخیستل کېدای شي.

ځکه هغه څوک چې له خپل دښمن څخه په سرو او سپینو سوله اخلي، هم به سره او سپین له لاسه ورکوي او هم به خپل هېواد له لاسه ورکوي.

سینوهه په دې پوه شه !

له دې سره سره چې د آمورو پاچا سوریه نیولې ده، خو زه بریالی شوی یم چې د غزې سیمه د مصر لپاره وساتم.

کله چې موږ وغواړو سوریه بیرته ونیسو غزه به پر سوریې د حملې لپاره ښه سرچینه او د حملې د پیل کولو ځای وي.

کله چې هاتي په میتاني هېواد کې د خپلو پښو ځای ټینګ کړ، یا به پر بابل حمله وکړي، یا پر مصر.

سلیم عقل دا حکم کوي چې کله هاتي وګوري، بابل د خپلو ځواکونو په راغونډولو او سنبالولو بوخت دی او پر مصر باندې حملې ته ځان جوړوي، او دا هم ورته معلومه شي چې مصري پوځ کمزوری دی، نو پر موږ به حمله وکړي او له مصریانو او فرعونیانو به لوخړې پورته کړي.

د آمورو پاچا آزیرو هم له دې کبله چې ګوري هاتي قوي او مصر کمزوری دی، پوهېږي چې له مصر سره اتحاد د هغوی په ګټه نه دی او ددې پر ځای که له هاتي سره متحد شي ډېره ګټه به وکړي.

د آزیرو پر ځای که بل هوښیار سړی هم وای، همدا کار یې کاوه، له مصره لېرې کېده او له هاتي سره یو ځای کېده.

هورم هب را ته وویل، زه کولای شم آزیرو د سینا او غزې تر منځ په ټاټوبي کې پیدا کړم، ځکه چې اوس هلته دی او له مصري چریکانو سره جنګېږي.

زموږ ځینې جاسوسان د پاړو ګرانو، مارګیرانو، د اوربشو د اوبو د پلورونکو او د غنیمت د شیانو د اخیستونکو په توګه د آزیرو له لښکرو سره ملګري دي.

آزیرو هم جاسوسان لري، چې پاړو ګرانو، د اوربشو د اوبو د پلورونکو او د وینځو او مریيانو د سوداګرو په بڼه پارتیزانان تعقیبوي او یا د مصر له سرحدي ساتونکو سره ملګرتیا پیلوي او له هغوی څخه معلومات را غونډوي.

د آزیرو یو شمېر جاسوسان په ممفیس او مصر کې دي او هلته د مصر د پوځي حالت په اړه معلومات راغونډوي او په اصل کې جاسوسي کوي.

تر ټولو خطرناک پکې هغه سپین پوستې او ځوانې ښځې دي چې توري سترګې لري او له سوریې څخه مصر ته راغلې دي.

دغه ښځې ظاهراً په عمومي فاحشه خانو کې د کار کولو لپاره، خو په حقیقت کې د جاسوسۍ لپاره راغلي دي، چې مصري افسران او عسکر له هغوی سره تفریح کوي.

کله چې هغوی یو افسر یا عسکر په غېږ کې ونیسي هر ډول معلومات چې وغواړي ترلاسه کوي یې.

خو له نیکه مرغه دغه ښځې پوځي زده کړې نه لري، نو زموږ له افسرانو او سپاهیانو ګټورې پوښتنې نه شي کولای او ډېرې پوښتنې یې د ماشومانو په شان دي.

یو شمېر هوښیار جاسوسان هم شته، چې هم د مصر لپاره کار کوي او هم د آزیرو لپاره، هم له دواړو خوا ګټه اخلي او هم له دواړو سره خیانت کوي.

هورم هب وویل زه له دې موضوع خبر یم، خو له دې کبله چې د هغوی له شتمنیو څخه ګټه اخلو مجبور یو ویې زغمو.

ومې ویل هورم هب ! له دې کبله چې ته د خپلو جاسوسانو په وسیله د آزیرو د لښکر له حالته خبر یې ماته دا ووایه چې له کومې لارې باید ځان ازیرو ته ورسوم او له کومو ګوابنونو سره به مخامخ شم.

هورم هب وویل، ته د سمندر له لارې تللی شې او که د وچې له لارې ځې نو بیا غزې ته ولاړ شه ځکه، لکه چې ومې ویل آزیرو د غزې او سینا ترمنځ دی.

که له سمندري لارې غزې ته ولاړ شې د کرت جنګي بېړۍ به ستا ملاتړ وکړي، خو په دې شرط چې د هغوی سترګې د سوریې پر جنګي بېړیو و نه لګېږي.

ځکه که د سوریې جنګي بېړۍ وګوري، چې شمېر یې ډېر او پیاوړي دي، نو ستا بېړۍ به پرېږدي او وبه تښتي.

بیا به نو یا له ځانه دفاع کوې او یا به تسلیمېږې، که له ځانه دفاع وکړې ستا بېړۍ به ډوبه شي او ته به په اوبو کې مړ شې او که تسلیم شې، نو تا به اړ کړي چې د هغوی په بېړیو کې پارو ووهې.

تا به د مترکو په زور پارو وهلو ته اړ کوي او ممکنه ده په څو ورځو کې له درد او کمزورتیا څخه مړ شې.

خو که تا وپېژني او پوه شي، چې ته د مصر یو ستر چارواکی یې په تا به پارو هم ونه وهي، بلکې ژوندی به دې له پوسته کړي او ستا له پوستکي به کڅوړه جوړه کړي چې سره او سپین پیکې واچوي

زه نه غواړم چې تا وډار وم، خو له دې کبله چې تاپخپله معلومات وغوښتل ما تاته معلومات درکړل.

خو له دې ټولو سره سره دا هم ممکنه ده، چې ستا بېړۍ له کوم خنډه پرته غزې ته ورسېږي.

خوزه نه پوهېږم له دې وروسته چې له بېړۍ کوزشوې، څه ډول به ځان آزیرو ته ورسوې، ځکه چې جنګ په غزه کې ثابت حالت نه لري، چې زه وکړای شم، تا ته وو ایم هغه چېرته دی او کله چې ته غزې ته ننوتې هغه به چېرته وي؟

ومې ویل هورم هبه! ایا غوره نه ده چې له وچې یانې د سینا له لارې غزې ته ولاړ شم.

(سینا د یوې سیمې نوی نوم دی، چې اوس هم د سینا ټاپو وزمه بلل کېږي پخوا دې سیمې ځو نومونه درلودل، چې یو یې تانیس و او دلته نوی نوم ددې لپاره اخیستل کېږي، چې لوستونکی د نا آشنا نومونو په اورېدو سره خپله لار ورکه نه کړي. ژباړن)

هورم هب وویل، زه ستا د امنیت لپاره یو شمېر عسکر او څو جنګي ګاډۍ له تا سره لېږلی شم، چې د وچې له لارې غزې ته ولاړ شې، خو کله چې عسکر د آزیرو له سپاهیانو سره مخامخ شول، تابه یوازې پرېږدي او و به تښتي.

بیا به د آزیرو عسکر تا ونیسي او د هاتي د خلکو په دود به دې په سیخونو کې ورکړي او په شکنجو شنکجو به دې مړ کړي.

بل احتمال دا دی چې زمونږ د خپلو چریکانو لاس ته ورشې.

خو دوی داسې کسان دي، چې هېڅ قانون او اصول نه پېژني او هرڅه چې لري درځخه به یې واخلي، بیا به دې په ژرندې پورې وتړي او تر هغه چې ژوندی یې باید ژرنده وګرځوې.

دغه راز له دې وېرې چې و نه تښتې سترګې به دې هم درړندې کړي.

په لومړیو ورځو، چې تا لا د ژرندې په کار کې تجربه نه وي پیدا کړې نو دا به درته سخته وي چې له سهاره تر بېګا پورې په چټکتیا سره ژرنده وګرځوې، نو ځکه به دې د مرګ تر پولې وهي.

زه د هورم هب دې خبرو ووېرولم، هغه ته مې وویل، دې ته په پام سره چې زه باید د فرعون په غوښتنه ولاړ شم او له آزیرو سره مرکه وکړم نو ښه به دا وي چې همدا اوس ولاړ شم ځکه بله چاره نه لرم.

ورته مې وویل چې د وچې له لارې به ولاړ شم او ته څو تنه ساتونکي راکړه چې ما د آزیرو عسکرو ته ورسوي، خو که دې واوریدل چې زه اسیر شوی یم، ورتهووایه چې له چنې وهلو پرته زما د خوشې کولو په بدل کې زما له لوري هغو کسانو ته پیسې ورکړه، چې زه یې اسیر کړی یم.

زه بډای یم او زما مریی چې اوس په طبس کې زما ناظر دی، زما د راخلاصولو په بدل کې چې هر څومره سره او سپین ضروري وي ور به یې کړي.

هورم هب وویل، سینوهه! زه پوهېږم چې ته بډای یې او له همدې امله مې ستا له پخواني مریي کاپتا او ستا له شتمنیو لږ پور اخیستی دی.

ما غوښتل چې ته هم د مصر د څواکمنېدا په خاطر د مرستو لپاره په پورونو کې شریک شې او محروم پاتې نه شې.

خو سینوهه! په دې پوه شه همغه ډول، چې زه د مصر د نورو بډایو کسانو پور، نه ورکوم ستا قرض به هم درنه کړم او که کومه ورځ له ما څخه سره او سپین وغواړې زما او ستا ملګرتیا به خرابه شي او ان ښایي له منځه ولاړه شي.

اوس روان شه او کله چې سینا ته ورسېدې، هلته زما له عسکرو څخه یو ټولی سرتېري له ځانه سره بوځه او که اسیر شوې، زه به له کاپتا څخه زر واخلم چې تا بیرته واخلي.

خو که یې ته ووژلې، ستا په کسات کې به ستا یو شمېر قاتلین ووژنم او دا هم درته وایم، تر هغه وخته پورې چې ستا د وژلو لپاره یې ستا په خېټه کې نیزه نه وي ننه ایستلې، هیله من وسه او پوه شه چې ستا وینه به ضایع نه شي.

ما وویل هورم هب! که زه ووژل شم زما د کسات لپاره خپل وخت مه ضایع کوه، ځکه که زه ووژل شم مړی به مې په بیدیاکې وي او له څو اونیو وروسته به له څو هډوکو پرته زما دبدن کومه نښه نه وي پاتې.

هغه وخت که بیا تا زما د وژلو په غچ کې د نیل سین د اوبو په شان وینې زما پر هډوکو تویې کړې، بیا به هم زما هډوکي خوشحاله نه شي.

له دې کبله چې هورم هب زه ډېر ځورولی او وېره ولی وم نو ما هم غوښتل چې هغه ته یو ټونګ ورکړم، ورته ومې ویل: خو که زه ووژل شم، زما سلام د فرعون خور مېرمن باکتاتون ته ورسوه، ځکه چې هغه ښکلې او په زړه پورې ده، خو لږه کبرجنه ده او پر هغې ورځې چې مور یې مړه شوه، د مور د جنازې تر څنګ یې ستا په هکله له ما سره خبرې

کولې.

دې خبرو پر هورم هب اغېزه کوله ، ځکه چې باکتاتون پرې ګرانه وه.

زه له هغه ځایه د ممفیس د سلطنتي دفتر پر لور روان شوم چې خپل وصیت ولیکم او هلته یې امانت کېږدم.

په وصیت لیک کې مې ولیکل چې که په سوریه کې ووژل شوم، زما د مرګ له ثابتېدا وروسته دې زما شتمني، زما پر پخواني مریي کاپتا، ملګرې مریت ، او پخواني ملګري هورم هب ته ور ووېشل شي.

له هغه وروسته د هغه چا په څېر په بېړۍ کې سپور شوم چې د مرګ پر لور له تګ پرته بل کار نه لري .

د کوز مصر پر لور روان شوم، د سینا دښتې ته نژدې، له بېړۍ څخه را کوز شوم، په روان تخت کې مې ځان سینا دښتې ته ورساوه.

هلته مې په یوې کلا کې په سره لمر کې د هورم هب عسکر ولیدل چې خپل وخت یې د اوربشو د اوبو پر څښلو ،او د صحرایي حیواناتو ، په تېره بیا د غرڅو په ښکار تېراوه.

دوی له ستونزمن ژونده تنګ ول، یو شمېر ښځې چې تر ټولو بېکاره ښځې دي او ځان ډېر ارزانه خرڅوي، شپه و ورځ یې خپل ځانونه عسکرو ته سپارلي وې.

ما ولیدل چې ټول عسکر غواړي، چې هورم هب یې سوریې ته واستوي، چې هلته وجنګېږي.

ددې چارې علت هم درته وایم.

تاسې پوهېږئ، په داسې حال کې چې زما بدرګه کوونکي عسکر تګ ته چمتو کېدل، ما ولیدل چې په دې کلا کې خاص نظم ټینګ دی. یوازې هغه عسکر کولای شي ښکار ته ولاړ شي او له ښځو سره تفریح وکړي، چې پهره یې نه وي.

هر عسکر تر هغه وخته چې په پهرې کې وي یا یې نوکري وي، ټول وخت یې پر پوځي مشق او بیګار تېرېږي.

دې چارې زه یوه ټکي ته متوجه کړم، چې د سپاهیانو د قوماندانۍ په تخنیک پورې اړوند ېږي.

زه متوجه شوم چې یو لایق قوماندان هغه دی چې پرې نه ږدي د هغه سپاهیان حتی یوه ګړۍ هم وزګار پاتې شي او تل هغوی پوځي زده کړو او بېګار ته اړ کړي.

پر هغوی داسې ډسپلین اجرا کړي چې عسکر ورځ و شپه د ځانګړیو قوانینو پیروي ته مجبور وي.

دغه عسکر پر دې سربېره چې د پرله پسې تمرینونو او کار کولو له کبله تکړه کېږي او نور د ستړیا احساس نه کوي، دغه راز کله چې د جګړې له پیلېدا خبرېږي نو ډېر خوشحالېږي چې د مبارزې ډګر ته ولاړ شي.

دوی په دې ډول جګړې ته دومره خوشالېږي ته وا د یوه هرم په اندازه سره و سپین دې ورکړي وي او یا دې د نړۍ ټولې ښکلې نجونې وربښلې وي.

دا چې دغه ډول عسکر د جنګ میدان او د قتل ډګر ته په تګ خوشحالېږي، علت یې دادی چې پوهېږي د جنګ ډګر ته تګ هغوی له ډسپلین او د عسکرو په کور (قشله) کې له دایمي کاره خلاصوي.

دوی داسې احساس کوي چې اوږده رخصتي ورکړل شوې وي، اوتر کومه ځایه چې یې زړه غواړي تلای شي.

دوی پر دې هم پوهېږي چې ښایي د جنګ په ډګر کې ووژل شي، خو له دې کبله چې د جنګ خبر هغوی په قشله کې له اوږدو مشقونو او کارونو ژغوري، بیا هم جنګ ته په تګ سره خوشحالېږي.

له همدې امله هورم هب هڅه کوله، د هغه عسکر هېڅکله وزګار، نه شي ان که د سینا په صحرا کې هم وي.

د هورم هب د حکم پر اساس د هغه عسکرو د سینا صحرا ته د ننوتو په برخه کې لس جنګي ګاډۍ، زما لپاره چمتو کړې او په هره جنګي ګاډۍ کې پر ګاډۍ چلونکي سربېره دوه کسه نور هم سپاره ول، چې یوه نېزه او بل زغره درلوده.

ددې لسو ګاډیو قوماندان ماته راغی، ماولیدل چې پر ملا یې لنګ تړلی دی او نورې جامې نه لري.

ما ته چې را نژدې شو، لاسونه یې پر زنګنو کېښودل او رکوع یې وکړه.

د هغه د نوم پوښتنه مې وکړه، چې (ژو ژو) نومېده.

هغه وویل سینوهه! که غواړې کله چې د آزیرو له عسکرو سره مخامخ شوې او تاوان درونه رسېږي، نو د خرما د ونو یوه څانګه له ځان سره یوسه.

کله چې د آزیرو عسکرو ولیدې، دغه څانګه پر سر وښوروه، چې پوه شي ته د جنګ

کولو اراده نه لرې.

ومې وویل چې د ژو ژو عسکر د خرما د ونې څو څانګې چې د کلا شاو خوا موجودې وې را غوڅې کړې او زما په روان تخت کې دې کېږدي.

کله چې ژو -ژو متوجه شو، چې زه نیت لرم په روان تخت کې ولاړ شم په کړس یې وخندل او ویې ویل سینوهه! دغلته چې موږ ځو د سینا بیدیا ده، زموږ د ژوندي پاتې کېدا یوازینی چانس دا دی، چې په ګاډیو کې له دې بیدیا څخه ګړندي تېر شو او که په روان تخت کې چې ورو ځي حرکت وکړو ټول به ووژل شو.

بله دا چې زموږ په لاره کې خوراکي شیان هم نشته، نو د اړتیا وړ شیان باید له دې ځایه له ځان سره یو سو.

ان د اسونو لپاره وابښه هم باید له ځان سره واخلو، زه به یو جوال وابښه ستا په ګاډي کې کېږدم چې ته یې پر سر کېنې او د ګاډي له ټکانونو خوندي شې.

ومې ویل، پخوا زه په ګاډي کې سپور شوی یم، یو ځل په جنګي ګاډیو کې د آمورو هېواد ته تللی یم، خو په هغه وخت کې ځوان وم او د ګاډیو له ټکانونو نه وېرېدم.

خو بیا هم له دې سره سره چې نن سبا بوډا شوی یم، خو هڅه کوم د جنګي ګاډي ټکانونه وزغمم.

ژو ژو د خرما څانګې چې په سر کې یې زما په روان تخت کې ایښې وې، له هغه ځایه خپلې جنګي ګاډي ته ولېږدولې.

پر بلې ورځ یې د خرما د ونې څانګې زما ګاډي ته راوړې، زه سپور شوم او په بیره د سینا دښتې پر نری لاره روان شو.

# نهه دیرشم څپرکی

## زما دردناک اسارات

پر لومړۍ ورځ هغه لاره چې موږ پرې روان و، نسبتاً اواره وه او د ګاډۍ ټکانونو نه ځورلم ځکه زه پر یوه جوال وښو ناست وم.

خو پر بله ورځ اواره لاره پای ته ورسېده، موږ یوې داسې دښتې ته ننوتو چې لاره پکې نه وه او د ګاډیو ټکانونو سخت ځورولم.

خو نیمه ورځ وه، چې د ډېرو سختو ټکانونو له امله مې د واړه پښې له ګاډۍ څخه جلا شوې، ښکته ولوېدم او مخ مې په ازغو زخمي شو. د شپې مو چې کله د آسونو او د ځان د دمې لپاره استراحت وکړ، ژوژو زما په وینو ککړ مخ ووینځه او و یې ویل که په همدې سرعت حرکت وکړو، ممکنه ده پر څلورمه ورځ د آزیرو د عسکرو کمپ ته ورسېږو.

پر درېیمه ورځ له داسې ټاټوبي تېر شو، چې ډېره ناواره وه.

دغلته مې ډېره بوږنوونکې منظره ولیده، ځکه چې د پارتیزانانو یوې اډې ته ورسېدو چې ټول عسکر یې د آزیرو د عسکرو له لوري وژل شوي ول او هغوی حتي ماشومان وژلي ول.

کله چې موږ هلته ورسېدو، سلګونه مردار خواره مرغان د مړیو په خوړلو بوخت ول او د مړیو حالت، ددې ښودنه کوله چې له وژلو یې کابو دوه ورځې تېرې شوې وې.

دا پدې مانا وو، چې د آزیرو سپاهیان له دې ځایه ډېر لېرې نه دي، ځکه چې دوه ورځې مخکې یې دغه ډلوژنه کړې وه.

پر څلورمه شپه له لېرې بل شوی اور ښکاره شو او ژوژو ماته وویل، دغه اور د آزیرو د عسکرو د کمپ دی، له دې کبله چې هلته کوم کلی نشته چې ووایو د آزیرو عسکرو سوځولی وي.

د ژوژو په خوښه لړه شېبه ایسار شوو، چې آسونه واښه وخوري او ستوماني یې کمه شي، بیاً د سپوږمۍ په رڼاکې وخوځېدو او ورو ورو مو حرکت کاوه.

زه چې پر جوال ناست وم، د گاډي د ارام حرکت له امله ویده شوم، یو وخت متوجه شوم چې ژو ژوله خوبه پاڅولم.

کله چې مې سترگې رڼې کړې لمر راختلی و، او تر دې وړاندې چې له ژو ژو وپوښتم چیرته یو ؟ هغه ،زه ، زما د لوحو صندوق او سره و سپین له گاډي کوز گوزار کړو، که گورم د بېديا پر شگو پروت يم، د ژوژو گاډی ماته شاکړې او د لوديځ پر لور روان دی، په بيړه د تېښتې په حال کې له دې ځايه لیرې کېږي.

د ژو ژو پر دې چلنده حیران شوم، خو شېبه وروسته، زما حيراني ختمه شوه، ځکه چې پوه شوم له ختيځه يوه ډله جنگي گاډي په ډېرې چټکتيا سره زما پر لور را روانې دي او داسې ښکارېدل، چې غواړي د ژو ژو گاډی تعقيب کړي.

په دې وخت کې د هورم هب خبره رایاده شوه چې ویل یې، کله چې ستا ساتونکو عسکرو د آزيرو سپاهيان وليدل وبه تښتي.

کله چې گاډي را نژدې شوې ما د خرما څانگې چې وچې شوې هم وې را واخيستې او پر خپل سر مې وښورولې، چې د آزيرو سپاهيان پوه شي، زه د جنگ کولو نيت نه لرم.

خو هغوی ماته پا م ونه کړاو د ژوژو په گاډيو پسې ولاړل، خو ژو ژو او ملگري يې په بيړه داسې وتښتېدل، چې د سترگو په رپ کې له نظره پټ شول.

له هغه وروسته د آزيرو د سپاهيانو گاډي بيرته راستنې شوې، له ما سره نژدې ودرېدې او ما همغه راز د خرما څانگې پر سر ښورولې.

له گاډيو څو تنه عسکر پلي شول، ما ورته وويل، چې نوم مې سينوهه دی او په ابن الحمار مشهور، د فرعون استازی یم.

زه راغلی یم، چې ستاسې پاچا وگورم او په دې صندوق کې ځينې لوحې شته ، چې ښيي زه د مصر د فرعون استازی یم.

عسکر و ما او د فرعون لوحو ته پام ونه کړ، زه يې لوڅ کړم او هر څو مره سره و سپين چې مې درلودل را څخه يې واخيستل،بيا يې زه په یوې گاډي پسې پر پړي وتړلم او روان شول.

که د هغوی اډه نژدې نه وای، نو زه به د چټکو گاډيو تر شا هومره ډېر نه وای تللی.

د يوه ترازو (گړۍ ) وخت په اندازه، زه پر ځمکې کښېنېدم او که اډې ته ژر نه وای رسېدلي نو د صحرا کاڼو به مې بدن ټو ټه ټوټه کړی وای او مړی شوی به وم.

د هغوی ستره اډه وه، چې د ډېرې جنګي ګاډۍ او هغه ګاډۍ چې غواګانو کشولې پکې ولاړې وې.

زه چې په پرېیو تړل شوی وم، هلته له رسېدو سره بیهو شه شوم او تر لمر لاندې پر ځمکه ولوېدم.

یو وخت چې راویښ شوم احساس مې وکړ، چې څو تنه پر ما اوبه اچوي او بدن مې په نباتي غوړیو غوړوي او موښي یې.

وروسته راته معلومه شوه چې د اډې یو افسر چې لیک لوست یې زده و، زما لوحې لوستې دي او پوه شوی و، چې زه د فرعون استازی یم، نو حکم یې وکړ چې له ما سره سم چلند وکړي جامې مې بیرته راکړي.

کله چې دو مره شوم چې پر لاره ولاړ شم و مې ویل، ما آزیرو ته بوځئ.

ازیرو په یوې خیمې کې اوسېده، کله چې یې زه ولیدم، له کېږدۍ راووت.

د سرو زرو یو زنځیر یې په غاړه کې اچولی و، خپله ږیره یې د سپینو زرو د تارونو په یوې کځوړه کې اچولې ده.

آزیرو په کېږدۍ کې تر خپل ځنګ کېنولم او ویې ویل سینوهه! کله چې دې زما عسکر ولیدل ولې دې ځان معرفي نه کړ او ودې نه ویل چې د فرعون استازی یې او ولې دې د خرما د ونې څانګې و نه ښورولې چې زما عسکر پوه شوي وای، ته جنګ نه غواړې.

زما عسکر وایي کله چې تا هغوی ولیدل په چړې دې پر هغوی برید وکړ، غوښتل دې هغوی ووژنې، ځکه نو زما سپاهیان د ځان د ساتلو لپاره مجبور شول تا وتړي.

زما لاسونو لا هم درد کاوه ځکه په پړي تړل شوي ول او پر ځمکه د کښېږدا له امله پر بدن جوړو شویو ټپونو سخت درد کاوه.

آزیرو ته مې وویل، ما ته ځیر شه او وګوره ایا زه داسې سړی یم، چې وکړای شم ستا پر عسکرو، هغه هم په جنګي ګاډیو کې چې وسلې هم ورسره دي حمله وکړم.

هغوی درواغ وایي او ددې لپاره چې له خپلې ګناه منکر شي پر ما دغه تور لګوي.

کله چې ما دوی ولیدل د خرما څانګه مې وښوروله او ځان مې معرفي کړ، د فرعون لوحې مې وروښودلې، خو هغوی د خرما څانګه ماته کړه او پر لوحو یې نارې تو کړې.

هغه څه چې ما درلودل ټول یې راخخه واخیستل، بیا یې زه په ګاډۍ پسې وتړلم، له همدې امله باید ته امر وکړې چې هغوی په متروکو ووهي، چې له دې وروسته د فرعون د

استازي درناوی وکړي.

آزیرو وویل سینوهه! ممکنه ده چې تا خوب لیدلی وي، یا دا چې په لاره کې لویدلی یې او لاس و پښې دې زخمي شوې دي.

زه نه غواړم خپل عسکر د یوه مصري لپاره په متروکو ووهم او ستا دغه خبرې زما په غوږونو کې د مچانو د بنګېدا په شان دي.

ومې ویل آزیرو تر پرونه ته د آمورو پاچا وې، نن سبا د ټولې سوریې پاچاېې او پر پاچاهانو واکمني کوې، یا په بله وینا د پاچاهان و پاچا یې نو ته باید تر هرچا زیات د نورو پاچاهانو درناوی وکړې او د نورو پاچاهانو د درناوي یوه اړتیا دا ده چې د هغوی له استازو سره سم چلند وکړې.

د یوه پاچا د استازي سپکاوی او رټل د هغه پاچا د سپکاوي په مانا دی، نو ضروري نه ده، چې زه درته ووایم.

دلته چې ستا اډه ده، زه هېڅ قدرت نه لرم او ته کولای شې ما ووژنې، خو که دغه کار وکړې د فرعون سپکاوی به دې کړی وي.

بله خبره دا ده چې که ته فرعون خوار او سپک کړې، ځان به دې سپک او خوار کړی وي، ځکه هغه پاچا چې نور پاچاهان سپکوي، خپل سلطنت یې خوار کړی دی.

ته چې غواړې پر ټولې سوریې حکومت وکړې باید په دې حقیقتونو پوه شې.

کله چې یې زه په پړي د ګاډۍ تر شا تړلی وم، زه مجبور وم، چې له ګاډیو سره یو ځای منډه ووهم، چې پر ځمکه کش نه شم.

یو سړي چې پر اس سپور او زما تر شا روان و، زه یې د نیزې پر څوکه په شاووهلم او شا یې را سورې کړه.

که ته نه غواړې خپلو عسکرو ته سزا ورکړې، د غه یو سړی په دې جرم چې زه یې زخمي کړی یم او ما ته یې په سپکه سترګه کتلي په متروکو ووهه.

په دې هم پوه شه چې زه د فرعون له لوري تا ته ډېره لویه ډالۍ راوړم او هغه ډالۍ سوله ده، ځکه چې فرعون غواړي له تا سره سوله وکړي.

آزیرو وویل، د فرعون سوله زما لپاره ارزښت نه لري (په داسې حال کې چې زه پوهېدم، هغه په باطن کې د سولې ورا ندیز ته ډېره خوشحاله شوی دی) ځکه دا خبره حتمي ده، چې فرعون به ما مجبوره کاوه، چې زما پر وړاندې خپل مخ پر خاورو کېږدي او د سولې

غوښتنه وکړي.

خو دا چې وایې یوه سړي ته په کوناټو وهلی یې او زخمی شوی یې زه تا په حقه بولم، هغه باید ستا په شان د یوه پاچا له استازي سره چې زما ملګری هم دی دغسې چلند نه وای کړی او همدا اوس به یې زه په متروکو ووهم.

پر همدې ورځ ازیرو امر وکړ چې د هغه عسکر راټول شي او د هغو په شتون کې یې دغه سړی په متروکو وواهه.

ما فکر وکړ چې د آزیرو نور عسکر به د خپل ملګري په سزا خواشیني کېږي، خو هغوی ساعت تېری کاوه او خندل یې، ځکه چې نا لوستي او جاهل عسکر د نرۍ په ګوټ ګوټ کې یو شان وي.

له دې کبله چې د هغوی په یو شان ژوند کې تفریح نشته، نو له هرې وسېلې حتي په متروکو د خپل ملګري له سزا څخه هم خوند اخلي.

کله چې ما ولیدل د هغه سړي له بدنه وینې روانې شوې او متروکې یې د بدن غوښې جلا کړې، لاس مې پورته کړ او له آزیرو مې وغوښتل چې د دغه سړي سزا بس کړي.

تر هغه وروسته مې هغه سړی خپلې کېږدۍ ته، چې آزیرو زما لپاره بیله کړې وه بوت.

عسکرو چې ولیدل زه هغه سپاهي خپلې کېږدۍ ته بیایم فکر یې وکړ چې شکنجه کوم یې نو خوشحالي یې وکړه.

خو ما یې ټپونه ور وتړل او مسکن درمل مې ورکړل، له هغه وروسته مې د اوربشو اوبه ورکړې او هغه سړي سم باور وکړ، چې ګني زه لېونی یم.

د شپې مهال آزیرو د ډوډۍ لپاره ور وغوښتلم، زه یې کېږدۍ ته ورننوتم، خواړه یې راوړل، ما ولیدل چې د آزیرو د پوځ پر قوماندانانو سربېره د هاتي یو شمېر افسران هم موجود ول.

د هاتي د افسرانو نښان دا و، چې پخپلو ټټرونو یې دوه متقاطع تبرونه او د تبرونو د پاسه یې وزر لرونکی لمر انځور کړی و.

د شپې خواړه کباب شوی سیرلی او په غوړو کې سره کړې ډوډۍ وه.

ټولو راسره په مهربانۍ چلند کاوه، خو داسې احساس مې کاوه چې د دوی دغه مهرباني ملنډو ته ورته ده، ځکه زه ورغلی وم، چې د فرعون له لوري له هغوی سره سوله وکړم.

په داسې حال کې چې پخپله دوی د سولې غوښتونکي ول او که فرعون څو میاشتې صبر کړی وای آزیرو مجبوریده، چې د سولې لپاره مخکې شي.

د دوډۍ له خوړو وروسته ما ولیدل چې د هاتي افسرانو د شرابو په څښلو کې افراط وکړ. او ما اټکل وکړ چې ښایي کومه ناوړه پېښه وشي.

همداسې هم وشول د هاتي افسران چې نشه شوي ول، د آمورو له افسرانو سره ونښتل ( آمورو هغه هېواد دی چې آزیرو یې پاچاو ).

د هاتي یوه افسر خپله چاړه را وایستله او د آمورو د یوه افسر په ستوني کې یې ښخه کړه.

ما زخمي سړی معاینه کړ او پوه شوم چې علاج یې کېدای شي د هغه ټپ مې وتاړه او په بستر کې مې څملاوه.

خو دغه زخمي افسر نیمه شپه خپل نوکران او سپاهیان راغونډ کړل او ویې ویل ولاړ شئ او د هاتي له دې افسره زما غچ واخلئ، هغوی هم ولاړل او هغه افسر یې وواژه.

پر بله ورځ چې آزیرو له دې پېښې خبر شو، زخمي سړی یې له پښو څخه سر په څېړۍ په دار وځړاو، او تر هغه یې ځړولی و چې مړ شو.

ځکه چې له یوې خوا آزیرو د هاتي له افسرانو ډارېده او په دې سزا سره یې غوښتل هغوی راضي کړي او له بلې خوا ده هڅه کوله په خپل پوځ کې نظم ټینګ کړي.

پر هغې شپې چې د هاتي یوه افسر د آمورو یو افسر ټپي کړ، په دې جنجال پسې او د افسرانو له تګه وروسته چې د آزیرو کېږدۍ خالي شوه، آزیرو خپل زوی ما ته را وښود.

زه پوهېدم چې دغه هلک زما د پخوانۍ وینځې له خېټې دی، هغه وینځه چې ما یې مخکې ذکر کړی و، او ویلي مې و، چې ما د آمورو پاچا ته ډالۍ کړې وه. دغه ماشوم اووه کلن و، خو له پلار سره به جنګونو ته روان و.

د آزیرو د زوی غومبوري سره او وینښتان یې د پلار د ږیرې په شان تور ګاړګوتي ول، ما چې د هغه د ټټر پوستکي ته کتل له ځان سره مې ویل چې دغه سپینه څېره یې له موره په میراث وړې ده.

آزیرو چې خپل زوی ما ته راوښود ویې ویل سینوهه! ایا تا تر اوسه داسې اووه کلن ماشوم لیدلی، چې زما تر زوی غښتلی او ښکلی وي زما زوی اوس د څو هېوادونو خاوند دی، له ما وروسته به د ټولې سوریې یا ښایي د نورو ډېرو هېوادونو پاچا وي.

زه داسې کار کوم چې له ما وروسته څوک د هغه له پاچاهۍ سره مخالفت ونه کړي، ځکه چې په سوریې کې مې د ننه ټول پاچاهان او د قبیلو مشران چې ممکنه ده په راتلونکې کې، زما له زوی سره مخالفت وکړي له منځه وړي یا به یې له منځه یوسم.

زما زوی لیک لوست کولای شي، توره هم چلولی شي، څو ورځې مخکې یې یو مریی چې هغه ته یې بې احترامي کړې وه، پخپلې تورې وواژه.

زه هغه له ځان سره جنګ ته بیایم او په جګړو کې یې ګډون ته هڅوم او هغه وخت یې په جنګ کې شریکوم چې موږ ټولې سیمې نیولې وي لوټ تالان او ورانې مو پیل کړي وي، چې څوک مقاومت ونه کړي او زما زوی ونه وژني.

له هغه وروسته آزیرو زما د پخوانۍ وینځې په هکله چې ما ورته ډالۍ کړې وه او اوس د هغه ښځه ده، خبرې وکړې.

ددې وینځې نوم (کفتیو) و، هغه ووېل، اوس په آمورو کې ده او زه یې پر لېږې والي خپه یم، ځکه چې اړتیا لرم ورسره څملم او ساعت تېري ورسره وکړم.

که څه هم زه د سوریې له هغو نجونو سره چې اسیرانې کېږي تفریح کوم، خو له کفتیو سره ساعت تېری بېل خوند لري.

زه د هېڅ یوې ښځې له غېږې دومره خوند نه اخلم، چې له کفتیو سره له څملاستو یې اخلم.

اوس نوره هم ښکلې شوې او که یې وګورې و به یې نه پېژنې.

کله چې موږ په خبرو بوخت وو د ښځو د چیغو اوازونه اورېدل کېدل او آزیرو ووېل، دا هغه ښځې دي، چې د هاتي افسران یې څوروي، ځکه هاتیان کله چې له اسیرو ښځو سره تفریح کوي، له هغو سره د عادي نارینه وو په شان چلند نه کوي، بلکې ښځې څوروي او ژوبلوي.

زه یې هم مخه نه شم نیولای، ځکه چې لا هم هاتیانو ته اړتیا لرم، خو بل پلو وېره لرم، چې زما افسران او عسکر د هاتي د افسرانو وحشیانه خویونه زده کوي.

ما له دې فرصته استفاده وکړه او مې ویل آزیرو! له هاتیانو سره ملګرتیا او اتحاد په راتلونکې کې ستا په تاوان دی.

هاتي به هغه هېوادونه ستا له منګولو وباسي چې نیولي دې دي، نو غوره دا ده، چې له هاتي تېر شې او د مصر له فرعون سره متحد شې.

اوس هاتي په ميتاني هېواد کې په جنګ بوخت دی او بابل هم خپل ځواک راغونډوي، ځکه پوهېږي له هاتي سره به جنګ پيلېږي.

ته چې د هاتي ملګری او متحد يې له دې وروسته به له بابله غنم ترلاسه نه کړې او په راتلونکې کې به لوږه او کاختي د وږي ليوه په شان هغه هېوادونه وځپي چې تا نيولي دي، خو که له مصر سره متحد شې، هر څومره غنم چې وغواړې له فرعونه يې ترلاسه کولای شې.

آزيرو په ځواب کې وويل، هاتيان داسې خلک دي، چې د دښمنانو لپاره خطرناک او د دوستانو لپاره ګټور دي او که څوک ورسره ملګری وي تاوان به ونه کړي.

اوس موږ او دوی ملګري يو، خو زموږ تر منځ کوم تړون او معاهده نه ده شوې، چې زه ونه کړای شم له نورو سره سوله وکړم او ورسره ملګری شم.

د هاتي پاچا کله نا کله ما ته ډالۍ هم راستوي، په تېره بيا هغه وسلې چې ما ته يې را استوي، ډېرې په زړه پورې دي، ځکه چې دغه وسلې له داسې وسپنې جوړې شوې دي، چې له مس او برونزو ډېره کلکه او تېره ده.

زه دا منم چې د هاتيانو له چلنده راضي نه يم، ځکه چې هغوی د سوريې په ځينو بندرونو کې چې زما په هيواد پورې اړوند دي داسې چلند کوي چې ته وا دغه بندرونه د هغوی دي.

ومې ويل آزيرو ! هغوی، چې اوس ستا دوستان دي، دغه بندرونه خپل ګڼي، دا خو لا پرېږده چې يوه ورځ ستا دښمنان شي.

آزيرو وويل، پر کومې ورځ چې هغوی زما دښمنان شي، زه به يې له خاورو سره خاورې کړم.

ومې ويل آزيرو ! ته پوهېږې، چې ستا له لوري د هاتيانو تګول او له منځه وړل که ناممکنه نه وي، نو سخت کار خو دی، ځکه چې د هاتي اوسېدونکي له سوريې ليرې په يوې ليرې پرتې غرنۍ سيمه کې ژوند کوي.

که ته غواړې هاتيان له پښو ورغورځوې، بايد خپل عسکر له سوريې څخه د هغوی هېواد ته بوځې مګر هغوی به په غرنيو سيمو کې ستا لښکر له منځه يوسي.

زه پوهېږم چې هاتيان يو ډول فلز لري، چې نوم يې وسپنه دی او هغه توری چې له وسپنې جوړېږي، مسي تورې په يوه ګوزار غوڅوي او د هغوی وسپنيز غشي داسې تېره

دي، چې کله له لیندو خوشې شي او پر تېر ولګېږي نو له شاڅخه وځي.

پر دغه ملت برلاسی ناشونی دی ځکه چې په پراخې غرنی سیمه کې اوسېږي او که ته دومره ځواک ولرې چې هغوی کلابند کړې نو خپله پلازمېنه به خوشې کړې او بلې سیمې ته به ولاړ شي.

د هر کلونه به دې په غرنیو سیمو او درو کې سرګردانه کړي، هغه هم په دې شرط چې د هاتي د هېواد سوړ ژمی وزغمې.

ځکه چې په ژمي کې د هاتي په غرنیو سیمو کې هوا دومره سړه وي چې په غرونو کې اور نه شې بلولای او په دې سړو کې به ستا عسکر مړه شي.

آزېرو ته نو باید داسې کار وکړې، چې کله هاتي په تا برید وکړي، له ځانه د دفاع وسیله ولري او دغه وسیله له فرعون سره ستا اتحاد دی.

ته په یوازې سر د هاتي پر وړاندې د خپل هېواد دفاع نه شې کولای، خو که له فرعون سره یوځای شې، د مصر فرعون به دومره عسکر درکړي چې هاتیان په شا وتمبوې.

آزیرو چې په ځیرتیا سره یې زما خبرې اورېدې، ویې نه غوښتل اعتراف وکړي، چې له هاتي وېرېږي.

ده وویل، د سولې پلوی یم او تر جنګ سوله غوره بولم، خو له دې امله جنګېږم، چې له شرافت سره سم سوله ترلاسه کړم او که فرعون د غزې سیمه چې په چل او دوکې یې له ما څخه نیولې ده بیرته راکړي او د سوریې د جنګ تاوان په غنمو ،نباتي غوړیو او سرو زرو ورکړي (ځکه چې دغه جنګ فرعون رامنځته کړی دی) زه به له هغه سره سوله وکړم.

ما چې ولیدل آزیرو چې په خبرو خبرو کې د جنګ د تاوان یادوه کوي او خاندي، نو پوه شوم چې له هغه سره ټوکې کولای شم، ومې ویل:

آزیرو ! اې غله ! او اې د بې ګناه کسانو جلاده ! ته څنګه د تاوان د اخیستو خبره کوې، په داسې حال کې چې دا ته وې، چې په سوریې کې دې د مصر په چونیو برید وکړ، نارینه او ماشومان دې ووژل او ښځې دې اسیرانې کړې.

اوس دې دغه مېرمنې د هاتي افسرانو ته ورکړې، چې هغوی یې شکنجه کړي.

ته له دې کبله د ګرمې او تاوان د ترلاسه کولو خبره کوې، ته خیال کوې چې مصر کمزوری دی، په داسې حال کې چې اوس په کوز مصر کې پښان او صنعتګر د تورو، نیزو ،چړو ، غشو ،لیندو او جنګي ګاډیو په جوړولو بوخت دي.

هورم هب چې ته یې ښه پېژنې، یا دې نوم اوریدلی دی، بې له ځنډه د عسکرو د راټولولو لپاره هلې ځلې کوي.

پر کومه ورځ چې ما غوښتل تا ته درشم او د سولې غوښتنه وکړم، داسې غوسه شو چې ما فکر وکړ وبه مې وژني.

خو فرعون چې د خپل خدای آتون پیروي کوي، د سولې غوښتونکی دی او له وینې بېزاره کرکه لري.

له همدې امله یې ماته وویل آزیرو ته ورشه او د سولې وړاندیز ورته وکړه.

خو د غزې په هکله باید ووایم، چې نن سبا فرعون په دې سیمه کې هېڅ قدرت نه لري چې وکړای شي هغه ځای تا ته وسپاري.

ته کولای شې چې پخپل ځواک سره د غزې غله او ډاکوان له منځه یوسې او هغه ځای ونیسې.

پوهېږې چې د غه غله او ډاکوان هغه کسان دي، چې ستا د بې رحمۍ او ظلم له وېرې له سوریې تښتېدلي دي.

یوازینۍ غوښتنه چې فرعون یې د سولې په بدل کې له تا څخه کوي دا ده چې مصري بندیان خوشې کړې او د مصري چونیو د ورانیدا تاوان ورکړې.

آزیرو د یوه حریص سریاني سوداګر په څېر چې د چنې وهلو پر وخت خپلې جامې شکوي، خپل ګریوان وشکاوه او نارې یې کړې:

سینوهه! ایا کوم لېوني سپي خوړلی یې چې د غه خبرې کوې؟

غزه د سوریې خاوره ده، باید بیرته سوریې ته ستنه شي، خو د هغو مصري بندیانو په هکله چې له موږ سره دي د روانو دودونو پر اساس چلند کېږي.

موږ یې خرڅوو او که فرعون د اسیرانو غوښتونکی دی او د هغو د اخیستو لپاره سره او سپین زر لري، کولای شي، هغوی واخلي.

دا چې ته د مصري سوداګرو په هکله خبرې کوې، یوازې هغه څوک د غسې خبرې کولای شي، چې لېوني سپي داړلی وي.

د غه سوداګر چې ته وایې تاوان یې زغملی دی، چېرته و، چې تاوان یې کړی دی؟

که هغوی په مصر کې و او موږ مصر ته ورغلي یو او دوی زموږ د ورتګ له امله تاواني شوي وای، نو تا دا حق درلود چې ووایې، باید هغوی ته ګرمه یا تاوان ورکړو.

خو دغه سوداګر چې باید په خپل هېواد کې تجارت وکړي، هغه ځاي یې پرې ایښی دی، زموږ هېواد خپل کور ګڼي او په ډېرو ښکلو کورنو کې ناست دي

زموږ ښېرازه ځمکې یې نیولي دي او له خپل هېواده، مصري شیان سوریې ته راوړي او په خو برابره ګټه یې خرڅوي

دوی ورځ په ورځ شتمن کېږي او د سوریې خلک نور هم بېوزله کېږي

ځکه خلک چې د کار په بدل کې هر څومره سره او سپین ګټي باید د مصري شیانو په بدل کې یې مصري سوداګرو ته ورکړي

د سوریې په شیانو کې له غنمو پرته بل هېڅ شی د سوریې د خلکو لپاره ګټه نه لري.

ډېره موده دغه روده په سوریې کې روانه وه او خبره دې ځای ته ورسېده چې داسې ښه کور، ښیرازه ځمکه او ښه کاریز پاتې نه شو چې په مصري سوداګرو پورې اړوند نه وي او یا هغه پکې شریک نه وي

اوس چې د سوریې خلکو خپل حق ترلاسه کړی، نو باید موږ مصري سوداګرو ته سره او سپین ورکړو او د هغوی تاوان او ګرمه ورکړو ؟

زه پوه شوم، چې که د مصري سوداګرو د ګرمې د اخیستو خبره اوږده کړم، نو خپله خبره به ونه کړای شم. له همدې امله ما د بحث موضوع بدله کړه او ومې ویل، ازیرو که ته له مصر سره سوله وکړې د خپل ښار شا و خوا ته دنګ دیوالونه جوړولی شې او ستا د هېواد سوداګر له مصر سره په معاملو بډای کېدای شي.

خو که هاتي پر تا برید وکړي، نو د مصر فرعون د سرو و سپینو او پوځي مرستو په زور د هغوی د حملې مخه نیولای شي.

بیا مې زیاته کړه آزیرو ! که ته وغواړې د مصري سوداګرو د شتمن کېدا موضوع په سوریې کې راپورته کړې او ووایې، چې هغوی په سوریې کې د خلکو په تاوان سره شتمن شوي دي، نو د یوې پخوانۍ مسلې په هکله به دې خبره کړې وي

پخوانۍ مسلې نن سبا د توجیه وړ نه دي ، ددې لپاره چې د انسان د عمر هر پړاو خپلې غوښتنې او اړتیاوې لري، باید له هغو سره سم عمل وشي.

تېر وخت چې هر ډول و، تېر شو، باید د نن ورځې لپاره فیصله او اقدام وشي.

زه باوري یم، هغه سوله چې نن سبا یې فرعون تا ته وړاندیز کوي، نه یوازې ستا لپاره پکې شرافت او عزت شته، بلکې ستا په ګټه هم ده.

ځکه چې فرعون له تا د هغه هېوادنو غوښتنه نه کوي، چې تا په سوریې کې نیولي دي بلکې په دغې سولې سره تا د هاتي پر وړاندې پیاوړی کوي.

ددې شپې مذاکرات همدلته پای ته ورسېدل، خو له هغه وروسته څو ورځې او څو شپې ما له آزیرو سره د سولې په هکله خبرې وکړې او څو ځله هغه د سریاني سوداګرو په شان کالي وشکول او نارې سورې یې وکړې.

ده به ویل فرعون غواړي چې ما وغولوي او زوی مې د سوریې له سلطنته محرم کړي.

یو ځل په کاوړکې د هغه له کېږدۍ څخه را ووتم او داسې مې وښودله، چې غواړم بیرته ستون شم، هغه ته مې پیغام واستاوه، چې یو روان تخت او یوه ډله عسکر زما د ساتنې لپاره راکړي، چې مصر ته ستون شم.

آزیرو بیرته خپلې کېږدۍ ته ور وغوښتم، بیا مذاکره پیل شوه، زه پوه شوم چې څومره وخت تېر شي د فرعون په ګټه دی، ځکه هره ورځ چې تېرېده د آزیرو په اډه کې د هاتي افسرانو او د آمورو د افسرانو ترمنځ اختلافات زیاتېدل.

د هاتي افسرانو د آزیرو د پوځ افسران د خپلو مرییانو په بڼه ګڼل او ویل به یې که موږ نه وای تاسې سوریه نه شوه نیولای نو ځکه باید سوریه زموږ په لاس کې وي نه ستاسې.

په سوریه کې هم د آزیرو او نورو پاچاهانو ترمنځ اختلافات پیل شوي ول.

د سوریې نورو پاچاهانو له آزیرو سره، د هغه د مقام او بخت له امله بخیلي کوله، نه یې غوښتل د هغه اطاعت وکړي.

آزیرو ماته وړاندیز وکړ، له دې کبله چې د هغه او فرعون ترمنځ له غزې پرته بل کوم اختلاف نشته، نو ددې سیمې وضیعت دې په دې ډول وټاکل شي، چې د غزې د ښار دېوال (چې د غزې سیمه هم ددې ښار په نوم یادېږي) وران شي.

له هغه وروسته به د آزیرو له لوري د غزې لپاره یو پاچا ټاکل کېږي، خو دغه پاچا به د هغه مشاور په خوښه چې فرعون یې ټاکي پر غزه حکومت کوي.

مصري بېړۍ به د باج له ورکړې پرته غزې ته ځي او مصري سوداګر به هم په ازاد ډول تجارت کولای شي.

زه پوه شوم چې له دې وړاندېز د آزیرو هدف دا و چې په چل ول سره غزه د مصریانو له لاسه وباسي.

کله چې د غزې دېوال وران شي، د غزې پوځي ارزښت هم له منځه ځي او نور به مصر ته

له پوځي پلوه ارزښت ونه لري.

ما دغه حل لاره ونه منله او د پخوا په شان مې بې وسي وښودله ومې ويل، فرعون په غزه کې هيڅ نفوذ او قدرت نه لري، چې وکړای شي د غزې د ښار د ديوال وران کړي او يا داسې مشاور وټاکي چې د غزې د پاچا د ټاکلو لپاره مشوره ورکړي.

آزيرو له ناپوهۍ داسې غوسه شو، چې زه يې له خپلې کېږدۍ و ايستم، ما غوښتل چې ستون شم، خو بيا يې هم زما مخه ونيوله.

بې له دې چې د سولې په هکله خپل پريکنده نظر ورکړي، زه څو ورځې نور هم د هغه په اډه کې پاتې شوم.

خپل وخت مې د ناروغانو او ټپيانو په درملنې تېراوه، په تېره بيا هغه ښځې مې معالجه کولې، چې د هاتي افسرانو به پرې تېرى کړى و.

ځينې پکې داسې وې، چې پو هېدم حتماً مري، هغوى ته به مې اپيم ورکول، چې له درداو عذاب پرته په ښکلي خوب کې مړې شي او د ژوند له شکنجو وژغورل شي.

په هغو درملو کې چې په مصر کې د وژلو لپاره کارول کېږي، يو هم د اپيمو په شان اغېزناک نه وي، ځکه يوازې اپيم او نور اړونده شيان يې کولاى شي، يو کس له کړاوه پرته په خوب کې بلې دنيا ته بوځي. له همدې امله بايد اپيم د مېرمنو ،ځوانانو ،ماشومانو او هغو کسانو لاس ته ورنه شي چې نهيلي دي او غواړي ځان ووژني.

له دې سره سره چې د آزيرو په اډه کې د اوسېدو په وخت مې ناروغان او ټپيان او هغه مېرمنې معالجه کړې، چې د هاتي افسرانو پرې حمله کړې وه او ځينې مې د مرګ په خوب ويده کړل ، بلکې په دې موده کې مې يو شمېر مصري اسيران هم آزاد کړل.

يوه شپه دوو تنو نيت درلود چې آزيرو ووژني.

آزيرو يو پکې وواژه او بل د هغه د زوى له لوري ژوبل شو .

پر بله ورځ آزيرو زه ور وغوښتم ، او له دې وروسته چې په سر کې يې يو څه خلق تنګي وکړه، خو بيا يې وويل زه چمتو يې چې له فرعون سره سوله وکړم.

پر همدې ورځ له يوې خوا د مصر د فرعون او له بلې خوا د سوريې د پاچاهانو او آزيرو له لوري د سولې تړون برابر شو او د سوريې د نورو پاچاهانو له لوري آزيرو هغه لاسليک کړ.

د نوموړي تړون لـه مخې غزه لـه مصر سره پـاتې شوه او فرعون د غلو او ډاکوانو د

ختمولو لپاره هېڅ ډول مسولیت ونه مانه، خو موافقه یې وکړه، چې مصري اسیران به له آزیرو اخلي.

په تړون کې ولیکل شول، چې دغه تړون به تل د فرعون او آزیرو ترمنځ معتبر وي او ددې لپاره چې تړون دوامداره پاتې شي، هغه یې د آتون په ګډون د زرو مصري خدایانو او زرو سوري خدایانو تر ملاتړ لاندې راوست.

کله چې د متې ختې پر لوحو دغه تړون ولیکل شو آزیرو غوښتل هغه مهر کړي

کله چې یې پر لوحې مهر لګاوه ځان یې داسې غمجن وښود، چې ته وا ددغه تړون په لاسلیک کولو سره یې لوی تاوان کړی دی.

ما چې هم پر تړون لاسلیک وکړ، ګرېوان مې وشکاوه او نارې سورې مې جوړې کړې، چې آزیرو پوه شي، زه پر دغه تړون ډېر خپه یم ځکه د مصر په تاوان دی، خو په زړه کې هم زه او هم دی خوشحاله و.

کله چې ما غوښتل مصر ته حرکت وکړم آزیرو ډېرې ډالۍ راکړې، ما هم ورته وویل، چې کله مصر ته ولاړ شم په لومړنۍ مصري کشتۍ کې به، چې له سولې وروسته د غزې پر لوري راځي، د هغه لور او زامنو ته ډالۍ را واستوم.

د روانېدو پر وخت آزیرو په غېږ کې ونیولم او خپل کلک ملګری یې وبللم.

ما هم د هغه زوی په غېږ کې ونیو او ښکل مې کړ، خو دواړه پوهېدو، چې د سولې دغه په نامه تلپاتې تړون د هغې ختې په اندازه ارزښت نه لري چې تړون پرې لیکل شوی دی.

آزیرو د هاتي له ویرې مجبور شو، چې دغه تړون لاسلیک کړي او فرعون د خپل خدای آتون په ټینګار د غه موافقه وکړه.

خو د تړون دوام په هاتي پورې اړوند و او که هاتي په راتلونکي کې د آزیرو لپاره خطر پېښ نه کړي، هغه به تړون مات کړي او د مصر پر خلاف به جنګ پیل کړي

پر هاتي سربېره د کرت د پاچا وضیعت هم پر جنګ باندې خپله اغېزه درلوده، ځکه که د کرت سمندري ځواک د مصر ملاتړ ونه کړي او مصري بېړۍ ونه کړای شي غزې ته غنم ،سره وسپین او وسله یوسي نو هغه کسان چې په غزه کې جنګېدل هغوی به تسلیم شي.

آزیرو د تړون له لاسیک کولو وروسته ما ته وویل، خپل پوځ به رخصت کړي او ما ته به یوه ډله عسکر راکړي چې (غزې) ته مې ورسوي

دغه راز آزیرو ددې ډلې د عسکرو د قوماندان په لاس په غزه کې خپلو عسکرو ته یو

لیک واستاوه، چې د غزې محاصره پای ته ورسوي، ځکه چې سوله شوې ده.

کله چې موږ غزې ته ورسېدو او زما سترګې د غزې پر دېوالونو ولګېدې، پوه شوم، چې آزیرو د غزې د نیولو لپاره ولې دومره ټینګار کاوه، او یا یې غوښتل چې دېوال یې وران کړي.

د غزې دېوال یو پیاوړی جنګي ډال یا کلاوه.

له دې سره سره چې د آزیرو له لوري له ډېرې مودې راهیسې غزه کلابنده وه، خو محاصره شویو کسانو د سمندر له لارې خواړه ترلاسه کول او مقاومت یې کاوه.

له دې کبله چې زه د مصر د پاچا استازی او په داسې حال کې چې د خرما د ونې څانګه مې پر سر ښوروله، غوښتل مې ښار ته ننوځم. خو ددې پر ځای چې د ښار دروازه راته خلاصه کړي د غشو داسې باران راباندې جوړ شو، چې تصور مې وکړ، د ژوند وروستۍ شېبې مې دي.

تر دې وړاندې چې د غزې کلا ته نژدې شو، د آزیرو عسکرو ستر ډالونه اخیستي ول، موږ یې لاندې پټ کړي و، ګني وژل مو حتمي و.

ان له دې وروسته چې ما ځان په لوړ غږ معرفي کړ، د غزې د ساتونکو قوماندان وویل، موږ به و نه غولېږو او په هېڅ پلمې او عذر به دروازه در خلاصه نه کړو.

که دغه سړی (سینوهه) د فرعون استازی وي موږ به یې په یوه زنبېل کې پورته د دېوال سرته کش کړو.

همدا کار یې وکړ او په داسې حال کې چې د آزیرو عسکرو خندل، زه یې په زنبیل کې د دېوال او کلا سر ته وخېژولم.

د غزې د دفاع کوونکو قوماندان وویل، ما له سریانیانو دومره درواغ او چلونه لیدلي او اوریدلي، چې پر هېڅ شي باور نه کوم.

په دې وخت کې پوه شوم چې څنګه غزې تر دې وخته د آزیرو د عسکرو پر وړاندې مقاومت کړی دی. ځکه چې د ساتونکو قوماندان او نور موجود خلک ډېر زړه ور او هوښیار کسان ول چې نه غولېدل او نه له سریانیانو څخه وېرېدل.

له هغه ځایه یوې کشتۍ، زه د مصر لور ته بوتلم.

کله چې نیل ته ورسېدم او د مصر او سیدونکي خبر شول، چې په سوریه کې سوله شوې، ډېر خوشحاله شول.

ممفیس ته له ننوتو وروسته زه اند ښمن وم او ډارېدم چې هورم هب پر ماغوسه نه شي
او وبه وایي چې د سولې د تړون لاسلیک کول د مصر د ګټو پر خلاف دی، خو هغه مې هم
خوشحاله ولید.

معلومه شوه، چې د کرت سمندري ځواکونه نور د مصر د کشتیو ملاتړنه کوي او د
هغوی کشتۍ بېرته کرت ته ستنې شوي دي.

نو که په غزه کې جنګ دوام کاوه، غزه د دښمن لاسته لوېده.

هورم هب هم نور نه شو کولای چې د سمندر له لارې دې ښار ته خواړه او وسله
ولېږدوي، ځکه چې د سوریې جنګي کښتیو د مصر هغه بېړۍ، چې غزې ته یې خواړه او
وسله لېږدوله ډوبولې.

له همدې امله هورم هب پر دې خوشحاله و، چې سوله وشوه او غزه له مصر سره پاتې
شوه.

سمد ستي یې څو بېړۍ خواړه او عسکر د غزې د پوځ د پیاوړتیا لپاره واستول، د
غزې پارتیزانان او چریکان چې په صحرا کې ول هغوی یې هم مضبوط کړل.

په هغو شپو ورځو کې چې زه په ممفیس کې وم، د بابل د پاچا بورابوریاش له لوري یو
استازی مصر ته راغلی.

ما پخپلې بېړۍ کې چې درباري بېړۍ وه سپورکړ او یو ځای د فرعون دربارته ولاړو.

له دې کبله چې د بابل استازی یو بوډا او پوه سړی و، په لاره کې ما د هغه له خبرو په
تېره بیا د ستورو، فال بینۍ او د راتلونکو پېښو له اټکلونو خوند اخیست.

د بابل استازي ویل، زه د هاتي له دیره کړای شوي ځواکه ډارېږم، فکر کوم هاتي به له
دې وروسته نور هم پیاوړی شي، خو د هاتي قدرت هم یو حد لري، ځکه چې د بابل
ستورپېژاندو اټکل کړی دی، چې یوه پېړۍ وروسته به د هاتي قدرت په ځوړتیا شي.

له لوېدیځه به وحشي او سپین پوستي قبایل روان شي او د هاتي قدرت به له منځه
یوسي.

د بابل منجمینو نه دي ویلي، چې په کومه نېټه به دلوېدیځ تاتوبي وحشي او سپین
پوستي قبایل د هاتي د ختمولو لپاره وخوځېږي، خو ددې پېښې په پېښېدا کې شک
نشته.

زه په دې خبرې حیران شوم، ځکه چې پوهېدم په لوېدیځ کې له سمندر او تاپوګانو

پرته بل څه نشته.

په دې مې سر نه خلاصېده چې څنګه وحشي قبایل له هغه ځایه راځي او د هاتي قدرت له منځه وړي.

خو په دې پوهېدم چې د بابل منجمین سم اټکل کوي ځکه چې ما په خپله په بابل کې له هغوي د اسې شیان کتلي وو چې زه یې هک پک کړی وم.

بیا د بابل سفیر وویل هغه پېر او دور، چې موږ پکې ژوند کوو پای ته رسیدلی دی له دې وروسته بل پېر پیلیږي او په نوي پړاو کې دنن ورځې ځینې ملتونه له منځه ځي هماغه ډول چې دمیتاني ملت دهاتیانو په وسیله له منځه لاړ او هغه خدایان چې نن سبا واک چلوي هغوي به هم له منځه لاړ شي او نور خدایان به یې ځاي ونیسي.

بیا یې له ما د آتون په هکله پوښتنه وکړه، ما وویل، آتون هغه خدای دی، چې د مصر فرعون ته څرګند شوی دی، هغه ته یې دنده سپارلې، چې په مصر کې مساوات ټینګ کړي، د بېوزله او بډای توپیر له منځه یوسي او له جنګ سره پرېکړون وکړي.

کله چې ما دغه خبرې کولې د بابل استازي خپله سپینه ږیره موښله او بیا یې وویل، زه خیال کوم چې ددې خدای ظهور ددې پېر د پای ته رسېدا یو دلیل دی، ځکه چې تر اوسه پورې هېڅا دغسې عجیبه او خطرناکه عقیده نه ده درلودلې.

ددې عقیدې پیدا کېدل ددې پېر د ختمېدا لپاره کفایت کوي.

# څلوېښتم څپرکی

## د فرعون د وژلو هڅه

زه چې د مصر په دربار کې نه وم، د فرعون سردرد سخت شوی و او د هغه پر روح اند ښننه واکمنه شوې وه.

د آتون د معبد ستر کاهن آمي ددې لپاره چې فرعون آرام کړي، فیصله وکړه، چې د محصول له ترلاسه کولو وروسته کله چې نیل مستېږي او اوبه راخېژي نو د فرعون لپاره د ېرش کلن جشن جوړ کړي.

فرعون تر د یارلسو کلونو ډېر حکومت نه و کړی، خو دا چې د ېرش کلن جشن ورته جوړېږي کومه ستونزه نه وي، ځکه چې له ډېرې مودې راهیسې په مصر کې دود داسې و، چې فرعون کله وغواړي نو کولای شي د خپلې واکمنۍ د ېرش کلنۍ جشن جوړ کړي.

کله چې زه مصر ته نتوتم محصولات ټولېدل او کروندګر، د غلو دانو د پریمانۍ له امله تر پخوانیو کلونو څه نا څه خوشحاله ښکارېدل څه ناڅه خوشحاله ددې لپاره وایم چې بېخي خوشحاله هم نه ول، ځکه چې دغنمو دانو د پخوا په شان سرې ننبې او تاپې درلودې او کلیوالو همغه شان په وحشت او ډار سره غنم مصرفول.

زه ورستون شوم د مصر سوداګر د آزیرو او فرعون ترمنځ د سولې پر تړون ډېر خوشحال ول، ځکه چې ددې معاهدې له امله د مصر او سورېې ترمنځ بیرته سوداګري پیلېده.

له سیاسي پلوه مصر ته د بابل د استازي سفر ډېر اهمیت پیدا کړ، ځکه چې د بابل سفیر د خپل پاچا بورابوریاش، یوه خور له ځان سره راوستله، چې د فرعون ښځه شي او غوښتل یې له فرعونه وغواړي چې خپله یوه لور بورابوریاش ته ورکړي.

فرعون ته د نجلۍ ورکول او له فرعونه د لور غوښتل دا ښکاره کوله چې د بابل پاچا نیت لري، د هاتي د خطر پر وړاندې له فرعون سره متحد شي.

کله چې مصریان خبر شول چې د بابل پاچا د فرعون لور د خپلې مېرمنې په توګه

غوښتې ده، نو حيران او هک پک شول، ځکه چې د پخوانيو دودونو پر اساس د فرعون د کورنۍ د غړيو سپيڅلې وينه بايد له بهرنيو وينو سره يو ځای نه شي.

خو فرعون پر دې ورانديز خپه نه شو، البته زه پوهېدم چې په باطن کې ډېر خواشينی دی، چې لور به يې له مصره لېرې شي او بابل ته به ولاړه شي.

ځکه چې فرعون ته ياد دي چې په وارونو وارونو د ميتاني شهزادګۍ د دې لپاره چې د مصر د فرعون ښځې شي مصر ته راغلې او دلته مړې شوې دي، نو ډارېده چې د هغه لور به هم په بابل کې مړه شي. له دې سره سره يې د بابل له پاچا سره دوستي دومره مهمه ګڼله چې له دې فدا کارۍ سره يې موافقه وکړه.

خو هغه نجلۍ چې بايد د بورابورياش مېرمن شوې وای دوه کلنه وه او فرعون د بابل سفير ته وويل چې خپله لور به په مصر کې د بابل پاچا ته ځانګړې کړي او د بابل سفير له يوه لوري او فرعون به له بل لوري، د بابل د پاچا او د فرعون د لور په استازيتوب منګۍ مات کړي، چې بورابورياش پوه شي د فرعون لور د هغه مېرمن ده او کله چې پيغله شوه، هغه به بابل ته واستوي.

د بابل سفير دغه حل لاره ومنله.

کله چې زه د افق ښار ته ولاړم فرعون د سر له خوږو کړېده، خو له آزيرو سره د سولې د تړون لاسليک کول او دغه راز د بابل او مصر د اتحاد خبرې پر فرعون ښه اغېزه وکړه او هغه يې د پاچاهۍ د ډېرشمې کليزې په جشن کې د ګډون لپاره چمتو کړ.

د آتون د معبد ستر کاهن آمي په ډېر پرتم سره د اخناتون د سلطنت ډېرش کلن جشن جوړ کړ او د مصر د جنوبي برخې او سېدونکو ته يې بلنه ورکړه، چې خپل استازي په دې جشن کې د ګډون لپاره را واستوي

هغوی هم خپل استازي راواستول چې پر برګو خرو (ګوره خر) او زرافو سپاره ول.

ځينو استازو کوچنۍ بيزوګانې په لاس کې درلودې، چې د هغو په لاسونو کې هم طوطيان ول.

د مصر د جنوب اوسېدونکو له ځان سره مريبان راوستي ول، چې هغوی فرعون ته ددې سيمې د اوسېدونکو له لوري ظاهراً طلا، د فيل عاج، او له خاصو لرګيو او د شتر مرغ له بڼکو جوړ صندوقونه فرعون ته ډالۍ کړل.

خو زه پوهېدم، چې آمي دغه شيان د فرعون له خزانې ايستلي دي او په نمايشي توګه

یې د مصر د جنوبي برخې او سپډونکو ته ورکړي، چې فرعون ته یې ورکړي او خلکو هغه صندوقونه چې مریبیانو په سرونو ایښي ول، یو بل ته ښودل او ویل یې چې دغه صندوقونه له سرو زرو ډک دي، خو زه خبروم چې صندوقونه تش دي.

فرعون په دې دوکې خبرنه شو او خیال یې وکړ چې په رښتیا د مصر د جنوب او سپډونکو دغه ډالۍ ورکړې دي.

دی د هغوی د وفادارۍ له کبله او بیا داچې ډېر شتمن دي خورا خوشحال شو، ځکه چې که شتمن نه وای دغسې ډالۍ یې نه شوای ورکولای.

خو د بابل د سفیر ډالۍ حقیقي او ګران بیه وې او د فرعون د سلطنت د ډېرشمې کلیزې لپاره د کرت او آزیرو له لوري هم استازي راغلي ول.

د کرت سفیر څو دانې میناګانې او د طلا جامونه چې په ډېره ښکلې بڼه جوړ شوي ول، فرعون ته ور کړل او دغه راز د خوندورو نباتي غوړیو څو منګي یې هم فرعون ته ډالۍ کړل چې یوازې په کرت کې جوړېږي او ډېر ښه ورږم او بوی لري

آزیرو هم ډالۍ راستولې وې، ځکه چې تمه یې کوله د فرعون له لوري به هم ډالۍ ترلاسه کړي او پردې سر بېره یې غوښتل د خپل استازي په مرسته چې ډالۍ یې لېږدولې د مصر حالات وڅېړي

دغه راز ده غوښتل معلومات ترلاسه کړي او پوه شي چې د فرعون د لېونتوب او ناروغۍ آوازه څومره سمه ده ؟(ځکه چې اوریدلي یې و فرعون لېونی دی )

د جشن له تشریفاتي مراسمو وروسته اخناتون له خپلې دوه کلنې لور سره د آتون معبد ته ولاړ او زه هم ورسره ملګری شوم.

په معبد کې فرعون خپله لور د بابل د سفیر ترڅنګ ودروله او بیا ستر کاهن د مېړه او ښځې ترمنځ د پخواني دود پر اساس د فرعون د لور او د بابل د سفیر ترمنځ منګی مات کړ.

کله چې منګی مات شو ما ولیدل چې د آزیرو د سفیر څېره له ډېر خپګانه تکه شنه شوه، ځکه هغه پوهېده چې د منګي د ماتولو مفهوم دا دی چې له دې وروسته به د مصر او بابل سلطنتي کورنۍ سره متحدې شي.

که آزیرو پر مصر حمله وکړي، د بابل پاچا به د فرعون په مرسته د آزیرو پر خلاف په جنګ کې ورګډ شي.

کله چې منګی مات شو کوچنی نجلۍ تیته شوه او د منګي یوه ټوټه یې پورته کړه او ټولو دغه مسله په نیک فال وګڼله.

خلکو وویل په راتلونکې کې به دا ډېره نیکمرغه مېرمن شي.

کله چې له معبده ستانه شو ما فرعون اړیست چې په بستري کې څملي، خو هغه لا هیجاني و او په بستر کې نه شو پاتې کېدای.

ما هغه ته مسکن درمل ورکړل، چې وېره او اضطراب یې ختم شي، خو درملو پرې اغېز نه کاوه او نه ویده کېده، له بستري به پورته شو او ویل به یې سینوهه..... !

نن زما د ژوند تر ټولو ښه ورځ ده، ځکه چې ګورم آتون پخپل ځواک سره په مصر کې دا ټول خلک رامنځته کړي، کلي او ښارونه یې جوړ کړي، کروندې یې شنې کړې او د نیل په روانو اوبو یې خړوبې کړې دي.

کله چې به فرعون لاس د آسمان لور ته پورته کړ، داسې به یې ښوراوه چې ته وا د لاس په ښورولو سره بدبختي او تورې تیارې له منځه وړلای شي.

ده به ویل: اې آتونه! ته د ورځې له پلوه لکه لمر پر ځمکه ځلېږې او ټولې سترګې تا ته ګوري، خو دومره ځلاند یې چې هېڅوک نه شي کولای نېغ په نېغه تا ته وګوري

او که وګوري ستا د رڼا له کبله به ړوند شي، خو کله چې ناڅرګند شې، شپه را ورسېږي او خلک تا ونه ویني، نو سترګې پټې کړي چې ویده شي، هغه وخت تر ورځې هم په ځلانده توګه زما پر زړه رڼا خپروې.

فرعون داسې هیجاني شوی و، چې ما یې د زړه د درزېدا غږ واورېده.

ده له ډېر هیجانه وژړل، بیا یې لاسونه پورته کړل او په ډېر شور او زوږ یې د آتون لپاره دغه سندره ولوستله:

داسې څوک نشته چې تا په ریښتینې ډول وپېژني.

یوازې ستا زوی اخناتون تا پېژني.

او ته، تل د هغه پر زړه ځلېږې او د شپې مهال هم د ورځې په شان رڼا او ځلا لرې.

ته پخپلو مقصدونو یوازې خپل زوی آخناتون پوهوې.

نړۍ ستا په لاسونو کې ده.

او همغسې ده چې تا پنځولې او تل به یې اداره کړې.

(کله چې ته راخېژې انسان ژوندی کېږي.

او کله چې غروب کوي انسان هم مري.
يوازې ته د انسان د ژوند له معيار سره مينه کوې
او انسان له تا پرته د ژوند کولو توان نه لري.)

فرعون دغه شعرونه داسې په خلوص شور او زوړ سره ويل چې پر ما يې هم اغېز کاوه.

خو له دې کبله چې زه ډاکټر وم تر نيمې شپې مې، د هغه سندرې نه شواى اورېدلى او په هر ډول چې کېده، هغه مې په بسترې کې څملاوه، بيا هم نه ويده کېده، خو ما نه پرېښود چې پاڅېږي.

زه پر دې شپه د فرعون پر بسترې د هغه په شان ويښ وم.

فرعون سهار وختي له خوبه پاڅېده او د خوب له ځايه راووت، باغ ته ولاړ، هلته يې چکر وواهه کله به د باغ په منځ کې ستر حوض ته نژدې شو او د هيليو الوت ته يې کتل.

کله چې د ورځې يوه څلورمه برخه تېره شوې وه، ددې حوض تر څنګ دوو تنو پر فرعون حمله وکړه چې هغه ووژني.

هلته د سلطنتي مانۍ ساتونکي موجود نه ول، يوازې د توتمس يو شاګرد د حوض تر څنګ د هيليو انځور ايست، ځکه توتمس ټينګار کاوه چې د هغه شاګردان بايد ځناور له پخوانيو رسمونو څخه نه، بلکې د ژويو له حقيقي څېرې څخه انځور کړي.

دغه انځورګر وليدل چې دوه تنه د فرعون د وژلو نيت لري، نو ځان يې د هغوى په مخکې واچاو او په نارو او اوازونو يې د فرعون ساتونکي را وبلل.

د انځورګر مداخله ددې سبب شوه، چې فرعون له مرګه وژغورل شي، يوازې يو ولى يې ټپي شو، خو انځورګر مړ شو او د هغه وينې د فرعون جامې سرې کړې.

کله چې زه ورغلم، د فرعون ټپ معاينه کړم او ويې ترم هغه دوه کسه مې وليدل.

يوه سرخريلى و، پر مخ و سر يې تېل موښلي ول او ما حدس وواهه چې بايد د پخواني خداى مريد وي.

بل دوه غوږونه نه درلودل او داسې ښکارېده، چې پخوا يې کوم جرم کړى دى او له همدې امله يې دواړه غوږونه ترې پرې کړي دي.

د مانۍ ساتونکي هغه دوه کسان وتړل او ددې لپاره چې پوه شي څه ډول او ولې يې د فرعون د وژلو هڅه وکړه هغوى يې ووهل.

خودغو دوو کسانو بې له دې چې له درده شکايت وکړي، بې له خندا يې د پخواني

خدای آمون نوم اخيست او زه پوه شوم چې د آمون کاهنانو دغه دوه تنه پخپل مرموز څواک سره د درد پر وړاندې بې حسه کړي دي.

د فرعون د وژلو لپاره پر هغه د دغو دوو تنو حمله داسې پېښه وه چې په مصر کې يې ساری نه درلود.

له هغې ورځې چې مصر رامنځته شوی او فرعونيانو پرې واکمني کړې ده، تر دې ورځې پورې داسې پېښه نه ده شوې، چې يو څوک دې په ښکاره د فرعون د وژلو لټه وکړي.

که څه هم د ځېر فرعونيان پخپلې مانۍ کې په زهرو سره وژل شوي دي او ځينې د شپې مهال په پړيو خپه شوي دي، يا دا چې جمجه يې په دې پلمه سپړلې چې ګنې ناروغان دي او د سر کوپړۍ يې سوري کولو ته اړتيا لري، چې بالاخره دوی ورڅخه مړه شوي دي.

خو ټول دغه جنايتونه او وژنې په پټه په سلطنتي مانۍ کې دننه شوي او تل د وژل شوي فرعون مرګ طبيعي مرګ ښودل شوی دی.

هېڅکله داسې نه دي شوي، چې په مصر کې دې، په ښکاره چا پر فرعون حمله کړې وي او د هغه د وژلو لټه دې کړې وي.

د بابل سفير په حقه و، چې ويل يې زموږ پېر بدلېږي او نوی پېر پيلېږي او د نوي دوران د پيلېدا يو چې انکار ترې نه کېږي دا دی چې په ښکاره پر فرعون حمله وشوه.

له هغو دوو کسانو څخه يې د فرعون په مخکې پوښتنې کولې چې ووايي چا دنده ورسپارلې وه، چې فرعون ووژني، خو هغوی ځواب نه ورکاوه.

ساتونکو دغه کسان په متروکو وهل چې هغه څوک وروښيي چې دوی يې دې کار ته پاورلي دي، خو هغوی په پرله پسې ډول د آمون نوم اخيست او د فرعون پر نوي خدای آتون يې لعنت وايه.

دوی اخناتون ته ويل: اې د دروغو فرعونه! ته به ډېر ژر د خپلو اعمالو له کبله سزا شې او تر قيامته به ملعون وې.

دغو دوو کسانو تر دې حده پر فرعون لعنت وايه چې بالاخره فرعون غوسه شو او امر يې وکړ، چې هغوی دواړه شکنجه کړي.

خو شکنجې، حتي د هغوی د غاښونو ايستلو پر هغوی اغېزه ونه کړه او همغه راز يې آتون ته ښېراوې کولې، ويل يې، اې د دروغو او کاذب فرعونه ته خيال کوې، چې موږ له

تا او ستا له ملعون خدایه وېرېږو.

موږ هغه کسان یو چې پر حقیقي خدای آمون عقیده لرو او څوک چې پر آمون عقیده ولري، هېڅ ډول درد نه احساسوي.

کله چې فرعون پوه شو هغوی هېڅ ډول درد نه احساسوي، نو د هغوی له شکنجه کولو پښېمانه شو او ساتونکو ته یې وویل، هغوی خوشې کړيء، ځکه همغه ډول چې درد نه احساسوي، په دې هم نه پوهېږي چې څه کوي.

خو کله چې یې هغه دوه تنه خوشې کړل نو یې ورته وویل ، تاسې ازاد یاست ، هر چیرته چې مو زړه غواړي تللی شئ.

هغوی فرعون ته ښکنځلې وکړې او ویې ویل اې دروغجن او چلباز فرعونه ! موږ ووژنه چې تلپاتې ژوند ته ورسېږو او تل له آمون سره ژوند وکړو.

کله چې هغوی ولیدل د ماڼۍ ساتونکي یې په زور باسي، نو ځانونه یې خوشې کړل او سرونه یې په زور پر دېوال ووهل، چې په دې ډول هغوی مړه شول.

پر دې ورځ زه پوه شوم پخوانی خدای آمون له دې سره سره چې د فرعون له لوري نسکور شوی ، خو بیا هم څومره قدرت او نفوذ لري او څه ډول پخپل نفوذ سره د خلکو پر روح حکومت کوي.

له دې ورځې وروسته ټول پوه شول چې د فرعون ژوند ته خطر پېښ دی او که د هغه ساتنه ونه شي نو و به وژل شي.

له همدې ورځې وروسته د فرعون ملګري او ساتونکي تل له فرعون سره ول، حتي کله چې به هغه پخپل باغ کې چکر هم واهه، دغه کسان به ورسره سم ګرځېدل او له هغه څخه به نه بېلېدل.

دغې نا کامې حملې چې خلک پرې خبر شول د آتون او آمون د پلویانو تر منځ تعصب نور هم سخت کړ او که به د هر لوري وس ورسېد پر بل هغه یې له زور زیاتي څخه مخ نه اړاوه.

د فرعون د سلطنت د دېرشم کال په جشن کې (چې په حقیقت کې د هغه د باچاهۍ دیار لسم کال و. ) په طبس کې خلک د زرافو ،برګو خرو ، طوطیانو او بیزوګانو په لیدو خوشحاله نه شول.

دغه راز په لارو کوڅو کې جنګونه وشول او هر څوک چې به یې د حیات له صلیب سره

کتل، وهل به یې او د آتون دوه تنه کاهنان چې د خلکو په منځ کې ګیر شوي ول ووژل شول.

تر ټولو بده خبره دا وه چې بهرنیو استازو وکتل، چې پر فرعون ناکامه حمله شوې او ویې لیدل چې د مصر خلکو د خپلو پخوانیو دودونو پر خلاف په ښکاره د فرعون د وژلو لټه کړې، نو هغوی پوه شول چې فرعون هم د نورو خلکو په شان دی، کېدای شي هغه ووژل شي کولای شي هغه ووژني او که ووژل شي کومه پېښه نه کېږي او نړۍ به ورانه نه شي.

زه باور لرم چې د آزیرو سفیر پر دې سربېره چې د خپل پاچا لپاره یې له فرعون څخه ښکلې ډالۍ ترلاسه کړې وې، دغه راز یې د آزیرو لپاره په زړه پورې خبرونه هم ټول کړي ول.

ما هم د آزیرو لپاره یوه ډالۍ واستوله او د زوی لپاره مې ورته د لوبو یو شی واستاوه. دغه لوبتکه یو شمېر نیزه لرونکي او غشي ویشتونکي عسکر ول، چې د آمون د پخواني معبد صنعتګرانو له لرګي جوړه کړې وه.

ما ورته وویل، ددې لوبتکې نیمایي مجسمې د سوریې د عسکرو په شان رنګ کړي او نیمایي نور د هاتي د عسکرو په شان رنګ کړي، چې د آزیرو زوی وکړای شي دغه دوه ډلې عسکر سره وجنګوي او لوبې پرې وکړي.

د آمون د پخواني معبد کارګرانو دغسې کارونه ددې لپاره کول، چې وزګار ول او د ژوند د تېرولو لپاره یې دې ډول کارونو ته هم غاړه کېښوده.

پخوا ددې کارګرانو دنده دا وه چې د شتمنو لپاره یې له لرګي څخه بېړۍ او نوکران جوړول، چې هغوی یې پخپلو قبرونو کې کېښودې. د دوی باور دا و چې دغه شتمن چې کله له مرګه وروسته د لوېدیز ټاټوبي ته د تګ لپاره په بېړیو کې سپاره شي نو له لرګي جوړ نوکران به یې خدمت کوي.

خو له دې وروسته چې آمون نسکور شو، په قبرونو کې د لرګینو نوکرانو او کشتیو د اېښودلو دود هم له منځه ولاړ.

له دې سره د آمون د معبد دغه کارګران مجبور شول چې د ماشومانو لپاره له لرګي څخه د لوبو شیان او عسکر جوړ کړي.

فرعون چې له ناکامې حملې روغ رمټ ووت، نو داسې فکر یې وکړ چې دغه حمله د آتون له لوري یو اعلان او اخطار و، چې هغه د نوي خدای د عقېدو د خپراوي لپاره نورې

هلې ځلې هم وکړي.

د لومړي ځل لپاره د غچ خوند (البته غچ د آتون لپاره، نه د هغه لپاره) د هغه په خوله کې خوندور ښکاره شو او د نوي خدای د عقیدو د خپراوي لپاره یې حکم وکړ چې د پخواني خدای ټول کاهنان له منځه یوسي او د آمون ټول پلویان کانونو ته واستوي.

څرګنده خبره ده چې له دې سره د تل په شان بېوزلې ،سادګان ، او کمزوري کسان د فرعون د ظالمو او خونړیو مامورینو په منګولو کې ګیر شول.

خو د آمون یو کاهن هم ونه نیول شو ، ځکه چې هغوی په داسې ځای کې ژوند کاوه، چې د چا لاس نه ور رسېده.

د فرعون ظالمان او خونړي مامورین پوهېدل، چې د آمون د معبد کاهنان ډېر پلویان او سرښندونکي عسکر لري، نو ددې لپاره چې فرعون ته ځان وفادار وښيي د بېوزلو او کمزورو کسانو نیول او ځورول یې پیل کړل.

بېګناه کسان به یې په دې جرم نیول چې ګني د آمون نوم یې اخیستی دی ، دوی به یې کانونو ته استول او هر ځل چې به یوه ډله بېګناه کسان کانونو ته واستول شول د فرعون پر خلاف به د خلکو غوسه او دښمني نوره هم سخته شوه.

دوی به په زړه کې له پخواني خدای آمون څخه غوښتل، چې فرعون مړ کړي چې د هغه له ظلم او کړاوه خلاص شي.

فرعون زوی نه درلود چې له هغه وروسته د مصر فرعون شي، نو خپلې دوه لونې یې د مصر دوو لویو کسانو او اشرافانو ته ورکړې.

په دې ډول چې د(مریتاتون )په نوم خپله یوه لور یې د (سمن خکر ) په نوم یوه ځوان ته ورکړه، چې په دربار کې یې خدمت کاوه.

دغه ښکلي او دښې وینا څښتن ځوان د آتون یو متعصب پلوی و ، هغه به هم د فرعون په شان کله نا کله بېهوشه شو او په دې وخت کې به یې داسې تصور کاوه چې آتون ګوري او غږ یې اوري.

کله چې فرعون سمن خکر داسې مومن او پر آتون مین ولید ، تر دې حده یې خوښ شو ، چې کله یې لور ورکړه ، نو تاج یې هم د هغه پر سر کېښود او هغه یې خپل ځای ناستی کړ.

فرعون وویل له ما وروسته به سمن خکر د مصر پاچا وي.

فرعون خپله بله لور ( آنکس تاتون )پوه بل یوولس کلن هلک ته ورکړه چې(توت )

نومېده.

نوموړی د مصر د يوه خان زوی و او له دې وروسته چې توت د انکس تاتون ورور (يعني دهغې مېړه ژباړن ) شو ، د سلطنتي غوجلې مشري يې هغه ته ورکړه.

توت هم د فرعون د بل زوم په شان ښکلی و ، خو ډېر تنبل او سست و ، تل يې غوښتل ويده وي او چې راويښ به شو ، له نانځکو سره به يې لوبې کولې او تل به يې خواږه غوښتل.

لکه څرنګه چې زه پوهېدم فرعون دوه فرمانبرداره او بې ارادې ځوانان د زومانو په توګه غوره کړل.

فرعون ځکه دغه کار وکړ چې په راتلونکي کې د هغه د نظر پر وړاندې مقاومت ونه کړای شي او هر څه چې دی وايي هغوی به يې بې له جنجاله مني.

زه فکر کوم دري شيان ددې سبب شول چې فرعون خپلې دوه لونې دغو ځوانانو ته ورکړې.

لومړی دا چې دواړه د آتون صميمي مومنان وو.

دويمه خبره دا چې هر يو د مصر د يوې مخورې کورنۍ غړی و چې ګڼه کورنۍ هم وې او ددې کورنيو اصلي څانګې حسابېدې.

فرعون په دې اړيکه سره د مصر دوه سترې او مخورې کورنۍ له سلطنتي کورنۍ سره نژدې کړې.

درېيمه دا چې دواړو د فرعون پر وړاندې هېڅ اراده نه درلوده او د مصر د پاچا پر خلاف يې کوم کار نه شو کولای.

دغو دوو پيوندونو د اخناتون د کورنۍ اړانه مضبوطه کړه ، خو له بده مرغه د آتون د خدای په اړه د فرعون له حده زيات تعصب او د هغه د ظالمو او بې رحمه مامورينو سخت چلند په افق ښار کې خلک ډېر په تنګ کړي ول.

کله چې به زه له کوره وتم او په روان تخت کې به له کوڅو او واټونو څخه تېرېدم ، پوهېدم چې کوڅې خاموشې دي

په سر کې د کوڅو په خاموشۍ پوه نه شوم ، خو وروسته پوه شوم چې د کوڅو چوپتيا له دې امله ده ، چې نه پکې د خلکو خندا او نه په لوړ اواز خبرې شته او نه هم له عمومي کورونو څخه د موسيقۍ غږ اورېدل کېږي او ښار د مړيو د کور په شان په خاموشۍ او سکوت کې ډوب دی.

هر څوک چې پر سړک او يا کوڅه کې ګرځي ښي، او کيڼې خوا ته په تر هېدلو سترګو ګوري، چې د مامورينو له عسکرو سره مخامخ نه شي. دوی وېرېدل هسې نه لاره به يې بنده کړي او سره و سپين به ورځخه غواړي چې که يې ورنه کړي نو تور به پرې پورې کړي چې پر آمون عقيده لري او کانونه ته به يې واستوي.

وروسته وحشت او ترهه په خلکو کې دومره واکمنه شوه، چې حتى له کورونو بهر نه راوتل.

کله به ما په کور کې غوږ ونيو چې د ښار غږ واورم، خو پوهېدم، ښار دومره غلی دی، چې د اوبو د ترازو (ساعت) له غږه پرته بل څه نه اورېدل کېږي.

يوازې د ترازو غږ به شاهدي ورکوله، چې ژوند دوام لري، خو داسې ښکارېدله چې دغه د اوبو ترازو (ګړۍ) وايي چې زه ددې پړاو وروستۍ شېبې شمارم.

په رښتيا چې د افق ښار مړ شوی دی او که کوم وخت به يوه جنګي ګاډۍ له واټونو تېرېده، نو غږ به يې دومره زيات و، چې د تالندې د غږ په شان به يې په غوږونو کې انګازې کولې.

کله چې به زما اشپز کوم غاز ونيوه چې حلال يې کړي، نو په هغې چوپتيا کې به يې زه وېرولم.

په داسې حال چې د افق ښار د جوړېدا په لومړي سر کې د نړۍ تر ټولو ښکلی او په زړه پورې ښار و او هر څوک چې به دې ښار ته ننوتل فکر يې کاوه، داسې يو ښار ته ننوتی دی، چې د تاندوالي او نېکمرغۍ ښار دی.

خو همغه ډول چې يو چينجی ميوه خوري او له دننه يې خرابوي د وخت تېرېدل هم لکه يو چينجی داسې دی، چې تاندوالی او نېکمرغي له منځه وړي او که ظلم او بې عدالتي هم ورسره يوځای شي ښادي او نېکمرغي ډېره ژر له منځه ځي.

د افق د ښار چاپېريال داسې غم لړلی شو، چې ما بيرته طبس ته د تګ هيله کوله

د افق د ښار يو شمېر اشراف او خانان د کرنې او سوداګرۍ په پلمه او يا د لونو د ورکولو په بهانه طبس ته ولاړل او بيرته راستانه نه شول، په داسې حال کې چې ممکنه وه، د فرعون له کړاو سره مخامخ شوي وای.

خو هغوی د فرعون او آتون په پرتله له آمون څخه ډېر وېرېدل، او طبس ته هم ددې لپاره ولاړل چې له آمون سره اړيکي ښه کړي.

ماکاپتا ته پیغام واستاوه، چې ماته یو لیک را واستوي، له ما وغواړي چې د خپلو کارونو لپاره طبس ته ولاړ شم، چې په دې توګه زه وکړای شم دغه لیک فرعون ته وښییم او له افقه ووځم.

کاپتا خط ولیکه، ما هغه فرعون ته ور وښود ومې ویل، چې د خپلو کارونو د جاج لپاره باید طبس ته ولاړ شم.

هغه زما له تګ سره موافقه وکړه، زه په بېړۍ کې سپور شوم، د افق غم لړلی او مړ ښارمې تر شا پرېښود او جنوب یانې د طبس پر لور روان شوم.

کله چې بېړۍ د نیل د اوبو د بهیر پر خلاف د جنوب لور ته روانه شوه، داسې راته ښکارېده چې زما زړه له غمونو خلا ص شوی دی.

ما چې د افق له ښاره حرکت کاوه پسرلی و، توتکیو په هوا کې پرازونه کول، نیل مست شوی و او ژوند ښنونکې خړې ځمکې یې پوښلې وې.

ما د هغه مین په شان چې د خپلې معشوقې لیدو ته بې قراره وي، بېړه درلوده، چې ژر ځان طبس ته ورسوم.

*(له دې کبله چې نیل د افریقا د مرکزله غرونو (د حبشې له غرونو ) او ددې لویې وچې له نورو برخو سرچینه اخلي، په دغو سیمو کې په منۍ کې سخت بارانونه کېږي، ځکه خو نیل د نورو سیندونو په اپوټه په منۍ کې مستېږي او په پسرلي کې یې اوبه کمېږي، له همدې لامله وایي، چې په پسرلي کې د نیل سین طغیان یا مستېدل پای ته رسېدلي ول ژباړن)*

انسان د خپلو احساساتو مریی وي، د هغه شي غلام کېږي، چې مینه ورسره کوي، که هغه انسان وي، حیوان، نبات او یا جماد وي.

پر ما هم طبس ګران و، ځکه چې زما زېږنځای و، زه هلته لوی شوی یم او زده کړې مې پکې کړې دي.

پر دې سربېره د افق له ښاره په وتلو پسې داسې خوشحاله وم، لکه چې یو مرغه له قفسه الوتی وي، احساس مې کاوه چې ازاد شوی یم.

ځکه چې ما په افق ښار کې د فرعون د فیصلو له کبله د عادي اوسېدونکو په پرتله ځان ډېر محدود احساساوه، ځکه چې د مصر ملت فرعون د خدای زوی بولي، هغه ته د یوه خدای په سترګه ګوري او د هغه د حکمونو پیروي د مصر د ملت لپاره یوه طبیعي چاره

ده، ځکه چې فکر کوي د خدای پیروي فرض ده.

خو زه د فرعون ډاکټر یم، ځکه خو فرعون زما لپاره د نورو انسانانو په شان یو انسان دی، زه نه شم کولای هغه خدای وبولم.

له دې سره سره د افق په ښارکې مجبور وم، د نورو په شان د هغه د حکمونو پیروي وکړم، خو زه له دې امله ډېر خوابدی او خپه وم چې نورو د خدای او ما د یوه انسان پیروي کوله.

د سفر دوه ورځې مې تېرې شوې وې، زه د افق له ښاره لېرې شوم، ومې کړای شول چې له ښاره دباندې د فرعون په هکله مطالعه وکړم او په دې پوه شوم چې اخناتون یو ستر انسان دی چې ستر خدای لري.

هغه څه چې زه یې وهڅولم او یا یې اړ کړم چې زه فرعون او د هغه خدای ستر وبولم دا دي چې ما د هغه خدای له پخواني خدای سره پرتله کړ.

پخواني خدای آمون خرافاتي و، خونړی او بې رحمه خدای و، چې د شتمنو او زورواکانو پلویتوب یې کاوه.

پخواني خدای چاته دا اجازه نه ورکوله، چې څوک پوښتنه وکړي (د څه لپاره، یا ولې؟) دغسې پوښتونکی یې کافر باله، ځکه پوهېده، که خلک وکړای شي وپوښتي (ولې؟) نو بیا استبداد او د هغه زور نه زغمي.

خو نوي خدای خلک آزاد پرېښودل، چې هرڅه یې زړه غواړي، هغه وپوښتي او تر سره یې کړي مګر شرط دا و چې نور ونه ځوروي.

نوي خدای خلک له خرافاتو، ناپوهۍ، جهالت، او وېرې وژغورل، خو جهل، ناپوهي او خرفاتو پر خلکو داسې سیوری غوړولی و، چې که هغه یې له لاسه ورکول نو ډارېدل.

که نوي خدای ظاهري بڼه درلودای، نو خلکو به ژر د هغه عبادت کړی و، خو مصریان پر دې نه شي پوهېدای، چې ګني داسې خدای هم ممکن دی چې مجسمه او ظاهري بڼه ونه لري.

خلک پر دې نه شي پوهېدای چې نوی خدای د طبیعت په شان دی، چې هر چیرته شته، خو څوک یې نهویني، اغېزه او نښې یې هر چېرته شته خو ظاهري بڼه نه لري.

خلک درک نه شي کولای، چې ټول هغه خدایان چې تر ننه پورې راغلي، یوازې د دنیوي چارو لپاره راغلي، مګر یوازې آتون پر دنیوي چارو سربېره د بشر اخروي

نيکمرغي هم تضمينوي.

خلکو په زړهاوو کلونو خرافات ستايلي او عبادت يې کړی، نو اوس پر دې نه شي پوهېدای، چې فرعون وايي آتون په بل ځای کې نه بلکې ستاسې په زړه او ستاسې په وجود کې دی.

هغوی پر دې عادت شوي، چې خدای ديوې مجسمې په توګه له خپل وجوده د باندې وويني او د دوی لپاره د هغه خدای شتون د منلو وړ نه دی چې نه ليدل کېږي او د هر انسان په زړه او باطن کې دی.

فرعون تصور کوي، چې ټول خلک د هغه په شان شعور او پوهه لري او هر څه چې دی ورته وايي، هغوی پرې پوهېدای شي.

فرعون دې ته متوجه نه دی چې د مصر د اهرامونو تر جوړېدا زر کاله مخکې را ونيسه تر ننه پورې خلک جاهلان دي او پر چټياتو باور لري.

د جهالت او پوچ پالنې دغه اوږد پړاو خلک تر ځارويو هم بې شعوره کړي دي او پر دې نه شي پوهېدای چې خدای د انسان په زړه کې دی.

مثلا يو شی چې فرعون يې وايي دا دی، چې هر څوک پخپل زړه کې يو خدای لري او د بشريت د نفوس په اندازه خدايان شته دي.

کله چې هر مصري دغه خبره اوري، فکر کوي، چې فرعون ليونی شوی دی.

دوی وايي، کله چې د انسانانو د شمېرې په اندازه خدايان موجود وي، نو څوک به يې عبادت کوي، ځکه خدايان چې دومره پريمانه وي نو د هر خدای د نمانځنې لپاره به يوازې يو کس موجود وي.

ښايي فرعون وکړای شي، د ستر هرم په شان يو بل ستر هرم جوړ کړي، خو وبه نه شي کولای، په لږ وخت کې هغه خرافات او جهالت د مصريانو له ارواوو وباسي چې له لسګونو کلونو راهيسې د خلکو په زړونو کې دي.

د يو ملت له زړونو څخه د خرافاتو لېرې کول د يوه ستر هرم تر جوړولو سخت کار دی.

په دې مسافرت کې موږ وليدل چې مصري کروندې د نيل له رسوب او د خړې له کيناستو وروسته څه ډول شاړې شوې او د غنمو پر ځای پکې يوازې د غنمو تنې او واښه راشنه شوي دي.

له دې سره سره چې د تخم د شيندلو فصل و، خو کروندګر لاس تر زنې ناست ول او تخم

يې نه شينده.

ځينې کروندګرو ځمکې پرې ايښې وې او ښارونو ته تللي ول، فکر يې کاوه چې د هغوی پر کروندو د آمون له لوري لعنت شوی او يوازې خراب غنم پکې راشنه کېږي.

له ځينو کروندګرو څخه، چې په خټينو کورونو کې ناست ول، ما پوښتنه وکړه، چې ولې تخم نه کرئ او ولې په دې تنبلۍ سره ځان لوږې ته ورکوئ؟

ځواب يې راکړ، که تخم وکرو ګټه نه لري، ځکه چې کله د لو کولو وخت را ورسېد، هغه غنم را په برخه کېږي چې تاپې لري او زموږ ماشومان د هغې ډوډۍ له امله مړه شول، چې له دغو غنمو څخه مو پخې کړې وې.

د افق په ښار کې څوک نه و خبر، چې د تاپې لرونکو غنمو له امله څه ډول ناروغي رامنځته شوې ده، او ما د لومړي ځل لپاره دغې ناروغۍ په هکله واورېدل.

دې ناروغۍ يوازې ماشومان نيول نارينه او ښځې پرې نه اخته کېدلې، د ماشومانو خېټې به وپړسېدې، ډاکټرانو يې علاج نه شو کولای او بالاخره به ماشومانو د سختو دردونو په زغملو سره ساه ورکړه.

ما تصور نه کاوه چې دغه ناروغي دې د غنمو د تاپو له امله وي، بلکې زما له نظره دا داوبو يوه ساري ناروغي وه، چې په مني او ژمي کې د نيل سيند د مستېدا له امله پيدا کېږي

خو کروندګرو به ويل په ماشومانو کې دغه ناروغي د تاپه لرونکو غنمو تر خوړلو ور وسته پيدا کېږي.

زه پوهېدم چې فرعون د دې ناروغۍ په تړاو کومه ګناه نه لري، ځکه چې هغه نه غوښتل دغه ناروغي رامنځته شي، بلکې ګناه د پخواني خدای آمون ده، چې دغه ناروغي يې رامنځته کړې ده، يا د هغه کاهنان ګناهګاران دي، چې په ځينو وسيلو سره د دې ناورغۍ سبب شوي دي.

له دې کبله چې ما طبس ته بيره درلوده، نو پارو وهونکو ته مې ويل چې ژر ژر پارو ووهئ، لړ فلز مې هم ورکړل چې پخپلو کې يې ووېشي.

څو شېبې وروسته مې واورېدل چې پارو وهونکو له يو بل سره خبرې کولې او ويل يې ، موږ ولې د دې لپاره ژر ژر پارو ووهو، چې د خنځير په شانې پړسېدلی دغه سړی ژر خپل مقصد ته ورسېږي.

هغه په داسې خدای عقيده لري، چې د هغه پر وړاندې ټول يو شان دي او د فرعون د

ډاکټر او پارو وهونکي تر منځ توپیر نه ګوري.

که دغه سړی ربښتیا وایي او په مساوات عقیده لري، را دې شي پخپله دې هم پارو ووهي، چې لاسونه یې تناکي شي او پوه شي چې د لاس تناکې د اوربشو د اوبو په څو څاڅکو یا په لړ سرو او سپینو نه شي معالجه کولای.

ما د دوی له خبرو وروسته کولای شول پخپلې لکړې هغوی پر ملا ووهم خو دغه کار مې ونه کړ، بلکې د هغوی خواته ورغلم او مې وویل پارو ماته راکړئ، چې د ببړۍ په چلولو کې له تاسې سره مرسته وکړم.

هغوی یو پارو راکړ، ما د پارو یو سر په اوبو کې ننه یوست او بل سر مې په لاس کې ونیوه او د هغوی په شان مې پارو وواهه.

له دې وروسته چې لس ځله زما پارو په اوبو کې ددننه او رابهر شو پوه شوم، چې پارو وهل ډېر سخت کار دی او سړی ژر ستړی کوي یوازې هغه کسان پارو وهلی شي، چې یوه موده یې تمرین کړی وي او په پارو وهلو نه ستړي کېږي.

لنډه موده وروسته مې لاسونه تناکې شول او ملا مې په درد شوه، داسې سخت درد راباندې راغی چې نژدې و، بېهوشه شم.

غوښتل مې پارو وهل پرېږدم، خو پام مې شو چې پارو وهونکي به را باندې ملنډې ووهي.

هغوی به طبس ته تر ننوتو پورې پر ما ملنډې وهي، نو له همدې امله مې دې کار ته دوام ورکړ.

پر دغې ورځ مې دومره پارو وواهه چې بېهوشه شوم او د ببړۍ کارکوونکو خپلې کوټې ته بوتلم او په بستر کې یې څملولم.

پر بله ورځ له دې سره سره چې لاسونه مې تناکې شوي وو او ملا مې درد کاوه، بیا هم پارو وهلو ته کېناستم او د ببړۍ د خوځولو لپاره مې پارو وواهه.

پر دې ورځ مې احساس وکړ، چې پارو وهونکي راته درناوی کوي او ماته یې وویل، ته زموږ بادار یې او موږ ستا مریيان یو، باید ته پارو ونه وهې، ګني ددې ببړۍ غولی به چت شي او موږ به په داسې حال کې چې سر مو ښکته وي پر لاره ځو.

یوه پارو وهونکي وویل، سینوهه! خدایانو په دې دنیا کې د هر چا ځای ټاکلی دی او ستا ځای دا نه دی چې د پاروګانو تر شا کېنې، ځکه چې ته بادار یې او موږ چې مریيان یو

باید پارو ووهو.

خو ما د هغوی دې خبرې ته پام ونه کړ او همغه راز مې پارو وواهه. پر دریېمه ورځ مې احساس وکړ، چې پارو وهل راته اسانه شوي دي او نوره مې ملا او متې نه خوږېږي.

ورو ورو مې هغه دردونه ختم شول چې د پارو وهلو له امله مې په بدن کې پیدا شوي ول.

زه پوه شوم چې که څه هم زما چاغي کمه شوې وه، خو په بدل کې یې ډېر اسوده او ارام پر لاره تلم، ساه مې لنډه لنډه نه کېدله او داسې راته ښکارېده چې ګني بېرته مې ځواني تر لاسه کړې وي.

زما نوکران چې په بېړۍ کې ول، پر ما یې ملنډې وهلې، ویل به یې یوه لړم سینوهه چېچلی دی یا دا چې د افق د ښار د نورو او سېډونکو په شان لېونی شوی دی، ګني یو څوک چې د فرعون ځانګړی ډاکټر وي د پارو وهونکو په منځ کې داسې نه کېني او د مریپانو په شان پارو نه وهي.

خو زه لیونی نه وم او نه مې غوښتل پارو ووهم او دا مې هم په زړه کې ول چې کله طبس ته ورسېدم نو دا کار به پرېږدم.

په دې ډول موږ طبس ته ورسېدو او لا ښار ته نه و ننوتلي، چې بادونو د دې ښار خاص ورېم تر موږ را ورساوه، چې ماته یې ډېر خوند راکړ.

هغه څوک چې په طبس کې یې نړۍ ته سترګې رڼې کړې وي او هلته لوی شوی وي، هېڅکله د دې ځای ښکلی بوی نه هېروي.

تر دې وړاندې چې ښار ته ننوځم، ځان مې ووینځه، پر بدن مې عطر ووهل او ښکلې جامې مې وا غوستلې.

خو زما کالي پراخ او ارت شوي ول او زما نوکران پر دې ډېر خواشیني ول چې زه ډنګر شوی یم، خو د دوی پر خلاف زه پر دې خبره خوشالوم.

ما خپل یو نوکر په طبس کې خپل کور ته واستاوه چې زما نوکره موتي زما په راتګ خبره کړي، ځکه چې مخکې یو ځل ناخبره کور ته تللی وم او موتي په قهر شوې وه.

بیا مې جرئت نه شو کولای چې بې خبره کور ته ولاړ شم.

له هغه وروسته مې پر پارو وهونکو سره او سپین ووېشل او ومې ویل دا له اجورې پرته ستاسې انعام دی، ولاړشئ او خوندور شراب وڅښئ:

پارو وهونکو ته مې وویل اتون د خلکو له لوري ساده ساعت تېري خوښوي او د شتمنو د تفریح په پرتله د بېوزلو تفریح ډېره خوښوي ځکه چې بېوزلي ساده ساعت تېري کوي.

کله چې پارو وهونکو سره او سپین تر لاسه کړل سترګې یې کش کړې او یوه وویل، مونږ ستا له سرو او سپینو ډارېږو.

ومې پوښتل ولې؟

هغه وویل، ځکه چې تا د آتون نوم واخیست او مونږ ډارېږو چې ستا پر سپینو او سرو لعنت شوی نه وي او هسې نه مونږ ته بدبختۍ راپېښې کړي.

زه پوه شوم چې د دوی دغه خبره پر ما د اعتماد له امله ده، ځکه له دې وروسته چې ما ور سره پارو وواهه، نو پر ما یې اعتماد زیات شو او مینه یې راسره دوه برابره شوه او پر ما ډاډه شوي ول.

هغوی ته مې وویل، ډاډه اوسئ چې زما پر سرو او سپینو لعنت نه دی شوی، خالص سره او سپین دي هغه یې د افق د ښار له مس سره نه دي یوځای کړي.

که فکر کوئ چې زما پر سرو او سپینو لعنت شوی، نو ډېر ژر ولاړ شئ او هغه پر خوندورو شرابو او خوړو ورکړئ.

خو له آتون څخه ستاسې وېره او ترهه بې ځایه ده، ځکه چې آتون ترهګر او وحشت پارونکی خدای نه دی.

هغوی وویل سینوهه! مونږ له آتونه نه ډارېږو، هېڅوک له یوه بې وسه خدایه نه وېرېږي، خو مونږ له فرعونه ډارېږو، ځکه چې پوهېږو که هغه خبر شي چې مونږ دده خدای ته عبادت نه کوو، نو د کار کولو لپاره به مو کانونو ته واستوي.

له هغه وروسته پارو وهونکي په داسې حال کې چې سندرې یې ویلې، د شراب خانې او عمومي کورونو پر لور روان شول.

ماهم ډېر غوښتل د هغوی په شان سندرې ووایم، خو زما مقام او حیثیت ددې کار مخه نیوله.

کله چې زما نوکرانو ولیدل، زه له بېړۍ کوزېږم ویې ویل صبر وکړه، چې ستا لپاره روان تخت راوړو، خو زه روان تخت ته په تمه پاتې نه شوم، پلی د تمساح لکۍ د میخانې پر لور روان شوم او له یوې مودې لېرې والي وروسته مې مریت بیا په دې میخانه کې ولیده.

مریت د پخوا په شان ځوانه نه وه، خو لا هم په ښکلو ښځو کې شمېرل کېده.
کله چې ما ولیده پوه شوم چې د اوس په شان بل هېڅ وخت دومره ډېره راباندې ګرانه نه وه.
مریت چې، زه ولیدم دواړه لاسونه یې په خپلو زنګنو کېښودل او رکوع یې وکړه.
بیا ماته را نژدې شوه زما ولي، شا، ټټر او نس یې لمس کړل او ویې ویل سینوهه! په تاڅه شوي چې ډنګر شوی یې او سترګې دې داسې ځلېږي.
ومې ویل زما د سترګو ځلا د مینې له شوقه ده او له دې امله ډنګر شوی یم، چې غوښتل مې ډېر ژر ځان تا ته را ورسوم او له تا سره تفریح وکړم.
مریت وویل، ایا په سفر کې بېړه، انسان ډنګروي؟
ومې ویل هو! کله چې انسان ګړندی ځي، د هغه د بدن وازګې ویلې کېږي او هغه ډنګروي.
مریت وویل سینوهه! که څه هم زه پوهېږم ته درواغ وایې، خو بیا هم ستا له دروغو خوند اخلم، ځکه چې هر څه چې د مینې په ګټه وي حتی که هغه دروغ هم وي خوندور دي.
خو په ښه وخت کې راغلې، اوس پسرلی دی او په پسرلي کې ځمکه او اسمان، ټول ژوي مینې کولو ته هڅوي.
که له یوې خوا زه ډنګر شوی وم، خو له بلې خوا زما پخوانی مریی کاپتا نور هم چاغ شوی و.
ومې لیدل چې د اشرافانو جامې یې اغوستې دي، څو زرینې غاړکۍ یې په غاړه دي او پر خپله ړنده سترګه یې یوه ټوټه سره زر ایښي چې برسېره پرې غمي هم کتار شوي ول.
کله چې کاپتا ولیدم، له ډېرې خوشحالۍ یې وژړل او ناري یې کړې دغه ورځ بختوره ده، ځکه چې زما ښاغلی په دې ورځ راغلی دی.
بیا کاپتا د میخانې یوې کوټې ته بوتلم او پر یوه پنډ او نرم فرش یې کېنولم.
مریت زموږ لپاره د میخانې تر ټولو ښه خواړه راوړل.
د خوراک پر مهال کاپتا وویل: زما باداره سینوهه! پر کومې ورځ چې تا وویل ستا غنم په مصري کروندګرو د تخم لپاره ووېشم او د درمندونو پر وخت یې د هرې پیمانې غنمو په بدل کې یو ازې یوه پیمانه غنم بېرته واخلم، نو ما تصور وکړ چې ته لېونی یې.
خو ستا دغه کار کروندګر له دیوالیه کېدا وژغورل ځکه ستا غنم یې وکرل او ښه

حاصل يې ترې واخيست.

بله خبره دا وه په غزه کې مصري جنګياليو، يا هغو کسانو ته چې د مصر پلويان دي او هلته جنګېږي، د غنمو د رسولو لپاره د آتون د معبد ستر کاهن حکم وکړ چې د اربابانو او خانانو غنم ضبط کړي.

په نتيجه کې د شتمنو غنم د فرعون او د هغه د خداى په امر د آمي له لوري ضبط شول خو چانه شو کولاى چې ستا غنم ضبط کړي، ځکه چې موږ هغه کروندګرو ته ورکړي او هغوى کرلي ول.

کروندګرو چې خپل حاصل واخيست نو د درمندونو پر وخت يې بېرته ما ته خپل غنم راکړل چې په نتېجه کې ستا د غه ځير کتيا ددې سبب شوه، چې زموږ غنم بېرته زېرمو ته راشي.

زه وروسته خبر شوم چې د فرعون په حکم ته د سولې د تړون د لاسليک کولو لپاره سوريې ته تللى يې.

د سولې د تړون خبر د غنمو بيه کمه کړه، ما اټکل کړى و، چې له سولې وروسته به مصري سوداګر د پر غنم سوريې ته واستوي او د غنمو بيه به بېرته زياته شي، نو د خپلو زېرمو په اندازه غنم مې بېرته واخيستل.

کله چې ته له سوريې راستون شوې او افق ښار ته ننوتې او د سولې تړون دې فرعون ته ورکړ، نو د مصر بېړۍ له غنمو ډکې شوې او د سوريې پر لوري روانې شوې چې په دې ډول د غنمو بيه بېرته پورته شوه.

خو بيا هم کېداى شي چې د غنمو بيه لوړه شي او په دې توګه به سږ کال ټول مصر له کاختۍ سره مخامخ شي، ځکه چې مصري کروندګر غنم نه کري او وايي چې آمون پر کروندو لعنت کړى دى.

په داسې حال کې چې زه پوهېږم پر غنمو د لعنت کولو خبره سمه نه ده او هغه تاپې چې پر غنمو ليدل کېږي، د وينې يا کومې بلې مادې له امله نه دي چې ګڼي دآمون کاهنانو او يا د هغوى مريدانو د کروندګرو پر غنمو شيندلي دي چې کروندګر وويروي.

خو که زه او ته دغه خبره کروندګرو ته وکړو نه يې مني.

هغوى باوري دي، چې پخواني خداى آمون د هغوى پر کروندو لعنت کړى دى.

کاپتا وويل، زما باداره! موږ په داسې وخت کې ژوند کوو، چې شتمن کسان په

بېلابېلو ډولونو شتمن کېږي او حتی له زاړه منګي څخه هم د سرو او سپينو د ترلاسه کولو لپاره کار اخلي.

باید درته ووایم چې په وروستي ژمي کې ما سل ځله، سل زاړه منګي خرخ کړي دي.

ومې ويل کاپتا ! تا د غه زاړه منګي له کومه کړل ؟

کاپتا وويل، کله چې زه پوه شوم چې ځينې کسان د زړو منګيو په اخيستلو بوخت دي، خپلو مريیانو ته مې دنده وسپارله چې ولاړ شي او په ولاياتو کې زاړه منګي واخلي او رایې وړي.

هغوی هم زاړه منګي په بېړيو کې دلته را استول او ما له دې ځايه کوز مصر ته لېږدول او هلته مې خرڅول.

ومې پوښتل په کوز مصر کې په زړو منګيو څه کوي ؟

کاپتا وويل، دلته يې داسې اوازه ګډه کړې، چې په کوز مصر کې په تروو اوبو کې د کبانو د ساتلو لپاره نوې روده کشف شوې ده، چې زاړه منګي ورته ډېر پکار دي.

خوزه پوهېږم چې دا اوازه سمه نه ده، ځکه چې په مصر کې له زړو منګيو استفاده نه کېږي، بلکې یوازې يې په بېړيو کې سوريې ته استوي او له هغه وروسته څوک نه پوهېږي چې هورې پرې څه کوي؟

سوريې ته د مصر د زړو منګيو د لېږد مسلې ډېر حيران کړم، هر څومره چې مې فکر وکړ ومې نه شو کړای، چې پوه شم سريانيان له زړو مصري منګيو څخه د څه شي لپاره کار اخلي.

خوله دې کبله چې د غنمو مسله مهمه وه، نو د منګيو خبره مې هېره شوه.

کاپتا ته مې وويل، هرڅومره غنم چې اخيستای شې وايې خله، خو هغه غنم واخله چې پخپلو سترګو يې ګورې، نه هغه غنم چې لا نه دي راشنه شوي يا دا چې شنه شوي خو پاخه شوي نه دي.

که د غنمو د اخيستو لپاره دې سره او سپين پکار شول، زما هرڅه خرڅ کړه او په ترلاسه شويو سرو سپينو باندې غنم واخله، ځکه چې ما پخپله د مصر ناکرل شوې ځمکې ليدلې دي او باوري يم چې په راتلونکي ژمي کې به په دې هېواد کې کاختي زياته شي.

اورېدلي مې دي، ډېر غنم سوريې ته لېږدول شوي، نو که کولای شې له سوري سوداګرو څخه هم د دغو غنمو يوه برخه واخله او مصر ته يې راوړه.

کاپتا وویل، زما باداره! ته سمه خبره کوې! که نن سبا موږ غنم واخلو، ته به په ر اتلونکې کې د مصر تر ټولو شتمن کس یې او ستا شتمني به تر فرعون هم زیاته شي.

خو د سوریې سوداګرو چې د سولې په پلمه یې زموږ غنم اخیستي، اوس یې دغه غنم زموږ له لاسه ایستلي دي.

هغوی تر موږ ځیرک دي او تر هغه به صبر وکړي، چې په مصر کې کاختي راشي، بیا به یې بیرته مصر ته راستانه کړي او د اخیستو تر بیې به یې لس چنده ګران خرڅ کړي.

دغه کم عقله آمي چې ستر کاهن دی، په دې نه پوهېده، چې سوریې ته د دغو غنمو لېږدول به مصر له غلې تش کړي.

څو شېبې وروسته چې مریت کوټې ته راننوته، ما د غنمو خبره هېره کړه.

د مریت له راتلو وروسته زما پخوانۍ مریی له کوټې ووت، ځکه چې شپه او د خوب وخت و.

کله چې کاپتا له کوټې ووت چې زه ویده شم، نو ما احساس وکړ چې د دې ښځې په شتون کې زه یوازې نه یم او باید ما ګوشه نشین سینوهه ونه بولي.

پر بله ورځ مې کوچنی تهوت ولید، هغه زما خوا ته رامنډه کړه او خپل کوچني لاسونه یې زما په غاړه کې امیل کړل.

همغسې چې مریت په بېړۍ کې ورزده کړي ول، زه یې پلار وبللم او زه د هغه ماشوم پیاوړې حافظې ته حیران شوم، چې لا یې نه وم هېر کړی.

مریت ماته وویل د دې ماشوم مور مړه شوې ده او له دې کبله چې ما بېولی او سنت کړی مې دی، نو د هغه د ساتلو مسولیت زما پر غاړه شو او زه به دا ماشوم ساتم.

د ېر ژر تهوت د تمساح لکۍ په میخانه کې پر ټولو مشتریانو ګران شو.

د دې میخانې دایمي ګاکانو د مریت خوشحالولو لپاره اړینه بلله چې دغه ماشوم ته د لوبو یوه وسیله واخلي.

بیا تهوت زما کور ته راغی او زما نوکره، چې تر هغه وخته یې تل ویل، باید زه یو ماشوم ولرم، نو د دې ماشوم په لیدو خوشحاله شوه.

ما چې به تهوت لیده چې تر و نو لاندې لوبې کوي او یا په کوڅه کې له هلکانو سره مستي کوي، په طبس کې به د خپل ماشومتوب وختونه را په زړه شول او رایاد به شول چې زه هم د تهوت په شان په ماشومتوب کې همداسې شوخ وم.

تهوت زما په کور کې په اوسېدو داسې خوشحاله و، چې د شپې به هم زما په کور کې پاتې شو، ما به د شپې مهال خپل څنګ ته کېناوه اوله دې سره سره چې کوچنی و، خو ما به سبق ورښود.

زه ډېر ژر پوه شوم چې تهوت ډېر هوښيار دی او په ښښو ښبانو ډېر ژر پوهېږي او هغه حافظې ته سپاري.

له همدې کبله مې فيصله وکړه چې هغه د طبس تر ټولو ښه ښوونځي ته واستوم چې د خانانو او اشرافانو له بچيانو سره هلته سبق ووايي.

مريت پر دې فيصلې ډېره خوشحاله شوه.

موتي هره ورځ د تهوت لپاره په شاتو کې کلچې پخولې او پر هغه يې خوندور خواړه خوړل، هغه به يې په خپلې غېږه کې ويده کاوه او هم به يې تر هغه ورته کيسې ويلې چې ويده شي.

که د طبس ټولنيز حالت ناکراره نه وای، نو ما به د دې ارام ژوند له کبله د نېکمرغۍ احساس کاوه.

خو د طبس حالت ورځ تر بلې خرابېده او داسې ورځ به نه وه، چې يو شمېر کسانو په واټونو کې د آتون او آمون لپاره شخړه نه وه کړې.

د فرعون عسکرو به هغه کسان نيول چې د پخواني خدای آمون په ملاتړ يې په شخړو کې ګډون کاوه.

هغوی يې د کشتيو په وسيله او يا له ځمکنۍ لارې کانونو ته استول او که به ښځې وې، نو هغوی به يې د آتون کروندو ته د کار لپاره استولې چې هلته کروکړي.

خو کله چې به يې دغه ښځې او نارينه له طبسه تبعيدول، هغوی به د شهيدو اتلانو په شان د کانونو او کروند پر لور روان شول.

خلکو به په ګلانو بدرګه کول، رکوع به يې ورته کوله او جلا وطنه شويو کسانو به ورته لاسونه ښورول، ويل به يې، مونږ بيرته راستنېږو او د آتون د وينې يوه برخه به پر ځمکه توی کړو او يوه برخه به يې د اوربشو د اوبو په شان وڅښو.

خلکو به د جلاوطنه شويو کسانو داسې ملاتړ کاوه چې آتون ته له ښکنځلو سره سره به د خلکو د ملاتړ له وېرې ساتونکو د هغوی د وهلو جرئت نه شو کولای.

عسکر پوهېدل چې که دغه کسان ووهي نو خلک به دوی ووژني.

# یو څلویښتم څپرکی

## په طبس کې د ښکر او صلیب تر منځ جګړه

د نوي خدای آتون د پیروانو رسمي نښه (د حیات صلیب) او دغه صلیب یې د غاړکۍ په شان په غاړه کې اچاوه او یا دا چې پر خپلو جامو به یې انځوراوه.

د پخواني خدای آمون پیروانو، ښکر خپله رسمي نښه اعلان کړې وه او فرعون هم نه شو کولای چې پر سر د ښکرو د لګولو مخه ونیسي.

ځکه له هغې ورځې چې د مصر ملت رامنځته شوی دی په نارینه وو کې د ښکر لېږدول یو سینګار و، هېڅ خدای او فرعون نه شو کولای دغه طبیعي ښکلا او دود له منځه یوسي یا بندیز پرې ولګوي.

زه په سر کې نه پوهېدم چې ولې د آمون پیروانو ښکر خپله رسمي نښه بولي، خو وروسته خبر شوم چې ښکر د آمون یو ستر نوم دی.

*(پخوا د مصر خدایانو دوه ډوله نومونه درلودل، یو یې معمولي نوم و، چې عامو خلکو به پرې خدایان پېژندل او په دغو نومونو به یې یادول او بل خاص نومونه ول، چې ستر نومونه هم بلل کېدل چې کاهنانو به د هغوی په وسیله خدای یاداوه. د مصر ځینو پخوانیو خدایانو تر شلو ډېر ستر نومونه درلودل. ژباړن)*

د آمون پیروانو په ښکرو سره د آتون د پیروانو د دکانونو پر دروازو حمله کوله او دروازې به یې ماتې کړې.

دوی به د میوې، کبانو او سبزیانو ډکې ټوکرۍ پر بل مخ واړولې، ناري به یې وهلې، موږ ښکر لرو او د آتون خېټه به څیرې کړو ... موږ د آمون پیروان یو او آمون موږ ته ښکر راکړي، چې د هغه د دښمنانو خېټې او سینې سورۍ کړو.

کله چې د ښکرورو مزاحمتونه داسې حد ته ورسېدل چې د آتون پیروانو ته یې ژوند

سخت کړ، نو هغوی هڅه وکړه چې وسپنیز صلیبونه جوړکړي چې را وتلې برخه یې د چاقو په شان وي.

ددغه صلیب دوه اړخونه یې لاستی او اوږده خوا یې تېره څوکه وه چې د چړې کار یې ورکاوه.

دغه برچې یا پېشکوزې به یې تر کالیو لاندې په ملا پورې تړلې، چې کله به ښکرورو ځورول، نو برچې به یې را ایستلې او پر ښکرورو به یې حمله کوله.

*(لا هم د توري او برچې لاستي په ځینو اروپايي هېوادونو کې د صلیب په بڼه دي او دغه دود له مصر او کرت څخه اروپايي هېوادونو ته رسېدلی دی، یانې صلیب له عیسویت څخه مخکې هم د ځینو ملتونو او مذهبونو رسمي نښه وه. ژباړن)*

د آمون او آتون، صلیب او ښکر اختلافات په طبس کې دومره پراخ شول چې پلار له زویه او مېړه له ښځې څخه ددې اختلافاتو له امله بېل شول.

په کومه ورځ چې زه طبس ته ننوتم، تصور مې وکړ، چې طبس د آمون ښار دی او په دې ښار کې د آتون پلویان نشته.

خو کله چې څو ورځې په ښار کې پاتې شوم، پخپلې غلطۍ پوه شوم او متوجه شوم، چې نوی خدای هم په طبس کې، په تېره بیا په ځوانو کارګرانو او مریيانو کې ډېر پلویان لري.

نوي خدای له دې امله په ځوانانو، مریيانو او کارګرانو کې ډېر پلویان درلودل، چې د هغه خبرې، ددې پرګنې له طبعې سره برابرې وې.

ځوانانو له زړو سره د مخالفت له امله نوې نظریې منلې او کارګرانو او مریيانو له شتمنو سره د مخالفت له امله پر نوي خدای ګروهه یا عقیده درلوده.

نوي خدای په ځانګړي توګه د طبس د بندر په کارګرانو، د نساجۍ او رنګ ریزۍ په کارخانو او مریيانو کې سرزوري پلویان درلودل، ځکه چې دې پرګنې تر نورو ډېر زیار ګاله او د محرومیت احساس یې کاوه.

هغوی به اورېدل چې نوی خدای وایي، باید د بېوزلو، شتمنو، کارګرانو، تیکه دارانو، مریيانو او بادارانو تر منځ توپیر ختم شي.

دوی تصور کاوه، چې له دې وروسته به د شتمنو سره، سپین او نورې پانګې د ځان کړي او هغوی به کارکولو او مریيتوب ته اړکړي.

د نوي خدای په متعصبو پیروانو کې د مړیو د ښار (د طبس د هډېرې) تر غلو بله وفاداره پرګنه نه وه.

د قبرونو غله پوهېدل چې فرعون له پخواني خدایه د کرکې له لامله به نور د مړیو د قبرونو ملاتړ و نه کړي.

ددې لپاره چې د قبرونو په مخکې د پخواني خدای نوم ،د مړیو په جامو، لوښو او بېړیو لیکل شوی دی.

هغوی به ویل موږ ځو، چې په قبرونو کې د آمون نوم پاک کړو، خو د هغوی اصلي هدف د قبرونو د ګران بیه شیانو لوټل و.

دوی به د سپک وزن درلودنکي شیان د شپې مهال د تمساح لکۍ میخانې ته راوړل او ددې میخانې په ځانګړو کوټو کې به یې پر سوداګرو خرڅول.

خو ددې لپاره چې د خلکو ورپام نه شي، درانه شیان به یې، له ځان سره نه راوړل، بلکې هغه به یې په ځانګړو زېرمو کې ټولول، سوداګر به یې دغو زېرمو ته وروستل او هغه شیان به یې پرې خرڅول.

د خلکو یو بل ټولی چې د نوي خدای له واکمنېدا یې ګټه اخیسته، هغه کسان ول، چې د پخواني خدای پیروان به یې د فرعون عسکرو ته په ګوته کول چې د هغوی شتمني د ځان کړي.

هغوی پوهېدل چې که کومه ورځ حالات بدل شي، نوی خدای را وپرځول شي او پخوانی خدای بیرته واکمن شي، نو بې له جنجاله به یې ووژني.

له همدې امله یې د نوي خدای د حکومت د پاتې کېدا لپاره هلې ځلې کولې او کمزوري او بېوزلي خلک به یې تل د آمون د پلویانو په توګه د فرعون سپاهیانو ته ور په ګوته کول.

په طبس کې د فرعون سپاهیانو د افق د ښار په شان عمل کاوه.

هغوی به شتمن ښکرور، چې په ښکاره یې د پخواني خدای پلویتوب کاوه نه نیول، ځکه وېرېدل او پوهېدل چې یا به ووژل شي او یا به ژوبل شي.

خو یو کارګر یا بېوزله کسبګر چې به په قصدي ډول نه بلکې د عادت له مخې د آمون نوم واخیست، هغه به یې ونیو او کان ته به یې د کارکولو لپاره استاوه.

د شپې له پلوه به د ښکر پلویانو یا د صلیب پیروانو له خپلو ځانګړیو میخانو را وتل (د صلیب او ښکر پلویانو پخپلو ځانګړو میخانو کې شراب څښل) او د طبس په واټونو

کې به روان شول.

دوی به څراغونه نسکور، د هوې به یې مرې کړې او ناري به یې وهلې.

که دوه مخالفې ډلې به سره مخامخ شوې جګړه به پیل شوه او څو تنه به پر ځمکه مړه پراته ول.

هغو کسانو، چې په عمومي ځایونو کې یې کارکاوه او یا به د کار په لټه کې په واټونو کې ګرځېدل له ځان سره به یې تل یو ښکر او یو صلیب ګرځاوه.

که به یې ولیدل، چې د هغوی موقتي بادار ښکرور دی، ښکر به یې ورښودل او که به پوه شول، چې بادار یې د صلیب پیرو دی، نو صلیب به یې ورښود او ځان به یې د صلیب پلوی معرفي کاوه.

د نوي او پخواني خدای په پلویانو کې ځینې کسان داسې هم ول چې هم له آمونه او هم له آتونه په تنګ شوي ول.

هغوی هیله کوله ،چې په طبس کې سوله او کراري واکمنه شي، چې وکړای شي کار او کسب وکړي، خو خپلې دې هیلې ته نه رسېدل.

دې پرګنې نه شو کولای، ځان بې پرې وساتي، ځکه چې له دواړو لورو پرې حمله کېدله او مجبور ول، چې د ژوند حالاتو او د خپلو ملاترو او پلویانو ګټو ته په پام سره کله د ښکر پلویان شي او کله د صلیب.

کاپتا یوه موده د دواړو ډلو پر وړاندې مقاومت وکړ او د خپلې میخانې لپاره یې کومه نښه ونه ټاکله.

هغه د تمساح لکۍ د خپلې میخانې لپاره تر ټولو ښه نښه ګڼله ، چې وکړای شي هم له ښکرورو ګرمه واخلي او هم د صلیب له پلویانو.

خو ښکرور په دې پوهېدل، چې د کاپتا میخانه د قبرونود غلو مرکز دی، نو کاپتا یې په کرار نه پرېښود.

البته جرئت یې نه شو کولای چې د شپې یا د ورځې پر میخانې برید وکړي، ځکه پوهېدل، چې کاپتا قوي ساتونکي لري، چې د هغه د میخانې دفاع کوي.

خو د شپې مهال به یې د میخانې پر دېوالونو د ښکر انځور او نور ناسم عکسونه ایستل او تر یوې مودې پورې کاپتا مجبورو ، هره ورځ هغه تصویرونه پاک کړي.

له دې وروسته، چې زه په طبس کې مېشت شوم، پوه شوم چې د بندر له پنډیانو او

مريبيانو پرته ماته بل څوک د معالجې لپاره نه راتلې، په داسې حال کې چې تر هغه مخکې به د خپلې سيمې ناروغان راتلل.

يوه ورځ زما د سيمې دوو تنو او سېدونکو زه په يوه خالي ځای کې وليدم او ويې ويل سينوهه ! موږ له تا خپه نه يو، زموږ ماشومان او ښځې هم ناروغان دي او ستا علم او پوهې ته اړتيا لرو، خو ډارېږو چې تا ته راشو.

ځکه ستا کتنځی له دې امله، چې د حيات صليب دې په غاړه کې اچولی ډېر خطرناک دی، که موږ د خپلو نارغانو د درملنې لپاره ستا کتنځي ته راشو د ښکرورو له غوسې سره به مخامخ شو.

خو د آمون له لعنته نه وېرېږو، ځکه چې د خدايانو له جنګه په تنګ شوي يو او نه پوهېږو، چې دغه خدايان له موږه څه غواړي او ولې موږ پخپل حال نه پرېږدي، چې څرنګه مو زړه غواړي هغسې ژوند وکړو.

خو که ښکرور پوه شي چې موږ د معالجې لپاره ستا کتنځي ته راځو موږ به ووژني او يا به زموږ ماشومان هغه وخت ژوبل کړي، چې موږ په کور کې نه يو او يا په کار بوخت يو.

دوی کېدای شي زموږ د کورونو دروازې ماتې کړي، ځکه ټول پوهېږي، چې ته د فرعون ځانګړی ډاکټر او د آتون پلوی يې، دغه صليب چې تا په غاړه کې اچولی دی ستا د معرفی لپاره کفايت کوي.

خو د بندر پنډيان او مريبيان له ښکرورو يا د صليب له پلويانو څخه نه ډارېدل.

دوی له ويرې پرته زما کتنځي ته راتلل او، چې کله به ما ويل انسانان که پنډي يا مريبي هم وي ازاد ژوند کولای شي، هغوي به ويل سينوهه ! تا لا پر خپله ملا د متروکې ګوزار نه دی احساس کړی، ګني پوهېدې، هغه انسان چې مريبي يا کارګر وي، ناممکنه ده چې آزاد ژوند وکړای شي.

انسان تر هغه وخته ازاد نه دی، چې د بل چا لپاره کار کوي او بيا د خپل کار مزد هغه ته سپاري، چې په بدل کې يې يوه نمرۍ ډوډۍ او د اوربشو اوبه تر لاسه کړي.

له دې سره سره ته راباندې ګران يې، ځکه چې ته ډېر ساده او ښه سړی يې او له دې پرته چې له موږ څخه ډالۍ واخلې، زموږ معالجه کوې.

دوی راته وويل پر کومې ورځې چې په طبس کې جنګ وشي او د آمون و آتون پلويان يو بل سره ووژني (ځکه چې دغه ورځ به راشي ) ته بندري سيمې ته راشه چې هلته دې پټ

کړو او د مرګ ژوبلې له خطرې به وژغورل شي.

که څه هم ټول پوهېدل، چې زه د آتون پلوی یم، نه چا را باندې حمله وکړه او نه یې زما د کور پر دروازې او دېوالونو ناسم انځورونه وایستل.

ځکه چې لا فرعون دومره د درناوي وړ و، چې خلک د هغه ځانګړي ډاکټر ته د هغه په شان درناوی وکړي.

پر دې سربېره ټولو ګاونډیانو زه پېژندلم، زما ملاتړ یې کاوه او په طبس کې د فرعون پوځي مامورین هم زما ملاتړي ول، نو له همدې کبله ښکرورو جرئت نه شو کولای پر هغه چا حمله وکړي چې دومره پلویان لري.

یوه ورځ تهوت په ژړا له کوڅې کور ته راغی، موتي ولیدل، چې د هغه له پوزې وینه بهېږي او یو غاښ یې ورته مات کړی دی.

کله چې موتي دغه ماشوم وینځه چې د مخ او تټر وینه یې پاکه کړي ژړل یې او له هغه یې وپوښتل ولې ژوبل شوی یې؟

.تهوت وویل د تو کراوبدونکي زوی ووهلم او زما غاښ یې مات کړ او راته یې وویل له دې کبله چې ته د آتون پلوی یې باید ووهل شې.

موتي لرګی واخیست روانه شوه او ویې ویل، د تو کراوبدونکي زامن که د آمون پلویان وي یا د آتون باید هغوی ووهل شي.

ډېر ژر له کوڅې د تو کراوبدونکي د پېنځو زامنو نارې سورې پورته شوې ، او کله چې د هغوی مور و پلار د خپلو زامنو په ننګه راغلل موتي هغوی هم ووهل.

موتي چې کور ته راستنه شوه ما ولیدله، چې رنګ یې تک سور شوی دی.

ما غوښتل، چې هغه پوهه کړم، چې کینه ښه نه ده، د غو سې سبب کېږي او دښمني راپیدا کوي، خو موتي زما خبرو ته غوږ ونه نیو.

پر بله ورځ چې د موتي غوسه سړه شوه ، نو د تو کراوبدونکي د ماشومانو او د هغوی د مورو پلار لپاره یې په شاتو کې کلچې پخې کړې او د هغوی کور ته یې یوړې، چې سوله ورسره وکړي.

له هغه وروسته د تو کراوبدونکي کورنۍ له موتي او تهوت سره ملګرې شوه او د تو کر اوبدونکي زامنو بیا له دې چې تهوت ژوبل کړي تل به یې له هغه سره لوبې کولې.

له دې وروسته به چې موتي کله تهوت ته شیریني او پتیرې ورکولې د تو کراوبدونکي

د زامنو برخه به يې هم ورکوله.

کله چې په طبس کې زما پاتې کېدل ځنډني شول، يو ځل د فرعون په حکم، دې ښار سلطنتي ماڼۍ (زرين قصر) ته لاړم.

که فرعون امر نه واى کړى، چې هلته لاړ شم نو د مهو نفر له وېرې به مې په دې ماڼۍ کې ګام نه واى ايښى.

خو د فرعون د حکم د منلو لپاره مجبور شوم، چې په پټه او د مهو نفر له خبرولو پرته ماڼۍ ته ننوځم چې ستر کاهن آمي وګورم.

پر کومه ورځ چې ماڼۍ ته ننوتم د هغه سوى په شان وم، چې د باز له وېرې ګله يوې خوا او کله بلې خوا ته پټېږي، ما هم د مهو نفر له وېرې ځان تر ونو لاندې پټ کړ، چې ستر کاهن آمي وګورم.

ستر کاهن راته وويل، سنيوهه! له دې سره سره چې د آتون د معبد ستر کاهن يم، خو د فرعون کړچار مې نه خوښېږي، ځکه دغه سړى لکه چې نه پوهېږي څه وايي؟ او د هغو حکمونو نتېجه څه ده چې ورکوي يې؟

که کولاى شې هغه په سمه لاره راوله او که دغه کار نه شې کولاى د خوب د درملو په وسيله يې ويده کړه، چې تل په خوبولې وي چې دغسې عجيب او غريب حکمونه ورنه کړي.

نن د فرعون د حيرانوونکو اصولو او حکمونو له امله د حکومت قدرت کم شوى دى، ځکه چې فرعون د اعدام سزا ختمه کړې ده او ويلي يې دي، له دې وروسته دې د غلو لاس او د مجرمانو پوزه او غوږ نه پرې کوي او تښتېدلي مرييان بايد ونه وهل شي.

په دې ښه کې ځنګه تمه کولاى شو، چې خلک دې قانون ته درناوى وکړي، په تېره بيا د هغو قوانينو، چې هره ورځ د فرعون د هوسونو او غوښتنو له امله بدلېږي.

له يوې خوا فرعون له سوريې سره د سولې تړون لاسيک کوي او زه د دې تړون په اساس ژمن کېږم، چې سوريې ته غنم ولېږدوم.

له بلې خوا هورم هب د غنمو هغه بېړۍ چې بايد سوريې ته لاړې شي په ممفيس کې دروي.

کله چې له هغه پوښتنه کوم، ولې بېړيو ته اجازه نه ورکوې، چې لاړې شي وايي، فرعون ويلي له دې وروسته بايد د مصر غنم سوريې ته ولاړ نه شي.

کاشکې زه له پيله د لمر له ښاره نه واى را وتلى او د فرعون د مور په هڅونه د څوکۍ او

مقام په لټه کې نه واى شوى، چې نن سبا له دې ستونزو سره مخامخ شوى نه واى.

سينوهه! کله چې يو چا د قدرت خوند وليد، بيا تل د قدرت لټه کوي.

د مقام او فرصت غوښتنه د بشر يوه طبيعي غريزه ده، که څه هم په ټولو انسانانو کې نشته، خو په کومو کسانو کې چې شته، هغوى ارام نه پرېږدي.

د مقام او فرصت غوښتونکى سړى د مقام د ترلاسه کولو لپاره په هر عمل لاس پورې کوي.

خو دا خبره هم بايد وکړو، چې کله انسان مقام او څوکۍ ته رسېږي ښايي له ژوند ډېر ښه خوند واخلي او که ما په مصر کې قدرت تر لاسه کړى واى اجازه مې نه ورکوله، چې د مصر حالات په دې ډول وي.

اختلافات به مې له منځه وړي واى او سره له دې چې د آمون او آتون ترمنځ تو پيرونه شته، د فرعون حيثيت مې لوړ اوه.

زما يو اساسي کار به دا و، چې آتون ته مې مجسمه جوړوله، ځکه د مصر ملت د هغه خداى عبادت نه شي کولاى، چې بهرنى وجود يا مجسمه ونه لري او په سترګو ونه ليدل شي.

ما له آمي پوښتنه وکړه، چې ايا د فرعون د ځاى ناستي لپاره دې فکر کړى دى، چې بل څوک د فرعون پر ځاى کېنوې؟

آمي دې خبرې ته حيران شو او بيا يې لاس پورته کړ او ويې ويل سينوهه! زه خاين نه يم، چې هڅه وکړم، فرعون د سلطنت له ګدۍ کوز کړم او بل يې پر ځاى کېنوم.

که څه هم کله، د فرعون په هکله له کاهنانو سره خبرې کوم، خو دغه خبرې د فرعون د پاچاهۍ د پياوړتيا لپاره کېږي نه دا چې د هغه د سلطنت د پرځولو فکر ولرم.

خو داسې احساس کوم چې هورم هب څه فکرونه لري او خيال کوي چې يوه ورځ کولاى شي د مصر پاچا شي.

دغه سړى له دې کبله چې په نيزې متکى دى، نو فکر کوي هرڅه چې وغواړي ترسره کولاى يې شي.

نو موړى له دې خبر نه دى، چې په مصر کې هغه کس کولاى شي پاچا شي، چې د خدايانو له ذاته وي او د فرعون وينه پکې وي، په داسې حال کې چې هورم هب د پاچاهانو له توکمه نه دى.

که زه کله د سلطنت د پیاوړتیا فکر کوم او وایم، چې باید فرعون د عقل او تدبیر له مخې پاچاهي وکړي، دا د دې لپاره چې د مصر د ملکې نفرتي تي پلار یم او په سلطنت پورې تړلی کس یم.

خو هورم هب دا حق نه لري چې د مصر د سلطنت پر ګدۍ د کېناستو خام خیال په ذهن کې ولري.

زه پر دې خبرې ډېر حیران شوم ومې ویل، ایا په ربښتیا هورم هب غواړي د مصر پاچا شي او پر کوز او بر مصر حکومت وکړي ؟

که دغه سړی داسې فکر ولري، ډېره د حیرانۍ خبره ده، ځکه ما پر هغه ورځ هورم هب ولید، چې د مصر دربار ته نوی راغلی و.

هغه مې ولید چې د بېوزلو جامې یې اغوستې وې، له یوه باز پرته چې په مخکې یې الوت، بل څه یې نه درلودل.

آمي چې د پنډو وریځو لاندې یې تېزې او لوېدلې سترګې ځلېدې څو شېبې یې ماته وکتل ویې ویل، سینوهه ! څوک نه شي کولای د بل چا راز د هغه په روح کې کشف کړي، چې هغه څه فکر کوي، خو که هورم هب اوچت والوزي، زه به یې په اسمان کې وزرې ماتې کړم او پر ځمکه به یې وغورځوم.

له دې خبرو اترو وروسته ما له آمي سره خدای پاماني وکړه، بیا د فرعون د حکم پر اساس د هغه ځوانې مېرمنې او بابلی شهزادګۍ ته ورغلم، چې له بابله یې ورته را استولې وه.

له دې وروسته چې په وکالت کې د واده دستورې جوړې شوې، د بابل پاچا نومورې مېرمن مصر ته را واستوله او څو ورځې دغه شهزادګۍ په افق ښار کې وه.

خو د مصر ملکې نفرتي تي فرعون اړ کړی و، چې نوموړې شهزادګۍ له افقه طبس ښار ته واستوي او په زرینې سلطنتي ماڼۍ کې ځای ورکړي.

ځکه چې زما له اټکل سره سم نفرتي تي وېرېدله، چې که بابلۍ شهزادګۍ په افق کې پاتې شي او فرعون ورسره تفریح وکړي ، دا به امیندواره شي او زوی به وزېږوي

زه د هغې کوټې ته ننوتم او ومې ویل، شهزادګۍ زه د فرعون له لوري راغلی یم ، چې پوه شم ته ښه یې که نه ؟

بابلۍ شهزادګۍ چې مصري ژبه یې څه نا څه زده کړې وه او په خوږه لهجه یې خبرې

کولې ، له ماپوښتنه وکړه ته څوک یې ؟

ومې ویل، زه سینوهه ، د فرعون ځانګړی ډاکټر یم.

شهزادګۍ چې د مصري ښځو په دود یې ژوند کاوه، یانې ټول بدن یې نه و پټ کړی

وویل ، سینوهه ! وګوره زه څومره روغه یم ؟

زه حیرانه یم چې ولې فرعون زما له روغتیا او ښکلا څخه استفاده ونه کړه او له ما سره یې تفریح ونه کړ.

ډېر مې زړه غواړي چې فرعون له ما سره تفریح وکړي، چې نوره زه پېغله پاتې نه شم.

بله خبره دا چې ما اورېدلي په مصر کې ښځې له هغه سړي سره او سېدلی شي، چې دوی یې غواړي او پرې ګران وي.

ومې ویل، شهزادګۍ چا درته ویلي، چې په مصر کې ښځې کولای شي له هر هغه سړي سره تفریح وکړي، چې زړه یې وغواړي.

شهزداګۍ وویل، دغه خبره ما له څو کسانو اورېدلې ده او هغوی ماته ویلي، چې مصري مېرمنې کولای شي، له هر هغه سړي سره څملي چې پرې ګران وي، په دې شرط چې بل څوک له دې سړي سره د هغې په اړیکو خبر نه شي.

ومې ویل شهزادګۍ ډېر لږ داسې کېږي، چې یوه ښځه له خپل خاوند پرته له نورو سړیو سره تفریح وکړي او نور خلک پر دې خبرې پوه نه شي، په تیره بیا د فرعون په ماڼۍ کې دغه ډول اړیکي ډېر ژر افشا کېږي او نور پرې خبرېږي.

ددې لپاره چې هره شهزادګۍ په یوه سلطنتي ماڼۍ کې ژوند کوي یو شمېر خدمتګاران لري، چې هغوی شپه و ورځ له هغې سره وي او د شهزادګۍ ملګري ګوري.

دوی پوهېږي، چې دې ماڼۍ ته څوک څوک راځي او که شهزادګۍ له ماڼۍ ووځي بیا هم پوهېږي، چې چیرته ځي او له کومو کسانو سره ګوري، نو ته نه شې کولای، چې له بل سړي سره څملې او په دې هیله واوسې چې دغه خبره دې پټه پاتې شي.

بابلۍ شهزادګۍ وخندل او بیا یې وویل، کله چې افق ته ستون شې زما له قوله فرعون ته ووایه، چې زما او د هغه ترمنځ منګی مات شوی دی، نو که زه پېغله پاتې شم بې ګټې به وي

دا ډېر ستومانوونکی کار دی او هغه باید ډېر ژر ما له دې ستریا او ستومانۍ څخه وژغوري.

بیا یې خبره بدله کړه ویې ویل سینوهه ! کله چې زه په افق کې وم له ښځو مې اورېدلي

ول، چې ته تکړه ډاکټر او جراح یې، خو ایا ما معالجه کولای شې؟ ومې ویل شهزادګۍ ایا ته ناروغه یې؟

ځوانې نجلۍ وویل، نه خو زه د خپل بدن په یوه برخه کې یو وړوکی خال لرم، چې ته یې له نږدې ونه ګورې دغه خال نه شې لیدلای زه غواړم چې دغه خال له منځه یوسې، ځکه اورېدلي مې دي، په جراحۍ کې داسې مهارت لرې، چې کله جراحي کوې ناروغ ترې خوند اخلي.

اوس دا راته ووایه، چې ایا غواړې ما عملیات کړې کنه؟

وپوهېدم، چې د خال موضوع یوه پلمه ده او ځوانه شهزادګۍ نیت لري چې ما تفریح کولو ته اړ کړي.

له دې شېبې وروسته د شهزادګۍ په کوټه کې پاتې کېدل راته خطرناک ښکاره شول، ځکه کله چې یوه ځوانه ښځه فیصله وکړي، چې یو سړی پر ځان مین کړي، نو نیم ترازو (نیمه ګړۍ ژباړن) نه وي تېر چې هغه ځانته لېوال کړي.

سړی باید په لومړیو شېبو کې وتښتي، ګني داسې پېښه به وشي چې باید نه وای شوې

ما نه شو کولای له داسې ښځې سره تفریح وکړم، چې د فرعون خور (د فرعون ښځه) او پېغله ده.

نو ورته مې وویل زه ستا جراحي عملیات نه شم کولای، ځکه چې خپل جراحي وسایل مې نه دي راوړي او تر دې وړاندې چې شهزادګۍ څه ووایي، د هغې له کوټې راووتم او په دې توګه له زریني سلطنتي ماڼۍ را وتښتېدم.

د دوبي په رارسېدا سره د طبس هوا ګرمه وه، نیت مې درلود، چې بیا هم په دغه ښار کې پاتې شم، خو فرعون د افق ښار ته وروغوښتم، پیغام یې راولېږه، چې د هغه د سردرد زیات شوی دی او باید معالجه یې کړم.

ما کاپتا ته وویل، فرعون غوښتی یم، پیغام یې رالېږلی، چې سر درد یې معالجه کړم او هغه ربښتیا وایي، ځکه فرعون د دروغو سړی نه دی او دروغو ته اړ هم نه دی، نو زه له تا سره خدای پاماني کووم او د افق ښار ته ځم.

کاپتا وویل، زما باداره تر وسه وسه مې ستا لپاره غنم واخیستل او د څو ښارونو په زېرمو کې مې اچولي دي، که د یوه ښار زېرمه له منځه لاړه شي د بل هغه به پاتې وي.

ما د احتیاط لپاره یوه اندازه اخیستل شوي، غنم پټ کړل، ځکه چې ممکنه ده د

راتلونکې کاختې له امله به ستا د ټولو زېرمو غنم ضبط کړي او پر بېوزلو به يې وويشي.
که دغه پېښه وشوه بيا به هم ته غنم ولرې، ځکه دغه غنم د فرعون مامورين نه شي موندلی.
زه خيال کووم چې په راتلونکو مياشتو کې به ډېرې ناوړه پېښې وشي، ځکه چې فرعون سوريې ته د خالي منګيو په صادرېدا بنديز لګولی دی او دغه راز يې سوريې ته د غنمو صادرېدل هم بند کړي دي. خو که سوريې ته د غنمو صادرېدل بند نه وای، بيا هم چا سوريې ته د غنمو د استولو فکر نه کاوه، ځکه چې د مصر په بازار کې غنم نه پيدا کېږي، چې څوک يې واخلي او سوريې ته يې واستوي.
زه نه پوهېږم، چې ولې يې سوريې ته د خالي منګيو د صادرېدا مخه نيولې ده، ځکه چې مونږ يې له ګټې محروم کړي يو.
خو دغه بنديز له منځه هم ورل کېدای شي، په دې ډول کله چې ګړي له اوبو ډک کړو بيا د تشو منګيو نوم پرې نه شو کېښودلی، هغه سوريې ته لېږدولی شو، خو ستونزه دا ده، چې د ډکو منګيو د استولو لګښت زياتېږي.
له دې وروسته چې مې له کاپتا سره خدای پاماني وکړه، له مريت او کوچني تهوت څخه مې هم رخصت واخيست و مې ويل، ډېر خواشينی يم، چې تاسو د افق ښار ته نه شم بيولی، ځکه فرعون امر کړی، چې ډېر ژر ورشم او زما ګړندی سفر ددې مخه نيسي چې تاسې هم له ځان سره بوځم.
مريت وويل، که ته په بېړه هم نه ستنېدای، بيا هم ښه نه وه چې مونږ له تاسې سره لاړ شو.
ومې پوښتل ولې ؟
مريت وويل، که يو صحرايي بوټی له بيديا ښار ته راوړې او په يوه ښېرازه او قوي ځمکه کې يې کېږدې، هره ورځ اوبه ورکړې، خو بيا به هم له څو ورځو وروسته وچ شي، ځکه چې دغه بوټی د ژوندي پاتې کېدا لپاره هوا، لمر او د بيدا بوی ته اړتيا لري.
زما او ستا مينه هم، ددې لپاره چې پر خپل حال پاتې شي، بايد د افق ښار چاپېريال ته ولاړه نه شي، ځکه چې هلته تل درباري ښځې ګورې او هغوی تل تا ته وايي، چې زما او هغوی ترمنځ ډېر توپير شته.
پردې سربېره ستا د مقام او حيثيت لپاره ښه نه ده، چې په افق ښار کې له داسې ښځې سره ژوند وکړې، چې د ميخانې نوکره وي، او تر تا مخکې نورو خلکو ورسره تفريح کړې وي.

ومې ویل، تر هغه وخته چې زه ستا په څنګ کې یم ځان سوکاله احساسوم، خو کله چې ستا له څنګه لرې کېږم پوهېږم، چې د یوه تږي په شان یم چې اوبو ته اړتیا لري.

زه هم تا ته اړتیا پیدا کوم او د هغو ښځو ترمنځ، چې تر ننه مې لیدلې او پېژندلې دي، یوازې ته یې، چې زه یې تر څنګ ځان یوازې نه احساسوم.

زه د نورو ښځو تر څنګ ځان یوازې احساسوم او هیله کوم، چې وکړای شم ډېر ژر تا ته راستون شم او دا ځل له طبسه ونه وځم.

مریت وویل، زه پوهېږم چې که ته افق ته لاړ شې، له هغه ځایه به بیرته راستون نه شې.

ومې ویل ایا دا تصور کولی شې، چې کله زه وایم ، له هغه ځایه راستنېږم نو تا ته دروغ وایم؟

مریت وویل نه ... سینوهه! ته دراغجن نه یې، خو ما اورېدلي چې، فرعون په یوه سختې ناروغۍ اخته شوی او یو شمېر پلویانو هغه خوشې کړی دی.

خو ته داسې څوک نه یې، چې د فرعون د ناروغۍ او بدبختۍ په وخت کې هغه خوشې کړې، نو په افق کې به پاتې شې او له همدې امله نه شې کولای بیرته طبس ته راستون شې.

ومې ویل مریت! زه حاضر یم له تا سره له دې هېواده لاړ شم او په یوه بل ځای کې زه ،ته او تهوت یو ځای ژوند وکړو.

زه د نوي او پخواني خدای له جنګونو او د فرعون له لېونتوبه په تنګ شوی یم، فکر کووم چې له مصر پرته په نورو ځایونو کې هم ژوند کولای شو.

مریت موسکۍ شوه ویې ویل سینوهه! زه ستا له دې خبرې خوند اخلم ، ځکه دغه خبره ښیي چې زه درباندې ګرانه یم.

خو د دې خبرې د کولو پر وخت د هغې د پایلو په هکله فکر نه کوې؟ نه پوهېږې هغه څوک چې په مصر کې لوی شوی وي او د نیل اوبه یې څښلې وي ، په تېره بیا که په طبس کې لوی شوی وي، له دې ځایه پرته په بل هېڅ ځای کې د نیکمرغۍ احساس نه کوي.

بله دا چې که زه له دې هېواده لاړه شم، د عمر د تېریدا له امله به چاغه او بوډۍ شم او مخ به مې د وچې شوې میوې په شان ګونځې وکړي

هر ځل چې ته ما ګورې وبه وېرېږې او ځان به ملامت کړې، چې ولې له ما سره له مصره راوتلی یې او پخپل وطن کې دې، خپله نیکمرغي او سوکالي د یوه موقتي هوس قرباني کړل.

ومې ویل، مریت! زما وطن ته یې او زه له تا سره ځان آرام احساسوم.

زما په خوله کې د نیل او به هغه وخت خوند کوي، چې ستا په څنګ کې یم.

ته وایې چې کله ته بوډۍ شوې، زه به پښېمانه شم، چې ولې مې خپل عمر له تا سره تېر کړ او یا مې له تا سره له مصره کډه وکړه، خو د غه فکر باید هغه کسان وکړي، چې نوي له یو بل سره اشنا شوي وي او د یو بل دوستي یې نه وي ازمویلې.

که داسې وي، چې د بل چاپېریال ښځې ما ستا پر وړاندې بې وفا کړي تر اوسه به دغه کار شوی وای، خو زه به هېڅکله له تا څخه موړ نه شم.

داسې ورځ به رانه شي چې پښېمانه شم، ولې مې له تاسره ژوند کړی دی.

مریت وویل، داچې ما د ملامتي خبره وکړه چې بیا به وایې ولې مې له مریت سره ژوند کړی دی، د یورنګه او تکراري ژوند له امله مې وویل.

سینوهه ! خدای سړی داسې پنځولی دی چې کله لس ځله یو ډول خواړه په پرله پسې ډول وخوري غواړي، چې نور خواړه وخوري حتې که له دغو تکراري خوړو څخه ډېر بې خونده هم وي

همغه ډول چې یو سړی له یو ډول او تکراري خوړو څخه ستړی کېږي همغه ډول له یوې ښځې سره له اوسېدو څخه هم ستړی کېږي، په تېره بیا که وګوري، چې د غه مېرمن بوډۍ او چاغه شوې هم ده.

له دې ټولو سره سره که یو راز نه وای ، زه به له تا سره له مصرنه تللې وای او په یوه بل هېواد کې به مو ژوند کړی وای

خو دغه راز د دې مخه نیسي، چې زه له دې ځایه لاړه شم او ښایي ته یوه ورځ په دې راز پوه شې، ځکه چې تر اوسه پورې ما ستا لپاره دغه راز نه دی ویلی.

له مریت څخه مې وپوښتل، چې راز یې څه دی؟

هغې د دې راز له افشاکولو ډډه وکړه او یوازې دا یې وویل، ښایي داسې ورځ راشي، چې د غه راز به رابرسېره کړم او تاته به یې ووایم.

بیا ما له هغې او تهوت سره خدای پاماني وکړه او په بېړۍ کې د افق پر لور روان شوم.

ما په طبس ښار کې د خپلې دې ایسارتیا ، په هکله ډېرې خبرې وکړې ،په داسې حال کې چې تر هغه وخته کومه خاصه پېښه هم نه وه شوې

ځینې خاطرې د انسان لپاره تر نورو خاطرو ډېرې خوږې وي ، نکل کوونکی له دې کبله چې دغه خاطرې په تفصیل سره بیانوي خوند اخلي.

# دوه څلویښتم څپرکی

## پر مصر د هاتي د حملې سریزه

کله چې دافق ښار ته ستون شوم، ومې لیدل چې اخناتون په رښتیا ناروغ دی او درملنې ته اړتیا لري

د فرعون غومبوري ننوتي او غاړه یې نرۍ او اوږده شوې وه.

په رسمي دستورو کې یې پر خپل سر باندې د کوز و بر مصر د تاج وزن زغملای نه شو او سر به یې ترلاندې کوږ شو.

ماولیدل چې د فرعون ورنونه نري شوي دي او پر ورنو یې تناکې لیدل کېږي

د پښو بندونه یې نري او سترګو یې د بېخوبۍ له امله تورې حلقې وهلې وې.

فرعون د خبرو پر وخت د خپل خدای په فکرکې داسې ډوب و، چې د بل چا مخ ته یې نه کتل او دا به یې هېره شوه چې خبرې کوي

د ده سر هم خوږېده خو تر لمر لاندې به له خولۍ او چترۍ پرته ګرځېد، چې دې کار به یې د سر درد نور هم زیات کړ.

کله چې به یې د هغه مخه نیوله ویل به یې زما د خدای وړانګې برکت راوړي او زه د هغه له وړانګو ځان نه شم بې برخې کولای.

خو د لمر وړانګو د دې پر ځای چې هغه ته برکت ورکړي، داسې به یې وکړاوه، چې فرعون به اوتې بوتې پیل کړې او خپسه به یې تر سترګو شوه.

داسې ښکاریده، چې د فرعون خدای هم پخپله د اخناتون په شان دی او خپل رحمتونه په تاوتریخوالي او سختۍ سره په نورو پیرزو کوي چې د هغو د بدبختۍ سبب کېږي

کله چې ما پر بسترې څملاوه او لوند ټوکر به مې پر سر او تندې ورکېښود او مسکن درمل به مې ورکول، نو د سترګو ځلا به یې کمه شوه.

ده به په اغېزناکو سترګو داسې راته کتل چې نظر به یې زما پر زړه اغېز وکړ.

سره له دې چې فرعون ناروغ او کمزوری و ، خو په دې وخت کې به چې ده راته کتل پر ما به ګران شو او هیله مې کوله، داسې کار وکړای شم چې هغه نهیلی نه وي.

فرعون به په دې وخت کې ویل سینوهه ! ایا هغه شیان چې پر ما یې الهام کېده او ما به لیدل درواغ ول؟

که داسې وي نو ژوند تر هغه ډېر وړونکی دی، چې ما یې تصور کاوه او داسې ښکاري چې نړۍ په مینه او احسان سره نه اداره کېږي بلکې یو وېرونکی او ورانکاری ځواک دنیا اداره کوي.

خو له دې کبله چې ناممکنه ده یو وېرونکی او ورانکاری ځواک نړۍ اداره کړي، زه باوري یم، هغه څه چې ماته یې الهام کېده یا مې کتل سم ول او که له دې وروسته لمر زما پر زړه ونه ځلېږي، نو زه به د هغه څه په اړه شک وکړم چې الهام راباندې کېده.

زه د آتون د الهامونو له امله حقیقت داسې وینم ، چې د خلکو له زړونو خبرېدای شم، مثلاً پوهېږم چې ته فکر کوې، زه لیونی شوی یم.

خو زه دغه تصور دربښم، ځکه چې زما دا نه.شم هېرولی، چې ته هغه څوک یې چې د آتون د حقیقت رڼا ستا پر زړه هم ځلېدلې ده.

خو کله چې له درده کړېده او زګیروي به یې کول ویل به یې، سینوهه ! کله چې یو ځناور ژوبل شي، نو د دې لپاره چې کړاو او درد یې کم شي خلک هغه وژني، خو څوک دې ته نه چمتو کېږي چې یو انسان ووژني چې کړاو او درد یې کم شي.

زه له مرګه نه ډارېږم، ځکه چې پوهېږم د لمر یم او له مړینې وروسته د لمر پر لوري ځم، خو له دې ډارېږم چې زه به داسې وخت کې مړ شم چې آتون لا تول مصر نه وي نیولی.

په مني چې هوا سړه شوه او د لمر وړانګې کمې شوې ، ورسره په ځنګ کې زما معالجه هم وه، نو د فرعون حالت څه ناڅه ښه شو.

کله ناکله به مې فکر کاوه چې که مې آزادي درلودای، هغه به مې په خپل حال پرېښوداې چې مړ شي، خو که یو ډاکټر وکړای شي خپل ناروغ معالجه کړي او یا یې درد کم کړي دا اجازه نه لري، چې هغه په خپل حال پرېږدي چې مړ شي.

ښه ډاکټر، باید ښه سړی،بد ،نیک او ورانکاری سړی یو شان معالجه کړي او پر هر چا مهربان وي.

له دې وروسته چې د فرعون وضیعت ښه شو ، د پخوا په شان په خپلو سوچونو کې

ډوب شو، تل يې د خپل خداى په هکله فکر کاوه.

له دې کبله چې دى پوهېده پر آتون عقېده د هغه په غوښتنه پرمختګ نه کوي، نو پر خپلو شاوخوا کسانو بدبينه کېده.

په دې وخت کې د مصر ملکې نفرتي تي پېنځمه لور وزېږوله.

دا د دې پېښې له کبله داسې غمجنه شوه چې فيصله يې وکړه له فرعون څخه غېږ واخلي، ځکه چې فرعون يې ګنهګار باله، تصور يې کاوه، چې د جسمي ستونزې له امله نيمګړتيا لري او له دې امله هغه تل لور زېږوي.

له فرعون څخه د ملکې غېږ په دې ډول و، چې کله د شپږم ځل لپاره اميندواره شوه، نو هغه اولاد يې د فرعون له نسله نه و، ځکه چې نفرتي تي موافقه کړې وه، چې يو بهرني تخم وکري او هغه داسې سپين سترګې شوه، چې له ټولو سره به يې تفريح کوله.

تو تمس ماته وويل، کله چې هغه له نفرتي تي سره تفريح کوله، هغې ورته ويلي ول، نيت لرم پخپلې ښکلا سره هغه کسان چې فرعون ته نژدې دي د ځان په لور جذب کړم له فرعون نه يې لرې کړم.

نفرتي تي داسې ښځه وه، چې د خپلو موخو د پوره کولو لپاره يې له خپلې ښکلا استفاده کوله.

له دې کبله چې سلطنتي وينه يې په رګونو کې نه وه (ځکه چې د آمي لور وه) نو دا ورته مهمه نه وه، چې پردي کسان هم ورسره خملي.

خو بايد ووايم، چې د پېنځمې لور تر زېږېدا پورې نفرتي تي ډېره پاکه مېرمن وه.

سره له دې چې ډېر درباريان يې غوښتونکي ول او ګران بيه ډالۍ به يې ور کولې، خو له هېچا سره همبستره نه شوه او تر ټولو يې فرعون غوره باله.

له همدې امله ځينو کسانو د ملکې انحراف سپيره فال باله او هغه يې د مصر د ملت او د افق د ښار د اوسېدونکيو د بدبختۍ يوه نښه وبلله.

دغه انګېرنه په تېره بيا هغه وخت ډېره شوه چې اوازه ګډه شوه، نفرتي تي نه يوازې له درباري شخصيتونو سره ساعت تېري کوي، بلکې د لېبيا سپاهيان او کارګران هم خپلې کوټې ته بيايي.

خو ما پر دې اوازې باور نه کاوه، ځکه چې پوهېدم خلک غواړي تر حده زياتې خبرې پسې وکړي او د سترو کسانو مېرمنې تر هغه ډېرې بدنامه کړي چې په رښتيا دي.

فرعون د خپلې مېرمنې له خپل سر يو او انحرافاتو ناخبر و او له چا سره يې ناسته پاسته نه وه چې پرې خبر شي.

اخناتون له وچې ډوډۍ او د نيل له اوبو پرته بل څه نه خوړل او نه څښل، ويل به يې، زه بايد له خوندورو خوړو څخه په پرهيز سره ځان پاک او تصفيه کړم، چې آتون په ښه توګه راته ښکاره شي.

له دې کبله چې غوښه ،شراب ، او د اوربشو اوبه نشه او مستي زېږوي، نو د دې مخه نيسي چې د حقيقت نور پر ما وځلېږي.

له بهرنيو هېوادونو څخه مصر ته خواشينوونکي خبرونه را رسېدل او آزيرو مصر ته پخپلو رالېږلو لوحو کې ويل، چې زما عسکر غواړي خپلو کورنو ته ستانه شي، خپل پسونه وڅروي او ځمکې وکري.

خو يو شمېر غله او ډاکوان چې په غزه او سينا سيمو کې اوسي، د مصر پر وسلو سنبال دي او مصري افسران قومانده ورکوي، تل د سوريې پر خاوره حملې کوي.

له دې کبله چې دغو ډاکوانو د سوريې لپاره يو دايمي خطر رامنځته کړی دی زه نه شم کولای چې خپل عسکر رخصت کړم.

بله دا چې د غزې ښار قوماندان د سوريې او مصر ترمنځ د موافقې د روح او متن پر خلاف عمل کوي او غزې ته د سوريې د عسکرو د ننوتو مخه نيسي.

دغه راز هغه سريا يي کاروانونه چې بايد غزې ته لاړ شي، دی يې بېرته راستنوي او دغه غليمانه کار د سوريې ګټو ته تاوان رسوي.

که زما پر ځای بل هر څوک وای تراوسه پورې به يې د صبر کاسه ډکه شوې وه او جنګ به يې پيل کړی وای، خو له دې کبله چې مونږ د سولې غوښتونکي يو، نو تراوسه پورې مو غليمانه اقدام نه دی کړی. سره له دې زموږ زغم هم يو حد لري او کله چې له حده واوړي بيا د سوريې د عسکرو او افسرانو مخه نه شو نيولی.

د بابل پاچا غوښتل پر سوريې غنم خرڅ کړي او د سوريې په بازار کې يې د مصر له سيالۍ شکايت کاوه.

که څه هم اوس له مصر څخه سوريې ته غنم نه تلل، خو د سوريې په بازارونو کې د مصر دومره غنم ول، چې د بابل سوداګرو په آسانه خپل غنم نه شوای خرڅولای.

په مصر کې د بابل سفير خپله ډېره په لاس کې ونيوله او په هيجان سره يې وويل، زما

بادار او د بابل پاچا د یوه زمري په شان دی، چې په خپل کمین کې ناست دی او هوا بویوي، چې نسیم ورته له کومه لوري د ښکار بوی راوړي.
کله چې یې د مصر نسیم بوی کړ هیله من شو چې له مصر سره اتحاد او دوستي د هغه په ګټه ده، په داسې حال کې چې تراوسه زما بادار له دې دوستۍ څخه ګټه نه ده اخیستې.
که مصر دومره کمزوری دی، چې بابل ته سره وسپین نه شي استولی چې د بابل پاچا پرې قوي او مضبوط سپاهیان وګماري او جنګي ګاډي جوړ کړي، نو زه نه پوهېږم چې د بابل او مصر د دوستۍ پایله به څنګه وي؟
زما بادار ډېر غواړي، چې له ښتمن او پیاوړي مصر سره متحد وي، ځکه چې پوهېږي دغه یوالی د نړۍ د سولې ضمانت کوي.
بابل او مصر دواړه ښتمن دي، جنګ ته اړتیا نه لري او له دې کبله چې دوی پیاوړي دي، نو نور هېوادونه یې له یو ځای کېدو او اتحاده وېرېږي او ورسره جنګ نه کوي.
خو له یوه کمزوري او بېوزلي مصر سره اتحاد، نه یوازې زما د بادار لپاره ګټه نه لري، بلکې د بابل پر اوږو دروند بار دی.
کله چې د بابل پاچا واورېدل، چې فرعون په دې اسانۍ له سوریې څخه تېر شو او هغه یې آزیرو او د هغه هاتي متحدینو ته وسپارله، نو هک پک شو ویل یې، پر ما مصر ډېر ګران دی او د مصري فرعون او ملت نیکمرغي غواړم.
خو له دې کبله چې د بابل سفیر یم مجبور یم، چې د بابل د پاچا ګټې پر مصر غوره وبولم او پوهېږم، چې ډېر ژر به د بابل پاچا ما له مصره ور وغواړي، ځکه چې دلته زما سفارت ګټه نه لري.
زه خواشیني یم چې د خپلې دندې له ترسره کولو پرته بابل ته ستنېږم، ځکه ماغوښتل د مصر او بابل اتحاد د خبرو او شعار له حده واوړي او عملي اړخ پیدا کړي.
ما د بابل د سفیر خبرې تایدولې، ځکه چې پوهېدم سمه خبره کوي او له یوه کمزوري او بېوزلي هېواد سره اتحاد د یوه پاچا لپاره هېڅ ګټه نه لري.
د بابل پاچا بورابوریاش چې تر دې ورځې یې په پرله پسې توګه خپلې درې کلنۍ میرمنې (د فرعون لور) ته لوبتکې او رنګ شوې هګۍ را استولې، اوس یې د دې ډالیو له را استولو ډډه وکړه.
داسې ښکارېده چې دی غواړي اړیکې غوڅ کړي، په داسې حال کې، چې پوهېده د

کوچنۍ مصري شهزادګۍ په رګونو کې د مصر د پاچاهانو يعنې د خدايانو وينه بهېږي

*(مه حيرانېږئ چې ولې د بابل پاچا خپلې درې کلنۍ ميرمنې ته رنګ شوې هګۍ را استولې، ځکه چې په هغه وخت کې په مصر کې چرګې نه وې او مصريانو نه چرګې پېژندلې او نه يې ليدلې وې ژباړن)*

په همدې وخت کې د هاتي يو پلاوی مصر ته راغی.

د دې پلاوي غړي د هاتي يو شمېر اشرافان او خانانول او ويل يې، ددې لپاره راغلي چې د مصر او هاتي پخوانۍ دوستي تاييد کړي.

دغه راز دوی ويل غواړي، چې د مصريانو له اخلاقو او عادتونو سره چې په نړۍ کې ډېر مشهور دي بلد شي او د مصر د پوځ له پوځي تخنيکونو او نظم څخه درس واخلي.

د پلاوي غړي ظاهراً ښه اخلاقي او هوښيار کسانول او درباريانو ته يې ډالۍ هم ورکړې.

منجمله د اوسپنې په نوم له يو ډول فلز څخه جوړه چاړه يې د فرعون زوم (توت) ته ورکړه او توت دې ډالۍ ته ډېر خوشحاله شو، ځکه ويې ليدل، چې په دې ډول چړې سره د مصر چړې دوه ځايه کولای شي.

ما چې بهرنيو هېوادنو ته په سفرونو کې يوه وسپنېزه چاړه له ځانه سره راوړې وه، توت ته وويل غوره دا ده چې دغه ګران بيه فلزي چاړه د سرياوالو په شانې په سرو او سپينو سره ښکلې کړې او توت هم دغه کار وکړ.

ده وويل، زړه يې غواړي او سپنيزه چاړه پخپل قبر کې کېږدي، ځکه توت فکر کاوه، چې زر به مړ شي او برياالی به نه شي چې خپل طبيعي عمر وکړي.

د هاتي د پلاوي غړي چې ډېر مضبوط کسان ول، برېښنده سترګې يې درلودې او ډېر ژر د افق ښار پر ښځو ګران شول، ځکه چې مېرمنې له هر نوي شي څخه خوند اخلي.

د مصر درباريانو به د دغه پلاوي غړي خپلو کورنو ته بلل.

پلاوي به په مېلمستياوو کې ويل: موږ پوهېږو، چې زموږ د ملت او هېواد په هکله ځينې شيان ويل شوي دي، چې ترهه يې را منځته کړې، خو دغه ځرګندونې سمې نه دي

هغه کسان چې پر موږ يې نېکمرغي نه پېرزو کېږي او بخيلي راسره کوي پر موږ دغه تورونه لګوي.

موږ داسې ملت يو چې ليکل او لوستل کولای شو.

دغه راز په موږ پسې ویل کېږي چې خواره مو د ماشومانو وینه او او ومه غوښه ده، خو ددې پر خلاف موږ سریایي او مصري خواره خوښوو.

موږ ارام او سوله غوښتونکي خلک یو، له جنګونو کرکه کوو او تاسې ته د ډالیو په بدل کې له ګټورو معلوماتو پرته بل څه نه غواړو.

موږ په دې توګه غواړو چې د خپل ملت او ځان پوهه او صنعت لوړ کړو.

زموږ ډېر زړه کېږي، چې پوه شو د مصر په پوځ کې لیبیایي عسکر څه ډول وسلې لري او هیله لرو چې ستاسې د ګړندیو جنګي ګاډیو مانورې وګورو.

موږ پوهېږو، چې زموږ ګاډي ستاسې د ګاډیو پر وړاندې ډېرې درنې او غړنده دي.

موږ پوهېږو، چې د میتاني تښتېدلي کسان کله چې وتښتېدل او دلته راغلل زموږ په هکله یې ډېرې وېروونکې خبرې کړې دي.

تاسې باید د هغوی پر خبرو باور ونه کړئ، ځکه چې دغه خبرې هم د هغوی د غوسې او نهیلۍ له امله او هم د دوی دوېرې له امله دي.

دغه کسان چې اوس په مصر کې دي که په میتاني کې پاتې وای، هغوی ته به هېڅ تاوان نه وای رسېدلی.

دوی اوس هم خپل هېواد ته ستنېدای شي، موږ ډاډ ورکوو چې د هغو تورونو له امله به ترې خپه نه شو، چې پر موږ یې لګولي دي او موږ به د غچ اخیستو فکر ونه کړو، ځکه چې پوهېږو هغوی له ډېرې نهیلۍ څخه پر موږ چتي تورونه لګولي دي.

دا چې موږ ولې میتاني هېواد ته ننوتو علت یې دادی، چې زموږ نفوس ډېر دی او زموږ پاچا غواړي چې د هغه د ملت بچیان ډېر شي. له همدې امله د ځای د کمي له امله د ژوند کولو فضا را ته تنګه شوې ده او زموږ د ملت بچیانو نورو ځمکو ته اړتیا درلوده، چې هلته کرنه وکړي.

دوی داسې څړځایونه غوښتل چې خپل څارويي پکې وروزي او زموږ په هېواد کې دغه ډول ځمکې او څړځایونه نشته.

په بدل کې یې په میتاني کې دغه ډول ځمکې او ښکلي څړځایونه ډېر دي او بله دا چې د میتاني اوسېدونکي هم لږ دي.

هلته هره کورنۍ تر یوه یا دوو ماشومانو ډېر نه لري.

پر دې سربېره موږ دا نه شوای زغملای، چې په میتاني هېواد کې دې ظلم واکمن وي

او خلک دې د يوه ظالم او جابر حکومت تر سيوري لاندې وي، ځکه چې پخپله خلکو د ظلم د ختمولو لپاره له موږ څخه مرسته وغوښته او موږ ميتاني ته ننوتو.

تاسې بايد يوه شئ چې موږ د فاتحانو او نيواکګرو په توګه دې هېواد ته نه يو ننوتي، بلکه د هغوی د ژغورلو لپاره ورغلي يو، چې له بې رحمه واکمنانو يې وژغورو.

موږ اوس د کرلو لپاره د ېره ځمکه او د څاريو د څرولو لپاره ډېر څرځايونه لرو، نو دې ته اړتيا نه لرو، چې د نورو ځمکې او څرځايونه ونيسو په تېره بيا دا چې موږ سوله غوښتونکي انسانان يو او غواړو چې تل په سوله او کرارۍ کې ژوند وکړو.

کله چې د هاتي پلاوي دغه خبرې کولې او د شرابو جامونه يې پر سر اړول، نو له څرګندونو يې د صداقت داسې نښې څرګندېدې چې ټول به يې ځانته جذب کړل.

دوی په دې خبرو سره ډېر ژر د مصر ټول درباريان د ځان ملګري کړل او ټولو ځايونو ته يې لاره وموندله.

خو ما چې د هغوی هېواد ليدلی و، او دا مې هم ليدلي و چې څه ډول خلک په سيخونو کې ورکوي او سترګې يې وررندوي، نو د نورو په شان مې د هغوی په خبرو باور نه کېده.

زه د افق په ښار کې د هغوی د او سېدو له کبله اندېښمن وم، نو ځکه له مصره د هغوی په تګ خوشحال وم.

زه پوهېدم، دغه پلاوی چې د مصر له حالاتو هر ډول معلومات ترلاسه کوي، ممکنه ده يوه ورځ د مصر په تاوان له هغو څخه استفاده وکړي.

کله چې ما افق ته مراجعه وکړه ومې ليدل چې د ښار وضعيت بدل شوی دی.

زه چې کله له افقه طبس ته تلم ښار غلی و، عيش و عشرت او ساعت تېري ته د خلکو زړه نه کېده، خو کله چې بيرته راستون شوم ومې ليدل چې له بېګا تر سهاره به څراغونه روښانه ول او له ميخانو او عمومي کورونو څخه به د خوښيو اوازونه راتلل.

د خانانو په کورنو کې به د خوشحالۍ او موسيقۍ جشنونه جوړېدل او نوکرانو او مريانو به هم د خپلو بادارانو په جشنونو کې برخه اخيستله

خو دغه عيش و عشرت او ساعت تېري يو ډول مصنوعي او ظاهري ښکارېده او داسې و، لکه چې خلک د نړۍ د حالاتو د بدلون احساس کوي

يا د داسې پېښو د کېدو احساس کوي، چې نور به هغوی ته د خوښيو اجازه نه ورکوي

، نو ځکه باید له دغه فرصته استفاده وکړي او خپل وخت ښه تېر کړي، چې که فرصت له لاسه ووت، بیا خواشیني نه شي چې ولې یې له تېر عمره استفاده نه ده کړې.

هغه څه چې ښودل یې دغه خوشحالي طبیعي او عادي نه ده دا و چې کله به ناڅاپه ښار خاموش شو او هېڅ غږ به نه اورېدل کېده ،داسې ښکاریدل چې خلک د خوشحالیو په منځ کې ناڅاپه متوجه شوي چې کومه ناوړه پېښه رامنځته کېږي او دراتلونکې په اړه اندېښمن دي.

هنرمندان هم دشتمنو په شان له یوه غیر عادي او ناڅاپي فعالیت سره مخامخ شوي ول او داسې فکر یې کاوه، چې که کوم نوی شی ونه پنځوي نو وخت به یې له لاسه ووځي.

هنرمندانو هنري حقیقتونه د مبالغې په بڼه انځورول چې په نتیجه کې د خلکو څېرې په کاریکاتوري بڼه څرګندېدې.

له دې سره سره چې هنري حقیقتونه یې داسې ساده ایستل چې ځینو به د یوه کس د بشپړې څېرې پر ځای د هغه کس د انځورولو لپاره څو کرښې او تکي ایستل.

دغو هنرمندانو به د فرعون د بنې د انځورلو لپاره داسې مبالغه کوله چې د هغه له اندام او څېرې سره یې بېخي توپیر درلود او کله چې به انسان ورته کتل ترې وبه ډارشو.

یوه ورځ ما په دې اړه له توتمس سره خبرې وکړې، ومې ویل، فرعون له تا سره نیکي وکړه، ته یې له خاورو پورته کړې او خپل ملګری یې کړې، نو ته ولې د هغه مجسمه په داسې بڼه باسې چې ته وا له هغه سره دښمني لرې؟

توتمس را ته وویل سینوهه! ته یو ډاکټر یې، په هنر نه پوهېږې او د هغه شي په هکله نظر مه ورکوه، چې پرې نه پوهېږې.

توتمس وویل، ښایي زه له فرعون سره دښمني، ولرم خو دغه موضوع زما په هنر پورې تړلې نه ده.

هنر داسې شی دی، چې په دوستي او دښمنۍ نه پوهېږي او کله خو داسې هم کېږي چې یو هنرمن د دښمنۍ په حال کې داسې اثر وپنځوي چې په دوستۍ کې یې نه شي کولای.

زه یو پنځوونکی یم، هغه څه چې زه یې پنځوم ،زما هنر دی او هغه د خپل ذوق او استعداد په اساس جوړوم.

دغه راز هغه څه چې زه یې پنځوم هغه به تلپاتې وي

فرعون مري او آتون له منځه ځي، خوزه پاتې کېږم یانې هغه څه، چې له ما څخه پیدا

شوي دي او زما هنر دی هغه پاتې کېږي.

کله چې تو تمس خبرې کولې ما يې سترګو او مخ ته کتل او پوهېدم چې هغه سهار شراب څښلي دي، نو طبیعي حالت نه لري او دغه خبرې د شرابو د مستۍ له کبله کوي، نو خبرو ته يې حيران نه شوم او کرکه مې ترې وشوه.

بیا د مني فصل راغی، د نیل اوبه مستې شوې او ورپسې ژمی را ورسېد.

د ژمي په را رسېدا سره لکه چې خلکو يې اټکل کاوه، په مصر کې کاختي پیل شوه او له سورېې څخه هم وحشتناک خبرونه را رسېدل.

دغه راز معلومه شوه چې آزیرو د سورېې د ډېرو ښارونو دروازې د هاتي د سپاهیانو پر مخ خلاصې کړې، د هاتي د پوځ سپکې ګاډۍ له سینا د ښتې تېرې شوې او پر (تانلیس) ښار يې حمله کړې، او ټوله هغه سیمه يې ورانه کړې ده.

***

د دغو وېروونکو خبرونو له رارسېدو سره سم آمي له طبس او هورم هب له ممفیس څخه د افق ښار ته راغلل، چې د دې پېښو په اړه له فرعون سره مشوره وکړي.

ماهم په دې غونډه کې برخه واخیسته چې که د دغو دوو تنو د څرګندونو له امله د فرعون طبیعت خراب شي نو معالجه به يې کړم.

آمي وويل، اې اخناتونه! سږ کال موږ ونه کړای شول چې د مصر د جنوب مالیات راغونډ کړو، ځکه چې د هغه ځای خلک د کاختۍ له امله بېوزله شوي دي او د مالیاتو ورکولو وس نه لري.

اوس د فرعون د غلو دانو ډېپوګان تش شوي دي او له دې ډېپوګانو څخه د خلکو د لوږې د مخنیوي لپاره استفاده نه شو کولای.

خلک له ډېرې لوږې د ونو ریښې او د ونو پوستکي حتی چونګښې او ملخان خوري.

تر اوسه پورې يو شمېر کسان له لوږې مړه شوي دي او نور به هم مړه شي، ځکه چې د فرعون غله دومره کمه ده، چې هر څومره د سیمې د اوسېدونکو اندازه کمه کړو بیا هم د هغوی د مرګ مخه نه شو نیولای.

ځینې سوداګر غله لري، خو دومره ګرانه يې خرڅوي چې خلک د هغوی غنم اخیستلای نه شي.

د کلیو او بانډو اوسېدونکي له کلیو څخه د ښارونو پر لوري ځي، ټول وايي چې پر

موږ د آمون لعنت شوی دی او زموږ ټوله بدبختي د فرعون د نوي خدای له امله ده.

خو ، اې فرعونه ! زه تاته وايم، چې د آمون قدرت بيرته ستون کړه او هغه د مصر خدای وبوله چې د آمون کاهنان او خلک له ترهې او وېرې وژغورل شي او کروندګر و کرای شي د آمون په ځمکو کې فصلونه وکري.

داځکه، چې اوس ځوک ستا او ستا د خدای په ځمکو کې کوم شی نه کري او باوري دي، چې ستا د خدای پر ځمکو لعنت شوی دی .

که ته سمدستي له آمون سره پخلاشې دغه وېرونکې کاختي به له منځه لاړه شي، ګني ټول خلک به له لوږې مړه شي او زه هم د هغوی د ژغورلو لپاره څه نه شم کولای.

هورم هب وويل :اې فرعونه !زه خبر يم چې د بابل پاچا بورابورياش، د دې لپاره چې د هاتي له حملې خوندي پاتې شي، له هغه هېواد سره سوله کړې او آزيرو هم له وېرې هغوی ته د سوريې ټول ښارونه پرانيستي پرې ايښي دي.

نن سبا په سوريه کې د هاتي د عسکرو شمېر د بيديا د شګو او د هاتي د سپاهيانو د جنګي ګاډيو شمېر د ستورو په اندازه دي.

زه شک نه کوم چې د هاتي عسکر دې په پسرلي کې لومړنۍ حمله پر مصر وکړي، ځکه چې د سوريې او مصر ترمنځ په ټولې بيديا کې يې د اوبو منګي ايښي دي، چې کله دهاتي عسکر په پسرلي کې په دې بيديا کې تېرېږي، نو چې تږي نه شي.

دغه منګي يې هم له مصره اخيستي دي.

مصري سوداګرو په دې خيال چې هاتي ګني له دغو منګيو څخه بله استفاده کوي، د مصر ټول زاړه منګي پر هاتي خرځ کړي دي.

دوی پر دې خبر نه ول چې د ځان د تباهۍ وسيلې برابروي.

د هاتي افسران او سپاهيان دومره زړه ور دي، چې له ژمي سره سره يې په تانليس بريد وکړ.

که څه هم هلته يې ډېر ورانی نه دی کړی، خو ما په مصر کې اوازه ګډه کړه، چې هغوی ډېره مرګ‌ژوبله اړولې او غميزې يې رامنځته کړي دي، چې د هغوی پر خلاف د مصر د خلکو کرکه او غوسه راوپاروم او خلک وهڅوم، چې په قدرت او سختۍ له هاتي سره وجنګېږي.

اې فرعونه !لا وخت نه دی تېر شوی او کولای شو د هاتي او دغه راز د هاتي د متحد

آزيرو مخه ونيسو.

اې اخناتونه! امر وکړه چې د جنګ د پیلولو لپاره د جنګ نغارې ووهي او له ټولو ځوانانو څخه وغواړه چې پوځ ته راشي.

حکم وکړه، هرڅوک مره مس چې لرو، بايد د وسلې په جوړولو يې ولګوو.

زه له تا سره وعده کوم چې که جنګ پيل کړې او زما وړانديز ومنې، هم به هاتي په شا وتمبوې، هم به سوريه بيرته ترلاسه کړې دغه جنګ به په داخل کې هم يو ګټه وکړي، هغه دا چې خلک له بهرني جنګ سره مخامخېږي نو له دې سره به آمون، آتون او کاختي ټول هېر کړي.

کله چې آمي دغه خبرې واورېدې، لږ شکمن شو او نه پوهېده چې څه ووايي. بيا يې وويل، اې فرعونه! د هورم هب خبرو ته غوږ مه نيسه، له ورايه ښکاري چې هغه ستا د غولولو نيت لري، ځکه چې دغه سړی غواړي قدرت ترلاسه کړي.

دی غواړي تا د سلطنت له ګدۍ ښکته کړي او خپله پرې کېني.

زه باوري يم چې ته به ډېر ژر د آمون له کاهنانو سره پخلاشې خو لومړی د هغوی ځمکې بيرته ورکړه.

له دې وروسته که دې بيا غوښتل نو د آزيرو او هاتي پر خلاف جنګ پيلولای شې، خو د خپلو سپاهيانو قوماندانې هورم هب ته مه ورکوه.

دهورم هب پر ځای يو بوډا او باتجربه قوماندان، چې پخواني پوځي تخنيکونه يې زده وي او د پخوانيو فرعونيانو د جنګ اصول يې په پاپيروسونو کې لوستي وي، پر دغه دنده وګماره، او پر دې هم ځان ډاډه کړه چې هغه نه غواړي له تا څخه ستا پاچاهي واخلي.

هورم هب په دې وخت کې وويل، که اوس موږ د فرعون په مخکې نه وای ما به په سوکانو په مخ وهلی وې.

ته آمي! له دې کبله چې يو دروغجن او چلباز کاهن يې، تصور کوې، ټول ستا په شان دي او زه پوهېږم چې تا په پټه د امون له کاهنانو سره مذاکره کړې او هغوی ته دې وعده ور کړې، چې فرعون به اړباسې چې د آمون د خدايي دوره به بيرته احيا کوي.

خو زه فرعون نه غولوم او د هغه پاچاهي ته مې سترګې نه دي نيولې، زه همغه سړی يم چې کله فرعون وړوکی و، په بيديا کې مې په خپلو جامو سره هغه له يخنۍ وساته

دغه سړی (اشاره يې ماته وه) په همغې بيديا کې موجود و او ويې ليدل چې ما خپلې

جامې هغه ته ور واغوستلې.

زما هدف دا دی چې مصر له منځه لاړ نه شي او هغه څه، چې زه يې وايم د مصر د لوړاوي او حيثيت ساتلو لپاره دي.

زه پوهېږم، چې له ما وروسته څوک نه شي کولای د مصر عظمت وساتي.

فرعون له هغوی څخه پوښتنه وکړه، ايا ستاسې خبرې پای ته ورسېدې؟

دواړو وويل هو ! زموږ خبرې پای ته ورسېدې.

فرعون وويل، تر دې وړاندې چې زه ستاسې ځواب درکړم، بايد ټوله شپه ويښ پاتې شم او له خپل خدای سره مشوره وکړم.

خو تاسې سبا خلک راوبولئ او ووايئ، چې له شتمن او بېوزله رانيولې، تر مريي او باداره پورې او حتی هغه مريان، چې په کانونو کې کار کوي، ټول دې راشي، ځکه چې زه سبا نيت لرم له خپل ملت سره خبرې وکړم او خپله فيصله اعلان کړم.

دغه حکم عملي شو.

پر بله ورځ خلک د فرعون د ماڼۍ په مخکې راټول شول.

تر هغه مخکې کرۍ شپه فرعون په ماڼۍ کې ګرځېده، ډوډۍ يې هم ونه خوړه او له هېچا سره يې خبرې ونه کړې، تر دې حده چې زه ورا خطا شوم چې بيا يې طبيعت خراب نه شي.

خو پر بله ورځ کله چې هغه د خلکو په مخکې پر تخت کېناست لاس يې پورته کړ او خبرې يې پيل کړې، ما وليدل چې مخ يې له ډېره هيجانه پړقيده.

فرعون داسې وويل: زه يو کمزوری کس وم او زما د کمزورتيا له امله په مصر کې کاختي راغله.

دغه راز زما د کمزورتيا له امله دښمن هوډ کړی، چې د مصر پر خاوره حمله وکړي او اوس د هاتي پوځ په سوريه کې ځان پر توره خاوره د حملې لپاره چمتو کوي.

(*له توري خاورې مقصد مصر دی، ژباړن*) زه له دې امله کمزوری وم، چې د خپل خدای غږ مې سم وا نه ورېد او هغه مې ښه ونه لېد.

خو وروسته زما خدای ما ته څرګند شو، د هغه اور زما په ګوګل کې بل شو او پوه شوم، چې زما د کمزورۍ علت څه دی؟

زه له دې امله کمزوری وم، چې د دروا غجن خدای آمون له پرځولو وروسته مې د مصر

نور خدایان پخپل حال پرېښودل، چې هر ډول غواړي ژوند وکړي.
زه نه پوهېږم، چې دغو خدایانو له زرګونو کلونو راهیسې مصر غصب کړی دی او د یوازېني خدای آتون پر وړاندې تر ټولو ستر مدعیان دي.
دوی نه پرېږدي چې آتون په آرامۍ سره، په ټول مصر کې خدایي وکړي، نو له همدې امله وایم چې نن دې په ټول قدرت سره د مصر ټول خدایان له منځه یوړل شي.
دغه موجودات دې تباه کړای شي، چې له زرګونو کلونو راهیسې یې توره خاوره پر خپله ځاله بدله کړې ده.
اې د مصر ملته! له ننه وروسته یوازې یو خدای پر ټول مصر حکومت کوي او هغه آتون دی.
د آتون له وړانګو پرته به بل هېڅ وړانګه پر نړۍ ونه ځلېږي.
کله چې خلکو واورېدل، فرعون غواړي د هغوی ټول خدایان له منځه یوسي، نو له وېرې ورېږدېدل او ځینو پکې سجده وکړه.
فرعون په داسې حال چې لاس یې د اسمان پر لور اوچت کړی و، په لوړ غږ ناري کړې:
اې د مصر ملته... اې هغو کسانو چې زه درباندې ګران یم.... همدا شېبه او له همدې ځایه روان شئ او د مصر ټول پخواني خدایان زا وپرځوئ!
د هغوی محرابونه ونړوئ، د دې غاصبو خدایانو د سپېڅلو غوړیو او اوبو لوښي نسکور کړئ، معبدونه یې له منځه یوسئ او هڅه وکړئ چې په هېڅ یوه ډبر لیک او معبد کې د هغوی نوم پاتې نه شي.
زه تاسې ته اجازه درکووم، چې ددې غاصبو خدایانو د نومونو د ورانولو لپاره قبرونه هم وکنئ او مجسمې ماتې کړئ، چې مصر ددغو خدایانو له ظلم، فتنې، کرکې او تمې څخه وژغورل شي.
اې خانانو او اشرافو! ګورز او سوټي را واخلئ!... او تاسې! اې مجسمه جوړونکو او انځورګرانو! خپل د کندنکارۍ قلم او د انځورګرۍ مویک لرې واچوئ! ګورز او لرګي در واخلئ.. او تاسې اې کارګرانو پتک او څټک څنډې ته کړئ او مارتولونه واخلئ... او تاسې اې کروندګرو! خپل لرونه تېره کړئ، روان شئ او د مصر په ښارونو او کلیو کې که د پخوانیو خدایانو هر ډول نښه ګورئ هغه له منځه یوسئ.
دغو خدایانو چې له زرګونو کلونو را هیسې یې په دې هېواد کې خدایي کړې، زېږول

يې کړي دي او دغه هېواد يې له خدای زادګانو ډک کړی دی، نو ناممکنه ده چې له خپلو ګټو تېر شي.

شونې نه ده، چې اجازه ورکړي په دغه هېواد کې د شتمنو او بېوزلو توپير ختم شي، دغه راز په دې هېواد کې ځمکې په مساويانه توګه وو ېشل شي.

تر هغه چې په مصر کې د هغوی نسل له منځه يو نه سئ، د غه هېواد به د حريصو او غاصبو خدايانو له شتونه پاک نه شي.

ایٰ د مصر ملته! سر له نن څخه په دې هېواد کې نه څوک بادار دی او نه مريي، نه څوک بادار دی او نه نوکر، هېڅوک دا حق نه لري چې بل څوک پخپله ځمکه کې کار کولو ته مجبور کړي او هېڅوک حق نه لري چې بل اړ کړي، د هغه په کان کې کار وکړي.

هر څوک آزاد دی، چې هر چيرته غواړئ لاړ شي او هره دنده، چې غواړي تر سره کولای يې شي.

د مصر ټول او سپېدونکي د يوه بل پر وړاندې او د آتون پر وړاندې يو شان دي ....

کله چې د مصر د فرعون خبرې دې ځای ته ورسېدې، نو ناري يې کړې، ستاسې د فرعون خبرې پای ته ورسېدې، کولای شئ لاړ شئ او د مصر خدايان رانسکور کړئ.

هغه څه چې خلکو د فرعون له خولې واورېدل، دومره عجيب ول چې باور يې پرې نه شو کولای، خو فرعون په داسې جذبې او صميميت سره خبرې کولې، چې پر خلکو يې اغېز وکړ.

خلکو ويل، شک نشته چې د فرعون خدای له هغه سره خبرې کړې دي، ځکه که د هغه خدای دغه حکم نه وای کړی، نو د فرعون کلام به دومره اغېزناک نه و، زموږ پر روح به يې داسې اغېزه نه وه کړې او موږ بايد د هغه امر ومنو.

کله چې خلک تيت پرک شول، آمي وويل، اخناتونه! اوس ته سلطنتي تاج له سره لرې کړه او سطنتي لکړه ماته کړه، ځکه هغه څه چې تا وويل ددې سبب کېږي، چې ستا سلطنت له منځه يو سي.

فرعون ځواب ورکړ، هغه څه چې ما وويل، د دې سبب به شي، چې زما نوم تلپاتې شي او له دې وروسته به زما قدرت د نړۍ تر پايه پورې د وګړيو په روح کې پاتې وي.

آمي په ډېر تحقير سره ناړې پر ځمکه تو کړې او ويې ويل، که داسې وي، نو زه د يوه لېوني پر وړاندې خپل مسوليت بېرته اخلم او وايم، چې مجبوره نه يم د فرعون درناوی

وکړم.

بیا آمي روان شو، چې لاړ شي خو هورم هب هغه تر متې ونیو او ویې ویل: آمي ولې دې ناړې تو کړې او ولې دا خبره کوې، ایا دغه سړی فرعون نه دی او ته د نده نه لرې، چې د هغه درناوی وکړې؟

آمي! په دې پوه شه، چې که ته وغواړې له فرعون سره خیانت وکړې، نو زه به دې پخپله توره خېټه درڅیرې کړم.

ښايي په دې به پوه شوی يې، چې زه درواغ نه وایم، زه دا خبره منم هغه خبرې چې فرعون وکړې، څه ناڅه عجیبې دي او د لېونو د خبرو په شان ښکاري، ځکه چې ترا وسه پورې چا په مصر کې داسې نه دي اورېدلي چې د دې هېواد ټول خدایان، د یوه خدای په ګټه نسکور کړای شي.

خو د هغه خبره له یوه اړخه د هوښیارۍ خبره ده، ځکه د دې سبب کېږي، چې د مصر ټولې بېوزلې اوورې پرګنې د فرعون پلویتوب وکړي.

که هغه یوازې ویلي وای، چې د مصر ټول خدایان نسکور کړئ، ښايي په مصر کې کورنۍ جنګ پیل شوی وای.

خو له دې کبله چې وایي باید د شتمن او بېوزلي، بادار او مریې توپیر دې ختم شي، په دې ډول به د مصر ټولې بېوزله پرګنې او مریيان د فرعون پلویتوب وکړي او کورنۍ جنګ به رامنځته نه شي.

بیا هورم هب فرعون ته وکتل او ویې ویل اوس دا ووایه چې موږ باید له هاتي سره څه وکړو؟

فرعون چې لا سونه یې پر زنګنو ایښي ول ځواب ورنه کړ.

هورم هب وویل، اخناتونه! ماته غنم، طلا، وسله، جنګي ګاډۍ او اسونه راکړه او اجازه راکړه، چې سپاهیان وګمارم، له تا سره ژمنه کوم چې هاتي به په شا وتمبوم.

فرعون سر راپورته کړ او د بې خوبۍ له کبله سرې سترګې یې هورم هب ته وراړولې ویې ویل، زه نه غواړم چې ته جنګ اعلان کړې، خو که زما ملت غواړي د تورې خاورې دفاع وکړي، زه به یې مخه ونه نیسم. خو د وسلو، غنمو او طلا په هکله باید ووایم، چې زه یو هم نه لرم چې تا ته یې درکړم او که مې درلودای، بیا مې هم نه درکول، ځکه نه غواړم چې بدي، په بدیو پاکه کړم.

خو ته کولای شي په هرډول چې کېدای شي، له تانيس څخه د دفاع وسايل برابر کړې، خو په دې شرط چې وينه ونه بهوې.

هورم هب وويل ډېره ښه ده.

زه به له تانيس څخه د دفاع وسايل برابر کړم او هلته به مړ شم، ځکه چې د پوځ يو مشر چې نه غنم لري، نه طلا او نه وسلې او بايد د سيمې دفاع هم وکړي، نو مجبور دی چې د ځان په تباه کولو سره د هغه ځای دفاع وکړي.

خو زه په دې کې شک نه لرم، کله چې مې فيصله وکړه چې يو کار ترسره کړم هغه بيا ترسره کووم، نو اخناتونه! سمدستي خدای په امان... او هيله کووم چې خپلې روغتيا ته توجه وکړې.

له دې وروسته چې هورم هب لاړ آمي هم روان او لرې شو.

بيا فرعون خپلې سرې سترګې ماته راواړولې او ويې ويل، اوس چې مې خپلې خبرې وکړې د کمزورۍ احساس کووم.

بيا يې په موسکا وويل سينوهه! ايا زه درباندې ګران يم؟

ومې ويل البته چې راباندې ګران يې.

ته تصور کوې، چې که ته راباندې ګران نه وای ايا زه به دې ته چمتو شوی وای چې ستا لېونتوب مې زغملای وای؟

فرعون وويل، که زه درباندې ګران يم ته بايد پوه شي چې څه وکړې؟

زه پوه شوم چې فرعون څه غواړي؟

ځکه هغه امر کړی و، چې د هغه ټول خلک خپل کارونه خوشې کړي لاړ شي، د مصر د خدايانو مجسمې ورانې کړي او د هغوی نومونه له منځه يوسي.

ده تمه کوله چې زه هم همدا کار وکړم، ومې ويل اې فرعونه! زه ستا ډاکټر يم او تصور مې کړی و، له دې امله دې له طبسه را وغوښتم چې زما طبابت ته اړتيا لرې، خو اوس ګورم چې نه غواړې، زه له تا سره پاتې شم نو زه هم ځم او لرې کېږم.

زما متې د څټک او مارتول زور نه لري، خو ستا د حکمونو د منلو لپاره هر کار کوم.

د طبس پر لوري به روان شم، ځکه چې په هېڅ يوه ښار کې د طبس په شان ډېر خدايان نشته، زه پوهېږم کله چې ما په طبس کې د خدايانو په پرځولو پيل وکړ، خلک به زما خبټه خيرې کړي، سر به مې مات کړي او بيا به مې سر په ښېرې، پر د بوالونو راځوړند کړي، خو

زه ستا د حکم د پلي کولو لپاره دغو ټولو کارونو ته غاړهږدم.

له هغه وروسته بې له دې چې کومه خبره وکړم، له فرعون څخه روان شوم، هغه هم هيڅ ونه ويل.

زما په روح کې غوسې داسې ځاله کړې وه، چې له سلطنتي ماڼۍ څخه تر وتلو مخکې مې فيصله وکړه، چې توتمس ته ورشم او له هغه سره د زړه خواله وکړم.

ما وليدل چې توتمس په خپله کارخانه کې ناست دی او له هورم هب او يو بوډا هنرمن سره چې ډېر شرابي و او (بک) نوميده شراب څښي.

د توتمس نوکران اخته ول، د هغه د سفر لپاره يې وسايل ټولول او راته څرګنده شوه، هغه هم روان دی چې د مصر د نورو خدايانو مجسمې ورانې کړي.

توتمس په داسې لهجې سره چې د اعتراض بوی ترې لتېده وويل، په آتون قسم چې له دې وروسته به په مصر کې نه خان وي او نه عام کسان.

تر ننه پورې زما کار دا و، چې مړه کانې په داسې مجسمو بدل کړم چې تر ژويو ډېر ژوندۍ دي، ځکه چې د هغوی ښکلا او هنري ارزښت له ژونديو ژويو ډېر دی، خو له دې وروسته بايد مارتول او څټک واخلم او د خدايانو مجسمې ورانې کړم...

ملګرو ښه به داوي چې له دې فرصته استفاده وکړو او وڅښو، ځکه چې پوهېږو زموږ د عمر ډېرې لږې شپې ورځې پاتې دي او ډېر ژر به ټول مړه شو.

بک خپل جام پر سر واړاوه او ويې ويل، زه پوهېږم چې مړ به شم، خو د اخناتون له حکمه سرغړونه نه شم کولای، ځکه چې زه يو بې نومه هنرمن وم او زما هنري شيان چا نه اخيستل، خو فرعون زه له چيکړو پورته کړم او دلته يې راوستم.

هر ځل چې به ما خپله شتمني او ان خپل لنګ په شرابو ورکاوه، لوڅ به پاتې کېدم، فرعون به ما ته سره زر او جامې راکولې او هېڅکله يې تعجب نه کاوه، چې ولې زه لوڅ او بې جامو يم.

زه پوهېږم چې کله زه خپل ولايت ته ستنېږم او د مصر د خدايانو د تباه کولو لټه کووم، نو د هغه ځای کروندګر به زما خېټه په لرونو څيرې کړي. زما مړی به په نيل کې واچوي او د تمساح خوراک به شم.

خو زه اوس بوډا يم، له شرابو سره هم ډېره مينه لرم، او بله دا چې د پخوا په شان کار نشم کولی، نو څو مره چې ژر مړ شم ښه به وي.

هورم هب وويل، که زه د دې ملت د سپاهيانو قوماندان نه واى نو تاسې ته مې ويل ښه دى چې مرئ او د هاتي له ځواکونو سره نه مخامخ کېږئ.

ځکه چې د هاتي عسکر داسې بې رحمه دي، چې زموږ تر ټولو ځيږ مرګ د هغوى لپاره د س کولو په مانا دى.

خو له دې کبله چې زه پخپل قسمت باور لرم د هغوى مخه به ونيسم. دا په داسې حال کې ده چې پوهېږم په خالي لاس او له غنمو او طلا پرته د هاتي د عسکرو مخنيوى سخت کار دى.

هغوى داسې کسان نه دي، چې د ډول له غږ او نارو سورو څخه وډار شي او يا که په مچنوزغو سره حمله پرې وشي نو ترې وتښتي.

بيا يې وويل. يو شى چې زه يې حيران کړى يم دا دى پوهېږم فرعون سم عقل او پوهه نه لري او د لېونيو په شان فيصلې کوي، خو بيا هم پر ما ګران دى او د حکمونو پيروي يې کووم.

بک وويل. زه تصور کووم، د دې کار علت دا دى چې دغه سړى د مصر له ملت سره دښمني نه لري. هره خبره، چې کوي پرې باور لري او له دې کبله چې انسان احساس کوي، د هغه خبرې له مينې او ګرانښته ډکې دي، نو خبره يې مني او له هغه سره مينه کوي.

توتمس وويل خو پر ما ګران نه دى او کرکه ترې کووم.

ومې ويل. نو ولې غواړې خپله کارخونه پرېږدې او د هغه د حکم د منلو لپاره د مصر د خدايانو د مجسو د ورانولو لپاره روان شې.

توتمس وويل، د دې لپاره چې پوهېږم دغه کار به د فرعون د نسکورولو لپاره زمينه برابره کړي، د هغه پرځول به ګړندي کړي او موږ به نور د دغه سړي له لېونتوبه خلاص کړي.

هورم هب وويل، توتمسه! ته درواغ وايې، له فرعون نه کرکه نه کوې، کله چې يې ګورې ستا کرکه له منځه ځي او مينه يې ځاى نيسي، ځکه چې اخناتون سړي ته داسې ګوري چې ناممکنه ده، څوک له هغه سره دښمني او کينه وکړاى شي.

په وار وار داسې شوي، چې زه په ډېر قهر سره دربار ته ننوتى يم، غوښتل مې له فرعون سره جګړه وکړم، خو کله چې مې د هغه سترګې او موسکا ليدلې، خپله غوسه مې هېره کړې ده، که څه هم پوهېږم چې هغه لېونى دى، خو را باندې ګران دى.

موږ د توتمس په کارخونه کې دغه خبرې کولې، شراب مو څښل او هغو کشتيو ته مو

کتل چې په نیل کې ګرځېدلې.

ځينې خانان به مو کتل چې له وړې په کشتيو کې تښتي، چې ځان له دې جنجاله لرې کړي، ځکه پوهېدل، چې د عوامو له غوسې سره به مخامخ شي او ځينې نور په تېر ،مارتولونو او نورو وسیلو سره د مصر دښارونو پر لوررروان ول، چې هلته د خدايانو مجمسې ماتې کړي او دوی چې له افق ښاره روانيدل د آتون سندره يې ويله طوطمس ويل که د خلکو له لومړنۍ ډلې سره مخامخ شول سندرې به يې په خوله کې وچې شي.

موږ په دې شپه د طوطمس په کارخونه کې تر بيګا شراب وڅښل خو د دې په ځاي چې خوشحاله شو موږ يې خپه کولو، ځکه پوهيدلو تياره او خرابه راتلونکې لرو.

چې شپه شوه، هورم هب يوې څنډې ته کړم او ويې ويل سينوهه زه سبا له دې ځايه ممفيس ته ځم او له هغه ځايه له تانيس د دفاع لپاره روانيږم په داسې حال کې چې نه سره زر لرم او نه غنم خو ته شتمن کس يې بايد له ما سره مرسته وکړې.

ومې ويل زه هم سبا له دې ځايه د طبس پر لور ځم، کله چې هلته ورسېدم، څومره چې مې وکړای شول طلا به راټوله کړم تا ته به يې در واستوم.

دغه راز به خپل نيمايي غنم هم درولېږم، ځکه چې نيمايي د مصر د وږيو خلکو د مړولو لپاره ساتم.

له دې وروسته چې هورم هب ډاډه شو، چې زه به طلا او غنم ورولېږم نو د بلې ورځې پر سهار لاړ او زه هم له تو تمس سره د طبس پر لوري روان شوم.

له څو ورځو ورسته د نيل سيند زموږ لپاره د نارينه وو ،ښځو ، او ماشومانو مړي د ډاليو په توګه راوړل او د ځينو مړيو سرونه خريل شوي ول.

له دې څخه موږ پوه شوو، چې هغوی د آمون کاهنان دي او ځينو هغو ډېرې ويارمنې جامې اغوستې وې، چې ښکارېده هغوی خانان او اشرافان دي.

د نيل سيند تمساح ګانو ته ستر جشن جوړ شوی و او تمساح ګانې چې هوښيار ځناور دي، د بوډاګانو مړي يې نه خوړل ، يوازې د ماشومانو او ځوانو نجونو مړي يې ښه خوړل.

زه تصور کووم چې که تمساح ګانې هم د بشر په شان د خدای عبادت وکړي، نو ټوله شپه او ورځ به د آتون ستاينه او ذکر کوي، ځکه چې پر نورو خدايانو د آتون د بريالیتوب له امله دغه خلک وژل شوي ول چې مړي يې د تمساح ګانو په برخه شوي ول.

موږ چې کله طبس ته ورسېدو ومو ليدل چې د ښار له څو برخو او هم د مړيو له ښاره

(د طبس له هدیرې، ژباړن) د لوګیو ستنې د آسمان پر لوري پورته کېږي.

دغلته د آتون پلویانو د دې لپاره چې د نورو خدایانو نښې له منځه یوسي پر قبرونو یې حمله کړې وه او مومیایي شوي مړي یې سوځولي ول.

په دې وخت کې مې شکر وکړ، چې زما مور او پلار قبرونه نه لري.

که ما د مور و پلار مومیایي شوي مړي په یوه قبر کې ښخ کړي وای، خلکو به د هغوی مومیایي شوي مړي هم له قبرونو را ایستلي او سوځولي به یې ول.

په دې وخت کې پوه شوم، چې پخواني فرعونیان چې د خپلو مړیو لپاره یې هرمونه جوړ کړي دي څومره هوښیار ول او ولې یې د هرم له جوړلو وروسته او د مړیو په ښخولو پسې د هرم دروازې داسې بندې کړې دي چې لاره یې معلومه نه وي.

هغوی اټکل کړی و، چې داسې ورځ به راشي چې خلک به د خپلو پخوانیو خدایانو د نابودۍ لپاره پاڅون وکړي او پر دې ورځ به د پخوانیو خدایانو مجسمې هم له منځه یوسي او مومیایي شوي مړي به هم له قبرونو وباسي او سوځوي به یې.

خو پر هرمونو به حمله و نه کړای شي، چې د فرعون مړی له هغه ځایه وباسي او هغه وسوځوي، یا یې مړی له منځه یوسي.

په هغه وخت کې چا د فرعونیانو مومیایي شوي مړي له قبرونو نه ورا ایستلي چې و یې سوځوي، ځکه په طبس کې خلکو فرعون ته درناوی کاوه او د کاهنانو مومیایي شویو مړیو ته هم درناوی کېده.

خو خلکو د هغوی مړي له قبرونو را وایستل او ویې سوځول نو ممکنه وه، یوه ورځ د فرعون مړی هم له قبره را وباسي او ویې سوځوي. له همدې! مله پخوانیو فرعونیانو د خپلو قبرونو لپاره ستر هرمونه جوړ کړي ول، او دا د دې ښودنه کوي چې هغوی ډېر ځیرک پاچاهان ول، ځکه خپل قبرونه یې داسې جوړ کړي، چې څوک نه شي ورننوتلی چې لوټ یې کړي.

# درېيم څلوېښتم څپر کی

## په طبس کې زما نوې دنده

کله چې موږ طبس ته ننوتو صليب مو په غاړه و، هلته مو وليدل، و چې د صليب يو شمېر لېږدونکيو، ښکرور خلک په نيل کې واچول او پر سر سر يې دومره ووهل، چې اوبو ډوب کړل او بيا راپورته نه شول.

موږ يوه شو و چې په طبس کې د صليب لېږدونکي برلاسي دي او پخواني خدايان يې له منځه وړي دي، او س آتون چې ظاهري بڼه نه لري په طبس کې واکمني کوي.

ما توتمس ته ويل چې ډېر ژر بايد د تمساح لکۍ ميخانې ته لاړ شو، ځکه چې هغه ځای امن او ارام دی.

روسته له خپل تبر او څټک سره د ميخانې پر لوري روان شو.

ميخانې ته چې ننوتو ما وليدل چې کاپتا د خانانو ويارمنې جامې ايستې دي او زړې جامې يې اغوستې دي.

له سترګې يې طلايي پټۍ لرې کړې ده، ړنده سترګه يې له ورايه ښکارېدله او خپلو يو شمېر لوڅو او لغړو مرييانو او د طبس د بندرو سلوالو پنډيانو ته يې ويل: ورونو وڅښئ او خوشحالي وکړئ، ځکه چې يوه نوې دنيا پيل شوې ده.

له دې وروسته به بادار، مريي، خان او مزدور نه وي، ټول خلک به سره مسا وي وي، هرڅوک خپلو اک دی چې چيرته يې زړه غواړي هلته تللی شي.

د هر چا چې هر کار زړه غواړي، هغه کولای شي.

زه نن ټولو ته په وړيا توګه د اوربشو اوبه درکوم، په دې شرط چې د فلز له ترلاسه کولو وروسته ما هېر نه کړئ.

کله چې د دروغجنو خدايانو يا شتمنو کسانو کورونه لوټئ، نو هغه څه چې ترلاسه کوئ يې، په دې ميخانه کې يې خرڅ کړئ.

زه هم ستاسو په شان يو مريي يم او مريي زېږدلی يم، زما يوه سترګه زما بادار ړنده کړه، ځکه پر کومه ورځ چې ترږی او وږی وم، د هغه د اوربشو اوبه مې پر سر واړولې او هغه په لرګي ووهلم چې

سترګه مې ړنده شوه.

خو په راتلونکې کې به داسې ظلمونه نه وي او له دې وروسته به څوک په دې پلمه ونه وهل شي چې مریی دی. له دې وروسته به د چا سترګه د اوربشو د یوه جام د څښلو له امله نه ړنده کېږي.

هېڅوک به له دې کبله چې مریی دی، پخپلو لاسونو کار نه کوي بلکې تر هغه چې ژوندي یو زموږ کار به خوړل، څښل، نڅا او تفریح کول وي.

په دې وخت کې کاپتا، ما او تو تمس ته متوجه شو او زموږ په لیدو ډېر حیران شو. په بېړه یې د میخانې له انګړه یوې خصوصي کوټې ته بوتلو او ویې ویل، تاسې ډېره بې احتیاطي کړې ده چې په دغو جامو کې په ښار کې راتېر شوي او دلته راغلي یاست.

که غواړئ ژوندي پاتې شئ، باید خپلې جامې بدلې کړئ، زړې جامې وا غوندئ لاسونه او پښې ککړې کړئ چې خلک فکر وکړي تاسې کارګران یاست.

ځکه نن سبا که په طبس کې هر څوک ښې او ویاړمنې جامې واغوندي مریيان او کارګران یې وژني او حتي هغه کسان هم ښايي ووژل شي چې چاغ او پنډ دي.

که تاسې وینئ چې زه یې لا نه یم وژلی، د دې لامل دا دی چې زه پخوا مریی وم او بله دا چې ما په مریيانو او کارګرانو لږ غنم وو پشل او په دې میخانه کې مې پر هغو د اوربشو اوبه وڅښلې.

خو تاسې ولې په دې وخت کې چې خانان او اشرافاو له خطرې سره مخامخ دي، طبس ته راغلي یاست؟

موږ له ځان سره راوړی څښک او تبر کاپتا ته وروښود او ومو ویل، راغلي یو، چې د مصر خدایان له منځه یوسو او مجسمې یې ماتې کړو.

کاپتا زموږ تبر او څښک ته وکتل، ویې ویل، کوم کار چې تاسې یې کوئ بد نه دی، ځکه چې خلک نن سبا همدغه کار خوښوي

خو باید پام وکړئ چې تاسې ونه پېژني، ځکه چې ممکنه ده حالات بدل شي او ښکرور د پخوا په شان واک ته ورسېږي چې بیا به نو تاسې هم ووژني.

زه باوري یم چې حالات همداسې نه پاتې کېږي او مریيانو او کارګرانو داسې غمیزې را منځته کړې دي، چې د صلیب ځینې پلویان له ښکرورو سره متحد شوي دي غواړي چې په طبس کې نظم او ډسپلین واکمن کړي

که خلک د نظم او ډسپلین لپاره سره متحد نه شي، بیا نو دغه حالات دوام نه شي کولای، ځکه چې مریيان او کارګران تصور کوي چې له دې وروسته کارکولو ته اړتیا نه لري.

دوی باوري دي چې د لوتمارۍ په وسیله ځان مړولی شي، په داسې حال کې چې سره وسپین د خوړلو شی نه دي، په مصر کې غنم نه پیدا کېږي.

زه د فرعون پر دې پرېکړې خوشحاله یم، چې مریيان یې خوشې کړي دي، ځکه چې د دې پرېکړې له کبله زه له یو شمېر زړو او معیوبو مریيانو خلاص شوم.

که فرعون هغوی نه وای ازاد کړي، نو له دې کبله چې زما یا ستا مریيان ول، مجبور وم چې د ژوند تر پایه پورې بې له دې چې ګټه ترې واخلم خواړه ورکړم.

خو اوس هغوی تول په دې تصور تللي چې ګني له دې وروسته به له کار کولو پرته ژوند وکړي زه پوهېږم هغه کارګران چې اوس په لوتمار غلا ژوند کوي، ډېر ژر به د غنمو د کمښت له امله کار کولو ته مجبور شي چې نیم نس ډوډۍ وخوري.

هغه وخت به مضبوط کارګران په کمې اجورې سره وګمارم او کله چې ورته اړتیا ونه لرم بېرته به یې وشړم.

باوري یم چې له دې وروسته به د یوه کارګر د یوې ورځې اجوره یوه ډوډۍ وي.

ومې ویل، کاپتا! له دې کبله چې تا د غنمو او ډوډۍ په هکله خبرې کولې را په زړه شول چې ما له هورم هب سره ژمنه کړې، چې هغه ته غنم او سره زر ورواستوم.

ما فیصله کړې چې خپل نیمايي غنم هغه ته ورکړم چې وکړای شي دا هاتي د پوځ پروړاندې د مصر دفاع وکړي.

نو زما نیمايي غنم په بېړیو کې واچوه او د هورم هب لپاره یې تانیس ته واستوه او نیمايي نور ورکړه، چې ورو ورو یې اوړه کړي، ډوډۍ ترې پخه کړي او پر خلکو یې ووېشه.

هغه کسان چې ستا له لوري خلکو ته ډوډۍ ورکوي حق نه لري چې، له خلکو څخه فلز واخلي، خو باید ووایي چې (دغه ډوډۍ تاسې ته د آتون له لوري د رکول کېږي ویې خورئ او د اخناتون صفت وکړئ).

کله چې کاپتا دغه خبره واورېده، خپلې زړې او بې ارزښته جامې یې وشکولې، ویې ژړل او په ژړا کې یې وویل: زما باداره سینوهه! ستا دغه کار به د دې سبب شي، چې موږ دیوالیه شو او د یوې نمرۍ ډوډۍ لپاره نورو ته لاس ونیسو.

خو نور ستا په شان لیوني نه دي، چې خپل غنم اوړه کړي، ډوډۍ ترې پخه کړي او بیا یې موږ ته راکړي.

ما دې بلا ووهي چې تر ننه پورې ژوندی پاتې شوم او دغه سپېره ورځ وینم. له دې وروسته به دغنمو هر وړۍ له خپل وزن سره د برابر فلز ارزښت ولري، نو ته ولې خپل غنم اوړه کوې او ډوډۍ ترې پخوې چې خلکو ته یې ورکړې؟... ایا تصور کوې چې کله خلکو ستا ډوډۍ وخوړه نو له تا څخه به مننه وکړي او که وکړای شي چې تا ووژني، نو ستا له خیراته وروسته به ستا له وژنې لاس پر سر شي؟

هېڅوک به ستا مننه و نه کړي، هر څوک چې له تا څخه یوه ډوډۍ ترلاسه کړي، وایي به چې ته شتمن یې او د نوي خدای د حکم په اساس باید بېوزله شې او ستا غنم او اوړه باید بېوزله خلک وخوري.

ته غواړې خپل نیمایي غنم هورم هب ته ورکړې، خو دغه سړی تر یوه غله هم بد دی، ځکه یو غل چې له چا کوم شی اخلي په ډاګه یې پوهوي چې بیرته یې نه درکووم، خو هورم هب دغسې نه دی.

ده چې له موږ څخه سره زر ترلاسه کړل ویې ویل چې هغه به د طلا په سود سره بیرته راکړي، مګر کله چې ما ورته لیک واستاوه ومې ویل چې پور مې راکړه، په ځواب کې یې ولیکل، راشه او ترلاسه یې کړه.

ومې ویل کاپتا! ته پوهېږې چې زه د نورو په شان طلا او غنمو ته ارزښت نه ورکووم.

نن سبا هورم هب د خپلو عسکرو د مړولو لپاره غنمو ته اړتیا لري، دغه راز د مصر ملت وږی دی او زه چې غنم لرم دا نه شم زغملی، چې داهاتي لښکر دې مصر ونیسي او خلک دې له لوږې مړه شي.

ایا په داسې حالت کې زه خپل غنم وساتم او احتکار وکړم چې بیا یې په لوړه بیه خرڅ کړم؟

هغه څه چې ما درته وویل هغه تر سره کړه، لاړ شه زارۍ او ژړا پرېږده، ځکه کله چې زه د مصر زرګونو ماشومانو لوږه ګورم ستا په اوښکو تویولو مې رحم نه راځي.

کاپتا سر کوز کړ او ویې ویل، زما باداره! له دې سره سره چې زه پوهېږم ته به د لېوالیه شې خو بیا هم مجبور یم ستا حکم پلې کړم.

بله ورځ چې جامې مو بدلې کړې، تبر او څټک په لاس د طبس واټونو ته راووتو چې وګورو د ښار حالات څنګه دي؟ اشرافو او شتمنو کسانو خپل کورونه پر پوځي کلاګانو بدل کړي ول او خانونه یې پکې کلابند کړي ول، چې د خلکو له حملو خوندي پاتې شي.

ځینې معبدونه سوځېدل او له کاهنانو تش شوي ول، داسې ښکارېدل چې کاهنان یې وژل شوي دي.

په دغو معبدونو کې د مصر د خدایانو له مجسمو پرته بل کوم شی نه و او ټول هغه شیان چې د خرڅلاو وړ ول، لوټ شوي ول.

موږ په دغو معبدونو کې د څټک او تبرونو په وسیله د خدایانو مجسمې ماتولې، هڅه مو کوله چې د هغه نوم له منځه یوسو.

ځینې معبدونه هم د خانانو د کورنو په شان پر جنګي کلاګانو بدل شوي ول، کاهنان له ځانه تېر ول، په دغو معبدونو کې یې د خپلو خدایانو دفاع کوله او موږ پوهېدو چې دغو معبدونو ته د ننوتو وس نه لرو.

هره ورځ زما او تو تمس کار دا و، چې د مصر د خدایانو د مجسمو د ماتولو لپاره او د هغوی د نومونو د پاکولو په خاطر له کورنو راووځو او د شپې مهال ستړي ستومانه یا کورنو ته ستانه شو او یا د تمساح لکۍ میخانې ته لاړ شو.

په طبس کې زما کور همغه د مسګر پخوانی کور و او په هغه کور کې نو کرانو موږ ته ډوډۍ پخوله

کوچنی تهوت به په غاړه کې لاسونه را واچول او د پلار ناري به یې راته کولې.

مریت چې به په میخانه کې نه وه، په کور کې به یې راسره مهرباني کوله، خو موږ به د شپې مهال د عوامو د شور ماشور له امله خوب نه شو کولای.

مریبیانو، جوالیانو او کارګرانو خپلې ډلې جوړې کړې وې، چې وکړای شي، د خانانو پر کورنو او معبدونو حملې وکړي، د هغوی شتمنۍ لوټ کړي او هغه څه چې تر لاسه کوي یې پخپلو کې سره ووېشي.

ځینې خلک به د ورځې ویدېدل او د شپې مهال به یې غلا کوله او ځینو به د ورځې له خوا خلک لوټل او د شپې به یې استراحت کاوه، نو له همدې کبله به تل د خلکو شور ماشور او رېدل کېده.

د فرعون مامورینو د دې وس نه درلود چې د غلا او لوټمار مخه ونیسي، ځکه چې د لوټمارانو له زیاتېدا پر ته دوی هم نه پوهېدل چې څه وکړي او لاره ترې ورکه وه.

فرعون له خپلو ټولو پلویانو غوښتي و، چې نور کارونه خوشې کړي لاړ دې شي، د مصر خدایان دې له منځه یوسي او طبیعي خبره ده چې د غه کار له جګړو او لانجو پر ته نه شو کېدای.

د دې حکم له صادریدا وروسته فرعون په حقیقت کې ملت د وژنې او لوټماریو لپاره ازاد پرېښود.

د فرعون مامورین چې پر دې خبره پوه و، نو یې په طبس کې هېڅ لاسوهنه نه کوله په تیره بیا دا چې د پخوانۍ مداخلې له امله د قوانینو او نظم لړۍ له منځه تللې وه او دوی پوهېدل چې که لاسوهنه وکړي نو به وژل شي.

په طبس کې د لوټماریو او وژنو په دې ورځو کې یوازې یو قوي او کلک پوځ چې ازمویل شوي عسکر ولري د دغه کار مخه نیولای شوه او عوام یې دې ته اړ کولای شو، چې د قانون او اصولو پیروي وکړي.

خو فرعون پخپله حکم کړی و، چې د غه حالت را منځته شي، هېڅکله یې د خپل پوځ قوماندان ته حکم نه کاوه، چې په طبس کې امنیت او نظم ټینګ کړي.

خو په طبس کې لا هم د پخوانیو خدایانو معبدونه ول، خلکو مقاومت کاوه او چمتو نه ول چې د اتون خدایي ومني.

کاپتا یو شمېر کسان د غنمو د اوړه کولو او د ډوډۍ د پخولو لپاره اجیران کړل

هره ورځ به ډوډۍ پخېدله، خو کله چې به یې هغه ډوډۍ پر بېوزلو وېشله له ستونزو سره به مخامخ شو، ځکه چې ډوډۍ وېشونکي به په واټونو کې راځرګند شول، نو خلک به پرې راټول شول او ډوډۍ به یې تر ې ولوټله

خلکو به ویل، دغه ډوډۍ زموږ ده، شتمنو زموږ ډوډۍ غصب کړې وه، اوس باید حق حقدار ته ورسېږي او هېڅ به له ما څخه مننه نه کوله.

څلوېښت ورځې او څلوېښت شپې د طبس وضیعت همداسې و او مالیدل هغو کسانو چې پخوا یې سره زر په ترازو کې تلل اوس یې په واټونو کې د یوې نمرۍ ډوډۍ سوال کاوه.

ما ولیدل چې د همدغو کسانو مېرمنې ددې لپاره چې بچیان یې له لوږې مړه نه شي، ځانونه یې مریيانو ته سپارل.

نه رحم موجود و، نه قانون او نه پر آتون باندې ایمان.

ظاهرا آتون په طبس کې حکومت کاوه، خو د هغه د پلویانو یانې مریيانو او کارګرانو که وس رسېدای نو هغه خانان یې هم وژل چې د آتون پلویان ول او شتمنۍ به یې لوټ شوې.

پر څلوېښتمه ورځ کاپتا ماته وویل: زما باداره ! هغه وخت راغلی چې ته له طبسه وتښتې، ځکه چې ډېر ژر به په دې ښار کې د آتون د خدایۍ دوره پای ته ورسېږي

هېڅوک به د هغه په راپرځېدا خواشیني نه شي، ځکه چې د آتون د خدایي پړاو په طبس کې تر ټولو بد پړاو و.

ټول خلک نور په دې ښار کې د قانون او نظم ټینګېدل غواړي، مګر دغه کار له نوې وینې بهېدا پرته ممکن نه دی او له همدې امله به د نیل تمساح ګانې بیا ښې شپې ورځې ولري.

ومې ویل، ته ولې وایې چې په دې ښار کې د آتون د خدایۍ دوران پای ته رسېږي؟

کاپتا وویل، د آمون کاهنان او د نورو خدایانو کاهنان د آتون د ړنګولو لپاره متحد شوي، فیصله یې کړې چې آتون له منځه یوسي، حتی که د دغه خدای د ختمولو لپاره د طبس ټول ښاریان هم ووژل شي.

ومې پوښتل ته څنګه په دې کیسه خبر شوې ؟

کاپتا وویل، ما هېڅکله له آمون سره خپل اړیکي غوڅ کړې نه دي او تل د آمون له کاهنانو سره اړیکي لرم، ځکه چې هغو ته مې سره زر په پور ورکول او په بدل کې مې د آمون ځمکې په ضمانت کې اخیستې.

ما په دې کار سره دوه ګټې وکړې لومړی دا چې شته مې ډېر شي، ځکه چې کټل مې د آمون کاهنان هم ضمانت ورکوي او هم سود ورکوي. دویمه دا چې که حالات بدل شي خپل ځان او خپله

شتمني ساتلای شم، د آمون کاهنان به ما خپل ګڼي او د نورو په شان به مې نه وژني.

آمي چې د نوي خدای ستر کاهن و، د خپل ځان او شتمنۍ د ساتلو لپاره او س د آمون له کاهنانو سره ملګری شوی دی، د آمون له کاهنانو او نورو خانانو سره یې یوه اتحادیه جوړه کړې ده.

هېڅوک چمتو نه دي، حتی یوه کړۍ مس د وږیو د مړولو لپاره ولګوي، خو په بدل کې خپله شتمني او سره زر دې اتحادیې ته ورکوي چې عسکر اجیران کړي.

بیا کاپتا وویل، د آمون کاهنان، آمي او خانان خپل عسکر د مصر د جنوب له تور پوستو او د شردن له اوسېدونکو څخه غوره کوي چې ناڅاپه به حمله وکړي، آتون او د هغه پلویان به له منځه یوسي.

زما باداره! له دې کبله چې ته د آتون یو مشهور پلوی یې او ډېرو کسانو ستا په غاړه کې صلیب لیدلی دی، نو د هغوی د کاهنانو او سپاهیانو په وسیله به ووژل شې.

ما وویل، فرعون به چاته اجازه ورنه کړي چې آتون راوپرځوي

کاپتا وویل، څوک به له فرعون څخه د دې کار اجازه وانه خلي. بلهدا چې که فرعون اجازه ورکړي یا یې ورنه کړي، خو له دې وروسته چې کاهنان واک ته ورسېږي، د آمون او نورو خدایانو خدایي پیل شي، نو ټولې هغه لارې به بندې کړي چې د افق ښار ته غځېدلې دي.

په دې ډول به افق ته خوراکي توکي نه رسېږي او د دې ښار اوسېدونکي به له لوږې مړه شي.

هغه وخت به نو آمون او د هغه کاهنان فرعون مجبور کړي چې له افقه راووځي، طبس ته راشي او د آمون په مخکې رکوع وکړي.

کله چې کاپتا دغه خبرې وکړې زه ډېر خپه شوم، د فرعون څېره، موسکا او سترګې مې سترګو ته ودرېدې او زړه مې پرې وسوځېد.

فرعون خپل ټول عمر په دې تېر کړی و، چې آتون رامنځته کړي، د هغه قدرت پراخ کړي جنګ او دښمني له منځه یوسي او د شتمن او بېوزلي ترمنځ توپیر ختم کړي.

د کاپتا خبرو ته په پام سره داسې ښکارېدله، چې د فرعون ټول زیار به په اوبو لاهو شي، بیا به د آمون د کاهنانو د حکومت وار را ورسېږي، بیا به د کارګرانو، کروندګرو او مریيانو د بدبختۍ په بیه خپلې خزانې ډکې کړي او د مصر نیمايي ښېرازه سیمې به ونیسي.

ومې ویل، کاپتا! دغه رسوايي باید رامنځته نه شي، ځکه که آمون یو ځل بیا خدای شي او د هغه کاهنان بیا واکمن شي، نو زه فکر نه کووم چې تر یوه بل نړیوال کاله پورې دې د شتمن او بېوزلي ترمنځ توپیر، ظلم او ستم له منځه لاړ شي.

اې! کاپتا زه نن تقریباً بېوزله شوی یم، خو ته شتمن یې او په خپله اعتراف کوې چې زما له شتو څخه ته شتمن شوی یې، نو ته کولای شې چې زما او ستا دواړو د مال په یوې برخې یو شمېر

سپاهیان اجیران کړي.

دوی ته توري، نېزې او ګرزونه ورکړه، چې که د آمون کاهنان پاڅون وکړي نو دغه مریيان او کارګران به د خپل خدای د دفاع کوي دوی به چا ته اجازه نه ورکوي چې آتون له منځه یوسي، ځکه که آتون له منځه لاړ شي، نو د بشریت د نېکمرغۍ یوازینۍ لاره به هم له منځه لاړه شي.

که څه هم تر اوسه پورې د شتمن او بېوزلي توپیر له منځه نه دی تللی، خو د شتمنو کسانو ځمکې لا پر کروندګرو نه دي وېشل شوې، یانې په عمل کې لا هم دغه توپیر پر خپل ځای پاتې دی.

شتمن نور هم شتمن شوي، مګر کارګران او مریيان لا پسې بېوزلي شوي دي.

خو که آتون څه موده نوره هم خدايي وکړي، نو بې له شکه چې د شتمن او بېوزلي ترمنځ شته توپیر به ختم شي.

د شتمنو کسانو ځمکې به پر بېوزلو ووېشل شي او هغه مهال به ټول خلک کار کوي، هېڅوک به نه شي کولای چې پخپله له کار کولو پرته، د کارګرانو، کروندګرو او مریيانو د کار ګټې ګونډه ووهي او ويې خوري.

کاپتا! پخوا ته په هر ځای کې له ماسره وې او زه دې یوازې نه یم پرې اېښی، نو اوس هم ما یوازې مه پرېږده. له ماسره ملګری شه چې دغه کار وکړو او چا ته اجازه ورنه کړو، چې نوی خدای له منځه یوسي او فرعون نهیلی شي، ځکه که نوی خدای و پرځول شي، نو نه یوازې دا چې د ظلم تغر به بیا خپور شي، بلکې فرعون به هم له نهیلۍ څخه ومري.

کله چې کاپتا دغه خبره واورېدله، ورېږدېده، خو ويې نه ژړل.

که هغه ژړلي وای، نو زه پوهېدم چې چل راسره کوي، خو له دې کبله چې له یوې سترګې یې اوښکې تویې نه شوې، نو زه پوه شوم چې وېرېدلی دی.

کاپتا وویل: زما باداره! که نوی خدای خپل قدرت وساتي، نو زه چې بوډا شوی یم، بیا به مجبور یم چې کار وکړم، په داسې حال کې چې زه د کار کولو وس نه لرم.

دغه راز که نوی خدای پر خپل حال پاتې شو، نو ما به د ځینو اشرافو او خانانو په څېر، چې نن سبا په ژرندو پورې تړل شوي، په ژرنده پورې وتړي او تر هغه به مې په متروکو وهي چې مړ شم.

زما باداره سینوهه! آیا په زړه دې دي، چې یو ځل دې په کرت کې راته وویل، چې د کرت د خدای (مینوتور) توري کوټې ته ننوځم، ما ستا خبره ومنله او له تا سره د کرت د خدای کوټې ته ننوتم.

دا ځل هم نیت لرې چې یوې توري کوټې ته ننوځې؟

ته نه پوهېږې چې په دې کوټه کې څه شی موجود دي او ښایي بیا په دې توره کوټه کې یو وېرونکی ځناور وګورې چې مړ شوی او مړی یې توټه شوی دی، ځکه تر هغه ځایه چې موږ پوهېږو د

اخناتون خدای د کرت تر خدای (مینوتور) ډېر و ېرو ونکی دی.

د کرت خدای ښکلې نجونې او هلکان د غوایانو په مخکې ګډول او په هره میاشت کې به یې یوه ښکلې نجلۍ خوړله، خو د فرعون نوی خدای زرګونه نارینه او ښځې قرباني کوي...

نه! باداره .... دا ځل زه له تا سره د تور خدای کور ته نه ځم.

کاپتا نه ژړل او همغه راز یې په زړه ورتیا سره خبرې کولې او زه پوهېدم، هغه څه چې کاپتا وایي، د هغه له حقیقي عقیدې سره اړخ لګوي.

بیا زما پخواني مریي وویل، که په ځان رحم نه کوې او زما په فکر کې نه یې، لږ ترلږه د مریت او تهوت فکر وکړه، ځکه چې پر دواړو ګران یې، هغوی له دې ښاره لرې کړه.

زه پوهېږم چې د دواړو ژوند په خطر کې دی.

پر کومه ورځ چې د آمون کاهنان او خانان غوسه شي او حرکت وکړي، نو نه به پر نرینه وو رحم وکړي او نه پر ښځو او ماشومانو باندې د آمون کاهنان چې یو ځل د خلکو پر سستو عقیدو تېر وتل او د مصري ولس د اکثریت د بېطرفۍ له امله یې خپل قدرت له لاسه ورکړ، نو د خپل قدرت د احیا لپاره، که اړتیا پېښه شي، د مصر کابو ټول ملت به له منځه یوسي.

هغوی وایي، که په مصر کې سل نران او ښځې د آمون پیروان وي، تر دې ښه دي چې د بیدیا د شګو په کچ نارینه او ښځې وي، خو د نوي خدای پیروي کوي.

ومې ویل کاپتا! زه پوهېږم ته ځکه ډارېږې، چې شتمن شوی یې او زما تجربه داده چې شتمني انسان ډارن، بې حیثیته او محافظه کاره جوړوي

شتمن سړي وېرېږي چې که له خطرې سره مخامخ شي، نو خپله شتمني به له لاسه ورکړي او بېوزله به شي.

له دې کبله چې ته شتمن یې نو د عوامو له شور ماشوره او د څو خریل سرو کاهنانو او څو تنو خانانو له ملګرتیا وېرېږې، تصور کوې چې هغوی کولای شي د مصر پر بېوزله اکثریت بر لاسي شي.

اوس خلکو د ازادۍ خوند ولید او تر دې وروسته شونې نه ده چې د آمون او د هغه د کاهنانو ظلم او ناروا و زغمي.

کوم تور خدای چې ته یادوې هغه آمون دی، د مصر ملت یې مریی کړی او په جهالت کې ساتلی، چې هېڅکله و نه پوښتي (ولې؟)

دغه تور خدای د خرافاتو، ناپوهۍ او تکفیر په وسیله خدایي کوي او همېشنۍ هیله یې دا ده چې: باید ټول وړې وي، تل د هغه او د هغه د خریل سریو کاهنانو لپاره کار وکړي

دی هیله لري چې که کومه ورځ یوه سړی سر پورته کړي او پوښتنه وکړي چې (ولې؟) نو زه به

يې سمدستي د تکفير په ګنا او په دې تور چې ګني خداى ته يې سپکاوى کړى سر غوڅ کړم.

دا د کار د دې لپاره هم کوم چې نور پوه شي، يوازې هغه شى سم دى چې آمون يې وايي.

دغه راز آزداي هم داده چې د مصر ملت ټول زما مريان شي او د نړۍ په تر ټولو ستر علمي مرکز دارالحيات کې چا ته اجازه نه ورکووم، چې وو ايي (ولې ؟).

کاپتا ! ته وايې چې مريت او تهوت په دې ښار کې له خطر سره مخامخ دي، نو زه بايد وتښتم او هغوى له ځان سره بوځم چې له خطرې وژغورل شي.

خو کله چې د مصر او ټول بشريت ديوازيني ژغورونکي آتون برخليک له خطرې سره مخامخ وي او لوبې پرې کېږي، نو د يوې ښځې او يوه هلک ژوند څه اهميت لري؟

دا زموږ فرض دى، چې مقاوست وکړو او پرې نه ږدو چې څو تنه حريص کاهنان له څو تنو حريصو او بې رحمه خانانو سره لاس يو کړي، يو شمېر تورپوستي اجيران کړي او د فرعون خداى را وپرځوي.

که زموږ مقاومت نتيجه ورنه کړي او آتون را وپرځول شي، نور به ژوند ارزښت ونه لري او غوره دا ده چې نارينه، ښځې او ماشومان له منځه لاړ شي.

کاپتا ووېل: څه چې ما غوښتل ټول مې درته ووېل او نور به په دې اړه هېڅ خبرې ونه کړم.

کله کله خو زه فکر کووم چې يو کوچنى راز درته ووايم، خو ترې تېرېږم، ځکه پوهېږم چې پر تا اغېز نه کوي.

ته هم د فرعون په شان په لېونتوب اخته يې، خو پر کومه ورځ چې تا پر سر ايرې باد کړې او له ډېرې نهيلۍ دې مخ او ټټر په نوکانو وشکول ،نو هيله ده چې ما ونه رټې.

دغه راز که کومه ورځ ووژل شوې، نو ما ملامت مه بوله، زه يو پخوانى مريى يم،زوى هم نه لرم چې زما له مرګه وروسته پر ما وژاړي اوس چې ته هر چېرته وايې، د پخوا په شان به له تا سره لاړ شم، که څه هم زه پوهېږم چې له تا سره تګ ګټه نه لري،يو ځل بيا به زه او ته د کرت د خداى تورې کوټې ته ننوځو او زه به له ځان سره يو منګى شراب اخلم.

له دې ورځې وروسته کاپتا زما د حکم د اجرا لپاره وسلې واخيستې، پر مريانو او جواليانو يې ووېشلې او په طبس کې د فرعون له ځينو مامورينو سره متحد شو ،چې که جنګ پېښ شي، نو هغوى به له آتون څخه دفاع وکړي.

په طبس کې همغه راز لوږه او ګډوډي واکمنه وه او ځينو کسانو به ويل،چې ژوند راته د خپسې په شان وېرونکى شوى دى،هېڅکله پکې نه شو راوېښېداى، خو که مړه شو، نو له دې خپسې به خلاص شو او مرګ هم له وېرونکي خوبه را ويښېدل دي.

دغو کسانو له ژونده د ژغورلو لپاره يو بل وژل او د دې لپاره چې د خپلو ورو ښځو او

ماشومانو ژړا ونهویني هغوی یې ووژل.

ځینو نورو خلکو ددې لپاره چې ژوند هېر کړي شپه و ورځ به یې شراب او د اوربشو اوبه څښلې.

یو شی چې په دې ورځو کې هم هېڅکله ورک نه شو ، هغه شراب او د اوربشو اوبه وې.

که یو چا به څوک په واټ کې لیدل او پوهېده به، چې یوه ډوډۍ لري، نو ورته ویل یې دغه ډوډۍ له ما سره نیمه کړه، ځکه چې موږ سره ورونه او برابر یو.

که چا به کوم کس په کتان جامو کې ولید ، ویل به یې جامې دې وباسه او ماته یې راکړه، ځکه چې ډېره موده زه لوڅ وم او له دې وروسته ستا وار دی، چې لوڅ وګرځې.

هر چا چې به صلیب درلود ، که به په یوازې سر له ښکرورو سره مخامخېده، حتماً وژل کېده، او مړی به یې په نیل کې اچول کېده.

تمساح ګانې په دې ډول د مړیو په خوړولو کې زړورې شوې وې او د طبس ښار ته ننوتې وې.

دېرش ورځې وروسته په طبس کې د آتون خدای له منځه لاړ.

هغه تورپوستي سپاهیان اود شردن عسکر چې د آمون کاهنانو ، خانانو او آمي اجیران کړي ول راغلل او طبس یې کلابند کړ، چې څوک ونه تښتي. په طبس کې دننه هم ټولو ښکرورو پاڅون وکړ او د آمون د کاهنانو له لوري پر هغوی وسله ووېشل شوه.

یو شمېر خلک چې نه د آمون پلویان ول نه د آتون، خو له ګډوډیو په تنګ شوي ول، دوی هم له ښکرورو سره یو ځای شوي ول او ویل یې، نوي خدای له ګډوډۍ، بې نظمۍ او لوږې پرته بل څه نه دي راکړي، موږ له دې بې شکله او بې څېرې خدایه بېزار یو.

کله چې د ښکرورو پاڅون پای ته ورسېد ما د تمساح لکۍ میخانه کې خپلو پخوانیو کارګرانو او مریيانو ته وویل، زه دا خبره منم چې کله په وروستیو ورځو کې آتون په جدي توګه خدايي پیل کړه، نو ظلم پر عدالت بر لاسی شو او بې ګناه کسان یې ووژل.

هغوی یې په ژرندو پورې وتړل او پر نجونو او ښځو یې د هغوی له خوښې پرته تېری وکړ.

خو زه چې یو ډاکټر یم او پوهېږم کله چې یوه خېټه د معالجې لپاره څیرم، وینه ترې بهېږي او تر هغه وخته چې وینه ترې ونه وځي، ناروغ به معالجه نه شي.

دغه ظلم او ستم چې تاسې یې ګورئ، د همغې وینې په شان دی، چې باید وبهول شي، چې ناروغي یانې د آمون خدايي او د مصر د نورو خدایانو ،خدايي له منځه لاړه شي.

د ناروغۍ د ختمولو لپاره د وینې بهول او درد ورکول روا دي، ځکه چې د درد زغمل موقتي وي او له هغه وروسته چې ناروغ څو ورځې درد وزغمي، نو پاتې عمر به یې روغ او ارام وي.

نو اې مریيانو او پخوانیو غلامانو ! د آتون د خدايي د ساتلو لپاره مبارزه وکړئ او له مرګه مه

دار بړئ!

په دې جنګ کې تاسې داسې کوم شی نه لرئ چې له لاسه یې ورکړئ او خواشیني شئ! او که آتون له منځه لاړ شي، ستاسې ځان هم ارزښت نه لري

لامل یې دا دی چې که ښکرور د آمون او پخوانیو خدایانو له واکمنېدا وروسته تاسې ونه وژني، نو کانونو ته مو آستوي او بیا به د پخوا په شان مریان او نوکران شئ.

خو پخوانیو مریانو او کارګرانو وخندل او ویې ویل سینوهه! ته ډېر ساده سړی یې او د سادګۍ له کبله خیال کوې، چې یو خدای له بل خدای او دغه فرعون له بل یوه سره توپیر لري

په داسې حال چې ټول خدایان سره ورته دي او هر څه چې وایي دوراغ دي او غواړي خپل بازار تود وساتي.

ټول فرعونیان سره ورته دي، هغه څه چې وایي، یوازې د دې لپاره دي، چې خپله پاچاهي وساتي.

همدغه فرعون چې وایي ټول انسان یو شان دي، د مریې او بادار ترمنځ توپیر نشته، د نورو فرعونانو په شان دروغجن دی، د هغوی په شان بادار تر مریانو لوړ ګڼي.

هغه پخپله سلطنتي ماڼۍ کې سلګونه مریان او نوکران لري که په موږ کې یو کس همدا نن د فرعون یا د نورو درباریانو ماڼۍ ته لاړ شو، ووایو چې مساوات او عدالت ټینګ شوی، د مریې او بادار، شتمن او بېوزلي ترمنځ توپیر نشته او زه راغلی یم، چې له تا سره ډوډۍ وخورم، نو د فرعون ساتونکي یا د هغه دربریان به مې ووژني. فرعون د دې لپاره د مساوات او عدالت خبرې کوي چې دغه خبره د هغه د پاچاهۍ د دوام او ساتلو یوازینۍ وسیله ده.

هغه له زړه عدالت او مساوات نه غواړي او که یې غواړي هم، په هر حال کې ځان تر ټولو لوړ ګڼي. دی باوري دی، چې باید خپل قدرت او شتمني وساتي، هېڅوک باید د هغه په شان قدر، درناوی، فلز او ښکلې ښځې ونه لري.

د فرعون درباریان چې کله ګوري فرعون پر دوی لوړ نه دی (ځکه چې هغه هم د دوی په شان انسان دی) نو ولې داسې امتیازات او ګټې ولري چې پخپله وایي، باید له هغو څخه استفاده ونه شي.

په دغسې حالت کې بیا درباریان هڅه کوي د فرعون په شان امتیازات ولري، درناوی یې وشي، ښکلې ښځې او ډېر قدرت ولري.

دویمه درجه او درېیمه درجه درباریان او د فرعون ټول مامورین همداسې فکر او عمل کوي.

خو سینوهه! ته له دې کبله چې ډېر نیک او ښه سړی یې، تل دې موږ وږیا معالجه کړي یو او له کاپتا مو اورېدلي، چې خپل غنم دې هم په وړیا توګه پر خلکو وېشلي دي، نو افسوس کوو، چې

وژل کېږي.

نو دغه ګرز چې دې په لاس کې دی، لرې وغورځوه، ځکه چې ستا لاسونه ددې ګرز د اخیستو لپاره نه دي او که ښکرور وګوري چې ستا په لاس کې ګرز دی، نو به دې وژني.

موږ چې ستا په وینا هېڅ هم نه لرو چې له لاسه يې ورکړو نو له مرګه هم نه وېرېږو، که ښکرور وغواړي، موږ ووژني نود ځانه دفاع به وکړو او که ووژل شو ډېر به خواشيني هم نه شو.

ځکه چې په تېرو شپېتو شوارو زو کې موږ نوکران او مريیان نه وو او له ژونده مو خوند اخیستی دی.

تر وسه وسه مو وخوړل، ومو څښل او د شتمنو له ښځو او نجونو سره مو تفریح وکړه، نو اوس که ووژل شو هم له ډېرو ښځو سره د ساعت تېري او د خوراک و څښاک ارمان به ونه کړو.

دغو خبرو له دې امله پر ما اغېز وکړ چې زه یو ډاکټر وم.

زه دا خبره منم چې زما لاسونه ددې لپاره نه دي، چې ګرز وګرځوي بلکې د جراحۍ د سامان د کارولو لپاره دي.

له همدې امله مې ګرز لرې کړ، کورته لاړم او د خپلو طبي وسایلو صندوق مې خلاص کړ، چې کله جنګ پیل شي، نو ټپیان به معالجه کړم.

# څلور څلویښتم څپرکی

## په طبس کې بورنوونکی جنګ او زما د دوستانو مړینه

په طبس کې جنګ پیل شو، داسې جنګ چې د طبس نور ټول جنګونه ورته ډېر کوچني ول.

درې ورځې او درې شپې په طبس کې خلکو یو بل ووژل، کورونو ته یې اور ورته کړ، چې د شپې پر مهال د جنګ ډګر ولیدلای شي.

تورپوستو عسکرو او د شردن سپاهیانو هم کورنه وسوځول، هرڅه چې به یې لیدل لوټل به یې او پر هرچا چې به یې وس ورسېد وژل یې.

د هغوی له نظره ښکرور او صلیبیان یو شان ول او دواړه یې وژل. د دغو عسکرو قوماندان همغه پپیت آتون و، چې ما مخکې ووېل، د آمون د معبد په مخکې د قوچانو په واټ کې یې خلک قتل عام کړل او د نوي خدای آتون سخت پیرو و.

خو په دې وخت کې یې خپل نوم بدل کړی و او پر ځان یې د پپیت آمون نوم ایښی و.

آمي دغه کس د شردن او تورپوستو سپاهیانو د قوماندانۍ لپاره غوره کړی و، ځکه چې فکر یې کاوه، د فرعون تر ټولو تکړه سپاهي دی.

په کومه ورځ چې جنګ پیل شو، زه د تمساح لکۍ میخانه کې وم، هلته مې د پخوانیو مریيانو او نوکرانو د ټپونو علاج کاوه او هغوی به په زړورتیا سره جنګېدل.

مریت په دې شپو ورځو کې د ټپیو او نوکرانو د برابرولو مسولیت پر غاړه اخیستی و، حتی زما او کاپتا جامې یې د ټپیو د جوړولو لپاره شکولې وې.

کوچني تهوت هم هغو ټپیانو ته اوبه ورکولې چې تږي به ول او پر لارې به نه شو تللی.

په دریمه ورځ جنګ د طبس بندري سیمې او د بېوزلو محلې ته راغی.

تورپوستي عسکر او د شردن سپاهیان چې د جنګ لپاره روزل شوي ول، د خلکو په

وژولو سره یې د بېوزلو د سیمې په کوڅو کې ویني بهولې. ښکېلو غارو بندیان نه منل او که څوک تسلیم شوی وای سمدستي وژل کېده. مریيان او جواليان چې پوهېدل که تسلیم شي، وژل کېږي نو تر وروستۍ سلګۍ یې جنګ کاوه.

پر درېیمه ورځ د مریيانو او نوکرانو مشران د شرابو او د اوربشو د اوبو د څښلو او د ډوډۍ لپاره میخانې ته راغلل، ماته یې وویل سینوهه! ته دلته بې ځایه د ټپیانو د معالجې لپاره زیار باسې، ځکه ټول دغه زخمیان چې تا یې ټپونه ورتړلي دي د ښکرورو له لوري وژل کېږي.

که ته لېوال یې چې په بندري محله کې پټ شې نو هلته ستا د پټېدا لپاره یو ځای شته او څوک به پوه نه شي چې ته پکې پټ یې.

ومې ویل، زه د فرعون ډاکټر یم او څوک دا جرائت نه لري، چې د سلطنتي ډاکټر لوري ته لاس اوږد کړي.

کله چې پخوانیو مریيانو او پنډیانو دغه خبره واورېدله، ویې خندل، د اوربشو اوبه او شراب یې وڅښل او د جنګ لپاره له میخانې څخه ووتل.

پر همدې ورځ کاپتا هم ماته نږدې شو او ویې ویل سینوهه ستا کور د بېوزلو په محله کې سوځي او ښکرورو ستا د نوکرې موتي خېته هم ورځیرلې چې غوښتل یې ستا د کور دفاع وکړي.

اوس هغه وخت راغلی چې جامې بدلې کړې او د سلطنتي طبابت جامې واغوندې چې کاهنان او افسران تا د فرعون د ډاکټر په جامو او نښان کې وګوري، ستا احترام وکړي او ودې نه وژني.

مریت په زاریو سره زما لاس ونیو ویې ویل، سینوهه همدغه کار وکړه، چې کاپتا وایي، که د ځان ساتلو لپاره دا کار نه کوې نو زما او د کوچني تهوت ژوند وساته.

له دریو ورځو راهیسې زه نه وم ویده شوی، د شرابو او محرکو درملو په وسیله مې ځان ویښ ساته، چې د ټپیانو علاج وکړای شم.

په دغو دریو ورځو کې مې هیله کوله چې د پخوانیو مریيانو، د طبس د بندر د پنډیانو، کارګرانو او نورو کسانو مقاومت نتیجه ورکړي او صلیب پر ښکر برلاسی شي، خو په هغه وخت کې متوجه شوم چې صلیبیان مات شوي او ښکرور برلاسي شوي دي.

په دې وخت کې مې له ډېرې نهیلۍ څخه مریت ته ناري کړې، ماته خپل کور ارزښت نه

لري، زما لپاره ستا، تهوت او خپل ژوند مهم نه دی، ځکه دغه وینه چې ته یې وینې د ناخرګند او نامریي خدای آتون وینه ده.

آتون زموږ هریو په بدن کې دی، زموږ وینه چې بهیږي، دا د هغه وینه ده، نن چې آتون خدای له منځه ځي او وژل کیږي نو زه هم نه غواړم چې ژوندی پاتې شم

که په دې وخت کې ما غوښتې هم وای، خو د تېښتې وخت مې نه درلود، ځکه یو شمېر تورپوستي عسکر او د شردن سپاهیان د آمون د یوه سر خرېيلي او غوړمخي کاهن په قوماندې د میخانې دروازې ته را رسېدلي ول او د میخانې دروازه یې راخلاصه کړه.

کاهن چې د شردن او تورپوستو عسکرو قوماندانو، ویې ویل دلته د آتون یو لوی پټنځای دی او ټول صلیبي زخمیان همدلته دي باید په توره، نیزه او اور سره دغه ځای له آتونه پاک کړو، دلته څوک ژوندی مه پرېږدئ.

هغوی زما په مخکې ټول هغه زخمیان ووژل، چې ما معالجه کړي ول. تورپوستو او د شردن سپاهیانو ټوپونه وهل او په دواړو پښو به یې د زخمیانو په خېټه کې ځان واچاو او د ټپیانو له ټرل شویو ټپونو وینو دارې وهلې.

زما د سترګو په مخکې یو تور پوستي عسکر د ګرز په یوه ګوزار سره د کوچني تهوت مازغه باد باد کړل.

تورپوستو سپاهیانو غوښتل زما په مخکې مریت ته هم سپکاوی وکړي او له دې کبله چې دې ښځې سخت مقاومت کاوه، نو په یوه شېبه کې یې د هغې په خېټه او ټټر کې نیزه ننه ایسته.

کله چې ما غوښتل له هغې سره مرسته وکړم، ومې لیدل چې د عسکرو قوماندان کاهن، پر سر باندې په ښکر ووهلم، زه پر ځمکه ولوېدم نور پوه نه شوم چې څه کیږي.

کله چې په هوش راغلم، لومړی مې فکر وکړ، چې په لودیزه نړۍ کې یم (*د مصریانو په نظر لودیزه نړۍ له مرګه وروسته نړۍ وه. ژباړن*) بیا مې هغه کوڅه وپېژنده چې د تمساح لکۍ میخانه پکې وه.

ومې لیدل چې میخانه په اور کې سوځي او د اور لمبې تر ي پورته شوې دي، خو د میخانې په مخکې کاپتا تورپوستو او د شردن سپاهیانو ته شراب او د اوربشو اوبه ورکوي.

تېرې پېښې را په زړه شوې، د تهوت د مازغو تیت و پرک کېدل او د مریت په خېټه کې

د نيزې ننوتل مې ستر ګو ته ودرېدل.

غوښتل مې پاځم، خو ونه توانيدم او ځان مې پر ځمکه راکاږه، تر دې چې د ميخانې دروازې ته ورسېدم، هڅه مې وکړه چې ميخانې ته ننوځم او له تهوت او مريت سره يو ځای شم.

هلته مې جامو اور واخيست ناڅاپه کاپتا وليدم ناري يې کړې، راغی، زه يې له اوره و ايستم او د کوڅې په خاورو کې يې واچولم، چې د جامو اور را مړ کړي.

له دې کبله چې تور پوستو عسکرو او د شردن سپاهيانو خندل، ممکنه وه چې ما ووژني، خو کاپتا وويل، دغه سړی ډاکټر او د آمون د معبد کاهن دی، ځکه چې که کاهن نه وای نو په دارالحيات کې يې درس ويلو ته نه پرېښود، چې ډاکټر شي، خو د تېرو څو ورځو پېښو له امله لېونی شوی، نه پوهېږي چې څه وکړي؟

زه د کوڅې په منځ کې په خاورو کې ناست وم، سر مې په دواړو لاسونو نيولی و، اوښکې مې توېدلې او ويل مې، مريت..... مريت..... ته چيرې يې؟ ولې ستا مهربان و جود پخپل څنګ کې نه احساسوم؟

کاپتا راته وويل غلی شه ......، تر دې ډېر لېونتوب مه کوه، ځکه چې ستا لېونتوب تر هغه ډېره بدبختي رامنځته کړه چې فکر يې کېده.

خو زه نه شوم غلی کېدای او په چيغو چيغو مې ژړل.

کاپتا ددې لپاره چې ما غلی کړي وويل: زما باداره! په دې پوه شه چې خدايانو بدبخته کړی يې، ځکه چې هغه راز چې نه ما او نه مريت نه تاته وواېو، دا دی چې تهوت ستا زوی و.

له دې کبله چې تا له مريت سره ژوند کاوه او له تا څخه امېندواره شوې وه، دغه ماشوم يې زېږولی و. خو ته دومره پرې ګران وې چې نه يې غوښتل د هغه ماشوم شتون ددې سبب شي، چې ستا په شان د يوه سړي حيثيت او آبرو چې درباري ډاکټر يې له خاورو سره خاورې شي.

له همدې امله يې ونه ويل چې دغه ماشوم ستا زوی دی، ځکه چې بيا به مجبوره شوې وې، چې له هغې سره منګی مات کړې او هغه ستا رسمي مېرمنه شي.

مريت په وار، وار له ما سره خبرې کړې وې او هر ځل به يې ويل، نه غواړي چې خلک داسې ښځه د سينوهه رسمي ښځه وګڼي چې هغې په ميخانه کې خدمت کړی وي.

د غسې مېرمن دا وړتیا نه لرې چې د هغه ترخنګ ژوند وکړي. نن سبا په طبس او د مصر په نورو ښارونو کې داسې کسان ډېر دي، چې وايي، موږ په د تمساح میخانه کې د مریت له لاسه شراب څښلي دي.

سینوهه زما باداره! که لیوني شوی نه وې، نو باید په هغه ورځ له تهوت او مریت سره له دې ښاره وتلی وای، چې ما درته ووېل.

خو ته چمتو نه شوې چې له دې ښاره ووځې او ستا د لېونتوب په نتیجه کې دواړه ووژل شول.

له دغو خبرو وروسته زه غلی شوم یوه شېبه مې ورته وکتل ومې ویل ته رښتیا وایې؟

خو وروسته پوه شوم چې دغه پوښتنه بې ځایه ده، ځکه چې که کاپتا رښتیا وایي یا دروا غ، خو هغه دوه کسان اوس مړه شوي دي.

ما احساس وکړ چې کاپتا رښیتا وایي، ځکه چې مریت هم راته ویلي و، داسې یو راز شته، چې ویلی یې نه شي او ښایي همدا راز و.

له دې خبرې وروسته مې ونه ژړل، ځکه چې زما روح ،اوښکې او سترګې لکه ډبرې داسې شوي ول او ژړلی مې نه شو.

خو بې فکر هم نه شوم پاتې کېدای او کتل مې چې د تمساح لکۍ میخانه سوځېږي او د اور لمبې غرغړانده دي.

د مړیو د سوځېدا بوی ترې لتېده او زما د ګرانې مېرمنې مریت او زما د زوی تهوت مړي هم په دې مېخانه کې سوځېدل.

کله چې بېرا په زړه شول چې زما د زوی مړی د مرییانو او د بندر د پنډیانو د مړیو ترخنګ سوځي او اېرې کېږي، نږدې و، چې لېونی شم، ځکه چې تهوت زما زوی د خدایانو له نسله و ځکه زه پخپله هم د خدایانو له نسله وم.

که زه پوهېدای چې تهوت زما زوی دی، ښايي بل کار مې کړی وای، ځکه چې یو پلار د خپل زوی لپاره داسې کارونه کوي چې د ځان لپاره یې نه کوي، خو وخت تېر شوی و.

زما د ګران زوی او خور مړي د اور په منځ کې پراته ول، ما حتی د هغوی مړي له نابودۍ نه شوو ژغورلی، چې پخپلو لاسونو دواړه مومیایي کړم او په یوه ستر او کلک قبر کې یې کېږدم.

له دې کبله چې جنګ خلاص شوی و، کاپتا ماته ووېل، راځه چې لاړ شو او تا آمي او

پپیت آمون ته وروولم، هغوی اوس د نیل په څنډه کې دي او ته به هلته په امن کې یې.

کله چې زه هغوی ته ورغلم ومې لیدل چې دواړه د نیل په څنډه کې د بېړزلو په محله کې پر یوه تخت ناست دي او صلیبیانو ته سزا ورکوي

توروپوستو عسکرو او د شردن سپاهیانو شېبه په شېبه دوی ته صلیبي اسیران را وستل او هغوی د صلیبي اسیرانو په هکله داسې عدالت اجرا کاوه:

هر صلیبي چې وسله یې درلوده او اسیر کېده، سر په څېرې پر د ېوالونو ځوړند ېده او د صلیب هر پلوی چې له لوټ شویو شیانو سره نیول کېده لاس و پښې یې ورتړل او د نیل تمساحګانو ته یې وراچاو.

سلګونه تمساحګاني په تمه وې او کله چې به ګوله ورغله، نو دوی به پرې حمله کوله.

عادي صلیبیان، چې نه به ورسره وسله وه او نه لوټ شوي شیان، هغوی به یې په متروکو وهل او بیا به یې کانونو ته د کار کولو لپاره استول.

د صلیب د پیروانو مېرمنې به یې توروپوستو عسکرو او د شردن سپاهیانو ته ورکولې چې وینځې یې کړي. له دې کبله چې د صلیب د پیروانو په کورونو کې بل څه نه وپاتې، چې د آمون او نورو خدایانو پیروان یې لوټ کړي، نو د هغوی زامن یې اسیرانول او بیا به یې د خرڅلاو لپاره بازار ته بېول.

د صلیب د پیروانو په دار کېدلو، په سیند اچولو او متروکو وهلو د نیل څنډه په یوه لوی قتل ځای او د شکنجې په یوه مرکز بدله کړې وه. ددې لپاره چې آمې د آمون د کاهنانو مینه او توجه را جلب کړي، ویل به یې، زه به د مصر له خاورې چتله وینه لرې کړم.

پپیت آمون هم په بې رحمۍ سره د آتون پیروان وژل او په متروکو یې وهل چې کانونو ته یې بوځي. هغه ددې لپاره دغه کار کاوه، چې کله د آتون پیروان په طبس کې بریالي شوي ول، د هغه کور یې لوټ کړی و او د هغه پېشوګانې ورږې پاتې وې.

پپیت دغه خبره نه شوه هېرولای، نو په دې وخت کې یې فرصت ترلاسه کړی و، چې د آتون له پلویانو څخه د ځان او خپلو پېشوګانو غچ واخلي.

د نیل پر څنډه دوه ورځې وژنه روانه وه، پر دویمه ورځ د نیل په ساحل کې د بېړزلو د کورونو تول د ېوالونه، د هغو کسانو په مړیو ډک شول، چې سر په څېرې یې په د ېوالونو پورې راځوړند کړي ول.

د آمون کاهنانو پر بله ورځ خوشحالي کوله او د خپل خدای مجسمه یې پورته کړې وه،

د هغه لپاره یې قرباني وکړه او خلکو ته یې په خطاب کې وویل، له دې وروسته به په مصر کې کاختي نه وي او څوک به او ښکې تویې نه کړي.

ددې لپاره چې آمون راستون شوی دی، د هغه خدایي بیا راژوندی شوې او آمون به هغو کسانو ته برکت ورکړي چې پر هغه عقیده ولري.

اوس کارونه پیل کړئ، د آمون په کروندو کې تخم وشیندئ او ډاډه اوسئ، چې آمون به د هر هغه تخم په بدل کې چې تاسې یې په ځمکه کې کرئ لس برابره دانه درکړي او په مصر کې به غنم خپل ارزښت له لاسه ورکړي.

خو په واقعیت کې نه په مصر کې کاختي ورکه شوه او نه هم په طبس کې ګډوډي پای ته ورسېده.

تورپوستي عسکر او د شردن سپاهیان د طبس د ښار د نارینه وو، ښځو او ماشومانو د ژوند خاوندان ول، هر څوک چې به یې زړه غوښتل هغه یې وژل.

دغه راز له هرې ښځې سره چې د دوی زړه غوښتل، تفریح یې کوله او د هغوی زامن به یې خرڅول.

عسکرو ځینې کسان هم ووژل چې د آمون پیروان او له ښکرورو څخه ول، ځکه دوی نه آمون پېژاند او نه آتون.

د دوی یوازینی هدف د فلزاتو تر لاسه کول او له ښځو سره تفریح کول وو.

نه آمي ددغو عسکرو مخه نیولای شوه نه پیپیت آمون او د فرعون مامورین خو په طبس ښار کې ببخي بې وسه شوي ول، ځکه چې د آمون کاهنانو فرعون له پاچاهۍ څخه شنډې ته کړی و او ویل یې چې هغه دروا غجن او ملعون دی.

دوی ویل فرعون باید له دې وروسته پر مصر حکومت ونه کړي او باید د هغه ځای ناستی طبس ته راشي او د آمون په مخکې رکوع وکړي، نو هغه وخت به بیا د مصر فرعون وبلل شي.

له دې وروسته چې آمون په طبس کې واک ته ورسېد، زه بیا هم د یوې مودې لپاره هلته پاتې شوم، ځکه له دې ښاره وتل هم ستونزمن و او داسې برېښېده چې د هر ډول فیصلې اراده راڅخه اخیستل شوې وي.

زه په لاره تللم او ډوډۍ مې خوړله، خو ځان مې نه پېژاند او ته وا پر یوه بل کس بدل شوی یم، چې زه ورسره بلد نه یم.

د افق په ښار کې هم له فرعونه احوال نه راته، خود هغو آوازو په اساس چې طبس ته را رسېدې، پوهېدم چې په افق ښار کې هم حالات ناسم دي.

آمي غوښتل افق ته لاړ شي، نو له همدې امله يې پېپيت آمون د طبس حکمران وټاکه او له هغه ورسته دی روان شو. تر تګ مخکې يې ماته وويل سينوهه! ته پوهېږې چې د آمون کاهنانو فرعون له قدرته لرې کړی او هغه يې ملعون کړی دی، نو زه غواړم افق ته لاړ شم چې ورته ووايم، نور له پاچاهۍ لاس واخله او مقاومت مه کوه.

په دې سفر کې غوره ده، چې ته هم له ما سره ولاړ شې، ځکه کله چې زه غواړم اخناتون له سلطنته لرې کړم، نو ستا په شان د يوه ډاکټر شتون راسره ډېر ګټور دی، ايا ته له ما سره يو ځای افق ته ځې؟

ومې ويل هو ځم ځکه چې فکر کووم خدايان غواړي ما و ازمايي چې زما د صبر کاسه ډکه شي او له دې اړخه مې ترنورو غوره کړې نو دغه تجربه هم ضروري ده.

خوآمي پوه نه شو چې زه څه وايم بيا دواړه د افق ښار پر لور روان شولو.

په همدې وخت کې چې موږ دافق پر لور روان شو هورم هب هم له تانيسه دافق په لور خوځېدلی و.

موږ ددې لپاره چې افق ته لاړ شو د نيل د اوبو له بهير سره مو يو شان سفر پيل کړ، خو هورم هب د سيند د اوبو د بهير په مخالف لوري روان و.

زه خبر شوم، چې د هورم هب په لاره کې د ښارونو او سېدونکو د آمون پخواني معبدونه پرانيستي دي او مجسمې يې بيرته درولې دي، خو هورم هب نيوکه پرې نه کوله او غوښتل يې چې ډېر ژر افق ته ور سېږي. هغه فکر کړی و چې آمي غواړي په ټول مصر کې قدرت ترلاسه کړي او هورم هب نه غوښتل، چې دغه سړی په مصر کې تر ټولو لوی قدرت وي.

کله چې موږ افق ته نژدې شوو پوه شوو چې د افق ښار لکه لعنت شوی ښار داسې دی، ځکه چې دې ښار ته ټولې تلونکې لارې د آمون د ښکرورو کاهنانو او پلويانو له لوري بندې شوې وې او اجازه يې نه ورکوله چې څوک دې ښار ته ننوځي.

هغه کسان چې له افقه بهوتل په يوه شرط اجازه ورکول کېده چې تر وتلو مخکې آمون ته قرباني ورکړي او وښيي چې پر آمون عقيده لري، ګني له دې پرته به يې هغوی په متروکو وهل او کانونو ته يې استول.

د آمون د کاهنانو له اجازې پرته چا د نیل له لارې چې د افق اصلي لاره ده، سفر نه شو کولای، ځکه چې دغو کاهنانو د نیل لاره هم په مسي ځنځیرونو تړلې وه.
آمي ددې لپاره افق ته روان و چې فرعون د سلطننت پرېښودو ته مجبور کړي او کاهنان هم پوهېدل چې آمي د دوی نږدې متحد دی، نو زموږ د کښتۍ پر وړاندې یې مسي ځنځیر پرانېست او موږ تېر شوو.

***

کله چې کښتۍ د افق ښار ته ورسېده زه د افق د باغونو په لیدو حیران شوم، ځکه په باغونو کې ګلان او شنه بوټي ټول وچ شوي ول او د ونو حالت ددې ښودنه کوله چې باغونو ته یې اوبه نه دي ورکړې.
په نورو وختونو کې به کله چې چا له نیله د افق په منځ کې سفر کاوه د مرغانو غږونه به یې د ساحل په ښي او کیڼ اړخ کې اورېدل، خو پر دې ورځ ما د مرغانو غږ وانهورېد او داسې ښکارېده چې مرغانو له دې ښاره هجرت کړی وي.
هغه باغونه چې فرعون او د دې ښار نورو خانانو جوړ کړي وو، د نوکرانو او خانانو له هجرته وروسته شاړ شوي ول، ځکه داسې څوک نه وو پاتې چې باغونو ته اوبه ورکړي.
له ځینو باغونو څخه د خرابو شویو مړیو بویونه لتېدل او کله چې مې ددې بوی علت وپوښت، پوه شوم چې په غوجلو کې ځاروي او په جونګړو کې سپیان له لوږې او تندې مردار شوي او بوی یې کړی دی.
خو فرعون او د هغه کورنۍ لا پخپله ماڼۍ کې وه او همغلته یې ژوند کاوه.
یو شمېر بوډا او وفادار نوکران او مریيان هم ورسره پاتې ول، دغو نوکرانو د ډېرې وفادارۍ له امله فرعون نه شو پرېښودلی او بوډا درباریان هم پوهېدل چې په بل ځای کې کوم کار نه شي کولای.
کله چې زه افق ته ننوتم متوجه شوم چې فرعون او درباریان د سپوږمۍ له دوه ځله ګرځېدا یانې له شپېتو ورځو راهیسې په حالاتو باندې خبر نه دي، ځکه چې د آمون کاهنانو چاته اجازه نه ورکوله چې د افق ښار ته راشي.
په سلطنتي ماڼۍ کې د خوړو کمښت احساسېده او درباریانو، لکه فرعون غوندې ساده ډوډۍ خوړله او ساده ژوند یې کاوه.
آمي ماته وویل، له دې کبله چې ته فرعون ته ډېر ورنږدې یې او هغه په تا باور

لري، پوهېږي چې درواغ نه وايي، نو هغه ته ورشه او په هغه څه يې خبر کړه چې پېښ شوي دي.

زه په غمجن روح سره هغه ته ورغلم، فرعون چې ښکته کتل سر يې را اوچت کړ، په داسې حال کې چې د سترګو څلا يې کمه شوې وه، ماته يې وويل سينوهه ! ايا زما له ملګرو څخه يوازې ته راستون شوی يې که نور کسان هم راغلي دي؟ ما په طبس کې ډېر ملګري درلودل، چې ډېر راباندې ګران ول، ماته ووايه، چې هغوی څه کوي؟

ومې ويل اې فرعون اخناتونه ! پخواني خدايان په تېره بيا آمون چې تا راپرځولی و، بيرته په طبس کې واک ته رسېدلی دی، خدايي کوي، کاهنانو د آمون مجسمه بيرته درولې ده او د پخوا په شان ورته قرباني کوي.

خلک په دې ډېر خوشحال دي چې خپل خدايان يې بيرته ترلاسه کړي دي، پر تا لعنت وايي، ملعون دې بولي، له ټولو ځايونو، له معبدونو، ډبرليکونو او مجسمو څخه ستا نوم پاکوي او وايي چې ته درواغجن فرعون يې او بايد له سلطنته لاس پر سر شې.

کله چې فرعون دغه خبره واورېده هيجاني شو، مخ يې لږ سور شو او ويې ويل، سينوهه ! ما د طبس د حالاتو په هکله له تا پوښتنه ونه کړه بلکې، ما وپوښتل چې زما ملګري څه شول او زما ياران څه کوي؟

ومې ويل، اخناتونه ! ته دې په ملګرو څه کوې؟ ستا لپاره څه اهميت لري، چې هغوی ژوندي دي که مړه؟ هغه څه چې تا ته اهميت لري ستا مېرمنې، بچيان او زومان دي.

خو ستا ښځه ملکه نفرتي تي او ستا بچيان ستا ترڅنګ ناست دي، ستا يو زوم (سمن خګر) په نيل سيند کې کبان نيسي او بل زوم

دې (توت) له نانځکو سره لوبې کوي، هره ورځ خپلې نانځکې موميايي کوي او په قبر کې يې ږدي (*په بلې دنيا کې د مرګ او ژوند د وسايلو د کېښودلو او برابرولو فکر په پخواني مصر کې دومره زيات او قدرتمند و، چې حتی ماشومانو پر نانځکو د لوبو په وخت کې نانځکې موميايي کولې او په قبر کې يې اېښودلې. تر دې وړاندې چې نوی خدای آتون په مصر کې رامنځته شي، همغه ډول چې د مصر د تاريخ مورخان د اسنادو له مخې وايي، د دغه هېواد خلکو يوازې د دې لپاره ژوند کاوه، چې د ځان لپاره د مرګ وسايل برابر کړي او مړه شي. هدف دا دی چې قدرمن لوستونکي حيران نه شي چې ولې ماشومانو د نانځکو په وخت د هغو په ښخولو سره ځان بوختاوه او لوبې يې کولې. ژباړن*)

فرعون لکه چې زما خبره نه وي اورېدلي وويل، زما ملګري تو تمس چې ستا ملګر هم و چېرته دی؟ دغه ستر هنرمند چېرته دی، چې پخپل هنر سره يې د برې ته ساه ورکوله او کاڼو ته يې تلپاتې عمر ورکاوه؟

ومې ويل اخناتونه! هغه له دې کبله چې ستا او ستا د خدای پر وړاندې ډېر وفادار و، د تور پوستو عسکرو له لوري ووژل شو.

هغه يې په نېزې سره سوری سوری کړ او مړی يې ورته په نيل کې واچاوه، تمساحګانو يې مړی تو ته کړ او اوس د هغه سړي د مجسمه جوړولو په کارخانه کې، د شپې په مهال شغالان اتڼ کوي.

اخناتون په داسې بڼه چې ته وا له مخه پرده لرې کوي لاس وښوراوه او د خپلو هغو ملګرو نومونه يې واخيستل چې په طبس کې ول.

د هر نوم له اخيستو وروسته به ما ورته ويل، هغه ستا او ستا د خدای لپاره ووژل شو او يا مې ويل هغه ژوندی دی او اوس د آمون لپاره قرباني ورکوي او پر تا لعنت وايي.

کله چې فرعون د ملګرو د نومونو له اخيستو فارغ شو، ما وويل اې فرعونه! پوه شه چې د آتون د خدايۍ دوره پای ته رسېدلې، هغه نور نسکور شوی دی او په نړۍ کې يو ځل بيا آمون خدايي کوي.

فرعون خپل ډنګر لاسونه وښورول او خپلې مخې ته يې يوه لرې تکې ته وکتل او ويې ويل، آتون ازلي، ابدي او نامحدود خدای دی او يو نامحدود خدای په يوه محدوده نړۍ کې نه شي ځايېدای نو عجيبه نه ده چې هغه يې نسکور کړی دی.

خو اوس چې آتون له منځه تللی او هر څه د پخوا په شان کېږي په نړۍ د وحشت، ظلم، کينې او جهالت حکومت دی، نو له همدې امله غوره ده چې زه هم مړ شم او د آمون او د وېرې او وحشت د نورو خدايانو وخت او پېر ونه ګورم، کاشکې ما دې نړۍ ته ستر ګې نه وای رڼې کړې چې دغه ظلمونه او بدبختۍ وګورم.

ومې ويل اې فرعونه! ته خو پوهېږې چې په دې محدوده دنيا کې يو نامحدود خدای نه ځايېده او د خلکو کوچني فکرونه ددې وس نه لري، چې د يوه ناڅرګند او بې مجسمې خدای عبادت وکړي، نو ولې دې دغه خدای رامنځته کړ؟

ولې دې هغه په خلکو وپېژاند او ولې دې دومره وينه وبهوله..... ته خو دلته ناست يې، ستا بچيان يې ستا پر وړاندې نه دي وژلي او هغه ښځه چې درباندې ګرانه وي هغه يې

ستا په مخ کې سورې سورې کړې نه ده.

ته نه شې پوهېدای چې ستا خدای خلک څومره بدبخته کړي دي او څومره بې ګناه کسان يې وژلي دي؟.

تا ونه ليدل چې څنګه هغو مېرمنو چې زرينې غاړکۍ به يې در لودې خپلو ماشومانو ته د يوې نمړۍ ډوډۍ لپاره ځانونه په تورپوستو خرڅ کړل.

دا تر ټولو نيمکرغه مېرمنې وې، ځکه تورپوستو عسکرو بې له دې چې يوه ګوله ډوډۍ ورکړي، پر نورو ښځو تېرى کاوه.

ايا هغه نيکمرغي چې تا غوښتل له دې وروسته يې د مصر پر ملت پېرزو کړې په دې ټولو غميزو او کړاوونو ارزېدله؟

اخناتونه! تا د طبس جنګ ونه ليده، ته نه پوهېږې، چې ښکرورو کوم کوم جنايتونه کړي دي، خو تر هغه مخکې صليبيانو همدغه جنايتونه له ښکرورو سره کړي ول چې د هغوی خدايان يې له منځه وړل. فرضاً که له دغو جنايتونو څخه هغه نړۍ رامنځته شوې وای چې ستا خدای غوښته او د شتمن او بېوزلي ترمنځ توپير له منځه تللى وای، خو بيا هم اوس څوک بايد ددغو بې ګناه کسانو د وژنې مسوليت ومني. د هغو کسانو د وژنې مسوليت چې سوري سوري شول، وسوځېدل او ژوندي بدنونه يې تمساحګانو ته واچول شول.

اې فرعونه! کله چې پوهېدې ستا نامحدود او ناڅرګند خدای په دې دنيا کې نه ځايږي، نو ولې دې امر وکړ چې خلک ستا د خدای عبادت وکړي، چې دغه غميزه رامنځته شي.

فرعون وويل سينوهه! که ته ما دومره ظالم او د خلکو کړونکی بولې، له ما سره مه ايسارېږه.

له دې ځايه لاړ شه چې تر دې زيات زما له کبله په تکليف نه شې.... له دې ځايه لاړ شه، چې زه دې څېره ونه وينم، ځکه چې د انساني څېرې له ليدو ستړى شوى يم.

خو زه ددې پر ځاى چې لاړ شم، د اخناتون پر وړاندې پر ځمکه کېناستم او ومې ويل، اې فرعونه! زه له تا څخه نه ځم

ځکه ښکاري چې زما د برخليک لوښى لا نه دى ډک شوى، بايد تر دې زيات ډک شي، بيا تګ اسانه دى او ټول تللى شي.

خو کله ناکله پاتې کېدل همت غواړي، که ما تا ته داسې خبرې کړې چې ته مې رټلی یې، دا زما د باطني درد له امله دي، ځکه چې ما په طبس کې خپل زوی او هغه ښځه له لاسه ورکړه چې پر ما ګران ول.

پر دې سربېره آمي او هورم هب غواړي، تا ته راشي او مذاکره وکړي هورم هب نیل سیند کې نغارې ووهلې چې مسي ځنځیر مات کړي، چې د هغه بېړۍ افق ته ننوځي، زه تصور کوم چې یو ساعت وروسته به دواړه راشي.

فرعون زهرجنه موسکا وکړه، ویې ویل، آمي د جنایت مجسمه ده او هورم هب د تورې او نیزې ایا آتون داسې کم بخته کړی یم چې یوازې دغه دوه تنه ما ته وفادار پاتې دي چې زما پر لور راځي.

له دې وروسته فرعون خبرې ونه کړې، زه هم غلی شوم، تر هغه چې آمي او هورم هب رانننوتل.

زه د هغو له سرو شویو څېرو څخه پوه شوم چې له یوه بل سره یې لانجه کړې وه او په جنجال سره سلطنتي مانۍ ته راننوتي دي.

# پینځه ځلوېښتم څپرکی

## پخپل لاس مې فرعون وواژه

کله چې آمي کوټې ته راننوت، له مقدمې او فرعون ته له درناوي پرته يې وويل، اخناتونه نور ته پاچاهي نه شې کولای، خو که استعفا ورکړې خپل ځان ژغورلای شې ګنې تا به ووژني.

استعفا ورکړه او خپل زوم سمن خګر د پاچاهۍ لپاره انتخاب کړه چې ستا زوم له دې ځايه طبس ته لاړ شي او د آمون لپاره قرباني وکړي له دې قربانۍ وروسته به د آمون کاهنان د هغه پر سر غوړي وموښي او د سلطنت خولۍ به يې پر سر ورکېږدي.

کله چې د آمي خبرې پای ته ورسېدې، هورم هب وويل، زما توره او نيزه به هم د اخناتون سلطنت وساتي او هم د هغه ځان، په دې شرط چې فرعون له دې ځايه طبس ته لاړ شي او د آمون لپاره قرباني ورکړي.

که څه هم د آمون کاهنان به لږ وغورېږي، خو کله چې زما نېزې او تورې وګوري غلي به شي او بيا که فرعون د سوريې د نيولو لپاره جنګ پيل کړي او حمله وکړي، کاهنان به مجبور شي، چې له فرعون سره مرسته وکړي.

اخناتون يوه شېبه هورم هب ته وکتل بيا يې وويل، ما د فرعون په شان ژوند کړی او د فرعون په شان به مړ شم، هېڅکله به د يوه درواغجن خدای لپاره قرباني ورنه کړم، هېڅکله به جنګ ونه کړم، ځکه چې زما خدای له جنګه بېزاره دی.

له دې خبرې وروسته فرعون د خپلو جامو لمن پورته کړه او پر خپل مخ يې واچوله له کوټې ووت او لاړ.

هورم هب، آمي او زه په کوټه کې پاتې شوو، زه د کوټې په غولي کېناستم او له ډېرې خواشينۍ مې د پاڅېدا توان نه درلود، هغو دواړو ته مې کتل ومې ليدل، چې آمي خپل دواړه لاسونه پرانيستل او هورم هب ته يې وويل، ستا تورې او نېزې چمتو دي، ته له دې

ښه فرصته د پاچاهۍ لپاره استفاده وکړه او دا فیصله وکړه، چې د مصر د پاچاهۍ خولۍ پر سر کېږدي.

هورم هب وخندل او ویې ویل، آمي! که پر سر د مصر د پاچاهۍ د خولۍ اېښودل دومره آسانه دي، ولې ته دغه کار نه کوې.

ته پوهېږې! هر څوک چې له فرعون وروسته د مصر پاچا شي، باید د هغه کرل شوی تخم ټول کړي، نو ما ته وړاندیز مه کوه چې د مصر پاچا شم.

او که ته پوهېدای چې له اخناتونه وروسته پاچا کېدل آسانه دي، پخپله دې د سلطنت تاج پر سر کاوه.

اخناتون هېواد له کاختۍ سره مخامخ کړی دی او پر دې سربېره یې مصر داسې کمزوری کړی چې حتماً به پر مصر حمله کېږي.

هغه تخم چې اخناتون کرلی، یانې کاختي او جنګ، باید د هغه فصل وریبي. که زه له اخناتون وروسته د سلطنت خولۍ پر سر کېږدم خلک به کاختي او جنګ زما له لاسه وبولي، ځکه چې زه په لنډه موده کې نه د جنګ مخه نیولای شم او نه کاختي له منځه وړلای شم، هغه وخت بیا ستا لپاره آسانه کار دی، چې ما د پاچاهۍ له ګدۍ راکوز کړې.

آمي وویل له دې کبله چې ته نه غواړې فرعون شې، بله چاره نه شته، مګر دا چې د فرعون زوم سمن خګر فرعون شي او که هغه هم پاچاهي ونه منله، د هغه بل زوم توت به سلطنت ومني او تر هغه به د خلکو له قهر سره مخامخ وي، چې کاختي له منځه لاړه شي او حالات ښه شي.

هورم هب وویل، زه پوهېږم چې ته ولې غواړې د اخناتون یو زوم فرعون کړې، ځکه چې پوهېږې، دواړه ستا پر وړاندې اراده نه لري او ته د هغوی په نوم سلطنت کولای شې.

آمي وویل، خو ته یو پوځ لرې او تر ما مضبوط یې په تېره بیا دا چې که وکړای شې هاتي په شا وتمبوې، نور به هم مضبوط شې او هېڅوک نه شي کولای چې په دې هېواد کې له تا سره د برابرۍ لافې ووهي.

دواړو یوه شېبه له یو بل سره خبرې وکړې او بیا آمي وویل: هورم هبه! زه اعتراف کووم چې غوښتل مې تا پر ځمکه وولم او لاس دې د پوځ له قوماندانۍ لنډ کړم، خو نن سبا ګورو چې زه او ته یو بل ته اړ یو، که زه نه یم ته د هاتي مخه نه شې نیولای او که ته د هاتي مخه ونه نیسې زه به حکومت ونه کړای شم، ځکه چې د هاتي ځواک به په لنډه موده کې

مصر ونیسي.

نو راځه چې له یوه بل سره متحد شو او د مصر په خدایانو قسم وخورو، چې له یوه بل سره به مرسته کوو.

هورم هب وویل، زه د مصر پاچاهي نه غواړم، خو غواړم چې د مصر د ځواک قوماندان واوسم، زما پوځ ځمکې ونیسي او د دې کار لپاره ستا ملاتړ اړین دی.

خو زه ویریږم چې که له تا سره متحد شم ته به په لومړني فرصت کې له ما سره خیانت وکړې، ما به پر ځمکه وو هې.

دغه خبره درواغ مه ګڼه، ځکه چې تا ډېر ښه پېژنم، نو له تا سره د اتحاد لپاره تضمین غواړم.

آمي وویل، تر دې لوی ضمانت څه کېدای شي، چې ته یو پوځ لرې او مصر یاني زه به یې خرڅ ورکووم، ایا ستا د قدرت د ساتلو لپاره د یوه پوځ له درلودلو پرته بل څه ضمانت کېدای شي ؟

هورم هب غلی شو.

هغه چې هېڅکله د خبرو په وخت شک نه کوي، په دې وخت کې ما ولید چې شکمن شو، بیا یې وویل: هغه ضمانت چې زه یې غواړم دادی چې شهزادګۍ باکتاتون دې زما شي او زه باید ورسره منګی مات کړم.

آمي وخندل ویې ویل هورم هبه ! ته تر هغه ډېر هوښیار یې چې ما یې تصور کاوه، په دې پوهېږې، هغه کس چې د اخناتون له خور مېرمن باکتاتون سره واده وکړي، د مصر پاچا کېدای شي، حتی پر مصر د پاچاهۍ لپاره ستا حق د اخناتون تر زومانو ډېر دی.

ځکه چې اخناتون د کاهنانو د فتواو پر اساس درواغجن او ملعون فرعون دی، نو د هغه د لونو په رګونو کې د یوه درواغجن او معلون فرعو ن وینه بهېږي، په داسې حال چې د اخناتون خور باکتاتون لویه ده او د هغې په رګونو کې د لوی فرعون وینه بهېږي

له همدې امله که هغه ستا خور (*یعنې ستا مېرمن ژباړن*)شوه، ته د اخناتون د زومانو په پرتله د مصر د پاچاهۍ لپاره ډېر صلاحیت پیدا کوې.

خو یوه شه ! دغې شهزادګۍ خپل پخوانی نوم باکتاتون اوس پر (باکتامون ) اړولی دی، نو له همدې امله د آمون په کاهنانو ګرانه ده.

زه ستا له دغه وړاندیز سره موافق نه یم، ځکه چې که دغه مېرمن چې د لوی فرعون لور

ده، ستا مېړمن شي،ته به زما د ښارني له حلقې ووځې او په راتلونکې کې به زه پر تا هېڅ کنټرول اونفوذ ونه لرم.

هورم هب وویل، پوهېږم ته له دې ډارېږې، چې کله زه د هغې مېړه شم او زموږ زامن پیدا شي، نو د مصر سلطنت به زما د زامنو مسلم حق وي.

خو مه وېرېږه ! زه به له تا مخکې پاچاهي ونه کړم، ځکه چې زه انتظار کولای شم، تر تا ډېر ځوان یم او چمتو یم، چې د خپلې تورې او په وسیله له تاسره مرسته وکړم، چې سلطنتي خولۍ پر سر کړې.

دا چې ما له تا څخه وغوښتل دغه شهزادګۍ زما خور شي، لامل یې دادی، چې دا پر ما ګرانه ده.

له کومې ورځې، چې ما ولیدله تر اوسه پورې د هغې غوښتونکی یم او که ته خپل نفوذ وکاروې، چې دغه مېرمن زما خور شي، نو زه به ستا له پاچاهۍ سره مخالفت ونه کړم.

آمي په چورت کې لاړ. زه متوجه شوم، چې ولې هغه فکر کوي؟

د آمي د فکر کولو علت دا و، چې پوه شو یوه ښه وسیله یې پیدا کړې ده، چې په دې توګه هورم هب تر خپلې ښارنې لاندې وساتي، ځکه کله چې پر یوه سړي کومه ښځه ګرانه وي، ددې لپاره چې وکړای شي له هغې سره واده وکړي، نو هر ډول قید و شرط مني.

وروسته آمي وویل، هورم هبه ! ته چې له یوې مودې راهیسې دا هیله لرې، چې ددې مېرمنې خاوند شې، نو دومره صبر چې دې وکړ، لږ نور زغم هم ولره، ځکه چې ته باید اوس په یوه ستر جنګ کې ګډون وکړې ددغه جنګ موخه پر مصر د یرغل مخنیوی دی او اوس چې باید د جنګ ډګر ته لاړ شې، نو له دې کبله له شهزادګۍ سره منګی نه شې ماتولای.

بله دا چې تر اوسه پورې له دې شهزادګۍ سره خبرې نه دي شوې چې ته غواړې ورسره منګی مات کړې او د هغې فکر هم ددې خبرې منلو ته چمتو نه دی.

لږ وخت پکار ده، چې دغه شهزادګۍ چمتو شي او تا د خپل ورور په توګه ومني، ځکه هغه پوهېږي چې ته د عوامو له توکمه یې.

کله چې تا دې نړۍ ته سترګې رڼې کړې، ستا د ګوتو په منځ کې د غوا د دوو ګوتو په شان خوشایي نښتي ول،خو په مصر کې یوازې یو کس شته چې کولای شي دغه شهزادګۍ له تا سره واده کولو ته مجبوره کړي او دغه کس زه یم.

زه د مصر په ټولو خدایانو قسم خورم چې کله ما د مصر د پاچاهۍ تاج پر سر کېښود

پخپل لاس به ستاسې ترمنځ د وروری او خوری منګی مات کړم.

آمي دغه خبره په داسې جدیت سره وکړه چې په هورم هب یې اغېز وکړ، ویې ویل ډېره ښه ده. زه هم له تا سره مرسته کووم چې ډېر ژر د مصر پاچاهی ته ورسېږې او دغه شهزادګۍ ژر زما خور شي.

دغه دوه کسان په خبرو بوخت ول او زه پر ځمکه ناست وم نو ځکه یې نه لیدم.

خو ناڅاپه د هورم هب را پام شو، ویې لیدم او په خندا یې وویل، اوه سینوهه! ته لا دلته یې او زموږ ټولې خبرې دې اورېدلې دي؟

ایا په دې پوهېږې چې ته زموږ په رازونو پوه شوی یې، نو باید زه دې ووژنم، خو ستونزه دا ده چې ته زما ملګری یې او د یوه ملګري وژل بې خونده کار دی.

ما له دې خبرو سره وخندل، ځکه چې را په زړه شول، هورم هب او آمي دواړه عام خلک دي او له توکمیز پلوه د پاچاهی وړتیا نه لري، په داسې حال کې چې زه د فرعون له توکمه یم او د پاچاهی وړتیا لرم.

آمي چې زما خندا ولیده ویې ویل سینوهه! اوس د خندا وخت نه دی، ځکه چې موږ جدي خبرې کوو او که زموږ ملګری نه وای، یادا چې ستا ملګرتیا ته مو هیله نه وای نو ته مو وژلې چې څوک زموږ له رازه خبر نه شي.

اوس به دا ستا په ګټه وي، چې دغه خبره بل چاته ونه کړې چې څوک هېڅ پوه نه شي چې زه د پاچاهی نیت لرم. که ته چمتو یې چې له موږ سره مرسته وکړې، نو موږ به په راتلونکې کې هرڅه چې ته یې وغواړې درکړو.

ومې ویل له تاسې سره څه مرسته کولای شم؟ آمي وویل، فرعون له یوې مودې راهیسې ناروغ دی، ټول پوهېږي چې د هغه ناروغي لا علاجه ده، د درملنې یوازې یوه روده پاتې ده، چې باید وکارول شي، هغه دا چې د فرعون د سر کوپړی سوری شي چې له مازغو یې تاواني بخار ووځي.

ته هم د اخناتون ځانګړی ډاکټر او د مصر بلکې د نړۍ لوی پوه یې، هېڅوک ستا په لیاقت او صلاحیت کې شک نه کوي، نو همدا نن یې سر سوری کړه او د جراحی چاړه دې د هغه په مازغو دننه کړه چې فرعون مړ شي او مصر له دې بدبختی څخه وژغورل شي.

ومې ویل آمي! له دې وروسته چې فرعون مړ شي، د هغه مړی به د مومیایي کولو لپاره د مړیو کور ته یوسي او هلته به یې د سرهدوکي لرې کړي چې مازغه یې وګوري

کله چې د مړیو د کور کارکوونکي د فرعون مازغه وګوري، سملاسي پوهېږي چې ما د هغه په مازغو کې چاړه ننه ایستې او هغه مې وژلی دی.
دغو خبرو پر هغوی اغېز وکړ، ځکه چې دواړه هېڅکله د مړیو کور ته نه وو تللي او هلته یې د کار کولو روديې نه وې لیدلې، هغوی نه پوهېدل، چې د مړیو په کور کې هېڅکله د فرعون او نورو شتمنو کسانو د سر هډوکي نه پورته کوي چې د هغوی مازغه وباسي.
خو کله چې د بېوزلو مړي مومیایي کوي، د سر هډوکی د یوې کاسې په شان له جمجمې څخه جلا کوي، چې په اسانه او چټکه توګه مازغه او چت کړي، لرې یې وغورځوي او بیا هډوکی بیرته پر خپل ځای ږدي او بندوي یې.
خود فرعون د درباریانو او خانانو مازغه د هغوی د پوزې له سوريو راباسي.
زه پخپله کله چې د مړیو په کور کې د مړیو په مومیایي کولو بوخت وم، دغه چل مې لکه چې ددې برخلیک په پیل کې وویل زده کړی و.
نو که ما د فرعون په مازغو کې خپله چاړه یوه ګوته دننه کړې وای هم، د مړیو د کور کارکوونکي نه پوهېدل چې ما هغه وژلی دی، خو هغه پلمه چې ما وکړه هورم هب او آمي ومنله.
هورم هب وویل، زه ډاکټر نه یم او نه پوهېږم چې فرعون به څه ډول مړ شي، خو په دې پوهېږم، چې دغه سړی باید له منځه لاړ شي، ځکه تر هغه چې دی ژوندی وي، مصر به و نه ژغورل شي.
ومې ویل، زه ډاکټر یم، پوهېږم د فرعون طبیعت داسې نه دی، چې سر یې سوری کړای شي، ځکه سر یې په داسې وخت کې باید سوری شي، چې د مرګ خطر نږدې وي.
مګر نن سبا چې فرعون د مرګ له خطر سره مخامخ نه دی او زه هم د فرعون ملګری یم نو زه هم نه غواړم چې دغه سړی د خپل خدای له راپرځېدا څخه وکړېږي او خپل پاتې عمر په بدبختۍ کې تېر کړي.
زه به هغه ته داسې شربت ورکړم چې له درد او کړاو پرته بلې دنیا ته لاړ شي او ددې شربتو اصلي ماده د کوکنارو د پوټکي شیره ده.
آمي وویل، اپیم یادوې؟ ومې ویل، هو ! اپیم یادوم.
دغه ماده به زه له شرابو سره یو ځای کړم پر فرعون به یې وڅښم، هغه به له درده پرته

په درانه خوب ویده شي او بیا به مړ شي.

آمي وویل، ایا د فرعون له مرګه وروسته هغه کسان چې د هغه مړی مومیایي کوي، ددې درملو په اغېز پوهېږي او د هغو اغېز به يې په خېټه کې پیدا کړي کنه؟

ومې ویل زه به پر هغه شربت وځنبم او شربت په خېټه کې کوم اغېز نه پرېږدي

آمي وویل، اپیم خاص بوی لري، کله چې د هغه بوی احساس کړي، وبه يې نه ځنبي.

ومې ویل، له دې وروسته چې اپیم څو ځله وایشول او تصفیه شي، نو خپل بوی به له لاسه ورکړي، په تېره بیا که په شرابو کې حل شي.

ما اپیم او نور درمل په شرابو کې حل کړي دي.

آمي وویل نو ځنډ مه کوه، پر هغه اپیم وخوره، خو غوره نه ده چې داسې زهر ورکړل شي چې ژر اغېز وکړي؟

ومې ویل آمي! زه خبر وم چې دې سړي د خیر نیت درلود او نه يې غوښتل، چې د مصر حالات داسې شي، خو ځېل يې وکړ او د هوښیارانو خبرو ته يې غوږ و نه نیو.

خلکو چې هر څه ورته وویل د هغوی خبره يې و نه منله او تل به يې ویل چې زما خدای همداسې ویلي دي.

نو غوره نه ده چې داسې زهر پرې وخوړل شي چې درد ولري او ويې کړوي. د اپیمو د پوټکي له شیرې پرته بل هر ډول دارو حتی که ډېر لږ هم وي درد پیدا کوي، یوازې دغه شیره ده، چې مسموم کس ویدوي او هېڅ ډول درد نه احساسوي.

یوازې په ځینو کسانو کې چې کمزوري وي، ممکنه ده بدن يې سوړ شي او لړزه پیدا کړي.

آمي او هورم هب بیړه درلوده چې زه ډېر ژر فرعون ته زهر ورکړم چې آمي ژر پاچاشي او هورم هب وکړای شي له شهزادګۍ باکتاتون چې اوس باکتامون بلل کېده، واده وکړي.

ما په یوه جام کې نیمه پیمانه شراب واچول او درمل مې پرې ور زیات کړل، ښه مې وښورول، چې شراب او درمل سره ګډ شي، بیا له آمي او هورم هب سره یو ځای د فرعون د کوټې پر لوري روان شوم.

فرعون د پاچاهي خولۍ له سره لرې کړې وه او سلطنتي متروکه او لکړه يې یوې خواته ایښي ول او پر یوه تخت اوږد غځېدلی و.

آمي سلطنتي تاج پورته کړ او په لاس يې وتاله، داسې وبرېښېده چې غوښتل يې پوه

شي سر يې دد ې خولی. د وړلو وس لري او کنه؟

بیا يې وويل فرعونه! ستا ډاکټر سينوهه، درمل درته راوړي دي چې تابه معالجه کړي او کله چې روغ شوې موږ به د هغې مسلې په هکله خبرې درسره خبرې وکړو چې نن مو سره ياده کړه.

فرعون سترګې پرانيستلې، پورته شو او په تخت کې کېناست، موږ درې واړو ته يې ښايسته شېبه وکتل، کله چې يې ماته وکتل، زما بدن ورېږدېده.

هغه چې زما په لاس کې د شرابو پيمانه وليده ويې ويل :سينوهه! کله چې يو ځناور ناروغېږي، ددې لپاره چې هغه ارام کړي، نو ناځاپه يې له منځه وړي، ايا دغه درمل چې تا ماته راوړي ، د همدغه کار لپاره دي؟

که داسې وي، نو زه له تا څخه مننه کوم، ځکه چې ناهيلي له مرګ څخه هم بده ده او نن سبا مرګ زما لپاره تر هر ډول شرابو خوندور دی.

ومې ويل فرعون اخناتونه! دغه درمل وخوره چې استراحت وکړای شې، ځکه چې ته استراحت ته اړتيا لرې.

هورم هب وويل فرعون اخناتونه! ايا په زړه دې دي، چې کله ځوان وې، ما پخپلو جامو کې په بيديا کې پټ کړې چې يخ دې ونه شي؟ دغه درمل وخوره او ويده شه، که دې ساړه وشول، زه به دې پخپلو جامو کې پټ کړم.

فرعون د شرابو پيمانه له ما واخيستله او شونډو ته يې نږدې کړه، خو لاسونه يې داسې رېږدېدل چې په دواړو لاسونو يې ونيوله.

لکه چې ما اټکل وکړ، فرعون ښه پوهېده چې څه شی څښي، خو بيا يې هم په يوه غوړپ کې وڅښل، پيمانه يې پر کټ کېښودله او ما راپورته کړه.

فرعون څو شېبې موږ ته وکتل، له هغه وروسته يې خبرې ونه کړې، اوږد وغځېده، بيا يې ساړه وشول او ورېږدېد.

هورم هب خپلې جامې وايستلې او پر فرعون يې واچولې، چې لړزه يې ورکه شوه نو ويده شو.

کله چې فرعون ويده شو آمې د سلطنت تاج پر خپل سر وآزمايه چې ايا د هغه د سر لپاره ښه دی کنه؟

کله چې ما اشاره وکړه، هورم هب او آمي له کوټې ووتل، زه هم وروسته راووتم او

نوکرانو ته مې وویل، فرعون استراحت ته اړتیا لري او ویده شوی، باید هغه راویښ نه کړئ.

نوکرانو د بلې ورځې تر سهاره را ویښ نه کړ او په دې ډول مړ شو. اخناتون فرعون د مرګ جام زما له لاسه یانې د سلطنتي ډاکټر له لاسه وڅښنه زه نه شم ویلای چې په ښېلا ښېلو عواملو کې چې ما د مرګ جام هغه ته ورکړ کوم عامل ډېر پیاوړی و؟ ایا د مریت او تهوت مړینه ددې سبب شوه، چې زه د اپیمو شیره هغه ته ورکړم ؟ ایا له دې امله مې مړ کړ چې پوهېدم د هغه شتون به د مصر ملت نور هم بدبخت کړي؟

ایا په مصر کې د موجود دود له مخې چې فرعون باید د هغه د ځانګړي ډاکټر له لوري ووژل شي، ما فرعون وواژه چې د دودونو په اساس عمل وکړم؟ ایا دا چې په ستورو کې لیکل شوي ول، چې باید دغه کار زما په لاس وشي؟

ښایي پر دغو عواملو سربېره دا عامل هم اغېزناک و، چې غوښتل مې زما د برخلیک لوښی ډک شي، چې یوه ورځ وو ایم، سینوهه ! تا داسې برخلیک درلود چې هېچا نه دی درلودلی.

ښایي غوښتل مې، په دې ډول خپل ځان ته خپل قدرت وښییم.

ځکه چې که یو څوک وو ایي زه ځان ډېر ښه پېژنم، بیا هم ددې وس نه لري، چې ځان بشپړ وپېژني او کله نا کله به داسې کار هم وکړي چې وروسته نه شي پوهېدای ولې یې دغه کار کړی دی؟

پر بله ورځ د افق ښار په سلطنتي ماڼۍ کې د ساندو او ژړاګانو غږونه واورېدل شول، موږ ځان ماڼۍ ته ورساوه.

یوازې یوه کس نه ژړل او هغه ملکه نفر تي تي وه، چې د خپل خاوند د جنازې تر څنګ ولاړه وه، بې له دې چې وژاړي، د هغه پر مخ یې خپلې ګوتې تېرولې.

کله چې زه ورننوتم د فرعون مړي ته مې وکتل سترګې یې خلاصې وې، ما ته یې کتل.

ما د هغه په سترګو کې د غوسې نښې ونه لیدلې، خو تر هغه وخته چې د هغه مړی مې د مړیو کور ته یوووړ او د مړیو د کور کارکوونکو ته مې وسپاره چې مومیایي یې کړي، د فرعون له سترګو شرمېدم.

که له ما پرته بل چا دغه کتاب لیکلی وای ښایي، دغه برخه یې نه وای لیکلې او ځان یې د فرعون قاتل نه وای معرفي کړی، خو ما په دې کتاب کې له حقیقت پرته بل شی نه

دي لیکلي او وبه یې نه لیکم، حتي که زما په تاوان هم وي.

زه پوهېږم چې که کومه ورځ ځوک دغه تصویرونه (د مصر خط تصویري و. ژباړن) ولولي له ما خخه به ډېره کرکه وکړي، چې زه درباري ډاکټر او د فرعون د اعتماد وړ کس وم، نو ولې مې هغه وواژه؟

زه تر دې زیات ځانته د برائت ورکولو لپاره بل څه نه لرم، خو اوس چې دغه تصویرونه کاږم وایم، یو هغه عامل چې زه یې اړ کړم د اپیمو د پوټکي شیره پر فرعون وڅښم دا و، چې غوښتل مې د هغه کړاو او درد ختم کړم، ځکه چې پوهېدم که له ما پرته بل څوک د هغه د وژلو تابیا وکړي نو په ډېر کړونکي ډول به یې ووژني.

خو ما لوېدیزې نړۍ ته داسې واستاوه، چې هغه پوه نه شو، ویده دی که د ځنکدن په حال کې دی.

تر دې وړاندې چې د اخناتون مړی د مومیایي کولو لپاره د مړیو کور ته ولېږدول شي، د فرعون زوم سمن خګر یې د هغه پر ځای کېناوه، هغه یې فرعون وباله، تاج یې ور پر سر کړ سلطنتي لکړه او متروکه یې په لاس کې ورکړه.

خو ځوان او نوی فرعون اند ښمن او ترهېدلی و، شا و خوا یې کتل، ځکه عادت یې کړی و، چې تل د اخناتون پیروي وکړي، د هغه په ارادې فکر وکړي او خپلواکه رایه او نظر یې نه درلود.

آمي او هورم هب ورته وویل که غواړي چې تاج پر سر ولري باید ډېر ژر افق له ښاره ووځي، طبس ته لاړ شي او هلته د مصر همېشني او ستر خدای آمون ته قرباني وکړي

خو سمن خګر د اخناتون خبره تکرار کړه او ویې ویل، هڅه به وکړم چې د بې ځېږې او ناڅرګند خدای وړانګه پر ټولې نړۍ وځلېږي او په دې ښار کې به د خپل خسر لپاره یو معبد جوړ کړم او د خپل خدای آتون په شان به د هغه عبادت وکړم، ځکه چې اخناتون داسې کس و، چې ساری به یې په نړۍ کې پیدا نه شي.

آمي او هورم هب چې کله ولیدل سمن خګر ټینګار لري چې د آتون عبادت وکړي، نو څه یې ونه ویل.

پر بله ورځ ځوان فرعون د کب نیونې لپاره د نیل څنډې ته لاړ خو په اوبو کې ولوېد او تمساح ګانو وخوړ.

ځینو کسانو به ویل چې سمن خګر کله چې کبان نیول په اوبو کې ولوېد او تمساح ګانو

وخوړ، خو زه په دې خبره باور نه کووم او ګمان کوم چې هغه یې په اوبو کې اچولی دی.

هورم هب داسې سړی نه و، چې دغه کار یې کړی وي، نو په غالب ګمان به آمي د تمساح ګانو خولې ته ورکړی وی، چې د ېر ژر خپل هدف یانې د مصر پاچاهي ته ورسېږي.

هغه وخت آمي او هورم هب توت ته ورغلل، ويې ليدل چې له ناڅکو سره د مړيو د ښخولو لوبې کوي، د هغه مېرمن او د پخواني فرعون لور آنکس آتون هم ورسره لوبې کوي.

هورم هب ورته وويل: توت! پاځه ته فرعون شوی یې، باید سلطنتي خولۍ پر سر کړې او د خپل خسر پر تخت کېنې!

توت پا څېد.

هورم هب او آمي هغه د خپل خسر د تخت پر لور او پر ګدۍ یې کېناوه. توت وويل، زه له دې کبله چې فرعون شوی یم حیران نه یم، ځکه چې ځان مې تر نورو لوړ ګانه.

خو له دې وروسته به زما متروکه، بد خلک سم کړي او زما سلطنتي لکړه به نیک خلک اداره کړي.

آمي وويل، توت! چتې خبرې پرېږده او واوره څه درته وایم:

ته باید له دې وروسته زما خبره او امر ومنې، هر څه چې زه وایم له مخالفت پرته یې باید ترسره کړې.

زموږ لومړنی کار به دا وي چې طبس ته لاړ شو، هلته به د مصر د پخواني خدای آمون په مخکې رکوع وکړې او د هغه لپاره به قرباني وکړې، کاهنان به دې پر سر تېل وموښي او د مصر سلطنتي تاج به دې پر سر کېږدي.

توت لږ فکر وکړ او ويې ويل، که زه طبس ته لاړ شم، ايا زما لپاره به د سترو فرعونيانو په شان قبر جوړ کړي او ايا زما په قبر کې به ښکلې ناڅکې او داسې شنې چړې لکه چې د هاتي پلاوي راکړې کېږدي؟ ځکه چې زه د دې ښار له قبرونو څخه کرکه کوم چې د ېر کوچني دي او پر د يوالونو يې انځورونه ايستل شوي دي، زه لوی قبر غواړم چې هلته د ېر شيا ن کېښنو دلای شم.

آمي وويل افرين دې پر تاوي، له دې سره سره چې ماشوم یې، خو بيا هم د قبر په فکر کې یې.

داده اوسه چې ستا په غوښتنه به، کاهنان ستا لپاره ستر او ښکلی قبر جوړ کړي. که ته

په راتلونکې کې همدومره هوښياري وکړې، نو د مصر لپاره به يو ښه فرعون شې.

خو ستا نوم ښه نه دی او ستا بشپړ نوم چې توت انخ آتون دی د طبس کاهنان يې نه خوښوي، ځکه چې هغوی له هر هغه شي کرکه کوي چې په آتون پورې اړوند وي، نو سر له ننه به ستا نوم توت انخ آمون وي. کوچني توت په دې اړه هم نيوکه ونه کړه او يوازې يې وويل، ما خپل پخواني نوم ډېر ښه ليکلی شوای، خو خپل نوی نوم نه شم ليکلی، زه نه پوهېږم هغه انځور څنګه کښل کېږي، چې آمون ښيي.

په دې وخت کې يې هغه ته د توت انخ آمون نوم ور زده کړ او خپل لومړنی نوم يې په افق ښار کې وليکه.

د پخواني فرعون مېرمنې نفرتي تي چې وليدل د توت انخ آمون له پاچاهۍ وروسته هغې ته څوک توجه نه کوي، نو ځان يې سينګار کړ او د هورم هب د کتلو لپاره چې ببرې يې په نيل کې ولاړه وه، هلته ورغله د هورم هب کوټې ته ور ننوته او ورته يې وويل:

ګورې چې زما پلار آمي په دې هېواد کې، څنګه د ماشومانو لوبه پيل کړې ده او يو ماشوم يې د مصر فرعون کړی دی، چې وکړای شي بې جنجاله د توت انخ آمون په نوم، دې په مصر کې حکومت وکړي.

په داسې حال چې زه په دې هېواد کې يم، ټول پوهېږي چې د پخواني فرعون مېرمن او د هغه د بچيانو مور يم او تر يوه ماشوم ډېره د پاچاهۍ وړتيا لرم.

دا سمه ده چې زه يوه ښځه يم نه شم کولای خپله خبره عملي کړای شم، خو که يو سړی له ما سره مرسته وکړي، نو له دې کبله چې ملکه او د مصر تر ټولو ښکلې مېرمن يم او له دغه سړي سره په حکومت کې برخه اخيستلای شم.

هورم هبه! ما او زما ښکلا ته وګوره او فرصت له لاسه مه ورکوه.... ته توره او نيزه لرې او زه ښکلا او نوم، که زه او ته سره متحد شو نو پر مصر حکومت کولای شو او زموږ له حکومته به مصر ته ډېره ګټه ورسېږي، په داسې حال چې زما پلار آمي ډېر احمق او حريص سړی دی او که د مصر پاچا شي، هېواد به تر اوسني حالت ډېر خراب کړي.

هورم هب نفرتي تي ته کتل، هغې خپلو خبرو ته دوام ورکړ او هڅه يې وکړه چې پخپلو خبرو سره نو موړی وهڅوي چې وړانديز يې ومني.

که څه هم نفرتي تي اورېدلي ول، چې پر هورم هب د پخواني فرعون خور ګرانه ده او زړه يې غواړي، چې له هغې سره واده وکړي، خو فکر يې کاوه، چې دغه واده به د

شهزادګۍ باکتاتون د کبر او غرور له امله و نه شي.

بله دا چې نفر تي تي نه پوهېده چې د هغې د پلار آمي او هورم هب ترمنځ پټ تړون شوی، چې له مخې به یې هورم هب له آمي سره مرسته کوي چې هغه پاچاشي او آمي به یې په مقابل کې د هورم هب او شهزادګۍ باکتامون د واده کولو زمینه برابره کړي.

پر دې سربېره نفر تي تي عادت شوې وه چې له خپلې ښکلا څخه په استفادې سره سړي ژر دې ته اړ کړي چې تفریح ورسره وکړي. دې فکر کاوه چې د سړ د زړونو په ګټلو کې استاده ده او د دې اپوټه شهزادګۍ باکتامون ځوانه او بې تجربې ده، نه پوهېږي، چې سړي څنګه وغولوي؟

خو د هغې ښکلا د ډېرو بچیانو د زړو لو له کبله اوس هغسې تانده نه وه پاتې، نو پر هورم هب یې اغېز ونه کړ.

هورم هب وویل: اې ښکلې نفر تي تي ! ما په دې ښار کې په کافي اندازه ځان ککړ کړی دی، نه غواړم چې له تا سره څملم او ځان نور هم ککړ کړم.

زه باید اوس خپل یوه افسر ته چې د سینا په سرحد کې دی، لیک ولیکم نو له تا سره د ساعت تېري وخت نه لرم.

کله چې نفر تي تي دغه خبره واورېده خپلې کتان جامې یې راغونډې کړې او له کوټې راووته دغه کیسه ما ته پخپله هورم هب وکړه.

زه فکر کووم چې هورم هب به داسې توند ځواب نه وي ورکړی، خو ځواب به یې حتماً منفي و، ځکه چې له هغې ورځې وروسته نفر تي تي له هورم هب سره دښمني پیل کړه او بیا په طبس ښار کې له شهزادګۍ باکتامون سره متحده شوه چې دغه کیسه به وروسته وکړم

.

که هورم هب له نفر تي تي سره ښه چلند کړی وای او هغه یې راضي کړې وای یو قدرتمن او پیاوړی ملګری به یې پیدا کړی وای، خو هغه نه غوښتل پخوانی فرعون اخناتون له ځانه خپه کړي او د هغه له ښځې سره تفریح وکړي.

زه پوهېدم کله چې هورم هب د اخناتون له مرګ سره موافقه وکړه، له مرګ وروسته هم فرعون پرې ګران و، که څه هم د اخناتون نوم یې له ټولو ډبرلیکونو او معبدونو پاک کړی و او په افق په ښار کې یې د ناخرګند خدای آتون معبد وران کړی و.

خو تر هغې ورځې چې ما هورم هب ته کتل پوهېدم چې پخوانی فرعون پرې ګران دی:

زه خبر وم کله چې د آمون کاهنان قدرت ته ورسېدل، نیت یې درلود د اخناتون مومیایي شوې جنازه چې په افق ښار کې ښخ شوی و، له قبره راوباسي، ویې سوځوي او ایرې یې په نیل کې واچوي چې له منځه لاړ شي.

خو هورمهب د خپلو څو تنو اعتباري کسانو په مرسته تر دې وړاندې چې کاهنان د هغه مړي ته ځان ورسوي، د اخناتون مړی له قبره وایست او په کښتۍ کې یې طبس ته واستاوه چې د اخناتون د مور په قبر کې ښخ شي.

کاهانو چې په افق ښار کې د فرعون قبر لوټ کړ، جنازه یې پکې پیدا نه کړه نو اوازه یې ګډه کړه، چې آمون د درواغجن او ملعون فرعون مومیایي شوی مړی له منځه وړی دی، چې په لوېدیزه نړۍ کې *(له مرګه وروسته دنیا، ژباړن)* یې اغېزه پاتې نه وي.

آمي، چې طبس ته د سفر لپاره د توت انخ آمون موافقه تر لاسه کړه، نو امر یې وکړ چې بېړۍ چمتو کړي، دربار حرکت کوي.

آمي له افقه، طبس ته د دربار په لېږد کې داسې بېړه درلوده چې هغه خواړه یې هم و نه خوړل چې په زرینه ماڼۍ *(سلطنتي ماڼۍ، ژباړن)* کې پاخه شوي ول او درباریانو ته یې هم وخت ورنه کړ، چې ډوډۍ وخوري، په بېړه روان شول.

ددې لپاره چې وویل شي دافق ښار ملعون دی او یوه شېبه هم پکې ایسارېدل روا نه دي، نو باید بې له ځنډه دغه ښار خوشې کړای شي.

خلکو خپل کورونه پرېښودل روان شول او د توت انخ آمون لوبتکې او نانځکې په زرینه ماڼۍ کې د تل لپاره پاتې شوې او د عمر ترپایه به د جنازې د ښخولو د ستورې ننداري ته وړاندې کوي.

له بیدیا را ولاړ شوی باد نرمې او میده شګې د افق کوڅو ته راکاږلې، کورونه او باغونه یې له شګو ډک کړل، د لمر وړانګو او باران کورونه ورانول، په منې کې د نیل مستۍ هم د ښار وراني زیاتوله.

لښتي او ویالې وچې شوې او هغه ونې له منځه لاړې، چې اخناتون په زیار او مینې سره کرلې وې.

د کورونو چتونه ونړېدل، په کورونو او باغونو کې د انسانانو پر ځای شغالانو ژوند پیل کړ.

په دې ډول د آتون د افق ښار هغسې بېړه له منځه لاړ لکه څنګه په بېړه چې جوړ شوی و.

له دې وروسته چې د بيديا خاورو او شګو ښار لاندې کړ، نو هېڅ هغه وه نه کړه چې تر خاورو لاندې شويو ګران بيه شيانو د را ايستلو لپاره يو ځل د غه ښار ته ورشي.

ځکه هغه ځمکه چې د افق ښار پکې جوړ شوی و، ملعونه بلل کېده، آمون داسې لعنت پرې کړی و، چې چا جرئت نه شو کولای، هلته ګام کېږدي او ګران بيه شيان له خاورو را وباسي.

ته واچې د افق ښار يو خوب و خيال و، چې ناڅاپه له منځه لاړ او ننبه يې هم پاتې نه شوه. هورم هب د سلطنتي بېړيو په مخکې روان و، چې د نيل دواړه غاړې امنې او آرامې کړي.

کله چې طبس ته ننوت په دوو ورځو کې په دې ښار کې غلا او ژنه او ګډوډي له منځه لاړه.

هورم هب غله او وژونکي ونه وژل او په دېوالونو يې راځوړند نه کړل، بلکې ټول يې ونيول، چې د جنګ په ډګر کې ترې استفاده وکړي، ځکه هورم هب د هاتي د عسکرو د مخنيوي لپاره سرتېرو ته اړتيا درلوده.

کله چې کوچنی فرعون طبس ته ننوت موږ وليدل چې د قوچانو واټ يې د فرعون په بيرغونو ښکلی کړی و او د آمون معبد د لمر د وړانګو له کبله روڼ ځلېده.

فرعون د تاج اېښودو پر وخت د آمون معبد ته د تللو لپاره پر زري روان تخت سپور شو او د هغه ترشا د پخواني فرعون مېرمن، ملکه نفر تي تي او ورپسې د هغې لونې روانې وې.

پر دې ورځ چې فرعون د آمون معبد ته ورغی چې هلته تاج کېږدي او د آمون لپاره قرباني وکړي نو د مصر پخوانی خدای بېخي بريالی شو.

د آمون ټول کاهنان چې پر خرېيلو سرونه يې تېل موښلي ول، ولاړ ول او د ټولو کاهنانو په مشرۍ ستر کاهن هري بور د آمون د مجسمې پر وړاندې د فرعون پر سر تېل وموښل او د زنبق او پاپيروس په ننبو سره يې د مصر سور او سپين تاج د هغه پر سر کېښود.

دغه د ستورې د خلکو په مخکې ترسره شوې، ځکه چې وګوري فرعون خپل تاج د آمون له کاهنانو څخه ترلاسه کړی.

کله چې د تاج اېښودلو مراسم پای ته ورسېدل، نوي او کوچني فرعون د آمون لپاره قرباني وکړه او بيا يې هغه څه چې آمي له وران او بېوزله مصره تر لاسه کړي ول او فرعون

ته يې ورکړي و، آمون ته ډالۍ کړل.

خو تر دې وړاندې چې فرعون آمون ته دغه ډالۍ ورکړي، له هري بور سره يې خبره پخه کړې وه، چې دغه ډالۍ ده ته ورکړي، چې د هاتي د مخنيوي لپاره يې په جنګ کې ولګوي.

د طبس او سېدونکي پر دې ډېر خوشحال ول، چې پخواني خداى واکمن شوى او فرعون له دې سره سره چې ډېر کوچنى و، خو هغه ښار ته ورغلى و. انسان فطرتاً په خيالونو کې ژوند کوي، تل راتلونکې ته هيله کوي او تصور کوي، چې له پخوا څخه به ښه راتلونکې ولري، خو د انسان د بدبختۍ يو عامل دا دى چې له تېرو ترخو تجربو څخه درس نه اخلي او فکر کوي چې راتلونکې به په دې دليل چې لا نه ده راغلې تر پخوا ښه وي.

له همدې امله د طبس خلکو تصور کاوه، چې د فرعون د پاچاهۍ دوره به د سوکالۍ او خوښۍ پړاو وي، په قوچ واټ کې د فرعون په لاره کې راټول شول او پر ځمکه يې ورته ګلان شيندلي ول.

خو د بېوزلو له سيمو او بندر ته نږدې کورنو څخه لا لوګي پورته کېدل. د طبس ښار په يوه څنډه کې اسمان تياره و او له ورانو کورونو څخه د خرابو شويو مړيو بويونه لتېدل، کارغان او مردار خواره چې د آمون د معبد پر بام ناست ول، له ډېرې چاغۍ څخه نه الوتلى شول، ځکه چې شپه و ورځ به يې مړي خوړل.

بېوزلې مېرمنې او بې پلاره ماشومان په کنډوالو کې ګرځېدل چې وکړای شي د خپل کور څيني شيان بيرته له خاورو را وباسي.

دغه ماشومان د لوږې له کبله داسې ډنګر ښکارېدل، چې د مړيو په کور کې موميايي شوي مړي، داسې وچ نه ول.

ماشومان او ښځې پوهېدل چې له طبسه رحم او عاطفې کډه کړې او ډېره موده کېږي، چې نه څوک چاته کوم شى ورکوي او نه يې ګېډه ورمړوي، له همدې امله يې له چا څخه د ډوډۍ او فلز غوښتنه نه کاوه.

د نيل له بندره لرې شوم او د تمساح لکۍ ميخانې پر لور روان شوم، ميخانه کنډواله شوې وه او هغه هم اور توره کړې وه.

د زړه له تله مې سوړ اسوېلى وايست، ځکه چې هغه ورځ را په زړه شوه، چې په دې ميخانه کې زما د سترګو پر وړاندې يې زما د خوږ ژبې او کوچني زوى تهوت مازغه په

ګورز باد باد کړل.

هغه تهوت چې زما له نسله یانې د خدایانو او فرعون له نسله و او زما د سترګو پر وړاندې یې پر مریت حمله وکړه، چې هغه ښځه اسیره کړي، خو مقاومت یې وکړ او د نیزې په ګوزارونو سره یې د سترګو په رپ کې سوری سوری کړه.

بیایې په داسې حال کې چې ښایي مړیت ژوندی وه، میخانې ته اور ورته کړ او زما ګرانه مریت ژوندۍ په اور کې وسوځېدله.

اې د مصر خدایانو! ایا ممکنه ده ماته وواياست چې زما مریت په دې وخت چې میخانې اور واخیست د سوځېدا د شکنجې له زغملو پرته مړه شوه؟

کاشکې ما همغه ډول چې فرعون مې بې له کړاوه په اپیمو سره بلې نړۍ ته واستاوه، مریت او کوچني تهوت مې هم وژلي وای.

خو زه د اخناتون فرعون د خبرو تر اغېز لاندې راغلم او په هغه وخت کې مې د ګرانې مریت او د خپل کوچني زوی تهوت د مړينې فکر ونه کړ.

د حیرانۍ خبره خو دا وه چې دومره کم عقل شوی وم، چې نه پوهېدم، دا نا ممکنه ده چې د مصر یا بل ملت د داسې یوه خدای عبادت وکړي، چې بهرنی وجود نه لري او په سترګو ونه لیدل شي.

ما ویل انسانان یوازې دیو ډول خدای عبادت کولای شي چې بهرنی وجود او څیره ولري له دې پرته انسان فکر کوي چې د بې ځانه او ناڅرګند خدای عبادت کوي دوی په حقیقت کې د دوهمه او دریمه درجه خدایانو یعنې د سترو کاهنانو او فرعونیانو عبادت کوي.

له دې کبله چې انسان د ناڅرګند او بې څېرې خدای عبادت نه شي کولای، ځکه چې هیڅ درک او پوهه د هغه د درک کولو وس نه لري نو دغه خدای ژر هېروي.

په بدل کې یې د هغو کسانو عبادت کوي چې وایي موږ د خدای زامن یو یا د هغه له لوري راغلي یو او یا مو د هغه غږ اوریدلی دی او له هغه سره مو خبرې کړې دي، ځکه چې دا انسان دی او بهرنی وجود لري او خلک یې لیدلی شي.

په راتلونکې کې به هم همداسې وي او هر ځل چې یو ناڅرګند او بې څېرې خدای رامنځته کېږي، که وغواړي چې بریالی شي باید یو کس خلکو ته معرفي کړي او د هغه له ژبې له خلکو سره خبرې وکړي. خو دغه سړي له مرګ وروسته هغه کاهنان چې د ده ځای

ناستي کېږي د عبادت وړ ګرځي، ځکه چې انسان دا وس نه لري چې له انسان، حیوان او جماداتو پرته د بل شي عبادت وکړي.

که اخناتون فرعون د خپل خدای لپاره یوه بنه ورکړې وای، دغه کار به نه کېده او دغه فتنې به نه وای رامنځته شوې.

زما مریت او تهوت به نه وای وژل شوي، زما پر سر به د بدبختۍ او خوارۍ ایرې او خاورې نه وای تویې شوې او یو ځل بیا به په دې نړۍ کې نه وای یوازې شوی.

زه تصور کووم چې د نړۍ تر ټولو خطرناک شی د یوه فرعون اصلاح غوښتونکی فکر دی، ځکه چې دغه اصلاح غوښتونکي افکار حتی که د خیر ښېګڼې هم وي، خو ډېر کسان بدبخت کوي.

له لرې مې د خلکو د شور او زوږ غږ اورېده، چې د فرعون لپاره یې خوشحالي کوله.

خلکو تصور کاوه، چې نوی او کوچنی فرعون له ماشومتوبه د خپل قبر په فکر کې دی او غواړي د ځان لپاره قبر جوړ کړي، نو دا به داسې فرعون وي چې له بې عدالتۍ سره به مخالف وي، دی کولای شي ظلم له منځه یوسي او عدالت او سوکالي راولي.

خلک خبر نه ول، چې د پخواني فرعون خدای له دې سره سره، چې د سولې، برابرۍ او د شتمن او بډای د توپیر د ختمېدا غوښتونکی و، خو بیا یې هم خلک بد بخت کړل.

د نوي فرعون خدای همغه ظالم او قهرجن خدای آمون دی، چې نوی رامنځته شوی او ډېر وږی او تږی دی.

ډېره موده وشوه چې کوم شی یې نه خوړلی او نه څښلی او د هغه د مړولو لپاره به د مصر د ټولو خلکو د لاس محصول او د هغه د تندې د ماتولو لپاره به د دې ټاټوبي د ټولو بچیانو وینه کفایت ونه کړي.

پخواني فرعون له ما څخه د مرګ پیمانه واخیسته ویې څښله او آرام شو، ځکه چې له مرګه وروسته هر شی هېرېږي، خو زه ژوندی پاتې شوم او نه شم کولای هغه څه هېر کړم چې ما اورېدلي، لیدلي او پر ماتېر شوي دي.

له دې وروسته به زما ژوند تریخ او له حسرت سره یو ځای وي.

د تمساح لکۍ د میخانې له کنډوالو طبس د بندر پر لور روان شوم.

د طبس بندر چې غلي او تش ښکارېد د خالي زنبېلونو او شلېدلو پړیو په لیدو یې سړی پوهېده، چې دغه ځای یو وخت د ترانسپورټ د فعالیت مرکز و.

ناڅاپه د زنبيلونو او ټوکريو له منځه يو ډنګر او خوار سړی را ووت زما خواته را غی، خپلې ننوتې او مړاوې سترګې يې ما ته ونيولې او ويې ويل، ايا ستا نوم سينوهه نه دی؟ ايا ته همغه سلطنتي ډاکټر نه يې چې د آتون په نوم دې د ښوزلو ټپونه معالجه کول؟

زه نه پوهېدم چې د هغه هدف څه دی، ځکه غلی شوم او ومې کتل چې نور څه وايي؟ هغه سړي وويل، ايا ته همغه سينوهه نه يې چې د خپلو نوکرانو په مټ دې پر ښوزلو ډوډۍ وېشله او هغوی به ستا له خولې ويل چې دا د آتون ډوډۍ ده.... ويې خورئ او له اخناتونه راضي اوسئ.

تا چې پر خلکو ډوډۍ وېشله، اوس هم ماته ډوډۍ راکړه، ځکه چې له څو ورځو راهيسې زه ددغو ټوکريو او زنبيلونو په منځ کې ژوند کووم او له لوږې څخه د تللو او ګرځيدو وس نه لرم.

ما وويل، ته وېنې چې زه ډوډۍ نه لرم، خو ته ولې تر زنبيلونو او ټوکريو لاندې ژوند کوې؟

هغه سړي وويل، ما يوه جونګړه درلوده چې ډېره کوچنۍ وه او له هغې څخه د خوسا شويو کبانو بوی لتېده، خو له دې سره سره به د شپې مهال او دغه راز په باد و باران او ډېر لمر کې پکې څملاستم.

يوه ښځه مې درلوده چې ښکلې نه وه، خو زما خپله مېرمن وه. همدا راز ما څو زامن درلودل چې له يوې مودې راهيسې وږي ول.

خو نن سبا کور نه لرم او جونګړه مې ورانه شوې... نن مېرمن نه لرم زما ښځه يې وژلې.. اوس بچيان نه لرم،زما بچيان يې له منځه وړي او د دې ټولو مسوليت ستا د خدای پر غاړه دی.

سينوهه ! ستا خدای آتون زما جونګړه، ماشومان او ميرمن راڅخه واخيستل او زه يې پر تورو خاورو کېنولم.

اوس زه بايد له ګرمۍ او يخنۍ څخه د تېښتې لپاره تر دغو زنبيلونو لاندې پټ شم.

له هغې ورځې چې دغه نړۍ جوړه شوې ستا د خدای په شان سپېره او بې رحمه خدای نه دی ليدل شوی. زه پوهېږم چې مړ به شم، خو په دې خوشحاله يم چې ستا خدای يې له منځه يوووړ، چې له دې وروسته د مصر خلک بدبخت نه شي.

له دې خبرې وروسته دغه سړی پر ځمکه ولوېد ، ويې ژړل، خو ما له هغه سره مرسته نه

شوه کولای نوترې لرې شوم.

وروسته د بېوزلو محلې ته ننوتم او هغه ځای ته ورسېدم چې د مسګریانې زما پخوانی کور پکې و.

و مې لیدل چې کور د طبس د نورو کورونو په شان رنګ شوی دی او د اور لوګیو تور کړی دی. کور ته څېرمه ونې وچې شوې وې، خو د دېوال په خوا کې د یوې کوچنۍ جونګړې ښې راښکاره شوې، چې په مخکې یې یو منګی ایښی و او داسې بریښېده چې کوم څوک دلته ژوند کوي، ځکه چې د منګي لوندوالي شاهدي ورکوله چې اوبه پکې دي.

ما ددې جونګړې پر لور ګام واخیست. نا څاپه مې ولیدل چې زما نوکره موتي په ګډوډو وښتانو سره په داسې حال کې چې ګوډه ګوډه کېده له جونګړې راووته او ویې ویل، بختوره ده دغه ورځ چې زما بادار بیرته راستون شوی دی.

د موتي په لیدو داسې حیران شوم، چې تصور مې وکړ، دا موتي نه بلکې اروا یې ده، ځکه ما ته ویل شوي ول چې هغه وژل شوې ده.

له هغې مې پوښتنه وکړه، موتي ایا ته ژوندۍ یې؟

موتي څه ونه ویل، پر ځمکه کېناسته او په دواړو لاسونو یې خپل مخ پټ کړ.

هغه ډېره ډنګره شوې وه او پر بدن یې د ښکر د ټپ نښه لیدل کېده.

داسې را ته معلومه شوه، چې حوصله یې نه درلوده، ما ته د هغو شیانو کیسه وکړي، چې پرې تېر شوي ول او ما هم نه غوښتل چې په ډېرو پوښتنو سره د هغې کړاو نور هم زیات کړم.

د کاپتا پوښتنه مې وکړه، موتي را ته وویل کاپتا د کارګرانو او مریيانو په لاس وژل شوی دی، ځکه کله چې یې ولیدل، هغه د آمون عسکرو ته د اوربشو اوبه او شراب ورکوي، دوی غوسه شول او هغه یې وواژه.

خو ما په دې خبرو باور ونه کړ، ځکه را په زړه شول چې کله آتون نسکور او آمون واکمن شو، کاپتا ژوندی و، هغه زما مخه ونیوله، اجازه یې رانه کړه چې د تمساح لکۍ میخانې اور ته وروادانګم او د مریت او تهوت مړي ترې را وباسم.

دا هغه وخت و، چې د صلیب ټول پلویان کارګران او مریيان له منځه تللي ول، داسې څوک نه و پاتې چې کاپتا ووژني.

له دې وروسته چې زه له طبسه را وتلی وم، که څه هم په ښار کې ګډوډي وه، خو کاپتا

تر دې ډېر هوښيار او چالاک و، چې په ګډوډۍ کې دي، له دې سره سره چې د آمون له ملاتړه يې هم استفاده کولای شوه مړ شوی وي.

کله چې موتي وليدم چې غلی يم او خبرې نه کووم، ناڅاپه غوسه شوه ويې ويل، ايا پوهېږې چې ستا ځېل بالاخره څه نتيجه ورکړه؟

تا تر وروستۍ ورځې ويل چې آتون به بريالی وي، خو هم هغه او هم تا، دواړو ماتې وخوړه.

اوس ته يو بېوزله سړی يې او باور لرم چې وږی يې او دلته راغلی يې چې له ما څخه يوه ګوله ډوډۍ ترلاسه کړې. پوهېږم چې د ويدېدا لپاره ځای نه لرې، نو غواړې چې په دې جونګړه کې له ما سره څملې.

کله چې سهار راپاڅې له ما به د اوربشو اوبه او کبان وغواړې او که مې ډېر ژر درته را نه وړل نو په سوټې به مې ووهې..

وګوره! ستا او زمونږ له ژونده، ستا د ځېل له امله پر دې وراني کنډوالې سربېره بل څه نه دي پاتې شوي.

زه به دلته مړه شم، بې له دې چې کوم قبر ولرم، ځکه چې د قبر د اخيستو توان نه لرم او له دې کبله چې بېوزلې يم نو له مرګه وروسته به مې څوک د مړګ کور ته هم يو نه سي چې مړی مې موميايي کړي.

له دې کبله چې زما مړی بوی و نه کړي نو په قبر کې به يې هم نه ږدي او په نيل کې به مې واچوي.

ما به هم د نورو هغو زړګونو کسانو په شان، چې د تمساحګانو خوراک شول، د نيل ځناورو وخوري.

کله چې موتي دغه خبرې کولې، ما ته ژړا راغله، ځکه را په زړه شول چې ځوان وم، زما د ناپوهۍ او بې پروايۍ له امله هغه ښځه او سړی چې ما مور و پلار بلل بې قبره پاتې شول.

ما ددې لپاره چې ځانته د يوې ښځې پام را واړوم، حتی د هغوی قبر هم خرڅ کړ. هغې ښځې په اصل کې له ما سره د مجلس وړتيا هم نه درلوده، خو کله چې يې زه وليدم ځان يې يوه محترمه او وياړمنه مېرمن معرفي کړ.

اوس هم زما نوکره موتي قبر نه لري او که نن ما دا فکر نه وای کړی چې دلته راشم او

هغه وګورم، ممکنه وه چې مړه شي او جنازه يې په نيل کې واچوي، ځکه هغه کس چې نه د جنازې د موميايي کولو وسيلې لري او نه قبر، نو له مرګ وروسته يې ځای د نيل سيند دی.

کله چې موتي زما ژړا وليده، غوسه يې سره شوه او ويې ويل، سينوهه! غم مه کوه لا هم ددې کور تر کندوالو لاندې لږ غنم شته او د نباتي غوړيو څو منګې هم لرم.

همد اوس به لږ غنم اوړه کړم، تا ته به ډوډۍ پخه کړم، بيا له ځانه سره يوه ډوډۍ وړم او په بدل کې يې د اوربشو اوبه اخلم او تا به موړ کړم.

زه او ته به په ګډه دلته يو وړوکی کور جوړ کړو، چې ته وکړای شې هلته کېنې او خپل طبابت وکړې.

که څه هم خلک بېوزلي شوي او فيس نه شي ورکولای، خو ته په طبابت کې ډېر شهرت لرې، ډېر ناروغان به درته راشي هېڅ غم مه کوه.

که ناروغان تا ته رانه غلل بيا دې هم زه نه پرېږدم، چې ته وږی پاتې شې.

د ورځې له پلوه به د شتمنو کسانو کورنو ته ځم، د هغوی جامې به وينځم او په بدل کې به يې ستا لپاره د اوربشو اوبه راوړم.

خو له تا څخه هم يوه هيله او غوښتنه لرم هغه دا چې له دې وروسته طبس او مصر ته بل خدای مه راوله، ځکه په مصر کې د شته ډېرو خدايانو په وجود موږ څه خير وليد چې ته يو بل خدای راولې؟

که خدايانو دا وس درلودای چې د بشر کارونه اصلاح کړي، نو هغو زرګونو خدايانو به دغه کار کړی و، چې تر اوسه راغلي دي.

دغه خدای چې تا به ويل تر ده بل ځواکمن خدای نشته، وګوره څومره نا خوالې يې رامنځته کړې او تا وليدل چې څنګه څو تنو ښکرورو هغه راپرځاوه.

ايا دا لېونتوب نه و، چې دومره وينې وبهول شي او دا بدبختۍ رامنځته شوې.

تا خپله شتمني له لاسه ورکړه او دېواليه شوې مګر بيا هم همغه پخوانی خدای خدايي کوې.

څومره چې پر مريت او تهوت زما زړه خوږېده پر تا مې دومره رحم نه کېږي، ځکه چې ته سړی يې او د ټولو سړيو په شان يو ماشوم او لېونی يې.

يو سړی له دې کبله چې نارينه دی، هېڅکله نه هوښيارېږي او تل به ماشوم او لېونی وي.

خو مریت هوښیاره او صابره ښځه وه، پر ما د لور په شان ګرانه وه او تهوت به هره شپه زما پر لمنه ویده کېده.

له دې کبله چې زما او ښکې همغسې بهېدې، نو موتي مجلس بدل کړ او ویې ویل، سینوهه ! د وخت په تېرېدا سره هرڅه سمېږي ته به دغه بد مرغۍ هېرې کړې.

بیا به ستا بدن او غومبوري دومره ډنګر نه وي، ځکه چې زه به د پخوا په شان تا ته ښه خواړه او شراب درکړم او ته به بیرته چاغ او ههورشې.

زه په دې خبرو سره کرار شوم،ومې ویل، موتي ! زه ددې لپاره نه یم راغلی چې تا په تکلیف کړم، زه له دې ځایه ځم او ښایي تر ډېرې مودې پورې بیرته رانه شم. زه دلته ددې لپاره راغلم چې هغه کور وګورم چې په سوکالۍ کې مې پکې ژوند کاوه او ددې کور په مخکې ګڼې ونې وګورم چې اوس وچې شوې دي.

ما غوښتل یو ځل بیا د خپل کور انګړ ووینم چې زما زوی تهوت به پکې لوبې کولې، خو اوس ګورم چې د کور انګړ له خاورو او لوټو ډک دی.

تا وویل چې زه دیوالیه شوی یم.

دا دې سمه خبره وکړه، ځکه چې ما خپل شته له لاسه ورکړي، خو لا هم دومره شتمني لرم چې ستا لپاره هم څه نا څه فلزات را واستوم، چې د ځان لپاره شیان پرې واخلې او که دې زړه غواړي، نو دغه ځای جوړ کړه او ژوند پکې کوه.

زه ستا په خبرو خپه شوی نه یم او په دې هم پوهېږم چې ستا ژبه د غومبسې د لشې په شان تېره ده، خو ستا روح د مینې او محبت زانګو ده، نو اوس له تا سره خدای پاماني کووم او نن یا سبا به درته فلز راولېږم.

موتي وژړل، پر سر یې خاورې باد کړې او ویې ویل، زه دې نه پرېږدم چې لاړ شې، ځکه ستا له سترګو داسې ښکاري چې ته وږی یې او باید ډوډۍ درته پخه کړم، چې ویې وخورې او ځواکمن شې.

ددې لپاره چې موتي خپه نه شي زه هم پاتې شوم، هغې راته ډوډۍ پخه کړه او زما په مخکې یې کېښوده.

خو ما اشتها نه درلوده، ځکه چې د تهوت او مریت فکرونو د ډوډۍ اشتها راڅخه اخیستې وه.

موتي ویل سینوهه !وخوره .... وخوره چې ځواکمن شې.... زما د ډوډۍ مزه یاد ساته،

ځکه چې زه اتکل کووم، له تېرو ټولو کړاونو سره سره به بيا هم پر ځان نورې ناخوالې راولې.

خو هڅه وکړه چې ډېر ژر بېرته راستون شې، زه به ستا د راتګ په تمه يم او که زما د قبر د اخيستو مسله حل شوه، نور به د راتلونکي لپاره اند ښنه ونه لرم.

ځکه زه لا جسما پياوړې يم او د شتمنو د کاليو په وينځلو او ډوډۍ پخولو باندې به خپله ګوزاره وکړم.

پر دې ورځ زه تر ماښامه د دې جونګړې تر څنګ له موتي سره وم. ډېر غمجن وم او له ځان سره مې وويل، کله چې مې موتي ته فلز ورکړل نور به بيا دې کنډوالې ته نه راځم، ځکه چې د دې کنډوالو په ليدو مې ارواغمجنه کېږي او ځان به تر نورو بدبخت او خوار ګڼم.

تر لمر لوېدو مخکې د پاچاهۍ زريني ماڼۍ ته لاړم، له هغه ځايه مې لږ فلز راوړل او موتي ته مې ورکړل.

بيا مې له موتي سره خدای پاماني وکړه او ومې ويل، خپل ژوند داسې برابر کړه چې ته وا له دې وروسته به هېڅکله ما ونه وينې، خو کله چې فرصت پيدا شو زه به درته راشم.

کله چې له دې ځايه ستون شوم ومې ليدل، چې د طبس د ښار ځيني برخې په مشالونو سره روښانه شوې او په ځينو کوڅو کې د موسيقۍ غږونه اورېدل کېږي.

زه پوه شوم چې دغه ورځ د توت آنخ آمون د تاج پر سرولو ورځ ده او خلک د هغه لپاره خوشحالۍ کوي.

# شپږ څلوېښتم څپرکی

## د جنګ د الهې (سخ مت)
## د معبد پرانيستل

پر همدې شپه چې طبس د نوي فرعون د تاج پوشۍ لپاره په مشالونو روښانه شوی و او موسيقۍ پکې غرېدلې، کاهنانو د مشالونو په رڼا کې د جنګ د الهې (سخ مت) په معبد کې کار کاوه.

دغه معبد له تېرو څلوېښتو کلونو راهيسې تړلی و. کاهنانو يې وحشي بوتې شکول، د جنګ الهې ته يې د سره کتان جامې وراغوستلې او د جنګ او پرځېدا نښې نښانې يې پرې تومبلې.

څکه چې آمي هورم هب ته ويلي و، اې د باز زويه! (هورم هب په ماشومتون او ځوانۍ کې تل له ځان سره يو باز ساته او باز به دده پر سر الوت. هورم هب به ويل، زه د باز زوی يم) نغارې ووهه او جنګ پيل کړه، چې د مصر ملت په جنګ کې د ښکېلېدا له امله خپلې ټولې بدبختۍ او له دې ډلې څخه د درواغجن فرعون کيسه هېره کړي.

جنګ پيل کړه چې دغه خلک ددې فرصت پيدا نه کړي، چې پر نورو شيانو فکر وکړي او له لوږې مړه شي.

هورم هبه! په جنګ کې ځان نعمتونو ته ورنږدې کړه، چې مېرمن باکتامون، د ډېر شوق او خوښۍ له کبله ستا پر لور درشي او موافقه وکړي چې له تا سره واده وکړي.

له همدې امله هورم هب د آمي او نورو کاهنانو له موافقې وروسته امر وکړ، چې د جنګ د الهې معبد پرانيزي. دا کار يې ځکه کاوه چې وکړای شي پر بله ورځ نوموړي معبد ته ورشي او د جنګ له الهې سخ مت څخه مرسته وغواړي چې سر يې د زمري او بدن يې د ښځې دی.

په داسې حال کې چې نوي فرعون له خپلې مېرمنې سره يو ځای د ناڅکو په وسيله د

مړيو د ښخولو لوبه کوله، د طبس په معبد کې د اخناتون نوم له منځه وړل کېده او د توت انخ امون نوم يې پر ځای ليکه. که څه هم فرعون توت انخ امون و خو هېواد آمي اداره کاوه، ماليه يې اخيستله او سلطنتي ځمکه به يې هر هغه چاته ورکوله چې د ده زړه غوښتل.

د آمون کاهنان د بريا ليتوب له امله له ډېره کبره په کاليو کې نه ځايېدل، ځکه چې ناڅاپه يې ټوله هغه شتمني تر لاسه کړه، چې پخوا يې له لاسه ورکړې وه.

هورم هب هم غوښتل، چې د سيالی په ډګر کې له نورو وروسته پاتې نه شي او د هغه نوم مشهور شي.

دغه راز خلک بايد پوه شي چې د باز زوی له دې وروسته د مصر يو اصلي چارواکی دی.

له همدې امله پر بله ورځ د مصر په واټونو او چوکونو کې د هورم هب د عسکرو نغارو انګازې وکړې.

جارچيانو به اعلانونه کول چې نن د سخ مت د معبد مسي دروازه پرانيستل کېږي، هورم هب له خپلو يو شمېر عسکرو سره نوموړي معبد ته ځي او د سخ مت لپاره قرباني کوي.

پر دې ورځ هورم هب ما ته وويل، چې د نندارې لپاره معبد ته لاړ شم او زه متوجه شوم، چې هغه غوښتل خپل قدرت ماته وښيي.

دا خبره بايد وکړم، هورم هب، له دې سره سره چې پوهېده د مصر په ملت کې به ډېر مشهور شي، خو له ډېرو تشريفاتو او تجملاتو يې کار نه واخيستی.

خپل اسونه او جنګي ګاډي يې د شتر مرغ په بڼکو نه وې سينګار کړې او د جنګي ګاډيو ارابې يې په زرينو پوښونو سره نه وې ښکلې کړې.

يوازې يې دوه لوی لرونه چې د جنګونو پر وخت يې په ګاډيو کې لګوي، دا ځل هم په ګاډيو پورې وتړل.

د هغه په ګاډی پسې نېزه لرونکي عسکر روان ول او د هغوی پوځي پرېډ پر هغه واټ انګازې کولې، چې په کاڼو پوښل شوی و.

له نېزه لرونکو عسکرو وروسته تورپوستي عسکر راغلل او ددې لپاره چې خپل پوځي ګامونه يو شان کړي، داسې ډولونه يې غږول چې د انسان پوستکي يې پرې غوړولي وو.

خلک ترهېدلي ول او د هورم هب عسکرو ته يې هک پک کتل، چې له ډېر مرېښته يې مخونه ځلېدل او پوهېدل چې د دوی برخه خواره هم عسکر خوري.

کله چې هورم هب د معبد په مخکې ودرېد او پر ځمکه يې ګام کېښود، نو خلکو د هغه لوړ قد او پراخه سينه وليده.

ماته په مبهم ډول دا احساس پيدا شو، چې د هغوی بدبختي لا نه ده ختمه شوې او لا هم پر خپل حال پاتې ده.

هورم هب له خپلو قوماندانانو سره يو ځای معبد ته ننوت او کاهنانو په داسې حال کې د هغه هرکلی وکړ چې لاسونه يې په وينو سره کړي ول.

د مصر له بوډاګانو پرته چې مخکې يې دغه مراسم ليدلي ول، زه او زما په څېر ډېر نور نه پوهېدل، چې د جنګ د الهې معبد څنګه پرانيستل کېږي، نو چې کله مې د معبد د کاهنانو په وينو ککړ لاسونه وليدل حيران شوم.

بيا مې وليدل چې کاهنانو هورم هب د سخ مت د مجسمې پر لور بوت.

سخ مت هغه الهه وه، چې د زمري په شان سر او د ښځې په شان سينې او تيونه يې درلودل. په دې ورځ يې د هغې ارغواني جامې په وينو سرې کړې او لندې کړې وې.

د معبد هغه برخه چې د سخ مت مجسمه پکې ولاړه وه، سمه روښانه نه وه، او داسې ښکارېده چې هورم هب هڅه کوي سخ مت په رڼو سترګو وګوري.

کاهنانو د مجسمې په مخکې هورم هب ته درې زړونه په لاس کې ورکړل او هغه ته يې وويل، چې هغه د محراب په مخکې ټينګ کړي. ما په لومړي سر کې فکر وکړ چې دا به د سخوندر يا پسه زړونه وي، خو کله چې ښه ځير شوم ومې ليدل چې د انسان زړونه دي.

کله چې هورم هب د انسان زړونه په منګولو کې پر محراب ټينګ کړل، له زړونو څخه وينه راووتله.

په دې وخت کې کاهنان د هورم هب او مجسمې پر شاوخوا ګډېدل، په وينو سرې چړې يې پر خپلو تنديو وهلې، له سر او تنديو يې وينې بهېدلې او پر سپينو روحاني جامو يې تويېدلې.

دغه منظره ډېر بوږنونکې وه او په کورنيو جنګونو کې د طبس د عام وګړو په شان حالت يې رامنځته کړ.

کاهنانو په ډله ييزه توګه د نڅا پر وخت دغه ذکر لوست: ((اې هورم هب، د باز زويه! له

جنګه بريالی راستون شه، چې سخ مت له خپل ځايه راکوزه شي او تا لوځ په غېږ کې ونيسي.))

کله چې هورم هب د انسانو ګرم زړونه، د محراب پر سر په منګولو کې ټينګ کړل او وينه يې ترې وبهوله، بيا له مجسمې او محرابه لرې شو.

کاهنانو په نڅا سره په داسې حال کې چې مخ او جامې يې سرې شوې وې، هغه بدرګه کړ.

هورم هب له معبده ووت، پخپله ګاډۍ کې سپور شو، بيا يې د مصر ملت ته مخ واړاوه، خپل دواړه لاسونه يې خلکو ته وروښودل او په لوړ غږ يې وويل: ((اې د مصر ملته! غوږ ونيسه او زما خبره ښه واوره، زه هورم هب د باز زوی يم، چې د مصر بريالیتوب مې په لاس کې دی. له ټولو هغو کسانو سره چې له ما سره په سپېڅلي جنګ کې ګډون کوي ژمنه کووم، چې هغوی ته به تلپاتې ويار ور په برخه شي.

همدا اوس په سينا صحرا کې د هاتي جنګي ګاډيو حرکت پيل کړی او مخکينی ځواک يې په کوز مصر کې په لوټما را او وژنو بوخت دی. مصر هېڅکله داسې خطره نه وه ليدلې او د دغه خطر په پرتله چې نن سبا مصر ګواښي، په پخوا وخت کې پر مصر د هيک سوس د قبايلو يرغل بې اهيمته دی.

د هاتي لښکرې مصر ته را رسېدلې دي او تاسې نه پوهېږئ چې هغوی څومره بې رحمه دي او څه ډول به د مصر د ملت ريښې وچې کړي.

کله چې د هاتي عسکر هر ښار ته ورسېږي هغه به وران کړي، ټولې ښځې او نجونې به اسيرانې او د ځان وينځې کړي.

ټول پاتې نارينه به ړانده کړي چې وکړای شي په ژرندو کې ترې کار واخلي او يا د غوړيو په کارخانو کې پرې ژرندې وګرځوي.

ټول ځوان هلکان به اسيران کړي او د مرييانو په بازار کې به يې خرڅ کړي.

چېرته چې د هاتي د عسکرو ګاډۍ ورسېږي تر يوه نړيوال کاله به (۲۷ زره کاله ژباړن) هلته بوټي زرغونه نه شي، له همدې امله زه اعلان کووم چې بايد د دغه بېرحمه دښمن پر وړاندې دغه سپېڅلی جنګ پيل شي.

دغه سپېڅلی جهاد هغه جنګ دی، چې موږ يې د خپلو ښځو، بچيانو، لوڼو او هوښيارو نارينه وو او د خپلو خدايانو د ساتلو لپاره پيلوو.

زه تاسې ته داډ درکووم، چې که پخپله خوښه دغه جنګ ته لاړ شئ، نو نه يوازې دا چې

د هاتي عسکرو ته به ماتې ورکړو، بلکې سوریه به هم بیرته ترې ونیسو.

د پخوا په شان به هر مصري له مصر سره د سوریې له یو ځای کېدا ګټه واخلي او د هر مصري کور به د پخوا په شان له غنمو او د اوربشو له اوبو ډک شي.

اې د مصر ملته! د کمزورتیا او خوارۍ یوه اوږده پړاو خپلې سپېرې اغېزې پرېښودې او د مصر دښمنان نور هم سپین سترګي شول.

دوی له موږ څخه نه یوازې سوریه ونیوه، بلکې اوس نیت لري چې توره خاوره او زموږ خدایان هم را څخه واخلي.

دوی غواړي د آمون او نورو خدیانو کورونه وران کړي او په نیل سیند کې د اوبو پر ځای وینه وبهوي.

ترازو (ساعت. ژباړن) وایي چې د پاڅېدا، روانېدا او د وینې د بهېدا وخت دی.

هر څوک چې پخپله خوښه له ما سره روان شي، یو کندو ډک غنم به ترلاسه کړي او په جنګي غنیمتونو کې به شریک شي.

که کوم سړی ونه غواړي چې له ما سره په جنګ کې برخه واخلي، زه به یې په زور د بارونو د لېږدولو لپاره له ځان سره بوځم او که هغوی وغواړي یا ونه غواړي په جنګ کې به برخه اخلي.

دوی ته به بیا نه یو کندو غنم ورکول کېږي او نه به په راتلونکې کې جنګي غنیمتونه ورکړای شي.

دغه راز به د جنګ په اوږدو کې پر پنډیتوب سربېره زموږ د عسکرو سپکې سپورې هم اوري.

زه هیله کووم، هر مصري نارینه چې توره یا نېزه چلولای شي، باید حرکت وکړي او له ما سره د جنګ ډګر ته لاړ شي.

اوس موږ د هغو کسانو د ځېل، سستۍ او غفلت له لامله چې مخکې یې په مصر کې حکومت کاوه، هیڅ هم نه لرو.

کاختي لکه وږې تمساح په موږ پسې ده، خو که بریالي شوو، ددې سبب به شي چې غنم، اوربشې او پرېمانه فلزات ولرو.

هر څوک چې په دې جنګ کې ووژل شي نېغ په نېغه به لوېدیزې نړۍ ته ځي او د مصر خدایان به یې تر قیامته پورې ملاتړ کوي.

هر څوک چې ژوندي پاتې شي، زموږ د ګټو او بریالیتوبونو شریکان به وي، خو د بریالیتوب لپاره باید ډېره سربښندنه وکړو.

د شاهین زوی هورم هب وایي، اې د مصر مېړمنو! دغشو لپاره لیندۍ جوړې کړئ او که د بوټو تارونه او د حیواناتو کولمې نه لرئ له خپلو زلفو او وېښتانو څخه لیندۍ جوړې کړئ.

اې د مصر مېړمنو! خپل مېړونه او بچیان د جنګ ډګر ته واستوئ.

او تاسو اې د مصر نارینه وو! هر ډول فلز چې لرئ نېزې او غشي ترې جوړ کړئ او له ما سره لاړ شئ، چې زه مو په داسې جنګ کې شریکان کړم چې لا یې په نړۍ کې ساری نه دی لیدل شوی.

هورم هب وایي! په دې جنګ کې ستر فرعونان او ټول خدایان په تېره بیا آمون زموږ ملاتړی دی او موږ به د هاتي لښکرې داسې وځپو، چې د تېښتې پر وخت د مخ ګرځولو جرئت ونه کړي.

موږ به یې تعقیب کړو او د سینا او سوریې ځمکه به د هغوی په وینو سره کړو، چې په وینې سره د مصر حیا بیرته واخلو او بې غیرتي یې ووینځو...

اې د مصر ملته! غوږ ونیسئ... د باز د زوی، د راتلونکي جنګ د فاتح او هورم هب خبرې خلاصې شوې))

کله چې د هورم هب خبرې خلاصې شوې، خپل په وینو سره لاسونه یې ښکته کړل او بیا نغارې ووهل شوې.

عسکرو خپلې نېزې په زغرو ووهلې او پښې یې کلکې پر ځمکې ودربولې.

خلکو له ډېره هیجانه چیغې کړې او هورم هب په موسکا د خپلې ګاډۍ چلوونکي ته وویل، چې روان شي.

عسکرو یې د خلکو په ټولي کې هغه ته لار پرانستله، خو خلکو همغه راز نارې وهلې.

زه په همدې ورځ پوه شوم چې د یوه ملت ډله ییزه خوشحالي په دې کې ده، چې په ګډه چیغې ووهي.

بې له دې چې دلچسپي ولري، ولې نارې وهي او د نارو په وخت کې څه وایي؟

ددې خبرې لامل دا دی چې کله یوه ډله په ګډه نارې وهي، ځان مضبوط او پیاوړی احساسوي او تصور کوي چې د یوه سپېڅلي، ګډ او مشروع هدف لپاره نارې وهي.

هورم هب د نيل پر لوري لاړ، چې پخپله بېړۍ کې سپور شي او د کوز مصر پر لوري روان شي.

دې پوهېده چې هلته يې شتون ضروري دی، ځکه د هاتي لښکرې تانيس ته رسېدلې وې.

زه چې پوهېدم هورم هب به په بېړۍ کې له سپېريدا وروسته سمدستي روان شي، هغه ته ورغلم او ومې ويل، اخناتون فرعون چې زه يې خاص ډاکټر او سر سوری کوونکی وم، مړ شو، نور سر سوري کوونکي ته اړتيا نه لري، نو زه ازاد شوی يم او چېرته چې مې زړه وغواړي هلته تللی شم.

له بلې خوا زه نه غواړم چې نور په طبس کې پاتې شم، ځکه چې له دې وروسته په طبس کې هېڅ شی ما نه شي خوشحالولی.

له همدې امله غواړم له تا سره لاړ شم، په جنګ کې برخه واخلم او وګورم، له هغه جنګه وروسته چې ته يې له کلونو راهيسې پيلوې، د مصر ملت ستا له بريالیتوبه څه استفاده کولای شي.

هورم هب وويل، زه په جنګ کې ستا ګډون نيک شګون بولم، ځکه چې تمه مې نه کوله، ته به خپلې سوکالۍ ته شا کړې.

که څه هم د جنګ په ډګر کې د دښمن د عسکرو د شړلو لپاره ته څه نه شې کولای، توره او نېزه نه شې چلولای، خو تکړه ډاکټر يې.

زه ستا له طبابته استفاده کولای شم او تصور کووم چې ستا طبي معلومات زما لپاره ګټور ثابتېدلی شي.

خو په دې پوه شه چې د هاتي عسکر ډېر بې رحمه دي او د جنګ په ډګر کې ممکن تا ووژني.

ومې ويل هورم هبه! ما د هغوی هېواد ليدلی دی او د دوی بې رحمي مې د هغوی په هېواد کې د ننه ليدلې ده، خو د هاتي له عسکرو نه وېرېږم، ځکه کله چې يو څوک په ژوند کې د خوشحالۍ هيله نه شي کولای هغه نه ډارېږي.

هورم هب وويل، زما سپاهيان په حقه وو، چې تا ته يې د خبيريانو په جنګ کې ابن الحمار لقب درکړ، ځکه چې د اوږد غوږې په شان يې، نه ډارېږې.

په دې وخت کې ماښوګانو خپل اوږده پاروګان وخوځول، بېړۍ روانه شوه او په ساحل کې راټولو شويو کسانو شور او زوږ جوړ کړ.

هورم هب هغوی ته وکتل او ژوره ساه یې واخیستله، بیا یې وویل، هغه خبرې چې ما مخکې پخپله وینا کې وکړې، پر دوی یې ښه اغېز کړی دی...

بیا د خپلې کوټې پر لورې روان شو او ویې ویل غواړم، خپل ککړ لاسونه ووینځم

له دې وروسته چې خپل لاسونه یې په کوټه کې ووینځل بیا یې بوی کړل او ویې ویل، زما له لاسونو د وینې بوی لتېده او تر دې مخکې چې زه د سخ مت معبد ته لاړ شم، نه پوهېدم چې کاهنان نن څوک قرباني کوي؟

د هغوی دغه کار هم سم و، ځکه چې له ځلو ښتو کلونو راهیسې د هغوی د معبد دروازه نه وه خلاصه شوې او هیله یې کوله چې د معبد د دروازې له پرانیستلو وروسته د جنګ د الهې لپاره په زړه پورې قرباني وکړي.

له همدې امله یې د معبد د دروازو تر خلاصولو مخکې له ما وغوښتل چې د هاتي او سوریې څو تنه اسیران هغوی ته وسپارم.

کله چې مې واورېدل کاهنانو پر دې ورځ څو تنه د سخ مت لپاره قرباني کړي دي، زما زنګنونه ورېږدېدل.

که څه هم ما په معبد کې د انسان زړونه ولیدل، چې هورم هب ته یې ورکړل چې پر محراب یې ټینګ کړي او وینه یې بهر راوځي، خو له ځان سره مې فکر کاوه او ځان ته مې ډاډ ورکاوه چې د انسان زړونه ښایي په داسې ډول چې زه به ترې خبر نه یم کاهنانو ته رسېدلي وي.

خو د هورم هب خبرو زما شکونه لرې کړل او پوه شوم چې د سخ مت کاهنانو د هاتي او سوریې اسیران، په معبد کې وژلي او زړونه یې هورم هب ته ورکړي چې وینه یې د جنګ الهې ته ډالۍ کړي.

هورم هب وویل، کله چې کاهنانو ما ته وویل چې څو تنه اسیران ورکړم، نه پوهېدم چې هدف یې څه دی؟ خو کله چې مې د محراب په مخکې د هغوی زړونه ولیدل حیران شوم.

خو بیا هم که سخ مت په دې قربانۍ راضي وي او له موږ سره مرسته وکړي، نو زه دې پېښې ته چنداني توجه نه کووم، ځکه اوس موږ د ټولو خدایانو مرستې ته اړتیا لرو، هغه که نرینه دي یا ښځینه.

خو په دې هم پوه شه چې زما لپاره د یوه زړور عسکر په لاسونو کې یوه خوځېدونکې نېزه او تېره توره له ټولو نارینه او ښځینه خدایانو څخه ډېر برکتونه او ارزښت لري.

ددې قرباني ارزښت په دې کې دی، چې کاهنان راضي شوي او نور به موږ په کراره پرېږدي.

کله چې زه د جنګ ډګر ته ځم، د جنګ د جبهې له شا څخه به ډاډه یم او په دې پوهېږم چې، د معبد کاهنان به نه خلک پاروي او نه به ستونزې راټوکوي.

ما هورم هب ته وویل، هغه خبرې چې هغه په اورشلیم کې خپلو عسکر ته وکړې، زما په نظر تر هغو خبرو ښې وې، چې نن یې د مصر ملت ته وکړې.

هورم هب وویل هغه خبرې چې د جنګ په ډګر کې د عسکرو لپاره کېږي له هغو خبرو سره باید ډېر توپیر ولري چې یوه ملت ته کېږي، ځکه چې عسکر په تشو خبرو او وعدو نه شو غولولای، په داسې حال کې چې ملت احمق دی او د هر ملت فطري ځانګړتیا همدا حماقت وي. په ډېرو ښکلو او غوره جملو چې زړګونه یې د یوې ټنګې ارزښت نه لري، غولېږي، اهمیت ورکوي او تصور کوي چې په دې جملو سره نړۍ بدلولی شي.

ددې لپاره چې پوه شې، یو ملت څومره احمق دی، یو شاهد درته وړاندې کووم او دلیل یې هم همدغه وینا ده، چې ما نن وکړه.

دغه وینا، هغې وینا ته ورته ده، چې د نړۍ له پیله تر ننه پورې ټولو جنګې مشرانو او خطیبانو د جنګ په پیل کې کړې ده او هېڅ نوی شی پکې نه و.

خو ډاډ درکووم چې زما دغه وینا به په ډېره ولیکي او د راتلونکو نسلونو لپاره به پاتې شي، ځکه چې د مصر ملت داسې فکر کوي، چې دغه خبرې مخکې چا نه دي کړي.

ما پخپله وینا کې وویل، چې دغه جنګ سپېڅلی دی، چې غواړو یرغلګر پرې وشړو.

د نړۍ له پیله تر ننه پورې چې کله چا غوښتي جنګ پیل کړي، همدا خبره یې کړې ده او په نړۍ کې داسې هېڅ جنګ نشته چې د سپېڅلتیا اړخ ونه لري.

ما وویل زموږ هدف باید دا وي چې یرغلګر په شا وتمبوو او اجازه ورنه کړو، چې توره خاوره د هغوی لاس ته ور شي.

ددې لپاره چې ملت وډاروم، نو د هاتي خطر مې تر هغه ډېر وښود چې اوس دی.

زه نه وایم چې د هاتي د شرلو نیت نه لرم، هغه خبرې چې ما وکړې سمې وې، خو د هاتي شړل زما وروستی هدف نه دی، بلکې اصلي هدف او موخې ته د رسېدا لپاره دا کار را ته یوه وسیله ده.

زما هدف دا دی چې بریالیتوب تر لاسه کړم او وویاړم، ځکه چې خپله قوماندانی

ثابته کړم او بیا مېړمن باکتاموون په غېږ کې ونیسم.

زما اصلي هدف دا دی چې د زرګونو مصري او هاتي عسکرو په وژلو سره لوړتیا او ویاړ ترلاسه کړم، ملت ما ته د یوه خدای په سترګه وګوري او هېڅکله یوه شهزادګی له ما سره له واده کولو ډډه ونه کړي، بلکې په اپوته پر دې وویاړي چې زه یې ورور شم.

ما وویل دغه جنګ له مصره د دښمن د ایستلو لپاره یو دفاعي او سپېڅلی جنګ دی.

هغه وویل، خو له دې وروسته چې هاتي مې شاتګ ته اړ کړ، سوریه به ونیسم.

له سوریې وروسته که وکړای شم ټوله نړۍ به ونیسم، په هغه وخت کې به د دغو جنګونو نوم سپېڅلي جنګونه کېږدم او ملت د فطري حماقت له امله پرې پوره باور کوي.

په جنګ کې د خدایانو په مرسته باور نه لرم، ځکه چې خدایان نه شي کولای چې ځان وساتي، دا خو لا پرېږده چې په جنګ کې له موږ سره مرسته وکړي.

خو نن مې د مصر د ملت پر وړاندې پخپله وینا کې، په جنګ کې د بریالیتوب لپاره له خدایانو مرسته وغوښته، ځکه چې پوهېږم د مصر ملت ساده او کم عقل دی او ددې خبرو په اورېدو سره خوشحالېږي.

دوی فکر کوي چې خدایان به له موږ سره مرسته وکړي، د هغوی مرسته به پر جنګ اغېز وکړي، په تېره بیا دا چې له ما خوشالېږي، ځکه تصور کوي زه هم د هغوی په شان احمق او کم عقل یم، چې د خدایانو مرستې ته هیله وکړم.

ما نن پخپله وینا کې د راتلونکو ستونزو په هکله چې په دې جنګ کې یې عسکر زغمي خبرې ونه کړې، ځکه چې د جنګ ستونزې او مشکلات د لمر ختو او لوېدو په شان دي.

کله چې یې وخت را ورسېږي پخپله پیدا کېږي او دا اړتیا نشته چې تر هغه مخکې خلک له دې وویروم چې بیا عسکر شي.

نن ما خپل یو شمېر کسان د خلکو په منځ کې درولي ول، چې د خوشحالی ناري وکړي او زما لپاره شور او زوږ جوړ کړي.

دغه کار ټولو هغو کسانو کړی، چې تر دې مخکې یې د خلکو لپاره ویناوې کړي دي، ځکه چې ملت دومره ساده او بې شعوره دی چې نه پوهېږي هغه خبرې چې دوی اورېدلې دي سمې دي که نه؟

بله خبره داده چې یو شمېر داسې کسان باید وي، چې د خوشحالی ناري وکړي چې نور د خبرې پر ښېګنو یا بدیو باندې، له پوهېدا پرته د هغوی تقلید وکړي.

سینوهه ! ته چې په دې وخت کې یو اورېدونکی یې فکر کوې، ټول هغه کسان چې زما خبرې یې اورېدلې دي، زما پلویان دي او زما لپاره به هر ډول فداکاری، ته تیا روی؟

ومې ویل هورم هبه ! ته چې وایې د خدایانو په قدرت عقیده نه لرې.... ته چې وایې د سپېڅلي جنګ کلیمه هغه عنوان دی، چې تل کارېدلی دی او نوی شی نه دی... ته چې وایې یو ملت احمق او بې شعوره دی...ایا په نړۍ کې داسې شی شته چې ته پرې عقیده ولرې؟

هورم هب وخندل او ویې ویل، ته ډېر ساده سړی یې ګني دغه پوښتنه دې له مانه کوله، ځکه ته پخپله پوهېږې، چې زه په څه شي عقیده لرم.

سینوهه په دې حقیقت پوه شه چې د نړۍ له پیله تر اوسه پورې او تر هغه وخته چې دا نړۍ وي، دغه خبره په یاد ولره چې یو فرعون.. یا یو هورم هب ... یا یو آمي، یا یو هري بور په کلي توګه هر هغه کس چې قدرت ویاړ او شتمني لري یوازې پر یوه شي عقیده لري او هغه هم په قدرت ،ویاړ ،او شتمنۍ.

کله چې یو فرعون، یا آمي چې مقام او شتمني لري تاته ووایي چې په خدایانو عقیده لرم، پوه شه چې دروغ وایي.

که تاته ووایي چې پر ملت عقیده لري، پو شه چې ستا د غولولو نیت لري او که درته ووایي چې په هېواد او توره خاوره باور او عقیده لري، پوه شه چې هدف یې، ستا له سادګۍ او ناپوهۍ څخه د شتمنۍ او قدرت د زیاتېدا لپاره کار اخیستل دي

یو فرعون یا هورم هب له قدرت، شتمنۍ او ویاړ کولو پرته په بل شيء عقیده نه لري. آمي او هري بور هم همداسې دي او هر شی چې ووایي یا یې وکړي د قدرت، شتمنۍ او ویاړ د ساتلو یا ترلاسه کولو لپاره یې کوي

خو یو فرعون یا آمي مجبور دی، د شتمنۍ او قدرت د ساتلو او زیاتولو لپاره د اسې وښیي چې پر خدایانو عقیده لري، د مصر په ملت باوري دی او توره خاوره د هغوی لپاره د نړۍ تر ټولو سپېڅلې خاوره ده.

هغوی مجبور دي، داسې وښیي چې ګني ټول کال د مصر د ملت لپاره کړاو زغمي او هېڅکله نه ویدېږي

په ډوډۍ ،شرابو او د اوربشو په اوبو کې، سپما کوي، چې داسې نه شي، ددې ملت یو وګړی کوم وخت وږی پاتې شي.

په ځوانۍ کې چې لا یې د قدرت او شتمنۍ خوند نه وي څکلی ښایي داسې کسان هم

وي چې له ځانه پرته په نورو شیانو هم عقیده ولري.

خو کله چې په عمر پاخه شول او پوه شول چې قدرت او شتمني کوم خوند لري، غرور او شهوت انسان اراموي، نو له ځانه پرته پر هر شي باندې عقیده له لاسه ورکوي

کله چې زه ځوان وم له ځانه پرته مې په دوو شیانو عقیده درلوده، یو پخپل باز او بل په دوستۍ باوري وم، خو نن سبا چې په عمر پوخ یم له ځانه پرته په هېڅ شي عقیده نه لرم او پوهېږم، هرڅه چې کووم باید د شتمنۍ او ویاړونو د زیاتولو لپاره یې وکړم.

هر ډول دوستي زما په نظر د قدرت او شتمنۍ د زیاتولو لپاره یوه وسیله ده او حتي ښځه هم راباندې نه شي ګرانېدای.

زه باکتامون هم ددې لپاره غواړم چې تفریح ورسره وکړم او خپل قدرت او ویاړ پرې زیات کړم.

سینوهه! دغه خبره چې ما درته وکړه، که فرعون یا بل هرڅوک وي، خو چې قدرت او شتمني ولري او دروا غ ونه وایي، نو هم دغه خبره به درته وکړي.

دغسې هر سړی به درته ووایي چې زه ځان د هر شي په مرکز او چورلیز کې ګورم او باوري یم چې د مصر هېواد او ملت زه پخپله یم.

زه ددې لپاره د مصر لوړاوی غواړم، چې ځان لوی او ستر کړم، ځکه د ځان د لویولو لپاره بله لاره نه لرم.

باید داسې ملت وي چې پر هغه زما تسلط او قبضه نور هم وګوري او د هغه فلز او نباتي غوړي ترلاسه کړم. په هغه څه چې له ملته یې اخلم یو شمېر کسان اجیران کړم، چې تل زما ښېګڼې بیان کړي، په لوړ غږ زما صفت وکړي چې ملت پوه شي یوازې زه دغه ځانګړتیاوې لرم.

دغو خبرو پر ما اغېز ونه کړ او ښایي له دې امله یې اغېز نه وي کړی، چې ما په ځوانۍ کې هورم هب لیدلی و. بیا مې د هغه مور و پلار هم ولیدل او متوجه شوم چې که څه هم هورم هب هغوی په اشرافو کې راوستي ول، خو د خوشیو بدبوی ترې لتېده.

دغه ډول خبرې د هورم هب په شان د یو چا له خولې راتېږي انده له ښکارېدې، فکر مې کاوه چې که یو اشرف زاده او فرعون دغه ډول خبرې وکړي، ښایي له هغه سره خوند وکړي، خو د هورم هب په شان سړي له خولې دغه ډول خبرې، غورو او چټیاتو ته ورته ښکارېدې

# اوه څلویښتم څپرکی

## سپېڅلی جنګ یا د مصر او هاتي
## تر منځ جنګ

موږ چې ممفيس ته ورسېدو، هورم هب له اشرافو او شتمنو کسانو وغوښتل چې سره راټول شي.

هغوی، چې راغلل هورم هب ورته وويل، تاسې شتمن یاست او زه يو بېوزله کس يم.

په کومه ورځ چې وزېږېدم نو د ګوتو په منځ کې مې د څارويو غوندې خوشايي ښښتي ول، آمون پر ما برکت پېرزو کړ، زه يې لوی سړی کړم.

اوس فرعون ما ته حکم کوي، چې د وينې زبېښونکي او بې رحمه دښمن مخه ونيسم، چې د مصر پر لور روان دی.

زه دلته راغلم په ډېرې خوشحالۍ سره مې واورېدل چې تاسې خپلو کروندګرو او مريیانو ته ويلي چې، جنګ پيل شوی او تاسې بايد سرښندنه او سپما وکړئ.

ښه مو کړي چې د خپلو مريیانو او کروندګرو خواړه مو ورکم کړي او په دې ښار کې مو د خپلو محصولاتو بيه لوړه کړې ده.

زه ستاسې له دغې سرښندنې راضي او خوشاله يم.

تاسې پوهېږئ چې جنګ يو لړ لګښتونه لري، چې تر ټولو مهم يې وسله او د عسکرو خواړه دي.

زه، چې دلته راغلم ددې ځای له مامورينو څخه مې ستاسې د مالياتو اندازه معلومه کړه.

پر دې سربېره مې ستاسې د شتمنۍ په هکله نور معلومات هم ترلاسه کړل.

زه پوهېږم چې تاسې د درواغجن فرعون په وخت کې خپله يوه اندازه شتمني پټه کړې وه، چې ماليه دربانديې رانه شي.

اوس د رښتوني فرعون وخت دی او هغه د آمون په نوم پاچاهي کوي، نو تاسي باید خپله شتمني پټه نه کړئ، بلکې په ډېرې خوشحالۍ سره باید د مصر د دفاع لپاره خپله شتمني ورکړئ.

له همدې امله باید تاسې ډېر ژر د خپلې شتمنۍ نیمه برخه ماته راکړئ.

هر شی راکولای شئ، که هغه سره یا سپین وي، غنم، پسونه، غواګانې او یا هم د جنګي ګاډیو د ترلو لپاره اسونه وي.

کله چې د هورم هب خبرې خلاصې شوې، ناڅاپه د اشرافانو او خانانو شور ماشور شو.

هغوی خپلې جامې څیرې کړې او هغو کسانو چې ډېر ویښتان یې درلودل، منګولې یې پکې خښې کړې او خپل ویښتان یې وشکول.

دوی په ژړا ویل، موږ هېڅ هم نه لرو، درواغجن فرعون او د هغه خدای هر څه راڅخه اخیستي دي او موږ بېوزلي شوي یو.

هغه کسان چې وایي موږ خپله شتمني پټه کړې ده، درواغ وایي.

د زاریو او نارو سورو تر ختمېدو وروسته هورم هب وویل، د درواغجن فرعون د پاچاهۍ په دوره کې ما پخپله ولیدل چې هېڅ ستاسې د غنمو یو وړی، یو منګی د اوربشو اوبه یا د مسو یوه کړۍ نه دي اخیستي.

درواغجنو مامورینو یوازې هغه ځمکې ونیولې چې د آمون د کاهنانو له لوري اداره کېدلې او پر کروندګرو یې ووېشلې.

په تاسې کې ځینې کسانو چې ډېرې ځمکې یې درلودې د خپلو کروندګرو په وسیله یې له دغو ځمکو خپله ونډه اخیسته، او خپلې ځمکې یې هېڅکله هم کروندګر ته ور نه کړې.

له همدې کبله د درواغجن فرعون په وخت کې ستاسې یوه شتمني هم کمه نه شوه او ان ځینو خو وکړای شول، چې په دغه وخت کې خپلې ځمکې زیاتې کړي.

له هغه وروسته کاختي راغله او له دې کبله چې تاسې مخکې له مخکې د کاختۍ اټکل کړی و، نو ورسره مو غلې دانې هم پټې کړې او احتکار مو وکړ چې بیا مو غله په ډېره لوړه بیه خرڅه کړه.

بله خبره دا ده چې زه نه غواړم ستاسې نیمایي شتمني وړیا ترلاسه کړم، بلکې زه غواړم چې تاسې د خپلې ظاهري شتمنۍ نیمایي برخه چې حتماً ستاسې له حقیقي شتمنۍ څخه ډېره کمه ده، ماته په پور راکړئ.

دغه شتمني به زه په جنګ کې ولګوم او بیا به له جنګه وروسته بیرته ستاسې پور درکړم.

شتمنو او خانانو یو بل ته وکتل ویې ویل، که موږ تا ته پور درکړو، نو ته به موږ ته په ضمانت کې څه راکړې؟

هورم هب وویل، د پور د اداکولو لپاره زما ضمانت، بریالیتوب دی او تصور کووم چې دغه ضمانت ستاسې لپاره ډېر اهمیت لري

ځکه چې که زه بریالی نه شم د هاتي عسکر به دلته راشي او ستاسې نیمایی شتمني نه، بلکې ټوله به دځان کړي.

زه پوهېږم چې تاسې د حساب کتاب او هوښیار خلک یاست، نو له ما به ددې پور په بدل کې ګټه او سود وغواړئ، خو زه هم چمتو یم، چې تاسې ته سود درکړم او له هر یوه سره به د سود په اړه جلا جلا خبرې وکړم.

شتمنو ناڅاپه بیا فریاد او ژړاګانې پیل کړې او یې ویل، دا چې ته وایي له هر یوه سره به د سود په هکله جلا جلا خبرې وکړې، دا ددې لپاره کوې چې موږ ته د سود راکولو نیت نه لرې

پر دې سربېره زموږ دا تمه لا نشته چې خپل اصلي پور ترلاسه کړای شو، سود خو یې لا پرېږده.

شتمنو په داسې حال چې تندې یې پر ځمکه موښلې وویل، اوس چې باید موږ بېوزله شو او خپل هرشی له لاسه ورکړو، نو غوره داده چې ځانونه د هاتي عسکرو ته تسلیم کړو.

هورم هب وویل، ډېره ښه ده... زه چمتو یم چې ستاسې په خوښه چلند وکړم او له دې کبله چې تاسې غواړئ ځانونه د هاتي عسکرو ته تسلیم کړئ، زه هم خپلو عسکرو ته وایم، چې راشي او ستاسې لاس و پښې وتړي، په بېړۍ کې مو واچوي او ټول د هاتي عسکرو ته وسپاري

د هاتي عسکرو ته ستاسې سپارل، ستاسې د مړینې په مانا ده، ځکه د هاتي عسکر به سمدستي تاسې ړانده کړي، چې د خپلو تېلو د ایستلو په ارهټ کې مو وتړي او کله چې تاسې لاړ شئ، نو زه به ستاسې ټوله شتمني ضبط کړم.

شتمنو چې دغه خبرې واورېدې، ژګیروي یې پیل کړل او ځانونه یې پر ځمکه وغورځول، چمتو شول، چې یوه اندازه سره او سپین هورم هب ته ورکړي

خو هورم هب دلاسا کړل او ویې ویل: ما ددې لپاره را وغوښتلاست، چې پوهېدم، په دې ښار کې تر تاسې نور شتمن نشته.

دغه راز زه خبر یم چې تاسې د هر ځیرک کسان یاست، د خلکو په تاوان شتمن شوي یاست او په راتلونکې کې به نور هم شتمن شئ، ځکه چې د نړۍ خلک دوه ډوله دي.

یو ډله د عمر له پیله تر پایه بېوزله پاتې کېږي دوی نه شي کولای چې د نورو د تاوان له لارې او د هغوی د وینې په زبېښلو سره د بډایتوب لاره پیدا کړي.

دویمه ډله هغه کسان دي، چې د خلکو په تاوان او د هغوی د وینې د زبېښنولو له لارې یې د بډایتوب لارې چارې زده کړې دي.

که دغه ډله کسان پخپل ژوند کې شل ځله هم خپله شتمني له لاسه ورکړي، بیا به هم شتمن شي، ځکه پوهېږي، چې څه ډول باید د نورو په زیان، دوی شتمن شي.

تاسې د همدې ډلې کسان یاست.

که مو زه داسې وزبیښنم چې د بدن شیره درنه وباسم، بیا به هم بډای شئ، ځکه پوهېږئ چې د نورو د مزد او ګټې د لوټولو په وسیله د شتمنۍ د ترلاسه کولو لاره کومه ده؟

خو ډاډه اوسئ، چې زه به مو دومره نه ټېنګوم، چې ستاسې شیره ووځي.

تاسې شتمن کسان زما لپاره د مېوه لرونکو ونو په شان یاست او یو هوښیار باغوان، مېوه لرونکې ونه له بېخه نه باسي، بلکې یوازې ددې ونې مېوه راټولوي.

بله خبره دا ده چې، کله جنګ پیل شي، نو شتمن کسان په تېره بیا د ځمکو خاوندان، سوداګر، د بېړیو خاوندان او مالداران خپله شتمني نوره هم زیاتوي.

که د بیدیا د شګو په اندازه د مالیاتو مامورین ورته وګمارل شي، بیا به هم د هغوی شتمني ورځ تر بلې زیاتېږي او هغوی به حتی د مالیاتو له مامورینو څخه ګرمه واخلي.

ځکه چې خپل غنم، د اوربشو اوبه، غوښه نور محصولات، به په ډېره ګرانه بیه پر هغوی خرڅ کړي.

تاسې غم مه کوئ او په دې مه خپه کېږئ، چې د خپلې شتمنۍ یوه برخه ماته راکوئ، ځکه چې په لنډه موده کې به تر هغه ډېره نوره بیرته ترلاسه کړئ.

اوس لاړ شئ او د جنګ په وخت کې د لویو ګټو د ترلاسه کولو لپاره چمتوشئ او ځانونه نور هم چاغ کړئ.

کله چې جنګونه کېږي که څه هم زرګونه عسکر پکې مري، زرګونه کورونه پکې

ورانبري او اوسېدونکي يې مريان او وينځې کېږي، خو شتمن کسان، مالداران، د بيړيو خاوندان او سوداګر نور هم چاغېږي.

بله خبره دا چې زه د هاتي د عسکرو له ځپلو وروسته غوارم، سوريه هم ونيسم او د پښوا په شان يې د مصر له خاورې سره يو ځای کړم، نو تاسې به له سوريې څخه ډېره ګټه واخلئ.

له همدې کبله غوره ده، چې د جنګ لپاره له پور پرته، کله ناکله ماته ډالۍ هم راولېږئ چې پر پوځ يې ولګوم.

اوس لاړ شئ، که غواړئ وژاړئ، نو ساندې پيل کړئ، زه به ستاسې له ساندو خوند واخلم، ځکه چې زما په غوږونو کې د مسو د کړيو په شان دي.

ځکه زه پوهېږم، چې که ژاړئ هم، خو هغه سره او سپين به حتماً راکړئ، چې ما د رڅخه غوښتي دي.

شتمن او خانان پورته شول او لاړل.

هورم هب ماته وويل، سينوهه! ښايي تا نن فکر کړی وي، چې د جنګ د لګښتونو د پوره کولو لپاره له شتمنو کسانو څخه د قلنګ اخيستل ظلم دی او غوره دا وه چې ما د جنګ لګښتونه له هغو مالياتو څخه پوره کړي وای چې د مصر له ټول ملته مو اخيستي دي.

که څوک بېوزلي دي او که شتمن، بايد ماليات ورکړي، چې په دې ډول ټولې پرګنې د جنګ په لګښتونو کې برخه واخلي.

زه پوهېږم چې د جنګ د لګښتونو د پوره کولو لپاره له ټولو پرګنو څخه د مالياتو ترلاسه کول، ددې لپاره چې پر ټولو پرګنو يو شان فشار راشي، يو خيالي کار دی، ځکه کله چې په يوه هېواد کې ماليات اخيستل کېږي، که دغه د مالياتو اخيستل ډېر عادلانه هم وي، بيا هم ډېر فشار پر بېوزلو راځي.

لامل يې دا وي چې په دې وخت کې شتمن، خانان او د کار خاوندان که د مالياتو په نوم يوه مسي کړۍ، ورکوي، خو له بېوزلو څخه لس کړۍ ترلاسه کوي.

همغه ډول چې د مصر په هرمونو کې تر ټولو ډېر فشار پر هغو ډبرو راځي چې تر ټولو لاندې اېښودل شوې دي.

په هره ټولنه کې د مالياتو او بل هر ډول فشار د بېوزلو پر اوږو وي او د هغوی هډوکي

ماتوي.

زه د جنګ د لګښتونو لپاره له بېوزلو څخه ماليات نه اخلم، ددې لپاره چې ووايي هورم هب داسې سړی دی چې د جنګ لپاره يوازې له شتمنو څخه ماليات اخلي او له بېوزلو سره کار نه لري.

سينوهه ! له دې ټولو سره سره به بيا هم بېوزلي ددې او نورو جنګونو ماليات ورکوي، خو نن چې زه کوم کار کووم دا به ما ډېر مشهور کړي او په مصر کې به مې محبوبيت زيات کړي.

د سرو او سپينو د راغونډولو، د نويو عسکرو د ګمارلو او دغه راز د نويو ګاډيو د جوړولو لپاره، په ممفيس کې د هورم هب ايسارتيا تر هغه ډېر وخت واخيست چې ما يې اټکل کاوه.

په ممفيس کې زموږ د پاتې کېدو په موده کې، د هاتي عسکرو د نيل سيند په دلتا کې کروندې او کلي ورانول او خپل اسونه به يې په هغو کروندو کې څرول چې لا پاخه شوي نه ول.(*دلتا يوه يوناني کليمه ده، چې مثلث ته ورته شی دی او له دې کبله چې نيل سيند په هغه برخه کې چې سمندر ته تويېږي پر څو برخو وېشل کېږي، نو ټولې څانګې يې يو مثلث جوړوي او دغې برخې ته يوناني مورخان دلتا وايي. پخوا نيل سيند په دلتا کې اووه څانګې درلودې، خو اوس تر دوو څانګو ډېرې برخې نه لري ژباړن*)

هغه تښتېدلي کسان چې له دلتا سيمې څخه ممفيس ته راتلل د هاتي د عسکرو د بې رحمۍ په هکله يې لړزونکې کيسې کولې.

هورم هب پر هغو کيسو ډېر خوشال و چې تښتېدلو کسانو به خلکو ته کولې. دی پوهېده چې دغه کيسې ددې سبب کېږي، چې خلک د هاتي له سپاهيانو ډېر وډار شي او د مصر له عسکرو سره مرستې ته چمتو شي.

هغه به ويل، سينوهه ! ته به حيران شې چې زه ولې دلته ايسار شوم، ولې نه ځم او د هاتي د عسکرو مخه نه نيسم؟

خو زه له کافي عسکرو او جنګي ګاډيو پرته د هاتي جنګ ته تللی نه شم.

بله خبره داده چې غزه زموږ په ولکه کې ده او زموږ ځواکونه هلته مقاومت کوي، له همدې امله تر يوه حده ډاډه يم، ځکه چې غزه هغه غشي ته ورته ده چې د هاتي او د هغه د متحد آزيرو په ټټر کې ننبتی دی او اجازه نه ورکوي چې هغوی په اسانه جنګي مانوره

وکړي.

هغه ورځ دې یاد وي چې ته له آزیرو سره د سولې لپاره سوریې ته تللی وې او ما تا ته سپارښتنه وکړه، چې په هره بیه وي، غزه له لاسه ورنه کړې.

په هغه وخت کې ما د نن ورځې اټکل کاوه.

د مصر د ساتلو او د سوریې د نیولو لپاره غزه، زموږ لپاره تر ټولو ښه تکیه ځای دی.

تر هغه وخته پورې چې غزه له موږ سره ده، هاتي جرائت نه شي کولای، خپل پلي ځواکونه، چې شمېر یې تر ملخانو هم ډېر دی، سینا دښتې او د سوریې له غرونو راتېر کړي او مصر ته یې ورسوي.

د دې لپاره چې پوهېږې موږ سمندري ځواک لرو، د سمندر له لارې به مهم ځواک په غزه بندر کې پلی کړو او د هاتي د نظام ترشا به ځان څرګند کړو.

تر هغې ورځې چې د هاتي عسکر د سینا دښتې او د سوریې له غرونو نه وي راتېر شوي، مصر ګواښلی نه شي.

نن سبا د هاتي سپاهیان یوازې پخپلو جنګي ګاډیو اتکا کوي او د هاتي د عسکرو قوماندان فکر کوي، په جنګي ګاډیو سره ډېر ژر مصر نیولی شي.

دوی نه پوهېږي چې مصر د سوریې په شان له یوه هوار سره توپیر لري، ځکه چې سوریه د اوبه خوړ او اوبو لګولو کانالونه او ویالې نه لري.

مګر د مصر په هر ځای کې د نیل سیند له سرچینې رانیولې تر لومړني ابشار یا څړوبې پورې د اوبو لګولو ویالې شته او دغه کانالونه د هاتي د جنګي ګاډیو د تېرېدا مخه نیسي.

خو زه یوازې د اوبو لګولو پر سیستم تکیه نه کووم، پوهېږم کله چې د یوه تېري کوونکي پوځ مخه ونه نیول شي، که یې په مخکې د اور سیند هم وي، هغه پوځ به ترې را واوړي.

خو زه غواړم په پوره ځواک سره د هاتي جنګ ته لاړ شم.

اوس هم لاس تر زنې ناست نه یم او زما پارتیزانان او چریکي ډلې په سینا صحرا کې تل د هاتي عسکرو ته ستونزې پیدا کوي.

داسې ورځ به نه وي، چې د هاتي څو تنه عسکر یې نه وي وژلي.

په کوز مصر کې چې د هاتي عسکر هر څومره ورانی وکړي، کرونده ورانې کړي او خلک

وو پروي، نو د هغو کسانو شمېره به ډېره زياته شي چې زما له سپاهيانو سره يو ځای کېږي.

په حقيقت کې يو شمېر کروندګر چې په کوز مصر کې د هاتي د عسکرو د تېري له امله وږي پاتې دي، د هورم هب په لښکرو کې شامل شول.

يو شمېر کسان چې د آتون د خدايي په وخت کې بېوزله شوي دي، هغوی هم د عسکرۍ لپاره پخپله خوښه راغلي دي.

که څه هم د هورم هب د عسکرو شمېر ډېر نه و، خو هغه دې ته له پامه پرته چې د آمون کاهنان به څه وايي، يو حکم وکړ او ټول هغه محکومين يې خوشې کړل، چې آتون ته د عقيدې په تور نيول شوي ول او د کار لپاره کانونو ته استول شوي ول.

# اته څلوېښتم څپرکی

## د هاتي پر عسکرو مو څه ډول برید وکړ

په ممفیس ښار کې دومره عسکر راټول شوي ول، چې دغه ښار یې په یوه پوځي ښار بدل کړی و.

هره شپه به عسکر د عیاشۍ کورونو ته تلل، په واټونو کې به یې ناري سورې وهلې، جنګونه یې کول او د ښار ځایي اوسېدونکو به له وېرې د کورونو دروازې تړلې او د باندې نه راوتل.

د مسو د ویلي کولو او جوړولو بټیو به شپه او ورځ کار کاوه.

خلک د هاتي له پوځیانو دومره وېرېدلي ول، چې ښځو به هم خپلې مسي ګاڼې ورکولې چې د عسکرو لپاره ترې غشي جوړ کړي.

هورم هب همغه ډول چې د ممفیس له شتمنو به یې سره او سپین اخیستل، د بېړیو اخیستو ته یې هم مخه کړه.

هره هغه بېړۍ چې له کرت او نورو دولس ګونو ټاپوګانو څخه مصري بندرونو ته راتلې، هورم هب به پېرودلې.

که د بېړۍ کوم مانو به نه غوښتل چې خپله بېړۍ خرڅه کړي، نو هورم هب به په زور ترې واخیستله.

په هغه وخت کې د کرت بېړۍ سرګردانه وې او له یوه بندره به بل ته تللې او جرائت به یې نه کاوه چې کرت ته ستنې شي، ځکه چې د کرت په هکله یې وېروونکي خبرونه اورېدل.

داسې اوازې هم خپرې شوې، چې په کرت کې مریانو بلوا کړې، د کرت بندر ته یې اور ورته کړی او ځینو به ویل چې د هاتي لښکرو په کرت برید کړی دی.

دغه اوازه د خلکو لپاره عجیبه ښکارېده، ځکه پوهېدل د هاتي قبېلې دا تجربه نه لري،

چې له سمندره واوړي او پر کرت برید وکړي.

ځینو باور درلود چې سپین پوستو قبایلو چې له شماله راغلي ول پر کرت حمله کړې ده.

خو ټولو ماڼوګانو او د بېړیو عملې د کرت بدبختۍ د خپل خدای د مړینې له امله بللې او ویل به یې، له دې کبله چې خدای یې مړی شوی دی، نو بیرته کرت ته نه شي ستنېدای.

هورم هب به ځینو دغو بېړیو ته ورته وړاندیز کاوه، چې د مصر لپاره خدمت وکړي. هغو بېړیو چې به دغه وړاندیز ومانه ګټه یې کوله.

ځینې بېړۍ په لالهاندۍ کې د سوریې بندرونو ته تللې او هلته به د آزیرو لاس ته ورغلې.

خو هورم هب وتوانېده د کرت او نورو ټاپوګانو د بېړیو په مرسته یو سمندري ځواک جوړ کړي او ددې ځواک ټول ماڼوګان او سپاهیان تکړه کسان ول.

کله چې نیل مست شو او اوبه یې راوختلې، نو هورم هب له خپلو عسکرو سره روان شو، خو تر دې وړاندې چې له ممفیس څخه روان شي، غزې ته یې د استول کېدونکو قاصدانو په مرسته هورې خپلو کسانو ته وویل، چې مقاومت وکړي.

ددې ترڅنګ یوه مصري بېړۍ له خوړو سره د غزې بندر ته ورسېدله او د هورم هب پیغام یې د غزې د پوځیانو قوماندان ته ورساوه.

دا همغه قوماندان و، چې کله ما غوښتل د غزې ښار ته ننوځم، نو ما ته یې د ښار دروازه خلاصه نه کړه، بلکې زه یې په یوه زنبیل کې د کلا پر دېوال د کلا منځ ته ور وا رولم.

زه نه پوهېدم چې هغه څه ډول په دې ښار کې مقاومت وکړ، ځکه چې د آزیرو او هاتي عسکرو به تل حملې کولې او د ښار دروازه به یې تل په لویو ستنو وهله چې ماته یې کړي.

یا به یې ښار ته دننه له مارانو ډکې ټوکرۍ وراچولې.

د هورم هب جاسوسانو به بیا په غشو سره هره ورځ د هغه پیغامونه ښار ته ورغورځول او په دې پیغامونو کې به یې کلابندو ښاریانو ته ویل چې مقاومت وکړي.

کله چې موږ تانیس ته نږدې شوو، هورم هب خبر شو، چې د هاتي یوه ډله جنګي ګاډیو، د نیل په څنګ کې د سیند په پېچومي کې مورچې نیولې دي.

هورم هب امر وکړ چې د اوبو بند شوي لښتي چې د ختو او چیکړو له امله له کاره لوېدلي ول، پاک کړي او اوبه دې پکې خوشې کړي. کله چې دغه کار وشو، نو یو وخت د

هاتي د جنګي ګاډیو ټولی پوه شو چې له هرې خوا د اوبو په واسطه کلابند شوی دی.
مصري عسکر چې په بېړیو او ماکوګانو کې سپاره ول، له اوبو څخه ونه وړېدل، تر لښتیو تېر شول، د هاتي درې سوه آسونه یې ووژل او سل ګاډۍ یې وسوځولې.
هورم هب په دې پېښه خوابدی شو، ځکه هغه غوښتل چې اسونه او ګاډۍ ونیسي او د مصر په لښکرو کې ترې کار واخلي.
له دې پېښې وروسته موږ هم روان شوو تر دې چې تانیس ته ورسېدو. هلته هورم هب د هاتي له یو شمېر عسکرو سره چې له خپلو ګاډیو لرېوو مخامخ شو.
مصري عسکرو پرې برید وکړ او له دې کبله چې د هاتي عسکر پلي ول ټول یې ووژل او د هغوی اسونه او ګاډۍ یې ونیولې.
دغه بریالیتوب له پوځي پلوه مهم نه و، خو له روحي پلوه یې ډېر اغېز درلود، ځکه مصري عسکرو اورېدلي ول، چې هاتي عسکرو ته ماتې نه شي ورکولای، خو دې پېښې وښودله چې د هاتي عسکر د نورو په شان ماتېدای شي.
هورم هب پر اسونو د مصر د پوځ ننبه ولګوله او ګاډۍ یې هم د مصر د ګاډیو په شان رنګ کړې.
پخپله هورم هب هم پر دې بریالیتوب خوشحال او هیجاني شوی و، خپل پیاده عسکر او درنه وسله یې شاته پرېښوده او له یوازې یوې ډلې جنګي ګاډیو سره یې پر تانیس حمله وکړه.
هورم هب چې کله د تانیس پر لوري ته، ماته یې ویل. که غواړې ګوزار وکړې، نو باید ګړندی او سخت وي، چې دښمن دې داسې سربداله شي، چې ژر ځان راټول نه کړای شي.
ما فکر وکړ چې هورم هب به په تانیس کې پاتې شي، خو له دې سره سره چې پوهېده د تانیس په جنوب کې د دښمن عسکر د کلیو او باغونو په ورانولو بوخت دي، له تانیسه تېر شو.
موږ سینا صحرا ته ننوتو، ما په حیرانۍ سره وکتل چې هورم هب د لیندۍ د غشي په شان د ختیځ پر لور مخه کړه.
له دې وروسته چې صحرا ته ننوتو، هورم هب د هاتي څو جنګي پوستې ونیولې، چې عسکرو یې په دښته کې له اوبو د ډکو منګیو د ساتلو دنده درلوده.
په همدې وخت کې زه پوه شوم. چې ولې آزیرو او د هاتي پوځ له مصره استعمال شوي

منګي اخيستل.

د دې لپاره چې نوي منګي اوبه جذبوي او هغه اوبه چې د هغوی په منځ کې وي د منګيو تر سوريو تېرېږي، کمېږي او ضايع کېږي.

خو استعمال شوي منګي اوبه ساتي.

د هاتي پوځ سلګونه زره منګي او چاټې له اوبو ډکې کړې وې، له سورېې څخه د مصر تر سرحده پورې يې په ځانګړيو ځايونو کې په دښته کې ايښي ول چې پر مصر د حملې په وخت کې لښکر بې اوبو پاتې نه شي.

ځکه چې د هاتي عسکرو سمندري ځواکونه، نه درلودل، نو پر مصر د حملې لپاره مجبوره ول، چې د وچې له لوري بريد وکړي او له ځمکنۍ لارې د حملې لپاره يې اوبو ته اړتيا درلوده.

هورم هب له دې پرته چې د اسونو د ستړيا فکر وکړي، د هغو منګيو د ماتولو د ځايونو په اوږدو کې چې د هاتي پوځ په ځمکه کې ښخ کړي ول د ختيځ پر لور روان شو.

له دې سره سره چې ځينې اسونه مړه شول، خو هورم هب خپل سرعت کم نه کړ.

د هغو سلګونو ګاډيو حرکت په دښته کې وېرونکې منظره جوړه کړې وه، دوړې او خاورې تر اسمانونو پورې رسېدې او هغو کسانو چې د هغه د ګاډيو حرکت يې ليده ويل به يې، هورم هب د توپان په شان رارسېږي.

په همدې وخت کې چې د هورم هب ګاډي بيديا ته ننوتې، د مصر پلوي چريکي او پارتيزاني ډلو د هاتي پر پوستو او مرکزونو حملې پيل کړې، د شپې مهال به يې د سينا دښتې په لوړو غرونو کې اورونه بلول او د اور په وسيله به له هورم هب سره يو ځای شول.

هغو دوړو او ګردونو چې د ګاډيو له حرکته پيدا کېدل او هغو اورونو چې د شپې مهال به بلېدل دغه افسانه را منځته کړه، چې ګني هورم هب د ورځې د صحرا د باد په شان او د شپې د اور د لمبو په څېر کتيا پر سورېې حمله کړې ده.

هورم هب، په غلچکي بريد کې په صحرا کې د اوبو ټولې مورچې ونيولې.

د هاتي عسکرو چې تصور يې نه کاوه، چې هورم هب به پرې حمله وکړي، په ټولو ځايونو کې تسليم او يا ووژل شول.

د هاتي عسکرو په دوو دلايلو د هورم هب د حملې تمه نه کوله، يو دا چې د هاتي عسکر تل د بريد په حال کې ول او تر هغه وخته چا نه و اورېدلي، چې پر هاتي دې چا بريد

کړی وي.

دويمه دا چې د هاتي پوځ پوهېده، د هغوی يو شمېر پوځيان په کوز مصر کې د کليو او باغونو د ورانولو په حال کې دي.

چا دا تصور هم نه کاوه، چې هورم هب دې دغه پوځيان پر خپل حال پرېږدي چې ورانې وکړي او پخپله د سينا دښتې ته را شي او پر هاتي دې حمله وکړي.

دوی پوهېدل چې مصر کمزوری دی او که هورم هب له مصره ووځي نو په کوز مصر کې به د لږ شمېر هاتي عسکرو مخه څوک ونه نيولای شي.

يو عامل چې په سينا صحرا کې يې د هاتي ځواک د هورم هب پر وړاندې کمزوری کړ، هغه د غزې مقاومت و.

د هاتي پوځيانو د دې لپاره چې غزه ښار ونيسي يو شمېر عسکر يې په غزه کې سره راټول کړل.

خو له دې کبله چې د غزې په شا و خوا کې دغو ځواکونو د خوړو امکانات نه درلودل، نو عسکر يې د سوريې په ښار کې تيت و پرک کړل چې خواړه ورته ورسېږي.

کله چې هورم هب د سينا دښتې ته ننوت، هاتي پوځيانو ونه کړای شول، چې خپل ځواکونه د هغه پر وړاندې راټول کړي.

هورم هب د غزې ښار تر شا و خوا سيمو پورې پر مخ لاړ او د هاتي د ځواکونو يوه برخه يې چې د ښار په شا و خوا کې وه له منځه يوړو، خو بريالی نه شو چې غزې ته ننوځي.

څکه چې هلته د هاتي افسران پوه شول چې، د هورم هب جنګي ګاډي، ډېرې نه دي او فيصله يې وکړه، چې د هغه مخه ونيسي.

کله چې هورم هب د غزې پر لوري تلو، زه ورسره نه وم او د اوبو په يوه مرکز کې ايسار شوم.

له دې کبله چې هورم هب راته ويل چې په دې بريد کې ډاکټر ته اړتيا نه لري او د ټپيانو د درملنې وخت نه لري، هر څوک چې ژوبل شي په دښته کې به پاتې وي، يا به ژوندی پاتې شي او يا به د مردار خورو ښکار شي.

هغه څه چې ما د دې جنګ په اړه ليکلي دي، يا پخپله هورم هب او يا يې نورو افسرانو له جنګه وروسته راته بيان کړي دي.

تر دې وړاندې چې غزې ته ورسېږي، هورم هبٙ خپلو عسکرو ته ويلي ول، چې کله له

ګاډیو پلي کېږي. نو له ده دې نه لرې کېږي ځکه چې د دوی جنګ د مورچلونو او جبهه اي جنګ نه دی، بلکه یو غلچکی برید دی او ښايي هره شېبه خپل دریځ او د جنګ روده او مانوره بدله کړي.

خو یو شمېر سپاهیان د هاتي د عسکرو د مرکزونو د چور تالان لپاره له ګاډیو ښکته شوي او لري شوي ول.

هورم هب پوه شو. چې د هاتي ځواکونه بله متقابله حمله کوي نو مجبور شو چې په چټکتیا سره خپلې جنګي ګاډي را وګرځوي.

په نتیجه کې یو شمېر عسکر د غزې د دېوالونو تر شا د هاتي د عسکرو له لوري ونیول شول، سرونه یې ور پرې کړل او پوستکي یې ترې وایستل چې کځوړې ترې جوړې کړي. ځکه چې د هاتي خلک

د دغه ډول کځوړو په جوړولو کې مهارت لري.

په دغه غلچکي برید کې د هورم هب عسکرو ته څه ور په برخه نه شول، ځکه چې په صحرا کې یوازې منګي او له اوبو ډکې چاټې وې که څه هم په هغه صحرا کې یو منګی اوبو، د منګي په وزن د فلز په شان ارزښت درلود، خو دغه منګی په نیل سیند کې هېڅ ارزښت نه لري. له دغه غلچکي بریده وروسته هورم هب خپل ځواک له غزې څخه راستون کړ او په بیدیا کې یې ایسار کړ.

له دې سره سره چې اسونه دومره ستړي ول، چې د مصر سرحد ته نه شو تللی خو د هاتي د لښکرو د حملې وېره حتمي وه.

له دې کبله چې هورم هب شاته د اوبو زېرمې له منځه نه وې وړې، نو پوهېده چې د مصر د پوځ هغه برخه بېرته راغوښتلی شي او له ده سره یو ځای کېدای شي چې شاته یې پرې ایښې وه.

د هورم هب عسکر له دې سره سره چې په دې برید کې بریالي شوي ول، خو دا چې جنګي غنیمتونه یې نه و نیولي نو ناخوښ ښکارېدل.

که به چا ورته ویل چې په دې بریالیتوب سره مو ویاړ ترلاسه کړی، دوی به ویل موږ چمتو یو خپل ویاړونه پر څو کړېو سرو او سپینو بدل کړو.

زه له هغه لښکر سره چې له مصره راغلی و، لاړم او له هورم هب سره یو ځای شوم. په بېړه له بیدیا تېرېدو او په لاره کې مو د جنګ ویاړ نه بلکې غمیزې لیدلې.

دا د دې لپاره چې افسران او عسکر د جنګ ویاړونه له ځان سره وړي او هغه کسان چې په دوی پسې ځي، هغوی یوازې غمیزې ګوري او له غمیزو پرته بل څه نه ګوري.

کله به مو د یوه مصري عسکر مړی ولید، چې نیمايي بدن به یې شغالانو او ګیدړو خوړلی و.

کله به مو وکتل چې د هاتي یو عسکر یې په سیخونو کې د لارې تر څنګ ځوړند کړی دی.

موږ هم د اوبو له هغو زېرمو استفاده کولای شوه چې د هاتي عسکرو پکې اوبه ذخیره کړې وې.

هورم هب پوهیده چې له دغو مرکزونو څخه دده پوځیان او کسان چې وروسته راځي استفاده کولای شي نو هغه یې نه ورانول.

یوه ورځ وروسته چې لمر ولوېد، شپه شوه، نو ما د هورم هب د لښکرو اورونه ولیدل، خو پوهېدم، چې پر دې شپه به هم هغه ته ونه رسېږو، ځکه هغه اور چې په بیدیا کې لیدل کېږي، تر هغه ډېر لرې وي چې موږ یې ګورو.

پر دې شپه د ورځې له تودوخې وروسته هوا ډېره سړه وه او خوب نه راته، خو عسکر چې په لوڅو پښو یې د صحرا ګرمې شګې کچ کړې وې له ډېرې ستوماني، څخه سمدستي ویده شول، په خوب کې یې زګېروي کول او نارې به یې وهلې.

خلک وايي د شپې مهال په بیدیاوو کې سپېرې ارواوې ګرځي، نو له همدې امله دغه افسانه پیدا شوې وه، چې خلک پکې د شپې مهال زګېروي کوي.

پر بله ورځ چې کله سپېدې وچاودې، نغارې ووهل شوې او عسکر یې راپورته کړل.

موږ د هورم هب د کمپ پر لوري روان شوو، خو تر دې وړاندې چې اډې ته ورسېږو، د هاتي یو شمېر کشفي ګاډي، چې په صحرا کې یې ګزمې کولې زموږ له شا راڅرګند دي شوې.

زموږ عسکر چې لا د هاتي له ګاډیو سره د جنګېدا په چل نه پوهېدل، ووېرېدل او ځیني وتښتېدل، خو د هاتي عسکرو په غشو وویشتل او ووژل شول.

څرنګه، چې موږ د هورم هب اډې ته نږدې شوي وو، هغه خپلې جنګي ګاډۍ زموږ مرستې ته راواستولې او کله چې د هاتي عسکرو مصري ګاډۍ ولیدلې پاتې کېدل یې خطرناک وبلل او وتښتېدل.

کله چې دوی وتښتېدل عسکر خوشحاله شول، خپلې نيزې يې وښورولې او ځينو د هاتي د ګاډيو پر لوري غشي وويشتل. په داسې حال کې چې پوهېدل غشي يې ګاډيو ته نه رسېږي.

کله چې زموږ پليو سپاهيانو وليدل چې د هاتي ګاډي، تښتي، نارې يې کړې، موږ له هاتي نه وېرېږو. ځکه چې د هورم هب باز به پر هغو غوټه وکړي او سترګې به يې وړ ړندې کړي.

پلي عسکرو هيله کوله چې کله ذ هورم هب اډې ته ور سېږي، نو قدر به يې وشي، ځکه چې يېلې ښې يې بيديا کچ کړې او دغه راز يې هيله کوله چې هلته به دمه وکړي.

خو هورم هب چې مخ يې له ګرمۍ، څخه سور شوی و، سترګې يې د وينو د کاسو غوندې وې، خپله متروکه يې وښوروله او ويې ويل اې تنبلانو او د نيل سيند د چيکړو چينجيانو! تر اوسه پورې چيرته واست، ولې مو دومره ځنډ وکړ؟

تاسې ته مې نه ويل چې ژر راشئ؟

اوس چې راغلي ياست، ستاسې خوسا بوی مې داسې تنګوي، چې کله ستاسې په منځ کې يم، بايد خپله پوزه بنده کړم.

اوس چې راغلي ياست، ددې پر ځای چې خپلې ګوتې په پوزه کې ووهئ، يا مو مقعد وګروئ، ځمکه وکينئ او يوه کنده جوړه کړئ.

ځکه چې ستاسې ژوند په کنده پورې تړلی دی او که مو کنده وکينله او په ډبرو مو د ګاډي، مخه ونيوله نو ژوندي به پاتې شئ، ګني هډوکي به مو همدلته سپين شي.

له دې سره سره چې مصري عسکر ستړي ول، پښې يې ژوبلې او تناکې وې، خو په دې خبرو غوسه نه شول، ځکه چې پوهېدل هورم هب له عسکرو سره تل همداسې خبرې کوي.

مګر د هغه په وينو ککړې متروکې ددې ښودنه کوله، چې دا ځل دده خبرې تو کې نه دي.

ددې پر ځای چې عسکر د خپلو پښو د ټپونو او ستړيا فکر وکړي، د ځمکې کيندل يې پيل کړل او کنده يې جوړه کړه.

د کندې په مخکې يې لويې ډبرې کېښودلې او د ډبرينو تختو په منځ کې يې غشي ولګول چې د ګاډيو د تېرېدا مخه ډب کړي

تر دې کندو لږ مخکې يې د هورم هب په امر لنډکي غشي ښخ کړل او د پړيو په وسيله يې، له يو بل سره وتړل.

زه پوهېدم چې د هورم هب هدف دا و، چې د اسونو پښې په پړیو کې ونښلي او د هاتي جنګي ګاډي حرکت ونه کړای شي.

پر دغو کندو سربېره چې د کیندلو ځای یې له ورایه ښکارېده، هورم هب شا و خوا هم کندې وکیندلې، سر یې ورپټ کړ او خاوره یې پکې واچوله، چې له لېرې څوک پوه نه شي چې دلته یې اوږد او پلن خندق ایستلی دی.

هره ورځ به د تازه دم عسکرو نوې ټولۍ اډې ته را رسېده او دغه راز یو شمېر چریکي ډلې هم له موږ سره یوځای کېدلې.

دې ته په پام سره چې بیدیا لویه وه او ددې وېره وه، چې د هاتي جنګي ګاډي له خندونو راتېر شي او له شا څخه پر موږ برید وکړي، نو څو مره کندې به چې زموږ د اډې شا و خوا کیندل کېدلې بیا به هم هورم هب ویل چې کمې دي.

خو دغو اقداماتو ورو ورو مصري عسکر زړه ور کول او کله چې به یې د هورم هب پراخ تېر او جګه ونه لیدله او د هغه په وینو ککړې متروکې ته به یې کتل، نو متوجه کېدل به چې هغه له سهاره تر بېګا د دوی کارونه څاري.

دوی به له ځان سره ویل چې دغه سړی به موږ د هاتي له خطرې وژغوري.

یوه ورځ هورم هب هغو عسکرو او چریکي ډلو ته چې اډې ته د راتګ په حال کې ول پیغام واستاوه، چې بیړه وکړي، ځکه که شپه تېره شوه او تر بل سهاره پورې اډې ته ونه رسېدل نو دا وېره شته چې د هاتي د عسکرو له لوري ووژل شي.

پر همدې ورځ چې هورم هب مصري عسکرو او چریکانو ته دغه پیغام واستاوه، د لمر لوېدو پر وخت په داسې حال کې چې عسکرو کندې ایستلې د دښتې فضا له دوړو ډکه شوه او د هاتي ګاډي، راڅرګندې شوې.

کله چې زموږ عسکرو ولیدل چې د ګاډیو په مخکې د اوسپنې په نوم له یوه عجیبه فلزه جوړ شوي غټ غټ لرونه لګېدلي دي، نو داسې ووېرېدل چې له ډاره یې پوزې سرې شوې (*په هغه وخت کې د ډار یو سمبول دا و، چې ویل به یې، پوزه یې سره شوه، لکه اوس چې وایو له ډاره یې ویښتان نیغ ودرېدل ژباړن*)

له دې کبله چې شپه رانږدې شوې وه، نو د هاتي عسکرو، جرائت ونه کړ چې حمله وکړي، ځکه چې هغوی له سیمې سره بلد نه ول او نه پوهېدل چې د دښمن لښکر په څه ډول حالت کې دی.

هغوی هم په دښته کې اډه جوړه کړه، او ريې بل کړ او خپلو اسونو ته يې وابښه ورکړل. تر هغه ځايه چې سترګو کار کاوه، په دښته کې د اور لمبې ښکارېدې.

د هاتي کشفي ګاډيو هم ټوله شپه موږ ځارولو او زموږ يو شمېر ساتونکي يې هم ووژل، خو چريکي ډلو او غلو چې د مصر خدمت يې کاوه پر هغوی بريدوکړ، ځو تنه يې ووژل او له هغوی يې ځو ګاډي هم ونيول.

له دې سره سره چې هورم هب خپلو عسکرو ته ويلي ول، چې ويده شي، خو زه فکر کووم پر دې شپه له زړو او تجربه کارو سپا هيانو پرته هېڅ يو هم ويده نه شو. خو د پخوانيو عسکرو لپاره دغسې شپه چې پر سبا يې جنګ پيلېږي عادي وي.

پر دغې شپه تر سهاره د جنګي ګاډيو د ارابو د وسلو د کړچا. د غشو د تېرېدا شغهار او د ټپيانو زګېروي اورېدل کېدل.

هورم هب خپل يو شمېر تازه دم او تکړه عسکر په لومړۍ ليکه کې د اډې د ساتونکو په توګه ګمارلي ول او ما تر سهاره يې د ځو تنو ټپيانو درملنه کوله.

هورم هب زه يوې څنډې ته کړم او ويې ويل، زما لپاره هر يو پخواني او زوړ عسکر تر زرو نويو عسکرو ډېر ارزښت لري، هڅه وکړه چې هغوی معالجه کړې او مه پرېږده چې مړه شي.

ده وويل، زه به ددغه هر يوه عسکر د معالجې په بدل کې يوه کړۍ زر درکړم او وزن به يې يو (دين )وي.

ومې ويل هورم هبه ! زه نه پوهېدم چې تا دلته يانې د سينا غره په لمنه کې اډه جوړه کړې او نيت لرې چې دلته د هاتي مخه ونيسې.

که زه ستا له دې فيصلې خبر شوی وای، نو ته مې راګرځولې چې دلته اډه جوړه نه کړې، ځکه چې په اواره دښته کې چې ګاډي پکې ښه منډه وهلی شي د هاتي د عسکرو د ګاډيو مخنيوی ډېر سخت او خطرناک کار دی.

خو اوس چې تا دغه فيصله کړې، زه يې نه شم بدلولای.

زه به ستا هر نوی او زوړ عسکر چې ټپي شي معالجه کړم، ان که پړ دې هم پوه شم، چې نوي عسکر که ښه شي، هېڅ هم نه شي کولای او کېدای شي د هاتي له حملې وروسته وتښتي.

زه د سرو زرو لپاره ستا د عسکرو معالجه نه کووم، هغه څه چې ته يې د معالجې په بدل

کې ماته راکوې. زما پر ځای يې خپلو عسکرو ته ورکړه، ځکه چې هغوی تر ما ډېر سرو او سپينو ته اړتيا لري.

بله دا چې ښايي مونږ ټول ووژل شو او سبا به زه نه يم چې ستا د عسکرو معالجه وکړم او زخمونه يې وتړم.

هورم هب وويل سينوهه! ته ډېر هوښيار سړی يې خو د جنګ سړی نه يې او په هر جنګ کې بايد خطر هم په پام کې ولرې.

که په جنګ کې خطره نه وای اوس به توت انخ آمون چې لا هم يو ماشوم دی، د پوځ قوماندان شوی و.

زه اوس ځم چې لږ شراب وڅښم او ويده شم، کله چې را ويښ شم، ښه جګړه به وکړای شم او که زما په سر کې د شرابو لږه تودخه پاتې وي، ښه به وجنګېږم.

څو شېبې وروسته ما د هغه منګي د قلقل غږ واورېد، چې په خوله کې يې تشاوه. له هغه وروسته يې خپلو څو تنو عسکرو ته چې د هغه د کيږدۍ تر مخ تېرېدل ورنارې کړې او هر يوه ته يې يو يو غوړپ شراب ورکړل.

هورم هب وويل، هغه کسان چې پيره نه لري لاړ دې شي او ويده دې شي چې سبا د جنګ لپاره تيار وي.

زه تر سهاره ويده نه شوم، سهار مې وليدل چې زمونږ د جبهې په مخکې څو دانې اسونه مړه پراته دي، د هاتي څو ګاډۍ هم چپه پرتې وې او کارغانو د مړيو ستر ګې خوړلې.

د هاتي عسکرو په خاورو باندې خپل اورونه مړه کول، اسونه يې په ګاډيو پورې تړل او بيا يې خپلې وسلې پاکولې.

هورم هب خپل عسکر د غره په لمن کې راټول کړل او يوې ډبرې ته يې ډډه ولګوله، په داسې حال کې چې له پيازو سره يې يوه ټوټه ډوډۍ خوړله داسې يې وويل: د مصر ستر خدای آمون معجزه وکړه، چې د هاتي عسکر يې ستاسې مخې ته راوستل، چې تاسې يې له منځه يوسئ.

لکه چې پوهېږئ، د هاتي پلې ځواک لا نه دی راغلی، هغوی د صحرا په څنډه کې ايسار شوي دي، ځکه چې هلته اوبه ډېرې دي. دوی تمه لري چې ګاډۍ د هغوی لپاره لاره پرانيزي او د اوبو مرکزونه ونيسي.

له هغه وروسته به د هاتي پلې ځواک حرکت کوي، چې له ګاډيو سره يو ځای شي.

ښځګا د هاتي په اډه کې او به نه وې، ټول اسونه یې تږي دي او ځینو خو وا ښه هم نه درلود چې له کبله یې د هاتي عسکر مجبور شول د اغزیو بوټي ورته کېږدي
ما په ښېدیا کې د اوبو او وښو ټولې زېرمې له منځه وړې دي، له همدې کبله به نن د هاتي جنګي ګاډۍ ډېر سخت جنګ وکړي، هڅه به وکړي چې لار پرانیزي او مصر ته ځان ورسوي، یا دا چې باید بیرته سوریې ته ستانه شي.
که هغوی عقل درلود او هوښیاران وای، نو باید نن بیرته ستانه شوي وای، خو هغوی ډېر حریص خلک دي او هیله کوي، چې مصر ته په رسېدا سره به لوټمار پیل کړي او ډېر سره او سپین به ترلاسه کړي
بله دا چې د منګیو او چاټیو د ړانیولو لپاره یې سره او سپین لګولي، نو نه شي کولای چې له هغو تېر شي او بیرته ستانه شي.
له همدې امله وایم چې آمون معجزه کړې او د هاتي څواک یې زموږ مخې ته راوستی دی، ځکه کله چې د هغوی جنګي ګاډۍ حرکت وکړي، موږ به پرې ورنازل شو، او دوی به په کندو کې ولوېږي.
هورم هب په دې وخت کې غلی شو، وچه ډوډۍ یې خولې ته یوړه او په غاښونو یې لږه ترې بېله کړه، ویې ژووله
عسکرو د ماشومانو په شان چې یوې کیسې ته غوږ وي ناري کړې ویې ویل نور څه کېږي وو ایه ....!
هورم هب ناڅاپه ژوولې ډوډۍ له خولې تو کړه او چټیاټ یې له خولې ووتل ویې ویل، د پوخ اشپزانو لکه چې په اوړو کې د پیشکو غایطه مواد اچولي او پاخه کړي یې دي ځکه ډوډۍ زما په خوله کې داسې بد خوند او بوی لري.
که یې دغه کار کړی وي نو زه به یې اپوته په دار وځړوم.
کله چې عسکرو دغه خبره واورېده ویې خندل او هورم هب ناري کړې ...اې موږ کانو او د نیل سیند د چیکړو چونګښو ولې خاندئ؟ -
ایا تصور کوئ چې که اشپزان ستاسې په ډوډیو کې د اسونو او خرو خوشایي ږدي نو زه به سزا ورکړم؟ نه .... نه! که هغوی د جنګ له پیله تر پایه پر تاسې د څارویو خوشایي وخوري، زه به سزا ور نه کړم. مګر په دې به خواشینی شم چې تاسې ولې زما د اسونه خوشایي خوړلي دي، ځکه چې تاسې عسکر نه یاست، بلکې ډارن موږ کان یاست.

که تاسې سرتېري واى نو پوه شوي به واست چې ستاسې په لاسونو کې دغه اوږدې لکړې د نيل سيند د اوبو د مېچ کولو لکړې نه، بلکې نېزې دي، هغه هم داسې نېزې چې وسپنيزې څوکې لري.

د غه نېزې ددې لپاره دي چې د هاتي د عسکرو خېټې پرې څيرې کړئ.

تاسې ته وايم، اې غشي ويشتونکو! تاسې کله کله د ماشومانو په شان د اسمان پر لوري غشي ولئ او ګورئ چې د چا غشى ډېر لوړ ځي.

دغه غشي ددې لپاره درکړل شوي دي، چې د هاتي د عسکرو سترګې پرې ړندې او خېټې يې پرې څيرې کړئ.

که مو وس نه وي چې د هاتي عسکر په ننبه کړئ، نو صبر وکړئ چې نږدې راشي، د هغوى اسونه لويې ننبې دي هغه وولئ.

کله چې د هاتي عسکر در نږدې شي، نو د نېزې لرګي پر ځمکه کېږدئ او په دواړو لاسونو يې کلکې ونيسئ، چې څوکې د اسونو په خېټه کې ورننوځي.

که په دې ډول مو اسونه مړه نه کړل او تاسې پر ځمکه را وغورځېدلى نو په چړې سره د اسونو پلې او غوږنې ورپرې کړئ، ګني ستاسې هډوکي به درمات کړي.

هورم هب په کرکې سره پخپل لاس کې نيولې ډوډۍ بوى کړه او بيا ايسته واچوله، له خپل منګي څخه يې يو غوړپ شراب وڅښل او ويې ويل: زه فکر کووم دغه خبرې ستاسې لپاره ګټه نه لري، ځکه کله چې تاسې د هاتي د ګاډيو غږ او د عسکر کړيږې واورېدې، نو داسې به ووېرېږئ چې له وېرې او مجبوريته به د خپلو مېندو تر لمنو لاندې پټ شئ، خوله دې کبله چې دلته ستاسې مېندې نشته نو د دښتې تر خاورو لاندې به سرونه پټ کړئ.

خو دا خبره بايد درته وکړم چې کله هاتيا ن له دې ځايه تېر شي ځانونه زموږ شاته د اوبو او وښو زېرمو ته ورسوي، خپل اسونه او ځانونه به ماړه او خړوب کړي، بيا به نو تاسې حتماً له منځه ولاړ شئ. ستاسې له پوستکو به کڅوړې او بوخڅئ جوړې کړي.

کله چې د هاتي ښځې خپل تي رودونکي ماشومان په کوم شي څملوي چې لندبل ترې تېر نه شي نو ستاسې پر پوستکو به يې څملوي يادا چې ستاسې سترګې به ړندې کړي، چې پاتې عمر د هاتي او آزيرو د تېلوا يستلو ژرندې او ارهټونه وګرځوي.

ما خپل پنځه سوه پخواني او ډاډمن عسکر ستاسې تر شا ځاى پر ځاى کړي دي او

دغه پينځه سوه کسان به په جنګ کې له تاسې سره لړ واټن ولري، که تاسې ووېرېدئ، نو پر تاسې به ملنډې ووهي او که وتښتئ تاسې به ووژني. يانې که ستاسې په مخکې مرګ احتمالي وي خو تر شا به مو حتمي مرګ په تمه وي.

خو که تاسو احتمالي مرګ ګوابني، ورسره په څنګ کې غنيمتونه او وياړونه هم درته په تمه دي.

زه باوري يم، که هر څوک خپله دنده ترسره کړي او هڅه وکړي چې د هاتي عسکر او اسونه ووژني مورږ به بريالي شو.

زه به په ټول جنګ کې له تاسې سره يم او مبارزه به کووم. پر توري او نېزې سربېره له خپلې متروکې هم کار اخلم.

که څوک وګورم چې خپله دنده په سمه توګه سرته نه رسوي، نو په متروکه به يې له پښو وغورځوم.

ما احساس کاوه چې له دې خبرو څخه د هورم هب هدف د عسکرو پارول نه دي. بلکې غواړي دده عسکر د هاتي د سرتېرو تر حملې مخکې دده خبرې واوري. ځکه چې د دښمن د عسکرو د حملې پر وخت له وېرې او وحشت سره مخامخ نه شي.

خو کله چې د هاتي عسکرو خپله اډه ټوله کړه او حرکت يې وکړ هورم هب وويل :

د دښمن سرتېري وخوځېدل او زه له آمون او د مصر له ټولو خدايانو مننه کووم، چې هغوی يې زمورږ لوري ته را واستول.

اې د نيل سيند مردار خورو ! اوس خپلې جنګي اډې ته لاړ شئ او زما له حکم پرته هېڅوک ترې را ونه وځئ.

بيا يې پر پخوانيو سرتېرو غږ وکړ ويې ويل، اې پينځه سوه پخوانيو او تکړه عسکرو، ددغو چونګښو ترشا پاتې شئ، هر څوک چې وغواړي وتښتي له ځنډ پرته يې ووژنئ.

په دې وخت کې هورم هب خپل غږ نور هم اوچت کړ او ټولو عسکرو ته يې په خطاب کې وويل :

زه تاسې ته ويلای شم چې د توري خاورې، د مصر د خدايانو او د خپلو مېرمنو او بچيانو لپاره وجنګېږئ ! خو دغه سپارښتنه بې ګټې بولم، ځکه چې پوهېږم که وکړای شئ نو وبه تښتئ او ځان به روغ رمټ وباسئ.

په دې ډول پر خپلو بچيانو، مېرمنو او تورې خاورې نارې تو کوئ.

له همدې امله وايم، چې يوازې د ځان د ساتلو لپاره و جنګېږئ او شاتګ مه کوئ که مقاومت وکړئ، بريالي به شئ، خو که شاتګ وکړئ حتماً به ووژل شئ، نو اوس لاړ شئ او د هاتي د ګاډيو تر راتګ مخکې خپلو پوستو ته لاړ شئ.

سرتېريو په داسې حال کې چې نارې يې وهلې، د خپلو پوستو پر لوري لاړل، زه پوه نه شوم، چې ايا هغوی له خوشحالۍ نارې وهلې، که له وېرې.

زه د عسکرو تر شا پاتې شوم، ځکه چې په جنګ کې د ډاکټر پوسته، د عسکرو ترشا وي، چې د ژوبلو کسانو معالجه وکړي.

د هاتي لښکرو خپلې ګاډۍ په بېديا کې په جنګي دود درولې وې.

د نارينه وو پر تېټر او د ګاډيو په مخکينۍ برخه کې د وزر لرونکي او رنګين لمر تصوير ځلېده او د عسکرو پر سر ښکې او بيرغونه د څپو په شان ښکارېدل.

څرګنده وه چې د هاتي ګاډيو غوښتل، له يوې اوارې سيمې څخه چې هلته هورم هب خندونه جوړ کړي ول تېر شي، ځکه چې د هاتي عسکر له غرنۍ سيمې څخه نه شوای تېرېدای.

د اوبو، وښو او خوړو نه شتون، هم د هاتي سپاره دې ته اړ کول، چې له همدې ځايه تېر شي.

دوی نه غوښتل چې په بېديا کې لويه دوره وکړي، ځکه پوهېدل که بېديا ته لاړ شي، نو که دوی مقاومت وکړي، اسونه يې مقاومت نه شي کولای او وبه وژل شي.

د هاتي د ګاډيو په هر ټولي کې شپږ ګاډۍ وې، لسو ټوليو يو کنډک جوړاوه او تصور کووم چې شپېته کنډکونه يې درلودل.

د هاتي د جنګي ګاډيو په منځ کې، به د هغوی درنې ګاډۍ هم تر سترګو کېدې او درنې ګاډۍ د سپکو غوندې ګړندۍ نه شوې تللی.

دوی د صحرايي کشتيو په شان وې، خو زه پوهېدم چې هرڅه به تر خپلې خيټې لاندې، له خاورو سره خاورې کړي او زه حيران وم چې هورم هب او د هغه عسکر به څنګه ددې ګاډيو مخه ونيسي؟

د هاتي د پوځيانو د نغارو غږ پورته شو، لوړ رتبه افسرانو خپل بيرغونه وښورول او ناڅاپه ګاډيو حرکت وکړ.

په يوه ځای د شپېتو کنډکونو ګاډيو حرکت کاوه، چې تګره عسکر هم پکې سپاره ول او وېرونکې ننداره يې جوړه کړې وه. په لومړي سر کې چې ما وليدل د ګاډيو اسونه داسې ځغلېدل ته وا هېڅوک پرې سپاره نه دي، خو وروسته چې ځير شوم پوه شوم، د هر اس پر شا يو کس داسې پروت دی چې په لومړي نظر نه ليدل کېږي.

زه د دغو سپرو په ليدو حيران شوم، دوی بې له دې چې آس ودرېږي ځانونه به يې ټيټول، چې لاسونه يې ځمکې ته ورسېږي. دوی به د چړو په وسيله هغه پړې پرې کول چې موږ پر ځمکه غځولي او په تيرانو مو تړلي ول.

په داسې حال چې دغو سپرو پړي پرې کول، نور سپاره به ورپسې راغلل، هغه نېزې به يې پر ځمکه خښې کړې، چې په سرونو کې يې بيرغونه رپېدل.

ددې کار په ګټه نه پوهېدم، خو سپرو په بيړه دغه کار کاوه، او ما د دې فرصت پيدا نه کړ چې د هاتي عسکرو په دې مانوره پوه شم.

زه پوه نه شوم چې هغوی ولې نېزې په ځکه کې ښخوي او له دې کاره يې هدف څه دی؟

نا څاپه هورم هب نارې کړې، نېزې له منځه يوسئ او پخپله هم لاړ ځان يې يوې نېزې ته ورساوه، له ځمکې يې را وايستله او لرې يې غورځاره کړه.

د هغه عسکر هم لاړل او په ځمکه کې خښې شوې نېزې يې را وايستلې او د جنګ د جبهې ترشا يې په يو ځای کې واچولې.

هغه وخت زه پوه شوم چې ولې د هاتي عسکرو دغه نېزې په ځمکه کې ښخې کړې وې.

زه پوه شوم د هغوی هدف دا و، چې زموږ د جبهې کمزوري ټکي په نښه کړي.

زه فکر کووم که هورم هب پر دغې ورځ ژر اقدام نه وای کړی او پر ځمکه د ښخو شويو نېزو د ختمولو امر يې نه وای کړی نو ګاډي، به زموږ د جبهې له کمزورو برخو تېرې شوې وې او د مصر پوځ به ماتې خوړلې وه.

کله چې ګاډي، زموږ له لوري جوړو شويو خندونو ته ورسېدلې، له دې سره سره چې هورم هب په ډېرې سختۍ سره دغه خندونه جوړ کړي ول، خو بيا هم ځينې ګاډي، له دغو خندونو تېرې شوې.

يوه کوچنۍ کنده د هاتي د ګاډيو لپاره ډېر لوی خنډ نه و، ځکه چې ځينو يې له ځان سره تختې درلودې، کله چې به دې خندونو ته ورسېدل نو هغه درې به يې د پلونو په شان پر کنده واچولې او ګاډي، به يې پرې تېرې کړي (موږ تصور کوو، چې د پوځيانو له لوري په

*اوسني پېر کې د متحرکو پلونو لېږد د دې پړاو يوه جنګي نوښت دی په داسې حال کې چې په دې کتاب کې ګورو چې دغه مانور د سينوهه په وخت کې هم ترسره کېده او جنګي ګاډی د پلونو په شان تختې له ځان سره لېږدولې چې د کندو او خندقونو د تېرېدا لپاره ترې کار واخلي. ژباړن )*

که څه هم يو شمېر ګاډی له خندقونو تېرې شوې خو له دې کبله چې ډېره مرګ ژوبله يې وزغمله، نورې ګاډی، چې خندونو ته ورسېدې نو احتياط يې وکړ او لږ ايسارې شوې، خو کومې ګاډی، چې تېرې شوې وې، د ډېرو د هغو تختو پر وړاندې ايسارې شوې چې موږ ورته ايښې وې.

د ګاډيو چلوونکي او سپرلي، راښکته شوې او هڅه يې کوله چې ډبرې له مخې لرې کړي.

د هاتي د عسکرو د مانورې ګړنديتوب حيران کړی وم او داسې ښکارېده، چې هغوی څو کاله تمرينونه او مشقونه کړي دي، يا يې د جنګ په ډګر کې ډېرې تجربې تر لاسه کړې دي، چې وکړای شي د خنډونو په ليدو سره سملاسي له ګاډيو کوز شي او خنډونه له مخې لرې کړي.

هورم هب، چې وليدل د هاتي عسکر د خنډونو د لرې کولو تابيا کوي، پوه شو چې که هغوی ته وخت ورکړي، نو ډېر ژر به خنډونه لرې کړي او لار به خلاصه کړي.

په دې وخت کې يې خپلو عسکرو ته امر وکړ، هغه عسکر په غشو وولي چې له ګاډيو ښکته شوي دي او يا دې د هغوی اسونه ووژني.

که څه هم د هاتي عسکرو ډبرې له مخې لرې کړې، خو ځينې يې ووژل شول او ځينې نور ژوبل شول او اړ شول چې بېرته په شا شي.

زموږ عسکر د هاتي د سپاهيانو په ستنېدا ډېر خوشحال شول او د خوشحالۍ نارې يې وکړې، ځکه چې فکر يې وکړ، بريالي شول او جنګ پای ته ورسېد.

خو هورم هب پوهېده چې جنګ پای ته نه دی رسېدلی، بلکې نوی پيل شوی دی.

امر يې وکړ چې نغارې ووهي او خپلو عسکرو ته يې وويل، ډېرې په بيړه، بيرته خپلو ځايونو ته ورسوئ.

زه پر دې ورځ پوه شوم چې د تکړه او تجربه کارو او هغو عسکرو ترمنځ چې ښه تمرين يې نه وي کړی څومره توپير شته ؟

د هاتي عسکر له دې سره سره، چې وخت ورسره لږ و او زموږ د عسکرو له غشو سره مخامخ شوي ول، بيا يې هم ډېر ژر هغه ډبرې له مخې کړې، او زموږ سپاهيانو که څه هم ډېر وخت درلود خو بريالي نه شول چې هغه ډبرې بېرته خپلو ځايونو ته ورسوي.

تر دې وړاندې چې زموږ عسکر ډبرې خپلو ځايونو ته ورسوي، د هاتي جنګي ګاډي راورسېدې.

هورم هب وليدل چې عسکر د ګاډيو د حرکت د مخنيوي لپاره د ډبرو په لېږدولو کې پاتې راغلل، نو د خپلو افسرانو په وسيله يې سپاهيانو ته امر وکړ، چې د نېزو په وسيله د ګاډيو مخه ونيسي. د نېزو لرګي دې پر ځمکه کېږدي او ثوکې دې د ګاډيو د اسونو د سينې لور ته په نښه کړي، چې نېزې د ګاډيو د اسونو په سينو کې دننه شي او د هغوی مخه ونيول شي.

خو دا کار هم سم و نه شو، ځکه چې د اسونو ټټر، ورمېږ او سينې ته وسپنيزې پاڼې او يا پوښونه وراغوستل شوي ول او د نيزو ثوکې ترې نه شوې تېرېدای.

ما وليدل چې د هاتي د ګاډيو اسونه د مصري اسونو په پرتله ډېر غټ او لوړ دي او بېل نسل دی.

د هرې ګاډۍ په مخکې دوه لوی لرونه لګول شوي ول، چې د هاتي جنګياليو به له ګاډيو څخه خوځول او زموږ عسکر به يې د وښو په شان رېبل.

وروسته به زموږ وژل شوي عسکر د ګاډيو تر درنو ارابو لاندې شول او هډوکي به يې مات شول.

کله چې به ما د درنو ګاډيو غټ اسونه له وسپنيزو زغرو سره ليدل او کتل به مې چې د اسونو د مخ له ماسکونو څخه د ښکرو په شان وسپنې راوتلې دي، نو د دې وحشي ځناورو له څېرې به وويرېدم.

د هاتي درنې ګاډۍ به د لرونو په واسطه د وژل شويو مصري سپاهيانو پر مړيو تېرېدې، نو زه پوه شوم چې هيڅ شی د هاتي د عسکرو مخه نه شي نيولی، ځکه چې هر شی يې ماتول او له ځان سره يې ختمول.

له دې سره سره چې هورم هب به نارې کړې او په متروکو سره يې زموږ عسکر جنګ ته اړکول، خو ما ليدل چې د هغه هلې ځلې نتيجه نه ورکوي او د هاتي جنګي ګاډۍ شېبه په شېبه زموږ پر مورچو راخېږي او زموږ عسکر له منځه وړي.

په دې وخت کې پوه شوم چې څوک نه شي کولای دد غو ګاډيو مخه ونيسي او حتماً به هغوی مصر ته ننوځي، زموږ ښار به وران کړي، د مصر بچيان به ووژني او توره ځمکه به ونيسي.

سر مې پر ځمکه کېښود او د مصر او د هغه د بچيانو لپاره مې وژړل.

له لرې مې د ګاډيو د حرکت، د جنګياليو نارې سورې، د ټپيانو زګېروي او د هورم هب چيغې اورېدلې، خو د هغه نارې سورې بې ګټې وې او درنې جنګي ګاډۍ تېرې شوې وې.

هورم هب امر وکړ، چې د مصر سپکې جنګي ګاډۍ چې ډېرې ګړندۍ وې د هاتي د درنو ګاډيو ترشا حرکت وکړي او هڅه دې وکړي چې په ګاډيو کې سپاره د هاتي عسکر په غشو وولي.

ما دغه مانوره بې ګټې بلله، ځکه چې د درنو ګاډيو ترشا ګردونه او خاورې وې او دوړو ددې مخه نيوله، چې زموږ عسکر دې د هاتي عسکر په غشو وولي.

ان که دوړې هم نه وای، خو سپاهيان د غشو په ويشتلو کې دومره تکړه نه ول، چې کې له روانو ګاډيو څخه په بل خوځنده ګاډۍ کې څوک وويشتلای شي.

ناڅاپه د هاتي له هغو عسکرو څخه چې په لويو او درنو ګاډيو کې سپاره ول، هيبتناکه کړيکه پورته شوه، ما وليدل چې ځمکې خوله پرانستله او دغه درنې ګاډۍ يې ونغرلې.

هغه وخت پوه شوم، هورم هب چې کله سپکو ګاډيو ته امر وکړ چې د هاتي درنې ګاډۍ تعقيب کړي، هدف يې دا نه و، چې زموږ عسکر د دښمن سپاهيان په ښنه کړي

دده اصلي هدف دا و، چې په دې ډول د هاتي د درنو ګاډيو تکړه اسونه هيجاني او نور هم ګړندي شي، چلوونکې به وبې هېږي چې زموږ د سرتېرو غشي پرې و نه لګېږي او بله دا چې په ګړنديتوب کې دوی نه شي کولای چې خپلې ګاډۍ ژر راګابو کړي.

د هورم د غه مانور ډېر ګټور او اغېزناک و او په دې ډول د هاتي درنې ګاډۍ د هغه خندق څنډې ته ورسېدې، چې مخکې، هورم هب د جبهې ترشا کيندلې او سر يې ورته پټ کړی و.

د هاتي ګاډۍ بې له دې چې پوه شي تر پښو لاندې ځمکه يې خالي ده ناڅاپه په دې کنده کې ولويدې داسې لکه چې ځمکې خوله خلاصه کړې وي او د هاتي ټولې درنې ګاډۍ يې نغرلې وي

په سر کې زه د ډېرو دوړو او خاورو له امله پوه نه شوم چې حالت څه ډول دی خو

وروسته چې دوړې ختمې شوې ومې لیدل، چې زموږ عسکرو د هورم هب په امر د خندق په څنډه ولاړ ول او د هاتي پر عسکرو یې غشي او ډبرې اورولې.

هورم هب امر کړی و چې یو کس هم باید له دغې کندې څخه ژوندی را و نه وځي.

خو زموږ سپکې ګاډۍ چې د هاتي درنې ګاډۍ یې تعقیبولې، تر هغه وروسته چې د هاتي ګاډۍ کندې ته ولوېدې، دوی بېرته راستنې شوې، چې د پلیو عسکرو په مرسته د هاتي د هغو سپکو ګاډیو مخه ونیسي چې د درنو ګاډیو تر شا روانې وې.

کله چې د هاتي درنې ګاډۍ کندې ته ولوېدې، مصریان ډېر خوشحال شول، هغه کسان چې وېرېدلي ول، بیرته هیله من او زړه ور شول.

هورم هب متوجه شو، چې د عسکرو روحیه یې ډېره ښه ده، له دې فرصت او د خپلو سرتېرو له ورتیا یې پوره استفاده وکړه او زموږ په خوا کې یې خپلو ملیشو او لوټمارانو ته پیغام واستاوه چې د مرستې لپاره راشي.

هغه وخت د مصر ټولو قواوو، سرتېرو، چریکانو، پلیو او سپارو ټولو په ګډه په زړه ورتیا سره د هاتي په سپکو وسلو برید وکړ او دښمن یې حیران کړ.

د لومړي ځل لپاره په دې لویه دښته کې د هاتي ګاډیو او سرتېرو لویه مرګ ژوبله ولیدله او شاتګ یې وکړ.

له درنو ګاډیو او سپرو څخه هېڅوک پاتې نه شول، دوی او اسونه یې ټول په کنده کې له منځه لاړل او یا سخت ټپیان[1] شول چې تر مړینې یې بد حالت درلود. د مصر سپاهیانو هم هاتي عسکر ژوندي پرې نه ښودل چې له کندې راووځي، ټول یې مړه او ژوبل کړل.

د هاتي افسران چې پوهېدل ټولې درنې ګاډۍ او د سپکو ګاډیو یوه برخه یې له منځه تللې ده، نو له شاتګ وروسته یې د خپلې شورا غونډه راوبلله.

په دې غونډه کې هغوی ډېرې خبرې وکړې او بېلابېلې نظرې وړاندې شوې.

هغوی د لومړي ځل لپاره له داسې پېښې سره مخامخ شول، چې مخکې یې حتی تصور هم نه کاوه. دوی نه پوهېدل چې څنګه دغه حالت بیرته سم کړي.

هورم هب د هغوی له شاتګ او مشورې استفاده وکړه او له دې وېرې چې هغوی له بل اړخه پر موږ برید ونه کړي چریکان او لوټماران یې د جبهې دواړو لورو ته واستول.

نور سرتېري یې بیا اړ کړل چې د هاتي د ګاډیو په لاره کې بیا خندونه جوړ کړي، چې که هغوی بیا حمله وکړي نو مخه یې ډب شي.

د هاتي افسران او سرتېري دومره زړه ور ول، له دې سره سره چې پوهېدل لويې ګاډۍ يې له منځه تللې دي، بيا يې هم د حملې تابيا کړې وه.

خو زموږ عسکر نور د هاتي له سپاهيانو څخه نه وېرېدل ځکه، چې د هغوی سپکې او درنې ګاډۍ کندو ته ولوېدې او ځينې مو روغې هم ولجه کړې.

کله چې بريد کېده د ډېرو دوړو له کبله ما د جنګ ميدان نه شو ليدای، خو چې جنګ پای ته ورسېد او د بېديا بادونه کم شول، نو پوه شوم چې زيات شمېر مصري عسکر د هاتي د عسکرو په بريد کې وژل شوي دي، په داسې حال چې داخل هغوی درنې او لويې ګاډۍ هم نه درلودې.

د جنګ په پای کې مې له ځينو مصري سرتېرو واورېدل چې ويل به يې نن دوړو د دې مخه ونيوله چې موږ د جنګ ميدان ووينو، ګني که د مصري عسکرو ډېره مرګ ژوبله مو کتلې وای، نو له وېرې به مو جنګ نه شوای کولای.

مازيګر مهال چې د هاتي عسکر پوه شول، مقاومت ګټه نه لري نو تسليم شول او هورم هب امر وکړ چې د هاتي اسيران په پړي کلک وتړي.

زموږ عسکر لکه چې عجيبه ځناور ويني، په حيرانۍ سره ورننږدې کېدل او بدن به يې لمس کاوه، چې پوه شي ايا د دوی په شان غوښه او پوستکی لري، که يې بدن له بل ډول موادو جوړ شوی دی.

زموږ ځينو عسکرو به د وزرلرونکي لمر نښانونه د اسيرانو له ټټره شکول او د يادګار په توګه به يې ساتل، چې مصر ته له ستنېدا وروسته يې خپلو خپلوانو ته وښيي.

خو تر وزرلرونکي لمر، هغه وسپنيزې خولۍ ډېرې عجيبه ښکارېدې، چې د هاتي عسکرو پر سر کړې وې پر دغو خوليو دوه متقاطع تبرونه لګېدلي ول.

زموږ عسکر تر دغې ورځې نه پوهېدل چې وسپنه څه ډول فلز دی، نو د دې خوليو په ليدو ځکه حيران پاتې ول.

له دې سره سره چې هورم هب ډېر ستړی و، خو ډېر خوشحال ښکارېده او د مصري عسکرو په منځ کې به ګرځېده.

دی له يوه ټولي څخه بل هغه ته ورغی، په ډېره مينه به يې د سرتېرو پر ملا لاس تېراوه او شاباسی به يې ورکاوه، ويل به يې افرين اې دنيل د چيکړو چينجيو !نن مو ډېر ښه جنګ وکړ.

ايا په زړه مو دي، چې نن سهار مې تاسې ته ويل چې که خپله دنده ښه تر سره کړئ، نو بريالي به شئ او اوس دا خبره منئ چې ما سمه خبره کړې وه؟

هورم هب امر وکړ چې عسکرو ته د اوربشو اوبه او ډوډۍ ورکړي. کله چې عسکر ماړه شول نو هغوی يې ازاد پرېښودل چې لاړ شي او د هاتي او مصر له وژل شويو عسکرو څخه د غنيمت شيان راټول کړي.

هورم هب پوهېده چې د هاتي او مصر وژل شوي عسکر د پام وړ شيان نه لري، خو غوښتل يې د هغه عسکر دا تصور وکړي، چې جنګي غنيمتونه يې ترلاسه کړي دي.

مصري عسکرو ته د جنګ ګران بيه غنيمت نه رسېده، بلکې ګاډۍ او اسونه يې ترلاسه کول او هورم هب پوهېده چې اسونه تږي او وږي دي.

ده هغو مصريانو ته يې چې د اسونو په روزولو کې تکړه ول، وويل اسونو ته وابښه او اوبه ورکړئ.

اسونه په مصري ژبه نه پوهېدل نو په لومړي سر کې يې چې نوي پالونکي وليدل، غوسه شول، خو مصريانو وابښه او اوبه ورکړې او له هغه وروسته يې له اسونو سره په ملايمت خبرې وکړې.

اس ډېر ځيرک او هوښيار څناور دی، کله چې په بهرنۍ ژبه هم نه پوهېږي خو د غږ له تون او لهجې پوهېږي، چې ورسره مينه کېږي کنه؟ کله چې پوه شوی ورسره مينه کېږي ډېر ژر رام کېږي.

هورم هب يو شمېر ګاډۍ او اسونه ترلاسه کړل، غله او چريکان يې را وبلل چې د جنګي ګاډيو په ټوليو کې کار وکړي.

يو لامل چې هغه لوټماران او چريکان يې د اسونو په ټوليو کې کار کولو ته راوبلل دا و، چې پوهېده غله او لوټماران د اسونو په روزولو کې تر مصريانو ډېر ښه پوهېږي، ځکه مصريان له اسونو ډارېږي، خو غله او لوټماران له اسونو څخه نه وېرېږي.

له جنګ وروسته ټولو روغو عسکرو استراحت وکړ، خو ما ونه کړای شول، چې ويده شم، ځکه چې مجبور وم د ټپيانو معالجه وکړم او د هغوی پر زخمونو پټۍ کېږدم.

دغه راز د هغو عسکرو د کوپړيو عمليات وکړم، چې د هاتي د عسکرو په ګورز ژوبل شوي ول.

درې ورځې او شپې له څو تنو نورو کسانو سره چې مرسته يې راسره کوله، د ټپيانو په

معالجې بوخت وم.

په دې شپو ورځو کې يو شمېر زخميان چې ټپونه يې لاعلاجه ول مړه شول.

له هغه وروسته هورم هب خپلې جنګي ګاډۍ پياوړې کړې او هره ورځ به يې مصري عسکرو روزل، چې له جنګي ګاډيو سره د جنګېدا چل زده کړي.

هورم هب ويل، که څه هم موږ په دې جنګ کې له ځمکنيو خندونو څخه په استفادې سره بريالي شوو، خو ددې لپاره چې سوريه له آزيرو او هاتي بيرته ونيسو، جنګي ګاډيو ته اړتيا لرو، ځکه يوازې په جنګي ګاډيو کولای شو بريالي شو.

آزيرو او هاتي په سوريه کې جنګي ګاډۍ لري، او په دې جنګ کې د هاتي پلي ځواک برخه نه وه اخيستې او زه هيله کووم، هغوی چې د خپلو ګاډيو له ماتې خبر شوي، خپل پلي عسکر به بېدياته را واستوي او په دې ډول به زه پخپلو ګاډيو او پليو عسکرو باندې هغوی له منځه يوسم.

خو د هاتي پلي عسکر بيديا ته رانه غلل او د سوريې له پولو يې حرکت ونه کړ.

داسې ښکارېده چې ته وا د دښمن پلی ځواک په تمه و، چې هورم هب پرې بريد وکړي او په دې ډول به د هورم هب سترې سرتېري مات شوي ول.

خو هورم هب پوهېده، تر هغه چې د جنګي ګاډيو له پلوه خپل ځواکونه مضبوط نه کړي، بايد په سوريه کې دازيرو او هاتي جنګ ته ور ونه دانګي.

په صحرا کې د هورم هب برياليتوب په سوريې کې ډېر انعکاس درلود او د سوريې ځينو ښارونو بلوا وکړه، ځکه چې په سوريه کې خلک د آزيرو له کبر او بې رحمۍ په تنګ شوي ول.

پر دې سربېره د سوريې د ښارونو ترمنځ دايمي اختلاف او سيالۍ روانې وې.

هغوی له هر فرصته استفاده کوله، چې د مخالف ښار پر خلکو خپله غوسه سړه کړي.

پردې سربيره د هورم هب جاسوسانو هم په سوريه کې د اختلافاتو اور ته لمن وهله او په صحرا کې يې د هاتي د جنګي ګاډيو د ماتې په اړه په خلکو کې يې بوږنونکي خبرونه او اوازې خپرولې، چې هغوی د مصر له قدرته ووېروي.

دوی به ويل چې د مصر د کمزورتيا او ناکامۍ وخت پای ته رسېدلی، ځکه چې نور د مصر خدای آتون نه دی او ددې هېواد تلپاتی خدای چې آمون نومېږي بيا پر مصر واکمن شوی دی.

آمون بې رحمه او غښتلی خدای دی، چې د سیند په شان د هغو کسانو وینه بهوي چې د مصر دښمنان دي.

په داسې حال کې چې هورم هب خپل عسکر په صحرا کې مشق او تمرین ته اړ کول او هغه غریې د بریالیتوب غر وباله چې دوی یې ترڅنګ د هاتي پر عسکرو حمله کړې وه.

غزې ته یې څو استازي واستول. هرځل چې به یې خپل استازي استول. ویل به یې مقاومت وکړئ .... مقاومت وکړئ.

ځکه چې پوهېده که غزه مقاومت ونه کړي. نو د آزیرو او هاتي لښکر به یې ونیسي، بیا به هغه پر سوریې د حملې لپاره مضبوطه او ډاډمنه اډه ونه لري.

هورم هب ځینو کسانو ته دنده وسپارله چې د هغه په عسکرو کې د سوریې په هکله خبرې وکړي او و دې وایي چې په سوریه کې دومره سره او سپین شته چې که کوم پوځ له بهره پرې برید وکړي. نو هر سرتېری به د خپل وزن په اندازه سره او سپین او ډېر نور غنیمتونه ترلاسه کړي.

یو شی چې د هورم هب ګمارلو کسانو به د هغه په هکله خبرې کولې په سوریه کې د ایشتار د معبد ښځې وې.

هغوی به ویل په سوریه کې د ایشتار معبد له ښکلو او ځوانو مېرمنو ډک دی چې په مصر یا بل هېڅ ځای کې یې ساری نه لیدل کېږي.

دغه مېرمنې ایشتار ته د خدمت کولو لپاره ډالۍ شوې وې، چې ځانونه به نارینه وو ته سپاري، په تېره بیا مصري نارینه پرېږدي، چې له هغوی سره تفریح وکړي.

ځکه چې د ایشتار د معبد مېرمنې چې هر ځل له یوه مصري سړي سره ساعت تېری کوي، تصور کوي چې ایشتار هغوی تلپاتې نعمت ته رسولې دي.

یوه ورځ یو سړی چې له تندې او لوږې یې خبرې نه شوې کولای زمونږ اډې ته راننوت، مصري عسکرو هغه ونیو، خو هغه وویل چې باید ډېر ژر له هورم هب سره وګوري.

عسکرو په لومړي سر کې په هغه ملنډې ووهلې، خو وروسته مجبوره شول چې هورم هب پرې خبر کړي.

هورم هب د شپې د پیلېدا په وخت کې هغه ته د کتلو اجازه ورکړه او هغه سړي، چې سریاني جامې یې اغوستې وې، د هورم هب په مخکې رکوع وکړه. بیا یې لاس پر سترګه کېښود او داسې ښکارېده چې سترګه یې درد کوي.

هورم هب ترې پوښتنه وکړه، چې کومې حشرې چیچلی یې؟

هغه سړي ووېل، هو ! هورم هبه، زه یوې حشرې چیچلی یم.

هورم هب ووېل اې اتله سلام دې وي پر تا، ځرګندې خبرې وکړه، ځکه چې دلته چې کوم سړی ناست دی، هغه ډاکټر دی او د حیواناتو په شان په دې نه پوهېږي چې موږ څه وایو.

سړي د هورم هب په ځواب کې ووېل، زما باداره هورم هبه ! هلته وبا ګډه شوه.

کله چې ما دغه خبره واورېده پوه شوم چې هغه د هورم هب جاسوس دی او په شیفرنو او رازنو کې خبرې کوي.

هورم هب چې دغه خبره واورېده، له کېږدۍ راووت او امر یې وکړ چې د بریالیتوب په غره دې اور بل کړي.

لنډه شپېه وروسته د مصر تر سرحدونو پورې پر غرونو او غونډیو اورونه بل شول او زه پوه شوم چې د مصر د ځواکونو قوماندان د اور په وسیله تانیس ته پیغام واستاوه.

د نوموړي پیغام دا و، چې د مصر جنګي کشتۍ دې له تانیسه حرکت وکړي او د غزې پر لور دې لاړې شي، هلته دې د سوریې له سمندري ځواکونو سره جګړه پیل کړي.

بله ورځ سهار هورم هب امر وکړ چې نغارې ووهي او ځواکونه یې راټول کړل.

د مصر پوځ په داسې حال چې جنګي ګاډۍ یې په مخکې روانې وې، د سوریې د سرحد پر لور وخوځېد.

زه نه پوهېدم چې هورم هب په کومه تمه او هیله نیت لري، چې په اواره ځمکه او دښته کې د هاتي له عسکرو سره چې ګاډۍ هم لري وجنګېږي.

عسکر په خوشحالۍ سره د سوریې پر لور روان شول، ځکه چې په زړه کې یې ګوړې ماتولې چې هلته به ډېر سره او سپین تر لاسه کړي او د ایشتار د معبد له ښکلو نجونو او مېرمنو سره به ساعت تېري وکړي.

زه هم پر خپل روان تخت سپور شوم، د مصر د پوځ تر شا روان شوم. زموږ د بریالیتوب غږ، د هاتي او مصري سرتېرو د مړیو هډوکي چې د ورونو په شان ګډوډ شوي ول ترشا پرېښودل.

# نهه ځلوېښتم څپرکی

## د غزې د بوړنوونکي مقاومت بیانول

اوس به را شو د سوریې جنګ ته، خو هغه څه چې زه یې د دې جنګ په هکله لیکم ډېر مختصر دي.

ځکه چې زه پوځي کس نه یم او په دې نه پوهېږم چې د جنګي تخنیکونو له پلوه د جنګونو ترمنځ تو پیر څه وي؟

زما له نظره ټول جنګونه یو شان دي، ځکه چې په ټولو جګړو کې ښارونه ورانېږي، کورونه سوځول کېږي، خلک وژل کېږي اود ښځو او ماشومانو کړیکې او ساندې د سړي زړه دردوي.

له دې کبله چې دغه منظرې په ټولو جنګونو کې تکرارېږي، نو که وغواړم، د سوریې د جنګ، په هکله پوره معلومات درکړم، د دغه درې کلن جنګ په هکله به زما خبرې ډېرې ستومانوونکې شي.

یوازې دومره وایم، چې د سوریې ډېر کلي وران شول، د دې لپاره چې مېوه یې په اسانه وخواړی شي په باغونو کې یې مېوه لرونکې ونې غوڅې کړې او په لویو ښارونو کې یې د خلکو نفوس لږ شو.

کله چې هورم هب سوریې ته ننوت دوکه یې ورکړه.

د دغې پېښې یادول اړین دي.

هغه چې کله سوریې ته ننوت عسکر یې ازاد پرېښودل، چې په کلیو کې د خلکو شیان لوټ کړي او ښځې یې اسیرانې کړي.

دغه کار یې د دې لپاره وکړ چې عسکر فکر وکړي په سوریه کې یې ډېر څه ترلاسه کړل او ډېر ساعت تېری یې وکړ.

خو له دې وروسته چې عسکرو تر یوه حده ساعت تېرې وکړ، هورم هب د هغوی مخه ونیوله او نېغ په نېغه د غزې پر لور لاړ.

هورم هب چې غزې ته نږدې شو، ژمی را رسېدلی و او کله چې د هاتی عسکرو ولیدل چې هورم هب نیت لري غزې ته ننوځي، نو په بیړه یې خپل پوځیان د دې ښار په شا و خوا کې دېره کړل، چې د هورم هب مخه ونیسي.

د هاتي پوځ په دې پوهېده چې د غزې په مخکې یوه لویه دښته ده او په اسانه د جنګي ګاډیو په وسیله د مصر ځواکونه ختمولای شي.

د ژمي له امله د هاتي عسکر مجبور شول د خپلو اسونو د مړولو لپاره وچ وابښه د سوریې له سوداګرو واخلي.

کله چې هغوی اسونو ته دغه خواړه ورکړل، اسونه یې ناروغ شول، خوشایي یې شنه او نري شول، ډېر اسونه مړه شول او د هاتي ګاډۍ او د سوریې (د سوریې د پاچا آزیرو) پوځ بې اسونو شول.

له همدې کبله هاتي او آزیرو ونه کړای شول، چې له خپلو ګاډیو څخه د هورم هب د مخنیوي لپاره کار واخلي.

له دې کبله چې هورم هب د ګاډیو له پلوه تر هغوی بر لاسه و، نو ډېر ژر یې د هغوی ګاډۍ له منځه یوړې.

بیا یې پلیو ځواکونو ته مخه کړه او غزې ته څېرمه یې د هاتي او سوریې پلي ځواکونه هم مات کړل.

په دې سیمه کې د هاتي، سوریې او مصر دومره عسکر مړه شول چې تر دې وروسته دغه تاتوبی د هډوکو په دښتې مشهور شو.

کله چې د هاتي او سوریې پوځ د غزې پر وړاندې ماته وخوړه او هورم هب د هغوی اډه چورتالان کړه، نو امر یې وکړ چې د نوموړې اډې خوراکي ګودامونه وسوځوي، چې اسونه یې ونه خوري.

په دې وخت کې زه پوه شوم چې د هاتي د پوځ د اسونو وابښه هغه زهرجن کړي ول.

زه تراوسه هم پوه شوی نه یم چې هورم هب څنګه د سوریې وابښه پلورونکي سوداګر اړ کړي ول، چې پر هاتیانو زهرجن وابښه خرڅ کړي چې د هغوی اسونه ناروغ او مړه شي.

له دې وروسته چې د دښمن لښکر د غزې پر وړاندې ناکام شو، هورم هب هڅه وکړه چې

غزې ښار ته ننوځي، چې د سمندر پر غاړه یو بندري ښار دی.

په همدې وخت کې د مصر سمندري ځواکونه چې له تانیس څخه را روان شوي ول، په ډېر بد حالت کې د غزې ښار ته را ورسېدل.

ځکه کله چې د مصر جنګي بېړۍ غزې ته ورسېدې مجبور شوې چې د هاتي او سوریې له جنګي بېړیو سره وجنګېږي، چې ځانته لاره خلاصه کړي.

له جګړې وروسته د مصر ځینې بېړۍ، ډوبې شوې او د نورو بېړیو سپرلیو هڅه وکړه، چې ډېر ژر ځان غزې ته ورسوي، چې د دښمن د بېړیو له حملو خوندي شي.

خو د غزې د بندر پوځي قوماندان هغوی ته بندر خلاص نه کړ او ویې ویل، زه نه پوهېږم، چې تاسې مصریان یاست کنه، زموږ د غولولو لپاره مو د مصر د جنګي بېړیو نښانونه لګولي دي.

د غزې د ښار قوماندان چې پر بندري سیمې یې هم حکومت کاوه، دومره شکمن سړی و، چې حتی هورم هب ته یې هم دروازه خلاصه نه کړه او هغه هم مجبور شو چې یوه ورځ د غزې د دېوالونو تر شا پاتې شي.

تر یوې ورځې وروسته دغزې د پوځي ځواکونو قوماندان هغه ته اجازه ورکړه چې ښار ته داخل شي.

کله چې یې د ننوتو اجازه ورکړه، ویې ویل، باید د هورم هب عسکر له ښاره دباندې پاتې شي او دی یوازې ښار ته ننوځي.

کله چې ډاډه شول دغه سړی هورم هب دی، نو بیایي د هغه عسکرو ته هم اجازه ورکړه چې غزې ته ننوځي.

په کومه ورځ چې د غزې نه ماتېدونکي کلا د هورم هب پر مخ خلاصه شوه او هغه دې ښار ته ننوت، نو پر ده ورځ په مصر کې اخترو.

دغه ورځ، د جنګ د الهې (سخ مت) ورځ بلله کېږي.

پر دې ورځ ماشومان په لرګینو ګورزونو او مصنوعي نېزو سره لوبې کوي او د غزې د جنګ ننداره وړاندې کوي.

بې له شکه بل داسې ښار نه و، چې د غزې په شان دې یې، د دښمن پر وړاندې مقاومت کړی وي.

بل داسې پوځي قوماندان هم نشته چې د دغه قوماندان په شان دې له دښمن سره مقابله

وکړي،نو له همدې کبله غوره ده، چې زه د دې قوماندان نوم په دې برخه کې ولیکم.

سره له دې کله چې زه په سوریه کې د مصر سفیر وم او له آزیرو سره مې د سولې تړون لاسلیک کړی و. هغه ما ته اجازه رانه کړه چې په دروازې د غزې کلا ته ننوځم، بلکې زه یې په یوه زنبېل کې پر دېوال ور واړولم.

د دغه قوماندان نوم (روژو) و او عسکرو یې (غواسری) باله، ځکه چې د بدن فزیکي جوړښت یې د غوایي په شان و.

له اخلاقي او روحي پلوه هم داسې سړی ما نه و، لیدلی چې د روژو په شان بدګمانه او ځېلناک وي

کله چې هغه موافقه وکړه چې هورم هب دې ښار ته ننوځي، بیاهم له دې سره سره چې پوه شو هورم هب د مصر قوماندان دی، د هاتي لښکرو ته یې ماتې ورکړې وه، خو بیا هم شکمن و او هغه ته یې اجازه نه ورکوله چې ښار ته داخل شي.

ویل به یې ښایي دا د سوریې او هاتي عسکر وي، چې د مصر د پوځ جامې یې اغوستي وي.

له دې وروسته چې د مصر لښکرې غزې ته ننوتې، له روژو پرته ټول خوشحال شول، ځکه چې دغه سړی څو کاله په دې ښار کې کلابند و.

که څه هم له هورم هب څخه یې امر ترلاسه کاوه، خو عادت یې دا و چې پخپل مرکز کې مطلق واکمن او قوماندان وي.

خو د هورم هب راتللو، د دې مخه نیوله، چې هغه وکړای شي په خپل سر واکمني وکړي.

زه تصور کووم روژو چې غواسری یې باله، لږ شانته لیونی او ډېر ځېلناک و او که دغه خوی ورسره نه وای، نو له هاتي او سوریې سره یې دومره مقاومت هم نه شو کولای.

روژو ښه پوځي مخینه نه درلوده، ځکه یې هغه په غزه کې پوځي قوماندان ګمارلی و، چې هغه له مصره لرې وساتي.

په دې ډول به د هغه له ځېلونو او شکایتونو په کرار شي، ځکه چې غزه داسې ځای و، چې کله به یې څوک له مصره لرې کول او یا به یې سزا ورکوله هغه به یې غزې ته لېږه.

خو له دې وروسته چې آزیرو په سوریه کې بلوا وکړه او غزې مقاومت وکړ څرګنده شوه روژو یو تکړه پوځي کس دی او په دې کې شک هم نه شته چې که غزې لوړ او کلک دیوال

نه درلود روژو هلته مقاومت نه شو کولاي.

د غزې د ېوالونه يې په لويو ډبرو جوړ کړي ول، ويل به يې دغه کلا په پخوا زمانو کې دېوانو جوړه کړې ده.

د هاتي عسکرو هره کلا ډېره ژر نيوله او بيا به يې ورانوله، مګر په دې کلا کې ناکام شول.

د هاتي لښکر پوځي مهارتونه درلودل، د هرې کلا تر برج لاندې به يې کنده و ايسته او په دې ډول به يې دغه برج وران کړ.

تر دې وړاندې، چې د غزې کلابندي، پيل شي، دلته غزې دوه، ښارونه درلودل. يو يې پخواني ښار و، چې په کلا کې دننه ودان شوی و او بل يې نوی ښار و، چې له دېوالونو د باندې جوړ شوی و.

کله چې د آزيرو بلوا پيل شوه، روژو حکم وکړ چې له کلا دباندې دې، نوی ښار وران کړي.

هغه د پوځي مصلحت پر اساس دغه ښار وران نه کړ، ځکه چې په هغه وخت کې لا آزير و د غزې د نيولو تابيا نه وه کړې، بلکې يوازې ددې لپاره يې دغه ښار وران کړی و، چې له خپلو سلاکارانو سره مخالفت وکړي.

د هغه مشاورينو ويلي ول، چې له کلا دباندې ښار ښايي زموږ د مقاومت لومړنی مرکز وي، خو روژو ددې لپاره چې له هغوی سره مخالفت وکړي، ددې ښار د ورانولو امر وکړ.

د ښار اوسېدونکي چې د ښار د ورانولو په تړاو د روژو له امره خبر شول نو بلوا يې وکړه او له آزيرو يې مرسته وغوښته، خو تر دې وړاندې چې آزيرو د هغوی مرستې ته راشي، روژو د نوي ښار اوسېدونکي ټول ووژل.

ددې بلوا مخنيوی دومره بوږنونکی و، چې د غزې د جنګ تر پايه چا جرائت ونه کړ، چې د غوايي سري روژو له حکمه سرغړونه وکړي.

هېڅوک نه پوهېدل چې بايد له روژو سره څه ډول چلند وکړي؟

که د دښمن يوه عسکر به خپله وسله روژو ته وسپارله او روژو ته به يې وويل: ما مه وژنه، پر ما ورحمېږه ! نو روژو به ناري کړې، دغه سړی ووژنئ، ځکه هغه ددې پر ځای چې زما عدالت ته پناه يوسي زما ښښنې ته پناه وړي او دغه موضوع ثابتوي چې ما عادل کس نه بولي.

خو کله چې به کوم عسکر تسلیم شو او د ښښني غوښتنه به یې ونه کړه، روژو به ویل، دغه سړی ووژنئ، ځکه چې له ما سره سپین سترګي کوي او ماته په درنه سترګه نه ګوري.

کله چې به مېرمنې او ماشومان ور ته راغلل او په ژړا او انګولا به یې د خپلو پلرونو او مېندو لپاره، چې هغه مهال د سوریې عسکر ول، له روژو څخه ښښنه غوښته، نو روژو به ویل دغه کسان هم ووژنئ.

ده به ددغو کسانو د وژنې دلیل دا راووړ چې دوی په دې نه پوهېږي، څنګه چې د ځمکې په اړه د اسمان حکم نه بدلېږي، همغسې د هغو کسانو په اړه چې د مصر پر خلاف یې بلوا کړې وه، حکم نه بدلېږي.

هېڅوک نه پوهېدل چې له دغه سړي سره، څنګه چلند وکړي او څنګه ورسره خبرې وکړي، چې هغه خپه نه شي.

هغه به هره خبره داسې ګڼله چې ته وا څوک ورته ښکنځلې کوي، یا هغه غولوي او یا د هغه د حکم پر خلاف عمل کوي.

خلکو د هغه په یوه شي اعتماد کاوه او داډمن به ول، هغه دا چې کله به یې امر کاوه حتماً یې اجرا کوي او د خپل حکم د نه عملي کېدا او یا ځنډ په هکله یې هېڅ پلمه نه منله.

په لومړي سر کې د غزې پر ښار د آمورو هېواد پاچا آزیرو، حمله وکړه.

دغه سړی د مصر پر خلاف له بلوا وروسته د ټولې سوریې پاچا شو او سوریه یې د مصر له منګولو خلاصه کړه.

خو پر غزې د آزیرو حمله د هاتي د برید په پرتله د ماشومانو لوبو ته ورته وه او د نارینه وو جنګ نه و.

ځکه چې د هاتي پوځ شپه ورځ اورونه، له زهرجنو مارانو ډک منګي، مصري اسیران او مړي ښار ته راغورځول، کله چې به مصري اسیران پر ځمکه ولګېدل مړه به شول، ځیني به د ښار پر دېوالونو لګېدل او هډوکي به یې ماتېدل.

کله چې مونږ غزې ته ننوتو داسې کورمو ونه لید، چې چت ولري.

د ډبرو او اورونو د ګوزارولو له امله د ټولو کورونو چتونه لوېدلي یا سوځېدلي ول او د ښار ډېر لږ شمېر اوسېدونکو په تل خونو کې ژوند کاوه، هغه هم ښځې او ډنګر بوډاګان ول، چې څو کاله یې یوازې یو وخت ډوډۍ خوړلې وه.

روژو د کلابندۍ له پیله ټول نارینه او ماشومان د لوېدلي دېوال پر جوړېدا ګمارلي ول

او په لسو نارينه وو او ماشومانو کې نهه تنه وو ژل شول.
کله چې د ښار ژونديو خلکو وليدل و ددې پر ځای چې خوشحال شي ښکنځلې يې کولې او پر سرونو يې خاورې بادولې.
هورم هب وويل هغوی ته غوښه او غنم ورکړۍ، خو ځينو چې له ډېرې مودې وروسته يې په ماړه نس ډوډۍ وخوړله مړه شول، ځکه چې د هغوی معدې څو کاله په لږو خوړو عادت شوې وې او ډېر خواړه يې ونه زغمل.
کله چې د غزې ښار ته ننوتو د دغه ښار انځور هېښوونکی و، ما وليدل چې له دېوالونو څخه د انسانانو پوستکي راځوړند شوي دي.
په ښار کې د مړيو بويونه ول، موږ چې به کله روان وو، پوزې به مو پټولې.
دغه مړي به د هاتي عسکرو ښار ته ورګوزارول، چې د ښار ساتونکي د هغو له بويه په تنګ کړي او يا دا چې د ښار ساتونکي په راز راز ناروغيو اخته او مړه شي.
زه پر دې ورځ، چې د مصر د برياليتوب ستره ورځ وه، خوشحاله نه شوم، ځکه چې ومې ليدل دغه برياليتوب د هاتي له لوري د ډېرو ظلمونو، کړاونو او بدبختيو له تېلو وروسته ترلاسه شوی و، چې تر هغې ورځې يې ساری نه وليدل شوی.
د غوايي سري روږو عسکرو چې د ښار دفاع يې کوله، له دې کبله چې ډېر ډنګر شوي ول، خلک ترې ډارېدل حتی هغه مړي تر دې عسکرو غټ او ښايسته ول، چې د مړيو په کورکې به موميايي کېدل.
د دغو سرتېرو لاسونه او پښې د روږو له لوري د مترکو د وهلو او ډېرې لوږې له امله اوږده او نري شوي ول، پښتۍ يې له ورايه ښکارېدې او پر زنګنو يې دلوږې له کبله غدې رامنځته شوې وې.
داسې سرتېری مې ونه ليد چې پر لاره نېغ لاړ شي، ټول پر ملا کړوپ شوي ول او سترګې يې د سر په کاسه کې ننه شوې وې.
کله چې به يې موږ ته کتل موږ ترې ډارېدو، ځکه داسې ښکارېدل چې وحشي او داړونکي کسان راته ګوري.
کله چې يې هورم هب وليد په ډنګرو او ناتوانه لاسونو يې خپلې نېزې پورته کړې او زګيروي ته ورته کړيکه يې وکړه، ويل يې مقاومت وکړئ!
کم بخته عسکرو د هورم هب په سپارښتنه له خپل قوماندانه دغه ټکی دومره اورېدلی

و، چې د «مقاومت وکړئ» له خبرې پرته يې بل څه نه شوی ويلای او نه يې په خوله او زړه کې بله خبره وه.

کله چې هورم هب وليدل، دغه سرتېري د ډېر مقاومت او جنګ له امله دې حال ته را رسېدلي، نو هغوی ته يې وويل، له دې وروسته استراحت وکړئ، وخورئ، وڅښئ او ويده شئ، چې د بدن ستوماني مو ختمه شي او بيرته پخوانی طاقت پيدا کړئ.

بې له ځنډه يې پر عسکرو تازه غوښه، ډوډۍ او د اوربشو اوبه ووېشلې.

هورم هب په خپلو لاسونو، د هر سرتېري په غاړه کې د زرو غاړکۍ واچولې او د سوريې اسيران يې پر هغوی ووېشل.

خو عسکرو له ډېرې بې وسۍ او کمزورۍ څخه دغه اسيران خرڅولای نه شول او د هاتي د عسکرو په تقليد يې هغوی شکنجه کول. ددې اوږدې مودې په کلابندۍ کې مصري عسکرو د هاتي له عسکرو زده کړي ول، چې څنګه خلک شکنجه کړي او څنګه د هغوی پوستکي وباسي او پر ډېوالونو يې ځوړند کړي ول.

کله چې به له هغوی پوښتنه وشوه، چې ولې د سوريې ښځې شکنجه کوئ او ولې يې نه خرڅوئ، په ځواب کې به يې ويل، زموږ له نظره د سوريې نارينه او ښځې يو شان دي، هر يو چې پيدا کړو خپل غچ ترې اخلو او په شکنجې سره يې وژنو.

هورم هب، غوايي سري روژو ته د سروزرو يوه غټه غاړکۍ، چې په ښکلو غميو سره پسولل شوې وه او په لاس کې يې د سرو زرو يوه متروکه ورکړه.

هورم هب هغو مصري عسکرو ته چې له ده سره غزې ته راغلي ول وويل، د غوايي سري روژو په وياړ چيغې ووهئ.

ټولو په شور و زوږ نارې کړې، ځکه کله چې ښار ته ننوتل پوه شول، چې دې سړي د ښار د ساتلو لپاره څومره زيار ګاللی او څومره سرښندنه يې کړې ده.

له دې وروسته چې د عسکرو نارې ختمې شوې روژو، هورم هب ته وويل، ايا ته فکر کوې، چې زه اس يم چې غاړکۍ دې په غاړه کې را واچوله او دغه متروکه دې په لاس کې راکړه.

بيا يې پوښتنه وکړه، ايادا خالصه طلا ده، که سرياني طلا ده؟ ځکه چې سرياني سره زر په لسو کې نهه برخې مس لري.

هورم هب دې خبرې ته حيران نه شو، ځکه پوهېده چې د دغه سړي اخلاق او خوی څه

ډول دی. نو هغه ته یې ډاډ ور کړ، چې دغه متروکه له سوچه مصري طلا سره جوړه شوې ده.

غوايي سري په ډېرې غوسې سره هورم هب ته وويل، خپل عسکر له دې ښاره وباسه، ځکه چې هغوی شور ماشور کوي او ما خوب ته نه پرېږدي.

ما د غزې د کلا بندۍ په وخت له دې سره سره چې د تورو، نیزو، د ډبرو د لګېدا او د اورونو د بلېدا غږونه اورېدل، خو بيا به مې هم ارام خوب کاوه، مګر اوس مې ستا د عسکرو د شور ماشور له امله خوب ګډوډ شوی دی.

که ته خپل عسکر له دې ښاره ونه باسې او هغوی زما خوب نور هم خراب کړي. نو مجبور یم چې خپلو عسکرو ته امر وکړم چې ستا ټول سرتېري ووژني.

غوايي سري سمه خبره کوله، هغه سړی چې څو کاله شپه او ورځ په جنګ کې ارام ویده کېږي اوس نه شي ویده کېدای، په تېره بيا دا چې شپه او ورځ د پوځي وسايلو د جمع کولو او حساب په فکرونو کې وي. يوه ورځ هورم هب ته راغی او دا ځل يې په ډېرې خاکسارۍ ورته وويل :هورم هبه ! ته د مصري پوځ قوماندان او زما مشر یې، له تا څخه غواړم چې ما ته سزا راکړې، ځکه چې زه د سزا لياقت لرم.

هورم هب ورته وويل ولې ته د سزا وړ یې؟

غوايي سري ورته وويل. ددې لپاره چې هغه پوځي وسایل او تجهيزات چې تا ماته راکړي ول او باید د هغو حساب کتاب بيرته فرعون ته ورکړم، نه پوهېږم چې څه کړي مې دي.

که زما پاپیروسونه موجود وای، زه پوهېدم چې دغه شیان مې څه کړي دي؛ خو پاپيروسونه د اور په لمبو کې سوځېدلي دي او له هغه وخته چې زه نه شم ویدېدلی، خپله حافظه مې له لاسه ورکړې ده.

زه دومره پوهېږم چې د هغو ټولو شيانو حساب کتاب چې ماته سپارل شوی و منظم دی، خو یوازې په دې نه پوهېږم، چې د خرو هغه پینځه سوه کتې (ځل) چې په ډیپو کې وې څه شوې دي؟

زه په دې پوهېږم چې له دغو کتو (ځلونو) مو استفاده نه وه کړې، ځکه چې موږ له لوږې ټول خره خوړلي دي او کوم خر راپاتې نه شو چې کته پرې واچوو.

نو، اې هورم هبه ! ددغې بې پروایۍ له امله ماته د ټولو عسکرو په مخکې په متروکو

سزا راکړه، چې پوه شم، د فرعون مخې ته نه شم تللی، ځکه هغه پوځي شيان مې ورک کړي چې ماته سپارل شوي ول.

هورم هب وويل :له دې امله هيڅ اند ښننه مه کوه، ځکه چې زه به له خپلې پوځي ډيپو څخه څلور سوه کتې درکړم، چې په ګودام کې يې کېږدې او په دې ډول به ستا حساب کتاب بشپړ شي.

خو غوايي سري ونه منله او ويې ويل ته غواړې ما وغولوې او غواړې د خپلو خرو کتې راکړې، چې بيا وروسته د فرعون پر وړاندې په اسانه ما تورن کړې او ورته ووايي، چې ما پوځي شيان اختلاس کړي دي.

زه به دغه کار ونه کړم او ستا دوکه به ونه خورم او په دې هم پوهېږم چې ته له ما سره حسادت کوې، غواړې د غزې حاکم شې او زما ځای ونيسې.

زه اوس فکر کووم چې تا خپلو عسکرو ته دنده سپارلې، چې زما له ګودامونو څخه د خرو کتې پټې کړي، چې په اسانه ما د فرعون پر وړاندې تور ن کړای شې.

زه به هغه کتې ونه منم چې ته يې راکوې او دغه ښار به دومره وپلټم چې کتې پيدا کړم.

دغو خبرو هورم هب اند ښمن کړ، چې دغه سړی ښځي لېونی شوی دی او ويې ويل، روژو ! غوره دا ده، چې ته د استراحت لپاره مصر ته لاړ شې.

زه احساس کووم چې ددې ښار اوږدې کلابندۍ او هغو زيارونو چې تا دلته ايستلي دي، ته ډېر ستومانه کړی يې.

خو روژو ورته وويل. زما ښځه ددې ښار کلا او څلور برجونه يې زما بچيان دي او زه به له دې ځايه لاړ نه شم.

که دغه کتې مې پيدا نه کړې، پخپل لاس به د خپلې مېرمنې او بچيانو سرونه له تنه جلا کړم.

له هغه وروسته روژو د هورم هب له خبرتيا پرته خپلو عسکرو ته امر وکړ، چې د پوځي ګودامونو منشي، چې يو زړه ورکس و او ځو کاله يې د دښمن پر وړاندې مقاومت کړی و، په دار وځړوي.

کله چې هورم هب له دې کيسې خبر شو ويې ويل، بې له شکه دغه سړی ليونی شوی دی او امر يې وکړ، چې هغه په يوه کوټه کې بند او وڅاري او دباندې دوتلو اجازه ور نه کړي ماته يې وويل، ورشه، هغه معاينه کړه او وګوره چې څنګه يې معالجه کولای شې؟

زه لاړم او روژو مې معاینه کړ.

بیرته چې راستون شوم، هورم هب ته مې وویل، د هغو بخارونو له امله چې دده په سر کې راټول شوي، هغه لېونی شوی دی او د هغه د معالجې لپاره مې دوه وسیلې په نظر کې شته.

لومړی دا چې ته له خپلو عسکرو سره له ښاره ووځې او غزه هغه ته پرېږده، چې هغه په یوازې سر په دې ښار کې حکومت وکړي. هورم هب وویل، زه تر هغه له غزې نه شم تللی چې له مصره مرستندویه ځواک را ونه رسېږي.

بیا به په سورېې برید وکړم، ځکه د مرستندویه ځواکونو له راتګه مخکې، که زه له دې ځایه لاړ شم، سمدستي به ماتې وخورم او زما د لښکرو د ساتلو او امنیت یوازینی وسیله د غزې کلا ده.

ومې ویل اوس چې له دې ښاره نه شې تللی، د غوایي سري د معالجې لپاره بله چاره نه لرم، مګر دا چې سر یې سوری کړو، چې له سره یې بخارونه ووځي.

هورم هب په دې پوهېده چې د سر د کوپړۍ سوری کول خطرناک کار دی، نو زما له وړاندیز سره یې موافقه ونه کړه او ویې ویل ،زه هغه سړی د سر سوري کولو له خطرې سره نه شم مخامخ کولی، چې د مصر د دفاع لپاره یې سربښند نه کړې وي.

پر دې سربېره کېدای شي دا تور هم راپورې شي چې د هغه له زړورتیا او مېړانې سره مې بخیلي کړې ده او د هغه د وژلو زمینه مې برابره کړې ده.

زه له یو شمېر ارام بښونکو درملو او دوو تنو مضبوطو کسانو سره د هغه کوټې ته ورغلم، دغو کسانو ته مې وویل، چې هغه په یوه کټ کې کلک وتړي چې درمل پرې وخوروم

دغو کسانو غوایي سری په یوه کټ کې وتاړه او ما په یوه قیف سره د هغه په ستوني کې درمل ور توی کړل.

له دې وروسته مسکن درمل ، چې لږ نشه یې مواد هم پکې ول، هغه ته ورکړل.

کله چې د غوایي سري معدې ته درمل ورسېدل، ورو ورو یې اغېز وکړ، پوه شوم چې لږ ارامه شو ماته یې وویل: دغه شغال هورم هب، چې له صحرا د غزې بندر ته راغلی دی، زما فکر یې داسې خراب کړی چې هر څه راڅخه هېر شوي دي.

دا مې هم هېر کړي چې د هورم هب تر راتګه یوه ورځ مخکې مې د سورېې یو خطرناک جاسوس نیولی او د کلا په برج کې مې بندي کړی دی.

ما نيت درلود چې په دار يې کړم، خو د هورم هب د راتګ او د هغه د عسکرو د راتګ له امله زما پرېشانۍ، ددې مخه ونيوله چې زه د غه جاسوس ختم کړم.

خو دا چې دغه سړی ډېر چالاک دی نو فکر کووم د خرو کتې هم هغه پټې کړې دي لاړ شه او هغه ماته راوله، چې زه ترې پوښتنې ګروېږنې وکړم، پوه شم چې کتې يې څه کړې او چيرته يې پټې کړې دي.

له دې وروسته چې د هغوی له پټنځايه خبر شم نو اسوده به شم او په ارام به ويده شم.

ما په سر کې فکر وکړ چې غوايي سری چتيات وايي خو هغه داسې تينګار کاوه، چې زه مجبور شوم په برج کې د کلا زندان ته ورشم او هغه جاسوس ووينم.

له دې وروسته چې د برج پر لور لاړم، معلومه شوه، چې جاسوس د جيل په ښکتني پوړ کې دی، دغه ځای ډېر تياره دی او جيل ته د ورتګ لپاره بايد مشالونه ولګوو.

يو مشال مې روښانه کړ او دغه جيل ته د ننوتو تکل مې وکړ.

په دې وخت کې متوجه شوم چې د جيل ساتونکی ړوند دی، هغه ته مې وويل، زه راغلی يم، چې د سوريې هغه جاسوس ووينم، چې د هورم هب له راتګه يوه ورځ مخکې نيول شوی دی.

زه غواړم دی له زندانه راوباسم او غوايي سري ته يې ورولم.

خو ړوند بوډا د مصر د شلو خدايانو نومونه واخيستل او په هر يوه يې قسم وخوړه چې په دې جيل کې ژوندی بندي نشته.

ځکه کله چې به بندي ونيول شو، لومړی به يې د معلوماتو د تر لاسه کولو په خاطر او دا چې ولې او څنګه دلته راغلی او کوم ډول خبرونه غواړي، شکنجه کاوه.

بيا به يې په جيل کې په ځنځيرونو وتاړه او پخپل حال به يې پرېښود چې له لوږې مړ شي او مړی به يې د جيل د وړوونکو مږو خوراک شي، ځکه چې بنديانو ته د ډوډۍ ور کولو لپاره هېڅ شی هم نه پيدا کېدل.

له دې سره سره چې ړانده بوډا د مصر په شلو خدايانو قسم وخوړ چې په دې جيل کې څوک ژوندی نشته، خو زه يې په خبرو پوه شوم، چې دروغ وايي، ځکه چې يو رېښتونی کس اړ نه دی، چې په شلو خدايانو قسم وخوري.

هغه ته مې وويل ته پوهېږې، چې غوا سری داسې کس دی، چې که پوه شي تا دروغ ويلي، نو له دې سره سره چې بوډا او ړوند يې، پوست به دې وباسي، نو غوره ده چې رښتيا

ووايي.

کله چې بوډا پوه شوه، زه يې په خبرو نه غولېږم، نو رکوع او سجده يې وکړه او ويې ويل، اې ستر انسانه! چې زه دې نه وينم، خو له غږه دې پېژنم، چې مصري يې او ځواکمن يې، پر ما ورحمېږه او ما واکمن ته مه سپاره، ځکه چې هغه به مې مړ کړي.

زه د مصر او فرعون يو وفادار خدمتګار وم او يم او د کلابندۍ په پړاو کې هغه وخت چې لا يې محبو سينو ته خواړه ورکول او خوراکي مواد ډېر کم شوي نه ول، ما به هره ورځ مصر او فرعون ته د خدمت لپاره د بنديانو يوه اندازه خواړه پټول، ځکه پوهېدم، څومره چې هغوی ډېر وږي وي، ما به مصر ته ډېر خدمت کړی وي.

خو دغه سرياني جاسوس، چې غزې ته د هورم هب له راتګه يوه ورځ مخکې نيول شوی، عادي بندي نه دی، ډېر ژبور دی او کله چې خبرې کوي، د هغه خوږې خبرې زما په غوږونو کې د بلبلا نو د غږ په شان وي په کومه ورځ چې هغه جېل ته راوستل شو او د بنديانو مړي يې وليدل چې غوښې يې د مړو خوراک شوې دي، له ما يې پوښتنه وکړه چې دغه کسان ولې مړه شوي دي؟

ومې ويل، له دې کبله چې په دې ښار کې خواړه نه پيدا کېږي، موږ بنديانو ته خواړه نه شو ورکولای او هغوی له لوږې مري.

بايد ته پوه شې چې زه ړوند يم او دغه بندي په ځنځيرونو نه شم تړلی.

تل چې بندي جيل ته راځي نور کسان يې په مسي ځنځيرونو تړي او بيرته ځي.

خو له دې وروسته چې بندي په زنځير وتړل شي، زه د جيل ساتنه کولای شم.

کله چې دغه جاسوس راوستل شو، همدا کار يې ورسره وکړ، په پيل کې نور کسان راغلل او هغه يې په ځنځير وتاړه او کله چې هغوی لاړل بندي له ما څخه د بنديانو د مرګ د علت په هکله پوښتنه وکړه. د بنديانو د مرګ په اړه چې هغه زما ځواب واورېد نو ماته يې وويل، که ما ته خواړه او اوبه راکړې چې زه له لوږې مړ نه شم او پياوړی پاتې شم، نو زه به دې ښار ته د هورم هب د راتګ په وخت کې دومره سره و سپين زر درکړم، چې په سوريه کې هيڅ شتمن کس دومره زر ونه لري.

کله چې ما دغه ژمنه تړې واورېده پوه شوم چې رښتيا وايي او په خپله وعده به عمل وکړي. هغه به ويل پر دې سربېره چې زه به دومره سره و سپين درکړم، چې لېږدول به يې درته سخت وي، ستا د سترګو معالجه به هم وکړم، ځکه چې زه يو ډاکټر هم پېژنم چې د

سترګو د نارغیو په شمول د نورو نارغیو په معالجه کې مشهور دی.

بندي راته وویل، زما دغه سترګه چې ته یې ګوري، همغه ډاکټر رغولې ده او له دې وروسته چې هورم هب دې ښار ته راننوت ته به هم شتمن شې او هم به دې سترګې رڼې شي.

د ځان لپاره به کور جوړ کړې، پخپل کور کې به لس نوکران وساتې او په شوا روز کې به لس ځله د غاز غوښه وخورې.

ما باور درلود چې هغه به د هرې ډوډۍ په بدل کې ما ته ډېر زر را کړي، نو هره ورځ به مې هغه ته ډوډۍ او اوبه ورکولې او هر ځل چې به مې ډوډۍ ورکوله، هره ډوډۍ به مې لس ځله ..لس ځله ...لس ځله ...لس (دین) سره زر ګڼله.

خو هغه ډېر ژر ژر وږی کېده او په شوا روز کې به یې څو ځله له ما څخه ډوډۍ غوښتله.

ما به هم په هغو وسایلو سره چې په لاس کې به مې ول، هغه ته ډوډۍ برابروله او ورکوله.

دغه سړي اوس د هغې ډوډۍ په بدل کې چې خوړلې یې ده، تر څو ورځو مخکې پورې دوه وارې ،لس ځله...لس ځله .... لس ځله.... لس ځله....لس ځله...لس ځله دینه زما پوروړی دی.

*(د جیل د ساتونکي هدف د سرو زرو لس زره دینه دي او دین ،د اشل په وزن د نن سبا د یوه ګرام په اندازه دی.)*

خو زه له هغه ډېر خه غوارم او تر هغه وخته به په تمه شم، چې زما پور درې مېلیون دین شي ،بیا به هغه ته خبر ورکړم، چې هورم هب دې ښار ته راغلی دی.

ومې ویل نو داسې ښکاري چې تر اوسه پورې تا هغه ته نه دي ویلي چې هورم هب ښار ته راغلی دی؟

جیل ساتونکي وویل نه ! که مې هغه ته ویلي وای، زه به له ډېرې شتمنۍ بې برخې شوی وای، خو کله چې زما پور درې مېلیونه دین ته ورسېد بیا به هغه خبر کړم.

ما ورته وویل اې رنده او ساده سړیه ! ایا په دې پوهېږې چې درې مېلیونه دینه څومره طلا کېږي؟

که درې مېلیون دینه سره زر په یوه ځای کې غونډ کړې، ان په شلو اسونو به یې بل ځای ته ونه شې لېږدولی.

هغه وخت چې غزه د سوداګرۍ مرکز و، په ټوله غزه کې درې مېلیونه دینه سره زر نه پیدا کېدل، اوس خو لا پرېږده، چې دغه ښار بېخي وران شوی دی.

# پنځوسم څپرکی

## کاپتا په غزه کې

په دې وخت کې چې له دې سرې سره مې خبرې کولې، زما زنګنونه له ډېرې خوشحالۍ رېږدېدل او زړه مې په ګوګل کې ټوپونه وهل، ځکه حدس مې واهه چې دغه بندي چې پخپله خوړه ژبه یې د جېل ساتونکی غولولی دی څوک دی؟

په خندا مې د جېل ساتونکي ته وویل، دغه چلباز او مداري بندي باید مجازات شي.

ما هغه ته بوځه چې پوه شم څوک دی؟

خو ډېره به درته سخته شي، که هغه دې ځورولی وي او یا دې له لوږې وژلی وي.

په داسې حال چې د جېل ساتونکي ځان په آمون سپاره او زګېروي یې کول، مشال یې په لاس کې واخیست، چې زه جېل ولیدای شم، ځکه چې د هغه سترګې هسې هم ړندې وې.

کله چې زندان ته ورننوتم، د هغه ځای د بد بوی او د مړیو د هډوکو په لیدو چې لا یې په لاس و پښو کې ځنځیرونه ول، حیران او وډار شوم.

د جېل ساتونکي یوې څنډې ته بوتلم، یوه ډېره یې وخوځوله، چې یو سوری ترې راڅرګند شو، بیا یې بله ډېره هم لرې کړه او سوری نور هم لوی شو.

د څو ډېرو په لرې کولو سره پوه شوم چې هلته یوه کوټه شته او ددې لپاره چې د جېل ساتونکی دغه ځای د روژو له عسکرو پټ کړي په مخکې یې ډېرې ایښې وې.

خو کوټې هوا درلوده او ما ولیدل چې له بهره رڼا هم ورځي.

د زړو جامو خاوند بوډا چې په ځنځیرونو تړل شوی و، په دې کوټه کې ناست و او ماته یې کتل.

کله چې، وپېژندلم نارې یې کړې: اې زما باداره سینوهه!..دا ته یې.. که زما سترګې درواغ وایي؟

بختوره ده دغه ورځ چې ته یې دلته راوستې، خو ما ته ډېر ژر یو منګی شراب راوړه،

ځکه له کومې ورځې چې په دې جېل کې اچول شوی يم، شراب مې نه دي څښلي.

خپلو مرييانو ته ووايه چې ما ووينځي او پر بدن مې خوشبويه تېل وموښي، ځکه چې زه په ساعت تېري عادت شوی يم.

د دې جېل ډبرو زما د بدن پوستکی او لګن خاصره ژوبل کړی دی.

کله چې مې ووينځي او ګران بيه جامې راواغوندي، نو که ته ورته ووايې چې د ايشتار معبد څو باکره نجونې زما کوټې ته راولي، زه به دې ونه رټم.

ما د هغه پر ملا لاس تېر کړاو ومې ويل کاپتا ...کاپتا .... زه ستا په لېدو ډېر خوشحاله شوم.

کله چې په طبس کې وم ماته يې وويل چې ته وژل شوی يې خو زه پوهېدم چې دا خبره سمه نه ده، ځکه چې ته داسې کس يې چې په اسانه نه مرې او دليل هم دادی چې په دې جېل کې ټول مړه شوي دي يوازې يو کس چې ژوندی دی، هغه ته يې.

په داسې حال چې په دغو کسانو کې ښايي داسې کسان هم ول، چې ستا په پرتله يې له خدايانو سره ښه مقام او ارزښت درلود، خو خدايانو ونه کړای شول چې هغوی له مرګه وژغوري.

مګر ته د خپلې ژبې او چل ول په مټ ژوندی پاتې يې، يوازې ډنګر شوی يې، لويه خېټه دې کمه شوې ده او د پوستکي په شان ستا پر پښو پرته ده. خو زه له دې ټولو سره سره په دې خوشحال يم چې ژوندی يې.

کاپتا وويل زما بادار اه سينوهه ! ته لا همغه سړی يې ، کله چې زه ستا مريی وم، ته مې وپېژندې،خو د خدايانو په هکله له موږ سره خبرې مه کوه،ځکه کله چې ونيول شوم او بدبخته شوم، ټولو خدايانو ان د بابل او هاتي خدايانو ته مې پناه يوړه، مګر هېڅ يو زما مرستې ته رانه غی او زه يې ونه ژغورلم.

ددې لپاره چې ژوندی پاتې شم، مجبور شوم چې ځان ډېواليه کړم، ځکه چې دغه جېل ساتونکي د هر وخت ډوډۍ په بدل کې د يوه ښار د يوه کال قلنګ په اندازه سره زر راڅخه غوښتل.

ددې ښار واکمن هم يو لېونی سړی دی، چې په عقل برابره خبره نه مني او زه يې داسې شکنجه کړی يم، چې ما به د هغه سخوندر په شان نارې وهلې، چې څوک يې ژوندی له پوسته کړي، مګر دغو نارو سورو به پر هغه هېڅ اغېز نه کاوه.

خو زما باداره ! ووايه چې دغه ځنځير خلاص کړي او ما له دې زندانه وژغوري
اوس چې ته راغلی يې، نو زه نور يوه شېبه هم په دې زندان کې نه شم پاتې کېدای.
ماهم بې له ځنډه امر وکړ، چې دده ځنځيرونه خلاص کړئ.
کاپتا ډېر کمزوری شوی و، پر لاره هم نه شو تللی، ما د خپلو مريیانو په مرسته خپلې کوټې ته بوت او مريیانو ته مې وويل، چې هغه ووينځي او د سر و ږېرې وېښتان او ږيره يې اصلاح کړي.
د کتان جامې مې ورواغوستلې، د سرو زرو امېل مې ور په غاړه کړ او په لاس مې ورته کره وتړله، چې نور پوه شي، هغه يو محترم سړی دی.
په داسې حال کې چې زما غلامان د هغه په وينځلو او د کاليو په بدلولو بوخت ول، کاپتا بې له ځنډه خوله ښوروله او ډوډۍ يې خوړله چې تاند او تکړه شي.
خو د دروازې له شا د جېل د ساتونکي زګېروي او نارې سورې اورېدل کېدې.
هغه د ځان لپاره دوه مېليونه و درې لکه و شپږ سوه زره (دين) سره زر غوښتل.
جېل ساتونکي نه غوښتل چې حتې يو دين سره زر يې کم شي او ويل به يې، زه د هغه د خوړو د برابرولو لپاره چې ژوندی پاتې شي، له ډېرو خطرو تېر شوی يم. له خپل ژوند سره مې لوبې کولې او اوس يو دين سره زر هم نه ورښنم.
ما کاپتا ته وويل، دوه او نی کېږي، چې هورم هب په دې ښار کې دی او په دې موده کې دغه درواغجن او چلباز سړي تا ته ونه ويل، چې هغه په دې ښار کې دی.
له دې کبله چې ستا او هغه معامله په هغه ورځ خلاصېده، چې هورم هب دې ښار ته راغلی دی، نو دغه خبر يې تا ته در نه کړ؟
ستا له بندي کېدا يوه ورځ وروسته هورم هب دې ښار ته رانغوت او ته يوازې د يوې ورځې لپاره د هغه د خوړو پوروړی يې، هغه هم د همدې ورځې د خوړو په بيه بايد ورسره معامله وکړې.
له دې کبله چې دغه چلباز سړي درسره ډېره دوکه کړې ده، زه حکم کووم چې، هغه په متروکو ووهي.
هورم هب ته مې وويل، چې امر وکړي سر يې له بدنه جدا کړي، ځکه چې دغه سړي د غزې د کلابندۍ په وخت کې د بنديانو ډوډۍ پټوله او هغوی ته يې نه ورکوله
دی په دغه جېل کې د هغو ټولو بنديانو د مړينې مسول دی چې له لوږې مړه شوي دي.

خو کاپتا اعتراض وکړ او ویې ویل، دغه کار مه کوه، ځکه زه داسې سړی یم چې غواړم سمه معامله وکړم او خپله ژمنه بیرته وانه خلم.

سمه ده چې باید ما خواره د ورځې په نرخ حساب کړي وای، خو کله چې به ما ډوډۍ ولیدله داسې به بې تابه شوم، چې څه به هغه غوښتل ما به منل.

زه پر دې خبرې حیران شوم، ومې ویل، ستا دې خبرې حیران کړم، ایا ته په رښتیا کاپتا یې او دغه خبره ستا له خولې اورم؟

ته د اسې کس یې چې له یوې کړۍ مس څخه هم نه تېرېدې او اجازه دې نه ورکوله چې څوک دې دوکه کړي.

اوس ډېر ښه پوهېږ چې دغه سړي غولولی یې او تا ته یې درواغ ویلي دي، کله چې هورمهب دې ښار ته راغی، ده تا ته نه دي ویلي چې هغه راغلی دی، نو اوس ډېره د حیرانی خبره ده، چې ته که څه هم پوهېږې هغه دوکه کړی یې. خو بیا هم هڅه کوې د هغه پور ورکړې.

زه تصور کوم چې ددې ښار خاصیت دادی، هر څوک چې د غزې ښار په دېوالونو کې ایسار شو، نو د غوایی سري په شان لېونی کېږي او حتی د کاپتا په شان سړی هم لېونی کېږي او فکر نه کوي چې دوه مېلیونه و درې لکه شپېته زره دینه سره زر څنګه دې سړي ته ورکړي؟ دا په داسې حال کې ده، چې کله د آتون خدایي له منځه لاړه ته هم زما په شان دېوالیه شوې.

خو کاپتا چې د ډېرو شرابو د څښلو له کبله مست شوی و، ویې ویل زه سم او رښتونی سړی یم او پخپله ژبه درېږم.

د دې سړي پور به ورکړم، خو له هغه څخه مهلت اخلم چې ورو، ورو یې پور ورکړم. بله خبره دا ده، چې هغه دومره ساده او احمق دی، چې که زه هغه ته لس دینه سره زر یا حتی دوه دینه سره زر په یوه تله کې واچوم او ورته ووایم چې دا دوه مېلیونه و درې لکه و شپېته زره دینه دي، نو و به مني یې او خپل حساب به ورسره پاک کړم.

په دې ډول به راضي شي، ځکه دغه سړي ټول عمر حتی یو دین سره زر هم نه دي لیدلي.

زما باداره سینوهه! لکه چې تا وویل زه نن دېوالیه یم او د طبس بلوا وو ېوزله کړی یم. کله چې په طبس کې جنګ پیل شو، نه پوهېږم هغه مریيان او نوکران چې د آتون پلویان ول، څنګه پوه شول چې زه له آمون سره ارتباط لرم؟

هغوی ته ويل شوي ول، چې ما ،مرييان او کارګران په آمون خرڅ کړي دي او د آتون پلوي کارګرانو او نوکرانو زموږ پر ميخانې بريد وکړ.

دوی زما د وژلو نيت درلود ، خو زه د ځان د ژغورلو لپاره وتښتېدم او له طبسه ممفيس ته لاړم.

له دې وروسته چې پوه شوم، هورم هب د سوريې تکل کړی دی،نو په دغه هېواد کې ورسره يو ځای شوم.

دلته مې هورم هب ته ډېر خدمتونه وکړل، منجمله دا چې بريالی شوم، چې د هاتي پر لښکرو وانښه خرڅ کړم او هغه څه چې ما دهاتي پر لښکرو خرڅ کړل، ددې سبب شول چې د هاتي ټول اسونه مړه شي.

ددې خدمت له امله هورم هب کابو يو مېليون دېنه سره زر زما پوروړی دی.

ما خپل ژوند په خطرې کې واچاو او د سمندر له لارې مې ځان د غزې بندر ته ورساوه، خو کله چې زه ښار ته راننوتم، د ښار لېوني واکمن، ونيولم او په دې تور يې شکنجه کړم، چې ګني زه د سوريې جاسوس يم.

بيا يې زندان ته واچولم او که دغه جېل ساتونکي، زه نه وای ژغورلی، زه به په جېل کې له لوږې او دردونو مړ شوی وای.

هغه وخت زه پوه شوم چې کاپتا په سوريه کې د هورم جاسوس او د جاسوسانو مشر و.

دغه راز زه متوجه شوم، هغه جاسوس چې په سينا صحرا کې ما وليد او له هورم هب سره د مخامختيا پر مهال يې پر يوې سترګې لاس ايښی و ،په دې ډول يې غوښتل هورم هب ته وروښيي چې په يوه سترګه د ړانده کس يانې کاپتا له لوري راغلی دی.

زه پوه شوم چې کاپتا د هاتي پر لښکرو د زهرجنو وښو په پلورلو سره بريالی شو ، چې د هغوی ګاډي له کاره واچوي او د هورم هب د لښکرو پر وړاندې لاره پرانيزي.

هورم هب په سوريه کې له کاپتا پرته داسې تکړه جاسوس نه شو پيدا کولای،ځکه د سوريې له حالاتو سره تر زيات نه بل څوک بلد ول او نه بل څوک د هغه غوندې چالاک و.

که څه هم زه پوهېدم چې هورم هب، داسې څوک نه دی، چې د چا پوروړ کړي، ومې ويل، کاپتا فرض کړه، چې هورم هب دې تر دې سرو زرو لس برابره ډېر پوروړی دی، خو که ته يوه ډبره ټينګه کړې، ممکنه ده سره زر ترې واخلې.

مګر هورم هب دومره سخت دی، چې تا ته به د غنمو د يوې دانې په اندازه هم سره زر

درنه کړي.

دغه سړي تر اوسه پورې د هېڅ پور نه دی ورکړی.

کاپتا وويل زه پوهېږم چې هورم هب د غزې له هغه غوايي سړي واکمن څخه هم ناشکره دی، چې ما له لوږې وژغوره. پر هورم هب باندې هم ښه نه دي معلوم.

ما په حيرانۍ سره ترې پوښتنه وکړه، ايا تا هغه له لوږې ژغورلی دی؟

کاپتا وويل هو ! کله چې غزه د هاتي د لښکرو په کلابندۍ کې وه، ما د هاتي پر پوځ له مارانو ډک منګي خرڅ کړل.

هغوی په سر کې باور نه کاوه چې په منګيو کې زهري ماران دي، ما يو پکې خلاص کړ ماران له منګيو راووتل او د هاتي درې عسکر يې وچيچل.

بيا يې جرائت ونه کړ، چې نور منګي خلاص کړي او هغه منګي يې په دې ګمان چې ماران پکې دي، د غزې کلا ته ګوزارول.

په داسې حال کې چې ما هغه منګي له غنمو ډک کړي ول او په وروستيو ورځو کې همدغه غنم وو، چې د غزې واکمن او د هغه سرتېري يې له مرګه وژغورل.

خو د هورم هب په هکله بايد ووايم چې هغه، ددې ښار تر واکمن هم ناشکره دی او ما ته حتی يو(دين )سره زر هم نه راکوي، خو زه له هغه څخه غواړم، چې په ټوله سوريه کې د مالګې د خرڅلاو ټيکه ما ته راکړي او دغه راز د هر هغه بندر د مالياتو د ترلاسه کولو حق راکړي چې ازاد وي.

ومې ويل کاپتا ! تا فيصله کړې، چې ټول عمر کار وکړې او د زندان ددې ساتونکي پور ورکړې؟

کاپتا وخندل، ويې ويل، ما ددې سړي د پورونو د ورکولو لپاره دوه لارې په نظر کې نيولې دي.

يوه دا چې لږ سره زر ورکووم او هغه ته وايم چې همدومره پوروړی وم او هغه چې هېڅکله سره زر نه دي ليدلي، ممکنه ده راضي شي.

بله لاره داده، چې له هغه سره مې ژمنه کړې ده، چې ستا په وسيله به چې يو ډاکټر يې د هغه د سترګې معالجه کړم او کله چې بينا شو له هغه سره به د کمسايي لوبه وکړم او پر هغو سزو زرو به شرط وتړم چې پر ما يې باندې دي.

له دې کبله چې د کمسايي په لوبه کې زه ډېر تکړه يم او هر ډول چې مې زړه غواړي

کمسایي اچولی شم، نو د هغه ټول پورونه به په دې ډول پرې کړم.

په دې وخت کې د جېل ساتونکی چې د دروازې تر شا یې ژړل، کوټې ته راننووت.

کاپتا ورسره خبرې وکړې او د جېل ساتونکی یې راضي کړ چې د خپل پور د ترلاسه کولو لپاره کاپتا ته مهلت ورکړي.

له هغه وروسته ما د جېل ساتونکي سترګه معاینه کړه، پوه شوم چې د سترګو د یوې ناروغۍ له امله ړوند شوی دی، چې تر اوسه پورې چا نه دی معاینه کړې.

زه پوهېدم چې په یو ډول ستنو سره، چې د میتاني په هېواد کې مې لیدلې وې، د هغه د سترګې نظر بیرته په موقتي ډول راستنولی شم.

کله چې سترګه د یوې ستنې په وسیله عملیات شي، که څه هم نظر بیرته سمېږي، خو له هغه وروسته، ددې ناروغ سترګه داسې کېږي، چې بیا بیرته نه رغېږي دغه راز بیا یې عملیات هم نه شي کېدای *(دغه څرګندونې د سینوهه د وخت او د هغه وخت علمي استدلال او منطق دی ژباړن)*

په بله ورځ چې کاپتا استراحت کړی او تکړه شوی و، ما هورم هب ته وروست.

هورم هب د کاپتا په لیدو ډېر خوشحال شو او هغه یې په غېږ کې ونیو، ښکل یې کړ او ویې ویل، کاپتا! ته نن سبا د مصر یو ستر اتل یې او د مصر ملت به دې هېڅکله هېر نه کړي.

خو کاپتا وژړل او ویې ویل اې هورم هبه! ټول هغه ویاړونه چې د مصر ملت یې پر ما پیرزو کول غواړي، زما لپاره د غنمو د یوې دانې په شان ارزښت لري.

اې هورم هبه! ویاړ او قدرونه د خدایانو د مرستې په شان دي، چې د مسو د یوې کړۍ په شان ارزښت نه لري او زه نه ستاسو قدرونه غواړم او نه هم هغه ویاړ غواړم چې د مصر ملت یې پر ما پېرزو کول غواړي.

زه سره زر غواړم ځکه چې له تاسره د مرستې لپاره مې ډېر لګښت کړی دی او دومره پوروړی یم، چې له چاسره د مخامخ کېدا جرئت نه لرم.

ته باید ماته سره زر را کړې، چې له دغو پورونو خلاص شم.

د هورم هب تنده تروه شوه او له ډېرې غوسې یې خپله متروکه په خپله پښه ووهله، ویې ویل، کاپتا! هغه څه چې ته یې وایې زما په غوږونو کې د مچانو د بنګېدا په شان دي ستا خوله په دې خبرو پلیته شوه، ته پوهېږې چې ما لا جنګي غنیمتونه، نه دي ترلاسه

کړي، چې تا ته سره زر درکړم.

که مې کومه ورځ غنیمتونه تر لاسه کړل، نو باید سره زر یې د هاتي پر خلاف په جنګ کې ولګوم او تا ته به هېڅ هم درونه رسېږي.

خو له دې کبله چې ته پوروړی یې او د پورونو غوښتونکو ته ځان نه شې ښودلی، نو هغوی ما ته راوښیه، چې زه ټول په جاسوسۍ او خیانت تورن کړم. په دار یې وځړوم او بیا به د چا پور درباندې نه وي.

کاپتا وویل، زه نه غواړم چې پور غوښتونکي مې په دار وځړوې، ځکه که هغوی ووژل شي، په مصر او سوریه کې به زما باور ختم کړې او بیا به هېڅوک له ما څخه کوم شی وانه خلي.

هورم هب چې غوښتل یې زما پر پخواني مریي ملنډې ووهي وویل، کاپتا! غواړم پوه شم چې غوايي سري، څنګه په دې تور چې د سوریې جاسوس یې جېل ته واچولې او شکنجه یې کړې.

ځکه چې د غزې واکمن که څه هم لېونی دی، خو یو ځیرک او ښه سرتېری دی، په پوځي مسلو کې تېروتنه نه کوي او حتماً داسې کوم علت شته چې پر تا یې ناسم ګمان کړی دی.

کله چې کاپتا دغه خبره واوریده، داسې زګېروی یې وکړ ته وا بیا شکنجه شوی وي.

د خپلو جامو ګرېوان یې وشکاوه، ځکه چې پوهېده تاوان نه کوي او دغه جامې ما ورکړې وې.

بیا یې وویل هورم هبه! تا همدا اوس ما ته وویل چې مصر به زما قدر وکړي او ما تلپاتې ویاړ ور په برخه کړی دی، نو څه ډول پر هغه کس د جاسوس تور لګوې چې مخکې دې ستر کس باله؟

ایا د مصر پوځ او پخپله تا زما خدمتونه هېر کړي دي؟

ایا دا زه نه وم، چې د هاتي پر اسونو مې زهرجن وابښه وخوړل، هغوی مې ختم کړل او په دې ډول د هاتي ګاډۍ بې کاره شوې؟

ایا دا زه نه وم چې د مرګ خطره مې ومنله او غزې ته مې غنم ورسول.

که زه نه وای، هغه غنم به غزې ته رسېدلي وای؟

ایا ددې ښار مدافعین به له لوږې مړه شوي نه ول او ته به دې ښار ته ننوتی وای؟

ایا دا زه نه وم، چې د خپلو سرو او سپینو په وسیله مې کسان وګمارل، چې په صحرا

کې تا د هاتي د عسکرو له حالته خبر کړي او دهاتي د عسکرو د اوبو ژي څېړې کړي، چې اسونه او عسکر یې ترې پاتې شي او په دې ډول ختم شي.

ټول دغه کارونه مې تا او مصر ته د خدمت په موخه کړي دي، په داسې حال چې پوهېدم، ته به زما اجوره ډېره ژر رانه کړې او په عین حال کې نورو له ما پیسې غوښتلې او چا وړیا کار هم راته نه کاوه.

ته پوهېږې، چې د طبس د پېښو له امله مې خپله ټوله شتمني له لاسه ورکړه او ډېوالیه شوم او کوم شی مې نه درلود چې مصرف یې کړم.

زه مجبور وم چې د آزیرو پاچا او هاتي ته خدمتونه وکړم، چې هغوی سره و سپین راکړي او یا ستا د بریالیتوب لپاره په نورو ډولونو د هغوی مرستې راجلب کړم.

هغه خدمتونه چې ما هاتي او د آزیرو پاچا ته کړي دي، په دې ډول و، چې تا ته یې تاوان نه رساوه، خو زما کارونه یې اسانول.

زه باوري وم، چې باید یو لایق کس څو غشي په کځوړه کې ولري، چې که یې یو پر نښې ونه لګېد، نو له نورو غشو به استفاده وکړي.

له همدې امله مې د ختو یوه لوحه د سوریې له پاچا آزیرو څخه واخیستله چې که د سوریې پوځ راته ستونزه پېښه کړي، په دې لوحه به ځان وژغورم.

له دې وروسته چې د زهرجنو وښو له امله د هاتي ټول اسونه مړه شول، هغوی پر ما بدګمانه شول او ما چې ځان په خطر کې لیده د سمندر له لارې غزې ته راغلم.

ما فکر کاوه چې که مې د غزې واکمن درناوی ونه کړي، نو لږ تر لږه له هغه چا سره به بد چلند نه کوي، چې مصر ته یې دومره لوی خدمتونه کړي دي.

خو هغه چې لېونی دی، کله چې یې زه، په سریاني جامو کې ولیدم پر ما شکمن شو او بیا یې زه وپلټلم.

د پلټنې په لړ کې یې راسره د آزیرو لوحه وموندله او چې څومره سپیناوی مې وکړ او له تا سره مې د خپلې ملګرتیا نښې ورته وویلې، هغه ونه منلې او باور یې نه کېده چې ما به د مصر پوځ ته دومره خدمتونه کړي وي.

زه یې داسې شکنجه کړم چې د غوایي په شان به مې نارې وهلې او متوجه شوم چې هغه غواړي، ما دوه ځایه کړي، نو مجبور شوم اعتراف وکړم چې زه د آزیرو جاسوس یم.

هورم هب وخندل او ویې ویل کاپتا! تا مصر او ددې هېواد پوځ ته ډېر خدمتونه کړي

دي، چې معنوي اجر لري، خو د سرو او سپينو خبره مه کوه، ځکه ته پوهېږې، که له ما څخه سره و سپين وغواړې ما به غوسه کړې.

کاپتا له دې ټولو سپينو خبرو سره سره ماتې ونه منله او دومره زارۍ او ژړاوې یې وکړې چې بالاخره یې له هورم هبه د هغه او د هغه د عسکرو د ټولو غنیمتونو د پېر و پلور ټیکه واخیسته.

د دې ټیکې له مخې کاپتا دا حق ترلاسه کړ، چې له هورم هب او د هغه له عسکرو څخه ټول جنګي غنیمتونه واخلي او په بدل کې یې خواړه او د تفریح وسایل پر عسکرو وپلوري.

کاپتا دا حق هم درلود، چې پیرودل شوي شیان په هر ځای کې پلورلای شي.

د دې ترون له مخې د هغو غنیمتونو د پېر و پلور حق هم کاپتا ته ورسېد، چې د هېوکو په دښته کې د هورم هب پوځ ته په لاس ورغلي و.

زه پوهېدم چې په دغو امتیازونو سره کاپتا ښه شتمن کېدای شي.

په همدې وخت کې، چې کاپتا له هورم هب څخه دغه حق ترلاسه کاوه، ځینې سوریاني او مصري سوداګر هم غزې ته راغلي ول، چې د عسکرو غنميتونه ترلاسه کړي.

خو له دې کبله چې د غنیمتونو د ترلاسه کولو حق له کاپتا سره و، نو د هغه له خوښې او باج ورکولو پرته سوداګرو هغه غنیمتونه هم له سورېې نه شوای ایستلای چې اخیستي یې ول.

هورم هب له دې وروسته په غزه کې یې له مصره راغلي مرستندوی ځواکونه، له خپلو ځواکونو سره یو ځای کړل، نو په جنوبي سوریه کې چې څومره اسونه ول ټول یې ترلاسه کړل.

عسکر او ګاډۍ یې تمرین او مشق کولو ته اړ کړل، غوښتل یې د سورېې پر یوه ستر بندر ژوبه برید وکړي.

خو پر دغه بندر له حملې مخکې یې یوه اعلامیه صادره کړه، چې د هغه د جاسوسانو په وسیله په ټوله سوریه کې د خلکو تر غوږونو ورسول شوه.

په دې اعلامیې کې د سورېې خلکو ته په خطاب کې ویل شوي ول، زه د دې لپاره نه یم راغلی چې د سورېې ښارونه ونیسم، بلکې غواړم د سورېې ښارونه وژغورم او د ښار اوسېدونکي باید ما خپل ژغورونکی وبولي.

باید ووایم، هغه مهال چې سوریه د مصر په کنټرول کې وه او لا د آزیرو او هاتي لاسونو ته نه وه لویدلې، د سوریې هر ښار خپلواک او ازاد و او په هر ښار کې یوه پاچا حکومت کاوه.

ددې ښارونو او سپېدونکو په آزادۍ کې ژوند کاوه، سوداګري یې کوله، شتمن هم ول، خو له دې وروسته چې آزیرو په سوریې حکومت وکړ، پخوانی دود یې ختم کړ او د ښارونو خپلواکي او پاچاهان یې ختم کړل او له ښارونو یې ډېرې مالیې ترلاسه کړې.

آزیرو چې ډېر حریص و، دغه ښار یې په هاتي خرڅ کړ او هاتي په خپله بې رحمۍ او خاص حرص سره د ښار پر او سپېدونکو داسې فشار راوست، چې هغوی به هېڅکله د هاتي د حکومت وخت هېر نه کړي.

هورم هب پوهېده چې خلک د هاتي له ظلمونو تنګ شوي، نو پخپله اعلامیه کې یې وویل، زه هورم هب، د شاهین زوی یم، هر ښار او کلي به د مریېتوب له جغه وژغورم او ټینګار کووم چې د سوریې ټول ښارونه به د پخوا په شان ازاد او خپلواک وي.

هغو پاچاهانو چې د هاتي او آزیرو تر واکمنۍ مخکې یې پر دغو ښارونو حکومت کاوه، هغوی به بیا د پاچاهۍ پر ګدۍ کښېني.

یو ځل بیا به د سوریې د ښارونو او کلیو دغوړېدا او سوکالۍ وختونه راشي.

هورم هب پخپله اعلامیه کې د سوریې ټولو ښارونو ته بلنه ورکړه، چې د هاتیانو پر خلاف پاڅون وکړي.

هغوی وباسي او ویې ویل، هرښار چې د هاتي پر خلاف بلوا وکړي د هغه ملاتړ به و رسره وي.

خو هغه ښارونه چې د مصریانو پر وړاندې مقاومت وکړي، کله چې مصریان بریالي شي، نو لوټ به یې کړي او ټول او سپېدونکي به یې د مریبانو او وینځو په توګه وپلوري د ښار کلا به داسې ورانه کړي، چې بیا به هلته هېڅکله ښار اباد نه شي.

د هورم هب اعلامیې د سوریې او هاتي په خلکو کې اختلافات پیدا کړل او د هورم هب هدف هم همدا و.

کله چې د هورم هب بېړیو د ژوبه بندر پر لور حرکت وکړ، کاپتا له غزې ونه خوځېد، ځکه باور یې نه کېده، چې هورم هب به په ژوبه کې بریالی شي.

هغه پوهېده چې آزیرو او هاتي په سوریې کې د ځواکونو په ټولولو بوخت دي.

غوايي سرى (روژو) وروسته له کاپتا سره پخلا شو ، ځکه چې پوه شو ، هغه د سوريې د پاچا ازيرو جاسوس نه دى ، بلکې د مصريانو خدمتونه يې کړي دي
بله دا چې کاپتا ، روژو د خرو د څلور سوه کتو د ورکېدا له لانجې وژغوره ، هغه ته يې وويل ، د خرو کتې چا نه دي پټې کړې ، بلکې د هغه عسکر چې وږي ول ، د پسونو له پوستکو جوړې کتې يې هم خوړلې دي
له دې وروسته چې غوايي سرى پوه شو ، چې کتې چا نه دي خوړلې لېونتوب يې هم ښه شو ، مورږ يې لاسونه او پښې خلاصې کړې او ازاد شو.
بايد ووايم چې د هورم هب او د هغه د لښکر له تګه وروسته ، زه په غزه کې پاتې شوم ما وليدل چې څه ډول د رانده جېل ساتونکي سترګې ، په موقتي ډول معالجه شوې او هغه ښه نظر بيرته ترلاسه کړى.
غوايي سري د هورم هب له تګه وروسته د ښار دروازې بيرته بندې کړې او ويې ويل ، له دې وروسته ، به د مصر هېڅ يوه لښکر ته اجازه ورنه کړي ، چې دې ښار ته ننوځي او د هغه لپاره ستونزې پيښې کړي
له دې کبله چې د غزې واکمن ، بل کار نه درلود ، نو له کاپتا سره يې چې د هغه ملګرى شوى و ، شراب څښل او د کاپتا او بوډا جېل ساتونکي د کمسايي ننداره يې کوله
کاپتا او نومورى بوډا له سهاره تر بېګا کمسايي کوله . شراب يې څښل او ډېر ځله به سره ښکېل شول ، ځکه چې جېل ساتونکى به تل بايلونکى و ، هڅه به يې کوله چې په هره لوبه کې لږ شرط وتړي ، خو کاپتا به اړ کړ چې ډېر شرط وتړي
کله چې د هورم هب لښکر ژوبه ته ورسېد *(ژوبه يو بندري ښار و ، چې نن سبا يافا بلل کېږي ژباړن)* د کاپتا او زاړه جېل ساتونکي لوبه هم خلاصه شوه او ما واورېدل ، چې هغوى په يو وار په يو نيم لک دينه سرو زرو شرط وهلى و.
بوډا جېل ساتونکي نه يوازې پر کاپتا هغه ټولې پيسې بايلودې ، چې پور يې ورباندې و ، بلکې له کاپتا څخه دوه لکه دينه سره زر پوروړى هم شو.
خو کاپتا ځواني وکړه او دغه سره زر يې له هغه څخه ونه غوښتل ، بلکه څو کرۍ سپين زر يې هم ورکړل
په دې ډول چې کله زه او کاپتا له غزې څخه د ژوبه پر لور تلو ، دغه بوډا د دغه احسان له امله چې کاپتا پرې کړى و ژړل

زه نه پوهېږم، چې کاپتا د کمسایي په سمو دانو له هغه سره لوبه کوله، که ټګي یې ورسره کوله، خو په دې خبر یم چې کاپتا د کمسایي په لوبه کې ډېره تجربه درلوده.

له دې وروسته چې موږ له غزې روان شو، ددې کمسایۍ اوازه، چې څو ورځې یې دوام وکړ او دوو قماربازانو، په څو مېليونه دینه سرو زرو لوبه کوله، په ټولې سوریې کې خپره شوه.

بوډا جېل ساتونکی زموږ له تګه وروسته بیرته ړوند شو او په هغو سپینو زرو چې له کاپتا یې اخیستي ول، د ښار د کلا په خوا کې یې یوه جونګړه جوړه کړه او خپل پاتې عمر یې هلته تېر کړ.

له دې کبله چې غزې د هاتي له ولکې تر وتلو وروسته خپل سوداګریز اهمیت بیا موند، ډېر مسافر او سوداګر به دې ښار ته تلل او هر څوک چې به د سوریې له داخل او بهره دې ښار ته ننوتل، غوښتل یې هغه بوډا جېل ساتونکی وګوري او د هغه ستر قمار کیسه ترې واوري چې تر هغه وخته یې په مصر او سوریه کې ساری نه درلود.

دغه کیسه د هغه بوډا له خولې واوري.

بوډا په ډېرو یاړ او خوشحالۍ سره دا کیسه کوله، کله چې به دې ځای ته ورسېد، چې په یو ځل کمسایۍ اچولو یې یو نیم لکه دینه سره زر وبایلل، خلکو به له حیرانیتا چیغې کړې، ځکه چې تر هغه وخته یې نه و اورېدلي چې حتی یو فرعون په کمسایي اچولو کې یو نیم لک دینه سره زر بایللي وي.

هر څوک چې به ددې بوډا کتلو ته راتله یوه اندازه مس او سپین زر به یې هغه ته ورکول او په دې ډول ددې بوډا د قمار اوازه د هغه لپاره د تنخوا یوه ښه وسیله شوه.

لکه چې زه خبر وم تر هغه وخته، چې ژوندی و، په همدې شتمنۍ یې ګوزاره کوله او که کاپتا هغه ته یوه پانګه هم ورکړې وای، داسې ښه ژوند یې پرې نه شو کولای.

کله چې هورم هب د ژوبه ښار ونیو، زه او کاپتا هم هلته ورسېدو او هلته مې د لومړي ځل لپاره ولیدل، یو بریالی پوځ چې یوه شتمن ښار ته ننوځي، نو هلته کومې کانې او لوبې کوي.

هورم هب د ژوبه ښار کلابند کړ، په وروستیو ورځو کې تر نسکورېدا مخکې، د ښار ځینو زړورو او سېدونکو د هاتي د ځواکونو پر خلاف پاڅون وکړ او د ځان د ژغورولو لپاره یې سربښند نه وکړه.

خو هورم هب په دې پلمه چې د ښار د اوسېدونکو بلوا هغه وخت وه چې د مصر د لښکر لپاره یې هېڅ ګټه نه درلوده، نو د ښار د لوټولو مخه یې ونه نیوله او د غه ښار یې له لوټماری معاف نه کړ.

د هورم هب عسکرو دوه اوونۍ دغه ښار لوټ کړ او کاپتا په دې دوو اوونیو کې ډېر شتمن شو، ځکه چې د هورم هب عسکر مجبوره ول چې د ښار غنیمتي شیان پر کاپتا او یا د هغه پر همکارانو خرخ کړي او په بدل کې یې د اوربشو اوبه او شراب واخلي.

کاپتا بـه ګـران بیـه شیان، ښکلي مېزونـه او د خدایانو مجسمې پـه ډېره کمـه بیـه اخیستل.

هر سرتېري له ځان سره اسیران درلودل او هر سریاني اسیر یې د مسو د دوو کړیو په بدل کې پر کاپتا خرڅاوه، ځکه چې بل پېرودونکی نه و.

دغه حق هم هورم هب کاپتـا تـه ورکـړی و، بـل چا د غنیمت شیان وینځې او مریيان نه شوای پېرودلی.

په دغه ښار کې ما ولیدل چې له انسان پر ته بل داړونکی ځناور نشته.

کله چې یوه ډله انسانان پر بل لوري بریالي کېږي، نو له ناکامو کسانو سره داسې چلند کوي، چې د مصر د جنوب وحشیان یې د دې سیمې له ځناورو سره هم نه کوي.

ځکه کله چې یو ځناور یا وحشي حیوان موړ شي، له نورو ځناورو سره بیا کار نه لري، مګر انسان، چې وږی شي، بیا هېڅکله نه مړېږي.

که د مصر بابل او سوریې ټوله شتمني هم ورکړې، بیا بـه هم وږل کوي او کورونه به ورانوي ځکه غواړي چې نوره شتمني هم ترلاسه کړي.

خو کله چې یوه شي له خلکو څخه نور څه نه شي ترلاسه کولی، د خلکو وږلو تـه مخه کوي او نور کسان وژني، که څه هم چې ورته ګټه نه لري او د هغه شتمني نه شي زیاتولی.

ما ولیدل چې په ژوبه کې د مصر سرتېرو کورونو ته اور واچاوه چې د هغه اور په رڼا کې خپل شراب وڅښلی شي او ځانونه بوخت کړي.

ما پخپله لیدل چې کله بـه د مصر لښکریانو لـه یوه سوداګره د هغـه شتمني ولوټوله، هغه به یې شکنجه کړ، چې ورته ووایي نور سره و سپین یې چیرته ښخ کړي دي؟

ما ولیدل چې د مصر سرتېري به په یوه څلور لاره کې درېدل او هر نارینه، ښځه، بوډا او ماشوم چې به د لته تېرېدل هغوی به یې وژل او د ژوبه د ښار ښځې، سړي او ماشومان د

مصر د سرتېرو د غشو ويشتلو ښبې وې.

ما تصور کاوه، هغه منظرې چې ما په طبس ښار کې، د خدايانو په جنګ کې وليدلې، تر ټولو وېرونکې وې او په عمر کې به بيا د غسې حالت ونه وينم، خو کله چې مې په ژوبه ښار کې د هورم هب د عسکرو ښاروېتوب وليد، متوجه شوم چې د طبس ښار غميزه د دې پر وړاندې يوه ټوکه ده.

په طبس کې د آتون او آمون پلويان، دواړه مصريان ول او کله کله به يې پر ماشومانو او ښځو رحم کاوه او ټول به يې زما د مېرمنې او بچي په شان نه وژل.

خو په ژوبه کې د هورم هب عسکرو تې خواره ماشومان هم ووژل، هورم هب ښځې ازاد پرې ايښې ول او مخه يې نه نيوله.

ما فکر کاوه، چې ژوبه په ښار کې د هورم هب د عسکرو ډلوژنه او لوټماري د هېرېدو نه ده او په دې ښساري وژنې او لوټماري کې د شمتنيو د ترلاسه کولو خوند مصري سرتېرو وڅاکه.

زه ويلای شم چې هورم هب په ژوبه ښار کې په قصدي توګه خپل عسکر د وژنې او لوټماری لپاره ازاد پرې ايښي دي

ځکه چې هغوی پوه شي، د خلکو د شتمنيو لوټل او د هغوی د بېګناه ماشومانو او ښځو اسيرانول څومره خوند لري او په را تلونکې کې به د داسې خوند د ترلاسه کولو لپاره هر ډول خطر ته غاړه کېږدي

همداسې هم وشول، د ژوبه د جنګ له پای ته رسېدو وروسته کله چې هورم هب هڅه وکړه، چې د سوريې نور ښارونه هم ونيسي عسکرو د شرابو شتمنی او ښځو د ترلاسه کولو لپاره د هېڅ خطر پرواه نه کوله او د مرګ هر کلي ته ورتلل.

مصري عسکرو هڅه کوله چې يا بريالي شي او يا ووژل شي، ځکه چې پوهېدل د سوريې د پاچا ازيرو عسکر اسيران نه مني او هر مصری عسکر چې ورته تسليم شي ژوندی يې له پوسته کوي.

دوی به ويل دغه مصري عسکر هم د نورو په شان د سوريې د ښارونو په لوټولو او خلکو په وژلو کې لاس درلود.

کله چې د ژوبه ښار د لوټماری او ډلوژنې خبر د سوريې نورو ښارونو ته ورسېد، د سوريې په څو ښارونو کې خلکو د ځان له وېرې د هاتي د عسکرو پر خلاف بلوا وکړه او

هغوی یې له ښارونو و ایستل چې هورم هب به ور ورسېد د ښار دروازې به یې ورته خلاصې کړې.

زه (ژوبه) ښار کې د مصري عسکرو د وژنې او لوټماریو په هکله نور څه نه وایم. ځکه کله چې دغه غمیزه را په زړه شي له ډېر خپګانه مې زړه په ګوګل کې د یوې درنې ډبرې په شان دروند شي.

لاسونه مې وچ شي، دغه شکلونه پر پاپیروس نه شم انځورولی.

همدومره وایم، تر دې وړاندې چې هورم هب پر ژوبه ښار حمله کوله، په دغه ښار کې له ماشومانو پرته شل زره کسانو ژوند کاوه، خو کله چې دغه ښار هورم هب ونیو څه د پاسه درې سوه کسان پکې پاتې شول.

هغه نور جنګونه چې هورم هب په سوریه کې وکړل، ټول د ژوبه ښار د جنګ په شان ول.

ما د هورم هب او د مصر د لښکر د ډاکټر په توګه ولیدل، چې بشر څنګه د خپل ساري لپاره پر یوه لویه بلا بدلېدای شي.

د سوریې جنګ درې کاله اوږد شو، چې په ترڅ کې یې هورم هب څو ځله د آزیرو او هاتي لښکرې ماتې کړې.

سره له دې چې دوه ځله د هاتي ګاډیو د هورم هب لښکرې کلابند کړې، خو هغه بریالی شو، چې ځان د ښارونو د کلاګانو د دېوالونو په پناه کې پټ کړي او له تباهۍ یې وژغوري.

هورم هب به تل له مصر سره سمندري اړیکې درلودل او هر ځل به وتوانید چې له مصره مرستندویه ځواکونه را وغواړي چې له کلاګانو راووځي او جنګ ته دوام ورکړي.

د دغه درې کلن جنګ له امله د سوریې ښارونه وران شول او خلکو چې په هېڅ ځای کې خوندي نه وو، ښارونه او کلي یې پرېښودل او غرونو ته یې پناه یوړه.

خو هغو سیمو ته تلل چې د مصر تر کنټرول لاندې وې، ځکه چې په دغو سیمو کې خلکو امنیت او خپلواکي درلوده، تجارت او کرنه به یې کوله.

خو همغه ډول چې په دغه درې کلن جنګ کې د سوریې ښارونه وران شول، د مصر ښارونه او کلي هم په دغه درې کلن جنګ کې له خلکو تش شول.

د نیل سیند په دواړو غاړو کې داسې کورنه و، چې خپل یو یا څو نارینه یې د سوریې په جنګ کې له لاسه نه وي ورکړي.

خو هورم هب ويل. چې دغه سربندنه د مصر د لوړاوي په لاره کې ده او د تورو خاورو دغه هېواد به ستر کړي.

په دې درې کلن جنګ کې هورم هب، په پرله پسې توګه په سوريه کې وجنګېده، زه تل د هغه له عسکرو سره وم او ټپيان به مې معالجه کول.

که څه هم د طب او جراحۍ په برخه کې مې نوې تجربه تر لاسه کړه خو ملا مې کړوپه شوه او په مخ کې مې ګونځې پيدا شوې.

پخپلو سترګو مې داسې وېرونکي جنايتونه وليدل، چې زما فکر، ادب او ظرافتونه، څپڅپانده شول او ما هم د بوډا ډاکټرانو. په شان په خشونت سره خبرې کولې او د ځوانۍ په اپوټه مې له ناروغانو او ټپيانو سره نرمې خبرې نه کولې.

د جنګ په درېيم کال د طاعون ناروغي ګډه شوه او علت يې دا و چې اکثره وخت له سترو جنګونو وروسته طاعون پيدا کېږي، ځکه چې د انسانانو ډېر مړي په يوه ځای کې راټولېږي.

له دې کبله چې دغه مړي نه خښېږي او نه موميايي کېږي او يا يې له موميايي کولو پرته شخوي، نو د انسانانو مړي، د جنګ په ډګرونو کې ورستېږي او په دې ډول د طاعون ساري ناورغي پيدا کېږي.

# یو پنځوسم څپرکی

## له یو مات شوي سړي سره یوه شپه

دجنګ د دوام له امله ټوله سوریه پر یوه قصاب خانه بدله شوې وه، په هرځای کې مړي پراته ول او په دغسې حالت کې څوک د طاعون خپرېدا ته نه حیرانېږي.

دغه طاعون داسې مرګ ژوبله واړوله چې د سوریې ځینې قومونه بېخي له منځه لاړل.

په دې ډول چې حتی د هغوی ژبه هېره شوه او نن سبا څوک نه پوهېږي چې د دوی اصلي ژبه کومه وه.

دې ناروغۍ د مصر، هاتي او سوریې د پاچاهانو په جبهه کې دومره عسکر تر تورو خاورو لاندې کړل، چې جنګي خوځښتونه ودرېدل او عسکر له سمو څخه د غرونو پر لور وتښتېدل چې له طاعون څخه خوندي شي.

د طاعون ناروغي د مصر د پخواني خدای آتون، په شان مساواتو، ته پام کاوه، ځکه چې شتمن بېوزلي، زاړه، ځوانان، ښکلي او بدرنګه ټول یې وژل او یو خان به یې د یوه سوالګر په شان تباه کاوه.

هېڅ ډول معمولي درملو ددې ناروغۍ مخه نه شوه نیولای، دا ناروغي دومره سخته وه، چې پرې اخته کسانو به خپلې لمنې پر سر ورپورته کړې، پر ځمکه به یې پښې اوږدې وغځولې او په درې ورځو کې به مړه شول.

ځینې پکې معالجه شول، په تخرګ یا د ورنو په پورتنۍ برخه کې به یې غټه دانه پیدا شوه او د طاعون زوې او چرک به له دې لارې ووت.

خو تر هغه چې ژوندي ول ددې تپ ځای به یې په بدن کې پاتې و او ددې ښودنه یې کوله چې له ډېرې لویې خطرې سره مخامخ شوی دی.

د طاعون له امله به غټ او چاغ کسان تر هغو ژر مړه شول، چې ډېر ډنګر او کمزوري به

ول او کله چې به یو کمزوري او کم خونه کس په طاعون اخته شو، ددې احتمال ډېر و، چې معالجه شي او ژوندی پاتې شي.

له همدې امله کله چې به ما د طاعون ناروغان معالجه کول، څو ځله به مې د هغوی وینه کموله، چې کمزوري شي او ورته ویل به مې، چې څو ورځې ډوډۍ ونه خوري.

له دې سره سره چې ځینې کسان به په پرله پسې ډول د وینې له ورکولو وروسته او د ډوډۍ په نه خوړلو، پسې معالجه شول، خو زه نه شم ویلای چې ایا زما علاج به د هغوی په درملنه کې ګټور و کنه؟

ځکه ځینې کسان چې همداسې مې معالجه کړي ول مړه شول. که څه هم چې پوهېدم زما درملنه ډېره ګټوره نه ده، خو معالجې ته مې دوام ورکاوه، ځکه یو ډاکټر حتی که پوه شي، چې ناروغ یې مړکېږي بیا هم تر پایه د هغه معالجه کوي او باید ناروغ ته داسې وښیي، چې معالجه یې کولای شي.

زه نه وایم چې زما د معالجې رودې ګټورې وې، خو دغه ګټه یې درلوده، چې بېوزلو هم ترې استفاده کولای شوه، ځکه چې ګرانه نه وه او د وینې را ایستل یا لږ ډوډۍ خوړل د بې وزلو لپاره تر ټولو ارزانه درمل دي.

هغو بېړیو چې د مصر او سورېې تر منځ یې حرکت کاوه، د طاعون ناروغي یې مصر ته هم ولېږدوله، خو دې ناروغۍ په مصر کې ډېره مړګ ژوبله نه درلوده.

په مصر کې هغه کسان چې علاج یې کېده، تر هغو ډېر ول، چې مړه به شول.

کله چې منی راورسېد د نیل سیند مست شو، ورسره په مصر کې د طاعون ناروغي هم ختمه شوه.

د ژمي په را رسېدا سره په مصر کې هم دا ناروغي ختمه شوه او له هغه وروسته هورم هب وتوانېد چې له غرنیو سیمو څخه خپل تیت و پرک عسکر بیرته راوغواړي

په پسرلي کې هورم هب له خپلو عسکرو سره د مجیدو دښتې ته ننوت او په دغې دښته کې یې دیوې لویې جګړې په پایله کې د هاتي لښکرو ته ماتې ورکړه. له دې سره هغوی د سولې وړاندیز وکړ، ځکه پوهېدل که سوله ونه کړي، د بابل د پاچا له حملې سره به هم مخامخ شي.

(بورابوریاش) چې د مصر د فرعون اخناتون په پېر کې د مصر له حکومت سره متحد شوی و، کله چې یې واورېدل هورم هب په مجیدو دښته کې د هاتي لښکرو ته ماتې

ورکړې ده، فیصله یې وکړه چې د میتاني پر هېواد حمله وکړي.

ده غوښتل له هاتي څخه میتاني ونیسي او دغه کار هم وکړ، میتاني یې له هاتي څخه ونیو.

د هاتي لښکرې له دې هېواده وتښتېدې او د دوو سترو سیندونو چې په بابل کې بهېږي په سرچینه کې پرتې پراخې سیمې د بابل د پاچا لاس ته ولوېدې.

کله چې د هاتي افسران په سوریه کې مات شول، پوه شول چې سوریه د اسې ورانه شوې، چې نور له دې ځایه استفاده نه شي کېدای.

دوی نه غوښتل په سوریه کې خپلې پاتې جنګي ګاډۍ له لاسه ورکړي، چې باید د بابل د پاچا پر خلاف ترې کار واخلي.

هورم هب د هاتي د سولې په وړاندیز خوشحال شو، ځکه چې د سوریې درې کلن جنګ مصر ته ډېر تاوان رسولی و او هورم هب غوښتل چې دغه جنګ نور پای ته ورسېږي چې وکړای شي سوریه اباده کړي.

خو د سولې یو شرط یې دا کېښود چې د هاتي لښکر دې د مجیدو ښار، چې هغه مهال د سوریې پاچا آزیرو خپله پلازمینه ټاکلې وه، له آزیرو او د هغه له ماشومانو سره یو ځای هورم هب ته تسلیم کړي.

ځکه د آمورو هېواد پاچا آزیرو، له دې وروسته چې سوریه یې ونیوله او د سوریې پاچا شو، خپله پلازمینه یې بدله کړه او مجیدو یې پلازمېنه کړه.

د هاتي لښکرو هم په مجیدو کې د آزیرو پر ماڼۍ برید وکړ، هغه یې له خپلې مېرمنې او بچیانو سره ونیو او په ځنځیرونو تړلي یې هورم هب ته وسپارل.

وروسته چې د هاتي لښکرو د سوریې پاچا، د هغه مېرمن او بچیان یې هورم هب ته وسپارل، نو پرېکړه یې وکړه چې د سوریې له پلازمېنې مجیدو څخه لاړ شي.

د تګ پر مهال چې یې هر څومره پسونه، غوایي او نور مالونه موندل، له ځان سره یې هاتي ته یوړل.

هورم هب د سوریې پاچا آزیرو او د هغه ښځه او بچیان بندیان کړل، امر یې وکړ نغارې ووهي، چې ټول پوه شي جنګ پای ته رسېدلی او د مصر او هاتي تر منځ سوله ټینګه شوې ده.

ددې سولې په ویاړ یې یوه مېلمستیا برابره کړه او د هاتي افسرانو ته یې هم بلنه

ورکړه، چې د سولې د ټینګښدا په شپه دې په دې مېلمستیا کې ګډون وکړي
ده فیصله وکړه، چې ددې مېلمستیا پر سبا د سوریې پاچا آزیرو او د هغه مېرمن او ماشومان د هاتي او مصر د حاکمانو او افسرانو په مخکې له سختې شکنجې وروسته اعدام کړي.
ما ددې کتاب په پیل کې له آزیرو سره د خپلې ملګرتیا په هکله خبرې کړې وې او ویلي مې ول، چې هغه تر دې وړاندې چې د ټولې سوریې پاچا شي، پخپل هېواد آمورو کې چې د سوریې یوه برخه وه زما هرکلی کړی و.
پر دې شپه مې د هورم هب په مېلمستیا کې ګډون ونه کړ او هوډ مې وکړ، چې د هورم هب په مېلمستیا کې د ګډون پر ځای هغې کېږدي ته ورشم چې آزیرو یې پکې په ځنځیرونو تړلی دی.
زه پوهېدم دغه سړی چې یو وخت د ټولې سوریې پاچا و، اوس د پاچاهۍ له ګدۍ غورځول شوی او په مرګ محکوم شوی دی او سبا به په سخته شکنجه مړ شي.
دی هېڅ ملګری نه لري او دغه راز پوهېدم چې آزیرو داسې سړی دی، چې غواړي ژوندی پاتې شي او په اسانه له ژونده لاس نه شي اخیستلای.
ما غوښتل هغه ته ووایم چې ژوند دومره هم خوږ نه دی، چې دی یې تصور کوي
که هغه شیان چې ما پخپل عمر کې لیدلي، هغه لیدلي وای نو په اسانه به یې له ژونده لاس اخیستی وای.
له دې کبله چې زه یو ډاکټر یم غوښتل مې، هغه ته ووایم چې مرګ د بدني ځورونې او د ژوند له سترو غمونو او نهیلیو څخه یوه خوږه پېښه ده او بلـه دا چې انسان تل له ژونده کرکېږي، نه له مرګه.
ما غوښتل دغه ټولې خبرې هغه ته وکړم، چې ښایي پر دې شپه ارام خوب وکړي، ځکه پوهېدم، د هغه په شان یو کس چې ژوند پرې ګران دی، کله چې وپوهېږي سبا یې وژني، نو ټوله شپه به ویده نه شي.
که زما خبرو پرې اغېز وکړ ډېره به ښه شي، خو که یې اغېز ونه کړ، زه به یې تر څنګ تر سهاره کېنم چې یوازې نه وي.
ځکه چې انسان په ژوند کې ډېر کلونه له ملګري پرته پاتې کېدای شي، خو د مرګ په وخت کې یوه ملګري ته اړتیا لري، په تېره بیا چې یو ستر کس او پاچا وي.

کله چې يې آزيرو له نيولو وروسته د هورم هب اډې ته راوست، مصري عسکرو ورته ښکنځلې کولې او د اسونو په خوشيو يې ويشت. زه چې د هورم هب تر څنګ ناست وم، خپل مخ مې پر خپله لمن پټ کړ چې ما ونه ګوري او ونه شرمېږي.

زه پوهېدم چې آزيرو يو کبرجن کس دی او پوهېده، هغه وخت چې ما ليدلی و، د قدرت په اوج کې و، غوښتل يې ټوله سوريه ونيسي، خو اوس يې نه غوښتل چې زه يې داسې خوار ووينم.

په دې شپه چې کله ما غوښتل د آزيرو کېږدۍ ته ننوځم، ساتونکو زما مخه ونه نيوله، پوهېدل، چې زه ډاکټر يم، فکر يې وکړ ورځم او د آزيرو ټپونه معالجه کووم او که آزيرو زخمي هم نه وای بيا هم ساتونکو زما مخه نه شوای نيولې.

کله چې زه کېږدۍ ته ورننوتلم ساتونکو وويل پرېږدئ، چې دغه سړی کېږدۍ ته ورننوځي، ځکه سينوهه ابن الحمار د هورم هب ملګری دی.

که موږ يې د ننوتو مخه ونيسو، هغه به په خپله ژبه چې د لړم دنيش په شان ده، موږ وچچي او يا به له خپله طبابته استفاده وکړي او زموږ د مردانګۍ ځواک به ختم کړي.

په دې ډول له کوم مزاحمت پرته کېږدۍ ننوتم او ومې ويل :اې آزيرو، د آمورو هېواد پاچا ! ايا په دې شپه چې په سبا يې مرې غواړې يو دوست او ملګری ومنې؟

د کېږدۍ په تيارو کې د آزيرو د ځنځيرونو غږ واورېدل شو او هغه سوړ اسويلی وايست ويې ويل، زه نور پاچا نه يم او کوم ملګری هم نه لرم، ځکه څوک چې له قدرته لوېږي، خپل ټول دوستان او ملګري له لاسه ورکوي، خو ستا غږ راته اشنا دی ... ايا ته سينوهه نه يې؟

ومې ويل هو زه سينوهه يم.

آزيرو وويل د مردوک په خدای قسم درکووم، که سينوهه يې چاته ووايه چې يو څراغ راوړي، چې دغه ځای لږ روښانه شي، ځکه چې په تياره کې زه نا ارام يم.

دغو لعنتي هاتيانو زما جامې شکولې دي او بدن يې راټيپي کړی دی، نو له همدې کبله زه نور يو ښکلی سړی نه يم.

خو پوهېږم چې ته يو ډاکټر يې او تر بدرنګه کسان دې هم کتلي دي او پر دې سربېره زه بايد مړ شم، نو په خپله بدبختۍ نه شرمېږم. ځکه چې د مرګ په وخت کې بدبختي د شرم خبره نه ده.

سینوهه! یو چاته ووایه، یو څراغ راوړي چې زه تا وګورم او ستا لاس ونیسم، ځکه چې زما روح غمجن دی.

کله چې د خپلو بچیانو او ښځې فکر کوم، له سترګو مې اوښکې بهېږي او که ته وکړای شې، چې لږ د اوربشو اوبه راته پیدا کړې، چې شونډې او ستونی پرې لوند کړم، نو له مړینې وروسته به د بلې دنیا دېوانو ته ستا ستاینه وکړم، ځکه چې له مړینې وروسته به له دېوانو پرته نور ملګري نه لرم.

زه اوس داسې بېوزله شوی یم، چې د اوربشو د یوه منګي اوبو د پېرودلو وس هم نه لرم او د هاتي عسکر و زما هرڅه ولوټل، ان وروستی کړی مس یې هم رااخخه واخیستل.

ما عسکرو ته وویل څراغ راوړئ، خو هغوی مشال راوړ او له دې کبله چې کېږدی د مشال له لوګي ډکه شوه، مونږ په تنګ شوو، نو مې بېرته ورته وویل چې مشال یوسي او څراغ راوړي.

له دې وروسته چې عسکر څراغ راوړ، ومې ویل مونږ ته د اوربشو اوبه هم راکړئ.

د سورېې تېز بیر یا د اوربشو اوبه یې راوړې، آزیرو په زګیرویو سره پورته شو او ما ورسره مرسته وکړه، چې بیر وڅښي.

په دې وخت کې مې ولیدل، چې د هغه د سر ویښتان د ایرو په رنګ شوي ول او عسکرو یې ډېره داسې ور شکولې وه، چې د مخ غوښه یې هم له ویښتانو سره جلا شوې وه.

دغه راز ومې لیدل، چې د لاس ګوتې یې سختې ژوبلې شوې وې او ځینې ګوتې یې بېخي ماتې شوې وې.

نوکان یې د هغې وینې له امله تک تور شوي ول چې له ګوتو یې بهېدلې وه.

د آزیرو څو پوښتۍ هم ماتې وې، په ډېره سختۍ یې ساه اخیستله او کله به یې له خولې وینه هم وبهېدله.

کله چې یې د اوربشو لږ اوبه وڅښلې، څراغ ته یې وکتل او ویې ویل، نن شپه د څراغ رڼا زما د سترګو سترګو لپاره ملایمه او خوندوره ده.

خو د څراغ رڼا د ژوند د شغلې په شان څو تکانونه خوري، نځا کوي او بیا د ژوند په شان خاموشه کېږي.

اې سینوهه! زه ددې څراغ او د اوربشو د اوبو له امله ستا مننه کووم او خواشینی یم

چې کوم شی نه لرم چې د ډالۍ په توګه یې درکړم، ځکه چې د هاتي عسکرو ان زما هغه طلایي غاښونه هم له خولې وایستل چې تا زمالپاره جوړکړي ول.

له دې کبله چې د هغه سړي ړتل چې زموږ په خبرو یې عمل نه دی کړی او ځان یې بدبخته کړی دی، د کبر او غرور مانا لري، نو ما ورته ونه ویل، چې پخوا مې له هاتي منع کړی و او ورته مې یادونه کړې وه چې هاتي ډېر بې رحمه، بې پروا او ظالم ملت دی.

هغه کس چې زموږ نصیحت ته د بې پامۍ له امله بدبخته شوی دی، ددې بې پروایۍ سزا یې پخپلې بدبختۍ سره تېره کړې ده.

موږ یې اوس باید ونه ړټو، چې ولې دې زموږ نصیحت ته پام نه دی کړی.

بیا مې د آزیرو سر ورو ورو په خپلو لاسونو کېښود، هغه وژړل او اوښکې یې زما د ګوتو ترمنځ وڅڅېدې.

آزیرو وویل سینوهه! کله چې زه پاچا او ځوکمن وم، ستا په وړاندې به له شرم او خجالته پرته خندېدم او خوشحاله به وم او اوس چې بدبخته شوی یم، ولې ستا پر وړاندې په ژړا وشرمېږم؟

خو سینوهه! په دې پوه شه، چې زه په تللې پاچاهۍ پسې نه ژاړم او د خپلې لوټ شوې شتمنۍ لپاره هم اوښکې نه تویوم، بلکې زه د خپلې مېرمنې (کفتیو) او خپل ځوان او زړور زوی او بل ماشوم زوی په خاطر ژاړم.

کفتیو ماته تا راکړې وه.

ومې ویل اې د آمورو پاچا آزیرو! ما نه غوښتل چې نن شپه د اسې خبره وکړم، چې تا نور هم خپه کړم، خو له دې کبله چې ته د خپلې ښځې او ماشومانو لپاره ژاړې، زه دې اړکړم، چې یو څه درته ووایم.

هغه نور کسان چې له دریو کلونو راهیسې په دې هېواد کې بدبخته شوي او د هغوی دسترګو پر وړاندې یې ښځې او ماشومان وژل شوي دي، هغوی هم ځانونه درلودل او د خپلو بچیانو او مېرمنو په غم غمجن شول.

درې کاله کېږي، چې سوریه ستا د کبر او ډېر حرص له امله پر یوه وژنتون بدله شوې او دومره ډېر کسان پکې ووژل شول چې چا یې مړي شمېرلی نه شوای.

له دې سره زه نه وایم چې ته ددې بدبختیو سبب وې، نو باید ووژل شې، بلکې وایم. له دې کبله چې مغلوب شوی یې، نو باید ووژل شې.

ځکه یو پیاوړی ګنهګار تر هغه له سزا خوندي وي، چې قدرت ولري، خو کله چې کمزوری شو، بیا سزا ورکول کېږي.

مګر له دې سره سره چې زه ستا اعدامول عدالت بولم، خو ستا د مېرمنې او بچیانو له مړینې سره موافق نه یم او ما ستا د ماشومانو او مېرمنې د مرګ په هکله له هورم هب سره خبرې وکړې، هغه ته مې وویل که هغوی خوشي کړي ډېر ثواب به وګټي.

خو هغه زما خبره ونه منله او ویې ویل، باید د آزیرو نوم او د هغه نسل له سوریې څخه ختم شي.

له همدې امله کله چې ته ووژل شې ستا جنازه به په قبر کې ښخه نه کړي، بلکې په یوه دښته کې به دې واچوي، چې ځناور او مردار خواره دې وخوري.

ځکه چې هورم هب نه غواړي ستا قبر پاتې شي او په راتلونکې کې سریانیان ستا په قبر راټول شي او ستا په نوم قسم وخوري او یا داچې د خدایانو په شان دې عبادت وکړي.

آزیرو له دې کبله چې په قبر کې به ښخ نه شي وډار شو او ویې ویل سینوهه! ته چې نن شپه دلته راغلی یې، خپله دوستي نوره هم بشپړه کړه.

دوی چې ما نه خښوي، ته زما له مرګه وروسته په آمورو هېواد کې د بعل خدای پر وړاندې زما په نوم قرباني وکړه، ځکه چې زه بیا په بله دنیا کې تل په لوږه او تنده کې سرګردانه ونه اوسم.

دغه راز هغه همکاري چې تا له کفتیو سره درلوده او هغه دې بیا ماته راکړه، نو یو ځل بیا د هغې لپاره هم قرباني وکړه، چې په بله دنیا کې وږې، تږې او بې کوره نه وي. زما دوه ماشومان هم چې سبا وژل کېږي، زما او کفتیو په شان قربانۍ ته اړتیا لري.

زه له هورم هبه ګیله نه لرم، ځکه که زه هم پرې برلاسه شوی وای همداسې چلند به مې کړی وای او هغه به مې وژلی وای.

کله چې زه فکر کووم زما ښځه او ماشومان به ووژل شي، که څه هم ډېر خپه کېږم خو د تسلي لپاره یوه وسیله هم لرم او هغه دا چې له ما وروسته به څوک زما له مېرمنې کفتیو سره تفریح ونه کړي.

ډېر کسان زما د مېرمنې غوښتونکي دي، ډېر سپین پوستکي او چاغ کسان یې غواړي او پرې ګرانه ده.

که زما له مړینې وروسته هغه ژوندۍ پاتې شي د نورو په برخه به شي او زه به په بله

دنیا کې له دې امله بدبخته شوی يم.

که څه هم ښه به وای چې زما بچیان ژوندي پاتې وای خو پوهېږم چې هغوی به د مریيانو په توګه مصر ته بوځي، په داسې حال کې چې هغوی شهزادګان ول، بايد مريیان نه شي او د مصر په کانونو کې کارکولو ته اړ نه شي.

خو اوس به يې له دې کبله څوک مریان نه کړي چې وژل کېږي.

سینوهه! پر دې خبرې دې خوشحاله شوم، چې و دې ويل. زه له دې امله مرم چې ناکام شوی يم.

که زه په دغه جنګ کې بریالی شوی وای نو له دې سره سره چې ته وايې سوريه پر يوه قصاب خانه او وژنتون بدله شوې، خلکو به حتی په مصر کې هم زما نوم په ویاړ سره یاداوه.

ټولې ګناوې به يې د مصر پر غاړه اچولې او ويل به يې د مصر فرعون خونړی او ظالم پاچا دی او که يې پر سوريې حمله نه وای کړې نو دغه جنګ به نه کېده او د سوريې خلک به نه وژل کېدل.

ما یوه غلطي وکړه او هغه پر هاتي باور و.

زه نه پوهېدم چې هاتيان دې دومره بې غيرته وي، چې له مصر سره تر سولې وروسته خپل متحد هغوی ته وسپاري او د هغه شتمني لوټ کړي.

آزیرو د اوربشو له اوبو غوړپ وکړ او بيا ته وا د خلکو ټولي ته وينا کوي، په ډېر شور او ولولې سره يې وويل. افسوس دې وي ستا په حال اې سوريې اې پر ما ګرانه هېواده! د يوې ښکلې مينې په شان دې وکړولم... اې سوريې ما ستا د لوړاوي لپاره زيار وايست... ددې لپاره مې بلوا وکړه، چې ته ازاده شې او مصر درڅخه مريی جوړ نه کړي، خو نن سبا چې د مرګ وخت راغلی دی، ته ما پرېږدې او پر ما لعنت وايې.

اې! د(بيبلوس) لوړه ښاره ... اې د ازمير شتمنه ښاره .... اې د(سيدون) لوی او ښکليه ښاره، اې د (ژوبه) ځواکمنه ښاره.. او د سوريې نورو ښارونو! چې ټول زما د پاچاهۍ په تاج د غميو په شان ځلېدئ، ولې مو زه پرېښودم او ولې مو له ما لاس واخیست؟

اې د سوريې لوړو ،بډايو ، ځواکمنو او شتمنو ښارونو پر ما دومره ګران وی، چې ان نن هم، چې زه مو پرې ايښی يم او پر ما مو لعنت کړی دی، بيا هم له تاسې څخه زړه نه شم بېلولای، ځکه چې پوهېږم، تاسې زما معشوقې یاست او هره ښکلې معشوقه له خپل

عاشق سره بې پروايي او ناز کوي.

اې سوريې... !تو کمونه له منځه ځي او ملتونه رامنځته کېږي، وياړونه هم دهغه سيوري په شان دي چې دلمر له لويدو وروسته له منځه ځي خو ته پاتې شه او تلپاتې اوسه.

اې سوريې !تر هغه چې دا نړۍ شته ته د سمندر په څنډه کې، د سرو غرونو او غونډيو په څنګ کې ستر ښارونه جوړ کړه، شا و خوايې دنګې کلاګانې جوړې کړه او هر ځل چې باد را الوځي زما د هډوکو دوړې به له بيديا څخه ستا د ښارونو پر لوري رواني وې، چې ستا ښارونه ښکل کړي.

زه دې خبرو اغېزمن کړم او د هغه خبرې مې غوږ نه کړې، ځکه متوجه شوم، چې دېغه فکرونه هغه ته تسلي ورکوي.

ورو مې د آزيرو لاسونه چې تېپيان شوي ول، ونيول، هغه وويل :

سينوهه ! تا ته مې وويل چې زه د خپل مرګ له کبله خوابدى نه يم او پښېمان هم نه يم، چې ولې مې د مصر پر خلاف بلوا وکړه، ځکه تر هغه چې انسان په يوه ستر کار لاس پورې نه کړي ستره ګټه نه شي کولاى او په سترو کارونو کې د تاوان احتمال ډېر وي.

هغه کار چې ما وکړ ددې سبب شو، چې د سوريې پاچاهي او د هغه وياړونه زما په برخه کړي او تر هغه وخته چې زه ژوندى وم، ډېر ښه ژوند مې وکړ، مينه مې وليده او په دې ډول مې وکولاى شول چې خپلې کينې ارامې او له منځه يوسم.

په دې وخت کې هېڅ کار نه يم پښېمانه کړى.

اوس دغه ټول کارونه لکه يو پړى داسې په غاړه کې تاو شوي او ما د مرګ پر لوري بيايي.

دا خبرې ددې لپاره کووم چې ته پوه شې، زه له مرګه نه وېرېږم، خو له دې کبله چې ټول عمر يو کنجکاوه سړى وم او د هر سرياني په شان زما خټه هم له سوداګرۍ سره اخښل شوې ده.

له تجارت او معاملو سره مې مينه ده، غواړم له تا څخه چې يو ډاکټر يې پوښتنه وکړم، چې ايا په يوه سوداګريزه معامله مرګ غولولى شو او په يوه سودا خدايان تېر ايستلى شو؟

موږ سريانيان چې په تجارت کې تکړه يو، په ټولو معاملو کې خلک غولولى شو او ايا ممکنه ده، چې مرګ ته له هغه سره د يوې معاملې ډړاندېز وکړم، چې ويې غولوم او له ما

لاس واخلي؟

ومې ویل،نه !

آزیرو ! انسان هرڅه تېر ایستلی شي، خو مرګ نه شي غولولی.

مګر له دې کبله چې سبا ستا د ژوند ډیوه مړه کېږي غوارم یو حقیقت درته ووایم.

دا هغه حقیقت دی چې تر اوسه پورې به چا جرئت نه وي کړی، چې ویې وایي.

دغه حقیقت دا دی چې مرګ هېڅ درد نه لري.

آزیرو ! ایا پوهېږې چې ولې تر اوسه پورې چا دغه جرائت نه دی کړی چې دغه علمي او طبي حقیقت خلکو ته ووایي؟

علت یې دا دی چې مرګ ته د ډېرو قوي،زړورو او باارادې هم له وېرې تسلمېږي.

دوی تصور کوي چې د مرګ درد له بدني دردونو څخه زر ځله سخت دی، حال دا چې د انسان په ژوند کې تر مرګ بل خوندور او په زړه پورې شی نشته.

آزیرو ! دا ومنه چې د یوه غابښ د ایستلو درد لس ځله،لس ځله او لس ځله تر مرګ سخت دی.

په حقیقت کې مرګ د هغه کس له حالت سره توپیر نه لري، چې ستړی وي او غواړي پر یوې ځمکې اوږد وغځېږي او خوب یې سترګې سره ورولي.

د مرګ په وخت کې هېڅ ډول درد او کړاو نه احساسېږي او هر ډول درد او کړاو د ژوند له امله وي، نه د مرګ له امله.

هغه څوک چې ژوبلېږي او یوه شیبه هم ارام نه شي پاتې کېدای، لامل یې دا نه دی چې مړ کېږي، بلکې د دې لپاره پر ځان راتاوېږي، چې ژوندی دی.

مرګ د ټولو دردونو،حسرتونو،محرومیتونو، نهیلیو او دغه راز د ټولو بدني دردونو پای دی.

ایا ته متوجه شوی یې، چې له یوې ګرمې او ساړوبې ورځې وروسته، د شپې سړه وږمه څومره خوندوره وي؟ مرګ هم د ژوند په پرتله په ډېره ګرمه ورځ کې یوه سړه وږمه ده.

خو دغه حقیقت هوښیارانو او پوهانو نه دی رسوا کړی، چې له مرګ څخه د خلکو وېره له منځه لاړه نه شي.

د دې لپاره چې که خلک له مرګه و نه وېرېږي، هېڅ بل ځواک سرکشه او یاغي کسان نه شي کنټرولولای.

خلک له دې څخه نه وېرېږي، چې له مرګ وروسته به بیرته ژوندي شي، بلکې له دې څخه وېرېږي چې د مرګ په وخت به سختې شکنجې وزغمي.

آزیرو ! مرګ نه شو تېر ایستلی، ځکه چې معامله ورسره نه شي کېدای، سره، سپین، ښکلې مېرمنې او شراب نه مني، خو تر هر ډول شربتو خوږ دی او ورسره غاړه غړی کېدل ډېر خوندلري.

آزیرو ! زه یو ډاکټر یم او باور نه لرم چې زموږ جسم به له مرګ وروسته، ان که مومیایي هم شي پاتې شي.

البته مومیایي کېدل د دې سبب کېږي، چې بدن وروست او خراب نه شي، خو هغه څه چې له مومیایي کېدا وروسته پاتې کېږي یو انسان نه، بلکې یو وچ لرګی وي.

زه له دې سره سره چې یو مصری یم، خو په بله دنیا کې، چې موږ مصریان یې لوېدیزه نړۍ بولو، په ژوند کولو عقیده نه لرم او ټینګار هم نه کووم چې زما دغه عقیده دې سمه وي.

ښایي په بله دنیا کې زموږ لپاره یو ډول ژوندوي او له همدې امله به ستا او ستا د ښځې او ماشومانو له مړینې وروسته د بعل د خدای په نوم ستاسې لپاره قرباني وکړم.

ځکه که په بله نړۍ کې زموږ لپاره ژوند وي، نو چې ته، ستا مېرمن او بچیان هلته لالهانده او وږي او تږي نه وي.

آزیرو ! زما په خبرو خوشحاله شو او په ډېره هیله مندۍ یې وویل، سینوهه ! اوس چې غواړې قرباني وکړې داسې پسونه انتخاب کړه، چې زما د خپل هېواد آمورو وي، ځکه چې د آمورو پسونه چاغ وي او خوندوره غوښه لري.

د لړمون او بډوډو کباب یې ارو مرو د بعل خدای ته ډالۍ کړه، ځکه چې زما هم تل د لړمون او بډوډو کباب خوښېده.

که د قربانۍ په وخت کې د (سیدون)شراب له عنبهر سره یو ځای د بعل په خدای وڅښې، زه به ډېر خوشحال شم، ځکه چې له مرګ وروسته به له کفتیو سره شراب وڅښم او تر هغه چې مې زړه غواړي له هغې سره به خبرې وکړم.

ترهغه وخته چې آزیرو دغه خبرې کولې خوشحال و، خو وروسته اندېښمن شو او ویې ویل: سینوهه ! له دې سره سره چې ته مصری یې او ما له مصریانو سره ډېره بدي کړې ده، خو نه پوهېږم چې ته ولې له ما سره نیکي کوې.

هغه څه چې تا د مرګ په هکله وويل پر ما يې اغېز وکړ او ښايي همغسې چې تا وويل مرګ د يوه خواره خوب په شان وي.

په پسرلي کې به د آمورو په هېواد کې د بادامو، الوچو او ګيلاسونو، ونو غوټۍ کولې، پسونو به په شنو غونډيو کې نارې وهلې او سېرليو به توپونه وهل، اوس چې کله دا را زړه شي، نو ډېر خواشينی کېږم چې ژوند له لاسه ورکووم.

کله چې زا په زړه شي، چې په پسرلي کې په آمورو هېواد کې د زنبق ګلان تو کېږي او د کاج له ونو ښکلی وږم پورته کېږي، نو زړه مې په تنګ شي.

زه د زنبق له ګلانو سره خاصه مينه لرم، ځکه چې سلطنتي ګلان دي.

زه په دې ډېر خواشينی يم چې نور به د آمورو پسرلی ونه ګورم.

ددغه هېواد په اوړي کې به د يخو اوبو لرونکو چينو پر غاړه نه شم کېناستلای او په ژمي کې به له واورو ډک غرونه نه شم ليدلای.

په دې ډول زه او آزيرو په دې شپه تر سهاره وغږېدو.

کله به مو د مرګ په هکله خبرې کولې، کله به د آمورو په هکله غږېدو او کله به مو د ځوانۍ د وخت خاطرې سره شريکې کړې.

کله چې سپېدې وچاودې، هوا روښانه شوه، زما مرييانو زمونږ لپاره خوندوره او پريمانه ډوډۍ راوړه او ساتونکو يې هم مخه ونه نيوله، ځکه هغوی هم له ډوډۍ څخه خپله ونډه اخيستې وه.

زه وږی نه وم او خوړو ته مې زړه نه کېده، غوښتل مې چې آزيرو ډوډۍ وخوري

زما خواړه، وريت شوی او ګرم پسه، کباب شوي چرګان او د غنمو له مغزه په غوړو کې سره شوې ډوډۍ وه.

زما مرييانو موږ ته سيدون شراب هم راوړل چې عطر يې ورسره يو ځای کړي ول.

آزيرو ډوډۍ وخوړه، شراب يې وڅښل او بيا مې مرييانو ته وويل چې آزيرو ووينځي، وېښتان يې ږمنځ کړي، ږيره دې په يوې زرې جالۍ کې پټه کړي او تر ټولو ښکلې جامې دې ور واغوندي.

زما مرييانو کفتيو او دهغوي بچيان هم پاک ووينځل او پاکې جامې يې ورواغوستلې.

خو هورم هب موافقه ونه کړه چې آزيرو له مرګ مخکې خپل بچيان او ماشومان وګوري.

کله چې لمر را وخوت هورم هب د هاتي له افسرانو سره يو ځای له خپلې لويې کېږدۍ

څخه راووت، ما ولیدل چې ټول خاندي او پوه شوم چې ټول د شرابو د څښلو له امله څه ناڅه مست او نشه دي.

زه هورم هب ته ورننوتم او ومې ویل، ته پوهېږې چې څو ځله مې درته خدمت کړی دی، چې وروستی ځل یې د صور ښار (په پخوانی سوریې کې پروت ښارو) په وړاندې په جنګ کې ستا د ژوبلې شوې پښې معالجه کړې وه.

په دې جنګ کې یو زهرجن غشی ستا پر پښه ولګېد او ما دې مخه ونیوله، چې د دې غشي زهر تا ووژني.

اوس راغلی یم چې له تا څخه یو شی وغواړم او هغه دا دی چې آزیرو په شکنجې سره ونه وژنې، ځکه چې دغه سړی د سوریې پاچا و او په جنګ کې په مېړانه وجنګېد.

تر دې وړاندې چې آزیرو ستا لاس ته ولوېږي، د هاتي افسرانو هغه ډېر شکنجه کړی دی.

دوی غوښتل چې په دې ډول ورته د سرو او سپینو زرو خزانې ور وښیي، نو ښه به وي چې نور و نه کړېږي.

بله دا چې که ته د هغه له شکنجه کولو تېر شي، نو ستا نیک نوم به نور هم ستر شي.

کله چې هورم هب دغه خبره واورېده، سترګې یې کش کړې او د مخ رنګ یې تک تور شو، ځکه چې هغه د آزیرو د مرګ لپاره پلانونه جوړ کړي ول.

ده غوښتل چې آزېرو په شکنجې سره ووژني چې د هاتي افسران او د مصر سرتېري او افسر ان یې وګوري او تفریح وکړي.

ما نندارچیان لیدل چې په لومړي کتار کې د ځای نیولو لپاره یې له یو بل سره لانجې کولې.

دا خبره باید وکړم چې هورم هب له شکنجه کولو خوند نه اخیست او بې رحمه نه و، خو یو سرتېری و او مرګ یې د ځان لپاره یوه وسله بلله.

هورم هب په دې ورځ نیت درلود چې آزیرو داسې ووژني، چې د نورو لپاره د عبرت درس شي او بیا څوک جرئت ونه کړي، چې د مصر پر خلاف پاڅون وکړي.

هورم هب پوهېده چې ملتونه، تاوتریخوالی د لیاقت او قدرت په مانا بولي او فکر کوي، چې بې رحمه سرلښکرتکړه قوماندان وي او په بدل یې کې رحم او نرمښت د کمزورتیا په مانا بولي.

له همدې امله یې د هاتي د شهزاده شوباتو له اوږې خپل لاس لرې کړ او په زړي متروکه یې څو ځله خپلې پونډې ووهلې ویې ویل، سینوهه ته د یوه ازغي په شان زما په پښو کې ننوتی یې او لږ پاتې ده چې له تا په تنګ شم، ځکه چې ته عادي کس نه یې او د عادي مسلو په هکله ستا قضاوت د لېونیو په شان دی.

کله چې یو کس شتمن شي او مقام ته ورسېږي، نو ددې پر ځای چې هغه وستایې، ته پرې نیوکې کوې او کله چې سړی خپل مقام او شتمني له لاسه ورکړي ددې پر ځای، چې په اړه یې بې پروا شې ، خو ته ورځې او دلاسا کوې یې.

خبر شوم، چې بېګا ، تر سهاره پورې له آزیرو سره وې،له هغه سره دې د اوربشو اوبه څښلې دي او سهار دې خپلو مریانو ته ویلي، چې د هغه لپاره خواړه او شراب راوړې.

دادلېونیانو کاردی چې له بېوزلو او له پښو لوېدلیو کسانو سره مرسته کوي، ځکه چې له کم بختو او بېوزلو کسانو سره دوستي او ملګرتیا د انسان لپاره هېڅ ګټه نه لري او بده لا دا چې ددغسې خلکو ملګرتیا سړي ته تاوان کوي.

ځکه انسان مجبورېږي، چې له خپلو سرو او سپینو څخه هغه ته یو څه ورکړي.

تر هغه چې انسان ژوندی دی، باید له هغو کسانو سره ملګرتیا ونه کړي چې شته او مقام ونه لري.

له دغسې کسانو څخه باید لرې و اوسي او تل د هغو کسانو ملګرتیا وکړي، چې یوه ورځ د هغه له مقام او شتمنۍ څخه استفاده وکړای شي.

تا تر هغه وخته له آزیرو سره ملګرتیا ونه کړه، چې په مقام کې و او نن چې نه پاچا دی او نه شتمني لري، نو د هغه ملګری یې او د هغه پلویتوب کوې.

خو سینوهه ! ته پوهېږې چې ما نن له شاوخوا سیمو څخه څو تنه تکړه جلادان راوستلي دي، چې د خپلو عسکرو او افسرانو د تفریح لپاره خپل هنر وښیي.

د هغوی د شکنجې د وسایلو نصبول ما ته ډېر ګران تمام شوي دي او زه نه شم کولای چې په دې ورستیو شپو کې د نیل د چیکړو دغه چنجي (هورم هب خپلو عسکرو ته د نیل د چیکړو چینجي ویل) له سیله بې برخې کړم، ځکه چې هغوی دړې کاله په سوریه کې د همدغه آزیرو د ختمولو لپاره سربښندنې کړې دي او نن دا حق لري، چې د هغه شکنجه وګوري.

د هاتي شهزاده شوباتو چې کله دغه خبره واورېده، هورم هب یې پر ملا وټپاوه او ویې

ویل، شاباسې هورم هبه ! سمه خبره دې وکړه، ته باید نن موږ له دې سیله بې برخې نه کړې موږ ددې لپاره چې تا د هغه له شکنجې بې برخې نه کړو، کله چې مو آزیرو ونیوه، نو د هغه د بدن غوښې مې ټوټه ټوټه نه کړې، یوازې د هغه نوکان مو له وریو جلا کړل او ګوتې مو ورماتې کړې، نو ته باید زموږ د خوشحالۍ لپاره هغه شکنجه کړې، ګنې موږ به خوا بدي شو.

هورم هب تنډې ګونځې کړ او زه پوه شوم چې ولې هغه بدل شو، ځکه چې د مصر د لښکرو قوماندان ځان یو فاتح بولي او دا تمه یې نه کوله چې شهزاده شوباتو، چې مغلوب قوماندان دی، هغه پر ملا وټپوي او پر هغه امر وکړي.

هورم هب وویل :شوباتو ! داسې ښکاري چې ته نشه یې او خپل حد نه شې ساتلی.

ما ځکه د آزیرو د شکنجې فیصله وکړه، چې هغه په ډېر کړاو مړ کړم چې ټول پوه شي، هر څوک چې دهاتي په ملګرتیا اعتماد وکړي، پایله به یې همدا وي او د آزیرو له برخلیک سره به مخامخ شي.

خو له دې کبله چې زه او ته تېره شپه سره ملګري وو او ډېر جامونه مو سره تش کړل، نو زه به له هغه چا سره زیاتی ونه کړم چې یوه ورځ ستاسې ملګری او متحد و.

زه به ووایم چې له شکنجې پرته یې په اسانه مرګ ختم کړئ.

شوباتو په دې خبره ډېر خپه او د څېرې رنګ یې تت شو، ځکه چې د هاتي او سپدونکي له دې سره سره چې له خپلو ملګرو او متحدینو سره خیانت کوي او کله که یې ګټه پکې ولیده، نو خپل ډېر نږدې ملګری به هم خرڅ کړي، خو بیا هم نه غواړي چې څوک یې خاینان او بې وفا وبولي.

ښایي هغوی سم فکر کوي، ځکه چې هر ملت او تکړه واکمن همداسې چلند کوي.

کله چې په خیانت کې خپله ګټه وګوري، نو خیانت کوي، خو هاتیان په خیانت کې ډېر مېړني دي او له هېڅ عذر او توضیح پرته خیانت کوي.

شوباتو غوسه شو، خو د هغه ملګري پوه شول، چې ښایي د هغه غوسه به نورو ته درنه بیه ولري، نو د هغه پر خوله یې لاس کېښود او لرې یې کړ.

څو شېبې وروسته د هاتي پر شوي قوماندان کانګې وکړې او هغه څه چې د شپې یې خوړلي ول، ټول یې بیرته را وګرځول او نشه یې هم ختمه شوه.

هورم هب امر وکړ چې آزیرو راولي.

سره له دې چې پو هېږده ما آزيرو ته خواړه ورکړي، کله چې يې وليدل دغه سرې په لوړ سر او استواره ګامونو راځي، ويارمنې جامې يې اغوستې او سر و ږیره يې اصلاح شوي دي حیران شو.

آزيرو په خندا را روان و او د مصر پر هغو افسرانو او سرتېرو يې ملنډې وهلې، چې د هغه د ساتنې لپاره ګمارل شوي ول.

کله چې د هورم هب مخې ته ورسېد د خپلو ساتونکو له شا يې هورم هب ته وويل: اې ګنده هورم هبه! له ما مه وېرېږه او د خپلو سرتېرو د نېږو تر شا مه پټېږه، ځکه چې زه يې په ځنځيرونو تړلی یم.

نږدې را شه چې وکړای شم، خپلې پښې ستا په جامو ومښم او د خپلو پښو خوشايي پاک کړم، ځکه اوس چې ستا د کمپ په منځ کې د اعدام ځای ته راتېرېدم نو پښې مې ککړې شوې.

ما پخپل ټول عمر کې داسې ګنده کمپ او اډه نه وه ليدلې او ټول پو هېږي، کله چې يوه اډه چټله وي، دليل يې دا دی، چې ددې اډې قوماندانان ګنده دي او لياقت نه لري.

هورم هب د زړه له تله وخندل او وې ويل، آزيرو ! زه تا ته نږدې کېږم، ځکه چې خوسا بوی دې ځي.

که څه هم تا اوس نوې او پاکې جامې اغوستې او خپل تېپونه دې پټ کړي، خو بيا هم ستا خوسا بوی شته.

موږ دا خبره هم نه شو پټولی، چې ته يو زړه ور سړی يې او له مرګه نه وېرېږې، خو داچې د اعدام ځای ته روان يې او لا هم خاندې، نو له همدې امله مې وويل چې تا له شکنجې پرته مړ کړي، ځکه چې په راتلونکې کې زما نوم بد نه شي.

قدرت دا نه دی چې يو څوک خپل ناکام دښمن شکنجه کړي، بلکې قدرت په دې کې دی، چې بريالی قوماندان له دې سره سره چې ناکام سيال شکنجه کولی شي، خو بيا هم د هغه له کړولو تېرېږي.

له هغه وروسته هورم هب حکم وکړ، چې ساتونکی ګارډ د آزيرو شا وخوا کلابنده کړي، چې مصري عسکر، د هغه لور ته خوشايي او کاڼي ور ونه ولي او هغه ته ښکنځلې ونه کړي.

له آزيرو وروسته يې د هغه مېرمن کفتيو راوستله چې ځان يې سينګار او ښايسته

کړي و.

له دې سره خپل دوه زامن هم روان ول او یو بل ته یې لاسونه ورکړي ول، چې له تګه یې ښکاریده، هغوی شهزادګان دي.

د اعدام په ځای کې مېرمن او بچیان یې له آزیرو سره یو ځای شول.

کله چې آزیرو خپله مېرمن ولیده خپه شو او ناري یې کړې یې کفتیو.... کفتیو ! زما سپینې اسپې او اې زما د سترګو توره، زه ډېر خواشینی یم، چې ستا د مرګ سبب شوم، ځکه چې پوهېږم تا له ژونده خوند اخیستلی شو.

کفتیو ورته وویل آزیرو ! زما لپاره مه خپه کېږه، ځکه چې زه په ډېرې خوښۍ او لېوالتیا په تا پسې د مړیو تاتوبي ته درځم.

دا ځکه چې پوهېږم له تا وروسته به بل خاوند پیدا نه شي، چې ستا په شان ما خوشاله او راضي کړي، ته د یوه سخوندر په شان مضبوط یې.

کله چې ته ژوندی وې، ما له ټولو ښځو بېل کړې او پرې مې نه ښودې، چې له ما پرته له بلې ښځې سره تفریح وکړې.

اوس چې د مړیو تاتوبي ته ورځې زه به له تا سره لاړه شم چې هلته هم تا ته اجازه درنه کړم چې له نورو ښځو سره تفریح وکړې.

زه پوهېږم هغه ټولې ښکلې ښځې، چې تر ما مخکې یې له تا سره تفریح کړې وه او اوس د مړیو په تاتوبي کې دي، ستا په تمه دي، چې له ما څخه دې واخلي.

حتی که مصریان ما ونه وژني، زه به پر خپلو اوږدو ځنو ځان غرغره کړم، چې له تا وروسته د مړیو تاتوبي ته ولاړه شم او له تا سره یو ځای شم.

زه یوه وینځه وم او یوه مصري ډاکټر تا ته سپارلې وم.

ته پردې سربېره چې زما مېړه وې زه دې ملکه هم کړم او ما تا ته دوه ښکلي زامن و زېږول.

آزیرو ! په دې ځواب ډېر خوشحال شو او بیا یې خپلو بچیانو ته وویل، زما بچیانو ! تاسې د یو پاچا زامن یاست او په دې وخت کې باید د شهزادګانو په شان له وېرې پرته مړه شئ.

ما په دې وروستیو کې د مرګ په هکله له داسې سړي سره خبرې کړې، چې تجربه یې د یوه عادي کس په پرتله سل چنده زیاته ده.

هغه راته وویل چې مرګ د یو غاښ تر ایستلو لس ځله، لس ځله اسانه دی او هېڅ درد

نه لري.
تاسې باید پوه شئ، چې مرګ هېڅکله درد نه لري، بلکې دا ژوند دی چې انسان له دردونو او کړاونو سره مخامخ کوي.
له دې خبرې وروسته آزیرو د جلاد په مخکې په ګونډو شو او کفتیو ته یې وویل: زه د دغو بوینو مصریانو له کتلو چې شا و خوا ولاړ دي کرکه کووم او نه غواړم چې د هغوی په وینو ککړې نېزې وګورم.
له همدې کبله غواړم چې په دې وخت کې یوازې تا ووینم.
کفتیو، زما ښکلې مېرمنې! په دې وخت کې زما په مخکې ودرېږه چې ستا ښکلې څېره و کتلای شم.
کفتیو خپل وېښتان شاته واچول او خپل مخ یې هغه ته ور وښود. په داسې حال کې چې آزیرو سترګې پکې ښخې کړې وې، جلاد خپله درنه توره پورته کړه او د آزیرو پر ورمېږ یې ګوزار وکړ.
په یوه ګوزار یې د هغه سر له بدنه جلا کړ.
ګوزار دومره سخت و، چې د هغه سر د کفتیو پښو ته ولوېد او هغو وینو، چې د آزیرو له ورمېږه یې داري ووهلې، د هغه مېرمن او دواړه بچیان رنګین کړل چې کوچنی زوی یې ورېږدېده.
خو کفتیو د آزیرو سر اوچت کړ او پر خپل ټټر یې کېښود، د هغه شونډې او سترګې یې ښکل کړې او ږیره یې ور وموښله.
له دې پرته چې سر یې له ټټره لرې کړي، زامنو ته یې وویل، زما زامنو! ولې معطله یاست، اوس چې ستاسې پلار تللی دی، تاسې هم ورشئ، زما هم بیړه ده، چې له هغه او تاسې سره یو ځای شم.
مشر زوی یې له دې پرته چې د کوچني ورور لاس خوشي کړي، په ګونډو شو او جلاد د هغه سر هم د پلار په شان په یوه ګوزار له تنه ور بېل کړ او ور پسې یې د کوچني هغه سر هم غوڅ کړ.
کفتیو چې د آزیرو سر یې لا پر سینه ایښی و، د خپلو بچیانو مرګ ته له خپګانه پرته کتل.
د هغوی له مړینې وروسته جلادانو د دواړو سرونه په لغتو له خپلې مخې لرې کړل او

کفتيو ته يې اشاره وکړه، چې په ګونډو شي.

ښځې له دې پرته چې د آزيرو سر له سينې بېل کړي، د جلاد پر وړاندې ګونډه وو هله او پر يوه لاس يې خپلې زلفې له مخه لرې کړې چې ورمېږ يې ښکاره شي.

جلاد د هغې سر هم له تنې جلا کړ او د کفتيو د ورمېږ له رګونو څخه د آزيرو او د هغوی د زامنو په سرونو باندې وينه ورتوی شوه.

په دې ډول دغه څلور کسان له دې پرته چې شکنجه شي، په بېړه ووژل شول.

خو هورم هب د مړيو د ښخولو اجازه ورنه کړه او ويې ويل، مړي په بېديا کې واچوئ، چې مردار خواره او ځناور يې وخوري.

د آمورو هېواد پاچا چې وروسته د سوريې پاچا شو په دې ډول مړ شو او د هغه له مړينې وروسته هورم هب له هاتي سره سوله وکړه، په داسې حال چې پوهېده، دغه سوله به دوام ونه کړي.

ځکه چې هاتي د سولې د تړون په اساس د سوريې، سيدون، ازمير، بيبلوس او کادش ښارونه نيولي ول او بيا يې د سوريې په شمال کې دغه ښارونه پر يوه ستره جنګي کلا بدل کړي ول.

که څه هم هورم هب پوهېده چې دغه سوله به دايمي نه وي، خو له دې کبله چې دواړه لوري له جنګه ستړي شوي ول، له هاتي سره يې د سولې تړون وکړ.

پر ستړيا سربېره د جنګ دوه نور علتونه هم ول، چې هورم هب مجبور شو له هاتي سره سوله وکړي.

يو دا چې غوښتل يې د خپل وخت يوه برخه د مصر په پلازمينه طبس کې د خپلو ګټو د خوندي کولو لپاره ولګوي او بله دا چې پوهېده، د مصر په جنوب کې تورپوستو قبايلو سر اوچت کړی دی او چمتو نه دي چې مصر ته قلنګ ورکړي.

په دې کلونو کې چې هورم هب جنګېده، د مصر فرعون توت آنخ آمون، په دې هېواد کې پاچاهي کوله، هغه د خپل قبر له ساتلو پرته بله بوختيا نه درلوده.

ده که څه هم د نورو په چارو کې لاسوهنه نه کوله، خو بيا هم د مصر ملت خپلې ټولې بدبختۍ د هغه له لاسه بللې او ويل به يې، څه ډول له هغه فرعون څخه د نېمګرتيا د راوړلو تمه وشي، چې ښځه يې د کاذب او دروغجن فرعون له نسله ده.

آمي په خلکو کې د دې فکر د سمولو لټه نه کوله، بلکې اوازې به يې خپرولې، چې

خلک د فرعون پر وړاندې نور هم بدبینه کړي، ځکه پوهېده څومره چې خلک پر فرعون بدبینه شي، د هغه په ګټه دي.

ده به خپلو ملګرو ته ویل، چې هر چاته وواییې فرعون د مصر ټوله شتمني د خپل قبر په جوړولو او ښکلولو لګوي او د مصر د ملت بدبختي له همدې امله ده.

د آمي د لمسون په اساس د فرعون له لوري په مصر کې پر مړیو هم مالیات ولګېدل او له هغو کسانو به مالیه اخیستل کېده چې غوښتل یې قبر ولري او یا یې مړی له مرګه وروسته مومیایي شي.

دغه مالیه ددې لپاره وه چې د فرعون پر قبر یې ولګوي.

دغو مالیاتو خلک سخت خپه کول، ځکه چې له مړییانو پرته ټولو باید دغه مالیه ورکړې وای.

هر مصري غوښتل چې له مرګه وروسته، د هغه مړی مومیایي او په قبر کې ښخ شي.

ځینو مړیانو، به ټول عمر له خپلو بادارانو غلا کوله او پس انداز به یې کاوه، چې له مرګه وروسته د هغوی مړی مومیایي شي او په قبر کې یې کېږدي.

په دغو کلونو کې چې توت آنخ آمون په مصر کې حکومت کاوه، زه په پرله پسې ډول، د هورم هب له لښکر سره وم او د ټپیانو او ژوبلو کسانو معالجه به مې کوله.

د مصر د پلازمینې طبس له حالاتو مې ډېر معلومات نه درلودل او یوازې ځینو مسافرو به څه ناڅه معلومات راکول.

هغه مسافر چې له طبسه راتلل، ویل به یې چې فرعون کمزوری او ډنګر شوی دی او یوه مرموزه ناروغي یې ځوروي او دغه ناروغي د سوریې له جنګ سره تړاو لري.

ځکه کله چې د هورم هب د بریالیتوب خبر ور ورسېږي حالت یې داسې خرابېږي، چې خبره یې بسترې ته رسېږي، خو کله چې واوري هورم هب په جنګ کې ناکام شوی دی، نو ښه شي او له بسترې پورته کېږي.

مسافرو به ویل دغه موضوع دومره عجیبه ده چې کوډو ته ورته ښکاري، ځکه چې د فرعون د روغتیا او ناروغۍ مسلې د سوریې د جنګ له خبرونو سره تړاو پیدا کړی دی.

کله چې د سوریې جنګ اوږد شو آمي بې خبره شو او له مصره یې ځو استازي هورم هب ته واستول او ویې ویل، ترکومه غواړې چې د سوریې جنګ ته دوام ورکړې؟

بیړه وکړه او سوله وکړه چې زه خپل هدف ته ورسېږم، ځکه چې زه بوډا یم او خپل هدف

ته د رسېدا لپاره صبر نه شم کولای.

کله چې خپل هدف ته ورسېدم د هغې ژمنې په اساس چې له تا سره مې کړې ده، تا یه هم خپل هدف ته ورسوم.

ما په دې خبره باور نه کاوه، چې ګني د فرعون ناروغي دې، د کوډو له امله وي او ګمان مې کاوه، چې فرعون له دې امله د جنګ د خبر په رسېدا سره کله ناروغ او کله بېرته سمېږي چې آمي خاصه موخه لري.

په همدې ډول کله چې د سوریې جنګ پای ته ورسېد او هورم هب له هاتي سره سوله وکړه، موږ په جنګي بېړیو کې کېناستو او د نیل سیند د اوبو د بهیر پر خلاف روان شوو.

وا مو ورېدل چې فرعون د آمون په زرینه بېړۍ کې سپور کړای شوی چې د لوېدیځ د تاتوبي پر لور وخوځېږي.

ما د فرعون د مړینې د خبر په اورېدو سره تعجب ونه کړ او هغه وخت پوه شوم چې د فرعون ناروغېدل او بیرته رغېدل ددې لپاره و، چې کله که د هغه د مړینې خبر خپور شي نو څوک حیران نه شي، چې ولې توت آنخ آمون سمد ستي مړ شو.

کله چې موږ د فرعون د مرګ خبر واورېد د جنګي بېړیو بیرغونه موو راکوز کړل او مخ مو په لوګیو تور کړ.

موږ ته وویل شو ل، چې کله په مجیدو کې د مصر د لښکرو د بریالیتوب او له هاتي سره د سولې له مسلې فرعون خبر کړای شو هغه داسې هیجاني شو چې له ډېر هیجان او کړکېچه یې ناروغي سخته او مړ شو.

خو د فرعون د مړینې په اړه د دارالحیات ډاکټرانو یو او ګډ نظر نه درلود، څرګنده نه وه چې هغه له کومې ناروغۍ مړ شوی دی.

خو د مرګ د کور کارکوونکو ویلي ول، چې کله یې د مومیایي کولو لپاره د فرعون خېټه خلاصه کړه، ویې لیدل چې کولمې یې توري شوې دي او فکر یې وکړ، چې هغه ته زهر ورکړل شوي دي.

ملت به ویل، فرعون له دې امله مړ شو، چې د مصر پوځ په سوریې کې بریالی شوی دی، ځکه چې د ولس په باور فرعون پوه شو، چې له دې بریالیتوبه وروسته به ملت له سختیو خلاص شي او نېکمرغه به شي، حال دا چې ده د ملت د بدبختۍ غوښتنه کوله او له ډېرې غوسې ناروغه او بیا مړ شو.

زه پوهېدم په کومه ورځ چې هورم هب، د متې خاورې پر لوحې له هاتي سره د سولې تړون لاسلیک کړ، داسې ښکارېده لکه چې آمي خپله چاره د فرعون په خېټه کې دننه کړې وي.

ځکه چې آمي له دې پرته بله تمه نه کوله چې د سوریې جنګ دې ژر پای ته ورسېږي، چې هغه په ارام فکر فرعون ووژني او د هغه پر ځای د سولې فرعون د پاچاهۍ په ګدۍ کېني.

د فرعون د مرګ خبر هورم هب او د هغه عسکر ډېر خپه کړل، ځکه چې کله فرعون مصر ته ننوت د بریالیتوب بیرغونه یې ورپول او د سوریې مشران یې د کښتیو له عرشو سر په څېرې په دار وځړول، چې وښیي دی هم د پخوانیو فرعونیانو په شان دی.

کله چې به نور فرعونیان له جنګه راستنېدل، دښمنان به یې سر په څېرې په دار ځړول هورم هب هم غوښتل همداسې چلند وکړي، خلک د مات دښمن په لیدو وویاړي او پوه شي چې مصر د پخوا په شان مضبوط دی او له خپلو بهرنیو دښمنانو او یاغیانو غچ اخیستی شي.

خو د فرعون د مرګ خبر ددې سبب شو، چې هورم هب د بریالیتوب بیرغ پورته نه کړای شو، د سوریې د مشرانو مړي یې هم له بېړیو کوز کړل او نیل ته یې واچول.

د مصر سپاهیان چې له هورم هب سره مصر ته ستانه شوي ول، په سوریه کې له درې کلن جنګ او له ډېرو خطرو وروسته طبس ته ستنېدل. دوی له ځانه سره هغه سره و سپین هم درلودل چې په جنګونو کې یې د غنیمت په ډول نیولي ول او هیله یې کوله چې په طبس کې به پرې ساعت تېري او عیاشي وکړي.

خو دغه خوښونه یې پر اوبو لاهو شول، ځکه چې پوهېدل داسې ښار ته به ننوځي چې په ویر کې ډوب دی، نو باید مخونه په لوګیو تور کړي او ځان ویرجن وښیي.

ټولو به ویل دغه فرعون چې موږ یې د سوریې جنګ ته واستولو او اوس چې مړ شوی دی، خو بیا هم له موږ څخه لاس نه اخلي.

د هغه مړینه هم د هغه د ژوند په شان موږ ته کړاو پېښوي.

کله چې سپاهیان پوه شول، طبس ته په ورتلو سره عیاشي نه شي کولای، نو د نیل په هر ساحل کې چې به بېړیو لنګر واچاو، دوی به هغه ښځې له ځان سره ساحل ته بېولې چې له سوریې څخه یې راوستلې وې.

هلته به يې د ښځو او د سوريې د نورو غنيمتونو پر سر کمسايي کوله او قمار به يې واهه

که څه هم هر سړی له خپلې ښځې موړ شوی و او نه يې غوښتل چې له هغې سره ساعت تېر کړي، خو دا فکر يې کاوه، چې له نورو ښځو سره به ساعت تېری تر خپلې ښځې خوندور وي او غوښتل يې په قمار سره نورې ښځې وګټي.

کله چې به مصري عسکر د قمار وهلو پر وخت غوسه شول، شخړه به يې کوله او يو بل به يې ژوبلول.

دوی به خدايانو ته هم ښکنځلې کولې او په دې ډول به د نيل د سواحلو اوسېدونکي د هغوی بې دينۍ ته حيران شول، په وحشت او حيرانتيا سره به يې ورو ورو پوښتنې کولې چې ايا دغه خلک مصريان دي؟

که مصريان وي، بيا ولې خدايانو ته سپکې سپورې وايي؟

دوی په دې خبر نه ول، چې مصري سپاهيان له وطنه لرې ول او له دې امله ډېرو پکې سرياني جامې اغوستې او ان په خبرو کې يې سرياني کليمې کارولې.

ځينو خو به د مصري خدايانو پر ځای د سوريې د خدای بعل عبادت کاوه.

ما پخپله هم د سوريې په آمورو هېواد کې د بعل خدای لپاره څلور قربانۍ وکړې چې آزيرو ،د هغه مېرمن او بچيان له مرګه وروسته وړي، ترې او لالهانده نه وي.

له دغو خبرو زما هدف دا دی چې د مصر ملت ،د هورم هب له عسکرو ډارېده، ځکه چې کتل يې ډېر پکې د جامو او ظاهري حالت له پلوه له مصريانو سره ورته نه دي او نه يې د مصر پر خدايانو عقيده درلوده.

د مصر عسکرو او ما به ددې ساحلي سيمو په ليدو تعجب کاوه، ځکه د نيل په هر ساحل کې چې به له ېېريو کوز شوو ، ليدل به مو چې خلک وږي او بې وزله دي.

د مصر خلکو خپلې جامې دومره وينځلې او پيوند کړې وې، چې اصلي رنګ يې نه ښکارېده او د ټولو مخونه ډنګر او وچ ښکارېدل، ځکه چې مصريانو د نباتي غوړو د ترلاسه کولو وس نه درلود.

ټولو به موږ ته په وېرې او ترهې سره کتل او د بېوزلو ملاوې د ماليې ټولوونکيو د مامورينو د متروکو په وهلو سره ژوبلې شوې وې.

عامې او حکومتي ودانۍ د ورانېدا په حال کې وې او د کورونو له دېوالونو څخه

خاورې او ختې تويېدې.

له هغې ورځې څخه چې موږ له مصره وتلو، لارې نه وې رغېدلې او د اوبو لګولو ډېر کانالونه وران شوي ول.

خو کله چې مو معبدونه وکتل ګورو چې معبدونه ودان او په زرينو انځورونو ښکلي شوي دي، کاهنان نور هم چاغ شوي، سرونه يې خرېيلي او تېل يې پرې موښلي ول.

زه پوه شوم چې د معبد په کاهنانو باندې دغه وخت ډېر ښه تېر شوی او تل يې د ښو ډوډيو، شرابو او غوښو په خوړلو کې اصراف کړی دی.

په داسې حال کې چې هغوی خوړل او څښل، خو نورو خلکو که به يوه نمړۍ وچه ډوډۍ پيدا کړه، نو هغه به يې د نيل په اوبو کې لمدوله او بيا به يې خوړله.

ځينو مصريانو چې مخکې به يې په طلايي لوښو کې شراب څښل اوس به يې که په مياشت کې يو ځل ارزان بيه بير يا د اوربشو اوبه پيدا کړې، نو ځانونه به يې نېکمرغه بلل.

اوس د نيل په ساحل کې د ښځو د خندا غږونه او د ماشومانو د خوشحاليو اوازونه، نه اورېدل کېدل، ښځې مړاوې او ډنګرې شوې وې، په ډنګرو لاسونو به يې د کاليو د وينځلو سوټې پورته کول او خيرن کالي به يې پرې وينځل.

ډنګرو ماشومانو چې له ډېرې لوږې يې د لوبو حوصله نه وه، ځمکه به يې وکينده له چې د بوټو ريښې را وباسي او خپله خېټه د بوټو په ريښو مړه کړي.

اوږدې جګړې، مصر په دې ورځې اخته کړی و.

هغه څه چې د آتون او آمون په جنګ کې خوندي پاتې شول، د سوريې او مصر په جنګ کې له منځه لاړل.

له همدې لامله خلکو تاندوالي او خوشحالي نه درلوده.

دا حوصله يې هم نه وه، چې د جنګ له ختمېدا وروسته خوشحالي وکړي او د هورم هب جنګي بېړيو ته يې چې د طبس پر لوري تللې په وېرې او ترهې سره کتل.

له دې ټولو سره سره به مستې توتکي د نيل د اوبو پر سر الوتې.

د نيل د سواحلو په لوخو کې به اسونه ششنېدل او تمساحګانو به خولې خلاصې کړې، چې مرغان پخپلو مښوکو باندې د هغوی د غاښونه منځونه ورپاک کړي.

موږ به د نيل اوبه څښلې چې د نړۍ تر ټولو اوبو خوندورې دي او د نيل د چيکړو له

بوی سره به مو د هغې سیمې اخښل شوې هوا تنفس کوله.

د پاپیروس د بوټو غړونه به مو اورېدل، چې باد به ښورول.

د هیلیو الوت او په آسمان کې د آمون حرکت ته موکتل. *(آمون دلته د لمر په مانا دی او د سینوهه د برخلیک په لومړیو کې مو هم ولیدل چې آمون د لمر پر ځای کارېدلی دی. ژباړن)*

دغو ننبو ننبانو او بویونو موږ پوهولو چې خپل هېواد ته ننوتي یو.

یوه ورځ مو سترګې پر هغو دریو غرونو ولګېدې چې د مصر د پلازمېنې ساتونکي بلل کېږي او د آمون د معبد د پورتنۍ برخې د ډبرینو ستنو طلایي څوکې مو ولیدلې. *(دغه ډبرینې ستنې د ډبرو یوه ننبه وه، چې وخت پرې معلومېده. په دغو دریو ستنوکې یوه اوس هم په پاریس کې ساتل کېږي. یانې له مصره پاریس ته لېږدول شوې ده. د دغو ستنو له سیوري به یې وخت معلوماوه. ژباړن)*

کله چې طبس ته نږدې شوو، سترګې مې د مړیو په ستر ښار ولګېدې (د طبس هدیره. ژباړن) د مړیو ښار هومره لوی دی چې پای نه لري. وروسته ښار ته ننوتو او بندرونه یې تر سترګو شول.

د بېوزلو سیمه مو د هغې له ختینو کورونو سره ولیدله او د خانانو او اشرافو د کورونو او سیمو په لیدلو سره خوشحال شوو.

په دې وخت کې مې په ډېر قوت سره د طبس هوا تنفس کړه.

ماکوګانو خپل لوی پاروګان په ډېر زور سره په اوبو کې دننه کړل، د هورم هب عسکرو د فرعون ماتم هېر کړ، د خوشحالۍ چیغې یې وکړې او بدلې یې وویلې.

په دې ډول زه بیرته طبس ته ننوتم، هغه ښار ته چې ماشومتوب مې پکې تېر شوی و او پکې لوی شوی وم.

نور مې فیصله وکړه چې بیا به له دې ښاره نه وځم، ځکه چې زما سترګو په بېلابېلو سیمو کې د انسان دومره رزالت او شیطانت لیدلی و، چې نور مې نه غوښتل دغه بې رحمۍ او رزالتونه ووینم.

ما غوښتل چې پاتې عمر په خپل اصلي ټاټوبي کې د بېوزلو په سیمه کې تېر کړم، چې کور مې هم هملته و او د طبابت له لارې خپل ژوند وچلوم.

ما تر دې ښه کور نه شو اخیستلای، ځکه چې هغه سره و سپین چې ما په سوریه کې

ګټلي ول، د آزیرو . د هغه د میرمنې او بچیانو لپاره مې په قربانۍ ولګول.

بله دا چې ما نه غوښتل، هغه ککړ او ناولي سره و سپین له ځان سره وساتم او مصر ته يې یوسم، ځکه چې پوهېدم هغه سره و سپین چې په سوریه کې مې ترلاسه کړي ول. په وینو ککړ دي او له هغوی څخه د وینې بوی راځي.

له همدې امله هغه څه چې مې په سوریه کې ترلاسه کړي ول، د آزیرو، د هغه د مېرمنې او بچیانو د خوشحالۍ لپاره يې ولګول او تش لاس ونه طبس ته ستون شوم.

خو په دې خبر نه وم چې لا زما د برخلیک پیمانه نه وه ډکه شوې او بیا هم يو کار زما په تمه و. چې له کولو يې وېرېدم او کرکه مې ترې کوله خو مجبور وم چې يې کړم.

همدغه کار ددې سبب شو، چې په طبس کې له څو ورځو تېرولو وروسته مې بېرته له هغه ځایه کډه وکړه او بل ځای ته لاړم چې کیسه به يې وروسته درته وکړم.

آمي او هورم هب له دې وروسته چې له هاتي سره سوله وشوه او فرعون مړ شو، هر څه يې پخپله ګټه ولیدل او فکر يې وکړ هېڅ شی هم د دوی د واکمنېدا په لار کې خنډ نه شي کېدای نه شي.

خو لږ پاتې و، چې د یوې ښځې د کینې له امله دواړه له واکمنۍ څخه محروم شي.

غوره ده یو ځل بیا دلته د ملکې نفرتي تي او شهزادګۍ باکتامون نومونه واخلم. ځکه هغه ښځه چې کینه يې کړې وه، پخوانۍ ملکه نفرتي تي وه.

خو ددې لپاره چې ددغې دوو ښځو او د هغوی د دسیسو او هغو خطرو په هکله چې د آمي او هورم هب د پاچاهي لپاره يې رامنځته کړې وې خبرې وکړم، باید يو نوی څپرکی ورته پرانیزم.

دا به زما د ژوند د تاریخ وروستی څپرکی وي او په دې فصل کې به ووایم چې څه ډول ما قتل وکړ، په داسې حال کې چې له مرګه د خلکو د ژغورلو لپاره او د هغوی د معالجې لپاره راغلی وم.

آمي له هورم هب سره موافقه کړې وه، چې د توت آنخ آمون له مرګه وروسته به د مصر سلطنتي خولۍ په سر کړي.

نو ددې لپاره چې دغه خولۍ ډېره ژر پر خپل سر کېږدي او د سلطنت په ګدۍ کېني، د توت آنخ آمون د وير مراسم يې لنډ کړل. د طبس د مومیایي کولو مسولین يې اړ کړل، چې د فرعون مړی ډېر ژر مومیایي کړي.

د فرعون قبر چې د نقشې په اساس یوه پرتمینه ودانۍ وه، آمي نیمګړې پرېښود او په نتیجه کې د توت آنخ آمون قبر د مصر د سترو فرعونیانو د قبرونو پر خلاف ډېر کوچنی.

آمي په دې ډول ټول هغه شیان د ځان کړل، چې فرعون غوښتل هغه خپل نوي قبر ته له ځان سره یوسي.

خو هورم هب په دې شرط له آمي سره موافقه وکړه چې آمي باید داسې کار وکړي چې شهزادګۍ باکتامون د هورم هب مېرمن شي.

آمي ددې لپاره چې شهزادګۍ باکتامون د هورم هب ښځه کړي په طبس کې یې د آمون د معبد له کاهنانو سره خبرې وکړې او د هغوی په مرسته یې یو پلان جوړ کړ، چې په دې بڼه به اجراکېده.

په کومه ورځ چې هورم هب له سوریې څخه په راستېندا پسې د مصر د ستر سوبمن په توګه د آمون معبد ته ځي، نو مېرمن باکتامون به په معبد کې د جنګ د الهې (سخ مت) په شان ځان سینګاروي.

د مذهبي دستورو له پای ته رسېدا وروسته به کاهنان له معبده ووځي او یو کاهن به د وتلو په وخت کې د هورم هب او مېرمن باکتامون ترمنځ چې په دې ورځ د جنګ الهه شوې ده، یو منګۍ مات کړي.

بیا به معبد بېخي تش شي او له هغه وروسته به هورم هب له شهزادګۍ باکتامون سره تفریح وکړي.

د جنګ د الهې په معبد کې په دې تفریح سره به هورم هب د خدایي درجې ته ورسېږي او د جنګ خدای به شي.

کاهنانو د آمي د تلقین له امله ویل، چې ددغو دوارو ترمنځ د منګي ماتولو ته اړتیا نشته، ځکه خدایان ددې لپاره چې له یو بل سره پیوند وکړي، د منګي ماتولو ته اړتیا نه لري.

د منګي ماتول یوازې د عادي خلکو کار دی نه د خدایانو، ځکه چې د خدایانو مقام د منګي تر ماتولو ډېر لوړ دی.

پر دې سربېره له دې کبله چې دغه دوه تنه به په معبد کې تفریح وکړي او یو پکې د جنګ الهه ده، نو پخپله د یو بل مېړه او ښځه کېږي.

# دوه پنځوسم څپرکی

## حیرانوونکی پیوند

آمې فکر کاوه چې په دې پلان سره به مېرمن باکتامون د هورم هب مېرمن کړي، ځکه چې کله شهزادګۍ له اغیارو په تش معبد کې ځان له هورم هب سره چې لوړ، هدوړ او ښکلی دی، یوازې وګوري نو مقاومت نه شي کولای او ځان به د هغه غېږه کې ور واچوي.

خو ملکې نفرتي تي چې له هورم هب سره یې رخه او کینه درلوده او د علت په هکله یې ما مخکې خبرې کړې وې، نو نه یې غوښتل چې شهزادګۍ باکتامون د هورم هب مېرمن شي.

تل به یې له هورم هب څخه شهزادګۍ ته شکایتونه کول، په تېره بیا د هورم هب د ذات او نسل د ټیټوالي په هکله به یې ورته خبرې کولې.

باکتامون ته به یې ویل، ته د خدایانو له توکمه یې، خو دغه سړی چې کله وزېږېد، د ګوتو په منځ کې یې خوشایي نښتي ول.

که دغه سړی له تا سره تفریح وکړي، ستا وینه به چټله کړي او بیا به دې څوک د خدایانو توکم نه بولي.

دغو دواړو مېرمنو په دې وخت کې یو پلان جوړ کړ، چې یوازې د یوې ښځې چل او مکر دغه پلان عملي کولای شي.

ځکه کله چې د یوې ښځې روح له کینې ډک شو، د هېڅ شي ان د ځان پروا هم نه کوي او تولې سیاسي، پوځي او ټولنیزې ګټې ترې ځاروي.

تر دې مخکې چې ووایم د دغو دوو مېرمنو پلان څه و، باید یادونه وکړم، کله چې په سوریه کې د هاتي لښکرو د سولې وړاندیز وکړ، زه ورته حیران شوم.

ما چې د هاتي له روحیې او سخت جنګه کوم معلومات درلودل، تمه مې نه کوله،

چې هغوی دې په سوريه کې سوله وکړي، ځکه که فرض کړو، چې په لسو نورو جنګونو کې سوريې ماتې خوړلې وای، نو د هغوی خپل هېواد ته کوم تاوان نه رسېده، ځکه چې سوريه د دوی اصلي هېواد نه و.

که هورم هب د خپلو پرله پسې بريااو له کبله نه وای مغرور شوی، نو هغه به هم زما په شان د هاتې د سولې وړانديز ته حيران شوی و.

خو هغه له کبر او غرور پرته غوښتل چې له سوريې سره سوله وکړي، چې وکړای شي طبس ته ستون شي، خپلو کارونو ته ورسېږي او شهزادګۍ باکتامون خپله مېرمن کړي.

نفرتي تي د خپل خاوند د واکمنۍ پر مهال ډېر نفوذ درلود، خو د مېړه مرګ د هغې قدرت او نفوذ کم او ختم کړ، مګر د هغې ښکلا همغسې په خپل حال پاتې وه.

هغې فيصله وکړه، چې له خپلې ښکلا استفاده وکړي او هورم هب چې د مصر تر ټولو قدرتمند او مضبوط سړی و، د ځان لور ته جذب کړي چې له هغه سره له تفريح او ساعت تېري خوند واخلي او خپل تېر قدرت او نفوذ، دا ځل د هورم هب په مرسته ترلاسه کړي.

خو هورم هب له شهزادګۍ باکتامون سره د ساعت تېري هيله کوله، کله چې يې وليدل نفرتي تي غواړي، هغه ته ځان تسليم کړي، نو هغه يې له ځانه لرې کړه.

د ښځې لپاره تر دې بله لويه سپکه نشته، چې هغه په دې فکر يوه سړي ته ځان ورنږدې کړي، چې ګني پر هغه ګرانه ده، خو هغه سړی يې پروا ونه کړي او له ځانه يې لرې کړي.

نفرتي تي له همدې ورځې څخه له هورم هب سره د ښمنې پيل کړه.

څرنګه چې دا ډېره ښکلې وه، نو د مصر په دربار کې يو شمېر کسانو، چې له خوراک و څښاک پرته يې په دربار کې بل کار نه درلود او ټل يې په عيش او ساعت تېرې پسې و، د نفرتي تي پر شا وخوا راټول شول.

له دې سره هغه بريالۍ شوه، چې د توت آنخ آمون په دربار کې د ځان لپاره يو بل دربار جوړ کړي.

ددې په ترڅ کې يې د شهزادګۍ باکتامون له فطري غروره هم استفاده وکړه، هغې ته يې داسې خبرې وکړې، چې د خدايانو له توکمه ده او ان د حمام کولو په وخت کې

به يې چاته اجازه نه ورکوله چې څوک يې پر بدن لاس ووهي.

باکتامون به ويل، د وينځو لاسونه بايد زما پر بدن ونه لګېږي، څوک بايد زما پر سيوري ګام کېنږدي، ځکه چې زه الهه يم او زما سيوری د الهې سيوری دی.

شهزادګۍ باکتامون تر هغه وخته خپل بکارت وساته، ځکه چې ويل به يې په مصر کې څوک زما ور نشته، چې منګۍ راسره مات کړي.

فکر کووم د هغې اوږد پېغلتوب، د ځينو عصبي ستونزو سبب هم شو، ځکه کله چې يوه پېغله واده ونه کړي او ډېر وخت مجرده پاتې شي، د واده عمر پرې تېر شي، نو د روحي فشارونو له امله يې اعصاب خرابېږي. خو که مېړه وکړي دغه ستونزه يې ختمېږي.

نفر تي تي شهزادګۍ باکتامون ته تلقين کړی و، چې هغه دې لپاره رامنځته شوې، چې مصر له هغو کسانو پاک کړي، چې عام خلک دې خو د پاچاهۍ خوبونه ويني.

هغې ته يې ويل چې مصر پخوا يوه ملکه درلوده. چې (هاچپ سوت) نوميده، ساختګي ږيره يې کېښودله او شاته به يې د زمري لکۍ نښلوله.

دې به هېواد اداره کاوه او ټولو د هغې حکمونه منل، نو ته هم بايد په راتلونکې کې د مصر پياوړې ملکه شې.

زه فکر کووم، له دې سره سره چې نفرتي تي که د هورم هب په هکله دې پېغلې ته هرڅومره بدې خبرې کولې بيا هم هورم هب پر شهزادګۍ باکتامون ګران و.

خو د نفر تي تي او نورو رټل او سپکاوی يې نه شو زغملای، چې ځان داسې سړي ته وسپاري، چې ټول پوهېږي ټيټ ذاتی دی.

زه تصور کووم له دې کبله چې نفر تي تي د آمي لور وه، نو دغه سړي خپله لور د هورم هب پر پلان خبره کړې وه او هغې ته يې ويلي ول چې موږ دوه کسه غواړو پر مصر حکومت وکړو.

له همدې کبله نفر تي تي پر دې هم پوه شوه، چې ددې کار لپاره به دغو دوو کسانو دا پلان هم جوړ کړی وي، چې هورم هب له شهزادګۍ باکتامون سره واده وکړي. خو نفر تي تي له خپلې ښکلا او هوښيارۍ څخه کار واخيست چې دغه پلان عملي نه شي.

کله چې د نفر تي تي په شان يوه ځيرکه مېرمن وغواړي، يو پلان پر خپل وخت

عملي کړي، نو د جنګي ګاډیو په ارابو کې له موجودو چړو هم تېره او خطرناکه شي.

د دغو دوو مېړمنو د پلان کشفېدا په دې ډول ده، چې کله هورم هب طبس ته ننوت د شهزادګۍ باکتامون لپاره یې پیغام واستاوه چې هغه وګوري، خو شهزادګۍ دغه خبره ونه منله.

هورم هب چې له ډېرو کلونو راهیسې یې هیله کوله له شهزادګۍ باکتامون سره وګوري، د شپې مهال یې وغوښتل د هغې کور ته لاړ شي.

کله چې د باکتامون کور ته نږدې شو، په حیرانۍ سره یې ولیدل، چې د هاتي یو افسر د باکتامون کور ته ننوځي او چې څومره په تمه پاتې شو، چې دغه افسر به راووځي، خو هغه له کوره را و نه ووت.

هورم هب چې هر څه فکر وکړ، د هاتي دغه افسر به له باکتامون سره څه کار لري، خو فکر یې کار ونه کړ او آمي ته یې خبر ورکړ.

هورم هب له آمي سره یوځای د باکتامون کور ته ننوت او هغه مریې چې غوښتل یې د دوی مخه ونیسي ووژل شو.

دوی غوښتل، چې د هاتي افسر په دې کور کې ونیسي، خو د هاتي صاحب منصب داسې خبرې کولې، لکه چې څوک پر ځان ډېر باور او وېسا لري.

ده د سولې د تړون خبره وکړه، چې هورم هب مجبور شو، خوشې یې کړي، ځکه د سولې په وخت یې د هغه د نیولو لپاره هېڅ ډول اجازه نه درلوده او د شهزادګۍ کور ته د هغې په اجازې د هاتي د یوه افسر یا د یوه عادي کس ننوتل جرم نه دی.

خو له دې وروسته چې د هاتي صاحب منصب یې خوشې کړ، کور یې ولټاوه او د پخلنځي په ایرو کې یې څو لوحې پیدا کړې، چې معلومه شوه د شهزادګۍ باکتامون د لیکونو په ځواب کې د هاتي له لوري را استول شوې دي.

کله چې آمي او هورم هب د لوحو له مضمونه خبره شول، داسې حیران او وډار شول بیا یې د باکتامون او د پخوانۍ ملکې نفرتي تي د کور شا و خواته ساتونکي وګمارل او پر همدې شپه د بېوزلو په سیمه کې زما کور ته راغلل.

دغه کور چې د طبس په جنګ کې وران شوی و، زما نوکرې (موتي) په هغه فلز بېرته رغولی و چې کاپتا له سوریې څخه ورته را استولی و.

کله چې هورم هب او آمي زما کورته راغلل، ځانونه یې نه و، معرفي کړي او مخونه

یې هم په نقابونو کې پوښلې وو.

زه، چې له سوریې څخه طبس ته راغلی وم، د شپې مهال به خوب نه راته پر دې شپه هم ویښ وم، چې د کور د دروازې د ټکولو غږ مې واورېد.

موتي چې له خوبه پاڅېدلې وه غږمبېده، دروازې ته ورغله چې خلاصه یې کړي ما تصور نه کاوه چې په شپه کې به آمي او هورم هب زما کور ته راشي. فکر مې وکړ، چې کوم کس سخت ناروغ دی او غواړي ما د هغه کتنې ته ورولي.

کله چې دوی ولیدل موتي ته مې وویل، غټ څراغ بل کړه، چې کوټه نوره هم روښانه شي او موږ ته شراب راوړه.

هورم هب راته وویل باید موتي ووژنې، ځکه چې هغې زما مخ لیدلی دی.

زه دې خبرې ته حیران شوم، ځکه چې داسې نه و شوي، چې هورم هب دې کوم څوک په دې جرم ووژني چې د هغه څېره یې لیدلې ده.

هغه ته مې وویل ډاډ درکووم چې دې ښځې ستا څېره نه ده لیدلې، ځکه د هغې سترګې په رڼا ورځ دومره کمزورې دي، چې په نژدې واټن کې د اوبو اس نه شي لیدلای نو د شپې مهال خو هېڅوک نه پېژني.

سترګې یې ډېرې کار نه کوي، نو شراب وڅښه او له دې ښځې څخه مه وېرېږه او اوس راته ووایه، چې څه شوي دي، چې ته او آمي په دې شپه کې زما کور ته راغلي یاست؟

ناروغان یاست که کومه بله ستونزه لرئ چې په دې وخت کې دې کور ته راغلي یاست؟

هورم هب وویل زه ناجوړه نه یم او کوم خطر مې هم نه ګواښي، خو مصر له یوه لوی خطر سره مخامخ دی او سینوهه! ته باید مصر وژغورې.

آمي هم د هورم هب خبره تایید کړه او ویې ویل، سینوهه! نه یوازې مصر له یوې سترې خطرې سره مخامخ دی، بلکې ما هم خطر ګواښي.

یوازې ته کولای شې ما او مصر وژغورې، له همدې امله زه او هورم هب تا ته راغلي یو، چې له موږ سره مرسته وکړې.

ما وخندل، لاسونه مې وښورول او ومې ویل، لکه چې ګورئ زما لاسونه له سرو و سپینو تش دي او په مصر کې مې چې څومره سره و سپین درلودل، یا مې د طبس په

کورني جنګ کې د بېوزلو د خېتې په مړولو ولګول، يا مې هورم هب ته ورکړل، چې د سوريې په جنګ کې يې ولګوي.

نن سبا داسې شی راسره نشته چې وکړای شم له تاسې سره مرسته وکړم.

په دې وخت کې هورم هب، هغه لوحې راوښودلې چې د شهزادګۍ باکتامون په کور کې يې پيدا کړې وې.

که څه هم دغه لوحې ټولې د هاتي د پاچا (شوبيلو ليوما) له لوري مېرمن باکتامون ته ليکل شوې وې، خو د هغوی له ځوابه سړی پوهېده، چې شهزادګۍ باکتامون د هاتي پاچا ته څه ليکلي دي.

د هر ليک د ځواب په سريزه کې د مېرمن باکتامون د ليک د مضمون يوه برخه هم ليکل شوې وه.

داسې ښکارېده چې شهزادګۍ باکتامون پخپلو ليکونو کې د هاتي پاچا ته ليکلي ول، چې زه د فرعون لور او ډېره ښکلې هم يم. په مصر کې داسې څوک نشته چې له ما سره د واده کولو وړتيا ولري.

اورېدلي مې دي، چې ته څو ځوانان زامن لرې، نو خپل يو زوی ما ته مصر ته را واستوه چې زه ورسره منګی مات کړم او هغه زما مېړه شي.

له دې وروسته چې هغه له ماسره منګی مات کړ، په مصر کې به زما په واکمنۍ کې شريک شي او له موږ وروسته به زموږ بچيان په مصر کې حکومت وکړي.

د هاتي له لوحو دا خبره سپينه شوه چې (شوبيلو ليوما) کله چې د شهزادګۍ لومړنی ليک تر لاسه کړ حيران شوی و او فکر يې کړی و، چې باکتامون نيت لري هغه وغولوي او ملنډې پرې ووهي.

ده په پټه مصر ته يو استازی استولی و، چې پوه شي دغه ليک سم او رښتونی دی که څنګه؟

له دې وروسته چې د هغه استازي په پټه له مېرمن باکتامون سره وکتل پوه شو، چې ليک سم دی.

مېرمن باکتامون د دغه استازي په لاس بل ليک د هاتي پاچا ته واستاوه او ورته يې وليکل چې د مصر خانان او د آمون کاهنان ددې پلويان دي او د هاتي له يوه شهزاده سره د هغې واده تايدوي.

په دې وخت کې د هاتي پاچا پوه شو چې له شهزادګۍ باکتامون سره د خپل يوه زوی په واده سره د مصر هېواد نیولی شي.

د خپلو پوځیانو مشر او خپل زوی (شوباتو) ته يې وويل د هاتي او مصر په سوله پسې، د فرعونيانو هېواد ته لاړ شه او له شهزادګۍ باکتامون سره واده وکړه.

په داسې حال کې چې زه د لوحو په لوستلو بوخت وم، هورم هب له آمي سره لانجه درلوده او ويل يې: آمي له دې وروسته چې ما او تا د مصر دومره خدمتونه وکړل، ايا زما انعام همدا دی؟ که زه پوهېدای چې ته دومره نالايقه يې، چې په طبس کې زما ګټې نه شي خوندي کولای. نو د خپلو ګټو د خوندي کولو لپاره به په خپله مصر ته راغلی وم او يا دا چې يو تکړه کس به مې د دې کار لپاره ګمارلی وای.

که ما يو ړوند سپی هم په طبس کې د خپلو ګټو د خوندي کولو لپاره ګمارلی وای، ستا په پرتله به يې زما ګټې ښې خوندي کړې وې او اجازه به يې نه ورکوله، چې په طبس کې زما پر خلاف دومره ستره د سيسه وشي.

آمي ! په رښتيا چې ته تر هغو ټولو منفور سړی يې، چې ما پخپل عمر کې ليدلي دي.

له دې وروسته بله چاره نه لرم، مګر دا چې طبس د خپلو عسکرو په وسيله ونيسم او پرې نه ږدم چې دغه واده وشي.

آمي وويل ټولې هغه خبرې چې په دې لوحو کې ليکل شوې دي سمې نه دي او ته پخپله به پوهېږې، چې خانان او د آمون کاهنان دواړه د هاتي له شهزاده سره په دې هېواد کې د هېچا له واده کولو سره موافقه نه کوي.

له ملته هم بايد ونه وېرېږو، چې زما له سلطنت سره دې مخالفت وکړي، ځکه چې ملت هېڅکله د پاچاهي په کارونو کې لاسوهنه نه کوي او هرڅوک چې قدرت ولري د خلکو پر ورمېږو نو جغ ايښودلی شي او هغوی کارکولو ته اړ کولای شي.

زه له خانانو، کاهنانو او د مصر له ملته نه وېرېږم، خو د هاتي د پاچا له زوی شوباتو څخه ډېر وېرېږم، ځکه که دغه سړی طبس ته ورسېږي او له مېرمن باکتامون سره منګي مات کړي، دغه ښځه خپله ماندينه کړي، نو حتماً به د مصر پاچا شي.

موږ به بيا د دې سړي د پاچاهۍ مخه و نه شو نيولای، مګر دا چې له هاتي سره جنګ پيل کړو.

خو مصر له سوریې سره په درې کلن جنګ کې دومره کمزوري شوی چې له هاتي سره جنګ نه شي کولای او که یې وکړي نو په دې جنګ کې به حتماً له منځه ځي.

نو یوازې یو کس موږ ژغورلای شي او هغه هم سینوهه دی.

ما په حیرانۍ سره وویل، د مصر په ټولو خدایانو قسم درکووم چې ووایې، زما په شان یو ډاکټر چې نه سره و سپین لري او نه زور، نو څه ډول به تاسې وژغورلی شي؟

ایا دا هیله کولای شئ چې زه وکړای شم دغه لېونی شهزادګی، دې ته اړه کړم چې له هورم هب سره واده وکړي او ورسره مینه وکړي.

هورم هب وویل، سینوهه! تا پخوا یو ځل له موږ سره مرسته کړې وه او اوس باید بیا له موږ سره مرسته وکړې.

ځکه کله چې یو کس، یو ځل په اوړو کې لاس ونه ننباسي، بیرته یې نه شي را ایستلی، مګر دا چې دغه اوړه لانده شي او ډوډۍ ترې پخه شي.

ته باید له دې ځایه د شهزاده شوباتو کتنې ته ورشې او داسې کار وکړې، چې هغه ژوندی پاتې نه شي، چې له مصره و نه وځي.

زه نه پوهېږم چې ته باید څه وکړې چې هغه ژوندی پاتې نه شي خو پخپله باید د هغه د وژلو لاره پیدا کړې.

زه هغه په ښکاره نه شم وژلی، ځکه که یې په ښکاره ووژنم هاتي به بیا پر مصر د حملې تابیا وکړي او نن سبا مصر داسې کمزوری شوی، چې د هاتي د حملې مخه نه شي نیولای.

زه ددې خبرې په اورېدو وېرېدم، ځنګونونه مې ورېږدېدل، زړه مې په درزا شو او کله چې مې غوښتل خبره وکړم، ژبه مې په خوله کې بنده شوه او په تر ترې حالت کې مې وویل: که تاسې ولیدل چې ما یو ځل له تاسې سره مرسته کړې، نو هغه ددې لپاره وه، چې غوښتل مې یو لېونی فرعون وژغورم، ځکه چې اخناتون پخپله ډېر کړېده او د هغه ژوند مصر له تباهۍ سره مخامخ کاوه.

خو د هاتي د پاچا زوی شهزاده شوباتو له ما سره کومه بدي نه ده کړې او ما یوازې یو ځل، هغه مهال ولید چې آزیرو یې اعداماوه.

زه چمتو نه یم چې هغه ووژنم او نه غواړم چې لاس ونه مې د یوه بېګناه سړي په وینو سره شي.

هورم هب ټنډه تروه کړه او له غوسې تک تور شو ، په مترو که یې خپله پنډۍ ووهله او ویې ویل، سینوهه ! ته هوښیار سړی یې او پوهېږې، چې موږ د مصر په شان یو ستر هېواد ، دیوې ښځې پر هوس قربان کړو .

مصر نن سبا په نړۍ کې عزت لري او د سوریې له فتحې وروسته یې ابرو خوندي شوې ده.

لږ فکر وکړه او پوه شه، چې ایا یو هېواد په داسې حالت کې قربانولی شو ، چې یوه ښځه وایي زه له پلاني سره واده نه شم کولای، بلکې له بل چا سره واده کووم؟

سینوهه ! دا خبره ومنه چې د مصر د ژغورلو لپاره بله لاره نشته، مګر دا چې دغه سړی له منځه لاړ شي او ته باید هغه، مصر ته له را رسېدا مخکې مړ کړې

ددې لپاره چې له دغه سړي سره اشنا شې،تر ټولو ښه وسیله دا ده، چې بې له ځنډه حرکت وکړې او په سینا صحرا کې له دې شهزاده سره وګورې.

زما د سمو معلوماتو پر بنسټ که ته سمد ستي روان شې او ځان د سینا صحرا ته ورسوې، نو د مصر د سرحد په دریو مزلونو کې ځان دغه شهزاده ته رسولی شې.

کله چې دې هغه ولید ، ورته ووایه چې د مېرمن باکتامون استازی یې او هغې را استولی یې، چې راتلونکی مېړه یې معاینه شي او په دې پوه شي، چې ایا هغه دا وس او وړتیا لري، چې د مصر شهزادګۍ ته یو ځواکمن مېړه شي؟

زه باور لرم چې که ته ځان هغه ته په دې ډول معرفي کړې، نو هغه به ستا پر خبره باور وکړي او له دې کبله، چې شهزاده هم د نورو په شان هوس او کنجکاوي لري، نو هغه به وکړي چې له تا څخه د خپلې راتلونکې مېرمنې په هکله پوښتنې او څېړنې وکړي او پوه شي چې راتلونکې ښځه یې ښکلې ده کنه؟

سینوهه ! ته به هغه مهال په نرمه او خوږه ژبه د شهزادګۍ باکتامون، په هکله داسې خبرې وکړې، چې هغه نوره کنجکاوي او نور تحقیق ونه کړي، چې ایا ته په رښتیا د مېرمن باکتامون له لوري راغلی یې کنه؟

فرضاً که وغواړي تحقیق وکړي، چې ته د مېرمن باکتامون له لوري راغلی یې کنه، نو ددغه کار لپاره به کافي فرصت ونه لري.

دی به ونه شي کولای چې طبس ته یو استازی را واستوي، چې هغه له باکتامون څخه پوښتنه وکړي او بیرته ستون شي، نو ته به خپل کار وکړای شې.

خو ما د هورم هب او آمي له لوري د دغه کار راسپارل نه شوای منلی او د هغوی خبرې مې ردې کړې. کله چې هورم هب پوه شو. زه نه غوارم دغه کار وکړم. ویې ویل، سینوهه! ژر پر وړاندې خپله فیصله وکړه، مرګ غواړې که ژوند؟

اوس چې ته زموږ په راز پوه شوی یې، نو که له موږ سره مرسته ونه کړې، فکر مه کوه چې زما نږدې ملګری یې او ژوندی به دې پرېږدم.

سینوهه! دغه نوم چې ستا مور پر تا ایښی دی شوم او سپیره دی، ځکه د دې نوم خاوند د فرعونیانو په رازونو پوه شو او څوک چې په دې رازونو پوه وي، تر هغه چې ژوندی دی، باید هڅه وکړي چې پر دې رازونو پوهېدل یې د مړینې سبب نه شي.

اوس وو وایه چې ایا چمتو یې کنه، چې له مصره لاړ شې. د شهزاده شوباتو هرکلی وکړې او تر دې وړاندې چې هغه مصر ته ننوځي، ته یې ووژنې. که منفي ځواب راکړې په دې چړې سره چې په ملا پسې مې تړلې ده، همدلته دې رګونه او سږي څیرم، خو باور وکړه چې له مجبوریته به دغه کار وکړم.

که ته زر ځله نور هم له ما سره ملګرتیا ولرې بیا به دې هم ووژنم.

ما او تا پخوا هم یو جنایت کړی، چې هغه د فرعون اخناتون قتل و، خو هغه جنایت مو د مصر د ژغورلو لپاره وکړ.

اوس باید بیا د مصر د ژغورولو لپاره یو بل جنایت وکړو، ځکه که دغه جنایت ونه شي، مصر به د هاتي له سلطې سره مخامخ شي.

ومې ویل، هورم هبه! ما له مرګه مه وېروه او په دې پوه شه چې یو ډاکټر له مرګه نه دارېږي.

هورم هبه! د چړې له لاستي لاس لرې کړه، ځکه چې ستا چاړه زما د جراحی تر چړې ډېره پخه ده او زه له چړې کرکه کووم.

خو ته په دې پوه شه چې زه د مرګ له وېرې، ستا وړاندیز نه منم بلکې، له دې امله دغه غوښتنه منم چې، پوهېږم خبره دې سمه ده، باید مصر له هاتي څخه وژغورو.

هورم هب وویل، افرین له دې وروسته چې ته د هاتي شهزاده ته ورغلې او هغه پوه شو، چې ته د هغه د راتلونکې مېرمنې له لوري ورته راغلی یې، نو تا ته به ډېرې ډالۍ هم درکړي، چې ډېر شتمن به شې.

ما وویل، د هغه ډالیو ته مې سترګې نه دي نیولې.

که زه حریص سړی وای، نو ټول هغه سره و سپین، مریان او وینځې چې درلودې مې، هر څه به مې ساتلي ول، خو ته پوهېږې چې ما دا ټول له لاسه ورکړل

زه باوري یم، چې وبه وژل شم، ځکه کله چې د شهزاده شوبا‌تو شا و خوا کسان وګوري، چې ما یې د پاچا زوی وروژلی دی، نو ما به ووژني.

زه لا تر اوسه نه پوهېږم، چې څه ډول به دغه سړی ووژنم، خو دغه کار به د مصر د ژغورنې لپاره وکړم.

پوهېږم چې دا هم د هغو نورو پېښو په شان ده، چې زما په قسمت کې وې او له ازله د اسمان ستورو دغه پېښې زما په قسمت کې لیکلې دي.

اې هورم هبه! او اې آمي! تاسې چې غواړئ د مصر واکمنان شئ، د مصر د پاچاهۍ تاج زما له لاسه واخلئ او پر خپل سر یې کېږدئ، هیله کووم چې په راتلونکې کې زما نوم په ښو یاد کړئ او ووایئ چې یوه بې وسه مصري د اکثر مورد مصر پاچاهۍ ته ورسولو.

کله چې ما دغه خبرې کولې، په باطن کې مې د غرور احساس کاوه، ځکه چې را یاد شول. زه د مصر د فرعونیانو له ذاته یانې د خدایانو له ذاته یم

ماته را یاد شول چې زه د مصر د تاج و تخت وارث یم او د مصر د فرعون کېدا لپاره مې تر آمي، چې یو کوشنی کاهن دی، صلاحیت ډېر دی.

په همدې ډول تر هورم هب هم د پاچاهي لپاره ډېر صلاحیت لرم، ځکه د هغه له مور و پلار ه لا هم د خوشیو بوی نه لتېږي

په دې شپه مې هورم هب ته وویل چې له مرګه نه وېرېږم او دا خبره سمه وه، ځکه چې د مرګ له درده نه ډارېدم.

زه پوهېدم چې مرګ درد نه لري، خو له دې سره سره چې ځان مې د هورم هب او آمي پر وړاندې زړور او قوي سړی وښود، مګر په دې ډېر خواشینی وم چې خپل ژوند له لاسه ورکووم.

ماته را پر زړه شول، چې که زه مړ شم، نو د نیل د پاسه به د تو تکیو الوت و نه وینم او نور به مې سترګې د هرمونو د تاکستان له منظرو څخه خوند وانه خلې.

له دې وروسته به له هغو غازانو څخه خوند وانه خیستلای شم چې موټي یې د طبس په دود په تنور کې کباب وي

د دغو خوندونو په اړه پر فکر کولو سربېره پوه شوم، چې د مصر ژغورل ضروري کار دی.

ما چې د مصر د ژغورلو لپاره فرعون اخناتون بلې نړۍ ته واستاوه، بايد د يوه هاتي وال له مرګه هم ډډه ونه کړم، د هغه کس له مرګه چې د مصر او زما د هېواد او خدايانو دښمن حسابېږي.

ځکه که د يوه پردي شهزاده، چې زه ورسره هېڅ علاقه او مينه نه لرم، له وژلو ډډه وکړم، نو داسې به وي، چې فرعون اخناتون مې بې ګټې وژلی دی او هغه لويه سرښندنه به بې نتيجې وي، چې ما د فرعون د وژلو لپاره وکړه.

په دې شپه چې آمي او هورم هب زما په کور کې ول، دغه ټول فکرونه مې په ذهن کې تېرېدل او کله به د دغو دوو کسانو اصلي څېره زما تر سترګو شوه.

له دې سره به مې فکر وکړ، چې دوه غله او لوټماران دلته ناست دي، چې غواړي مصر ولوټي، خو دغه دوه کسان مصريان دي، په داسې حال کې چې شهزاده شوباتو پردی دی.

هورم هب ته مې وويل، تا چې اوس فيصله کړې، د مصر د پاچاهۍ تاج پر سر کړې، نو په دې پوه شه، چې د پاچاهۍ تاج ډېر دروند دی.

ته به د دوبي په يوه ګرمه شپه کې، کله چې دې له سر و مخه خولې راماتې وي، د دې تاج درونډوالی احساس کړې.

هورم هب وويل، سينوهه! د دې پر ځای چې د پاچاهۍ د تاج د درنښت فکر وکړې، غوره ده چې ژر پاڅېږې او حرکت وکړې.

ستا لپاره بېړۍ چمتو شوې او ته بايد په بېړه ځان د سينا صحرا ته ورسوې، چې سرحد ته د هاتي د شهزاده له رسېدا مخکې له هغه سره يو ځای شې.

په دې شپه ما د طبابت وسايل او څيني نور ضروري شيان هغې ګرندۍ کشتۍ ته ورسول، چې هورم هب راته برابره کړې وه.

په دې شپه، موتي زما لپاره د طبس په دود، په تناره کې يو غاز کباب کړی و، چې لږه برخه مې په ماسخوتن کې وخوړه او پاتې برخه مې بېړۍ ته راسره يووړه، چې په لاره يې وخورم او شراب مې هم له ځان سره واخيستل

کله چې بېړۍ نيل سيند کې مخ پر ښکته روانه وه، ما دا فرصت پيدا کړ، د هغه

خطر په هکله فکر وکړم چې مصر ګواښي.

زه پوه شوم چې دغه خطر هغه توپان ته ورته دی، چې له افقه راپورته شوی او که یې مخه ونه نیول شي، نو مصر به له منځه یوسي.

زه نه غواړم په دې خبره ځان د مصر ژغورنکی معرفي کړم، ځکه که دغه خبره وکړم دروغ به مې ویلي وي.

هغه کارونه چې انسانان یې کوي بېلابېل عوامل لري او په هر کار کې، ممکن دوه اصلي علتونه موجود وي، یو علت خصوصي وي او بل د عامه ګټو لپاره وي.

زه فکر کووم هر څوک چې د عامه ګټو لپاره کوم کار کوي، یو خصوصي علت هم وي چې هغه دې کار ته مجبوروي.

خو ډېرځله خلک خصوصي علت ته توجه نه کوي او یا یې نه ګوري، له همدې امله فکر کوي، چې دغه کار یې د خلکو د ګټو لپاره کړی دی.

مثلاً زه د هاتي د پاچاهۍ له خطر څخه د مصر د ژغورلو لپاره روان وم، خو یو خصوصي علت هم دغه کار ته وهڅولم او هغه دا چې پوهېدم، که لاړ نه شم هورم هب به مې ووژني.

خو له دې ټولو سره سره، له ځان او وجدان څخه شرمېدم، چې ولې دیوه سړي د وژلو لپاره روان یم، مګر پر دې هم پوهېدم چې د هغه وژل مصر ژغورلی شي.

یو ځل بیا مې ځان یوازې ولید او پوه شوم چې کوم ملګری او غمخور نه لرم.

هغه راز چې ما پخپل زړه کې درلود، دومره خطرناک و، چې که رسوا شوی وای، په زرګونو کسان به وژل شوي وو، نو له هېچا سره مې نه شو شریکولای.

ما د هاتي د شهزاده د ژغورلو لپاره له چا څخه مرسته نه شوه اخیستلای، ځکه که بل څوک په دې راز خبر شوی وای، نو په کوڅه او بازار کې به ټول پرې خبر شوي وو.

ما باید د هاتي د شهزاده د وژلو لپاره له ډېرې چالاکۍ څخه کار اخیستی وای، ځکه پوهېدم، که د شهزاده شا و خوا کسان پوه شي، چې ما د هغوی د پاچا زوی وژلی، نو ما به په ډول ډول شکنجو ووژني.

یوه شکنجه دا وه چې په ژوندیني به خرمن راڅخه وباسي، ځکه د هاتي خلک په شکنجه ورکولو کې، د نړۍ تر ټولو تکړه استادان دي.

کله به مې فکر کاوه، چې دغه کار ونه کړم، وتښتم، په یوه لرې هېواد کې ژوند

وکړم او مصر پر خپل حال پرېږدم. چې هر څه کېږي پر مايې څه؟

که تېښتېدلی وای، نو د نړۍ حالات به بدل شوي ول او د نړۍ تاریخ به په اینده کې بل ډول شوی و.

له ځان سره مې وویل. سینوهه! اوس چې ته بوډا شوی یې او ښه تجربه لرې، نو باید پوه شې، چې په خبرو ونه غولېږې. ځکه چې په دې نړۍ کې داسې اصول او قوانین شته، چې د هیلمندۍ هېڅ یوه خبره او ستره ژمنه. هغه له منځه نه شي وړای

ددغو اصلو له ډلې څخه یو دا دی. چې په هر هېواد کې باید پر بېوزله او خوارو پرګنو د خانانو او واکمنانو له لوري ظلم وشي. که دغه واکمن آمي وي. یا هورم هب او یا دهاتي شهزاده؟

نو که ته د هاتي شهزاده ووژنې. د مصر د بېوزلو په ژوند کې به بدلون رانه شي. ځکه که یو بهرنی شهزاده د مصر فرعون شي، پر بېوزلو او بېوسو به ظلم ونه کړي. خو آمي او هورم هب به پر هغوی فشار راولي.

نو سینوهه! وتښته او پاتې عمر په یوه لرې هېواد کې تېر کړه، چې لاس دې دده سرې په وینو ککړ نه شي.

له دې سره سره چې له ځان سره مې دغه خبرې کولې. خو ونه تښتېدم. ځکه زه یو کمزوری سړی وم او اسوده ژوند او ښه خوراک و څښاک سړی له روحي پلوه کمزوری او بېوسه کوي

کله چې یو کس له ښه او سوکاله ژوند سره روږدی شي. داسې کمزوری کېږي. چې د نورو تالی څخه تري جوړ شي او د هغوی لپاره جرم او جنایت کوي

زه فکر کووم سوکاله ژوند ،ښه خوراک و څښاک او د مریانو او وینځو درلودل، انسان داسې روږدی او لټ کوي، چې په دغسې کسانو کې څینې چمتو دي مړه شي، خو نه غواړي چې ژوند یې بدل شي.

لامل یې دا دی چې دوی د راتلونکي ژوند له مجهولاتو وېرېږي او وایي ښایي دغه ښه خواړه، جامې او سوکاله ژوند به بیا ونه مومي.

له دې کبله چې زه یو کمزوری کس وم، نو له هغه برخلیکه مې ځان نه شو ژغورلای، چې ستورو راته په نظر کې نیولی و.

له همدې کبله مې د تېښتې فکر له سره ویوست او فیصله مې وکړه چې شوباتو

ووژنم.

مافکر کاوه. چې څه ډول هغه له منځه یوسم، چې د هغه شا و خوا کسان او د هاتي پاچا، ما او د مصر ملت د هغه د وژنې مسول ونه بولي.

زه پوهېدم چې سخته دنده را په غاړه شوې، ځکه چې شهزاده شوباتو هېڅکله یوازې نه وي او د هاتي قبیلې خلک هم ډېر بدبینه خلک دي. چې پر هر چا شک کوي او امکان نه لري. ما د خپل پاچا له زوی سره یوازې پرېږدي.

زه پوهېدم چې شوباتو له ځان سره بیدیا ته نه شم بېولی، چې یوې درې ته یې ګوزار کړم. یا دا چې په یوه زهرجن مار یې وچیچم. ځکه چې د هغه شا و خوا کسان به اجازه رانه کړي، چې یوه شېبه هم ورسره یوازې پاتې شم.

زه پوهېدم چې د میوې ځینې ونې داسې روزلی شو. چې مېوه یې زهرجنه شي او که یې څوک وخوري مړ کېږي.

دغه خبره مې هم اوریدلې وه، چې د پاپیروس پر پاڼو لیکل شوي ځینې کتابونه هم په زهرو ککړولی شو، چې هر څوک یې پاڼې واړوي له هغو زهرو څخه به مړ شي.

خو د سینا په صحرا کې مې له دغو وسایلو څخه استفاده نه شوه کولی. ځکه په زهرو د ککړو مېوو روزل. یا په زهرو د کتاب د پاڼې ککړول. وخت او مناسب ځای ته اړتیا لري او شهزاده شوباتو کتاب لوستونکی کس هم نه و، چې په زهرو ککړ کتاب ورکړم.

که په دې سیمه کې کاپتا موجود وای. له هغه مې مرسته اخیستلای شوه، پوهېدم، چې هغه ډېر چالاک سړی دی او د غیرعادي حللارو په موندلو کې استاد دی. خو کاپتا په سوریه کې و چې له خلکو څخه خپل پورونه واخلي.

له همدې امله باید د شهزاده شوباتو د وژلو لپاره له خپل علم او پوهې څخه استفاده وکړم، ځکه له بل چا مې مرسته نه شوه غوښتلای.

که شوباتو ناروغ وای نو وژل یې ماته سخت نه و او ددې وس مې درلود، چې په علمي اصولو هغه بلې نړۍ ته واستوم چې څوک شک هم ونه کړي.

یوازې ډاکټران پر دې پوهېدای شول، چې ما هغه وژلی دی. خو ډاکټران د هغه نالیکلي قانون له مخې، چې دوی ټول ورته پام کوي، د خپل همکار پر جنایت پرده اچوي.

هېڅکله یو ډاکټر نه وایي چې پلاني ډاکټر په قصدي توګه یا له ناپوهۍ څخه خپل ناروغ وژلی دی.

شوباتو ناروغ نه و او که ناروغ شوی هم وای، نو دهاتي هېواد ډاکټرانو معالجه کاوه او دا اړتیا نه وه، چې ما د هغه درملنې ته وروبولي.

دغه خبرې د دې لپاره کووم چې پوه شئ، هغه دنده چې هورمهب او آمي په تېره بیا هورمهب را سپارلې وه، څومره سخته وه.

اوس چې مې د دې کار سختي بیان کړې، بیرته به د دې پېښې کیسه وکړم.

کله چې زما بېړۍ د ممفیس پر لور روانه شوه، د دې ښار دارالحیات ته ولاړم او ومې ویل چې یوه اندازه بېلابېل زهر راکړي.

هېڅوک زما پر دې خبرې حیران نه شول، ځکه ټول پوهېدل چې تر ټولو خطرناک زهر په ځینو ناروغیو کې (که د ډاکټر له لوري په کمه اندازه ورکړل شي.) ممکنه ده د معالجې سبب شي.

له دې وروسته چې له دارالحیات څخه مې بېلابېل زهر ترلاسه کړل تانیس ته لاړم او له هغه ځایه په روان تخت کې د سینا صحرا پر لوري روان شوم.

لکه څرنګه چې هورمهب ویلي ول، څو جنګي ګاډي یو ته دنده سپارل شوې وه، چې په هر ځای کې له ما سره وي، چې په لاره کې غله را ته ستونزې پیدا نه کړي.

د شوباتو د مسافرت په هکله د هورمهب معلومات دومره دقیق ول، چې د تانیس د ښار په درېیو مزلونو کې د اوبو د یوې کوچنۍ ویالې تر څنګ شوباتو ته ورورسېدم.

ومې لیدل چې هغه د لته اړولي او یو شمېر عسکر او نوکران هم ورسره ول.

د هاتي د پاچا د زوی په اډه کې ډېر خره موجود ول، زه پوه شوم چې د دغو خرو بار هغه ډالۍ دي، چې شوباتو یې مصر ته وړي او شهزادګۍ باکتامون ته یې ورکوي.

په دې کمپ کې یوه درنه او لویه جنګي ګاډۍ هم لیدل کېده او وامې ورېدل چې یوه وړه او سپکه ګاډۍ هم د کشف لپاره مخکې تللې ده.

ځکه، د هاتي پاچا چې خپل زوی یې مصر ته استاوه، پوهېده چې هورمهب په باطن کې مصر ته د هغه د خوان زوی په ورتګ خپه دی. نو له خپل زوی سره یې یوه کوچنۍ، خو تکړه جنګي ډله هم واستوله چې که هورمهب د شهزاده لپاره کوم بد نیت ولري دغه جنګي ډله به ترې دفاع وکړي.

کله چې د هاتي د پاچا د زوی کمپ ته ننوتو هغه کسان چې هلته ول. ما او له ما سره تللیو افسرانو ته یې درناوی وکړ، ځکه د هاتي دود او رواج دا دی. چې کله پوهېږي له یو چا ځخه کوم شی په اسانه او له جنګ پرته ترلاسه کولای شي، نو تر هغه یې درناوی کوي چې دغه کسان تر خپلې سلطې لاندې راولي.

کله چې دا کار وشو، بیا یې نو له پوسته کوي او یا یې سترګې ړندوي او په ژرندو کې یې تړي چې تېل پرې جوړ کړي.

د هاتي کسانو مرسته وکړه، چې د شهزاده شوباتو د کمپ تر څنګ موږ هم خپل کوچنی کمپ جوړ کړو، خو ددې لپاره چې موږ د بېدیا له غلو او زمریانو وساتي یو شمېر ساتونکي یې زموږ د کمپ شا و خوا ودرول.

کله چې شوباتو خبر شو، چې زه د مېرمن باکتامون له لوري راغلی یم. زه یې ور وغوښتلم.

د هغه کېږدۍ ته چې ورغلم او هغه مې په لومړي ځل له نږدې ولید، روښانه او ځلېدونکې سترګې یې درلودې.

کله چې ما، هغه د سوریې په مجیدو ښار کې له لرې لیدلی و د هورم هب په څنګ کې ولاړ او نشه و، ځکه خو یې سترګې هم لوېدلې او بې نوره وې.

خو په دې ورځ مې ولیدل، چې ښکلې او روښانه سترګې لري او له دې کبله چې فکر یې کاوه، زه د مېرمن باکتامون له لوري راغلی یم، نو له ډېرې خوشحالۍ او کنجکاوۍ یې سپږمې وربېږدېدلې، و یې خندل او سپین غاښونه یې ښکاره شول.

هغه مصري جامې اغوستې وې، خو په دې جامو کې خوشحال او ارام نه ښکارېده.

دواړه لاسونه مې پر ځنګنو کېښودل، رکوع مې وکړه، بیا پاځېدم او د مېرمن باکتامون، جعلي لیک مې ورکړ چې آمي برابر کړی و. په دې جعلي لیک کې باکتامون، زه د هاتي شهزاده ته د خپل استازي په توګه معرفي کړی وم او لیکل شوي ول، چې زه سینوهه درباري ډاکټر او د هغې د ټولو رازونو محرم یم.

له دې کبله چې د شهزادګۍ له ټولو رازونو خبر یم، نو راتلونکې مېړه یې هم باید خپل رازونه له ما پټ نه کړي، باید زما پوښتنو ته سم ځوابونه راکړي او پر ما بشپړ باور وکړي.

شوباتو وویل، سینوهه! له دې کبله چې ته درباري ډاکټر یې او زما د راتلونکې

مېرمنې په ټولو رازونو پوهېږې، زه هم له تا څخه هېڅ شی نه پټوم.

درته وايم چې کله ما له شهزادګۍ باکتامون سره واده وکړ مصر به زما د هېواد په شان وي.

فيصله مې کړې، چې د مصر ټولو قوانينو ته غاړه کېږدم او له همدې امله مې مصري جامې اغوستې دي.

اوس د مصر دودونه او رواجونه زده کووم، چې کله هلته لاړم، نو څوک راته د پردي په سترګه ونه ګوري.

زړه مې ډېر غواړي چې ډېر ژر د مصر سيل ځايونه وګورم او د مصر د خدايانو له قدرته خبر شم، چې له دې وروسته به زما خدايان هم وي.

خو تر هر څه ډېر مې زړه غواړي، خپله راتلونکې مېرمن وګورم، ځکه چې پوهېږم له باکتامون سره يوه سلطنتي کورنۍ جوړوم.

نو د هغې په هکله راته خبرې وکړه او دا راته ووايه، لکه څرنګه چې مې اورېدلي، ايا هغه ښکلې ده کنه؟ راته ووايه چې د هغې ونه لوړه ده که ټيټه او سينې يې څنګه دي؟ ايا د بدن شاتنۍ برخه يې پراخه او لويه ده کنه؟

سينوهه! له ما څخه هېڅ شی مه پټوه او که پوهېږې، چې د مېرمن باکتامون په بدن کې کوم عيب وي، هغه راته ووايه، ځکه همغه ډول چې زه په تا باور لرم، ته هم بايد پر ما اعتماد وکړې.

د شوباتو اعتماد له دې ډېر ښه معلومېده، چې د کېږدۍ شا و خوا يې وسله وال کسان ولاړ ول او زما تر شا هم څوتنه نېزه لرونکي ساتونکي درېدلي ول، چې که زه کوم شکمن اقدام وکړم، نو دوی به خپلې نېزې زما په بدن کې ننباسي.

خو ما داسې وښوده چې ګنې هغوی نه وينم او ومې ويل: مېرمن باکتامون د مصر تر ټولو ښکلې ښځه ده او له دې کبله چې د خدايانو سپېڅلې وينه لري، تر اوسه پورې يې خپل پېغلتوب ساتلی دی. دې نه غوښتل، دد اسې کس مېرمن شي، چې د هغې وړتيا ونه لري، نو له همدې امله له تا څخه لږ زيات عمر لري، خو د يوې ښکلې مېرمنې عمر ډېر مهم نه وي، ځکه چې د هغې ښکلا، هغه تل تانده او ځوانه ښيي.

مېرمن باکتامون د سپوږمۍ په شان مخ لري او سترګې يې بيضوي دي.

که ته يې سترګې وګورې، صبر او حوصله به بايلې.

د شهزادګۍ ونه او قد نه ډېر دنګ دی او نه ډېر لنډ او د بدن شاتنۍ برخه یې پلنه ده.
دغه موضوع له طبي پلوه، ددې ښودنه کوي، چې هغه ډېر بچیان زېږولی شي، خو د شهزادګۍ ملا د مصر د نورو مېرمنو، په شان نرۍ ده او له همدې امله یې زه رالېږلی یم، چې زه تاوګورم او پوښتنه درڅخه وکړم چې ایا د هغې لپاره به یو ښه او پیاوړی مېړه شې؟
څکه شهزادګۍ چې ته یې د خپل خاوند په توګه د خان لپاره ورکس ګنلی یې. تمه لري چې ته د یوه مېړه په توګه خپله دنده په سمه توګه ترسره کړې.
کله چې شهزاده شوباتو دغه خبرې واورېدې خپل لاس یې پورته کړ او متې یې راوښودلې. ویې ویل، زما په متوکې دومره زور شته چې د ډېرې لوېې او کلکې لیندۍ مزی هم راکاږلی شم.
که پر کوم خره سپور شم، او دواړو ورنونو ته فشار ورکړم، نو د خره هډوکي به ورمات کړم.
ښېره مې همداده چې ته یې ګورې، کومه نیمګړتیا نه لري او تر اوسه مې نه یادېږي چې ناروغ شوی وم.
ومې ویل، شوباتو داسې ښکاري چې یو بې تجربې ځوان یې او د مصر له دودونو څخه خبر نه یې. څکه چې فکر کوې یوه مصرۍ شهزادګۍ چې د خدایانو وینه یې په بدن کې ده، یوه لینده ده، چې وکړای شې د هغه مزی په کلکو متو راکاږې، یا یوه خره ده چې د هغې هډوکي ورته مات کړې، نه!
شوباتو! یوه ښکلې او ځوانه مېرمنه د نورو شیانو لپاره واده کوي او له همدې امله یې زه دلته را واستولم، چې که له یوې ښځې سره د څملاستو او مینې په چل نه پوهېږې، زه به یې درزده کړم.
شوباتو پر دې خبرې سخت غوسه شو، چې نارینتوب یې له پوښتنې سره مخامخ شوی، لاسونه یې سره ومروړل او په کېږدۍ کې موجودو افسرانو وخندل.
خو شوباتو نه غوښتل چې پر ما په قهر شي، نو خپله غوسه یې تېره کړه او بیا یې وویل سینوهه! ته فکر کوې چې زه یو ماشوم یم او لا مې له کومې ښځې سره تفریح نه ده کړې؟
ما تر ننه پورې تر دوو ځلونو ډېر له شپېتو ښځو سره تفریح کړې او ټولې له ما راضي وې، که ستا شهزادګۍ یو ځل هم له ما سره څملي، پوه به شي چې د هاتي د هېواد نارینه د نړۍ تر ټولو تکړه کسان دي

ومې ویل دا خبره منم، خو تا څو شپې وړاندې وویل، چې هېڅکله ناروغ شوی نه یې، په داسې حال چې زه ستا له سترګو پوهېږم، چې خېټه دې ښه نه ده او تا کړوي
د ډاکټرانو یو چل چې وکړای شي، له شتمنو څخه سره و سپین تر لاسه کړي، دا دی چې ورته ووایي، ته ناورغ یې.
لامل یې دا دی چې که انسان هر څومره روغ هم وي، خو کله چې له ډاکټره واوري، چې ناورغ دی، نو د ناروغي احساس کوي
انسان چې څومره روغ هم وي، کله چې د ډاکټر دغه خبره واوري ور په زړه کېږي، چې تېره شپه ښه نه و ویده شوی، یا پرون چې کله له خوبه پاڅېد د کسالت احساس یې کاوه او یا یې ورمه شپه ښه ډوډۍ نه ده خوړلې.
د دغه ډول خبرو پر زړه کول، ان ډېر روغ سړی هم قانع کولای شي، چې ډاکټر سمه خبره کوي او دی ناروغ دی، نو باید د ځان معالجه وکړي که دغه سړی شتمن وي، ډاکټر په دې ډول ترې ډېر څه تر لاسه کولای شي.
خو ما د تمه لرونکي ډاکټر په پرتله، چې د شتمنۍ د تر لاسه کولو لپاره یوه روغ کس ناروغ بولي، دغه امتیاز درلود چې پوهېدم د شهزاده شوباتو خېټه سمه نه ده، ځکه هر څوک چې له سینا دښتې تېر شي د سینا صحرا په نهرونو کې یو ډول ماده (سودیم هایدروکسایډ) شته چې کله یې انسان وخوري اسهال ورته پیدا کوي، په تېره بیا هغه کسان ژر اسهالوي، چې تل یې د سوریې خوندورې اوبه څښلې وي او د سینا صحرا له اوبو سره بلد نه وي
ما دغه طبي موضوع په سینا صحرا کې له ډېرو سفرونو، وروسته زده کړې وه او پوهېدم چې هرڅوک سینا صحرا ته داخل شي او دغه ماده (سودیم هایدرکسایډ) له اوبو سره وخور ي اسهالېږي
شوباتو زما په خبرې حیران شو او ویې ویل سینوهه! ته څنګه په دې خبر پوه شوې؟
ومې ویل ستا له سترګو پوه شوم، چې خېټه دې ښه کار نه کوي، په داسې حال چې داسې نه وه او د شوباتو سترګې روښانه وې او پر دې ناروغۍ یې هېڅ دلالت نه کاوه.
د هاتي شهزاده وویل، خو زما یو ډاکټر هم په دې خبرې پوه نه شو، همغه ډول چې ته وایې زما خېټه خرابه ده او همدا نن څو ځله قضای حاجت ته لاړم.
له دې خبرې وروسته شهزاده څو ځله پر خپل تندي لاس کېښود، ویې ویل احساس

کووم، چې زما تنده ګرمه ده، سترګې مې درنې دي او ځان راته سم نه ښکاري
ومې ویل، خپل ډاکټر ته ووایه چې دارو درمل درکړي، چې ستا د خېټې مشکل حل شي او نن شپه ارام ویده شې، ځکه چې د سینا صحرا د اسهال ناروغي ډېره خطرناکه ده.

زه چې ډاکټر یم په وار وار مې د مصر یو شمېر عسکر لیدلي چې له همدې ناروغۍ څخه په دې بېدیا کې مړه شوي دي.

لا تر او سه څوک د دغې ناروغۍ په علت نه پوهېږي، ځینې کسان وایي، چې دغه ناروغي د سینا صحرا د سوزنده بادونو له امله پیدا کېږي، ځکه چې ځینې دغه بادونه زهرجن دي.

ځینې خلک عقیده لري، هغه ملخان چې په دې بیدیا کې الوځي دغه ناروغي رامنځته کوي او ځینې هم دغه ناروغي د اوبو له امله بولي. خو له دې کبله چې ښه ډاکټران لرې، هغوی ته ویلای شې چې تا معالجه کړي.

زه باوري یم چې نن شپه به په ارامه تېره کړې او سبا به د مصر پر لور روان شې.
خو کله چې شهزاده، دغه خبرې واورېدې، په فکرونو کې ډوب شو او بیا یې خپلو افسرانو ته وکتل څه یې ونه ویل.

خو زه پوهېدم چې په زړه کې راته وایي سینوهه! ته چې دغه ناروغي پېژنې د هغې درمل هم ته جوړ کړه او راباندې وېې خوره.

له دې سره سره چې زه پوهېدم چې هغه غواړي څه شی ووایي، خو چوپتیا مې غوره کړه او ځان مې ناګاره کړ.

شو باتو وویل: ولې ته پخپله دغه درمل نه راکوې، چې زما ناروغي ورسره معالجه شي. ما خپل لاسونه وښورول او ورته مې په لوړ غږ چې ټول یې واوري وویل، زه هېڅکله دغه کار نه کووم، ځکه که زه کوم درمل درکړم او ستا ناروغي نوره هم سخته کړي، نو ستا ډاکټران او افسران به سملاسي ما تورن کړي او وبه وایي چې ما قصداً دغه درمل درکړي دي چې ستا وضعیت نور هم خراب کړي.

نو غوره ده چې ستا خپل ډاکټران تا معالجه کړي او درمل درکړي.
شهزاده وخندل او ویې ویل سینوهه! ستا نصیحت ګټور دی او زه به خپل ډاکټر احضار کړم، چې ورته ووایم درمل راکړي چې د خېټې ستونزه مې ښه شي، ځکه زه غواړم له تا سره ډوډۍ وخورم او له تا څخه د مېرمن باکتامون په هکله واورم.

بله دا چې هره شپه دې ته مجبور نه شم چې له خپلې کېږدۍ څخه د قضای حاجت لپاره ووځم.

بیا شهزاده شوباتو خپل خاص ډاکټر راوغوښت، ما ولیدل چې هغه شکاکي او تريو سړی دی، خو له دې وروسته چې پوه شو زه ورسره سيالي نه کووم، تندی يې ورين کړ او موسکی شو.

د شهزاده د حکم په اساس يې د قبضيت درمل ورکړل او له دې وروسته چې لومړی دغه ډاکټر درمل وڅکل بيا يې شهزاده ته ورکړل.

کله چې ډاکټر هغه ته د قبضيت درمل ورکړل، زه خوشحال شوم، ځکه کوم زهر چې ما هغه ته ورکول، ښه اغېز کوي چې سړی قبض وي.

په داسې حال چې د اسهال په وخت ممکن ډېر زهر د هغه له بدنه ووځي، اغېز يې پاتې نه شي او هغه ونه وژني.

تر هغې مېلمستيا وړاندې چې شهزاده زما په وياړ برابره کړې وه، زه خپلې کېږدۍ ته لاړم او يو منګی د زيتون تېل مې وخوړل، ځکه پوهېدم کله چې سړی ډېر زيتون وخوري، که بيا کوم ډول زهر هم وخوري اغېز پرې نه کوي

بیامې په شرابو کې لږ زهر ګډ کړل او دغه شراب مې په يوې صراحۍ کې واچول، ښه ځير شوم چې په کوچنۍ صراحۍ کې له دوو جامونو زيات شراب نه وي

سر مې ورېند کړ، پټ‌پل جيب کې مې کېښود او د دوډۍ د خوړلو لپاره د شوباتو کېږدۍ ته لاړم.

د ډوډۍ خوړلو په وخت کې مې د شهزادګۍ باکتامون او د مصريانو د سکس او عشقونو په هکله خبرې وکړې، شهزاده زما خبرو ته په کړس کړس خندل او کله کله به يې زه په شا وټپولم

تر دې پورې چې ويې ويل، له دې سره سره چې ته يو مصری يې، خو مجلس دې ډېر خوږ دی، زه چې د مصر د شهزادګۍ باکتامون مېړه شم تا به خپل ډاکټر کړم.

تر دې وړاندې چې ته خبرې وکړې، زه د خېټې له درده ناکراره وم، خو اوس مې د خېټې درد ورک شو.

تا د مصر د عشق او سکس په هکله خبرې وکړې، خو د هاتي د خلکو له عشقه نه يې خبر، کله چې زه ستا سې هېواد ته ننوتم، خپلو عسکرو او افسرانو ته مې وويل، چې د هاتي

هېواد د ژوند رودې مصریانو ته وروښيي، چې هغوی پوه شي په دې ډول له ژونده ډېر خوند اخیستلی شي.

د شهزاده نوکرانو چې زموږ په شان یې دوه ډوله خوړله او د خپل شهزاده په شان یې شراب څښل. زموږ له خبرو یې خوند اخیست او هیجاني شوي ول.

دوی هم د شهزاده خبرې په خندا سره بدرګه کولې.

شهزاده شوباتو پخپله هم شراب وڅښل او په نورو یې هم وڅښل. ویې ویل، سینوهه! کله چې شهزادګۍ باکتامون زما مېرمن شوه هاتي او مصر به سره یو شي او بیا به هېڅ پاچا ونه کړای شي زموږ پر وړاندې مقاومت وکړي، ځکه چې موږ به په نړۍ کې تر ټولو مضبوط او قدرتمند یو.

خو تر دې وړاندې چې موږ تر ټولو قوي هېواد شو باید د مصریانو په زړونو کې وسپنه او اور ځای پر ځای کړو، چې هغوی هم زموږ په شان زړور او بې رحمه شي او پوه شي چې باید له مرګه ونه ډار شو.

شوباتو له دې خبرو وروسته یو جام شراب اسمان او بل ځمکې ته ډالۍ کړل، ما ته یې پام شو او ویې پوښتل سینوهه! ته ولې شراب نه څښې؟ ومې ویل اې د هاتي د پاچا زویه! نیت نه لرم چې تا ته سپکاوی وکړم او تا خپه کړم، خو پوهېږم چې تا تر اوسه پورې د هرمونو د تاکونو شراب نه دي څښلي.

که دې دغه شراب څښلي وای، نورو شرابو به ستا په خوله کې د اوبو په شان خوند درلودای، له همدې امله زه ستا شراب نه څښم، ځکه چې د مصر شراب مې څښلي او له هغوی سره روږدی شوی یم.

زه تل له ځان سره دغه شراب ګرځوم، چې ویې څښم، خو فکر مې وکړ چې که د مصر شراب له خپله جېبه راوباسم او ویې څښم ته به خپه شې.

شوباتو وویل زه نه خپه کېږم او ستا له دې خبرې وروسته غواړم، پوه شم چې د هرمونو د تاکونو شراب څه ډول دي؟

ما له جیبه د شرابو صراحي را وایسته، ومې ښوروله چې ښه ګډ شي، هغوی هم همداسې کول چې شراب یې ښه ګډ شي.

له دې وروسته چې شراب مې ښه وښورول ومې ویل، دا د هرمونو د تاکونو حقیقي شراب دي، چې په مصر کې یې په سرو زرو خرڅوي او له هېواده د باندې خو یې بیه نوره هم زیاتېږي.

له دې کبله چې په شرابو کې مې عطر ګډ کړي ول، د هغه بوی په ټوله کېږدۍ کې خپور شو او د شرابو کوم صفت چې ماکړی و حقیقت و.

په رښتیا چې ښه شراب ول، ما لږ په یوه تشې پیاله کې واچول او تر وروستي ځاځکي مې وڅښل.

له څو شېبې وروسته مې ځان داسې وښود، چې نشه شوی یم او کله چې شوباتو ولیدم چې په یوه غوړپ دومره نشه شوی یم، خپله پیاله یې راوړاندې کړه او ویې ویل. لږ د غه شراب ماته هم واچاوه چې وګورم مزه او تودوخه یې څنګه ده؟

ما ظاهراً د شرابو له ورکولو ډډه وکړه او ومې ویل، شوباتو زه خپل شراب بل چاته نه ورکوم. د دې لپاره نه چې زه سخت او کنجوس یم، بلکې د دې لپاره چې زه نور شراب نه شم څښلی او له دې پرته نور مصري شراب هم نه لرم، نو مجبور یم چې د غه شراب درنه کړم. بله دا چې زه غواړم نن شپه ښه نشه شم، ځکه نن یوه ستره شپه ده، پر دې شپه مصر او هاتي د تل لپاره متحد کېږي او یو نوی هېواد جوړوي.

بیا مې لږ نور شراب د ځان لپاره واچول او خولې ته مې نږدې کړل، خو لاسونه مې له وېرې رېږدېدل.

هلته موجودو کسانو فکر کاوه، چې زما د لاسونو رېږدېدا له ډېرې نشې ده، ځکه ټولو وخندل او ما د دې لپاره چې هغوی نور هم غلط کړم ځان مې نشه وښود، د خرو په شان مې نارې کړې او شته کسانو داسې وخندل چې بډوګوته یې لاس ونیو.

له دې سره سره چې هغه کتل زه نشه یم او باید له یوه نشه کس څخه شراب ونه غوښتل شي، خو شوباتو له ما شراب وغوښتل.

هغه داسې کس نه و، چې له چا کوم شی وغواړي او څوک یې ورنه کړي
د هغه غوښتنه چا نه شوای ردولای.

زه هم دده د غوښتنې پر وړاندې تسلیم شوم، ځکه چې بله چاره مې نه درلوده او یوه پیاله مې له شرابو ډکه کړه او ور مې کړه.

شوباتو لږ شراب بوی کړل، بیا یې شاوخوا وکتل ته وا له نورو پوښتنه کوي، چې د غه شراب وڅښي کنه؟ زه پوهېدم چې شوباتو په وروستیو شېبو کې ډارشوی دی، خو جرائت یې نه شو کولای چې خپل پیش مرګی را وغواړي او لومړی د غه شراب پرې وڅښي چې پوه شي شراب په زهرو ککړ دي که نه؟

هغه وېرېده چې که خپل پیش مرګی را وغواړي، زه به خپه شم او فکر یې کاوه، چې لا هم ما ته اړتیا لري، ځکه چې ممکنه ده، زه د هغه په هکله شهزداګۍ باکتامون ته ناسم راپور وړاندې کړم.

له همدې کبله ښایي شهزداګۍ له ده سره له واده کولو پښېمانه شي. له همدې امله یې د شرابو ډک جام ما ته نژدې کړ او ویې ویل سینوهه! له دې کبله چې له ما سره ملګری یې او زه غواړم چې له دې وروسته له تا سره ډېره ملګرتیا وکړم نو تا ته اجازه درکووم، چې زما له جامه لږ شراب وڅښې.

ما ظاهراً په ډېرې خوشحالۍ سره جام له هغه واخیست او یو غوړپ شراب مې ترې وڅښل.

له هغه وروسته شوباتو پیاله خپلې خولې ته نږدې کړه، له دې کبله چې شرابو عطر درلودل، نو هغه یې پر سر واړول او چې جام خالي شو پر خمکه یې کېښود، ویې ویل سینوهه! ستا شراب ډېر قوي دي او نشې یې پر ما اغېز وکړ، خو له څښلو وروسته خوله تریخوي او اوس به د خولې تریخوالی په خپلو شرابو سره له منځه یوسم.

له هغه وروسته یې له خپلو شرابو څخه پیمانه ډکه کړه او ویې څښل. زه پوهېدم، هغه زهر چې ما ورکړي دي، تر سهاره د هغه د مړینې سبب نه کېږي، ځکه چې هغه ډېره ډوډۍ وخوړله، پر دې سربېره ډاکټر ورته د قبضیت درمل ورکړل او کله چې قبضیت موجود وي، زهر په ځنډ اغېز کوي.

ما هم پخپل جام کې لږ د سورېې شراب واچول او ومې څښل خو د دې لپاره نه چې شراب وڅښم او ځان نشه کړم، بلکې د دې لپاره چې زما جام وو ینځل شي، د زهرو اغېز پکې پاتې نه شي. او که زما له تګه وروسته کوم ډاکټر هغه معاینه کړي نو د زهرو نښې پکې پیدا نه کړای شي.

له دې وروسته مې بیا ځان نور هم نشه وښود او داسې مې وښودل چې د کېناستو توان نه لرم، باید لاړ شم او ویده شم.

د هاتي افسرانو له دواړو متو ونیولم او خپلې کېږدۍ ته یې بوتلم، خو ما د شوباتو له کېږدۍ څخه له ځان سره د شرابو هغه صراحي هم بېرته راوړه، چې له مصره مې پکې شراب راوړي وول.

د هاتي افسرانو په ټوکو ټکالو، زه پخپله کېږدۍ کې ویده کړم او لاړل چې پخپله هم

ویده شي.

کله چې مې احساس وکړ ټول ویده شوي دي پاځېدم او ګوته مې په ستوني کې دننه کړه، هرڅه چې مې خوړلي ول، د زیتون له تېلو سره مې یو ځای ټول بیرته را وګرځول.

بیا مې د مصر د شرابو تشه صراحي، وو ینځله او ماته مې کړه، ټوټې او کودوړي مې یې د د ښتې په شګو کې ښخ کړل.

پر بدن مې سړې خولې راماتې وې، ځکه چې وېرېدم، ښايي زهرو به مسموم کړی یم.

د ډېر احتیاط لپاره مې د کانګو درمل وخوړل چې بیا کانګې وکړم او هغه څه چې زما په معده کې وو ټول راووځي.

که څه هم ما د زیتون ډېر تېل خوړلي ول، خو بیا هم ډارېدم چې زهر پر ما اغېز ونه کړي.

ځان مې چمتو کړ چې ویده شم، خو له وېرې خوب نه راته، پر ډار سربېره مې د شوباتو څېره چې ښکلی ځوان و او د هغه ځلانده سترګې او سپین غاښونه هم سترګو ته درېدل.

کله چې سهار شو زه پوهېدم چې د شهزاده شوباتو وضیعت به ښه نه وي، خو هغه چې د هاتي د ټولو او سېدنکو په شان کبرجن او مغرور ه و، داسې یې وښودله چې خپل سفر ته دوام ورکولای شي او پر خپل روان تخت سپور شو.

زه خبر شوم چې د هغه ډاکټر دوه ځله د قبضیت دوا ورکړې، چې دغو درملو د شوباتو حالت نور هم خراب کړی دی.

که پر دې ورځ د شوباتو ډاکټر دغه ځوان ته مسهل درمل (جولاب) ورکړي وای، ښايي هغه ښه شوی وای، خو له دې کبله چې قبض شوی و نو ټول زهر د هغه په بدن کې پاتې شول.

د شپې مهال چې کله د استراحت ځای ته ورسېدو د شوباتو حالت داسې خراب شو، چې سترګې یې پټې شوې او د مرګ نښې نښانې پکې څرګندې شوې.

د هغه ډاکټر، زه د مشورې لپاره وروغوښتلم او کله چې ما هغه ځوان ولید پوه شوم، چې هغه مې د مرګ پر لور استولی دی، نو ودرېږم.

ډاکټر فکر وکړ، چې ډېر خپه یم، ځکه رېږدېدم او له مایې پوښتنه وکړه سینوهه! د دې ناروغۍ په هکله ستاسې نظر څه دی؟

ومې ویل دا هغه د بېد یا ناروغي ده، چې پرون ما د شهزاده په بدن کې کشف کړې وه او هغه تا ته وویل، چې معالجه یې کړې.

ډاکټر وویل د دې ناروغۍ درمل څه دي؟

ومې ویل، زه فکر کووم په دې پړاو کې باید مسکن درمل ورکړل شي چې د کولمو او معدې درد یې ختم کړي.

د کولمو د درد د کمولو لپاره باید یوه ډېره ګرمه کړو او د هغه پر نس یې کېږدو.

ما شهزاده شوباتو ته هېڅ ډول درمل نه دي ورکړي، بلکې پرې مې ښود چې د هغه خاص ډاکټر. هغه ته خپل درمل برابر او د هغه په خوله کې یې واچوي

ډاکټر په یوه اله د شهزاده خوله خلاصوله او درمل یې پکې وراچول.

زه پوهېدم چې مسکن درمل او ګرمه ډېره به د هغه د مړینې مخه ونه نیسي خو لږ تر لږه درد یې ورته اراماوه او په وروستیو شېبو کې به په اسانه مړ شي.

شهزاده د زهرو له امله سخت اسهال شوی و او ډاکټر یې حیران پاتې و، چې ولې د قبضیت له دې ټولو درملو سره چې ده ته یې ورکړي، بیا هم اسهال دی.

دې سخت اسهال د شوباتو ډاکټر قانع کړ، چې دا همغه د صحرا ناروغي ده، چې ځانګړې نښه یې اسهال دی.

زه متوجه وم چې هېڅوک پر ما شک نه کوي او په دې ډول مې پر خپله چالاکۍ ویاړ کولای شو، خو په باطن کې شرمنده وم، ځکه چې یو ډاکټر د دې لپاره ډاکټر شوی وي، چې ناروغان معالجه کړي، تر څو ممکنه مړه نه شي، نه دا چې یو ښکلی او غښتلی ځوان بلې دنیا ته واستوي.

دغه کار د هاتي تر ټولو وحشي سرتېرو په نېزو او چړو سره هم کولای شو.

د بلې ورځې تر سهاره شهزاده شوباتو ژوندی و او ما بې له دې چې د هغه په معالجه کې مداخله وکړم، هڅه مې کوله چې د هاتي د ډاکټر په مټ د هغه ځوان درد کم کړم.

دغه ډاکټر د خپل هېواد له ځايي ناروغیو پرته نورې ناروغۍ نه پېژندلې او کله خو به یې د ځیګر، کولمو، معدې او پښتورګو دندې سره غلطولې.

باید د هاتي او نورو هېوادونو د ډاکټرانو نالايقۍ ته حیران نه شو، ځکه چې د هغوی طبي تحصیلات نظري دي او عملي کار نه کوي.

د نړۍ په هېوادونو کې یوازې مصر دی، چې له زرګونو کلونو راهیسې د طب علم په عملي توګه محصلینو ته وربښیي او د مومیایي کولو یو شاګرد په مصر کې د هاتي د لسو ډاکټرانو هومره پوهه او د بدن د غړیو په هکله معلومات لري، دا ځکه چې هره ورځ د بدن غړي ګوري او د هر غړي په نقص پوهېږي.

د مصر د مومیایي کوونکو پوهه دومره زیاته ده، چې کله د مړي خېټه پرانیزي، پوهېږي چې هغه په کومه ناروغۍ مړ شوی دی.

په همدې ډول مصري ډاکټران چې په دارالحیات کې یې زده کړې کړې وي، له مومیایي کوونکو څخه د بدن د غړیو په ډندو او د ناروغیو په نښو ښه پوهېږي.

زه تصور نه کوم داسې کووم هېواد دې وي، چې د طب په برخه کې له مصر سره سیالي وکړای شي او په راتلونکې کې هم که نور ملتونه وغواړي چې د دې علم په رازونو پوه شي، نو له مصره به یې زده کوي.

کله چې لمرراوخوت شهزاده شوباتو مرګ ته نږدې شوی و، ځکه خو هوښیار شو.

کله چې مرګ نږدې کېږي او ژوند چې زموږ د ټولو دردونو لامل دی پای ته رسېدونکی شي، نو بدن نور د درد احساس نه کوي او له دې کبله چې د ژوند کړاو له منځه ځي، حواس او هوښیاري بیرته راستنېږي.

شوباتو هم په دغه وخت کې هوښیار شوی و، د هاتي افسران یې راوغوښتل او هغوی ته یې وویل، هیڅوک زما د مرګ مسولیت نه لري، بلکې زه د صحرا د ناروغي له امله مرم.

له دې سره سره چې د هاتي تر ټولو ستر ډاکټر زه معالجه کړم او د مصر لوړ مقامه ډاکټر سینوهه هم ورسره مرسته کوله، خو زه معالجه نه شوم.

یا د اسمانونه او ځمکې اراده ده، چې زه باید مړ شم او یا د سینا صحرا، زما د مرګ حکم کړی دی، چې د مصر د خدایانو تاټوبی دی.

زما له خولې څخه زما پلار ته ووایاست او تاسې هم پوه شئ چې له دې وروسته باید د هاتي سرتېري، سینا صحرا ته رانه شي، ځکه چې دغه صحرا زموږ د تباهۍ سبب کېږي او زما مرګ دغه خبره ثابتوي.

ټول پوهېږي چې په همدې بیدیا کې مو ماتې وخوړه او د هاتي جنګي ګاډۍ چې ټل یې سوبه کړې وه، په همدې بیدیا کې تباه شوې.

زما له مړینې وروسته دغو دوو تنو ډاکټرانو ته چې هڅه یې وکړه ما معالجه کړي، ښې ډالۍ ورکړئ او سینوهه ! ته چې کله مصر ته ستون شوې، شهزادګۍ باکتامون ته زما سلام ورسوه او ورته ووایه، چې زه هغه له هغې ژمنې معافوم چې له ما سره یې کړې وه.

خو افسوس کووم چې ولې زما عمر له ما سره ملګرتیا ونه کړه چې، هغه ددې او زما په خوښه د هاتي شهزادګۍ کړم.

هغې ته دا هم روا یه، او س چې زه مرم، بیا هم د هغې فکر کووم او د هغې په خیال بلې نړۍ ته ځم.

شهزاده شوباتو په داسې حال کې چې موسکی و، له دې نړۍ یې سترګې پټې کړې او زه د هغه موسکا ته هېڅ حیران نه شوم، ځکه ځینې کسان چې د مرګ په وخت له بدني دردونو خلاصېږي، له دې کبله چې ځان اسوده احساسوي او ښکلې منظرې په فکر کې مجسموي، نو موسکې شي.

د هاتي افسرانو د شهزاده مړی په یوه ستره تغاره کې کېښود، تغاره یې یې له شرابو او شاتو ډکه کړه، سر یې وربند کړ، چې مړی خپل هېواد ته ستون کړي او د هغې غونډۍ پر سر یې خاورو ته وسپاري، چې نور شهزادګان او د هاتي پاچاهان پکې ښخ دي.

دغو افسرانو چې زه په ژړا ولیدم، له ما سره یې مینه پیدا شوه، پر یوه لوحه یې ولیکل، سینوهه د شهزاده شوباتو په مړینه کې مسولیت نه لري، هغه په صحرا کې د اسهال د ناروغۍ له امله مړ شو.

دغه راز یې پر لوحه ولیکل، سینوهه د هاتي له ډاکټر سره یو ځای ډېره هڅه وکړه، چې شهزاده معالجه کړي، خو بریالي نه شول

هغوی پر دې لوحه د اروابناد شهزاده او خپل مهرونه ولګول، ځکه چې فکر یې وکړ، مصر هم د هاتي په شان دی او که زه د شهزاده د مرګ خبر مېرمن باکتامون ته ور وړم هغه به ما وو ژني او تصور به وکړي، چې د هغې راتلونکی خاوند ما وژلی دی.

کله چې مې غوښتل مصر ته ستون شم، د شوباتو د وصیت په اساس یې ما ته ډېرې ډالۍ راکړې او زه د مصر پر لوري رهي شوم.

په دې کې مې شک نه کاوه چې د دې شهزاده په وژلو سره مې مصر ته لوی خدمت کړی دی او توره خاوره مې د هاتي د پاچاهانو له خطري ژغورلې ده، خو مصر ته د دې ستر خدمت له امله مې ویاړ هم نه کاوه.

کله چې مصر ته راستون شوم را پر زړه شول، له دې سره سره چې ډاکټر یم، خو زما وجود د هغو کسانو لپاره چې ما پېژندل او راباندې ګران ول د کړاو سبب شوی دی.

ما خپل ناسکه مور و پلار چې راباندې ګران ول، له لاسه ورکړل، بیا مې په مینا زړه بایلود، هغه پېغله هم زما د کمزوري نفس له امله د کرت د خدای په کور کې مړه شوه.

له هغه وروسته له مریت او تهوت سره اشنا شوم او دغه دواړه هم زما د کمزورتیا او

شکونو له امله مړه شول.

د مصر فرعون اخناتون له ما سره ډېره نیکې کړې وه، خو زما له لاسه یې زهر وخوړل او مړ شو، ځکه چې ما تصور کاوه، د هغه په وژلو سره به مصر ته یو ستر خدمت وکړم.

وروستی کس چې ما د وژلو لپاره ورسره علاقه پیدا کړه، شوباتو و او هغه هم زما په لاس بلې نړۍ ته واستول شو.

داسې ښکاري چې زما وجود سپېره دی او له هر چا سره چې علاقه پیدا کووم له منځه ځي.

له هغه وروسته د تانیس ښار ته ننوتم او په بېړۍ کې د طبس پر لور روان شوم.

زما بېړۍ د زرینې مانۍ (سلطنتي مانۍ) پر وړاندې ودرېده او زه مانۍ ته ننوتم.

آمي او هورم هب هلته ول، ما ورته وویل ستاسې هیله پوره شوه او شهزاده شوباتو د سینا په صحرا کې مړ شو، د هغه مړی یې له شرابو او شاتو څخه په یوه ډکه تغاره کې واچاو او هاتي ته یې ولېږداوه.

هغه به بیا مصر ته راستون نه شي او د دغه هېواد لپاره به ستونزې پېښې نه کړي

دواړه په دې خبر ډېر خوشحال شول او آمي له سلطنتي خزانې څخه یو زري امیل را پر غاړه کړ.

هورم هب وویل لاړ شه او دغه خبره مېرمن باکتامون ته ورسوه، چې پوه شي د هغې راتلونکی خاوند مړ شوی دی، ځکه که مونږ دغه خبر ورکړو باور به ونه کړي.

زه شهزادګۍ باکتامون ته ورغلم او هغې ته مې وویل، اې شهزادګۍ ستا چنغول شهزاده شوباتو چې غوښتل یې مصر ته راشي او له تا سره واده وکړي، په سینا صحرا کې د صحرا د ناروغۍ له امله مړ شو، خو ما او د هغه خاص ډاکټر تر خپله وسه پورې هڅه وکړه، چې هغه وژغورو.

شهزادګۍ باکتامون چې شونډې یې سرې کړې وې، چې دغه خبر یې واورېد، د سرو زرو یو ښنګړی یې له خپله لاسه را خلاص کړ او ماته یې راکړ.

په ملنډو یې وویل: سینوهه! دغه ښنګړی د ډالۍ په توګه واخله، خو ترې دې وړاندې، چې ته راشې او دغه خبر ماته راکړې، زه پوهېدم چې دلته زما په هکله څه فکر لري، ځکه چې فیصله یې کړې ده، ما د جنګ د الهې (سخ مت) الهه کړي او زما سرې جامې یې تیارې کړې دي

خو د شوباتو د ناروغۍ او مړینې په هکله باید ووایم چې زه د هغه ناروغۍ او مړینې ته نه حیرانېږم. ځکه پوهېږم، هر چیرته چې ته لاړ شې، مرګ هم له تا سره هلته ځي.

زما وروراخناتون له دې امله لوېدیزې نړۍ ته لاړ چې تا معالجه کړي، او نو له همدې امله تاته وایم، اې سینوهه! لعنت دې پر تا وي او زه له خپلو خدایانو غواړم چې تر ابده دې ملعون کړي.

زه له خدایانو غواړم چې ستا قبر ملعون کړي، ستا مومیایي پاتې نه شي او نوم دې له منځه لاړ شي، ځکه چې دا ته وې چې د مصر د فرعونیانو تاج و تخت دې په داسې کسانو وپلوره چې ذات یې هم معلوم نه دی.

دا ته وې چې زما په رګونو کې د مصر د سترو فرعونیانو بهېدونکې پاکه وینه دې ګنده کړه.

سینوهه .... اې خونړیه ډاکټره! د تل لپاره معلون پاتې شې...

ما خپل لاسونه پر زنګنو کېښودل، رکوع مې وکړه او ومې ویل اې شهزادګۍ هغه څه چې تا وویل همغسې به شي.

کله چې زه له زرینې ماڼۍ څخه راووتم شهزادګۍ امر وکړ، چې په ما پسې تر سلطنتي ماڼۍ پورې تړوله ځمکه جارو کړي، چې ځمکه زما له ککړتیا او پلیتۍ پاکه شي.

د مصر د فرعون توت آنخ آمون مړی هډېرې ته د لېږد لپاره چمتو شوی و، آمي کاهنانو ته امر وکړ، چې د فرعون جنازه په وادي السلاطین کې پراته قبر ته ولېږدوي.

ډېری هغه شیان چې فرعون غوښتل پخپل قبر کې یې کېږدي د آمي له لوري ولوټل شول او کله چې یې د قبر دروازه بنده کړه نو کاهنانو چې آمي ورته ډېر رشوت ورکړی و، فیصله وکړه چې نو موړی د مصر فرعون شي.

هورم هب د مصر په واټونو او څلورلارو کې خپل سرتېري ځای پر ځای کړل، چې کله آمي د تاج اېښودلو او تبرک لپاره د آمون معبد ته ځي نو خلک بلوا ونه کړي.

خو هیچا د اعتراض غږ پورته نه کړ، ځکه چې خلک له لوږې په تنګ شوي ول او ملت هغه خره ته ورته و چې بار کړی یې وي او د متروکې او چوکې په زور په یوه بې پایه سړک کې روان وي چې د ډېرې ستړیا له کبله خپل خاوند په لغته هم نه شي وهلای.

په کومه ورځ چې آمي معبد ته روان و، پر خلکو یې ډوډۍ او شربتونه ووېشل.

دا چې خلک وږي ول، نو دغو خوړو پرې اغېز وکړ او د هورم هب لپاره یې نارې ووهلې.

خو هوښیار کسان پوهېدل چې په مصر کې آمي یو نمایشي او چټي فرعون دی، اصلي قدرت د هورم هب په لاس کې دی، هغوی په دې حیران ول، چې ولې دغه سړي د پاچاهۍ تاج نه دی پر سر کړی.

خو هورم هب پوهېده چې څه کوي؟ ځکه چې د مصر د ملت د بدبختۍ دوره لا پای ته نه وه رسېدلې او باید مصریان بیا هم جنګ وکړي.

دوی باید د هېواد په جنوب کې د کوش (د تور پوستو تاټوبی) له خلکو سره جګړه وکړي.

پر دې سربېره د سورېې جنګ هم د یوې موقتي سولې له مخې ارام شوی و او د هاتي ځواکونو د سولې د تړون پر اساس په سورېې کې ځو ستر او کوچني تکیه ځایونه درلودل او هوښیاران پوهېدل چې بیا به هلته جنګ وشي.

هورم هب چې د مصر د ملت لپاره یې د دغو بدبختیو اټکل کاوه لېوال و، چې دغه بدبختۍ د آمي د پاچاهۍ په وخت کې رامنځته شي چې خلک پوه شي دغه ستونزې او ناخوالې د آمي د پاچاهۍ له امله دي.

له دې وروسته چې جنګ پای ته ورسېږي، نو هورم هب به د جنګونو د سوبمن، ژغورونکي او د سولې د خدای په توګه مصر ته راستون شي او ملت به پوه کړي، چې له دې وروسته د سوکالۍ او نېکمرغۍ وخت دی او پخپله به د مصر فرعون شي.

آمي د هورم هب په پلان نه پوهېده، یا خو پوهېده، مګر فکر یې کاوه، چې هورم هب د دغه پلان د اجرا وخت او وسیله نه لري.

قدرت او شتمنۍ آمي نشه کړ او هڅه یې کوله چې له خپل عمر او پاچاهۍ څخه استفاده وکړي.

خو پر هغه ژمنه یې وفا وکړه، چې له هورم هب سره یې د اخناتون د مرګ په وخت کې کړې وه او شهزاده باکتامون یې هغه ته وسپارله.

د هغه پلان له مخې چې آمي برابر کړی و او د کاهنانو په وسیله اجرا شو، باید پر ټاکلې ورځ د شهزادګۍ باکتامون په خېره کې د سخ مت الهه د دې الهې په معبد کې د سورېې د فاتح هورم هب قدرونه او نمانځنه وکړي.

په دې ورځ یې شهزادګۍ په ګاڼو پسوللې او په سروجامو کې سینګار شوې معبد ته بوتله.

کله چې هورم هب د معبد پرو ړاندې د خپلو عسکرو له بدرګې سره مخامخ شو ، هغوی ته یې سپین زر ورکړل او معبد ته ننوت.

په دې وخت کې ټول کاهنان له معبده را ووتل، هورم هب او شهزاداګۍ یې په معبد کې یوازې پرېښودل او د معبد دروازه یې رابنده کړه.

هورم هب چې یو سرتېری و او اوږده کلونه یې د شهزادګۍ د وصال په ارمان کې تېر کړي ول، پر دې شپه یې له فرصته ښه ګټه پورته کړه.

په داسې حال چې هغه په معبد کې د ننه له فرصته استفاده کوله، د هغه عسکر په طبس کې پر عمومي ځایونو او میخانو ور شیوه شول او تر سهاره یې شراب وڅښل.

ځینې یې د جنګ او شخړو له امله ټپیان شول او څو ځایه اورونه هم ولګېدل.

سهار د سخ مت د معبد پر وړ اندې را ټول شول، چې له هغه ځایه د هورم هب وتل وګوري.

کله چې د معبد دروازه خلاصه شوه او هورم هب ترې را ووت نو سرتېرو یې په ویاړ نارې کړې او د هورم هب د سر، څېرې، ټټر، مټو او پښو په لیدو حیران شول، ځکه د غه سړی له سره تر پښو پورې ټول په وینو ککړ و. داسې ښکارېدل چې د جنګ الهې تېره شپه د خپل ماهیت او خوی په اساس چلند کړی دی او په خپلو نوکانو او غاښونو یې د هورم هب مخ او اندامونه ټپي کړي ول.

خو په دې ورځ هېڅا شهزادګۍ باکتامون په معبد کې ونه لیده، ځکه چې کاهنانو په پټه هغه د سخ مت له معبده ایستلې وه او زرینې ماڼۍ ته یې لېږدولې وه.

دا زما د پخوانې ملګري او د مصر د سپاهیانو د قوماندان هورم هب، د زفاف شپه وه.

زه په دې حیران یم چې ده به په دې شپه کې له هغې ښځې څخه څه خوند اخیستی وي چې دده یې داسې هر کلی کړی دی.

ما فرصت پیدا نه کړ چې ترې پوښتنه وکړم، پر دې شپه یې د شهزادګۍ لغتې او ګوزارونه څنګه زغملي ول، ځکه چې لنډه موده وروسته هورم هب له تورپوستو سره د مبارزې او د هغوی د کنټرولولو لپاره د مصر جنوب ته ولاړ، له همدې کبله ما ونه کړای شو، د زفاف د شپې په هکله له هغه څخه پوښتنه وکړم.

آمې د خپلې پاچاهۍ له قدرته ډېر خوند اخیسته او ویل به یې سینوهه ! په مصر کې بل څوک قدرت نه لري او زه له مرګه نه وېرېږم، ځکه چې پوهېږم یو فرعون هېڅکله نه مري، بلکه له مړینې وروسته به هم ژوندی وي او پاتې عمر چې تلپاتې دی د آمون په بېړۍ کې

تېروي. (په پخواني مصر کې د آمون ببرۍ دوه ماناوې درلودې. يوه پر تولې نرې خوربدونکي لمر او بله هغه ببرۍ وه چې شتمنو مصريانو به پخپل قبر کې اېښودله. اوس په کيندنو کې څو ځله د پخوانيو مصريانو په قبرونو کې د غسې ببرۍ موندل شوې دي کله چې به يو مصري ويل زه د آمون په کښتۍ کې وم، په دې مانا چې په همدې کښتۍ کې او هم به د آمون له خدای او لمر سره يم. ژباړن)

له دې وروسته چې آمي څه موده د غه خبرې کولې تصور کووم چې د بوډاتوب او له ښځو سره د ډيرې تفريح له امله د هغه اعصاب خراب شول ځکه چې له هغه وروسته يې ماته ويل سينوهه زه به هيڅکله مړ نه شم د دې لپاره چې فرعون يم او يو فرعون هيڅکله نه مري.

ما ورته وويل آمي ته خيال کوې، چې څو تنو کاهنانو ستا پر مخ او سر تېل موښلي نو ته يې سپېڅلی کړی يې او له نورو سره تو پير لرې؟ خو ايا تا و نه ليدل چې اصلي فرعونيان هم، چې پلرونه يې فرعونيان ول او د خدايانو وينه يې په رګونو کې وه مړه شوي دي؟

په دې ډول ستا غوندې سړی، چې له سره عام سړی وې او بيا فرعون شوې. ايا هيله کوې چې هېڅکله به نه مرې؟

آمي وويل. کاهنان به اجازه ورنه کړي، چې زه مړ شم.

ما به وويل که کاهنانو. د دې وس درلودای چې د مرګ مخه ونيسي، نو داسې کار به يې کړی و، چې دوی پخپله مړه نه شي.

په دې وخت کې آمي خپه او نهيلی شو او ويل به يې سينوهه! ايا ته غواړې ووايې چې د فرعون کېدا لپاره زما د غه ټولې د سيسې بې ګټې وې او هغو ټولو هلو ځلو چې خلک مې ووژل نتيجه او پايله نه درلوده؟ ايا زه هم بايد د نورو په شان مړ شم او د فرعون کېدا له خوندونو تېر شم چې تر ټولو. ان د شرابو له څښلو او له ښځو سره له تفريح کولو هم خوندور دي.

سينوهه داسې کار وکړه، چې زه و کړای شم هره ورځ سل ځله له ښځو سره څملم او په وجود کې مې له دې کاره هېڅ ډول ستوماني او ستړتيا احساس نه شي.

ته يو ډاکټر يې او په ټولو شيانو پوهېږې. ته زما قدرت زيات ولې شې چې زه وکړای شم، تر لسو ځوانانو لس ځله زيات له ښځو سره تفريح وکړای شم.

د غو خبرو رازده کړل، چې د آمي عقل د بوډاتوب او د مقام او چوکۍ د غرور له امله خراب شوی دی او له هغه وروسته د هغه د خرابو اعصابو نورې نښې نښانې هم راته

څرګندې شوې.

دی له دوډۍ خوړلو وېرېده او هغه کس چې ويل به يې د فرعون کېدا يو ه ګټه د ډېرو شر ابو څښل دي، د خپل طبيعت د خرابېدا له وېرې يې نه شراب څښل او نه يې قوي خواړه خوړل ،بلکې په لړېو چې دوډۍ او د اوربشو په اوبو به يې ګوزاره کوله او هغه يې هم په ډېر احتياط خوړل چې مسموم نه شي.

په عين حال کې دغه کس چې غوښتل يې هره ورځ سل ځله له ښځو سره تفريح وکړي، ناڅاپه له ښځو موړ شو او د هاتي د خلکو هغه غير طبيعي باورونه په ده کې هم راپيدا شول.

# دري پنځوسم ځپرکی

## د باکتامون انتقام

شهزادګۍ باکتامون د جنګ د الهې په معبد کې له هورم هب سره د یوې شپې تر تېرولو وروسته، امېندواره شوه.

شهزادګۍ له خپل مېړه ځخه کرکه کوله، ځکه یې هځه کوله خپل ماشوم په خپله خېټه کې مړ کړي، خو بریالۍ نه شوه او دغه ماشوم یې وزېږاوه.

له دې وروسته چې ماشوم وزېږېد، ماشوم یې له هغې بېل کړ، چې هغه یې ونه وژني او یا یې په تو کرۍ کې کېنږدي او په نیل سیند کې یې خوشې نه کړي.

د دې ماشوم د زوکړې په هکله کیسې او افسانې جوړې شوې، داسې اوازه هم خپره شوه، چې کله ماشوم نږۍ ته ستر ګې رنې کړې، سر یې د جنګ د الهې په شان و او پر سر یې د جنګ مخصوصه خولۍ وه.

زه چې د مېرمن باکتامون ډاکټر وم او ماشوم مې لیدلی و، نو وایم چې دغه ماشوم له نورو ماشومانو سره توپیر نه درلود.

هورم هب به دغه ماشوم د رامسس په نوم یاداوه.

کله چې دغه ماشوم وزېږېد، هورم هب د مصر په جنوب کې له تور پوستو سره په جنګ بوخت و او د هغه ګاډي، دغه خلک وژل، ځکه چې تورپوستو په جنګونو کې ګاډي نه وو لیدلي او نه پوهېدل څنګه د ځان دفاع وکړي.

هورم هب د هغوی کورنه چې له لوخو او لرګیو جوړ شوي ول وسوځول، ښځې او ماشومان یې د مریانو په توګه مصر ته را واستول او تورپوستي نارینه یې پخپل پوځ کې شامل کړل، چې هغوی بیا زړه ور او بېباکه عسکر شول.

له دې وروسته چې تورپوستي د هورم هب په پوځ کې شامل شول ازاد شول، چې د خپلو اصولو او عقیدو په اساس څرنګه چې دوی غواړي ډولونه ووهي او ونځېږي.

د تورپوستو نڅا د هغوی په روحيې عجيبه اغېز درلود او له دې وروسته چې نيم ساعت وګډېدل داسې به زړه ور شول، چې له يوې نېزې سره به د زمري جنګ ته ورتلل.

هورم هب پوهېده، چې د هاتي پر خلاف په را تلونکي جنګ کې له هغوی څخه استفاده کولای شي او داسې عسکر به د هغوی جنګ ته واستوي چې د هاتي تر عسکرو ډېر زړور دي.

هورم هب د تورپوستو په تاتوبي کې ټول څاروي او مالونه مصر ته ولېږدول، تر دې حده چې په مصر کې شېدې ډېرې پريمانه شوې او ډېرو بېوزلو کسانو هم غوښه خوړلی شوای.

په مصر کې د لوږې له کلونو وروسته له کروندو څخه ډېر غنم ترلاسه شول او خلک پر ډوډۍ، اوربشو او شرابو ماړه شول.

کله چې به مېندو خپلو ماشومانو ته تی ورکاوه، له خدايانو به يې د هورم هب لپاره د نور ځواک غوښتنه هم کوله، ځکه پوهېدل چې هغه په مصر کې شېدې، مستې، غوښه او په غير مستقيمه توګه غنم او د اوربشو اوبه پريمانه کړې.

خو د مصر له جنوبه د تورپوستو د مالونو لېږدولو، د هغوی د کورونو سوځولو او نورو جناياتو تورپوستي داسې وېرول، چې خپل هېواد يې پرېښود او د پيلانو، زرافو او زمريانو د تاتوبي پر لور وتښتېدل.

له هغه وروسته تر څو کلونو پورې د مصر په جنوب کې د کوش په نامه تاتوبی شاړ پاتې شو، هېچا هلته ژوند نه کاوه، چې مصر ته قلنګ ورکړي.

خو مصر په دې خپه نه شو چې له کوش څخه يې قلنګ نه اخيست، ځکه چې تر دې مخکې هم دې تاتوبي مصر ته څه نه ورکول، نو د قنلګ نه ورکول د مصريانو لپاره عادي چاره وه.

په داسې حال کې چې د سترو فرعونيانو په وخت کې کوش د مصر د عايد لويه سرچينه نه وه او مصر تر کوشه زيات له سوريې څخه ګټه کوله.

هورم هب د مصر په جنوب کې له دوه کلن جنګه وروسته له ډېرو غنيمتونو سره مصر ته راستون شو او خپلو عسکرو ته يې چې ډېری پکې تورپوستي ول سره او سپين ورکړل.

طبس ته د هورم هب په راتګ سره لس ورځې او شپې په دې ښار کې جشنونه جوړ

شوي ول.

نشه عسکرو به له سهاره ترماښامه او بیا له ماښامه تر سهاره په واټونو کې چکرې وهلې او له دې جشن وروسته د مصر یو شمېر ښځو له تورپوستو سره ودونه هم وکړل.

کله چې هورم هب د مصر له جنوبه راستون شو خپل زوی رامسس به یې تل په غېږ کې و او په ویاړ سره به یې خلکو ته وربښود، ویل به یې: وګورئ دغه هلک زما له ذاته دی. خو د فرعونیانو او خدایانو وینه یې په رګونو کې ده.

له دې سره سره چې کله زه وزېږېدم د پښو په ګوتو کې مې خوشایي نښتي ول اوس زما زوی یو حقیقي فرعون کېدای شي.

کله چې هورم هب طبس ته راستون شو، لاړ چې آمي وګوري، خو لکه چې ومې ویل، آمي د لېونو په شان شوی و.

له ما څخه وډار شو، دروازه یې په ځان پسې بنده کړه او د دروازې له شا یې وویل، زه له تا ډارېږم، ځکه چې ته راغلی یې ما ووژنې.

هورم هب له دې خبرې سره وخندل، په یوې لغتې یې دروازه ماته کړه او ویې ویل، آمي ما اورېدلي ول، چې ته لېونی شوی یې، خو تر دې مهاله مې باور نه کېده.

اوس چې ګورم ستا د لېونتوب په اړه شوې خبرې سمې دي، ځکه که ته لېونی نه وې، نو پوه شوی به وې چې ستا له مرګه، ماته ستا ژوند ګټور دی.

که زه پوه شم چې ته مرې چمتو یم چې له کوشه راوړې نیمایي شتمني به په معبدونو کې قرباني کړم، چې ته ژوندی پاتې شې، ځکه چې یو بل جنګ په مخکې لرو چې په دې جګړه کې به د مصر ملت له بلې بدبختۍ سره مخامخ شي.

نو ته باید ژوندی پاتې شې، ځکه چې مصریان خپلې ټولې بدبختۍ ستا له لوري وګڼي.

هورم هب د خپلې مېرمنې باکتامون لپاره ګران بیه ډالۍ راوړې.

په دغو ډالیو کې د سرو زرو ډبرې هم وې او په هغو ټوکریو کې اېښودل شوې وې، چې تورپوستو ښځو اوبدلې وې.

دغه راز یې هغې ته د زمري پوستکي چې هورم هب په کوش کې ښکار کړي ول، د شتر مرغ بڼکې او ژوندۍ بیزوګانې هم راوړې وې.

خو شهزادګۍ هېڅ یوه ډالۍ ونه منله او ویې ویل، هورم هبه! خلک فکر کوي چې زه

ستا مېرمن یم او ما ستا لپاره یو ماشوم راوړ، نو همدا ستا لپاره کفایت کوي او ته له دې وروسته باید له ماسره تفریح ونه کړې.

که وغواړې چې په معبد کې د هغې شپې په شان په زور له ماسره ساعت تېري وکړې، زه به له تا داسې غچ واخلم چې د هرمونو له جوړېدا راهیسې به هېڅ یوې مېرمنې له خپل خاونده نه وي اخیستی.

ددې لپاره چې تا وشرموم له مریيانو، پنډیانو او پادوانانو سره به د طبس ښار په منځ کې او یا د نیل سیند پر غاړه تفریح وکړم، ځکه چې زه له تا ځخه کرکه کووم او کله چې تا وګورم کانګې راځي.

دغه مقاومت له شهزادګۍ سره د تفریح کولو لپاره د هورم هب هېجان نور هم زیات کړ.

کله چې یې زه ولیدم، نو له باکتامون ځخه یې شکایت وکړ او ویې ویل، زه غواړم له دې ښځې سره ځملم خو هغه اجازه نه راکوي.

ومې ویل، غوره داده چې له نورو ښځو سره ساعت تېر کړې، خو پر هورم هب باندې باکتامون داسې ګرانه وه چې نورې ښځې یې په نظر نه ورتلې.

په دې وخت کې یې له ما وغوښتل، داسې درمل ورکړم، چې باکتامون ته یې ورکړي، چې پر هغې ګران شي.

ما وویل، دغسې درمل نشته.

ویې ویل داسې درمل راکړه، چې هغه ویده کړي او زه وکړای شم په خوب کې له هغې سره خپل ساعت تېر کړم.

ما وویل د خوب درمل د ښځو له طبیعت سره اړخ نه لګوي او په دې ډول هورم هب چې ویې نه کړای شول له ما ځخه د خوب درمل ترلاسه کړي.

وروسته یې له یوه بل ډاکټر ځخه دغه درمل ترلاسه کړل او د باکتامون له خبرتیا پرته یې هغه پرې وخوړل.

شهزادګۍ ویده شوه او بیا هورم هب ورسره تفریح وکړه، خو کله، چې شهزادګۍ راویښه شوه نو له هورم هبه یې کرکه او کینه نوره هم زیاته شوه.

هورم هب چې غوښتل یې له خپلو عسکرو سره سوریې ته لاړ شي چې هاتي له سوریې ځخه بېخي وباسي، هغه هېواد ته له روانېدا مخکې شهزادګۍ ته ورغی چې خدای پاماني ورسره وکړي.

شهزادګۍ ورته وویل هورم هبه، در پـه زړه کـړه، چې مـا څـه درتـه ویلي ول او کـه د راستنېدا په وخت کې پوه شوې چې ما رسوا او دوس کړی یې نو د اعتراض حق نه لرې.

هورم هب وخندل او لاړ.

کله چې هغه سوریې تـه لاړ شهزادګۍ بیا متوجه شوه، چې امیندواره شوې ده، دامیندوارۍ په وخت کې یوې کوتې ننوته او بیا را و نه وته.شهزادګۍ تـه بـه یې لـه یوې دریځې څخه خواړه ورکول.

کله چې دلنګون وخت راغی هغه تر ځارنې لاندې وساتل شوه، چې خپل زوی ونه وژني.

خو باکتامون ماشوم مړ نه کړ او نوم یې ست هوس کېښود.(د ست بچی) (*په پخواني مصر کې د نن ورځې د ابلیس په شان یوشی موجود و، چې ست نومېده، همغه ډول چې شیطان له خدای سره مخالفت کوي، ست هم د مصر له خدایانو سره مخالفت کاوه. ژباړن*)

له دې وروسته چې باکتامون د لنګون له پرکالۍ ښه شوه، ځان یې سینګار کړ، د کتان جامې یې واغوستلې، له زرینې مانۍ څخه راووته او د طبس د کب پلورونکو د بازار پر لور روانه شوه.

هتله یې کب پلورونکو او هغو خرکارانو تـه چې پـه خرو یې کبان راوړي و، وویل زه شهزادګۍ باکتامون او د مصر د پوځ د قوماندان او ستر سوبمن هورم هب مېرمن یم.

تر اوسه مې د هغه لپاره دوه زامن زېږولي دي، خو پر دغه سړي ګرانه نه یم او لـه مـا سره تفریح نه کوي، ځکه خو نن د کب پلورنکو بازار ته راغلې یم، چې تاسې ته ووایم د نیل د ساحل ګنو ونو ته راشئ او له ما سره تفریح وکړئ.

داځکه چې زه ستاسې لـه خشونت او بې تربیتۍ څخه خوند اخلم او ستاسې د کبانو بوی ما لیونۍ کوي.

کله چې خرکارانو او کب پلورونکو دغه خبرې واورېدې، ووېرېدل او لـه هغې څخه وتښتېدل.

خو باکتامون د کب پلورونکو د بازار پـه منځ کې د کتان جامې خلاصې کړې او خپل اندام یې نارینه وو ته وروښود ، ویې ویل ،تاسې نه ګورئ چې زه څومره ښکلې یم ؟

چېرته زما په شان ښکلې مېرمن پیدا کولای شئ؟ راشئ او د نیل سیند تر څنګ تر ګنو ونو لاندې له ما سره تفریح وکړئ.

زه له یوې ډبرې پرته بل شی نه غواړم، خو کـه لـه ما سره مو لـه تفریح خوند واخیست،

باید یو لو یه ډبره راته راوړئ.

د مصر په تاریخ کې چا نه لیدلي او نه اورېدلي ول، چې د غسې پېښه دې شوې وي نارینه په سر کې له باکتامون څخه وتښتېدل، خو کله چې یې د هغې ښکلی اندام ولید او د هغه د بدن عطر یې تر سپږمو شول، ویې ویل دغه شهزادګۍ د سخمت الهه ده.

نو کله چې یوه الهه د نارینه وو، منځته راځي او هغوی ته وایي، چې له ما سره تفریح وکړئ، ددې حکم له اجرا سر غړونه ناشوني ده، ګني د خدایانو له قهر سره به مخامخ شو.

ځکه چې بشر همداسې پنځول شوی دی، چې د خپلو غریزو د ارضا لپاره د منلو وړ دلایل راوړي، شهوت ، کینه او حرص د خدایانو په نوم او یا د هېواد او د ملت د لوړو ګټو په نوم ارامو ي.

ځینو نارینه وو به ویل، که د جنګ د الهې امر و نه منو، نو د خدای له قهر سره به مخامخ شو.

بله دا چې هغه ډالۍ چې دغه شهزادګۍ یې له موږ غواړي، تر ټولو ارزانه ډالۍ ده او تر اوسه پورې په مصر کې کومې ښځې ځان دومره ارزانه نه دی خرڅ کړی.

کله چې موږ یوه عمومي کور (فاحشه خانې )ته ورځو او غواړو چې له یوې تورپوستې مېرمنې سره تفریح وکړو، لږ تر لږ باید د مسو یوه کړۍ ورکړو، خو دغه شهزادګۍ چې د خدایانو له تو کمه ګڼل کېږي، وایي چې زما لپاره یوه ډبره راوړئ.

له دې کبله چې ډبره یوازې په ودانیو کې کارول کېږي او نور هېڅ مصرف نه لري، نو داسې ښکاري چې هغه د ځان یا د یوه خدای لپاره معبد جوړوي.

شهزادګۍ د کبانو د بازار ځینې نارینه له ځان سره د نیل ساحل ته بوتلل او پر دې ورځ یې تر ماښامه له هغوی سره تفریح وکړه.

هر نارینه چې له باکتامون سره ساعت تېراوه، د هغې لپاره یې یوه ستره ډبره راوړله او په خوشالۍ به یې نورو ته ویل شک نشته چې باکتامون یوه الهه ده، ځکه چې یوازې د یوې الهې شونډې د باکتامون د شونډو په شان خوږې وي.

ماښام چې کله باکتامون غوښتل زرینې ماڼۍ ته لاړه شي، یو بېړۍ یې کرایه کړه، چې ترلاسه کړې ډبرې د دغې بېړۍ په وسیله یوه ځای ته ولېږدوي.

د کبانو د بازار نارینه وو، به د هغې پر وړاندې سجده وکړه، روان به شول او ویل به یې. اې د جنګ الهې سبا هم راشه او له موږ سره تفریح وکړه، موږ به سبا ستا لپاره نورې

ډېرې هم راوړو.

خو پر بله ورځ شهزادګۍ سبزي منډيي ته لاړه دا بازار هم د کبانو د بازار په شان د نيل پر غاړه پروت و.

کليوالو به خپل کرنيز محصولات په خرو او غوايانو دغه بازار ته وړل او شهزادګۍ هغوی ته په خطاب کې وويل: زه باکتامون د مصر د پوځ د قوماندان او د ستر فاتح هورم هب مېرمن يم چې د هغه لپاره مې دوه زامن زېږولي دي.

خو هورم هب داسې سړی دی چې زه پرې ګرانه نه يم او له ما سره تفريح نه کوي، ان زما د اوسېدو لپاره يې يو کور هم نه دی جوړ کړی.

له همدې امله زه نن تاسې ته راغلم او له تاسو غواړم چې له ما سره د نيل د څنډې تر ونو لاندې تفريح وکړئ.

تاسې ته ډاډ درکووم چې هېڅ يوه ښځه به زما په شان خوندوره نه وي او يوازېنی شی چې له تاسې يې غواړم يو ډبره ده.

کليوال هم د کب پلورونکو په شان په سر کې وډار شول، خو شهزادګۍ خپلې جامې لرې کړې او خپل اندام يې وروښود.

د کتان جامو لمن يې وښوروله، چې باد د هغې د بدن عطر په فضا کې خپاره کړي او د کليوالو سپږمو ته يې ورسوي.

کليوالو وويل، بايد دغه فرصت له لاسه ورنه کړو، ځکه چې په ټول عمر کې يو ځل ممکنه ده، يوه شهزادګۍ موافقه وکړي، چې له يوه کليوال او بېوزلي سره تفريح وکړي

موږ تر اوسه پورې داسې ښځه نه ده ليدلې چې له جامو يې داسې خوږ وږم احساسېږي، زموږ د ښځو له اندامونو څخه خو د خوشبو بوی نه لګېږي

له دې وروسته يو شمېر کليوالو له شهزادګۍ سره د نيل په ساحل کې تفريح کوله، نورو خپل خره خوشي کړي و، تللي ول چې ډبرې را ټولې کړي او ماښام شهزادګۍ له ډبرو په ډکه بېړۍ کې ماڼۍ ته ستنه شوه.

پر درېيمه ورځ شهزادګۍ د سکرو بازار ته لاړه او هغه څه يې تکرار کړل چې دوه ور ځې مخکې يې ترسره کړي ول.

سکرو پلورونکو په سر کې دا تصور هم نه کاوه، چې يوه شهزادګۍ دې له دوی سره تفريح وکړي او د سکرو په دوړو دې ځان تور کړي

شهزادګۍ دومره سکاره پلورونکي د نیل څنډې ته بوتلل، چې د نیل ساحل تک تور ښکارېده او که دې د لمر لوېدو پر وخت چا د نیل د څنډې وانښه لیدلي وای، نو فکر یې کاوه چې د اوبو یو ډله اسونه پر دې ځای تېرشوي دي او وانښه یې تر پښو لاندې کړي دي.

پر دې ورځ د شراب پلورونکو او کاهنانو اعتراض پورته شو، ځکه چې سکرو پلورونکو ډېرې نه درلودې چې شهزادګۍ ته یې ورکړي، نو د میخانو او معبدونو پر وراندې ډېرې یې ټولې کړې او شهزادګۍ ته یې راوړلې.

د لمر لوېدو په وخت کې شهزادګۍ بیا له ډبرو په ډکه بله بېړۍ کې مانۍ ته ستنه شوه او هغه ځای ته یې ولېږدولې چې ورته ټاکلی یې و.

له دې کبله چې له دریو ورځو راهیسې شهزادګۍ باکتامون خپل ځان ټولو ته بربنډ کړی و، نو پر دې شپه په طبس کې له دې خبرې پرته بل بحث نه و.

هغو کسانو چې په خدایانو یې عقیده نه درلوده، د شهزادګۍ د دې عمل په هکله یې بله توضیح ورکوله او هر سړي په طبس کې هیله کوله چې له شهزادګۍ باکتامون سره ساعت تېر کړي.

په بله ورځ زیات شمېر نارینه، ان هغه کسان چې څو مېرمنې یې درلودې له شهزادګۍ سره د ساعت تېری لپاره، ډېرې په لاس په هغو بازارونو کې ګرځېدل، چې په تېرو دریو ورځو کې باکتامون پکې لیدل شوې وه او د هغې په تمه کېناستل.

هغو کسانو چې سره او سپین یې درلودل، ډېرې یې وپېرودلې او هغو چې سره و سپین نه درلودل له معبدونو او عمومي ځایونو یې ډېرې غلا کړې، په داسې ډول چې کاهنان مجبور شول له ګزمې وغواړي چې د معبد شا و خوا پیره وکړي چې غله ونه شي کړای د معبدونو ډېرې غلا کړي.

خو په هغه ورځ شهزادګۍ باکتامون بازارونو ته نه لاړه او ځان یې خلکو ته ونه ښود، بلکې په زرینه مانۍ کې یې استراحت وکړ، چې د تېرو دریو ورځو ستوماني ختمه کړي.

بیا غرمه مهال د ډبرو کتلو ته ورغله چې د نیل په څنډه کې یې ایښې وې.

وروسته یې د دربار د غوجلو معمار راوغوښت او ورته ویې ویل:

دغه ډېرې چې ګورې، ما راټولې کړې او ټولې زما لپاره ډېر ارزښت لري، ځکه چې هره ډبره ما ته یوه خاطره راپر زړه کوي

هر څومره چې ډبره لویه وي، دغه خاطره هومره قوي وي او اوس له تا غواړم چې له

دغو ډبرو څخه زما لپاره یو کور جوړ کړه، چې زه کور ولرم او هلته ژوند وکړای شم، ځکه چې زما مېړه هورم هب له ما کرکه کوي، ما پرېږدي، کله کوش او کله هم سوریې ته ځي.

هغه کور ته چې ته یې ماته جوړوې، باید ډېر ښکلی او لوی وي او د مسالو له درکه اندېښنه مه کوه، ځکه چې زه بیا هم ځم او دغه ډول ډبرې راوړم چې ته به د ډبرو له پلوه هېڅ ستونزه ونه لرې.

د سلطنتي غوجلو د جوړولو معمار ډېر ساده سړی و، کله چې یې د شهزادګۍ وړاندیز واورېد ویې ویل، شهزادګۍ ما ټول عمر ساده ودانۍ او غوجلې جوړې کړې دي او مانۍ نه شم جوړولی.

ته چې نیت لرې یو ښکلی قصر جوړ کړې، باید ستر معماران او هنرمندان راوبولې، چې ستا کور زما د کم عقلۍ له امله بې کاره نه شي.

شهزادګۍ د معمار پر اوږه لاس کېښود او ویې ویل اې د سلطنتي غوجلو جوړونکیه! زه یوه بېوزله مېرمن یم او ته پوهېږې، زما مېړه هم له ما کرکه کوي، نو دومره شته نه لرم چې ستر معماران او هنرمندان وګمارم.

زه هغوی ته فلزات نه شم ورکولای او ان ستا د زیارونو پر وړاندې تا ته داسې ډالۍ نه شم درکولای، چې ستا زحمتونه جبران کړي، خو کله چې د دغه کور کار خلاص شو، زه او ته به دې کور ته ننوځو او له تا سره به تفریح وکړم.

معمار په دې خبره خوشحال شو، ځکه کتل یې چې شهزادګۍ باکتامون د مصر تر ټولو ښکلې مېرمن ده او اورېدلي یې هم و، چې هغې په ورستیو ورځو کې په طبس کې له یو شمېر نارینه وو سره تفریح کړې ده.

که هورم هب په طبس کې وای ښایي معمار تر ې ډار شوی وای او په دې هیله به یې شهزادګۍ ته کور نه جوړاوه، چې ورسره تفریح وکړي، خو له دې کبله چې د مصر د پوځ قوماندان په مصر کې نه و، نو معمار فکر کاوه چې ځان باید له یوې ستړې نیکمرغۍ څخه محروم نه کړي.

د سلطنتي غوجلو معمار په مینه او لېوالتیا سره کار کاوه او له باکتامون سره د ځملاستو مینې هغه دې ته اړ کاوه، چې ډېرې خولې توی کړي. شهزادګۍ باکتامون به د نورو ډبرو د ترلاسه کولو لپاره هره ورځ له مانۍ څخه وتله او نه یوازې په واټونو کې، بلکې په معبدونو کې یې هم خلکو ته ویل چې د هغې لپاره ډبرې راوړي.

یوه ورځ کاهنانو د ګزمې په مرسته هغه په یوه معبد کې ونیوله، خو باکتامون په غرور

سر پورته کړ او ویې ویل، ایا پوهېږئ، چې د چا پر وړاندې ولاړ یاست؟

زه باکتامو ن د لوی فرعون لور یم او په رګونو کې مې د فرعونیانو او خدایانو وینه بهېږي.

په مصر کې داسې قاضي نشته چې ما محاکمه کړای شي، بلکې دا زه یم چې قاضیان محاکمه کووم.

له دې سره سره چې تاسې ما ته سپکاوی کړی دی، خو زه به سزا درنه کړم. بلکې ډېر مې زړه غواړي، چې له تاسې سره تفریح وکړم، ځکه کاهنان ښه خواړه خوري او تکړه کسان وي. کاهنان او د ګزمې کسان هېڅکله وړي نه پاتې کېږي، خو که تاسې هم غواړئ، چې له ما سره تفریح وکړئ، باید هر یو، یوه ډېره راته راوړئ.

لاړ شئ او د معبد دېوالونه او د قاضي کور وران کړئ، ځکه چې په دغو ودانیو کې تر نورو ځایونو ډېرې ډبرې کارول شوې دي.

د ګزمې کسان چې دنده یې د نورو کورنو ساتنه وه، چې څوک یې ډبرې پټې نه کړي، اوس یې پخپله د معبدونو او د قاضي د کور پر دېوالونو حمله وکړه، ډبرې یې وکیندلې او مېرمن باکتامون ته یې ورووړې.

هغې به خپلې ژمنې پوره کولې او هر یو به ورسره خپل ساعت تېراوه.

له هغه وروسته د ډبرو د ترلاسه کولو لپاره عمومي ځایونو ته لاړه او په فاحشه خانو کې یې ځان د هغه ځای په نارینه وو خرخ کړ.

له هغو یې وغوښتل چې ډبرې ورووړي او هر ځل به یې ځان په بشپړ ډول معرفي کاوه چې خلک یې وپېژني چې دا شهزادګۍ باکتامون، د مصر د لښکرو د قوماندان هورم هب مېرمن ده.

خو دا خبره هم باید وکړم، کومه ورځ چې به شهزادګۍ دباندې نه تله د خپل شخصیت او مقام فکر به یې ډېر کاوه او داسې کار به یې نه کاوه، چې شخصیت ته یې تاوان ورسېږي.

دغه راز کله به چې له زریني ماڼۍ د خپلو ځینو کارونو لپاره په روان تخت کې دباندې تله، دومره پرتم او وقار یې درلود چې چا دا جرئت نه شو کولای چې له هغې وغواړي تفریح ورسره وکړي.

ځکه چې د شتمنو کسانو او لویو شخصیتونو مېرمنې مجبورې نه دي، د شتمنۍ د ګټلو لپار ځان خرخ کړي، نو کله چې وغواړي په ارزانه بیه د ځان له خرڅولو ډډه کولای شي.

دغه راز کله چې خلک ګوري یوه شهزادګۍ ځان په ارزانه بیه خرڅوي، نو هغه نه

سپکوي، ځکه فکر کوي چې یوه اصیله او شتمنه مېرمن حتماً په یوه داسې دلیل چې دوی پرې نه پوهېږي ځان ارزانه خرڅوي.

دوی فکر کوي دا له هغو ښځو سره تو پیر لري، چې د یوې نمرې ډوډۍ لپاره ځانونه خرڅوي او له هر سړي سره ځملي.

په داسې حال کې چې ددې عمل ځرنګوالی او کیفیت یو شان دی، په دواړو حالتونو کې ښځې ځان ارزانه خرڅ کړی دی، که هغه د یوې نمرې ډوډۍ لپاره وي، یا د هوس او یا د هورم هب په شان له یوه مېړه څخه د غچ اخیستو لپاره.

تر هغه چې دا نړۍ وي، داسې ښځې به وي، چې ځانونه ارزانه خرڅوي، خو یوه د یوې نمرې ډوډۍ لپاره ځان خرڅوي، بله د یوې کړۍ مسو او سرو و سپینو لپاره، بله د کور او مریيانو د ترلاسه کولو لپاره، خو څلورمه بیا یوازې د هوس لپاره ځان ارزانه خرڅوي.

یوازې ددې لپاره چې له یو چا سره یې خپل ساعت تېر کړی وي.

په دغو ښځو کې هغه ډېره سپکېږي چې تر ټولو ښوزله وي.

خلک د هغو مېرمنو لپاره چې شتمنې دي پلمې پیدا کوي او هغه چې شهزادګۍ ده، هر څومره چې ځان ارزانه خرڅ کړي بیا یې هم خلک نه سپکوي.

په زرینه ماڼۍ کې ټول پوهېدل چې شهزداګۍ باکتامون د خپل کور ډېرې له کوم ځایه راوړې دي.

کله چې به د زرینې ماڼۍ ښځې د باکتامون د کور لیدو ته راتلې، هغه ډېرې به یې شمېرلې چې ددې د کور په جوړلو کې لګېدلې وې.

دوی به حیرانې شوې او ویل به یې ایا دا خبره د منلو ده، چې یوه ښځه ددې ډېرو په اندازه، له خلکو سره ځملاستلې وي.

خو هېڅ یوې ښځې دا جرئت نه شو کولای چې دا خبره په خپله باکتامون ته وکړي.

ان د مصر فرعون آمي چې کله له دې مسلې خبر شو، ددې پر ځای چې غوسه شي، خوشحال شو، ځکه چې له هورم هب سره یې د ښمنې درلوده.

دې پوهېده چې کله دغه سړی په بریالیتوب سره له سوریې راستون شي او هاتي ته ماتې ورکړي، نو آمي به نور د مصر فرعون نه وي.

له همدې امله یې خوشحالي کوله چې باکتامون په دې ډول هورم هب په خلکو کې سپک او نوم بدی کړ.

که دغه سړی له سوریې څخه په راستنیدا پسې وغواړي، چې آمي له پاچاهۍ لرې کړي، داسې به یې سپک او مشهور کړي چې حیران به پاتې شي.

خو هورم هب په سوريه کې په جنګ بوخت و او په دې بريالی شو چې د سيدون، ازمير، او بيبلوس ښارونه له هاتي څخه ونيسي.

ددې هېواد ډېر غنيمتونه يې مصر ته راواستول او دغه راز د خپلې مېرمنې لپاره يې ښکلې ډالۍ را واستولې.

په طبس کې ټول پوهېدل چې په زرينه ماڼۍ کې څه تېرېږي، خو دغه خبرې يې هورم هب ته نه رسولې.

ان هغه خلک، چې هورم هب ګمارلي ول، چې په طبس کې د هغه ګټې خوندي کړي، هغوی هم هورم هب نه خبراوه او ويل به يې باکتامون چې کوم کار کوي دا د مېړه او ښځې د جنګ يوه برخه ده.

که موږ د ژرندې د پلونو ترمنځ لاس کېږدو تاوان به مو کړی وي، نو غوره ده چې د مېړه او ښځې په دې جنګ کې غلي پاتې شو.

په دې ډول هورم هب د شهزادګۍ باکتامون له کارونو بې خبره پاتې شو.

زه تصور کووم چې دغه موضوع د مصر په ګټه وه، ځکه چې که هورم هب له دې مسلې خبرشوی وای، نو په ارامو اعصابو به يې پوځي عمليات نه وای کړي.

ما په دې تاريخ کې په مصر کې د آمي د سلطنت او په طبس کې د شهزادګۍ باکتامون د چلند په هکله ډېرې خبرې وکړې.

د ځان په هکله مې خبرې ونه کړې، علت يې دا و، چې د خپل ژوند په هکله بله د پام وړ خبره نه لرم چې ويې کړم.

نور زما ژوند نه مستېده، زما د ژوند او به په کراره رواني وې او د سيند په دوارو لورو کې يې ګردابونه جوړول.

# څلور پنځوسم څپرکی

## زما تفکرات

ما د طبس ښار په هغه کور کې ژوند کاوه، چې موتي د کاپتا په رالېږلو فلزاتو بیرته رغولی و او نه مې غوښتل نور له دې ځایه لاړ شم.

زما پښو دومره نړۍ کچ کړې وه، چې نور یې د ستومانۍ احساس کاوه او سترګو مې دومر پلیتۍ او بدۍ لیدلې وې، چې نور یې د دغو منظرو دلیدلو وس نه درلود.

زما زړه د وګړیو له ځانغوښتنې او حرصه دومره موړ شوی و، چې نور یې نه غوښتل د هغوی د ځان غوښتنو او کبر شریک شي.

له همدې امله مې له خلکو لرې په دې کور کې ژوند کاوه.

نور مې ناروغان د پیسو لپاره نه معالجه کول او یوازې ځینې وخت به مې خپل ګاونډیان او بېوزلي ناروغان چې فیس یې نه شو ورکولای معالجه کول.

ما په دې کور کې یو حوض جوړ کړ او رنګارنګ کبان مې پکې واچول. هغه ونې چې مخکې وچې شوې وې، بیرته زرغونې شوې، ځکه چې ریښې یې روغې وې.

ترونو لاندې به کېناستم، په اوبو کې به مې د کبانو د حرکت ننداره کوله او د خرو اوازونو او په لوبو دبوختو ماشومانو شور ماشور ته به مې غوږ نیولی و.

موتي زما پالنه ډېره ښه کوله، خوندور خواړه یې را ته پخول، خو ما د پخوا په شان له خوړو څخه خوند نه اخیست، بلکې هغه بد کړه وړه به یې را پر زړه کړل چې په تېرو وختونو کې مې کړي ول.

د اخناتون فرعون سترګې چې د مرګ پر وخت یې د زهرو جام له ما واخیست او ویې څښنه راپر زړه کېدې.

د هاتي د ځوان شهزاده شوباتو سترګې به مې لیدلې، چې زما له لاسونو یې زهر واخیستل او ویې څښل.

زما په سترګو کې دومره ناوړه خاطرې انځور شوې، چې نور مې د بېوزلو او ګاونډیانو له معالجې څخه هم لاس واخیست، ځکه چې پوهېدم زما لاسونه سپیره دي او ددې پر ځای چې شفا ورکړي، د مرګ سبب کېږي.

د حوض تر څنګ په کېناستو او د کبانو په لیدو سره به مې هیله کوله، چې کاشکې د هغوی په شان په اوبو کې وای او مجبور نه وای چې د ځمکې پر سر له جنایتونو ککړه هوا تنفس کړم.

کله به مې خپل روح ته په خطاب کې ویل: ولې د هغو اعمالو له امله خواشینی یې، چې په تېر وخت کې دې کړي دي؟ ته هېڅ ګناه نه لرې، ځکه چې ستا اعمال ددې نړۍ او ژوند یوه برخه ده او په دې نړۍ کې رحم او ښېګنه هېڅ مانا نه لري

دلته رحم او ښېګنه له واقعیته لرې شیان دي

هغه څه چې ریښتوني دي حرص ،شهوت ،ظلم او بې رحمي ده او د ژوند قانون د ظلم ،حرص او بې رحمۍ پر اساس ایښودل شوی دی.

اوس ناممکنه ده، چې څوک ددې قانون پر خلاف عمل وکړي او هغه کسان چې ځانونه مهربان او بشردوسته کسان بولي، درواغ وایي. د دوی هدف دا دی چې په دې پلمه خلک وغولوي، چې ښه ظلم وکړای شي، خپله حرص او تمه سړه کړي او شهرت ومومي.

که باور نه کوې د هغوی زړونه وخیرئ او وګورئ چې د هغوی په زړونو کې د غوسې، حرص او شهوت څومره اورونه پټ دي

که نه غواړئ د هغوی زړونه پرانیزئ، نو داسې کار وکړئ چې د هغوی له ګټو او شهرت سره لږ په ټکر کې وي، بیا به پوه شئ چې تاسو څنګه له منځه وړي.

ځکه چې تاسو جرائت کړی چې د هغوی د حرص او شهرت په لاره کې خنډ رامنځته کړئ.

سینوهه! ته داسې تمه کوې چې انسان دې تر هغه ډېر ښه وي، چې خدایانو رامنځته کړی دی.

خدایانو بشر د غوسې، کینې، رخې او شهرت پرستۍ لپاره پنځولی دی او ناممکنه ده چې بشري فطرت بدل شي.

سینوهه! ته بې ځایه دا تمه کوې چې د وخت په تېرېدا سره به بشر ښه شي، که د بشر له عمره څو ځله، لسګونه ځله ..لسګونه ځله تېر شي بیا به هم دغه بشر اصلاح نه شي.

ته بې ځایه تمه کوې چې جنګ ،لوږه ، طاعون ،اورونه ، او عام وژنې به د بشر لپاره یوه تجربه شي چې هغه اصلاح کړي.

دغه تجربې یو شان او هر ځل نوي زهر دي، چې پر پخوانیو زهرو برسېره یې په جام کې واچوي.

ددې پر ځای چې د پخوانیو زهرو اغېز کم کړي، هغه نور هم قوي کوي او د وژنې اغېز یې نور هم زیاتوي.

جنګ،وژنو ،طاعون،لوتماریو او ډلوژنو هم بشریت حریص ، شهوت پرست او له دښمنیو ډک کړی دی.

سینوهه ! ته هم یو انسان یې که څه هم د خدایانو وینه ستا په رګونو کې بهېږي،خو د انسان په څېره کې یې او وینه، پوست ، هډوکي او رګونه لرې ، نو په دې بنه کې ته دا تمه مه کوه، چې په غوسه،شهوت او تمه کې به له چا سره شریک نه وې.

دا تمه مه کوه چې چېرته به یو نیک انسان پیدا کړې،ځکه ممکنه نه ده هغه څوک دې یو بنه انسان و اوسي، چې خدایانو یې ختمه له غوسې، حرص، دښمنیو او شهوت سره اخښلې ده.

کله چې انسان مري او د هغه مړی د مومیایي کولو لپاره دارالممات ته وړي هغه ښه کېږي.

له همدې امله یو انسان تر هغه نه شي نېکمرغه کېدای،تر کومه چې مړ نه شي،ځکه چې یوازې د مرګ په وسیله له غوسې،کینې ، شهوت او حرصه ژغورل کېږي.

سینوهه ! په دې حقیقت پوه شه،چې علم بشریت نه شي اصلاح کولای،بلکې هغه نور هم حریص، بې رحمه او شهوتي کوي.

هغه کسان چې پوه او عالمان دي، تر نورو خلکو ،لس ځله .... لس ځله .... لس ځله ډېر حریصان دي، له همدې امله تر ناپوهو کسانو ډېره کینه او شهوت لري.

سینوهه ! که ته پوه او ډاکټر نه وای، پخپل عمر کې دې دومره جنایتونه او غمیزې نه رامنځته کولې... زرګونه کسان ستا د پوهې له امله له لوږې او ناروغیو څخه مړه شول،یا د وسلو په وسیله ووژل شول ، یا یې د جنګي ګاډیو تر ارابو لاندې ساه ورکړه او یا د بیدیا په بېلابېلو ځایونو کې له ډېرې ستوماني څخه ختم شول.

اې جنایتکاره ! که ته پوه نه وای ،ماشومان به د مېندو په خېټه کې نه مړه کېدل او د

مریيانو پر ملاوو به د کوتکو ګوزارونه نه کېدل. خونړیو سرتېرو به پر زرګونو ښځو تېرى نه کاوه او زرګونه نارینه به نه مریيان کېدل.

ظلم به پر عدالت، چل او دوکه به پر رښتونولۍ نه برلاسي کېدل او نن سبا به غلو په نړۍ حکومت نه کاوه.

دا ته وې چې په زهرو سره دې اخناتون فرعون مړ کړ، هغه فرعون دې له منځه یووړ، چې د عدالت او برابرۍ غوښتونکی و او نړۍ دې د وینې ژبېښوونکو، شهوتیانو او غلو لپاره ازاده پرېښوده.

زرګونه کسان، چې د پوستکي رنګ یې ستا د پوستکي له رنګ سره توپیر درلود ستا د پوهې له امله مړه شول او زرګونه کسان چې ستا په ژبه یې خبرې نه شوې کولای بې ګناه ووژل شول او د مرګ مسوولیت یې ستا پر غاړه دی.

یوازې ته مسوول یې، له همدې امله د هغوی ساندې، زګېروي او نارې سورې ددې مخه نیسي، چې ته د شپې مهال ویده نه شې، خواړه دې په مرۍ کې ونښلي او بې خونده شي.

یوه ورځ چې له خپل روح او زړه سره مې همدا خبرې کولې، زړه او روح مې راته وویل، سینوهه! ستا جنایتونه د ښنولو نه دي، موږ به دې تر هغه په کرار پرې نه ږدو چې ژوندی یې.

زموږ له لاسه به یوه شپه هم ارام خوب ونه کړې، ځکه چې پوه او عالم یې او پوهېږې چې څه کوې، نو ستا مسوولیت ډېر دروند دی او ښنل کېدای نه شي.

بیا مې خپلې جامې څیرې کړې او نارې مې کړې لعنت دې زما پر دې پوهه شي.

په هغه ورځ دې لعنت وي چې موږ وزېږولم، لعنت دې وي پر دغو لاسونو چې ما پرې جنایتونه کړي دي او لعنت دې وي پر هغو سترګو چې دغه جنایتونه یې تول وکتل.

د(اوزیریس )تله راوړئ، چې زما جنایتکار زړه په هغې کې وتلي او ووایي: چې زما د زړه له تللو وروسته دې څلو ښت بیزوګانې زما په هکله فیصله وکړي، ځکه یوازې هغوی کولی شي ووایي چې ما جنایتونه کړي دي کنه؟(*اوزیریس د پخواني مصر یو خدای و او په ترازو سره یې د انسانانو زړونه تلل، چې پوه شي څومره وزن لري. یانې څومره ثواب او ګناه لري او بیا به څلوښتو بیزوګانو د دغه سړي په هکله چې زړه یې را ایستل شوی و فیصله کوله. د ثواب او ګناه د تللو عقیدې هم له پخواني مصره ځینو مذهبونو ته لاره وموندله. ژباړن*)

زما د نارو سورو له امله موتي له پخلنځي راووته او زه یې په یوه تخت څملولم، پر سر یې یو لوند ټوکر راواچاو او ترخې خو ارام بښوونکې جوشاندې یې راکړې
کله چې ما غوښتل له بستره پورته او انګړ ته لاړ شم زما مخه یې ونیوله او ویل یې، دغه کار مه کوه، ځکه چې لمر دې پر سر ونه لګېږي.
زه یوه موده ناروغ وم او په بستره کې مې اوتې بوتې ویلې.
کله به مې د اوزیریس او د هغه د ترازو په هکله خبرې کولې او کله به د مریت او تهوت په هکله غږېدم.
له دې وروسته چې زما ناروغي معالجه شوه، د اوزیریس، تهوت او مریت په هکله مې خبرې ونه کړې، خو هغوی مې هېر هم نه کړل، ځکه چې تهوت زما زوی او مریت یې مور وه.
زه پوهېدم چې هغه دوه کسه له دې امله مړه شول، چې زه یوازې شم. که هغوی ژوندي وای زه به یوازې نه پاتې کېدم او نیکمرغه شوی به وم.
خو خدایانو زه ددې لپاره پیدا کړم چې یوزاې پاتې شم، ځکه پر کومه شپه چې وزېږېدم، زه یې په یوه ټوکرۍ کې کېښودلم او د نیل په اوبو کې یې خوشې کړم.
له دې سره سره چې ما د خپل زوی او د هغه د مور په هکله او دغه راز د هغو کارونو په هکله چې مخکې مې کړي ول، له چا سره خبرې نه کولې، خو هېڅکله مې خپل پخواني کارونه هېر نه کړای شول.
بالاخره یوه ورځ مې د بېوزلو جامې واغوستې، له هغه کوره ووتم او بیرته ورستون نه شوم.
له کوره په وتلو پسې بندر ته لاړم او هلته مې پند یتوب ته ملا وتړله، ډېره ژر مې ملا د درنو بارونو په لېږدولو ژوبله او دردمنه شوه.
کله چې به وږی شوم سبزي منډیي ته به تلم او هغه سبزیانې به مې خوړلې چې خلکو به لرې اچولې.
کله چې پوه شوم نور جوالیتوب کولای نه شم، یوه پښ ته ورغلم چې د اهنګرۍ بادوهونکی ورسره وچلوم، هلته مې کار پیل کړ، تر دې چې د ملا زخمونه مې ښه شول او دردونه یې ختم شول.
مریبانو، بېوزله او کارګرانو ته مې ویل، چې د انسانانو ترمنځ هېڅ توپیر نشته، ځکه چې ټول لوڅ پیدا شوي دي.

د هېڅا په هکله باید د هغه د پوستکي د رنګ ،ژبې ،جامو او ګانو پر بنسټ قضاوت ونه کړو ، بلکې د انسان زړه ته وکتل شي او د هغوی د زړونو پر اساس قضاوت وشي ،ځکه خو یو ښه سړی تر بد غوره دی او یو هوښیار کس تر ظالم ښه دی.

خو مریبیانو او کارګرانو به خندل، ویل به یې سینوهه ! ته لېونی شوی یې ،ځکه تر هغه چې انسان لېونی نه وي،د لیک لوست له زده کړې سره سره د مریبیانو په شان کار نه کوي یا دې کوم جنایت کړی،دوی غواړي ودې نیسي او سزا درکړي، خو ته ځان په موږ کې پټوې.

دوی به ویل،یوه بله فرضیه هم شته او هغه ډېره سمه ښکاري.

دغه فرضیه دا ده چې ته د آتون پلوی یې ،ځکه داسې خبرې کوې.

ستا خبرې ښیي چې ته د آتون پلوی یې.

په داسې حال کې چې پو هېږې باید د آتون نوم وانخلې.

موږ تا حکومت ته ور په ګوته کولای شو چې ودې نیسي او د شاقه کارونو لپاره دې کانونو ته بوځي،خو موږ دغه کار نه کوو ، ځکه ستا په خبرو ځان خوشحالوو او ته مو تر ټوکمارانو ډېر خندوې.

خو په دې شرط چې نور ونه وایې،د انسانانو رنګ د هغوی د توپیر نښه نه ده، ځکه چې ته په دې خبرې سره موږ ته سپکاوی کوې.

ایا ته وایې چې موږ او تورپوستي سره یو شان یو ؟

داسې نه ده، شک مه کوه چې تور پوستي تر موږ ډېر ټیټ دي او موږ چې مصریان یو ، په دې ویاړو چې غنم رنګه یو.

پخوا مو هم ویاړ کاوه او په راتلونکي کې به هم وویاړو ، ځکه چې پو هېږو په نړۍ کې د مصر تر ملت بل ستر ملت نه اوس شته او نه به په راتلونکي کې پیدا شي.

تر هغه چې دا نړۍ وي،څوک به د هرمونو په شان ودانۍ جوړې نه کړای شي، زموږ د مجسمو په شان مجسمې به جوړې نه کړي او نور هېڅوک به زموږ په شان خدایان ونه لري.

زموږ په شان به څوک مړي مومیایي نه کړای شي، چې کلونه کلونه د هغوی بدنونه روغ پاتې شي.

ټول به مړه شي له منځه به لاړ شي ، خو د مصر ملت به تلپاتې وي، ځکه چې موږ داسې شیان رامنځته کړي،چې له منځه نه ځي.

له همدې امله نه غواړو، چې موږ له نورو سره پرتله کړې او یو شان مو وګڼې.

ته که غواړې زموږ په منځ کې ژوند وکړې، نو دا خبره ومنه، چې د مصر ملت د نړۍ تر ټولو لوړ او غوره ملت دی.

ما به هغوی ته ویل، ستاسې بدبختي له همدې امله ده، چې یو ملت تر بل لوړ او غوره او یوه پرګنه تر بلې ښه او لوړه ګڼئ.

تر هغه وخته چې یو ملت او یا تن تر نورو ځان لوړ ګڼي، د کمزورو کسانو او بېوزلو د لاسونو او پښو د تړلو لپاره ځنځیر او د مریيانو او کارګرانو پر ملاوو د ګوزار لپاره کوتک به له منځه لاړ نه شي.

یوه ورځ یو کس وایي، زه د خدایانو زوی یم، نو تر نورو غوره یم او بله ورځ بل تن وایي چې موږ سره و سپین لرو، نو تر نورو غوره او ښه یو.

یوه ورځ داسې ډله پیدا شي چې وایي موږ د مصر په لوړ ښوونځي دارالحیات کې زده کړې کړې دي او پوهان یو، نو تر نورو ښه او برلاسي یو.

خو د دغو ټولو کسانو چې په بېلابېلو نومونو ځان تر نورو لوړ ګڼي، هدف دا دی چې نور پر سر، سر ووهي او ملاوې یې په کوتکونو ورزخمي کړي.

هغوی د څارویو په شان اړ کړي، چې د دوی لپاره کار وکړي او د یوې نمړۍ ډوډۍ او یا یوه جام شرابو په بدل کې نور خلک ورته کارونه وکړي.

تر هغه چې یو کس یا یو ملت وایي چې زه تر نورو غوره یم، عام وژنه به له منځه لاړه نه شي او مردارخواره او ټپوسان به د مړیو په غوښو ماړه وي.

د انسانانو په هکله باید د هغوی د زړونو پر اساس قضاوت وشي او که غواړئ، چې پوه شئ، ولې ټول انسانان سره یو شان دي او یو پر بل غوره نه دي، هغوی د بدبختیو او رنځونو په وخت وازمایئ او د هغوی په هکله قضاوت وکړئ.

بیا به پوه شئ چې ټول انسان یو شان ژګیروي کوي او هغه اوښکې چې د هغوی له سترګو راووځي یو شان او تروې دي، په دې مانا چې د یوه تورپوستي د سترګو اوښکې له یو سپین پوستي سره هېڅ توپیر نه لري.

هغو کسانو چې زما خبرې به یې اورېدلې په کرس کرس به یې وخندل او ویل به یې سینوهه! بې له شکه چې ته لیونی شوی یې، ځکه چې یوازې یو لېونی داسې فکر کوي، چې انسان باید تر نورو ځان لوړ ونه ګڼي.

که يو څوک په هر علت چې وي، ځان تر نورو لوړ او ښه ونه بولي ژوندنه شي کولای،ان تر ټولو بېوزلي او کمزوري کسان هم، په يوه نه يوه علت باندې ځان تر نورو لوړ ګڼي او په دې هيله ژوند کوي.

هغه څوک چې پوزي اوبي، پر دې وياړي چې تر نورو يې ګوتې ښه کار کوي او يو بل پردې وياړي چې متې يې تر نور کلکې دي او توان يې ډېر دی.

چلبازان او دوکه ماران پر دې وياړي چې تر نورو ځيرک دي.

کله چې قاضي يوه غله ته سزا ورکوي، وياړي چې عدالت پلی کوي او يو ډاکټر په دې وياړي چې پوه او تکړه دی.

هغه کسان چې کنجوسان دي په دې وياړي چې تر نورو ښه بچت کولای شي او هغه چې ډېر اصراف کوي، هغوی هم وياړي چې تر نورو لوړ او غوره دي.

يوه پاک لمنې مېرمن ځان تر نورو ښځو ښه بولي، خو هغه ښځه چې په کوڅه او بازار کې ځان خرڅوي، په دې وياړي چې له هرچاسره تفريح کولای شي.

موږ هم چې کارګران او مريان يو، ځان له تا څخه چې ليک لوست هم کولای شې، لوړ ګڼو، ځکه چې باور لرو تر تا ځيرک او هوښياران يو. نو دغه د ليونيانو فکر له ذهنه لرې کړه چې انسان داسې فکر کولای شي چې تر نورو ځان لوړ ونه ګڼي.

ما ورته وويل، له دې سره سره عدالت تر ظلم ښه دی.

دغو کارګرانو او مريانو يو ځل بيا وخندل او ويې ويل، سينوهه! ته دومره ساده يې چې ته وا په داسې ځای کې دې ژوند کړی، چې هلته انسان نه و موجود.

عدل او ظلم داسې شيان نه دي، چې هغه له يو بله بېل کړو، په نړۍ کې داسې قاضي نشته چې د عدالت او ظلم ترمنځ توپير وکړای شي، بلکې هغه څه چې په دنيا کې شته قوي او ضعيف خلک دي.

هغه بادار چې تل زموږ له غوښې او شرابو غلا کوي، زموږ مېرمنې او بچيان وږي پرېږدي او تل مو په کوتکو او متر کو وهي، نو که دغسې کس ووژنو پخپل تصور، موږ عدالت کړی دی.

خو سمدستي به موږ ونيسي او قاضي ته مو بيايي، هغه امر کوي چې زموږ دوه غوږونه او پوزه پرې کړي او سر په خيرۍ مو راځوړند کړي، چې ووژل شو.

همدغه قاضي چې موږ د يوه بې رحمه بادار د وژلو په تور وژني او سزا راکوي، دې ته

نه چمتو کېږي ، چې دغه بادار ته په دې تور سزا کړي چې پر مو ږ یې ظلم کړی دی، ځکه چې هغه قوي او موږ ضعیفان یو.

ما ورته وویل، قاضي حق لري چې تاسې ته تر ټولو سخته سزا درکړي، ځکه چې قتل تر ټولو پلیت او ناوړه کار دی.

هغوی وویل، که دغه خبره هورم هب ستا له خولې واوري، تا به د سختو کارونو لپاره کانونو ته واستوي، ځکه چې د هورم هب له نظره تر دې بل ویاړمن کار نشته چې انسان وکړای شي په جنګ کې د دښمن عسکر ووژني.

خو که ته غواړې چې بشریت اصلاح کړې ظلم او ستم له منځه یوسې، نو ددې پر ځای چې له موږ سره خبرې وکړې، غوره داده، چې شتمنو ته ورشې او دغه خبرې هغوی او د مصر قاضیانو ته وکړې.

ځکه که موږ بد یو داسې وسیله نه لرو چې ظلم وکړای شو، په داسې حال کې چې هغوی هم بد کسان دي او هم ظلم کوي.

خو په دې پوه شه چې که دغه خبرې د مصر قاضیانو او د فرعون درباریانو ته وکړې، نو تور به در پورې کړي چې ته د آتون پلوی یې، ستا غوږونه او پوزه به در پرې کړي او د سختو کارونو لپاره به دې کانونو ته واستوي.

که څه هم، کارګرانو او مریيانو وېرولی وم، ما دغه سپارښتنه عملي نه کړه او په داسې حال چې د بېوزلو جامې مې اغوستې وې، په طبس کې روان شوم، چې له شتمنو سره خبرې وکړم.

له سوداګرو او تاجرانو څخه مې خپل تبلیغ را پیل کړ.

هغه کسان چې په اوړو کې به یې خاورې اچولې او له خاورو ډک اوړه به یې پر خلکو خرڅول، ورته مې وویل دغه کار نور مه کوئ، ځکه چې دا یو جنایت دی.

هغو کسانو چې ژرندې یې درلودې او په ژرندو کې یې انسانان تړلي ول، خولې یې ور بندې کړې وې چې غنم ونه خوري، او ژرندې وګرځوي، هغوی ته مې وویل، باید له انسان سره د څناورو په شان چلند ونه کړي.

هغو قاضیانو ته ورغلم چې د یتمانو شتمنی به یې لوټلې او یا یې رشوت اخیست او نا حق حکمونه یې کول، ورته مې وویل، له دغو کارونو لاس واخلئ.

ما له ټولو شتمنو کسانو او چارواکو سره اړیکي ټینګ کړل او ټول مې ورته

هغوی زما د دغو خبرو په اورېدو حیران شول او زما زړو جامو ته به یې کتل، او رېدل به مې چې پخپلو کې به یې ویل، دغه سینوهه چې بېوزله سړی دی، بې له شکه د فرعون جاسوس دی او فرعون رالېږلی دی، چې زموږ پر حالت ځان پوه کړي، ځکه هغه کسان چې داسې بېوزله دي، د داسې خبرو جرئت نه شي کولای.

خو د پر ژر د مصر خانان او اشرافان پوه شول، چې زه د فرعون جاسوس نه یم او هغه دنده نه ده راسپارلې، چې دغه ډول خبرې وکړم.

دوی به خپلو مرییانو ته ویل چې، ما ووهي او له خپلو کورنو او ځایونو څخه به یې شړلم.

له دې وروسته چې شتمنو کسانو او سوداګرو زه د طبس په واټونو کې ژوبل او پرهرژلی ولیدم، راته ویل به یې، که یو ځل بیا راشې او موږ تورن کړې، چې له اوړو سره خاورې ګډوو، یا په شرابو کې سرکه اچوو، خرابه غوښه خرڅوو او د خپلو مرییانو خولې ګنډو، نو د درواغو د خپراوي او د امنیت د خرابولو د هڅې په جرم به دې قاضي ته ور وپیژنو او له تا څخه به شکایت وکړو.

کله چې ما ولیدل زما تبلیغ ګټه نه کوي او زه نه شم کولای، چې ظلم له منځه یوسم، په خلکو کې مساوات او عدالت راولم، بېرته کور ته راستون شوم، د حوض په څنګ کې تر ونو لاندې کېناستم او د کبانو په ننداره بوخت شوم.

د خړو غږاو په کوڅه کې د لوبېدونکو ماشومانو شور ماشور ته مې غوږ ونیو. تر هغې ورځې پورې چې کاپتا بیرته له سوریې څخه راستون شو او ماته راغی همدا حالت روان و.

پر کومه ورځ چې زما پخوانی مریی کور ته راننوت ډېر په پرتم کې و.

ما ولیدل چې پر یو روان تخت ناست دی او دوولس تورپوستي مریان یې لېږدوي.

پر بدن یې عطر وهلي دي، چې د بېوزلو له سیمې د تېرېدا پر وخت یې ناوړه او خراب بویونه ونه کړوي.

کاپتا ډېر چاغ شوی و او په ړنده سترګه کې یې د سرو زرو او غمیو یوه مصنوعي سترګه اېښې وه.

کله چې کېناست هغه سترګه یې لرې کړه، ځکه چې ځوراوه یې.

زما په لیدو سره په ژړا شو او بیا یې خبرې پیل کړې، ویې ویل، په سوریه کې جنګ پای ته رسېدونکی دی، ځکه چې هورم هب ټولې هغه سیمې او ښارونه نیولي، چې د هاتي

په ولکه کې ول، اوس یوزاې (کادش) ښار پاتې دی، چې هغه یې هم کلابند کړی دی.

بیا یې وویل په سوریه کې د جنګي غنیمتونو د پلور ټیکه له ماسره وه، ما د دغو غنیمتونو له پلورلو ډېره ګټه وکړه او اوس بیرته طبس ته راستون شوی یم.

په دې ښار کې مې یوه ماڼۍ اخیستې ده او اوس څو مریيان او کارګران زما په ماڼۍ کې د هغې د جوړولو او سینګارولو په کار بوخت دي.

زه به نور په طبس کې میخانه جوړه نه کړم، ځکه چې دومره شتمنې لرم چې دې کار ته نوره اړتیا نه وینم.

بیا یې زما په هکله خبرې وکړې او ویې ویل، زما باداره سینوهه! په دې ښار کې مې ستا په هکله ډېرې خطرناکې خبرې واورېدې.

خلکو وویل چې ته دلته بېوزلي مریيان او کارګران د شتمنو پر خلاف راپاروې او پر شتمنو او قاضیانو تهمت لګوې.

زه در ته نصیحت کووم چې احتیاط وکړه، ځکه که همداسې پر مخ لاړ شې، تا به د سختو کارونو لپاره معدن ته واستوي او که یې تر اوسه تا ته لاس نه دی دراچولی ددې لامل دا دی، چې پوهېږي د هورم هب ملګری یې او شتمن، خانان او سوداګر له هورم هبه ډارېږي.

خو اوس دا راته ووایه، چې ولې داسې لېونتوب کوې، ښایي زه وکړای شم، ددې لېونتوب چاره وکړم او هغه له منځه یوسم.

ما خبرې وکړې او ورته مې وویل چې په کومو فکرونو سره مې هڅه وکړه چې خلکو ته تبلیغ وکړم.

کاپتا وویل: سینوهه پخوا، ما ویل چې ته یو ساده او تقریباً لېونی سړی یې، او فکر مې کاوه چې د وخت په تېرېدا او د عمر په زیاتېدا به سم شې، خو اوس ګورم چې عمر دې ډېر دی او لېونتوب دې نور هم زیات شوی دی.

ته پخپله پوهېږې چې آتون څه ډول لوبې وکړې او څومره بدبختۍ یې رامنځته کړې، خلک یې څه ډول له بېوزلۍ، ناروغۍ او کاختۍ سره مخامخ کړل.

زه فکر کووم، دغه فکرونه چې ستا په سر کې ګرځي د وزګارتیا له امله دي او له دې کبله چې ته اوس ناروغان نه معالجه کوې، نو له دغسې خیالاتو سره مخامخ شوی یې.

که د پخوا په شان د ناروغانو معالجه وکړې، پوه به شې چې د یوه ناروغ معالجه به تر

دغو خبرو ډېره خوندوره وي، چې هم ستا لپاره خطرناکې دي او هم نورو خلکو ته ستونزې پيداکوي.

که نه غواړې چې طبابت وکړې، نو د نورو شتمنو کسانو په شان خپل وزګار وخت په نورو کارونو تېرولای شې.

که دې له ښکار سره مینه وای، درته ویلي به مې ول، چې د اوبو د اسونو ښکار ته لاړ شه، خو پوهېږم چې ته ښکاري نه يې.

که دې له پیشوګانو سره علاقه درلودای، تاته مې ویل چې د پیت آمون په شان پیشوګانې وروزه، نن سبا دغه سړی د لوکسو پیشوګانو د روزلو له امله په طبس کې ډېر مشهور دی، خو پوهېږم چې ته د پیشو ګانو له بویه کرکه کوې.

خو له ښکار او د پیشوګانو له روزلو پرته په نورو شیانو هم خپل وخت تېرولی شې.

مثلاً ته لیک لوست کولای شې او ځان په لیک لوست بوختولی شې او یا پخواني کتابونه راغونډولای شې.

یا د هرمونو د وخت د شیانو په راټولولو ځان بوخت ساتلی شې او یا د تورپوستو هغه لوبتکې او وړې مجسمې ټولې کړه، چې د کوش له ټاټوبي يې راوړې دي.

تر ټولو ښه خبره به دا وي چې خپل پاتې عمر په عیاشۍ او ساعت تېرۍ کې تېر کړې او بیا به وګورې چې ستا د عمر یو کال د یوې میاشتې په شان تېرېږي او یوه میاشت عمر به دې د یوې ورځې په شان تېرېږي.

ومې ویل کاپتا ! د دغو ظلمونو او تېريو کتل چې په کمزورو کسانو کېږي، ما نه پرېږدي چې اسوده ژوند وکړم.

کاپتا وویل زما باداره په دې نړۍ کې هېڅ شی بشپړ نه دی او هر څه یو ه نیمګړتیا لري.

کله چې له تنوره ډوډۍ راباسې، ګورې چې څنډې يې سوځېدلې دي او کله چې یوه مېوه په منځ نیموې، چې خولې ته يې یوسې، ګورې چې په منځ کې يې چینجی دی.

کله چې شراب د شپې وڅښل شي، د سهار خوا ته سر درد او کسالت پیدا کوي، نو دا تمه مه کوه، چې په دې نړۍ کې دې هر څه سم او پوره وي.

ناممکنه ده چې په نړۍ کې دې عدالت پوره شي.

ښه نیت هم ممکنه ده، چې ناوړه نتېجې ورکړي، مورږ ولیدل، چې د اخناتون په وخت کې، له دې سره سره چې فرعون ښه نیت درلود، خو د هغه د فیصلې پایلې څومره تاواني وې.

سینوهه ! زه یو عادي کس یم او پر هیڅ شي هم نه پوهېږم، خو له دې کبله چې تمه نه لرم، په دې دنیا کې دې بشپړ عدالت راشي، نو له ژونده پوره استفاده کووم.

نن قاضیان زما په مخکې له دې کبله سجده کوي چې پوهېږي شتمني لرم.

خو سینوهه ! ته چې د هېواد یو ستر کس وې او د فرعون ډاکټر وې، نن سبا په دې هېواد کې د یوه مریي هومره ارزښت او حیثیت هم نه لرې، ځکه چې پخپله دې داسې کار وکړ، چې دغه ورځ درباندې راشي او له هر څه دې ځان محروم کړ.

زما باداره ! که ته ددې دنیا د حالاتو مسوول وای، نو د خپګان حق به دې درلود، خو دغه دنیا تا نه ده پنځولې، نو ولې ځان خورې او اندېښنه کوې، چې په دې نړۍ کې عدالت نشته.

که زما خبره منې له دې فکرونو تېر شه او ددې لپاره چې بیا په دې سوچونو کې ډوب نه شې، ځان پر یو شي بوخت کړه.

که وکړای شې طبابت وکړې، تر ټولو غوره کار دی، ځکه زه تا پېژنم او پر دې پوهېږم چې ته د ناروغانو له معالجې خوند اخلې، نو دغه خوند ددې مخه نیسي چې دغسې فکرونه وکړې.

ومې ویل کاپتا ستا خبرو پر ما اغېز وکړ او سمه خبره کوې، چې که زه طبابت وکړم، د ناروغانو له معالجې خوند اخلم، خو تا د خبرو پر وخت د آتون خبره وکړه.

په داسې حال کې چې ددې خدای نوم اخیستل بند دي، نو ایا داسې کسان شته چې لا ددې خدای عبادت وکړي؟

ځکه که دغسې کسان نه وای تا ددې خدای په هکله فکر نه کاوه او د هغه نوم دې نه اخیست.

کاپتا وویل، زما باداره ! د آتون خدای د افق د ښار په شان هېر شوی دی، نور کوم کس هغه د خدای په توګه نه پېژني، خو لا هم ځینې هنرمندان شته چې د آتون د وخت د هنري رودو پیروي کوي.

هغه کیسه ویونکي هم تر اوسه شته چې د آتون د دورې نکلونه کوي او کله ناکله پر خارو یا د ټوالونو د حیات صلیب یانې د آتون صلیب تر سترګو کېږي.

که څه هم، چې څوک ددغه خدای عبادت نه کوي او عقیده هم پرې نه لري، خو هغه هېر شوی نه دی.

ومې ویل کاپتا ستا د نصیحت په اساس به زه د طبابت کار بیرته پیل کړم او له دې کبله چې ودې ویل، د عمر د تېرېدا لپاره باید ځان پر یو شي بوخت کړم او د ځینو شیانو کلکسیون جوړ کړم. نو زه به د هغو کسانو کلکسیون جوړ کړم، چې لا یې د آتون خدای نه دی هېر کړی.

کاپتا فکر کاوه، چې زه ټوکې کووم، نو د هغو شرابو په څښلو بوخت شو، چې موټې زموږ لپاره راوړي ول. ما هم شراب وڅښل او یوه موده مو سره خبرې وکړې.

کاپتا نشه شو او له دې کبله چې ډېر چاغ شوی و، له خپله ځایه نه شو پورته کېدای، مریيان یې راغلل او هغه یې پورته کړ، پر روان تخت یې سپور کړ او روان یې کړ.

خو پر بله ورځ کاپتا له ګران بیه ډالیو، سره چې ماته یې اخیستې وې، کور ته راغی او ما ته یې ډېر سره زر هم راوړي ول.

کاپتا وویل، باداره! هېڅکله دا اجازه مه ورکوه، چې د خوشحالۍ لپاره دې څه کم شي، ځکه چې زه دومره سره و سپین لرم چې څومره غواړې درته به یې راوړم.

خو نن ددې لپاره ډېر زر نه درکووم چې وېرېږم ټول به بېوزلو ته وبښې.

له دې ورځې وروسته مې د طبابت ښه پر خپلې دروازې ولګوله او ناروغانو راته مراجعه وکړه، هرچا له خپل وس سره سم یو شی راکاوه. ما به له بېوزلو فیس نه اخیست او هغوی به مې وړیا معالجه کول، خو له هغوی سره به مې د آتون په هکله په احتیاط خبرې کولې.

ددې لپاره مې احتیاط کاوه چې نه مې غوښتل، هغوی له ما وډار شي او تصور وکړي، چې ګني زه غواړم هغوی په آتون معتقد کړم.

ځکه که ډارېدلي وای، زما په هکله به یې نورې اوازې خپرولې، هسې هم په طبس کې بدنام شوی وم او دغو اوازو نور تاوان هم راته پېښاوه.

خو ډېر ژر پوه شوم چې آتون د یوه خدای په توګه بېخي هېر شوی دی او هېڅوک پرې باور نه لري.

یوازې هغه کسان چې ظلم پرې شوی وي او د خپل حق د ترلاسه کولو لپاره بله هېڅ وسیله ونه لري، ظالم د آتون پر صلیب سپاري، چې دغه صلیب او یا پخپله آتون ترې غچ واخلي.

په داسې حال کې چې پوهېدل، نه آتون او نه هم د هغه صلیب د دوی انتقام اخیستلی

شي.

په مني کې د نیل سیند له مُستېدا وروسته د مصر فرعون آمي مړ شو او اوازه خپره شوه، چې هغه له لوږې مړ شوی دی.

آمي له دې ډېر وېرېده چې څوک به زهر ورکړي، نو هېڅ شی به یې نه خوړل. ان که د هغه په مخکې به یې ډوډۍ پخه کړه، بیا به یې هم نه خوړله، ځکه تصور یې کاوه چې ددې ډوډۍ غنم یې هغه وخت زهرجن کړي چې لا په وږي کې ول.

# پينځه پنځوسم څپرکی

## هورم هب د مصر فرعون شو

کله چې هورم هب د آمي د مړينې خبر واورېد ، له دې سره سره چې کادش يې کلابند کړی و ، خو هغه يې همدا سې هاتي ته پرېښود او له سوريې څخه مصر ته راستون شو.

ددې لپاره چې په مصر کې خپل وروستي ارمان ته ورسېږي او د مصر فرعون شي.

*(هورم هب چې په ځينو دايراة المعارفونو کې يې نوم هرم هب هم ذکر شوی دی او لوستونکو يې تاريخ او مخينه د سينوهه په دې کتاب کې ولوستله د آمي له مړينې وروسته له سوريې څخه راستون او د مصر فرعون شو ژباړن).*

*د مصر په تاريخ کې د فرعونيانو د نولسمې لړۍ بنسټګر دی. په دې لړۍ له هورم هب پرته چې ددې لړۍ بنسټګر بلل کېږي نور فرعونيان په رامسس ياد شوي دي*

*د هورم هب زوی چې د شهزادګۍ باکتامون له نسله و ، هم د رامسس په نوم يا د شوی دی. د مصر په تاريخ کې د رامسس په نوم يوولس فرعونيان تېر شوي دي ، چې ځينې يې د فرعونيانو له نولسمې لړۍ څخه دي او ځينې يې له شلمې لړۍ څخه. تاريخپوهان پوهېږي چې په لرغوني مصر کې د فرعونيانو څلرويشت لړۍ تېرې شوې دي ، چې د ځينو لړيو (لکه نولسم پړاو ، چې هورم هب يې بنسټګر و ) د حکومت دوره اوږده شوې ده او سينوهه د هورم هب د پاچاهۍ د دورې پيل په دې کتاب کې ليکلی دی.*

*اصلي ژباړونکي د مصر په تاريخ کې د هغه د سلطنت پړاو له ميلاده ۱۳۵۰ کاله مخکې ليکلی دی ، کاشکې د لرغونو فرعونيانو په هرې لړۍ کې د سينوهه په شان کسان وای او دغسې کتابونه يې ليکلي وای ، چې د نړۍ خلکو د مصر د فرعونيانو د هر پړاو او لړۍ له تاريخ سره ډېر ښه اشنا شوي وای ژباړن )*

هورم هب آمي ته د يوه حقيقي فرعون په سترګه نه کتل او د خپلې پخوانۍ نقشې له مخې چې کله له سوريې راستون شو اعلان يې وکړ چې آمي يو جعلي فرعون و او د

مصريانو له وژلو، بدبخته کولو او جنګونو پرته بې بله هیله نه درلوده.

له دې کبله چې هغه درواغجن او جعلي فرعون و، بايد خلک د هغه د مرګ لپاره وير ونه کړي او د آمي مړى بايد په وادي السلاطين هديره کې ښخ نه شي.

هورم هب د جنګ د الهې د معبد دروازې بندې کړې او ویې ويل نور د جنګ پړاو پای ته ورسيد او زه هم هيڅکله د جنګ غوښتونکی نه وم، خو له دې کبله چې يو عسکر وم مجبور وم، چې د مصر د فرعونيانو په تېره بيا د آمي حکمونه ومنم.

کله چې خلک پوه شول. نور جنګ نه کېږي، د هورم هب لپاره یې نارې ووهلې او مصر ته يې د هغه راستنېدل بختور کار وباله.

هورم هب چې کله طبس ته راستون شو، زه يې وروغوښتم او ويې ويل. زما ملګريه سينوهه! زه تصور کووم چې زه او ته دواړه تر هغه وخته چې په وروستي ځل مو سره وليدل ډېر بوډاګان شوي يو.

زه ستا دا خبره نه هېروم چې ويل به دې، زه بې روحه او خونړى کس يم. خو له دې وروسته به جنګ ونه کړم، ځکه چې خپل هدف ته ورسېدم چې د مصر ساتنه وه.

له دې وروسته به هيڅ بهرني خطر مصر ونه ګواښي، ځکه چې ما د هاتي نېزې ورماتې کړې.

که څه هم کادش تر اوسه له هاتي سره دى، خو چې زما زوى رامسس لوى شو. هغه ځاى به هم ونيسي وروسته، به په مصر کې زما کار دا وي چې بايد د خپل زوى لپاره د مصر د پاچاهۍ تخت ډاډمن او يقيني کړم.

نن سبا مصر د يوه بېوزلي سړي د غوجلې په شان چټل او ګنده دى، خو وبه ګورې چې زه به دغه غوجله پاکه کړم، ظلم به له منځه يوسم او د هغه پر ځاى به عدالت ټينګ کړم.

په مصر کې به هر څوک له خپلې وړتيا سره سم انعام او تنخوا اخلي، ياني د مصر ملت به بيرته د پريمانۍ او مړښت پخواني وخت ته ستون شي.

له دې کبله چې دغه ملت د توت آنخ آمون او امي د پاچاهۍ په وخت کې ډېر کړاوونه زغملي او ډېره لوږه يې تېره کړې، نو زه به د دغو دوو فرعونيانو نومونه له منځه يوسم.

داسې به يې کړم چې ته وا د غو دوو کسانو هيڅ وجود نه درلود او پاچاهي يې نه ده کړې.

له دې کبله چې د اخناتون نوم هم حذف شوى او هېر شوى دى، نو زه به د خپلې پاچاهۍ

ورځې له هغو وختونو را پیل کړم، چې له خپل شاهین سره طبس ته ننوتم او له تاسره مې ولیدل.

زما د پاچاهۍ وخت به د درېیم آمون هوتب له مرګه وروسته پیلېږي. ځکه درېیم آمون هوتب په هغه شپه مړ شو چې زه طبس ته ننوتم او له تاسره مې وکتل.

بیا هورم هب خپل سر په دواړو لاسونو کې ونیو. ما ولیدل چې اوږدو جنګونو او د وخت تېرېدا د هغه په مخ کې ډېرې ګونځې پیدا کړې دي.

هورم هب په خپګان سره وویل: نن د مصر حالت زموږ د ځوانۍ په شان نه دی. زموږ په ځوانۍ کې بېوزله په نس ماړه ول او د کارګرانو او مریانو په جونګړو کې نباتي غوړي پیدا کېدل.

خو نن سبا نباتي غوړ د کارګرانو او مریانو لپاره د سروزرو په شان شوي دي او لاس یې نه ور رسېږي.

خو سینوهه! زه به تېر وختونه بیرته راستانه کړم، د مصر کروندې به بیرته ورغوم، په کانونو کې به بیرته کار پیل شي، د مصر بېړۍ به هر چیرته لاړې شي او د مصر د فرعون یانې زما خزانې به له سرو و سپینو ډکې شي.

زه به لوی معبدونه جوړ کړم او دغه هېواد به داسې اباد کړم، چې که ته تر لسو کلونو پورې ژوندی وې، په مصر کې به یو بېوزله او بېچاره ونه ګورې.

زه به په دغه هېواد کې فاسد او بېکاره کسان له دندو لرې کړم، ځکه چې د دغو کسانو شتون به د مصر د ملت وینه تباه کړي.

زما زوی تکړه کسانو ته اړتیا لري، چې له لوېیدو وروسته به ټوله نړۍ ونیسي.

دغو خبرو پر ما ښه اغېز ونه کړ، زه یې خوشحال نه کړم، بلکې زما روح یې خپه او غمجن کړ، سر مې ښکته واچاو او د هورم هب ځواب مې ورنه کړ.

هغه پوه شو چې زه یې په خبرو خپه او غمجن شوم، نو ویې ویل، سینوهه! ته د پخوا په شان یې او فرق دې نه دی کړی، همغه ډول چې پخوا به کله ما لیدلې حیران او خپه به شوم.

اوس هم ما ځوروې.

زه ځو مره خواشینی وم چې تصور مې کاوه ستا په لیدو به خوشحاله شم. ځکه طبس ته له راستنېدا وروسته ته لومړنی کس وې چې ما را وبللې چې په کتو دې خوشحاله شم

لا مې خپله مېرمن او بچیان نه دي کتلي، خو تا پخپله چوپتیا او دې غمجنې څېرې

سره زما غم نور هم زیات کړ.

زه په سوریه کې ډېر خپه وم، ځکه څوک مې نه درلودل، چې وکړای شم ورسره د زړه خبره وکړم او په ازاده توګه ورسره خپل رازونه ووایم.

هر ځل چې به مې له بل چا سره خبرې کولې، ډېر احتیاط به مې کاوه، چې کومه ناسنجول شوې خبره ونه کړم.

خو له دې کبله چې تا ځانته نږدې کس او خپل رازدار بولم، له تا سره هره خبره کولای شم او له خبرو څخه وېره نه لرم.

سینوهه زه ستا له دوستۍ پرته بل شی نه غواړم، خو ته دغه ساده دوستي چې هېڅ لګښت هم نه غواړي پر ما نه پېرزو کوې او اوس ګورم چې زما په لیدو نه خوشحالېږې.

ما خپل دواړه لاسونه پر ځنګنو کېښودل او د هغه په مخکې مې رکوع وکړه، ورته مې وویل: هورم هبه! ستا د ځوانۍ په ملګرو کې یوازې زه پاتې یم او نور ټول مړه شوي دي، باور وکړه چې پر ما ډېر ګران یې.

ته پوهېږې له تا سره زما ملګرتیا د سرو او سپینو لپاره نه ده او زه له تا څخه څوکۍ او مقام نه غواړم. پخوا هم له مادي تمې پرته پر ما ګران وې او په راتلونکې کې به هم له هر رنګه مادي تمې پرته پر ما ګران یې.

هورم هبه! ته نن د مصر تر ټولو غښتلې سړی یې او هېڅوک درسره سیالي نه شي کولای.

پوهېږم چې ډېر ژر به د مصر د پاچاهۍ تاج پر سر کېږدې او ددې هېواد د سترو فرعونیانو په ګدۍ به کېنې.

ټول مجبور دي چې ستا امر ته غاړه کېږدي او له دې کبله چې ته قدرت لرې، نو له تا غواړم چې د آتون د خدایۍ وخت بېرته راستون کړه.

که ته د آتون د خدایۍ وخت بېرته راولې خدای بښلی فرعون اخناتون به له تا خوشحال شي او زموږ ټول بوږنونکي جنایتونه به بېرته جبران شي.

د آتون خدای بېرته راستون کړه چې ټول خلک یو شان شي او جنګونه له منځه یوسي.

هورم هب وویل، که ته لېونی نه وای، دغسې خبرې دې نه کولې، ځکه چې د آتون د خدایي راستنېدل ناممکن کار دی او که ممکن هم وي ګټه نه لري.

هغه خبرې چې آتون کولې د یوې سترې ډبرې په شان وې، چې په یوه حوض کې واچول

شي، یوازې غږ وکړي او وبه راپورته کړي خو هېچا ته یې ګته ونه رسېږي.

کله چې اخناتون د آتون پلویتوب کاوه، د نورو خلکو په شان له خپل ژونده راضي او خوشحاله نه و، غوښتل یې هغه بدل کړي، ځکه یې اخناتون ته پناه یوړه.

انسان داسې دی، چې له خپل اوسني ژونده ناراضه وي او د تېر وخت ارمان کوي او یا فکر کوي، راتلونکی ژوند به یې تر نني ژونده ډېر ښه وي.

اخناتون په دغو فکرونو سره مصر او د هغه خلک داسې و زبېښل او بېوزله یې کړل، چې په هېڅ وخت کې یې ساری نه دی لیدل شوی.

خو زه له دې پرته چې د اتون د وخت خدایي بیرته راتازه کړم، داسې کارونه به وکړم، چې د بېوزله او شتمن تو پیر تر نن ورځې ډېر کم شي.

د دې کار لپاره پر شتمنو داسې زور راوړم، چې خپله شتمني له لاسه ورکړي او حتی د مصر خدایان هم زبېښنم چې ډېر چاغ شوي دي.

په بدل کې به یې په مصر کې د بېوزلو لپاره کروندګري، صنعت او تجارت ته داسې وده ورکړم، چې هغوی شتمنې وګټي او په دې ډول له دې پرته چې آتون بیرته راستون شي او په هېواد کې فتنه، لوږه او نا امنۍ رامنځته شي د آتون هدف به پوره شي.

خو ته زما په خبرو نه پوهېږې، ځکه چې ډېر کمزوری سړی یې او یو کمزوری سړی د یوه قوي او غښتلي سړي پر فیصلې ژر نه شي پوهېدای.

کمزوري سړی د یوه کمزوري ملت په شان، د دې لپاره رامنځته شوی، چې تر پښو لاندې شي، تر هغه چې نړۍ شته همدا اصول پکې شته دي او له دې وروسته به هم همداسې وي.

زه د هورم هب له وروستیو خبرو ډېر خپه شوم او پوه شوم چې د بریالیتوب، غرور، کبر او قدرت داسې نشه کړی، چې ان د ځوانۍ د وخت یوازیني پاتې ملګري ته هم توجه نه کوي او هغه ته ښکنځلې کوي.

په خوابدۍ سره له هغه جلا شوم، وپوهېدم چې نور زموږ ترمنځ ملګرتیا دوام نه شي کولی.

له دې وروسته چې زه لاړم، وا مې ورېدل، چې هورم هب خپلې مېرمنې او بچیانو ته ورغلی و، خپل بچیان یې په غېږ کې نیولي ول او بیا یې باکتامون ته ویلي و: اې زما شهزادګۍ! په دې موده کې چې زه په سوریه کې وم، هره شپه به ستا خیال د سپوږمۍ د

رڼا په شان زما شپې روښانولې.

ما غوښتل داسې کار وکړم چې ستا ور شم، خو له دې وروسته لکه چې ته پخپله یې هم منې زه دغه وړتیا او لیاقت لرم او ته به زما تر څنګ د مصر د پاچاهۍ پر تخت ناسته یې.

ددې پاچاهۍ په قدر پوه شه، ځکه ددې لپاره چې تا د سلطنت په ګدۍ کېنوم، ډیرې وینې مې وبهولې، ډېر ښارونه مې وران کړل او اوس یې د انعام او بدلې په فکر کې یم.

باکتامون موسکۍ شوه او لاس یې د هورم هب پر غښتلو متو کېښود. ویې ویل، رښتیا وایې، ته د انعام او جایزې وړتیا لرې او دغه انعام ما مخکې له مخکې درکړی دی.

له همدې امله مې ستا په نه شتون کې یو جونګړه جوړه کړې، زه هم له یو ازیتوبه په تنګ شوې وم. ددې جونګړې ډېرې مې پخپله برابرې کړې دي.

اوس راشه چې دې جونګړې ته ورشو، چې خپل انعام پخپلې غېږې سره درکړم.

هورم هب په دې خبره ډېر خوشال شو او شهزادګۍ له باغه تېر کړ.

کله چې د زرینې ماڼۍ او سپېدونکو کتل چې باکتامون هورم هب له ځان سره هغې جونګړې ته بیایي چې دې جوړه کړې وه، داسې وډار شول چې ټولو ځانونه پټ کړل.

مریان او نوکران خو ان له غوجلې څخه هم وتښتېدل، ځکه اټکل یې کاوه چې کله هورم هب پوه شي، دغه جونګړه څنګه جوړه شوې، نو وینې به وبهوي.

کله چې دې جونګړې ته ورسېدل، هورم هب وغوښتل چې شهزادګۍ په غېږ کې ونیسي، خو دې ښځې ورته وویل، هورم هبه لږ صبر وکړه، چې زه درته ووایم دغه جونګړه مې څنګه جوړه کړې؟

ایا په زړه دې دي، په وروستي ځل چې په زور دې په غیږ کې ونیولم ما څه درته ویلي ول؟

ایا یاد دې، دي چې ما ګواښلی وې ویلي مې وو، زه به له ټولو نارینه وو سره څملم؟

ما پخپلې وعدې عمل کړی او په دې پوه شه، چې ددې کور هره ډبره چې ګورې، یوه سړي راته د یو ځل څملاستلو په بدل کې راکړې ده.

ددې کور هره ډبره له یوه نارینه سره زما د څملاستو خاطره ده او دغه کور مې ددې لپاره چې له تا غچ واخلم تاته جوړ کړ.

کله چې به یو نارینه ډبره راته راوړه ما به خپل ځان ورپېژانده، چې د چا مېرمن یم، چې په دې ډول هغه پوه شي، د مصر د پوځ د قوماندان او ستر سردار هورم هب مېرمن یې په

غېږ کې نیولې ده او ان یو ځل مې هم دغه خبره نه ده هېره کړې.

د مثال په توګه دغه لو یه سپینه ډبره چې ګورې، یوه کب نیونکي راکړې ده. دغه شنه ډبره چې ګورې د سکرو یو پلورونکي راکړې ده او دغه اوو دانې قهوه اي ډبرې، یوه سبزي پلورونکې راکړې او له ما سره ویده شو.

اې هورم هبه! که ته حوصله لرې، زه به هره ورځ د یوې ډبرې برخلیک درته ووایم او هره شپه به د یوې ډبرې کیسه درته وکړم.

ډاډه درکووم چې هره کیسه به تر بلې ډېره خوندوره وي، ځکه هر ځل چې به له یوه مین سره ځملاستم بیل خوند مې ترې اخیستی دی.

زه باور لرم چې کله ته د دغه ډبرو په کیسو پوه شې له ما سره له تفریح کولو به خوند واخلې ځکه چې دغه ډول کیسې دهغه نارینه لپاره چې غواړي له خپلې ښځې خوند واخلي د خوړو د اچارو او مصالحو په شان وي اوس دغه کور ته ځیر شه او ګوره چې څومره ډبرې پکې کارول شوي دي او بیا یې وشمیره چې زه ستا په غیاب کې څو ځله له پردیو سره ځملاستلې یم او اټکل وکړه چې که زه وغواړم د هرې ډبرې کیسه درته وکړم څو کاله وخت به واخلي.

زه فکر کوم که وغواړم د دغو ډبرو کیسې درته بیان کړم تر هغه به دوام وکړي، چې موږ بوډاګان شو، بیا به هم زما کیسې پای ته ونه رسېږي.

هورم هب تصور وکړ، چې شهزادګۍ ټوکې کوي، خو چې د باکتامون سترګو ته یې وکتل، پوه شو چې د هغې له سترګو هم وژونکې کینه او دښمني احساسېږي.

هورم هب پوه شو، چې دغه ښځه ربښتیا وایي، خپله وسپنیزه چاړه یې چې په هاتي هډوکو یې جوړه کړې وه راوایستله چې باکتامون ووژني.

شهزادګۍ خپل کمیس وشکاوه او سینه یې هغه ته ورونښودله، ناره یې کړې، هورم هبه وهه..... وهه ..... خپله چاړه زما په ټټر کې ښخه کړه! چې د مصر د پاچاهۍ خوب بلې دنیا ته یوسې، ځکه چې زه هم د فرعون لور یم او هم د جنګ د معبد سخمت الهه او څوک چې د فرعون او یوه خدای لور ووژني هېڅکله به پاچا نه شي.

هورم هب له دې خبرې سره په کرار شو، ځکه چې پوه شو شهزادګۍ ربښتیا وایي، د هغه پاچاهي د باکتامون په شتون پورې تړلې ده او که دغه ښځه ووژني هېڅکله به د مصر فرعون نه شي.

په دې ډول شهزادګۍ باکتامون له خپل مېړه، چې دا یې په زور کړې وه، په دې ډول غچ واخیست، هورم هب حتی جرئت ونه کړ، چې دغه کور وران کړي او د کور ډبرې بل ځای ته ولېږدوي.

ځکه که یې دغه ودانۍ ورانولی او ډبرې یې بل ځای ته لېږدول، نو دا ډنډوره یې پخپله وهله، چې دغه کور څنګه جوړ شوی دی.

ځان یې په بې خبرۍ وواهه او داسې یې وښودله، چې نه پوهېږي مېرمنې یې دغه کور څنګه جوړ کړی دی، د خلکو ملنډې او پېغورونه یې په ځان ومنل چې دده په غیاب کې به یې کول.

خوله دې ورځې وروسته یې له مېرمن باکتامون سره واده ونه کړ او دا خبره هم باید وکړم، چې شهزادګۍ هم خپله روده ببخي بدله کړه او چاوانه ورېدل، چې هغې له کوم چا سره تفریح کړې وي.

په دې ډول هورم هب، په رسمي توګه د مصر فرعون شو او په معبد کې یې د مصر تاج پر سر کېښود.

خو زه پوهېدم چې په کومه شېبه کې کاهنان د هغه پر سر معطر تېل موښي او تاج یې پر سر ږدي، هغه له زړه خپه دی، ځکه پوهېده، ټول هغه کسان چې په دې معبد کې شته دي، په زړه کې پرې ملنډې وهي.

دوی د هورم هب هېڅ پوځي ویاړ ته نه ګوري، مګر ددې پر خلاف په خپل ذهن کې د شهزادګۍ د جوړ کړي کور ډبرې شماري.

له دې وروسته چې هورم هب د مصر فرعون شو، پر ټولو بدګمانه شو.

فکر یې کاوه ټول په غیاب کې پر هغه ملنډې وهي او دغه موضوع هغه غشي ته ورته وه، چې د هورم هب په ټټر کې ننبتی وي چې بهر یې نه شي را ایستلی.

ددې لپاره چې خپل غم هېر کړي سخت کار یې کاوه، لکه چې خپله یې ویلي ول، فیصله یې وکړه، دغه چټله غوجله پر یوه پاک ځای بدله کړي، ظلم له منځه یوسي او د بې عدالتۍ پر ځای نیاو واکمن کړي.

ددې لپاره چې بې انصافي ونه شي، باید ووایم، له دې سره سره چې هورم هب کله وزېږېد، په پنجو کې یې خوشایي ننبتي ول او په پاچاهۍ نه پوهېده، خو کله چې فرعون شو دا یې ثابته کړه، چې یو تکړه پاچا دی.

د هغه د پاچاهۍ څو کاله نه و تېر شوي، چې د مصر ملت یې ستاینه پیل کړه او هغه یې د مصر په سترو فرعونانو کې وشمېره.

یو کار چې هورم هب وکړ او تر هغه مخکې هېڅ فرعون نه و کړی دا و، چې درباریانو او حکومتي چارواکو کې یې تجملات له منځه یوړل.

هورم هب پوه شو چې د مصر د دربار یانو د فساد علت دا نه دی، چې غونبې او ډوډۍ ته اړتیا لري، بلکې له دې امله فاسد شوي، چې په تجملاتو او لوکس ژوند کې له یو بل سره سیالي کوي.

هر څوک غواړي تر نورو ښکلې ماڼۍ او محل جوړ کړي او پخپلو کورنو کې ډېر مریان او وینځې ولري او هره ورځ و شپه د ځان لپاره نوې بوختیاوې او سرګرمۍ پیدا کړي.

هغه پوه شو تر هغه وخته چې د مصر د دربار یانو پوځي او ملکي چارواکو تر منځ دغه ډول سیالي موجوده وي، ناممکنه ده، چې فساد له منځه یوسي. ځکه چې د هغوی اړتیاوې نه پوره کېږي او دا څوک نه شي ویلای، چې کله ماړه شول او اړتیاوې یې پوره شوې، نو بیا به له فساده لاس اخلي او رشوتونه به نه اخلي.

هورم هب په مصر کې لومړنی فرعون دی، چې د مالیاتو د ترلاسه کوونکو مامورینو تنخوا یې د حکومت له خزانې ورکړه، نه دا چې مالیه ورکوونکي دې راشي او دغو مامورینو ته دې رشوت ورکړي.

تر هورم هب مخکې دود داسې و، چې د مالیاتو محصل یا مامور به له حکومت سره د یو قرارداد له مخې د یوې سیمې د مالیاتو د راغونډولو دنده واخیسته او بیا به یې له هغو مالیاتو څو برابره مالیه له خلکو اخیستله چې حکومت به ټاکلې وه.

هورم هب، دغه دود مات کړ او د هرې سیمې مالیه یې په قطعي توګه، معلومه کړه.

د مالیاتو مامورینو ته یې تنخوا هم له خزانې ورکوله، چې د مزد په توګه له خلکو نور څه وانه خلي او پر خلکو فشار رانه شي.

د قاضیانو په هکله یې هم همداسې وکړل او د هرې پرګنې لپاره یې تنخوا معلومه کړه، چې د حکومت له خزانې به یې ورکوله.

قاضیانو حق نه درلود، چې د خلکو د مسلو په اړه د قضاوت په بدل کې د اجورې په توګه له هغوی څخه سپین او یا مس واخلي.

ددې لپاره چې هورم هب تجملات له منځه یوسي، له ځانه يې پيل وکړ.

دی دې پايلې ته ورسېد، تر هغه چې ټپخپله فرعون اشرافي ژوند پرې نه ږدي او له تجملاتو لاس وانه خلي، مصريان به ځاني او اشرافيت پرې نه ږدي.

هغه به په ساده جامو کې له خپلو سپاهيانو سره په ښار کې ګرځېده او تر شا به يې د حريصو او رشوت خورو ماليه ټولوونکو او قاضيانو پوزې او غوږونه پر ځمکه تويېدل.

دا ځکه چې هورم هب له رحم کولو پرته د هغوی پوزې او غوږونه پرې کول او هغوی به يې د اجباري کار لپاره کانونو ته استول.

هغه نور کارونه چې هورم هب په مصر کې وکړل دا و، چې تل به په ولايتونو کې ګرځېد او خلکو ته يې ازادي ورکړې، چې هر څوک له قاضيانو او د ماليې له مامورينو شکايت کوي نېغ په نېغه دې پخپله ده ته ورشي.

تر ټولو بېوزله کروندګر به هم له کومې واسطې پرته هورم هب ته مراجعه کولای شوه او هغه ته به يې خپل شکايت وړاندې کړ.

کله چې به فرعون دچا شکايت اورېد، تر هغه به بل لوري ته نه روانېده چې د کروندګر شکايت ته توجه ونه شي.

د هورم هب د کار اغېز په یوې ورځې او دوو کې څرګند نه شو خو ورو ورو په مصر کې خلکو بدلون احساس کړ او له هغه وروسته د مالياتو مامورينو جرئت نه شو کولای، چې د کروندګرو او ماليه ورکونکو په مالياتو ځان شتمن کړي.

له هغه وروسته قاضيانو نه شو کولای، په رشوت سره ناحقې فيصلې وکړي او د مصر خدايان هم د مالياتو د مامورينو په شان مجبور شول چې خپله تمه کمه کړي.

له یوې خوا د مصر د درباريانو، خانانو او کاهنانو شتمني کمه شوه او له بلې خوا بېوزله کسان شتمن شول، ځکه چا پرې ظلم نه کاوه، د مالياتو مامورينو يې شتمني نه لوټله او مزدوري يې بل چا نه وړله، په دې ډول هغوی شتمن شول.

د مصر بېړيو تل د تورې خاورې او نورو ملکونو تر منځ تګ راتګ کاوه او که له لسو تلونکو بېړيو څخه پنځه په سمندر کې ډوبېدلې، پنځو نورو دومره ګران بيه شيان راوړل چې د پنځو بېړيو زيان به يې پوره کړ او پردې سربېره به يې مصر ته ډېره ګټه هم ورسوله

هورم هب د مصر د ترقۍ او د ظلم د ختمولو لپاره هلې ځلې وکړې چې د (نت نت سوت) په معبد کې يې د يوه خدای په توګه عبادت کېده او د هغه لپاره به يې د غواګانو

قرباني کوله او د(هت نت سوت )او هورم هب خداي يو شو.

زما پخواني مريي په داسې حال کې چې نور خانان بېوزله کېدل، هغه ورځ پر ورځ شتمن کېده، چا د هغه لپاره ستونزې نه پېښولې ځکه هغه زوی نه درلود او هورم هب يې خپل وارث ټاکلی و.

ددې لپاره چې ارام ژوند وکړي، له همدې امله هورم هب هغه ته هېڅ هم نه ويل او د مالياتو د ترلاسه کولو مامورينو هم هغه نه تنګاوه.

کاپتا به د اشرافو په سيمه کې خپلې مانۍ ته ډېر وربللم او له دې کبله چې لوی باغ يې درلود. ګاونډيانو به ورته مزاحمت نه شو کولای.

کاپتا خپله مانۍ د کرت د مانيو په شان جوړه کړه او د مانۍ په کوټو کې د اوبو نلونه جوړ شوي ول.

په تشنابونو کې هم د کرت د کورنو په شان تل اوبه بهېدې او هر ځل چې به زه دده مانۍ ته تلم ليدل به مې، چې هغه د سرو زرو په لوښي کې ډوډۍ خوري.

د ډوډۍ په وخت کې به د طبس نڅاګرې زمونږ په مخکې ګډېدلې او مونږ به يې بوخت ساتلو.

کاپتا د مرييتوب د وخت ځينې عادتونه ساتلي ول، مثلاً له ډوډۍ خوړلو وروسته به يې اروږمي ايستل او کله به يې ګوته په پوزه کې دننه کړه.

خو له دې سره سره چې کله به يې عمومي مېلمستياوې کولې، نو خانان او اشرافو به د هغه مېلمستياوو ته راتلل، ځکه چې کاپتا به خانانو ته ګران بيه ډالۍ ورکولې او په مالي چارو کې به يې ورسره مرسته کوله.

هرځل چې کاپتا عمومي مېلمستيا کوله او خانان يې کور ته راتلل هغه به د دوی، د مصروفولو لپاره ځان د مريې په شان کړ او د يو چالاک او غله مريي پېښې به يې کولې، چې غواړي د خپل بادار شيان غلا کړي.

په دې نه شرمېده چې دغه کارونه به د هغه مخينه د مليمنو په ذهنونو کې تازه کړي.

کاپتا دومره مشهور او شتمن شوی و، چې د خپل پخواني ژوند له خاطرو به نه وېرېده، چې کومه ستونزه به ورته پېښه کړي.

ماته يې وويل، زما باداره سينوهه ! کله چې د يوه کس شتمني له حده زياته شي، نور نه بېوزله کېږي او ورځ تر بلې يې شتمني نوره هم زياتېږي، حتی که پخپله وهم نه غواړي چې

شتمني يې زياته شي.

خو دغه شتمني چې زه يې لرم ټوله ستا ده او له همدې لامله، دې زه خپل بادار بولم.

که څه هم نن سبا په طبس کې تر ما بل شتمن کس نشته، خو تر هغه وخته چې ژوندی يې زه به ستا اړتياوې درپوره کووم.

خو خپله شتمني تا ته نه شم درکولای، ځکه چې پوهېږم که خپله ټوله شتمني درکړم يو کال وروسته به بېوزله يې.

ته داسې سړی نه يې چې شتمني وساتې او که تا خپل جايداد ساتلی اوس به دې د آتون د خدای په لاره کې نه وو ورکړی او نن به د مصر، سوريې، هاتي او بابل تر ټولو شتمن کس وې.

خو په دې مه خپه کېږه چې شتمن نه يې، ځکه چې زه به ستا د عمر تر پايه پورې هر څومره سپين او سره چې وغواړې درکړم.

له دې سره سره چې کاپتا ليک لوست نه شو کولای، خو د هنرمندانو ملاتړ يې کاوه او مجسمه جوړوونکو د هغه څو مجسمې هم جوړې کړې وې.

په دغو مجسمو کې کاپتا نسبتاً ځوان او له پرتمه ډک ښکارېده او دواړه سترګې يې روغې وې، په يوه لاس کې يې د ليکلو قلم او په بل کې يې يوه لوحه ښکارېده، چې په څنګنو يې ايښې وه.

هر چا به چې دغه مجسمه ليدله، فکر يې کاوه چې کاپتا پوه او عالم سړی دی، چې ليک لوست کولای شي او پخپله کاپتا چې به دغه مجسمې کتلې، خندل به يې.

له دې کبله چې آمون خدای ته يې ډېرې ډالۍ ورکړې وې، د هغه يوه مجسمه يې د آمون په ستر معبد کې ايښې وه.

کاپتا د مړيو په ښار کې (د طبس د ښار هديره. ژباړن) د ځان لپاره يو ستر قبر جوړ کړی و او امر يې کړی و، چې هنرمندان د قبر په دېوالونو کې د هغه ستر انځورونه جوړ کړي.

په دغو انځورونو کې کاپتا چې سترګه يې روغه کېنبل شوې وه او ځوان ښکارېده، په ورځينو کارونو بوخت و، چې د خدايانو لپاره قرباني کوي.

کاپتا دې لپاره دغسې انځورونه کېنبلي ول، چې په ژوند کې يې خلک ډېر غولولي و اوس يې غوښتل په دې ډول انځورونو سره خدايان هم وغولوي او په لوېديزه نړۍ کې هم په پرتم او اسودګۍ کې ژوند وکړي.

يو شی چې د کاپتا په قبر کې اېښودل شوی و د امواتو د کتاب يوه نسخه وه، چې ما تر

هغه ښکلی او جامع کتاب نه و لیدلی (*د امواتو یا د مړیو کتاب تر ټولو پخوانی مذهبي او اخلاقي کتاب دی، چې بشر لیکلی دی او نن سبا هم موجود دی. د دغه کتاب یوه نسخه د مصر په کیندنو کې موندل شوې او اوس د نړۍ په یوه موزیم کې ساتل کېږي ژباړن*)

دغه کتاب د مصر هنرمندانو او کاهنانو په دوولس طومارونو لیکلی او انځور کړی دی او د دې کتاب یو طور په دې اړه و، چې څه ډول د اوزیرس د ترازو شاهین په بلې نړۍ کې د کاپتا په ګټه وښوروي، څه ډول په جعلي ډبرو سره د دې ترازو یوه خوا د کاپتا په ګټه درنه کړي او څه ډول ځلونښت بیزو ګانې وغولوي

ما د کاپتا له شتمنۍ سره له دې امله بخیلي نه کوله، چې هغه ما د پخوا په شان خپل بادار بولي. بلکې له لویه سره ما دا عادت نه درلود او هېڅکله مې د چا له شتمنۍ او څوکۍ سره بخیلي نه ده کړې.

کله چې زه ګورم یو کس ډېر کبرجن او ځان غوښتونکی دی او په ډېرو کمزورو او بې اساسه شیانو غرور کوي، نو هڅه نه کووم، چې هغه اصلاح کړم او ورته ووایم چې باید په داسې شیانو پورې زړه ونه تړل شي چې اساس او بنسټ نه لري.

ځکه چې پوهېږم حقیقت داسې تریخ دی، چې کله خو د یوه اورېدونکي لپاره د یو کس تر وژلو هم سخت وي او وګړي کولای شي یو عمر له هغو چټي خیالونو سره هم ځان خوشال وساتي، چې دی راضي کوي او د غرور احساس پکې پیاوړی کوي، خو له حقیقت سره یوه شېبه هم ژوند نه شي کولای.

په هغو کلونو کې چې هورم هب په مصر کې حکومت کاوه، زه په طبس کې د ناروغانو په معالجې او د جمجمې او کوپړیو په سوري کولو بوخت وم.

له دې کبله چې یو شمېر هغه کسان، چې ما یې سرونه ورسوري کړي ول، معالجه شوي ول، نو له لرې ځایونو هم ناروغان راته راتلل چې درملنه یې وکړم.

له څو کلونو طبابت وروسته چې پکې خوشالوم، یو ځل بیا پوه شوم چې د چاپېریال حالت مې ځوروي او خپه کوي.

کاپتا ته مې وویل، ستا دغه اشرافي ژوند او خوراک څښاک مې نور نه خوښېږي او ترې کرکه کووم.

کاهنانو ته مې هم د ډېرو خوړو، شرابو او عیاشۍ له امله سپکې سپورې ویلې.

یوه شي چې ډېر ځورولم دا و، چې هورم هب خپلو عسکرو ته له حده زیاته ازادي

ورکړې وه او هغوی چې بل کار نه درلود له سهاره تر بېګا پورې به په میخانو کې او له شپې تر سهاره به په فاحشه خانو کې ول.

ځرنګه چې عسکر له چا څخه نه وېرېدل نو د طبس په واټونو کې به یې د خلکو نجونو او میرمنو ته ستونزې پېښولې، په زور به یې هغوی فاحشه خانو او د نیل د غاړې شراب خانو ته بېولې او تفریح به یې ورسره کوله.

که به چا د هورم هب له یوه عسکره شکایت کاوه او ویل به یې چې دغه عسکر په زور دده له مېرمنې یا لور سره ځملاستلی دی، هورم هب به ویل خوشحاله اوسه چې زما عسکر ستا له مېرمنې یا لور سره تفریح کړې ده، ځکه چې ستا یو زوی به زیات شي او زه په مصر کې د سپاهیانو لپاره ډېرو کسانو ته اړتیا لرم.

هغه ځواب چې هورم هب به معترضینو ته ورکاوه له دې امله و، چې هغه له ښځو کرکه کوله، ځکه مخکې مې وویل چې شهزادګۍ باکتامون له هغه څخه ډول غچ واخیست.

له هغه وروسته هورم هب نه شو کولای ښځه وزغمي او له ټولو ښځو سره یې دښمني او کینه درلوده.

خو ما ته د زغملو نه و، چې د هورم هب یو عسکر ددې لپاره چې یوه ورځ په سوریه کې د هاتي له عسکرو سره جنګېدلی دی، دغسې جنایتونه وکړي، خلک ژوبل کړي او یا پر ښځو تېری وکړي.

هغوی به له سوداګرو قلنګ غوښت او که کوم سوداګر به ډېره کوله پر هغه به یې حمله کوله، دوکان به یې وروران کړ او شیان به یې لوټ کړل.

ما به په ښکاره ویل چې عسکر ددې لپاره پیدا شوي، چې له بهرني دښمن سره وجنګېږي او هغه عسکر چې په هېواد کې دننه پر خپلو هېوادوالو تېری کوي. له طاعونه هم خطرناک دي.

هر قوماندان چې د دغسې عسکرو ملاتړ کوي، باید له منځه لاړ شي، حتی که هغه د مصر فرعون هم وي.

دغه نیوکې به مې په لوړ غږ کولې او له چا څخه نه وېرېدم.

عسکرو به اورېدلې خو جرائت یې نه شو کولای، چې پر ما حمله وکړي، ځکه پوهېدل چې زه بېوزله کسان معالجه کووم. نو پر هغوی ګران یم او دغه راز پوهېدل چې د هورم هب نږدې ملګری هم یم.

# شپږ پنځوسم څپرکی

## څه ډول هورم هب له مصره جلاوطن کړم

کله چې پسرلی شو د نيل اوبه ښکته شوې او توتکيو الوتونه پيل کړل.

يوه ورځ د هورم هب يو شمېر عسکرو زما پر کور حمله وکړه او بېوزله ناروغان يې چې هلته د معالجې لپاره راغلي ول، له کوره را و ايستل او زه يې هورم هب ته بوتلم.

له څو کلونو راهيسې مې هورم هب نه و ليدلی او پر دې ورځ چې مې هغه وليد پوه شوم چې بوډا شوی دی او په مخ کې يې ګونځې پيدا شوې دي، څټ يې ډډ شوی او ملا يې تر يوه حده کړوپه شوې وه.

کله چې هورم هب وليدم ويې ويل: سينوهه ! ما څو ځله اخطار درکړی، چې ځينې خبرې مه کوه خو تا زما ګواښونو ته توجه ونه کړه او پر ما ملنډې وهې.

ته په مصر کې خلکو ته وايې چې عسکري تر ټولو ټيټ او رزيل کار دی او که يو ماشوم د مور په نس کې مړ شي، تر دې ډېر ښه دی، چې نړۍ ته سترګې رڼې کړي او بيا عسکر شي.

له دې سره سره چې ته پوهېږې زه غواړم، د مصر نفوس ډېر شي او زه وکړای شم د پوځ لپاره ډېر کسان وګمارم.

خو ته بيا هم وايې چې د هرې کورنۍ لپاره دوه يا درې بچيان بس دي، که هره ښځه او مېړه په دوو يا دريو بچيانو اکتفا وکړي او هغوی سم وروزي، تر دې به ډېره ښه وي، چې لس بچيان ولري خو زامن يې جواليان يا عسکر شي او پخپله مېړه او خاوند له لوږې مړه شي.

ته وايې چې د مصر ټول خدايان يو شان دي، يو له بله غوره نه دي او په ټولو معبدونو کې ټنبل او خېټور کاهنان ناست دي.

ته خلکو ته وایې چې یو کس حق نه لري، حتی بل کس ووهي او مړیې یې کړي
دغه راز ته وایې، په ټول مصر کې، چې هر کروندګر په کومه ځمکه چې کار کوي او قولبه پکې کوي، باید دد ې ځمکې خاوند هم وي، حتی که دغه ځمکه د مصر د فرعون هورم هب هم وي.

تا خلکو ته ویلي، چې زما پاچاهي د هاتي له پاچاهۍ سره توپیر نه لري، ځکه همغه ډول چې هاتي خلک وژني او په زور د خلکو له نجونو او مېرمنو سره تفریح کوي، زما عسکر هم مصریان وژني او د مصریانو پر لونو او مېرمنو تېري کوي. دغه ټولې خبرې زما جاسوسانو راته کړې دي، خو تر اوسه مې ستا پر خلاف اقدام نه دی کړی، ځکه چې ته مې پخوانی ملګری یې.

تر هغه وخته چې آمي ژوندی و، ما تاته اړتیا درلوده، چې د ضرورت پر وخت شهادت ورکړې، چې آمي څه ډول کارونه کړي دي؟

خو له دې وروسته چې آمي مړ شو، زه تاته اړتیا نه لرم او نور دې ماته ګټه نه رسېږي، بلکې په هغو شیانو چې ته خبر یې، ښایي ماته ستونزې پیدا کړې

که تا خپله خوله بنده ساتلې وای او زما په عسکرو او حکومت پسې دې سپکې سپورې نه وای ویلې، د عمر تر پایه دې په دې هیواد کې ژوند کولی شو.

ته یو ډاکټر یې، د ناروغانو د معالجې په فیس دې خپل ژوند کولای شو، خو سینوهه! ته په کرار نه شې پاتې کېدای او داسې ښکاري چې مجبور یې تل په ما او زما په عسکرو پسې سپکې سپورې ووایې.

زه نور نه شم کولای چې تر دې زیات د خپل حکومت پر خلاف له تا څخه څه واورم. له دې خبرې وروسته هورم هب په قهر شو او څو ځله یې پر خپله متروکه باندې خپلې پښې ووهلې او ویې ویل: سینوهه! ته نن د ځمکې د چینجي په شان یې چې زما په باغ کې ځمکه خرابوي او د بوټو د ودې مخه نیسي.

ته نن د هغه غوړ مچ په شان یې چې زما پر اوږو کېني او ما ځوروي. ته نن هغه بوټي ته ورته یې چې زما په باغ کې تو کېدلی وي، خو د ګل یا مېوې پر ځای اغزي کوي او زه به دغه مضر بوټی له ریښې وباسم او لرې به یې ګوزار کړم.

اوس د پسرلي موسم دی، تو تکی الوت کوي، په هوا کې سندرې وایي، زاڼې خپلې مېنو کې سره موښي او د اکاسي ونې ګلان کوي.

د پسرلي موسم د څناورو او ځوانانو لپاره د هيجان او مستۍ موسم دی، ځکه چې په دې موسم کې د طبيعت غوښتنه دا وي، چې هر شی له يو بل سره مينه وکړي.

خو ستا په شان بوډا ګان نور نه شي کولای، چې عشق او مينه وکړي. ستا په شان بوډا ګان چې نور مينه او عشق نه شي کولای په پسرلي کې د هغه ځواک له امله، چې تر لاسه کوي يې په خبرو راځي او اوتې بوتې وايي.

زه تصور کووم چې ستا دغه بې ځايه خبرې ددې سبب شوې، چې ځينې کسان په معبدونو کې زما انځورونو ته چيکړې ور وشيندي او په يوه معبد کې يې زما د مجسمې غوږونه او پوزه مات کړي دي.

له همدې امله مجبور يم چې تا له مصره جلا وطن کړم، ځکه که ته په مصر کې پاتې شې، ما به دومره په قهر کړې، چې بې واکه به شم او ښايي تا ووژنم.

خو زه نه غواړم چې زما په امر مړ شې، ځکه چې زما د ځوانۍ يوازېنی ملګری يې، چې لا ژوندی پاتې يې.

سينوهه! زه دې له مصره جلا وطن کووم او تر هغه وخته، چې زه د مصر فرعون يم، ته مصر ته نه شې راستنېدای او هېڅکله به د طبس څېره ونه ګورې.

ستا خبرې د اور هغه لمبې دي، چې د وچو وښو په يوه ورشو کې بل شي او په يوه ځل ټول وسوځوي.

کله چې اور بل شو، بيا ددې وچو وښو د اور خاموشه کول، ناممکنه شي او زه پوه شوم چې ځينې وخت خبرې تر نېزې خطرناکې وي.

هغه کسان چې خطرناکې خبرې کوي بايد له منځه يووړل شي له همدې امله د هاتي د هېواد او سېدونکي کوډګر په سيخانو کې ورکوي، ځکه چې پوهېږي دغه کسان پخپلو خبرو سره فتنې پيدا کوي.

زه نه غواړم چې مصر ستا د فتنو له امله له خدايانو سره په يوه بل جنګ کې ښکېل شي.

سينوهه! له همدې امله تا له دې ښاره جلاوطن کووم، ځکه چې ته که څه هم لېونی نه يې، خو عادي سړی نه يې او داسې ښکاري، چې له دې نړۍ لرې په يوه بله نړۍ کې ژوند کوې.

ښايي هورم هب سمه خبره کوله، زه به عادي سړی نه وم او ښايي له دې امله عادي نه

ښکارېدم، چې د مصر د خدایانو یانې د فرعون او د میتاني د هېواد د شهزادګۍ وینه زما په رګونو کې وه.

له دې سره سره کله چې ما د هورم هب خبرې واورېدې ومې خندل او هورم هب په دې خندا سره نور هم غوسه شو، پخپله متروکه یې خپلې پونډۍ ووهلې او ویې ویل، سینوهه ! د خدایانو شکر وکړه، چې ته زما پخواني ملګری یې، ګني وژلې مې.

زما او ستا تر منځ د اوږدې مودې دوستي ما له دې کاره منع کوي چې تا ختم کړم، خو حتمأ به دې تبعید کړم او اجازه نه ورکووم، چې له مړینې وروسته ستا مړی بیرته مصر ته راستون کړي، خو له مړینې مخکې ویلی شې، چې ستا مړی مومیایي کړي او همغلته چې ژوند کوې هلته یې ښخ کړي.

هغه ځای چې ما ستا د جلاوطنۍ لپاره په نظر کې نیولی دی، د ختیځ سمندر په څنډه کې دی. (*هدف د سور سمندر څنډه ده. ژباړن* ) دا هغه ځای دی چې ببېړۍ ترې هندوستان ته ځي. زه دې سوریې ته نه شم تبعیدولای، ځکه چې په سوریه کې د پخواني اور ځینې سکروټې پاتې دي، چې تر ایرو لاندې ښخې شوې دي. په سوریه کې ستا شتون ښایي دد ې سبب شي، چې دغه ایرې له سکروټو لرې شي او یو ځل بیا د اور لمبې بلې کړي. زه نه شم کولای تا د مصر په جنوب کې د کوش تاټوبي ته واستوم، ځکه که ته هلته لاړې، تورپوستو ته به وایې چې د ځمکې ټول انسانان یو شان دي او سپین پر تور ښه والی او غوره والی نه لري، نو تورپوستي چې له نسله کم عقل او سادګان دي، ستا دغه خبرې به ومني او ممکنه ده بلوا وکړي.

خو د ختیځ هغه ساحل چې زه به تا هلته جلا وطن کووم ځوک پکې نه اوسي او که ته څومره خبرې هم وکړې، له سرو ډبرو ،کارغانو او مارانو پرته به نور اورېدونکي و نه لرې.

زه ډاډه یم چې هغوی د مصر د حکومت لپاره ستونزې نه پیدا کوي او هلته به زه ستا د اوسېدو د ځای شا و خوا سپاهیان وګمارم او هغوی به دنده لري، چې تا پرې نږدي له دې سیمې څخه ووځې او که وتښتې وبه دې وژني.

زه پوهېږم ته له طبس سره مینه لرې، او له طبسه ستا بېلتون او له خلکو خالي سیمې ته ستا استول یوه لویه سزا ده.

زه به دې د خوراک و څښاک له پلوه په تنګسیا کې رانه ولم او داډ درکووم چې هلته به یو کور ولرې، په دې کور کې به پر یوه نرمه بستره ویدېږې، پر بهانه ډوډۍ به خورې او

هرڅه چې وغواړې ستا لپاره به چمتو وي خو په دې شرط چې هوښيار واوسې.

هلته به پرتا يوازې يو بنديز وي او هغه دا چې له هغې محدودې نه شې وتلی چې ستا لپاره په نظر کې نیول شوې وي.

زه له جلاوطنۍ څخه نه ډارېدم، ځکه چې په ژوند کې ډېر ځله، يوازې وم، خو همغه ډول چې هورم هب وويل، له طبس سره مې مينه وه. چې فکر مې وکړ نور به د مصر خاوره ونه وينم، د نيل اوبه به ونه څښم او د طبس بوی به احساس نه کړم، نو ډېر خپه شوم.

هورم هب ته مې وويل: زه په دې ښار کې ډېر ملګري نه لرم، ځکه چې خلک زما له خولې وېرېږي او له ما څخه ځان ساتي، خو په بېوزلو کسانو کې څو ملګري لرم او زړه مې غواړي چې د وروستي ځل لپاره يې ووينم او له هغوی سره خدای پاماني وکړم.

بله دا چې غواړم په طبس کې لږ وګرځم او په دې پسرلني هوا کې د قوچانو په واټ کې د ونو د غوټيو او د معبدونو په انګړ کې د معبدونو د سپاندو له بويونو خوند واخلم.

د شپې په پيلېدا سره د بېوزلو له سيمې تېر شم، له هغه ځايه چې زما کور پکې دی، چې د هغو کبانو بوی احساس کړم، چې هغوی يې د خپلو کورنو په مخکې سره کوي.

هورم هب ته نه پوهېږې، هغو مېرمنو ته کتل چې ماښام د خپلو کورنو په مخکې خواړه پخوي، د هغو نارينه وو ننداره چې له کاره ستړي راستنېږي او د هغو ماشومانو ليدل چې د ماښامنۍ په تمه د کورونو په مخکې لوبې کوي ماته څومره خوند راکوي.

تصور نه کووم چې بل څوک دې له دغو منظرو څخه دومره خوند واخلي لکه چې زه يې اخلم، هېڅوک به زما په شان د لمر لوېدو په وخت کې د طبس په کوڅو او واټونو کې له ګرځېدا څخه خوند نه اخلي.

که ما دغه کلېمې په عاجزانه ډول ويلې واې او له هورم هب مې غوښتي واې، چې ماته څو ورځې وخت راکړي، چې له طبس سره خدای پاماني وکړم، هغه به زما غوښتنه منلې واې.

خو ما له عاجزۍ او زارۍ پرته له هغه سره، داسې خبرې کولې، لکه چې څوک يې له خپل سيال سره کوي او له هورم هب څخه مې يوه غوښتنه وکړه.

دغه کار مې ددې لپاره وکړ، چې پوهېدم بايد علم د قدرت پر وړاندې سر ټيټ نه کړي او له همدې امله فرعون زما غوښتنه ونه منله ده وويل، زه يو عسکر يم او په کارونو کې له ځنډ او احساساتو کرکه کووم، نو امر کووم چې همدا اوس په روان تخت کې تا له طبسه

وباسي.

که ستا کوم خپل او ملګرى غواړي، له تا سره مسافرت وکړي، زه به ورسره موافقه وکړم، خو په دې شرط چې هغه به هم نور مصر ته نه راځي، بايد له تا سره پاتې شي او حتى ستا له مرګه وروسته هم بايد بېرته راستون نه شي.

زه پوهېږم که هغه هر څوک وي، کله چې له تا سره ناسته پاسته وکړي، ستا خبرې به پرې اغېز وکړي او ستا له مرګه وروسته هم چې مصر ته راستون شي، ستا خطرناک افکار به خپاره کړي ځکه چې خطرناک فکرونه له طاعون څخه هم ژر خپرېږي.

ستا د ملګرو په هکله چې ودې ويل د بېوزلو له پرګنې څخه دي، بايد ووايم، چې يو کس پکې ستا مريى دى چې د ژرندې ډبره يې ګرځوله.بل يو انځور ګر دى، چې تل نشه وي او د خدايانو عکسونه انځوروي او دوه تنه نور هم تورپوستي دي.

دغه څلور واړه په دې تور چې ستا د فکرونو تر اغېز لاندې ول، اوس په يوه اوږده سفر تللي چې له هغه ځايه راستنېدل ناممکن دي.

کله چې مې له هورم هبه دغه خبره واورېده، پر ځان مې لعنت ووايه، ځکه چې يو ځل بيا يو شمېر بېګناه کسانو، ته په دې تور سزا ورکړل شوې ده، چې زما ملګري ول او له ابدي بدبختۍ سره مخامخ شوي دي.

له هغه وروسته بې له دې چې هورم هب ته رکوع وکړم، غوښتل مې چې له هغه ځايه ووځم، هورم هب ددې لپاره چې وښيي له ما سره بله خبره او کار نه لري، د مصر د سترو فرعونيانو په تقليد يې وويل:((د فرعون خبرې خلاصې شوې))

د هورم هب عسکرو په يوه روان تخت کې کېنولم، چې يرديې پرې راځوړندې وې او د ختيځ پر لور يې روان کړم.

شل شپې او شل ورځې مو پر هغه لار سفر وکړ، چې هورم هب د ختيځ پر لور کښلې وه، تر دې چې يوه بندر ته ورسېدو ،چې له هغه ځايه بېړۍ د هندوستان پر لوري تللې.

خو په دې بندر کې کلى هم و، خو د هورم هب عسکر هلته ايسار نه شول او زه يې له بندره هم لرې کړم.

له درې ورځو وروسته يو بل ځاى ته ورسېدو، چې پخوا پکې کوم کلى و، خو کروندګرو دغه کلى پرې ايښى و او څوک پکې نه تر سترګو کېدل.

په دې ځاى کې يې زما لپاره يو ځاى وټاکه چې ژوند پکې وکړم، بيا يې په دې سيمه

کې را ته کور جوړ کړ او له هغه وخته په دې کور کې د ژوند نوی پړاو پیل شو.

زه هېڅکله په دې کور کې په تنګسیا کې نه وم او هره اړتیا مې پوره کېدله، خوراک، څښاک او جامې ټولې را رسېدلې او حتی د لیکلو وسایل یې هم راته برابر کړي ول.

ما څو کاله په دې ځای کې تېر کړل، د طب په اړه مې څو کتابونه ولیکل او د هر کتاب له خلاصېدا وروسته به مې په یوه صندوق کې اېښودل.

خو دغه کتاب تر ټولو وروستی کتاب دی، چې ما ولیکه، ځکه خو مې هغه د خپل ژوند او برخلیک په اړه لیکلی دی. که دا دې کتاب له لیکولو وروسته ژوندی پاتې شوم، نور به کوم شی ونه لیکم، ځکه چې سترګې مې ډېرې کمزورې شوې او نور مې سترګې پر پاپیروس د قلم حرکت نه شي لیدلای. ما دا دې لپاره د خپل ژوند خاطرې په دې کتاب کې ولیکلې چې وکړای شم د ژوند ټولې پېښې له هغې ورځې چې ځان مې پېژندلی دی، تر ننه پورې را پر زړه کړم او دغه راز پوه شم چې ولې مې ژوند کړی دی.

خو اوس چې زما ژوند لیک پای ته ورسېد نه پوهېږم چې ولې مې ژوند وکړ او له ژونده زما موخه څه وه؟

په ځوانۍ کې مې فکر کاوه، دا دې لپاره ژوندی یم، چې بوډا شم او اوس چې بوډا شوی یم حیران یم چې دا څه ډول هیله وه، چې ما په ځوانۍ کې درلوده، ایا بوډاتوب ته رسېدل، هغه هیله ده چې د ژوندي پاتې کېدا ارزښت ولري.

زه هره ورځ سمندر ته ګورم، کله د شا و خوا سور رنګه غرونو انځور په سمندر کې لوېږي او هغه تک سور کړي او کله توپان شي، د سمندر او به تکې تورې شي او د شپې مهال سمندر تک سپین وینم.

په کومو ورځو کې چې هوا توپاني نه وي، د سمندر شین رنګ د هغه له شنو ډبرو زیات وي، خو زه د سمندر له کتلو ستومانه شوی یم، سمندر دومره لوی او وېرونکی دی، چې انسان د عمر تر پایه د سمندر په کتلو ځان بوخت نه شي ساتلی.

زه د ختیځ سمندر (*هدف سور سمندر دی ژباړن*) په څنډو کې له لړمانو او مارانو سره دومره کېناستم، چې نور هغوی له ما څخه نه وېرېدل، خو له هغو سره ملګرتیا ته هم لېوال نه یم، ځکه که هغوی زما ملګري هم شي جاهل او ناپوه دوستان به وي، چې خپل نېښ به زما په بدن کې ننباسي.

تر دې يو کال وروسته چې زه يې له طبسه تبعيد کړم، کله چې له طبسه د هندوستان کاروان روانېده، چې د خليج سمندر ساحل ته ورسېږي، نو زما نوکره موتي هم چې په طبس کې وه له دغه کاروان سره راغله او له ما سره يو ځای شوه.

کله چې موتي زه وليدم لاسونه يې پر ځنګنو کېښودل او رکوع يې وکړه.

کله چې يې وليدم. زه ډېر شوی يم او خپه مې ننوتلې ښکاري، ويې ژړل ما ورته وويل موتي ! ولې ژاړې؟

موتي وويل، له دې امله ژاړم چې په دې موده کې تا څوک نه درلودل، چې خوندوره ډوډۍ درته پخه کړي، ځکه ډېر ډنګر شوی يې.

ومې ويل موتي ! زما ژوند هغه پړاو ته رسېدلی، چې چاغې او ډنګرتوب راته اهميت نه لري.

موتي وويل :سينوهه ! ايا په وار وار مې درته نه دي ويلي، چې خپل خوی سم کړه او د خپلې ژبې مخه ونيسه.

زه نه پوهېږم چې نارينه ولې داسې دي، چې خبره پرې هېڅ اغېز نه کوي، که څه هم پوهېږي، هر څوک چې سر پر دېوال ووهي سر يې ماتېږي، خو بيا هم همدا کار کوي.

خو سينوهه ! اوس ته په داسې عمر کې يې چې بايد هوښيار شوی وای او نور بايد د هغه کوچني غړي له وېرې او وسوسو څخه ځان وساتې چې زموږ په ګوګل کې دی او د نرۍ ټولې بدبختۍ له هغه دي.

ومې ويل،موتي ! تا غلطي کړې، چې له طبسه راوتلې يې او دلته راغلې،ځکه چې زه رټل شوی کس يم او د هورم هب له عسکرو پرته هر څوک چې دلته له ما سره ژوند وکړي، بايد د عمر تر پايه دلته پاتې شي.

هغوی بيا مصر ته نه شي ستنېدای، ځکه چې هورم هب پر دې سربېره، چې مصر ته زما د تګ مخه نيسي، بلکې هغه کس هم طبس او مصر ته نه ورپرېږدي چې دلته يې له ما سره ژوند کړی وي.

موتي وويل، سينوهه ! زه باوري يم، دغه چلند چې له تا سره وشو، ستا په ګټه و، ځکه چې فرعون هورم هب ته يوه ارام او لرې ځای ته را واستولې، چې خپل بوډاتوب دلته تېر کړې.

زه هم د طبس او د ګاونډيانو له شور ماشوره په تنګ شوې وم، تل به يې زما د پخلنځي شيان په پور وړل او بيرته به يې نه راکول.

کله چې به ما ورته یادونه وکړه، چې هغه شیان بیرته راکړي، غوسه به شول او ویل به یې مور خو غله نه یو، چې فکر کوې ستا دیګی او یا کټوه به مو پټه کړې وي.

زه په طبس کې مجبوره وم چې په ورځ کې دوه ځله، د کور مخه جارو کړم خو بیا به هم د کور مخه پاکه نه وه، ځکه چې ګاونډیان تل د کور ګند او ډېران په کوڅه کې اچوي، څومره ناړې چې به مې کولې چا نه اورېدلې.

بله خبره دا چې په طبس کې زموږ کور ډېر کوشنی و او موږ هلته سبزیانې نه شوای کرلی، خو دغه ځای د سبزیانو د کرلو لپاره ډېره ځمکه لري، په تېره بیا دا چې ستا پالک ډېر خوښېږي او زه به یې دلته وکرم.

دغه تنبل او بې کاره عسکر، چې فرعون ستا د ساتنې لپاره ګمارلي دي، دوی به اړ کړم، چې سبزیانې وکري او بیدیا ته د ښکار کولو لپاره لاړ شي، په سمندر کې کبان ونیسي.

سره له دې چې زه فکر نه کووم، چې د سمندر د تروو اوبو کبان دې د سیند د خوږو اوبو په شان خوندور وي.

بله دا چې غواړم، دلته یو ځای د خپل قبر لپاره پیدا کړم او یو قبر پکې جوړ کړم، چې له مرګه وروسته، پکې دمه شم، ځکه چې ډېره ستړې یم.

ما هېڅکله له طبسه د باندې ګام نه و ایښی، اوس پوهېږم چې سفر کول ډېر سخت دی او نه غواړم، چې له مرګ وروسته مې هم وکړوي او د ښخولو لپاره مې طبس ته یوسي.

په دې ډول موتي هم له ما سره مېشته شوه او له هغه وروسته یې زما پالنه کوله.

زه تصور کووم دا چې د عمر په پای کې اسوده شوم او بریالی شوم چې دغه کتاب ولیکم، د موتي له برکته و، ځکه چې ډېر ښه یې ساتلم او هڅه یې کوله، چې د ژوند په هېڅ برخه کې ستونزه ونه لرم.

موتي په دې خوشحاله وه، چې زما لپاره د لیکلو په وسیله یوه بوختیا پیدا شوې وه او په دې ډول مې چټي فکرونه نه کول. خو په دې پوهېدم چې په زړه کې دغو لیکنو ته توجه نه کوي او هغه بې ګټې کار بولي.

موتي زما لپاره خوندور خواړه پاخه کړل او لکه چې دې ویلي و، سپاهیان یې اړ کړل، چې ځمکه واړوي، تخم پکې وکري، بیدیا ته ولاړ شي او ښکار وکړي او یا په سمندر کې کبان ونیسي.

عسکرو له یو کال راهیسې یوازې خوړلي او ویده شوي ول، کله چې اوس کار کولو ته

مجبور شول، ډېر غوسه ول، خو جرائت یې نه شو کولای چې څه ووایي، ځکه چې د موتي ژبه د سخوندر تر ښکرو تېره وه.

موتي به هغوی ته سپکې سپورې ویلې او کله کله به یې پخپل سبک د ځینو کیسو په کولو سره عسکر خندول.

خو ورو ورو عسکر خوشحال شول، ځکه چې پوه شول ښکار کول ورته ښه دي او له وزګارتیا یې ژغوري.

له هغه وروسته به په شوق ښکار ته تلل او ډول ډول سبزیانو او د کبانو ښکار د هغوی خواړه هم ښه کړل او موتي د خوندورو خوړو پخول هم ورزده کړل.

هر کال چې به له طبسه د هندوستان پر لور کاروان راته، کاپتا به موږ ته په خرو بار ډالۍ، سره و سپین را استول او د طبس خبرونه به یې هم راکول چې هلته څه تېرېږي.

هغه به دغه پېښې په کاتبانو لیکلې او ماته به یې را استولې، په دې ډول زه د طبس له حالاتو بې خبره نه وم او پوهېدم چې هلته څه تېرېږي.

هغه عسکر چې پر ما یې پیره کوله په هغه ځای کې له ژوند کولو سره روږدي شول او له ژونده راضي ول، ویل به یې که زه مړ شوم بیا به هم طبس ته ستانه نه شي، ځکه چې دلته نېکمرغه دي او هېڅ ستونزه نه لري.

سپاهیانو په هغو ډالیو چې ماورکړې وې، د ځان لپاره غواګانې او پسونه اخیستي ول او د مالداري په وسیله یې ژوند چلاوه.

زه نور له لیکلو ستړی شوی وم، ځکه چې سترګو مې څه نه لیدل، یوځل خو د موتي پیشو زما پر زنګنو ناسته وه، حیران شوم، چې څنګه ما ونه لیدله.

زما روح له هغه څه ستړی شو چې ما یې کیسه وکړه او نور پوهېدم چې بدن مې ابدي استراحت ته اړتیا لري.

زه اوس نېکمرغه سړی نه یم، خو په دې ګوټ او یوازېتوب کې ځان بدبخته هم نه بولم.

زه خوشحال یم چې پاپیروس او قلم شته، ځکه که دغه دوه شیان نه وای، ما به د دې وس نه درلود چې خپل ماشومتوب او ځواني را پر زړه کړم.

په خیالي دنیا کې یو ځل بیا له مینا سره یو ځای د بابل په کوڅو کې ګرځېږم او د مریت له مهربانۍ ډک وجود پخپله خوا کې احساس کړم.

ددې وس به مې نه درلود، چې د هغو کسانو پر ناخوالو وژاړم چې په طبس کې وړې دي

او خپل غنم ورېو کسانو ته ورکړم.

زه پوهېږم چې زما له مرګه وروسته به ساتونکي، د هورم هب له حکم سره سم، زما ټولې لیکنې له منځه یوسي او دغه کور به هم وران کړي، ځکه وېرېدل، چې ما پر د هوالونو کوم شی نه وي لیکلی.

خوموتي ددې کتاب پنځلسو ټوکونو ته له لوخو څخه پنځلس کلک پوښونه جوړ کړل.

زه به هر ټوک په یو پوښ کې کېږدم او بیا به پنځلس واړه ټوکونه د سپینو زرو په یوه صندوق کې وساتم.

دغه کوچنی صندوق به د سدر ونې له لرګیو څخه جوړ په یوه بل صندوق کېږدم، بیا به دغه لرګین صندوق په یوه مسي صندوق کې واچوم او موتي به زما له مرګه وروسته دغه صندوق له ما سره په قبر کې کېږدي.

هغې ډاډ راکړی، چې ساتونکي به غلط کړي او صندوق به زما په قبر کې کېږدي.

له دې کبله چې زه یو انسان یم ،نو په هر هغه انسان کې ژوندی وم چې تر ما مخکې یې ژوند کړی او په هر هغه انسان کې به ژوندی یم، چې له ما وروسته دې نړۍ ته راځي.

زه یو انسان یم او له دې وروسته به د راتلونکو انسانانو په خوښیو ،غمونو ، خنداګانو ،ژړاګانو ، ښیګڼو ،بدیو او د هغوی په کمزورتیا وو او ځواکونو کې ژوندی یم

هغه انسان چې له ما څخه زرګونه کاله وروسته هم دې نړۍ ته راځي، زما په شان به وي او هېڅ توپیر راسره نه لري، ځکه چې هغه به هم زما په شان ژاړي، خاندي او زما په شان به جنایت کوي یا به احسان کوي.

هغه به هم حرص لري او د یوې یا څو ښځو له لوري به غولول کېږي، له خوندرو بویونو به خوند اخلي او د موسیقۍ غږ به یې احساساتي کوي.

ښايي کلونه میاشتې او ورځې به غمجن وي، دوستان به ورسره خیانت کوي او له خپلو دوستانو سره به خیانت کوي.

خپله شتمني به د قمار او کمسایي له لارې ضایع کوي، زما په شان به د هوالیه کېږي او د عمر په پای کې به په یوه ګوښه ځای کې، یا د کورنۍ له غړیو سره یو ځای مړ کېږي.

له همدې لامله زه په دې خواشینی نه یم، چې دغه کتاب له منځه لاړ شي، فرضاً که دغه کتاب له منځه لاړ هم شي، نو زه به په راتلونکیو انسانانو کې ژوندی یم.

دا د مصري ډاکټر وروستۍ خبره وه، چې فکر یې کاوه ټول عمر یوازې دی.

## د فرعون د مخصوص ډاکتر
## (سينوهه) د کتاب پای

له دې وروسته د سينوهه د کتاب بشپړه سريزه راځي کله چې د دې کتاب ژباړه پيل شوه، سريزه په سر کې په لنډيز سره راغله، چې لوستونکي ګومان ونه کړي، چې يو اخلاقي کتاب او يا د فولکلور يو کتاب لولي. زه لوستونکو ته ډاډ ورکووم، چې د کتاب له اصلي متنه حتى يوه کلمه هم نه ده غورځېدلې او د غه کتاب نه يوازې جمله پر جمله، بلکې کلمه پر کلمه ژباړل شوى دى. اوس چې کتاب پای ته رسېدلى دى او لوستوونکي د دې ارزښتناک کتاب په تاريخي او لرغوني اهميت پوه شول، غوره ده د سينوهه د کتاب بشپړه سريزه هم دلته وژباړو، د دې لپاره چې د اصلي ژباړونکي او ليکوال پر هويت نور هم پوه شئ.



# د مصري ډاکتر د کتاب
# بشپړه سريزه

زه سينوهه د(سن موت ) او د هغه د مېرمنې (کيپا ) زوی دغه کتاب ليکم.

زه دغه کتاب ددې لپاره نه ليکم چې د مصر د خدايانو ستاينه وکړم ، بلکې ددې لپاره يې ليکم چې له خدايانو تنګ شوی يم.

دغه کتاب ددې لپاره نه ليکم چې د مصر فرعون وستايم، بلکې غواړم دا روښانه کړم ،چې د مصر د فرعونيانو له اعمالو څخه کړېدلی يم.

زه دغه کتاب د مصر پاچاهانو او يا خدايانو ته دغوړه مالۍ لپاره نه ليکم

هغه څه چې زه يې ددې کتاب ليکلو ته اړ کړم له راتلونکي وخت څخه وېره او يا هيله مندي نه ده.

ما پخپل عمر کې دومره ترخې ورځې شپې ليدلې او له دومره مصيبتونو سره مخامخ شوی يم، چې نور له خيالي شيانو او نامعلوم راتلونکي څخه وېره نه لرم.

زه لکه څنګه، چې له خدايانو او پاچاهانو څخه تنګ شوی يم هماغسې د ځان له شهرته هم ستړی يم.

زه دغه کتاب د ځان لپاره ليکم اوله همدې کبله فکر کوم چې له ټولو مخکنيو او راتلونکو ليکوالو سره توپير لرم، ځکه هر هغه شی چې پخوانيو ليکوالو ليکلي، يا د خدايانو د ستاينې يا خوښۍ لپاره ول او يا هم د پاچاهانو او نورو انسانانود راضي کولو لپاره.

زه فرعونيان هم د انسانانو په شان ګڼم، ځکه چې هغوی له موږ سره توپير نه لري او که هغوی زرګونه ځله خدايان وبولو ، بيا هم پاچاهان زموږ په شان دي،هغوی هم مينه او دښمني لري او زموږ په شان هيله او نهيلۍ لري

که څه هم هغوی دا توان لري، چې خپله کينه ختمه کړي او کله چې وېرېږي، نود

ډار د ختمولو لپاره يوه چاره موندلی شي، خو د هغوی د غه زغم د دې سبب نه کېږي چې له کړاوونو او دردونو خوندي پاتې شي.
دوی هم زموږ په شان درد زغمي او د نورو انسانانو په شان له غمونو سره مخامخېږي.
هغه څه چې تر او سه پورې په نړۍ کې ليکل شوي، يا د پاچاهانو د حکم پر اساس ليکل شوي، يا خدايانو ته د چاپلوسۍ په خاطر او يا هم د خلکو د غولولو لپاره ليکل شوي دي.
دغو کسانو غوښتل ، خلکو ته القا کړي، هغه څه چې دوی ليدلي سم نه دي او حقيقي پېښې له هغه څه سره توپير لري چې دوی ليدلې دي.
دوی هڅه کړې خلکو ته وښيي، چې په پلانکۍ پېښه کې د پلانکي سړي رول ډېر کم و او يا پلانکی سړی هېڅ مهم نه دی، خو په دې پېښه کې يې ډېره ونډه درلوده.
زه يقين لرم او په جرئت سره وايم، له هغې ورځې چې دا نړۍ رامنځته شوې، ټول ليکل شوي شيان يا د دې لپاره ول، چې خدايان خوشحاله کړي او يا د انسانانو د رضايت لپاره ليکل شوي دي، هغوی که پاچاهان وي يا بل هرڅوک.
زه تصور کووم چې په راتلونکې کې به هم همداسې وي او که په راتلونکې کې څوک قلم ته لاس کړي، د دې لپاره به وي، چې خدايانو ته چاپلوسي او غوړه مالي وکړي، يا پاچاهان خوشحاله او راضي کړي او يا د بشر د يوې خاصې پرګنې زړه وساتي.
که دغه کسان يو ملت وي، يا يوه ټولنه او يا يوه خاصه پرګنه.
زه له دې امله دغه فکر کووم چې په راتلونکې کې هم ټول ليکوال د خدايانو او پاچاهانو د راضي کولو لپاره ليکوالي کوي او يا د بشر د يوې پرګنې د رضايت لپاره ليکنې کوي.
په دې ډول په دې دنيا کې نوی شی نه رامنځته کېږي، بلکې ټول شيان بيرته را ژوندي کېږي او هغه څه بيا ظهور کوي، چې مخکې موجود ول.

تر لمر لاندې انسان بېخي نه بدلېږي او يو لک کاله وروسته، چې کوم انسان پيدا کېږي، هغه به هم دننني هغه په څېر وي، خو ښايي وښتان، جامې او د وښتانو موډ او فېشن يې بدل شي.

د انسان يو شی هېڅکله نه بدلېږي او هغه دده حماقت دی.

که يو لک کاله وروسته کوم انسان پيدا شي، نو زموږ د وخت د انسان او هغو انسانانو په شان به احمق وي، چې تر موږ مخکې يې د هرمونو د جوړېدا په وخت کې ژوند کاوه.

بيا به هم انسان احمق وي او راتلونکی انسان هم په درواغو او تشو وعدو تېر باسلی شي، ځکه چې انسان د ژوند د دوام لپاره درواغو او چتې وعدو ته اړتيا لري او د هغه فطرت همدا غواړي، چې تل تر رښتيا پر درواغو ډېر باور وکړي او د واقعيت په پرتله پر تشو وعدو ډېر ايمان لري چې هېڅکله به عملي نه شي.

تر هغه چې انسان ژوندی دی احمق به وي او تشې وعدې او درواغ به يې غولوي.

په هر وخت او پړاو کې به د وخت له غوښتنو سره سم، هغه ته درواغ ويل کېږي او هغه به هم په شور او ولولې سره دغه درواغ او چتيات مني.

کله چې څوک ورته ووايي، دغه خبرې چې تا ته يې کوي، درواغ او چتيات دي، راشه چې زه درته حقيقت ووايم، نو غوسه به شي او دغه روڼاندی به په دې تور ووژني چې خاين او ورانکاری دی.

په درواغو او چتې وعدو او هغه زېري باندې باور کول، چې هېڅکله به عملي نه شي، د انسان له ختې سره اخښل شوې ده.

انسان له حقيقي پېښو څخه، افسانې ته ډېره ترجيح ورکوي. د بېلګې په ډول يو کيسه ويونکی، چې خوله خلاصه کړي او کيسه پيل کړي، نو خلک پرې راټولېږي.

دوی ښه ګوري، چې دغه کس پخپله په کوڅه کې په خاورو کې ناست دی، خو دوی ته چې وايي خزانې به ومومي او شمتن به شې، نو خلک يې پر خبرو باور کوي.

خو زه ددې کتاب ليکوال سينوهه له درواغو څخه، هغه هم په دې وخت کې چې بوډا شوی يم، کرکه کووم او په دې کتاب کې به درواغ ونه ليکم.

که څوان وای او دغه کتاب مې په ځوانۍ کې لیکلی وای، ښایي ما هم د نورو لیکوالو په شان درواغ ویلي وای او داسې شیان به مې لیکلي وای، چې د خدایانو او پاچاهانو یا د یوې خاصې پرګنې خوښ شي.

خو په دې پړاو کې چې بوډا شوی یم او له خدایانو، پاچاهانو او نورو کسانو څخه نهیلی شوی یم، درواغو ته هېڅ لېوالتیا نه لرم او نه هم ورته اړتیا لرم.

له دې کبله، چې زه دغه کتاب د نورو لپاره نه لیکم، نو هېڅ نیت نه لرم، چې څوک پرې خوشحال کړم، دغه کتاب د ځان لپاره او د ځان د خوشحالۍ لپاره لیکم.

هغه څه چې زه یې په دې کتاب کې لیکم، داسې شیان دي، چې پر خپلو سترګو مې لیدلي او یا پرې پوهېږم چې حقیقت لري، حتی که مې په سترګو هم نه وي لیدلي.

له همدې امله زه له پخوانیو لیکوالو او هغو لیکوالو سره توپیر لرم، چې له دې وروسته راځي، ځکه چې پخواني او اوسني (له دې کبله چې په نړۍ کې هرڅه بدلېږي) تل، هغه شیان نه لیکي چې پر خپلو سترګو یې ویني.

بده لا دا چې کله خو حقیقت هم تر پښو لاندې کړي او داسې شیان لیکي، چې د هغوی له شهرت سره مرسته وکړي.

هغه څوک چې یو شی لیکي یا په ډبرو کې خپلې لیکنې حک کوي هیله کوي، چې راتلونکي کسان به یې لیکنه ولولي، هغه ته به شاباسی ورکړي او د غوره کارونو ستاینه به یې وکړي.

خو په دې کتاب کې چې زه یې لیکم، داسې کوم شی نشته، چې په شاباسي و ارزي او هغه کارونه، چې ما کړي، د ستاینې وړ نه دي.

زه پوه او هوښیار سړی نه یم، چې نور له ما څخه درس او عبرت واخلي او ما شومان به هېڅکله هغه جملې، په ښوونځیو کې د خاروې پر لوحو ونه لیکي، چې خپل مشق ورسره ښه کړي او د هغه له مخې خپلې لیکنې ښې کړي.

دغه راز به بالغ کسان ددې لپاره چې په یوه مجلس کې ځان لوړ وښیي زما له جملو څخه به استفاده ونه کړي، ځکه زه هیله نه کووم، چې څوک دې زما کتاب

ولولي او زما نوم دې پر زړه کړي

فرضاً که زه یو پوه کس او د نظر خاوند وای او دغه هیله مې کولای چې راتلونکي کسان زما کتاب ولولي، بیا به هم زما پوهه او عقل د راتلونکو خلکو لپاره ګټه نه درلوده، ځکه چې انسان د پوهو کسانو د کتابونو په لوستلو نه اصلاح کېږي.

انسان دومره بې رحمه او شر غوښتونکی دی، چې د نیل سیند تمساح ګانې هم ترې مهربانه او با رحمه دي او چا ته یې د انسان په اندازه ازار نه رسېږي

د انسان زړه تر ډبرې هم کلک دی، هېڅکله به نرم نه شي او ناممکنه ده، چې یوه ورځ دې، د هغه کبر او ځان غوښتنه له منځه لاړه شي.

یو انسان له جامو سره په نیل سیند کې واچوه، چې ښایي او به یې ډوب کړي، خو کله چې له اوبو راووځي او جامې یې وچې شي همغه انسان به وي چې مخکې و.

یو انسان له ډېرو سختو او سترو بدبختیو سره مخامخ کړه، چې ښايي اصلاح شي، خو کله چې له بدبختیو خلاص شي او ځان سوکاله او نېکمرغه ووینې، نو بیرته پر همغه کس بدلېږي چې پخوا و.

ما پخپل عمر کې ډېر انقلابونه او بدلونونه ولیدل او هر ځل مې فکر کاوه چې له دې تحول او بدلون وروسته به انسان بدل شي، خو بیا به مې ولیدل، چې هېڅ بدلون یې نه دی کړی، نو څنګه دا هیله کولای شم، چې د یوه کتاب په لوستلو سره دې انسان بېخي بدل شي.

ځینې کسان شته چې وايي، هغه څه چې نن پېښېږي، مخینه نه لري او هېڅکله به په نړۍ کې نه وي شوي، خو د دوی دغه خبره د وګړو د کمې تجربې او د فکري ځواک د کموالي له امله ده، ځکه په نړۍ کې چې کومه پېښه شوې، د هغې مخینه ارو مرو لیدل شوې ده.

زه سینوهه نومېږم، ما پر خپلو سترګو ولیدل، چې یو زوی، په کوڅه کې خپل پلار وواژه، ځکه چې زوی د صلیب نښه پر خپل تټر تومبلې وه او پلار د ښکر نښه درلوده.

ما ولیدل چې مریانو او کارګرانو د شتمنو او خانانو پر خلاف پاڅون کړی او ومې لیدل چې خدایان له یو بل سره جنګ ته پاڅېدل.

ما پر خپلو سترګو ولیدل، هغه کس چې تل به یې د سرو زرو په جامونو کې شراب څښل، کله چې بېوزله شو، د نیل سیند پر غاړه ناست و او د سیند او به یې څښلې.

ما ولیدل هغه کسان چې په تلو کې یې سره زر تلل، په څلورلارو کې سوال ته مجبور شول او د همدغو کسانو مېرمنو د یوې ټوټې مسو په بدل کې ځانونه پر تور پوستو خرڅ کړل.

دغه ټول کارونه زما په مخکې شوي دي او له دې وروسته به هم همدغسې ډېر نور کارونه وشي.

زما په وخت کې خلکو له تېرو تجربو څخه ګټه وانخیسته، نو ځنګه ویلای شم، چې راتلونکي کسان به زما د وخت له پېښو څخه عبرت واخلي، چې په دې کتاب کې لیکل شوې دي.

همغه ډول چې تر ننه پورې انسان نه دی بدل شوی، په راتلونکې کې به هم بدل نه شي.

نو زه دغه کتاب ددې لپاره نه لیکم، چې څوک یې د پند او نصیحت لپاره ولولي او له تېرو وختونو پند واخلي.

زه دغه کتاب د ځان لپاره لیکم، ځکه چې کړوي مې او د تېزابو په شان زما زړه خوري، زه مجبور یم هغه څه ولیکم چې پرې پوهېږم او غواړم په دې ډول مې کړاو کم شي.

زه چې کله د ختیځ سمندر څنډو ته تبعید شوم، نو هلته د اوسېدو پر درېیم کال مې ددې کتاب په لیکلو پیل وکړ.

داهغه سیمه ده چې هند ته تلونکې بېړۍ له دغه ځایه حرکت کوي او زما د اوسېدو په شا و خوا کې سره غرونه ترسترګو کېږي، چې پخوا به د مصر پاچاهانو د خپلو مجسمو د جوړولو لپاره ددغو غرو له ډبرو استفاده کوله.

زه دې لپاره دغه کتاب لیکم چې نور نه شراب، نه له ښځو سره تفریح، نه په حوضونو کې د کبانو لیدل او نه هم د باغونو او ګلانو ننداره خوند راکوي.

د ژمي په سړو شپو کې که یوه ځوانه تورپوستکې نجلۍ راشي، په څنګ کې مې ویده شي او بستره مې راګرمه کړي ما به هېڅ خوشحاله نه کړي

یوه موده کېږي، چې سندرغاړي مې رخصت کړي، ځکه چې سندرې یې اوس خوند نه راکوي او ان د هغوی غږونه مې تنګوي.

له دې وروسته سره و سپین، طلايي او د سپنیو زرو جامونه او ښکلې مېرمنې خوند نه راکوي

سره له دې چې زه جلا وطنی یم، خو دغه ټول شیان چې یاد مې کړل له ما سره شته.

د مصر له پلازمېنې څخه یو کس چې پخوا زما مریی و او اوس ډېر شتمن دی، زما لپاره ډېر ګران بیه شیان او زما د اړتیا وړ ټول توکي رااستوي.

لا هم زما مریان زما د لکنې له ګوزارونو وېرېږي او زما ساتونکي عسکر، چې ما ویني، لاسونه پر ځنګنو ږدي او رکوع کوي

خو هغه سیمه چې زه پکې ګرځېدای شم ډېره محدوده ده او هېڅ یوه بېړۍ هم نه شي کولای له سمندر څخه هغه ساحل ته راشي چې زه پکې ژوند کووم.

اوس هرڅه زما له نظره لوېدلي دي، نور به مصر ته ستون نه شم او توره خاوره به تر پښو لاندې نه کړای شم، د طبس د پسرلي د شپو بوی به احساس نه کړم او په دغسې یوه حالت کې دغه کتاب لیکم.

پخوا زما نوم د فرعون په طلايي کتاب کې ثبت شوی او په زرینه ماڼۍ کې، چې د مصر سلطنتي ماڼۍ ده، زما ځای د فرعون په ښي اړخ کې و، خو نن سبا زه په دې سیمه کې، یوازې یم

په هغه وخت کې زما خبرې د مصر د ډېرو لوړو کسانو تر خبرې زیات ارزښت درلود، خانانو به ډالۍ راکولې او زري امیلونه به یې زما پر غاړه کول

ما په هغه وخت کې هر هغه څه درلودل چې یو کس یې هیله کوي، خو په داسې څه پسې وم، چې هېڅ انسان یې نه شي ترلاسه کولای

دغه شي، حقيقت او رښيتا ويل ،ازادي او مساوات مې غوښتل.

له همدې امله نن په دې لرې پرته سيمه کې، د ختيځ سمندر په څنډو کې ژوند کووم، ځکه چې د مصر د فرعون هورم هب د پاچاهۍ پر شپږم کال کې زه د ازادۍ، عدالت او مساوت د غوښتلو په تور له مصره جلا وطن شوم.

هورم هب امر وکړ، که غوارم مصر ته ستون شم، ما به د يوه لېوني سپي په شان ووژني او که زما ګامونه، د مصر خاورې ته ورسېدل، ما به د يوه چينجي په شان د مصر په خاورو او ډبرو کې تر پښو لاندې کړي.

هغه ساتونکي چې د فرعون له لوري دلته ګمارل شوي، دنده لري چې ما له خپلې محدودې دباندې پرې نه ږدي.

په داسې حال چې فرعون يوه ورځ زما ملګری و، زه تصور کووم چې په هغه وخت کې يې ماته اړتيا درلوده او ما ورته ځينې خدمتونه وکړل.

خو له هورم هب څخه، چې د ټيټې کورنۍ وګړی دی او اصالت نه لري، نو له دې څخه پرته بله تمه ترې کېدای نه شي.

دی چې کله پاچا شو، په معبدونو او دېوالونو کې يې د پخوانيو فرعونيانو نومونه پاک کړل او د هغو پر ځای يې د خپل پلار و مور او نيکونو نومونه وليکل.

پر کومه ورځ چې هغه په معبد کې تاج پر سر کړ، زه هلته وم او ومې ليدل، چې د مصر سپين او سور تا ج يې د هغه پر سر ورکېښود.

له دې ورځې شپږ کاله وروسته يې زه جلا وطن کړم او دا بل دليل دی چې زه ډېر ښه پوهېږم چې هغه پر کومه نېټه د مصر پاچا شو.

سره له دې يې خپلو کاتبانو ته دنده وسپارله، چې د سلطنت دوره يې اوږده کړي او داسې وليکي چې کله يې زه جلاوطن کولم، نو د هغه د پاچاهۍ دوه ډېرش کاله تېر شوي دي.

ما پر خپلو سترګو وليدل، چې کله هغه جلا وطن کړم، دومره مغرور او پياوړی و، چې دا يې ښخي مهمه نه بلله چې زما د تبعيد نېټه دې چېرته وليکل شي.

دا خبره مې ځکه وکړه، چې خلک پوه شي هغه د خپلې پاچاهۍ دوره اوږده

کړې، نو کله چې څوک تاریخ لولي، فکر به کوي چې کله زه جلاوطن کېدم، د هغه د حکومت دوه دېرش کاله تېر شوي دي، په داسې حال کې چې په دې وخت کې هغه شپږ کاله حکومت کړی و.

هغه د خپلې پاچاهۍ وخت هغه ورځ لیکلی وه، په کومه ورځ چې دی طبس ته ننوت او یو باز ورسره و.

دا د مصر د یوه پاچا له لوري لیکل شوی تاریخ دی، چې د ځان په گټه یې لیکلی. نو اوس څنگه پر نورو تاریخونو باور وکړو؟

په ځوانۍ کې ته وا ړوند وم او په حقیقت نه پوهېدم، نو ځکه مې له هغه چا کرکه کوله چې د حقیقت لپاره ژوندی و.

زه پوهېدم، د هغه حقیقت به د مصر لپاره ستونزې او بدبختۍ پیدا کړي

هغه غوښتل له خپل خدای، یانې حقیقت سره ژوند وکړي، ما د هغه قدر ونه کړ او ددغه سړي د ختمولو لپاره مې هلې ځلې وکړې، نو نن سبا باید د خپل عمل سزا وگورم، ځکه چې زه هم غواړم له حقیقت سره ژوند وکړم.

حقیقت د یوې تېرې چړې په شان دی او یو لاعلاجه تپ دی، له همدې لامله په ځوانۍ کې ټول له حقیقت څخه تښتي او ځینې کسان ځانونه د شرابو په څښلو او له ښځو سره په ساعت تېري بوخت ساتي.

ځینې خلک د پیسو په ټولولو بوخت دي، چې په دې ډول حقیقت هېر کړي

ځینې د قمار په وسیله ځان بوخت ساتي او د موسیقۍ او نغمو اورېدل هم له حقیقته د تېښتې لپاره ښه وسیله گڼي.

تر هغه چې ځواني پاتې وي، ددې مخه نیسي چې څوک په حقیقت پوه نه شي، خو کله چې بوډا شو، حقیقت د هغه په بدن کې ځای نیسي او هغه، سوری سوری کوي.

په دې وخت کې هېڅ شی د انسان په نظر نه ښکاري او له هر شي څخه کرکه کوي، ځکه دیویني، هر شی لوبتکه او درواغ دي، په دې وخت کې په نړۍ کې ځان له خپل سیوري سره یوازې گڼي، نه انسان او نه خدایان ورسره مرسته کولای شي.

زه سینوهه، چې دغه ننبني په پاپیروس انځوروم، اعتراف کووم چې زما د عملونو یوه برخه ډېر ځیږه او خرابه ده او حتی ما جرمونه کړي دي، ځکه چې فکر مې کاوه ورانکاري او جرم د ځینو کارونو لپاره مشروع او ضروري دی.

خو اوس په دې هم پوهېږم، چې که دغه کلیمې په اتفاقي توګه چا ولوستلې، هغه به زما له ژونده درس وانخلي.

کله چې نور کسان ګناه کوي، د آمون معبد ته ورځي، پر ځان د آمون اوبه تویوي او فکر کوي په دې کار سره له ګناه پاکېږي.

خو زه چې د عمر په وروستي پړاو کې یم، پر خدایانو عقیده نه لرم، په سپېڅلو اوبو ځان نه وینځم، ځکه پوهېږم، چې خدایان هم د نورو په شان درواغ او چل ول کوي.

زه پوهېږم. هېڅ داسې قدرت نشته، چې یو ورانکاری او مجرم له ګناه پاک کړي، د یوه کس زړه بدل کړي او بله دا چې داسې سړی هم نه پیدا کېږي چې جرم او ګناه یې کړې وي او بیا پخپل زړه کې ځان ګناکار وبولي. خو زه دا فکر کووم چې که خپل عملونه ولیکم، هغه فشار به کم شي چې دا مهال یې زه پر ځان احساسوم.

نور کسان په درواغو د خپلو عملونو منظرې پخپلو قبرونو کې کاږي، چې په لوېدیزه نړۍ کې (اوزیریس) تېرباسي او دغه عملونه د هغه په تله کې کېږدي، چې د نېکو عملونو تله درنه شي.

زه د چا تېر باسلو نیت نه لرم او زما تله د پاپیروس پاڼې دي.

د دغه ترازو شاهین دغه قلم دی، چې زما په لاس کې دی او اوس د پاپیروس پر مخ څو کرښې انځوروي.

خو ښایي زه غواړم ځان تېر باسم، خدای دې خیر کړي، چې انسان دومره درواغجن او چلباز شي چې خپله نه پوهېږي، خو ځان هم تېر باسي.

که داسې هم وي، ددې کتاب د لیکلو بار هغو اپیمو ته ورته دی، چې د درد د کمولو سبب کېږي.

اپیم درد کموي، خو ددې مادې له امله اصلي ناروغي نه معالجه کېږي.

دغه کتاب به زما دردونه کم او ارام کړي، خو زما ناسم او څیرې کړې ورې به له منځه یو نه سي او زه به پاک او سپېڅلی نه شم.

تر دې وړاندې چې ددې کتاب په لیکلو پیل وکړم، غواړم خپل زړه ازاد پرېږدم، چې لږ وژاړي او زګېروي وکړي

دا د یوه، زړه خوږي او رټل شوي انسان زړه دی، چې زګېرویو ته اړتیا لري

زما زړه د مصر، نیل او طبس د اب و هوا په هیله زګېروي کوي، ځکه کله چې د نیل سیند اوبه چا وڅښلې، تل ددغو اوبو د څښلو هیله کوي او نورې اوبه د هغه تنده نه شي کمولای.

هغه چا چې په طبس کې نړۍ ته سترګې رڼې کړې وي، هیله کوي چې طبس وګوري، ځکه چې نړۍ د طبس په شان بل ښار نه لري

څوک چې د طبس په یوه کوڅه کې لوی شوی وي، که یې د اسې مانۍ ته ولېږدوي، چې د صندورو له لرګیو جوړه وي، بیا هم د هغې کوڅې ارمان او هیله کوي، چې په منقلونو کې د خوشایو د سوځېدا او د هغو پر سر د سرو کړیو کبانو بوی احساس کړي. که ما کولای شول چې یو ځل بیا د نیل سیند په تورو سواحلو کې ګام کېږدم، نو دې به چمتو یم، چې د شرابو خپله طلایي پیمانه، د مصر د یوه کروندګر پر کولالي لوښي ورکړم او پر خپل تن د کتان دغه جامې لرې واچوم او د مریانو لنګ واغوندم.

که ما کولای شول چې حتی یو ځل د نیل پر څنډه د لوخو د ځنګل له منځه د بادونو غږ واورم او د نیل پر اوبو د توتکیو الوتنه وګورم، نو خپله ټوله شتمني به په یوه وار پر بېوزلو ووېشم.

خو زه یوه توتکۍ نه یم چې وکړای شم، له ساتونکو پرته له دې ځایه، د مصر ټاټوبي ته والوځم، هلته د آمون د معبد په یوه لوړ برج کې چې طلایي ګنبده لري ځاله جوړه کړم او د آمون د معبد د سپاندو او د عبادتځای د قربانیانو د وینې بوی احساس کړای شم.

زه یو مرغه نه یم چې د آمون د معبد د بام پر سر د شا و خوا سیمو ننداره وکړم،

وګورم چې په طبس ښار کې غوايي څه ډول، درنې ګاډۍ په ځان پسې راکاږي؟
زه نه شم کولای هغه کسبګر وګورم چې پخپلو دوکانونو کې د منګيو په جوړولو، د پوزیو په اوبدلو او د ډوډیو په پخولو بوخت دي
زه نه شم کولای هغه مېوه خرڅونکي ووينم چې پر لارويانو باندې مېوې پلوري
اوف خدايه .... اې د ځوانۍ ځلېدونکيه لمره! او اې د تاندوالي د وخت
خوندوره لېونتوبه! چيرته ياست او ولې مو يوازې پرېښودم؟
نن زه د غنمو د مغز ډوډۍ خورم او خپله هره نمړۍ له شاتو په ډکه کاسه کې
ننباسم. خو دغه ډوډۍ زما په خوله ترخه لګېږي. د ځوانۍ د وخت د وچې او له
سبوسو ډکې ډوډۍ غوندې نه ده او هغسې بوی نه لري
اې تېرو شويو کلونو چې لاړئ. ايسا رشئ او .... بيرته راستانه شئ .. ! اې
آمونه! (لمره) چې تل په اسمان کې له ختيځه تر لوېديځه په حرکت کې يې، يو ځل
خو له لوېديځه د ختيځ پر لور روان شه، چې زه بيرته خپله تللې ځواني ترلاسه کړم.
اې د ځوانۍ هغو لړزو چې د مينا او مريت په غېږ کې پر ما راتلئ! اوس چيرته
ياست او ولې د هېڅ يوې ښځې په غېږ کې زه د غسې لړزه نه احساسوم.
اې نازک قلمه! چې اوس زما په لاس کې يې او د پاپيروس پر مخ ځغلې، اوس چې
خدايان زما ماشومتوب بيرته نه شي راګرځولی، ته پخپلو ليکنو سره د ماشومتوب
د پړاو خاطرې او د ځوانۍ د وخت زړه او تاندوالی ماته راستون کړه چې نن سبا د
تورې ځمکې تر ټولو بدبخت سړی سينوهه. له تېر وخت سره بوخت شي او اوسني
غمونه هېر کړي

***

هغه کس چې ما تصور کاوه. زما پلار دی، د سن موت په نوم ډاکټر و، د طبس په
بېوزلو سيمو کې يې ژوند کاوه او د بېوزلو کسانو درملنه يې کوله.
هغه ښځه چې کيپا نومېده او ما خپله مور بلله، د هغه مېرمن وه. دغو دوو
کسانو له دې چې عمر يې تېر شوی و، خو زوی يې نه و زيږولی او له همدې امله يې
په بوډاتوب کې زه د خپل زوی په توګه ومنلم

سن موت او کیپا له دې کبله چې ډېر ساده ګان ول، ویل به یې، چې زه ورته خدایانو را استولی وم او اټکل یې نه کاوه، چې زه به څومره غمونه ورپه برخه کړم.
کیپا چې له افسانو سره یې مینه درلوده، زه یې د دغو افسانو د لوی اتل په نوم، یانې سینوهه ونومولم.
سینوهه هغه کس و، چې د یوه روایت پر اساس یې یوه ورځ د فرعون په کېږدۍ کې یو وحشتناک راز واورېد او له دې وېرې چې ونه وژل شي وتښتېد.
ډېر کلونه په پردیو هېوادونو کې و او له ډېرو خطرناکو پېښو سره مخامخ شو، چې له ټولو روغ ووت.
کیپا هم یوه ساده مېرمن وه، فکر یې کاوه، چې ما هم له ډېرو خطرو ځان ژوندی ایستلی دی او تر دوی را رسېدلی یم، نو که زما نوم سینوهه کېږدي، په راتلونکي کې به هم له پېښو څخه خوندي پاتې شم.
خو د آمون خدای کاهنان وایي، چې نوم د انسان پر برخلیک ډېر اغېز لري او ښایي له همدې امله زه له ډول ډول پېښو، سره مخامخ شوم.
ډېره موده مې په پردیو هېوادونو کې تېره کړه او له دې کبله چې نوم مې سینوهه و، په ډېرو رازونو پوه شوم، چې ځینې یې خطرناک هم ول.
د پاچاهانو او د هغوی د مېرمنو په رازونو خبر شوم، چې د مرګ سبب هم کېدای شي او بالاخره همدې نوم زه په یوه رټل شوي سړي بدل کړم او جلاوطن هم شوم.
خو زه دا فکر نه کووم چې زه دې له دې امله له ناخوالو او کړاوونو سره مخامخ شوی یم، چې ګني نوم مې سینوهه دی.
که زما نوم (کپرو) یا (کفرن) او یا (موسي) وای، بیا به هم زما برخلیک همدا و، خو له دې خبرې انکار نه شو کولای چې سینوهه رټل شوی او رد شوی کس دی او د باز زوی هورمهب د مصر پاچاهۍ ته ورسېد او د مصر تاج یې پر سر کېښود.
له همدې امله ځینې وخت د یوه کس د ژوند پېښې د هغه له نوم سره داسې اړخ لګوي، چې خلک فکر کوي، نوم د انسان په برخلیک کې ستر رول لري.
ځینې کسان د دې لپاره چې، د خپلو بدبختیو پر وخت ځانته تسلي ورکوي

وايي، پر موږ د خدای غضب نازل شوی او د نېکمرغۍ پر وخت پر ځان وياړي، چې له پيله يې نوم همداسې نيک و، ځکه خو نېکمرغۍ ور په برخه شوې.

زه د درېيم آمون هوتپ د پاچاهۍ پر وخت وزېږېدم او پر همدې کال يو بل کس هم وزېږېد، چې وروسته يې پر ځان څلورم آمون هوتپ او بيا يې اخناتون نوم کېښود.

خو نن سبا څوک دغه نوم نه اخلي، ځکه چې پر دغه نوم لعنت شوی، هغه هم له دې کبله چې څلورم آمون هوتپ غوښتل د حقيقت لپاره ژوند وکړي.

کله چې هغه وزېږېد د مصر په سلطنتي ماڼۍ کې خوشحالي وه او فرعون، ددې پېښې په شکرانه کې د آمون په معبد کې قرباني وکړه. د مصر ملت هم خوشحالي کولې، ځکه چې نه پوهېدل د اخناتون د حکومت په وخت کې به له څومره بدبختيو سره مخامخ شي.

د فرعون مېرمنې تي ئي چې کابو دوه ويشت کاله يې نوم له خپل مېړه سره يو ځای په ټولو معبدونو کې کېندل شوی و، تر هغه وخته يې ونه کړای شول چې خپل مېړه ته يو زوی وزېږوي.

له همدې امله ددغه هلک له زېږېدو وروسته فرعون ډېر خوشحال شو او کله چې کاهنانو دغه هلک سنت کړ، هغه يې خپل وليعهد وباله.

دغه هلک په پسرلي کې وزېږېد، هغه موسم چې کروندګر پکې کرنه کوي او ما په مني کې، هغه مهال چې د نيل سيند مستېږي، دې نړۍ ته سترګې پرانستې.

خو د خپلې زوکړې له دقيق تاريخه خبر نه وم، ځکه خو کله چې زما ناسکه مور کيپا وليدم، هغه مهال زه په يوه ټوکرۍ کې د نيل په اوبو کې روان وم او د نيل اوبو د کيپا کور ته راوستم.

توتکۍ زما پر سر الوتلې خو زما غږ چا نه اورېده، ان مور مې تصور وکړ، چې زه مړ شوی يم، خو زما پر مخ چې يې لاس تېر کړ، نو پوه شوه، چې زه ژوندی يم.

زه يې کور ته بوتلم او د نغري تر څنګ يې واچولم، بيا يې خپله خوله زما پر خوله کېښوده، چې ساه راکړي، تر دې چې ما وژړل.

زما پلار سن موت په دې وخت کې د ښوزلو د معالجې لپاره له کوره وتلی و او د ښېرته راتګ پر مهال له دوو هیلیو او یوې پیمانې اوړو سره راستون شو، چې د فیس په بدل کې یې تر لاسه کړي ول.

زما غږ چې یې واورېد فکر یې وکړ چې کیپا پیشونګوري پیدا کړې او غوښتل یې له هغې سره لانجه وکړي، خو زما مور ورته وویل دا پیشونګوري نه دی، بلکې یو ماشوم دی.

ته باید خوشحال شې چې خدای مور ته زوی راکړی دی.

پلار مې بدل شو او زما میره یې کونګ وبلله، خو هغې ماشوم ور وښود.

کله چې د سن موت سترګې پر ما ولګېدې او زما کوچنۍ سترګې او خوله یې ولیده، زړه یې ورحمېد او چمتو شو چې ما په زوی والي ونیسي.

له دې وروسته، دې مېره او ښځې ګاونډیانو ته وویل چې زه کیپا زېږولی یم، خو زه نه پوهېږم چې د دغه خبره به ګاونډیانو منلې وي کنه؟

زما ناسکه مور چې زه یې حقیقي مور ګڼم، په یوه زانګو کې واچولم او هغه تو کړه یې چې زه یې په سیند کې، پکې پیدا کړی وم د زانګو پر سر کېښودله.

زما ناسکه پلار چې زه یې حقیقي پلار ګڼم، په کور کې یې تر ټولو ښکلی مسي لوښی معبد ته یوووړ، چې کاهنانو ته یې ډالۍ کړي او هغوی زما نوم د سن موت او کیپا د زوی په توګه په ژوندو کې ثبت کړي، چې دغه کار هم وشو.

زما پلار چې یو ډاکټر و، زه یې پخپله سنت کړم، ځکه چې د کاهنانو له ککړو چړو وېرېده، چې د هغوی چړې زما ټپ میکروبي نه کړي.

زه فکر کووم چې هغه د بچت لپاره هم دغه کار وکړ، ځکه چې د ښوزلو ډاکټر و او ډېر عاید یې نه درلودل، نو زما د سنتولو لپاره یې کاهنانو ته ښې ډالۍ نه شوې ورکولای.

زه چې لږ لوی شوم هغې ښځې او مېړه، چې ما فکر کاوه، زما اصلي مور و پلار دي دغه خبرې ماته وکړې، خو فکر نه کووم چې دروا غ به یې ویلي وي، ځکه چې دواړه له درواغو وېرېدل.

له دې وروسته چې لږ لوی شوم، زما د ماشومتوب وېښتان یې لنډ کړل او حقیقت یې راته بیان کړ، ویې ویل زه د هغوی اصلي زوی نه یم، بلکې په زوی توب یې منلی یم.

هغوی له خدایانو وېرېدل او نه یې غوښتل او خپله چوپتیایې د خدایانو لپاره ستر درواغ بلله، نو ځکه یې پر اصلي کیسې خبر کړم.

زه نه پوهېدم چې له کوم ځایه راغلی یم او زما اصلي مور و پلار څوک دي؟ خو له دې وروسته چې بالغ او هوښیار شوم، د ځینو شواهدو او قراینو له مخې چې په دې کتاب کې مې یادونه کړې، فکر کووم چې زما اصلي مور و پلار څوک دي.

خو دغه فکر چې څومره هم قوي وي، بیا هم یو گمان او حدس دی.

هغه څه چې زما لپاره جوت شول، دا دي چې زه یوازینی ماشوم نه وم، چې په یوه ټوکرۍ کې اچول شوی او په نیل کې له بره ښکته لور ته خوشې شوی وم.

د طبس ښار په هغه وخت کې ډېر معبدونه او ماڼۍ درلودې او شا و خوایې د بېوزلو جونگړې وې.

د فرعونیانو په وخت کې څو نور هېوادونه، هم له مصر سره یو ځای شول او مصر د نړۍ یو شتمن هېواد شو.

له دې کبله چې نور هېوادونه له مصر سره یو ځای شول، ددغو هېوادونو، ډېر اوسېدونکي، هم طبس ته راغلل، چې هلته کورونه او ماڼۍ جوړې کړي.

دوی پر دې سربېره د خپلو خدایانو د عبادت لپاره معبدونه جوړ کړل او د نورو هېوادونو یو شمېر اوسېدونکي، چې بېوزله ول، په جونگړو کې یې واړول.

بهرنیانو په طبس کې له اوسېدو سره خپلې خپلې عقیدې او رواجونه هم دود کړل.

که څه هم د هغوی عقیدو پر ټولو مصریانو اغېز ونه کړ، خو ځینې یې متاثر کړل.

په دوی کې یو دود دا و، چې بېوزلو به د خپلو ماشومانو د ساتلو توان نه درلود، نو خپل ماشومان به یې په ټوکریو کې واچول او په نیل کې به یې خوشې کول.

ځینو شتمنو مېرمنو به هم، چې مېړونه به يې په سفر کې ول، د خپلو عیاشیو او عشقونو مېوې په ټوکریو کې اچولې او نیل ته به يې سپارلې.

ښايي زه د کوم مانو په کاله کې زېږېدلی وم، چې مېرمن يې د خپل خاوند په غیاب کې له یوه سرياني سړي سره څملاستلې وي، له همدې امله يې له زېږېدو وروسته زه سنت کړی نه وم او د نیل اوبو ته يې اچولی وم، ځکه که پلار مې مصري وای حتماً يې زه سنت کولم.

له دې وروسته چې ما د ځوانۍ په پړاو کې ګام کېښود او زما د ماشومتوب وهښتان يې راخخه لرې کړل، کیپا دغه وهښتان او زما د ماشومتوب بوټان د لرګي په یوه صندوق کې کېښودل.

بیا يې هغه ټوکرۍ چې زه يې پکې په نیل کې پیدا کړی وم، پر نغري را ځوړنده کړه چې د نغري د لوګیو له امله زېړه شوه.

وروسته يې ددې ټوکرۍ ځینې برخې ووينځلې او ما چې به هر ځل دغه ټوکرۍ لیدله را په زړه کېدل مې، چې په دې ټوکرۍ کې له نیله را تېر شوی یم.

زه پوهېدم چې ددې ټوکرۍ اوبدل شوې غوټې، د کوتر بازانو غوټې دي.

ما له خپل مجهول مور و پلاره یوازې دغه ټوکرۍ درلوده او ددې ټوکرۍ په کتلو مې زړه زخمي شو، ځکه چې زما د اصلي مور و پلار یوازېنۍ نښه ده.

دې ټوکرۍ زما په زړه کې لومړنی ټپ جوړ کړ.

همغه ډول چې یوه مهاجره مرغۍ له یوې مودې هجرت وروسته خپلې مېنې ته ځي، کله چې انسان هم بوډا شي غواړي، چې خپل ماشومتوب ور پر زړه کړي.

کله چې زه خپلې حافظې ته مراجعه کووم ګورم، چې زما ماشومتوب ډېره ځلا اوبرېښنا لري، داسې ښکاري چې په هغه وخت کې هر څه ډېره ځلا درلوده.

انسان چې هر څومره بوډا شي، څو کله چې خپل ماشومتوب، ته ستون شي، د خوشحالۍ ډېر شيان پکې موندلی شي او له دې اړخه شتمن او بوډا شي سره ورته دي.

زما پلار سن موت د بوډاو په سیمه کې د معبد ترڅنګ د طبس په ډېره ګڼ

میشتې سیمه کې ژوند کاوه.

د هغه کور ته نژدې د طبس د ښار بندر و.

په دې بندر کې هغه بېړۍ چې له پورته نیله راتلې او هغه کښتۍ چې د نیل له برنۍ برخې څخه طبس ته ننوتلې، دواړو به خپل بارونه خالي کول.

ددې بېړیو ماڼوګانو له دې وروسته، چې خپل بارونه به یې دلته تش کړل، د بېوزلو د سیمې تنګو کوڅو ته به ننوتل او ددې محلې په میخانو کې به یې شراب او د اوربشو اوبه څښلې او ډوډۍ به یې خوړله.

په همدې محله کې فاحشه خانې وې، چې نارینه وو به پکې وخت تېري کاوه، شتمن کسان به هم په روان تخت کې دغو کورونو ته راتلل چې وخت تېري کړي.

د بېوزلو په سیمه کې زموږ ګاونډیان د مالیاتو مامورین، واړه افسران او په نیل سیند کې د ګرځېدونکو بېړیو خاوندان ول، دغه راز ځو تنه ټیټ رتبه کاهنان هم هلته اوسېدل.

همغه ډول چې د نیل سیند له مستېدا وروسته د اوبو لوړ دېوالونه د خلکو پام ورجلبوي، زما مور و پلار هم په دې سیمه کې د خلکو پام ځانته جلباوه او په دې سیمه کې پېژندل شوې څېرې ګڼل کېدې.

زموږ کور د شا و خوا کورونو په پرتله، په تېره بیا د جونګړو او خټینو کورنو په پرتله ډېر لوی ښکارېده، حتي مور په خپل کور کې یو کوچنی باغ درلود او د اکاسي د ونو کتار، زموږ کور له کوڅې څخه بېلاوه.

زموږ د کور په منځ کې د ډبرو یو ډنډ و، خو دغه ډنډ به له مني وروسته د نیل د اوبو د مستېدا له امله ډکېده.

زموږ کور څلور کوټې درلودې، چې په یوه کې به مې مور ډوډۍ پخوله او ډوډۍ به مو په برنډه کې خوړله، چې له پخلنځي هم لاره ورغلې او هم مې د پلار له کتنځي څخه یوه لاره ورغلې وه.

په اونۍ کې به دوه ځله یوه ښځه زموږ کور ته راتله او د کور په صفايي کې به یې

زما له مور سره مرسته کوله، ځکه کیپا ډېره کمزورې وه.

دغه راز به هره اونۍ، یو بله ښځه هم زموږ کور ته راتله او د نیل پر غاړه به یې زموږ چټلې جامې وینځلې.

له ګنې ګوڼې ددې ډکې او ګنده سیمې، چې زه پرې له ماشومتوبه وروسته پوه شوم. د ګندګۍ یوازېنۍ علت هغه پردي کسان او غیر مصریان ول، چې هلته یې ژوند کاوه.

زما مور و پلار د پخواني مصر له دودونو سره سم ژوند کاوه، چې ډېر د احترام وړ ول.

سره له دې چې په طبس کې د خلکواوان د خانانو او اشرافو مینه او دلچسپي له پخوانیو دودونو او رواجونو سره کمه شوې وه، خو زما پلار او ګاونډیانو یې د پخوانیو مصریانو په شان پر خدایانو عقیده درلوده او د روح پر سپېڅلتیا یې باور درلود.

په لږو یې ګوزاره کوله او له تجملاتو او اشرافي ژونده لرې ول، ځکه چې وېرېدل له نېغې او سمې لارې څخه وا نه وړي.

ته وا دغو کسانو چې هلته یې ژوند کاوه او په دې سیمه کې یې دندې درلودې، غوښتل چې په پرهیزګارۍ او پخوانیو دودونو ته په لېوالتیا سره خلک وپوهوي چې د هغوی له ډلې څخه نه دي او نه غواړي د دوی په شان شي.

خو زه نه پوهېږم ولې دا مسلې چې په ماشومتوب کې پرې نه پوهېدم او په لویوالي کې پرې پوه شوم اوس د بوډاتوب په دې پړاو کې یادوم.

ایا غوره نه ده، چې ووایم، زموږ په کور کې یوه لویه ونه وه، چې لویه سته یې درلوده او ما به په ماشومتوب کې هغه مهال ددې ونې سیورې ته پناه وړه چې لمر به تنګ کړم.

ایا غوره نه ده چې را په زړه کړم، په ماشومتوب کې زما تر ټولو ښه لوبتکه، یوه لرګنیه تمساح وه، چې سره خوله یې درلوده، ما به پر یوه پړي تړلې وه او د کوڅې په ډبریز غولي به مې کشوله.

لرګینه تمساح به په ماپسې روانه شوه او خپله خوله به یې پرانیستله. ما به کتل چې ستونی یې هم تک سور دی.

کله چې به ما په کوڅه کې له خپلې لرګینې تمساح سره لوبې کولې، د ګاونډیانو ماشومانو به په حیرانتیا سره ورته کتل او ماته به یې د شاتو ډوډۍ، رنګینې ډبرې او مسي تارونه راوړل چې په بدل کې یې وکړای شي زما پر تمساح لوبې وکړي.

ځکه چې یوازې د خانانو زامنو دغسې لوبتکه درلوده او د بېوزلو بچیانو هغه د ځان لپاره نه شوای برابرولای.

زما پلار هم ددې لوبتکې د اخیستو توان نه درلود، بلکې درباري نجار، زما د پلار لپاره جوړه کړې وه او هغه ته یې ډالۍ کړې وه.

زما پلار ددغه نجار یوه دانه معالجه کړې وه، چې د هغه د کېناستو مخه یې نیوله.

مور به مې هره ورځ ترلاسه نیولم او بازار ته به یې بېولم.

کیپا په بازار کې ډېر څه نه اخیستل خو غوښتل یې چې یوه ګړۍ د یوې ګېډۍ پیازو لپاره چنې ووهي او په اونۍ کې به هره ورځ بازار ته تلله چې یوه جوړه بوټان واخلي.

مور به مې له دوکاندارانو سره داسې خبرې کولې چې ته وا شتمنه مېرمن ده او د شیانو په اخیستو کې شک کول او ټینګېدل یې ددې لپاره نه دي، چې بېوزله او تش لاسې ده، بلکې غواړي ښه شیان واخلي.

ما به کتل چې مور مې ځینې شیان غواړي، خو نه یې شي اخیستلای.

ماته به یې داسې راښودله، چې دغه کار ددې لپاره کوي، چې ماته رازده کړي، بچت څه ډول کېږي.

ماته به یې ویل، شتمن هغه څوک نه دی، چې سره زر ولري، بلکې هغه څوک شتمن دی، چې په لږو قناعت وکړي.

مور چې به مې دغه خبرې راسره کولې، زه به پوه شوم، چې سترګې یې ورېښمینو او رنګارنګ ټوکروانو ته دي، په تېره بیا (سیدون) او (بیبلوس) ټوکران

يې ډېر خوښېدل چې په سوريې کې اوبدل کېدل

دغه ټوکر د هيليو د ښځو په شان سپک وي.

په بازار کې به يې د شتر مرغ پر ښځو او د عاج پر زينتي شيانو لاس تيراوه، که څه هم لاسونه يې له ډېر کاره ځيږه شوي ول.

کله چې به د سوداګرو له ټولي تېرېده، ويل به يې، په بازار کې ټول دغه شيان بې ځايه او اضافي دي او يوازې د کبرجنو او ځانغوښتونکيو کسانو د ارام لپاره دي.

خو زه چې ماشوم وم، په زړه کې مې د مور خبره نه منله او زړه مې ډېر غوښتل چې مور راته يوه بيزو واخلي، چې زه يې په غېږ کې ونيسم او دغه ځناور خپل لاسونه زما په غاړه کې را امېل کړي.

ډېر مې زړه کېده چې په بازار کې يو ښايسته مرغه راته واخلي، چې په مصري يا سرياني ژبه خبرې وکړي.

ما دا خبره نه شوه منلی، چې ښايسته غاړکۍ او بوټان چې پر مخ يې د سرو زرو ټوټې لګېدلې وې، داسې شيان وبلل شي، چې په درد نه خوري.

کله چې لوی شوم پوی شوم، چې مور مې هم دغه شيان غوښتل، هيله يې کوله چې شتمنه شي او وکړای شي، دغه شيان واخلي، خو له دې کبله چې خاوند يې يو بېوزله ډاکټر و، مور به مې مجبوره شوه چې قناعت وکړي او خپلې بې ځايه هيلې به يې په خيالونو ارامولې.

مور به مې د شپې مهال په کرار غږ هغه کيسې راته کولې، چې زده يې وې.

يوه کيسه يې د سينوهه افسانه وه او په بله کيسه کې يې د هغه چا په هکله خبرې کولې، چې په سمندر کې ډوب شوی و او يوه ټاپو ته ګوزار شوی و، چې هلته د مارانو پاچا حکومت کاوه او له دې ټاپو يې يوه ستره خزانه له ځان سره راوړه.

په دې افسانه کې مې مور د خدايانو، دېوانو، کوډګرو، مارګيرانو او د مصر د پخوانيو فرعونيانو په هکله خبرې کولې.

کله چې به مې پلار دغه کيسې اورېدې، غريده به او زما مور ته به مې يې ويل، په دغو چټي شيانو د هلک ذهن مه خرابوه.

مور به مې غلې شوه، خو چې پوه به شوه پلار مې ویده دی، نو بیا به یې کیسه له همغه ځایه پیل کړه چې غوڅه کړې به یې وه.

ما به احساس کاوه چې زما مور یوازې زما د بوختیا لپاره دغه کیسې نه کولې، بلکې پخپله یې هم خوند ترې اخیست.

د دوبي په ګرمو شپو کې چې زمونږ بستره به د اور په شان وه، مونږ به لوڅ ثملاستلو او ګرمي به خوب ته نه پرېښودو.

د مور کرار غږ به د اسې ویده کړم، چې تر سهاره به مې سترګه نه رپوله او نن هم کله چې هغه غږ اورم د ډاډ او ارامښت احساس کووم.

زه فکر کووم چې زما حقیقي مور به هم له ما سره د کیپا په اندازه مینه نه وای کړې.

دې خرافاتي ښځې چې د نقالانو او کیسه ویونکیو افسانې به یې اورېدلې، دغو رندو نقالانو او کیسه ویونکیو ته به یې د هرې کیسې په بدل ښه خواړه ورکول.

تر حقیقي مور له ما سره دې مور ډېره مهرباني کړې ده.

هغه افسانې چې مور به راته کولې، زما ساعت ورسره تېرېده.

ما به هم د مور په شان د ماشومتوب له هغه ژونده، چې په چټله کوڅې کې به مو لوبې کولې دغو کیسو ته پناه وړله.

د لمر لوېدو په وخت کې به چې د آمون زرینه بېړۍ (لمر) د لوېدیځ د غونډیو پر لور ولاړه او د افق تر شا به پټه شوه، نو د ټولو بېوزلو له کورنو به د سرو کړیو کبانو او تازه ډوډیو بویونه او لوګي پورته شول ما له ماشومتوبه له دغو بویونو سره داسې عادت وکړ، چې په ټول عمر کې، چې په هر ځای کې به وم، دغه بوی مې ډېر خوښېده.

نن چې بوډا شوی یم او پوهېږم، چې مرګ مې نږدې شوی دی، ددغو بویونو په یاد کې د حسرت اوښکې تویوم.

## د سینوهه د بشپړې سریزې پای

د خپرندود ارزونې يوه ورځنی غونډه او د دوو وتليو خپرونكيو
استاد زلمي هېوادمل او ډاكتر عبدالروف رفيقي نمانځغونډه
جلال آباد: ۱۳۹۱/۱/۲۲ - ۲۰۱۲/۴/۱۰

# SINUHA

## د كتاب له متن څخه:

- د انسان يو شی هېڅكله نه بدلېږي او هغه دده ناپوهي ده. كه يو لک كاله وروسته كوم انسان پيدا شي؛ نو زموږ د وختو انسان او هغو انسانانو په شان به ناپوه او تېروتی وي، چې تر موږ مخكې يې د اهرامونو د جوړېدا په وخت كې ژوند كاوه.
- بيا به هم انسان ناپوه وي او راتلونكی انسان هم په درواغو او تشو وعدو تېر وځي؛ خكه چې انسان د ژوند د دوام لپاره درواغو او چتي وعدو ته اړتيا لري او د هغه فطرت همدا غواړي، چې تل تر رښتيا پر درواغو ډېر باور وكړي او د واقعيت په پرتله پر تشو وعدو ډېر ايمان لري، چې هېڅكله به عملي نشي.
- ځينې كسان شته، چې وايي، هغه څه چې نن پېښېږي، مخښه نه لري او هېڅكله به په نړۍ كې نه وي شوي؛ خو د دوی دغه خبره د وګړو د كمې تجربې او د فكري خواک د كموالي له امله ده؛ خكه په نړۍ كې چې كومه پېښه شوې، د هغې مخښه ارومرو ليدل شوې ده.
- زه سينوهه نومېږم، ما په خپلو سترګو وليدل، چې يو زوی، په كوڅه كې خپل پلار وواژه؛ خكه چې زوی د صليب نښه پر خپل ټټر ټومبلې وه او پلار د ښكر نښه درلوده.
- ما پر خپلو سترګو وليدل، هغه كس چې تل به يې د سرو زرو په جامونو كې شراب څښل، كله چې بېوزله شو، د نيل سيند پر غاړه ناست و او د سيند اوبه يې څښلې.
- ما وليدل هغه كسان چې په تلو كې يې سره زر تلل، په څلور لارو كې سوال ته مجبور شول او د همدغو كسانو مېرمنو د يوې ټوټې مسو په بدل كې خانونه پر تور پوستو خرڅ كړل.
- دغه ټول كارونه زما په مخ كې شوي دي او له دې وروسته به هم همدغسې ډېر نور كارونه وشي.





ISBN 978-9936-22-173-4
9 789936 221734 >

**Published By**
**DANISH PUBLISHING ASSOCIATION**